هٰذَا بَيَانٌ لِّلنَّاسِ وَهُدًى وَّمَوْعِظَةٌ لِّلْمُتَّقِيْنَ

# تفهیم القرآن

سورة محمد ــــ سورة الطلاق

ابوالاعلی مودودیؒ

پنځم جلد

پښتو ترجمه
پروفیسر شفیق الرحمن تکړی تخت بهائی

ناشر:- مکتبة الهدی

نیو بس اډه فواره مارکیټ مردان

جمله حقوق په حق د ناشر محفوظ دی ۔
چاپ کوونکے او خورؤونکے : حافظ عبیدالله ناظم مکتبه الهدٰی نوارهٔ مارکیټ نیواډه مردان
پریس :۔
اول ځل :۔
کتابت کوونکے : احمد گل جلاله
هدیه :۔
تعداد : یو زر (ایک هزار)۔
په سرپرستئ د
جماعت اسلامی تخت بهائی ضلع مردان
د ملاویدو ځایونه
(۱) دفتر جماعت اسلامی رشید مارکیټ تخت بهائی ۔
(۲) نور محمد ایډوکیټ ایډ رسټیل ورکس بټ خیله ملاکنډ ایجنسی
(۳) ایډ بک سیلرز ایئرپورټ روډ مینگوره سوات
(۴) مکتبه دعوة القرآن والحدیث نیو روډ مینگوره سوات
(۵) الفضل بکسیلرز دیر خاص ۔
(۶) حرا بک ډپو عقب فلائنگ کوچ اډه مین روډ تیمرگره
(۷) محمود بک سیلرز سواړی بازار بونیر
(۸) مکتبهٔ تطهیرافکار ډهکی منور شاه قصه خوانی پشاور ښهر
(۹) پیر سردار شاه پبی جی ټي روډ ضلع نوښهره
(۱۰) دفاتر تحریک محنت پشاور، نوښهره، مردان، صوابی، مینگوره سوات ۔
(۱۱) عبدالغفور عابدی بمعرفت محمد اسحاق کونسلر فرنیچر کالونی کراچی
(۱۲) حاجی شیرخان نیو محمدی کالونی بیاری سټیشن ماړی پور روډ کراچی

چاپ کوونکے

مکتبة الهدٰی نیواډه نوارهٔ مارکیټ ضلع مردان

فون: ۶۳۲۹۴

# دَ سُورتونو فهرست

# مُحَمَّد

**نُوم** د آیت نمبر ۲ د فقرے وَاٰمَنُوْا بِمَا نُزِّلَ عَلٰی مُحَمَّدٍ نه اخستلے شوے دے. مطلب دا دے چه دا هغه سورة دے چه په دے کښے د مُحَمَّد صلی الله علیه وسلم نوم مبارک راغلے دے. د دے نه علاوه د دے یو بل مشهور نوم "قتال" هم دے چه د آیت ۲۰ د فقرے وَ ذُكِرَ فِيْهَا الْقِتَالُ نه اخستلے شوے دے

**د نازلیدو زمانه** د دے سورة د مضمونونو نه دا معلومیږی چه دا د هجرت نه روستو په مدینه کښے په هغه وخت کښے نازل شوے وو چه د جنګ حکم خو شوے وو لیکن جنګ لا عملاً شروع شوے نه وو. د دے تفصیلی دلیلونه وړاندے په حاشیه ۸ کښے راځی.

**تاریخی حالات** په کومه زمانه کښے چه دا سورة نازل شوے دے په هغه وخت کښے حالات دا وو چه په مکه معظمه کښے خاص طور او په ټوله عربستان کښے عام طور په هر ځائے کښے په مسلمانانو ظلمونه کیدل او د دوی ژوند پرے تنګ شوے وو. مسلمانان د هر طرف نه راغونډ شوی وو په مدینه کښے دارالامان کښے جمع شوی وو، لیکن قریشی کافرانو دلته هم هغوی په آرام نه پریښودل. د مدینے د وړو کے شان کلی د هر طرف نه د کافرانو په ګیره کښے وو او هغوی د دے کلی د ختمولو پخه اراده کړی وه. په دا سخت حالت کښے د مسلمانانو د پاره صرف دوه لارے پاتے شوی وے. یا خو دا چه هغوی د حق دین د تبلیغ او پیروئ نه منع شی او جاهلیت ته تورے دال غوزار کړی. او یا دا چه د خپل سرونه ورتیر شی او د جنګ د پاره راپاسی او د همیشه د پاره دا فیصله اوکړی چه د عربو په زمکه به اسلام وی یا جاهلیت. په دے موقع الله تعالی مسلمانانو ته د هغه لو همت لار اوښودله چه هغه د مؤمنانو د پاره ایکی یوه لار ده. هغه وړته اول د سورة حج په آیت ۳۹ کښے د جنګ اجازت ورکړو او بیائے ورته د سورة بقرے په آیت ۱۹۰ کښے د جنګ حکم اوکړو. لیکن په هغه وخت کښے هر سړی ته معلومه وه چه په دے حالاتو کښے جنګ کول څه معنی لری. په مدینه کښے د مومنانو یو موټے خلق وو چه پوره زرکسان پکښے هم د جنګ کولو قابل نه وو او هغوی ته حکم کیدو چه د ټول عرب د جاهلیت سره د غریبه خوړلو د پاره توره راواخلئ او راپاسئ. بیا د جنګ د پاره چه د کوم سامان سلمان ضرورت وو هغه خو غټه خبره وه هغوی دیره په مشکله سره د خپلے ځلے نوری یمه کړه او یو څو سوو بے کوره مهاجرو له ئے په خپل کلی کښے ځائے ورکړو بیا هم مهاجرین پوره تیکاؤ شوی نه وو او د ځلو رو وارو طرفونو نه ورسره عربو روزګار بند کړے وو او هغے بنسه زپلی وو.

**موضوع او مضمون** په دے حالاتو کښے دا سورة نازل کړے شو. د دے موضوع دا ده چه مومنان جنګ ته تیار کړے شی او په دے سلسله کښے ورته ابتدائی هدایات ورکړے شی. په دے مناسبت سره د دے سورة ته سورة قتال هم ویلے شوے دے. په دے کښے ترتیب وار لاندینی مضمونونه ذکر کړے شوی دی؛

په شروع کښې وئيلے شوی دی چه په دے وخت کښې د دوؤ ډلو په منځ کښې مقابله ده. يوه ډله د حق د منلو نه انکار کړے دے او د الله په لار کښې د لاړے خنډ جوړ شوے دے. او دوېمه ډله هغه حق منلے دے کوم چه د الله تعالیٰ د طرف نه د هغه په بنده حضرت محمّد صلّی الله علیه وسلّم باندې نازل شوے وو. اوس د الله تعالیٰ صفا فيصله دا ده چه د اولے ډلے ټول کوششونه هغه ضائع کړل، او د دوېمے ډلے حالات ئے صحيح کړل.

د دے نه روستو مسلمانانو ته د جنګ اولنۍ هدايات ورکړے شوی دی. هغوی ته د الله تعالیٰ امداد او د هغه د رهنمائۍ يقين ورکړے شوے دے. هغوی له اُميد ورکړے شوے دے چه چا د الله په لار کښې قربانۍ اُوکړه هغه له به د هغې بهترين اجر ورکړے کيږی. هغوی له تسلّی ورکړے شوې ده چه د حق په لار کښې به د هغوی کوششونه عبث نه ځی بلکه په دُنيا کښې به ورته هم ښه بدله ملاويږی او په آخرت کښې هم.

بيا د کافرانو په حقله وئيلے شوی دی چه هغوی د الله د مرستے او د هغه د رهنمائۍ نه محروم دی. د هغوی هر کوشش به د مومنانو په مقابله کښې ناکامه منده ته وی او هغوی به په دُنيا او په آخرت دواړو کښې د خراب انجام سره مخ کيږی. هغوی چه د الله نبی د مکے نه اُوويستو دا ئے ګڼرله چه ګنی هغوی ته غټه کاميابی نصيب شوې ده، حالانکه هغوی په اصل کښې په دے کار کولو سره خپله تباهی ځپله په ځان راوستله.

د دے نه روستو خبره منافقانو ته کيږی چه د جنګ د حکم د راتلو نه مخکښې خو ئے د مسلمانۍ غټے دعوے کولے، خو چه کله د جنګ حکم راغلو بيا ئے ځيے اُوخوځيدلے او د خپل خير لټولو په فکر کښې ئے د کافرانو سره په دے غرض سازباز شروع کړو چه د جنګ د خطرے نه ځان بچ کړی. هغوی ته صفا صفا اُووئيلے شو چه څوک د الله او د هغه د دين په معامله کښې منافقت کوی نو د هغوی يو عمل هم د الله په دربار کښې قبول نه دے. د لته خو هغه بنيادی خبره چه په هغې د ايمان د دعوی کيدو خلقو آزميښت کيږی دا ده چه آيا سړے د حق سره دے او که د باطل سره؟ چه آيا د سړی مينه د اسلام او د مسلمانانو سره ده او که د کفر او د کافرانو سره ده؟ چه آيا هغه ته خپل ځان او خپلے فائدے غوره دی او که هغه حق چه په هغې باندې د ايمان راوړلو هغه دعوی کوی؟ په دے آزميښت کښې چه څوک پوره اُونه ختلو هغه هيڅ کله هم د الله په نزد مومن نه دے، نو د هغه مونځ او د هغه روژه او د هغه زکوٰة به د هغه په دربار کښې د څه اجر مستحق شی.

بيا مسلمانانو ته نصيحت شوے دے چه د خپل کم تعداد او کم سامان، او د کافرانو د ډير تعداد او د ډير سامان په وجه حوصله او همت مه بائيلئ، د هغوی په لاس ورا اُوړو دلو سره هغوی ته د خپلے کمزورئ اظهار مه کوئ چه په دا شان هغوی د اسلام او د مسلمانانو په مقابله کښې لور زيات زړه ور نه شی، بلکه د الله په بروسه باندې د باطل او د کفر دے غرله

په د غره ورشي. الله د مسلمانانو ملګرے دے. هم دوئ به غالب کیږی او هم د دوئ په د غره به د کفر دا غر دړے وړے کیږی.

په آخر کښے مسلمانانو ته د الله په لار کښے د خرچ کولو په حقله وینا شوی ده. اګر چه په هغه وخت کښے د مسلمانانو مالی حالت ډیر کمزورے وُو، لیکن مخے ته مسئله دا پیښه وه چه آیا په عربو کښے د اسلام او مسلمانان ژوندی پاتے شی او که نه؟ دا مسئله ډیره اهمه او نازکه مسئله ده، په دے وجه مسلمانانو له پکار وُو چه خپل ځان او خپل دین د کفر د غلبے نه د بچ کولو د پاره او د الله د دین د غالب کولو د پاره بچیله هم او جنګیږی او خپل مالُونه هم د امکان د حده پورے خرچ کړی. په دے وجه مسلمانانو ته اُوفرمایلے شو چه په دے وخت کښے کوم سړی د بخل نه کار واخلی نو هغه به د الله هیڅ نقصان اُونه کړی بلکه بچیله به خپل ځان د هلاکت په خطره کښے واچوی. الله خو د انسانانو محتاج نه دے. د هغه د دین د پاره که یوه ډله د قربانئ ورکولو نه ډډه کوی نو الله به هغه لرے کړی او د هغے په ځائے به بله ډله راولی.

# سُوْرَةُ مُحَمَّدٍ مَدَنِيَّةٌ

آیاتها ۳۸ — رکوعاتها ۴

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

اَلَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَصَدُّوْا عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ اَضَلَّ اَعْمَالَهُمْ ①

کومو خلقو چه کفر اُوکړو[1] او د الله د لارے نه ئے خلق منع کړل[2] نو الله د هغوئ عملونه ضائع کړل[3]

---

[1] یعنی د هغه تعلیم او د هغه هدایت منلو نه ئے انکار اوکړو کوم چه محمد صلی الله علیه وسلم پیش کولو۔

[2] په اصل کښے صَدُّوْا عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ الفاظ استعمال شوی دی۔ صَدّ په عربئ ژبه کښے لازم او متعدی دواړه استعمالیږی۔ نو د دے الفاظو مطلب دا هم دے چه هغوئ پخپله د الله لارے د راتلو نه منع شو، او دا هم دے چه هغوئ نور خلق د دے لارے ته د راتلو نه منع کړل۔

نور خلق د الله د لارے نه د منع کولو ډیر صورتونه دی۔ د دے یو صورت دا دے چه سړے په زور باندے بل څوک د ایمان راوړلو نه منع کړی۔ دویم صورت دا دے چه سړے په ایمان راوړونکو باندے ظلمونه شروع کړی چه د هغوئ د پاره په ایمان باندے ټینګیدل او د نورو خلقو د پاره په دے ظلمونو کښے ایمان راوړل ګران شی۔ دریم صورت دا دے چه سړے په مختلفو طریقو سره د دین خلاف او د دین دارو خلقو خلاف خلق په دوکه کښے اچوی او دا سے وسوسے د خلقو په زړونو کښے اچوی چه په هغے سره هغوئ د دین نه بدګمانه شی۔ د دے نه علاوه هر کافر د الله د لارے نه منع کونکے دے ځکه چه هغه خپل بچی د کفر په طریقه لوئیوی او بیا د هغوئ د نوی نسل د پاره د پلار د نیکه دین پریښودل او اسلام قبلول ګران شی۔ د غه شان ټول کافران د خدائے په لار کښے بولوئ خنډ دے ځکه چه هغوئ د خپل تعلیم او تربیت په ذریعه، د خپل اجتماعی نظام په ذریعه، د خپلو رسمونو رواجونو په ذریعه او د ننګ ناموس په ذریعه د حق دین په خوریدو کښے سخت بندیزونه راولاړوی۔

[3] اصل الفاظ دی اَضَلَّ اَعْمَالَهُمْ. د هغوئ عملونه ئے بے لارے کړل، په غلطه لاره ئے ونګول، ضائع ئے کړل۔ دا الفاظ د مطلب نه ډک الفاظ دی۔ د دے یو مطلب دا دے چه الله تعالیٰ د هغوئ نه دا توفیق واخستو چه د هغوئ کوششونه او محنتونه دِ په صحیح لار کښے اولګی۔ اوس چه هغوئ هر څه کوی نو د غلط مقصد د پاره به ئے په غلطو طریقو کوی او د هغوئ ټول منډه تړره به د هدایت په ځائے د ګمراهئ د پاره وی۔ دویم مطلب دا دے چه کوم کار هغوئ په خپل نزد کښے د خیر کار ګنړلے دے او اوس ئے هم کوی، مثلاً د خانه کعبے څوکیداری، د حاجیانو خدمت، د میلمنو خدمت، د رشته دارانو سره ښیلوی قائم ساتل او دغے نور ډیر کارونه چه هغه به په عربو کښے مذهبی او اخلاقی ګنړلے شو، الله تعالیٰ هغه ټول ضائع کړل۔ د هغے هیڅ اجر او ثواب به هغوئ ته نه ملاویږی۔ ځکه چه هر کله هغوئ د الله د توحید او خاص

وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ وَاٰمَنُوْا بِمَا نُزِّلَ عَلٰى مُحَمَّدٍ وَّهُوَ الْحَقُّ مِنْ رَّبِّهِمْ كَفَّرَ عَنْهُمْ سَيِّاٰتِهِمْ وَاَصْلَحَ بَالَهُمْ ﴿۲﴾ ذٰلِكَ بِاَنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوا اتَّبَعُوا الْبَاطِلَ وَاَنَّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا

او کوم خلقو چې ایمان راوړو او نیک عمل ئې اوکړو او هغه شیزئے ئې اومنو کوم چې په محمد[۴] باندې نازل شوئے دے ـــــ او هغه سراسر حق دے د هغوئ د رب د طرفنه ـــــ الله د هغوئ ګناهونه د هغوئ نه لرې کړل[۵] او د هغوئ حال ئې صحیح کړو[۶]. دا ځکه چه کافران په باطل پسې لاړل او مومنان

---

د الله د عبادت کولونه انکار کوی او نورو خلقو هم د دې لارې نه منع کوی نو د هغوئ ټول عمل هم د الله په دربار کښې تبلیدې نشي. دویم مطلب دا دے چه د حق د لارې د بندولو او په عربو کښې د کفر د خورولو د پاره کوم کوششونه هغوئ د محمد صلی الله علیه وسلم په مقابله کښې کوی، الله هغه ټول ضائع کړل. د هغوئ ټول تدبیرونه اوس هسې تش د رندو غشی دی. په دې تدبیرونو سره به هغوئ خپل مقصد ته هرګز اونه رسیدے شی.

۴ اګرچه د اَلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا نه روستو د اٰمَنُوْا بِمَا نُزِّلَ عَلٰى مُحَمَّدٍ د ویلو څه حاجت نه پاتې کیږی ځکه چه په ایمان راوړلو کښې په محمد صلی الله علیه وسلم او د هغه په تعلیماتو باندې ایمان راوړل هم په دې کښې شامل دی، لیکن د دې جدا ذکر خاص طور د دې د پاره شوے دے چه د محمد صلی الله علیه وسلم د راتلو نه روستو که څوک خدائے او آخرت او مخکینی رسولان او مخکینی کتابونه منی هم خو هغه تر هغه وخته پورې فائده نه لری ترڅو چه هغه نبی صلی الله علیه وسلم او د هغه په راوړے شوی تعلیماتو باندې ایمان نه وی راوړے. دا صفائی ځکه ضروری وه چه د هجرت نه روستو په مدینه کښې هغه خلق هم اوسیدل چه د ایمان نورې ټولې خبرې ئې منلې خو د محمد صلی الله علیه وسلم د رسالت نه ئې انکار کولو.

۵ د دې دوه مطلبونه دی. یو دا چه د جاهلیت په زمانه کښې کوم ګناهونه د هغوئ نه شوی وو الله تعالیٰ هغه ټول د هغوئ د کهاتې نه لرې کړل. اوس به د هغه ګناهونو تپوس د هغوئ نه نه کیږی. دویم مطلب دا دے چه د هغوئ په عقیدو او خیالاتو کښې او د هغوئ په اخلاقو او د هغوئ په عملونو کښې چه کومې خرابیانې وې الله تعالیٰ هغه د هغوئ نه لرې کړې. او د هغوئ ذهنونه بدل شو. د هغوئ عقیدې او د هغوئ خیالات بدل شو. د هغوئ عادتونه او د هغوئ خویونه بدل شو. د هغوئ عملونه او د هغوئ کردار بدل شو. اوس په هغوی کښې د جاهلیت په ځائے ایمان دے او د بد عمل په ځائے نیک عمل دے.

۶ د دې هم دوه مطلبونه دی. یو دا چه الله تعالیٰ ورله مخکینی حالت بدل کړو او د آئنده د پاره ئې په صحیح لار ورسم کړل او ژوند ئې ورله صحیح کړو. او دویم مطلب دا چه د اوسه پورې په هغوی کښې کومه کمزوریانې وې او د بے وسئ او د مظلومئ په کوم حالت کښې هغوئ اخته وو

اتَّبَعُوا الْحَقَّ مِن رَّبِّهِمْ ۚ كَذَٰلِكَ يَضْرِبُ اللَّهُ لِلنَّاسِ أَمْثَالَهُمْ ③ فَإِذَا لَقِيتُمُ الَّذِينَ كَفَرُوا فَضَرْبَ الرِّقَابِ حَتَّىٰ إِذَا أَثْخَنتُمُوهُمْ فَشُدُّوا الْوَثَاقَ فَإِمَّا مَنًّا بَعْدُ وَإِمَّا فِدَاءً حَتَّىٰ تَضَعَ الْحَرْبُ أَوْزَارَهَا ۚ

مع ۱۳

په هغه حق پسے لاړل کوم چه د هغوئ د رب د طرفنه راغلے دے۔ د غه شان الله تعالیٰ خلقو ته د هغوئ ټیک ټیک حیثیت بنائی ۸

پس هرکله چه د دے کافرانو سره ستاسو مقابله وی نو اولنے کار څټونه وهل دی، آن تر دے پورے چه تاسو هغوئ بنه اُو ټکوئ نو بیا د هغے قیدیان مضبوط اوتړئ، نو بیا (تاسو ته اختیار دے) که احسان کوئ او که د فدیے معامله کوئ، تر هغه وخته پورے چه جنګ خپله وسله غوزاره کړی۔

الله تعالیٰ هغوئ د هغے نه ابیتلی دی۔ اُوس هغه د هغوی د پاره داسے حالات پیدا کړی دی، چه په هغے کښے به هغوئ د ظلم د برداشت کولو په ځائے د ظالما نو مقابله کوی، د محکوما وسیدو په ځائے به د خپل ژوند انتظام خپله په آزادئ سره چلوی او د مغلوب کیدو په ځائے به غالب اُوسی۔

۷ اصل الفاظ دی كَذٰلِكَ يَضْرِبُ اللّٰهُ لِلنَّاسِ اَمْثَالَهُمْ۔ د دے فقرے لفظی ترجمه خو دا ده چه "د غه شان الله د خلقو د پاره د هغوی مثالونه ورکوی"۔ لیکن په دے لفظی ترجمے سره اصل مطلب نه واضحه کیږی۔ اصل مطلب دا دے چه د غه شان الله تعالیٰ دواړو ډلو ته د هغوی حیثیت ټیک ټیک ورښائی۔ یوه ډله په باطل پسے ورپسے ده نو په دے وجه الله تعالیٰ د هغوی ټول کوششونه او عملونه بے فایدے کړل۔ او بله ډله د حق پیروی اختیار کړے ده په دے وجه الله تعالیٰ هغوئ د ګناهونو نه پاک کړی دی او د هغوئ حالات ئے صحیح کړی دی۔

۸ د دے آیت د الفاظو نه هم، او په کوم عبارت کښے چه دا آیت راغلے دے د هغے نه هم دا خبره صفا معلومیږی چه دا آیت د جنګ د حکم د راتلو نه روستو او د جنګ شروع کیدو نه مخکښے نازل شوے دے۔ "هرکله چه د کافرانو سره ستاسو مقابله وی"۔ دا الفاظ په دے خبره دلالت کوی چه تر اُوسه لا مقابله شوی نه ده، او د مقابلے د کیدو نه مخکښے دا هدایت ورکړے کیږی چه کله مقابله وی نو څه کول پکار دی۔

وړاندې د شلم نمبر آیت الفاظ په دے خبره ګواهی کوی چه دا سورة په هغه زمانه کښے نازل شوے وُو کله چه د سورة حج په آیت ۳۹ کښے، او د سورة بقرے په آیت ۱۹۰ کښے د جنګ حکم راغلے وُو او د دے د یرے د وجے نه د مدینے د منافقانو او د کمزوری ایمان والو خلقو حال دا جوړ شوے وُو چه لکه په هغوئ باندې د مرګ تیږے راخورے شوی دی۔

د دے نه علاوه د سورة انفال آیتونه ۶۷، ۶۹ هم په دے خبره ګواه دی چه دا آیت د جنګ بدر نه مخکښے نازل شوے وُو۔ هلته حکم شوے دے چه:

"د یو نبی سره دا نه ښائی چه د هغه سره دِ قیدیان وی تر څو چه هغه په زمکه کښے

دُشمنان بنه ريزمريز نهٔ كړي. تاسو دُنيا فايدې غواړئ، حالانكه د الله په نظر كښې آخرت دے. او الله غالب او حكيم دے. كه د الله ليک مخكښے ليكلے شوے نهٔ وے، نو څه چه تاسو اغستلی دی د هغې په بدله كښے به تاسو ته لويه سزا دركړے شوے وے. پس تاسو چه كوم مال حاصل كړے دے هغه خورئ ځكه چه هغه حلال او پاک دے"

په دے عبارت باندې او خاص طور د خط د لاندې په عبارت باندې چه سړے غور اُوكړي نو دا خبره په ډاګه كيږي چه په دې موقعه په كومه خبره زُور نه وركړے شوي وه هغه دا وه چه په جنګ بدر كښے مسلمانانو خپل دُشمنان لا بنه ريزمريز كړي نهٔ وُو او د هغوئ په قيد و لوټے شروع كړي وه، حالانكه د جنګ نه مخكښے چه كوم هدايت په سورۀ محمّد كښے هغوئ ته شوے وُو هغه دا وُو "چه هركله تاسو هغوئ بنه ريزمريز كړئ نو پس د هغې قيديان مضبوط اُوتړئ" بيا هم چونكه په سورۀ محمّد كښے مسلمانانو ته د قيديانو نه د فديے اغستلو اجازت شوے وُو نو په دے وجه د جنګ بدر د قيديانو نه چه كوم مال وا غستلے شو هغه الله تعالىٰ حلال كړو او د هغې په اغستو ئے مسلمانانو له سزا ورنهٔ كړه. "كه د الله ليک مخكښے ليكلے شوے نهٔ وے" دا الفاظ دے خبرے ته صفا اشاره كوي چه د دے واقعے نه مخكښے د فديے اغستلو اجازت په قرآن كښے راغلے وُو. او ښكاره خبره ده چه په قرآن كښے د سورۀ محمّد د دے آيت نه سوا بل دويم آيت داسے نشته چه په هغې كښے دا فرمان موندے شي. نو په دے وجه موږ به ضرور دا منو چه دا آيت د سورۀ انفال د پاسنی آيت نه مخكښے نازل شوے وُو (د تفصيلی تشريح د پاره اُوګورئ تفهيم القرآن دويم جلد، سورۀ انفال حاشيه ٤٩).

دا د قرآن مجيد اولنے آيت دے چه په دے كښے د جنګ د قانون په حقله اولنی هدايات وركړے شوی دی. د دے نه چه كوم حكمونه راوُوزی، او د دے مطابق چه نبی صلّى الله عليه وسلّم او صحابه كرامو څنګه عمل كړے دے او فقهاؤ چه د دے آيت او سُنّت نه كوم مسئلے راايستلی دی د هغې لنډه خلاصه دا ده؛

(١) په جنګ كښے د مسلمانانو د فوج اصلی كار د دُشمن جنګی طاقت ختمول دی، آن تر دے پورے چه په هغوئ كښے د جنګ كولو طاقت پاتے نشي او جنګ ختم شي. مسلمانانو له پكار نهٔ دی چه د دے اصل كار نه خپله توجه لرے كړي او د دُشمنانو په نيولو شروع اُوكړي. قيديانو نيولو ته هله توجه پكار ده چه دُشمن بنه ريزمريز كړے شي او په ميدان جنګ كښے د هغوی څه كسان باقی پاتے شي. عربيانو ته دا هدايت په شروع كښے په دے وجه وركړے شو چه هسے نه هغوی د فديے حاصلولو يا د غلامانو جوړولو په لالچ كښے اخته شي او د جنګ اصلی مقصد (يعنی د دُشمن جنګی طاقت ختمول) ترهير شي.

(٢) په جنګ كښے چه كوم خلق اُونيولے شي د هغوئ په باره كښے اوفرمائيلے شو چه تاسو ته اختيار دے كه په هغوئ احسان كوئ او د هغوئ سره د فديے معامله كوئ. د دے نه عام قانون دا راوُوځی چه جنګی قيديان دِ نهٔ وژلے كيږی. حضرت عبد الله بن عُمرؓ، حسن بصری، عطاء او حمّاد بن ابی سليمان

ذدے قانون نہ عام مطلب اخلی ، او دا په خپل ځائے بالکل صحیح دے۔ هغوی وائی چه سرے دجنګ په حالت کښے وژلے کیدے شی۔ هرکله چه جنګ ختم شوا و قیدی زمونږ په قبضه کښے راغے نو د هغهٔ وژل صحیح نه دی۔ د ابن جریرا و د ابوبکر جصّاص روایت دےچه حجّاج بن یوسف د جنګی قیدیانو نه یو قیدی حضرت عبد الله بن عمر ته حواله کړو او حکم ئے ورته اوکړو چه دے قتل کړه۔ هغه انکار اوکړو او دا آیت ئے اُولوستو او وے فرمائیل چه مونږ ته د قید په حالت کښے د چا د قتلو حکم نه دے شوے امام محمدؒ هم په السّیرالکبیر کښے یوه واقعه لیکلی ده چه عبد الله بن عامر حضرت عبد الله بن عُمر ته د یو جنګی قیدی د قتلو حکم کړے وو او هغهٔ هم په دے وجه د هغه د حکم منلو نه انکار کړے وو۔

(۳) لیکن چونکه په دے آیت کښے د قتل صفا منع هم نهٔ ده شوی ، نو په دے وجه رسول الله صلی الله علیه وسلّم د الله تعالیٰ د دے حکم مطلب دا اُوګڼړو او په دے ئے عمل هم اُوکړو چه چرے څه خاص وجه دا سے وی چه د هغے په وجه د اسلامی حکومت واکدار یو قیدی یا ډیر قیدیان قتلول ضروری اُوګڼړی نو هغه دا سے کولے شی۔ دا عامه قاعدهٔ نهٔ ده بلکه د عامے قاعدے نه یو جُدا حکم دےچه د ضرورت په وخت کښے به استعمالیږی۔ په دے لړ کښے رسول الله صلی الله علیه وسلّم د جنګِ بدر د اَویا قیدیانو نه صرف عُقبه بن ابی مُعَیط او نضر بن الحارث قتل کړل۔ د جنګِ اُحد د قیدیانو نه ئے صرف ابو عزّه شاعر قتل کړو۔ بنی قُریظه قبیلے چونکه خپل ځان د حضرت سعد بن مُعاذ فیصلے ته حواله کړے وُو ، او د هغه فیصله دا وه چه د هغوی نارینه دِ قتل کړے شی ، نو په دے وجه نبیؐ د هغوی د قتلو حکم اوکړو د خیبر په جنګ کښے چه کوم خلق او نیولے شو په هغوی کښے صرف کِنانه ابن ابی الحُقَیق قتل کړے شو ځکه چه هغه وعده ماته کړی وه۔ د مکے د فتحے نه روستو نبیؐ د مکے د ټولو اُوسیدونکو نه صرف د یو څو کسانو په حقله حکم اوکړو که د هغوی نه هرڅوک اونیولے شو هغه دِ قتل کړے شی۔ د دے یو څو واقعو نه سیوا د نبیؐ عامه طریقه د جنګی قیدیانو د نه قتلولو نه وه۔ او دا عمل د خلفائے راشدینو هم وُو۔ د هغوی په زمانه کښے هم د جنګی قیدیانو د قتلو مثالُونه ډیر کم دی او په هر مثال کښے قتل د څه وجے نه شوے دے۔ حضرت عُمر بن عبد العزیزؒ هم په خپل ټول خلافت کښے صرف یو جنګی قیدی قتل کړے وُو او د هغے وجه دا وه چه هغه مسلمانانو ته ډیر زیاتے تکلیفونه ورسولی وُو۔ دا وجهٔ چه اکثر فقهاء د دے خبرے قائل دی چه که اسلامی حکومت ضروری اُوګڼړی نو قیدی قتلولے شی۔ لیکن دا فیصله کول د حکومت کار دے۔ هر فوجی ته دا اختیار نشته چه کوم قیدی غواړی بس هغه دِ قتلوی البته که چرے د قیدی د تښتیدو یا د هغه نه د یو خطرناک شرارت ویره وی نو هرچا ته چه د دا سے حالت پېښ او نګی نو هغه ئے قتلولے شی۔ په دے کښے د اسلام فقهاؤ درے خبرے نورے هم کړی دی: یوه دا که قیدی اسلام قبول کړی نو بیا به نشی قتل کیدے۔ دویمه دا چه قیدی هله قتل کیدے شی چه ترڅو هغه د حکومت سره په قبضه کښے وی۔ که د تقسیم یا د خرڅ په ذریعه د هغه څوک مالک شوے وی نو بیا هغه نشی قتل کیدے۔ دریمه دا چه قتل دِ په ساده طریقه وی په سزا سزا کښے دِ نهٔ وژلے کیږی۔

(۴) دَ جنګی قیدیانو په باره کښې عام حکم چه کوم ورکړے شوے دے هغه دا دے چه یا په هغوئ احسان اوکړئ او یا دَ فدیے معامله اوکړئ.

په احسان کښې څلور څیزونه شامل دی. یو دا چه دَ قید په حالت کښې دِ دَ هغوئ سره ښه سلوک کیږی. دویم دا چه دَ قتل یا دَ همیشه قید په ځائے دِ هغوئ غلامان کړے شی او مسلمانانو ته دِ حواله کړے شی. دریم دا چه جزیه دِ پرې ولګولے شی او ذمیان دِ ترې جوړ کړے شی. څلورم دا چه هغوئ دِ بے دَ څه معاوضے اَ ښتلونه آزاد کړے شی.

دَ فدیے دَ معاملے کولو درے صورتونه دی. یو دا چه دَ مال په بدل کښې دِ پرېښودے شی. دویم دا چه څه خاص خدمت دَ هغوئ دَ آزادیدو دَ پاره شرط کړے شی او دَ هغه خدمت کولو نه دِ روستو دِ بیا پرېښودے شی. دریم دا چه کوم مسلمانان قیدیان دَ دُشمن په قبضه کښې وی دَ هغوی په تبادله کښې دِ ورکړے شی.

په دے ټولو مختلفو طریقو باندِ نبی صلی الله علیه وسلم او صحابه کرامو په مختلفو وختونو کښې دَ موقعے مطابق عمل کړے دے. دَ خدائے شریعت دا سے نۀ دَه کړی چه اسلامی حکومت ئے دَ یو خاص طریقے پابند کړے دے. حکومت چه په څه وخت کښې کومه طریقه زیاته مناسبه ګنړی په هغې عمل کولے شی.

(۵) دَ نبی صلی الله علیه وسلم او دَ صحابه کرامو دَ عمل نه دا ثابته ده چه یو جنګی قیدی ترڅو پورے دَ حکومت په قید کښې وی نو دَ هغه دَ خوراک او دَ هغه دَ جامو او که بیمار وی یا زخمی وی نو دَ هغۀ دَ علاج ذمه واری په حکومت بانډِ ده. قیدیان وږی تږی اولغړ ساتل، یا هغوئ له سزا ګانے ورکول په اسلامی شریعت کښې هم کوم جائز نۀ دی. بلکه دَ دے نه برعکس دَ قیدیانو سره دَ ښه سلوک کولو هدایت هم شوے دے او په عمل کښې هم دَ ښه سلوک مثالونه په سُنتو کښې ملاویږی. دَ جنګِ بدر قیدیان رسول الله صلی الله علیه وسلم دَ مختلفو صحابو په کورونو باندِ تقسیم کړل او حکم ئے اوکړو چه "استوصوا بالاساری خیرًا" دَ دے قیدیانو سره ښه سلوک کوئ." په هغوی کښې یو قیدی ابو عزیز بیان کوی چه زۀ دَ کومو انصاریانو په کورونو کښې ساتلے شوے وُم نو هغوی به چیچله کجُورے خوړلے او ماته به ئے سحر مابښام دوډئ راکوله سُهیل بن عمرو یو بل قیدی وو چه دَ هغه په حقله نبی صلی الله علیه وسلم ته اُوویلے شو چه دے دَ خُلے نه ډیر تیز دے، هر وخت ستا خلاف تقریرونه کوی. نو دَ دۀ غاښونه دِ مات کړے شی، نبیؐ دَ دے په جواب کښې اُوفرمائیل "که ما دَ دۀ غاښونه مات کړل نو الله به زما غاښونه مات کړی اګر چه زۀ نبی یم". (سیرت ابن هشام). دَ یمامه سردار ثُمامه بن اُثال چه کله اُونیوے شو نو هغه چه ترڅو په قید کښے وُو نو دَ نبیؐ په حکم سره ورته ښه خوراک او پئ راوړلے کیدل (ابن هشام) هم دغسے کار دَ صحابه کرامو په دور کښے وُو. دَ جنګی قیدیانو سره دَ خراب سلوک کولو یو مثال دَ صحابه کرامو په دور کښے نۀ ملاویږی.

(۶) دَ قیدیانو په معامله کښې دا خبره هم دَ سرنه په اسلام کښې شته دے نۀ چه قیدیان دِ همیشه په قید کښې اُوساتلے شی او حکومت دِ ترې جبری محنت اخلی. که چرے دَ هغوئ سره یا دَ هغوئ دَ قوم سره دَ جنګی قیدیانو دَ تبادلے یا دَ فدیے څه معامله اُونۀ شی نو دَ هغوئ په باره کښې دَ احسان دا طریقه شوے ده چه هغوئ دِ دَ غلامانو په حیثیت مسلمانانو ته حواله کړے شی او دَ هغوئ مالکانو ته دِ هدایت

اُوکړے شی چه د هغوی سره ښهٔ سلوک کوی۔ د نبی صلی الله علیه وسلم په زمانه کښے هم په دے طریقه عمل شوے دے، او د صحابه کرامو په زمانه کښے هم دا طریقه جاری وه، او د اسلام فقهاء په اتفاق سره د دے د جواز قایل دی۔ په دے سلسله کښے ځان په دے خبره پوهه کول پکار دی چه کوم سړی د قید کیدو نه مخکښے اسلام قبول کړے وی او بیا په څه طریقه اُونیولے شی نو هغه به آزاد ولے کیږی، خو کوم سړی چه د قید کیدو نه روستو اسلام قبول کړی یا چا ته د حواله کیدو نه روستو مسلمان شو نو دا اسلام د هغه د پاره د آزادئ سبب نهٔ شی جوړیدے۔ په مسند احمد، مسلم او ترمذی کښے د حضرت عمران بن حُصَین روایت دے چه د بنی عُقیل قبیلے یو سړے اُونیولے شو او هغه اُووئیل چه ما اسلام قبول کړو۔ نبی صلی الله علیه وسلم اُوفرمائیل "لو قلتها وانت تملك امرك افلحت کل الفلاح۔" "که دا خبره تا په هغه وخت کړے وے کله چه ته آزاد وے نو یقیناً چه فلاح به دِ موندلے وے" هم دا خبره حضرت عمر فرمائیلے ده چه: اذا اسلم الاسیر فی ایدی المسلمین فقد امن القتل وهو رقیق۔" هر کله چه یو قیدی د مسلمانانو په قبضه کښے د راتلو نه روستو مسلمان شی نو هغه خو به د قتل نه محفوظ وی لیکن غلام به وی۔" دا وجه ده چه د اسلام د فقهاؤ په دے خبره اتفاق دے چه کوم قیدی د قید کیدو نه روستو مسلمان شو نو هغه د غلامئ نه نشی بچ کیدے (السیر الکبیر امام محمد) او دا خبره سرا سر مناسبه هم ده۔ که چرے زمونږ دا قانون وے چه کوم سړے د قید کیدو نه روستو اسلام قبول کړی هغه به آزاد ولے کیږی نو آخر دا به کوم ناپوهه قیدی وے چه د کلمے په وئیلو سره به ځان نهٔ آزادولے۔

(۷) د قیدیانو سره د احسان کولو دریم صورت په اسلام کښے دا دے چه په هغوی د جزیه اُولګولے شی او د ذمی رعیت په حیثیت دِ په دار الاسلام کښے وَسی او هغوی ته دِ هغسے آزادی حاصله وی لکه څنګه چه مسلمانانو ته حاصله وی۔ امام محمد په السیر الکبیر کښے لیکی چه "د کوم سړی نه غلام جوړول جائز دی نو د هغه نه ذمی جوړول هم په جزیه لګولو سره جائز دی۔" او په یو ځائے کښے فرمائی "د مسلمانانو حاکم ته دا حق حاصل دے چه په هغوی جزیه اُولګوی او د هغوی په زمکو باندِ خراج اُولګوی او هغوی اصلاً آزاد اُوګرځوی۔" په دے طریقه باندِ عام طور په هغه حالاتو کښے عمل شوے دے چه کله قید یان د یو ے علاقے اُوسیدونکی وی او هغه علاقه فتح کړے شوی وی او په اسلامی مملکت کښے شامله شوی وی۔ د مثال په طور نبی صلی الله علیه وسلم د خیبر د خلقو په معامله کښے دا طریقه اختیار کړی وه، او بیا حضرت عمرؓ د سواد عراق او د نورو علاقو د فتح کولو نه روستو په لویه پیمانه باندِ دا طریقه اختیار کړه۔ ابو عُبیدؒ په کتاب الاموال کښے لیکلی دی چه د عراق د فتح کولو نه روستو د هغه علاقے د مشرانو خلقو یوه ډله حضرت عمرؓ ته حاضره شوه او هغوی عرض اُوکړو چه "اے امیر المومنینؓ اول ایرانیان په مونږ مسلط وُو، هغوی مونږه ډیر تنګ کړو، زمونږ سره ئے ډیر خراب سلوک اُوکړو، او قسما قسم زیاتیانے به ئے په مونږ باندِ کولے۔ بیا چه کله الله پاک تاسو راُولیږلئ نو مونږه ستاسو په راتلو ډیر خوشحاله شو، نهٔ مو ستاسو مقابله اُوکړه او نهٔ مو په جنګ کښے حصه واخستله۔ اُوس مونږه اوریدلی دی چه تهٔ زمونږ نه غلامان جوړول غواړے۔" حضرت عمرؓ جواب ورکړو "تاسو ته اختیار دے چه که مسلمانیږئ او که جزیه ورکوئ او آزاد د وَسئ۔" هغوی جزیه

قبول کړه او آزاد پرېښودے شو. هم په دغه کتاب کښې په یو بل ځائے کښې ابو عُبَید بیان کوی چه حضرت عُمَرؓ حضرت ابو موسیٰؓ اشعری ته اولیکل چه "په جنګ کښې کوم خلق نیولی شوی دی په هغوئ کښې چه څوک کروندګر او زمیندار دی هغه پرېږده."

(۸) دَ احسان څلورم صورت دا دے چه دَ قیدی نه څه معاوضه یا فدیه وانخستلے شی او هم دغسے آزاد کړے شی. دا یو خاص رعایت دے چه اسلامی حکومت ئے صرف په هغه حالت کښې کولے شی کله چه دَ یو خاص قیدی سره دا سے کول مناسب وی، یا دا اُمید وی چه دا رعایت به هیشه دَ دغه قیدی دَ پاره یو احسان وی او هغه به دَ دشمن نه دوست شی یا به دَ کافر نه مومن شی. کنئ نو ظاهره خبره ده چه دَ دُشمن دَ قوم یو سړے دَ دے دَ پاره پرېښودل چه هغه بیا زمونږ سره اُوجنګېږی هیڅکله هم دَ هوښیارتیا خبره نه ده. په دې وجه دَ اسلام فقهاؤ عام طور دَ دے مخالفت کړے دے او دَ دے دَ جواز دَ پاره ئے دا شرط لګولے دے چه "که چرے احسانی طور په تولو یا څینو قیدیانو آزادولو کښې دَ مسلمانانو امام ته څه بهتری ښکاره شی نو بیا خیر دے که قیدیان احسانی طور آزاد کړے شی." (السیّر الکبیر). دَ نبی صلی الله علیه وسلم په زمانه کښې دَ دے ډیر مثالونه ملاوېږی او تقریباً په تولو کښې دَ بهتری اړخ څرګند دے.

دَ جنګ بدر دَ قیدیانو په حقله نبیؐ اُوفرمائیل لو کان المطعم بن عدیؐ حیّاً ثم کلّمنی فی هٰؤلاء النتنی لترکتهم له (بخاری، ابو داؤد، مُسند احمد). "که مُطعِم بن عدِی ژوندے وے او هغه زما سره دَ دې پلیتو خلقو په باره کښې خبری کړے وے نو ما به دَ هغه دَ خاطره دوئ هم دغسے پرېښودی وے." دا خبره نبیؐ ځکه فرمائیلی وه چه کله نبیؐ دَ طائف نه واپس مکے ته راتلو نو مطعم په خپله پناه کښې اغستے وو او دَ هغه هلکانو دَ وسلو په حفاظت کښې حرم ته بوتلے وو. نو نبیؐ په دے طریقه دَ هغه دَ احسان بدله ورکول غوښتل.

دَ بخاری، دَ مسلم او دَ مُسند احمد روایت دے چه دَ یمامه سردار ثُمامه بن اُثال کله اُونیولے شو او نبیؐ له راوستے شو نو نبیؐ تِرې تپوس اُوکړو چه "ثُمامه، ستا څه خیال دے؟" هغه ورته اُووئیل "که زه دِ قتل کړم نو دا سے سړے به قتل کړے چه دَ هغه وینه څه قیمت لری، که په ما دِ احسان اُوکړو نو په دا سے سړی به احسان اُوکړے چه احسان منونکے دے، او که ته مال غستل غواړے نو اُوغواړه، تا له به درکړے شی." درے ورځے پورے نبیؐ دَ هغه نه دا تپوس کوؤ او هغه به هم دغه جواب ورکوؤ. آخر دا چه نبیؐ حکم اُوکړو چه ثُمامه پرېږدئ. دَ پرېښودو سره هغه نزدے دَ کجورو باغ ته لاړو، غُسل ئے اُوکړو، دا پس راغے، کلمه ئے اُووئیله، مسلمان شو، او وے وئیل چه "دَ نن نه مخکښے زما ته ستادین دَ تولو نه زیات بد ښکارېدو، لیکن اوس رما ته ستادین دَ تولو نه زیات خوښ دی." بیا هغه دَ عُمرے دَ پاره مکے ته لاړو او هلته ئے دَ قریشو خلقو ته په ډاګه اُووئیل چه دَ نن نه روستو به تاسو ته دَ یمامه نه غلّه نه راځی ترڅو چه نبی صلی الله علیه وسلم اجازت نه وی کړے. هغه هم دغسے اُوکړو او دَ مکے خلق دے ته مجبور شو چه نبیؐ ته درخاست اوکړی چه دَ یمامه نه دَ هغوئ دَ غلّے رسد نه بندوی.

دَ بنی قُرَیظه په قیدیانو کښې نبیؐ زَبیر بن باطا او عمرو بن سعد (یا ابن سُعدٰی) معاف کړل. زَبیر ئے په دے وجه پرېښودو چه هغه دَ جاهلیت په زمانه کښې دَ جنګ بُعاث په موقعه باندِ حضرت ثابت

بن قیس انصاری له پناه ورکړی وه، او هغه ئے حضرت ثابت ته په دے وجه حواله کړو چه د احسان بدله ورا اوکړی. او عمرو بن سعد ئے په دے وجه پریښودو چه بنی قُریظو کله د نبیؐ سره د عهد خلافی کوله نو په هغه وخت کښے هم دے سړی خپله قبیله د غدارئ نه منع کوله (کتاب الاموال لابی عُبَید).

د بنی المُصطلق د غزا نه روستو چه کله د دغے قبیلے قیدیان راوستلے شو، او په خلقو کښے تقسیم کړے شو، په هغه وخت کښے چه حضرت جُوَیریه د کوم سړی په حصه کښے راغلی وه هغه له نبیؐ د هغے معاوضه ورکړه او هغه ئے آزاده کړه او بیا ئے ورسره بخپله نکاح اوکړه. په دے باندے ټولو مسلمانانو د خپلے خپلے حصے قیدیان آزاد کړل او دا ئے ووئیل چه دوئ خو اوس د رسول الله صلی الله علیه وسلم رشته داران شوی دی." دغه شان د سلو خاندانو سړی آزاد کړے شو (مُسند احمد. طبقات ابن سعد، سیرت ابن هشام).

د صُلحِ حُدَیبیے په موقع د مکے اتیا کسان د تنعیم د طرفنه راغلل او د سحر مانځه نه نزدے هغوئ د نبیؐ په کیمپ باندے د حملے کولو اراده اوکړه. لیکن هغوئ ټول اُونیولے شو او نبیؐ هغوئ ټول په دے وجه پریښودل چه په دے نازکه موقعه دا معامله د جنګ سبب جوړ نه شی (مُسلم، ابوداؤد، نسائی، ترمذی، مُسنَدِ احمد).

د مکے د فتحے په موقعه نبیؐ د یو څو کسانو نه علاوه نور ټول مکے والا د احسان په طور معاف کړل، او چه کوم ئے نه وُو معاف کړی په هغوئ کښے هم د دریو څلورو کسانو نه سوا څوک قتل نه کړے شو. د عربو ټولو خلقو ته معلومه وه چه مکے والو په رسول الله صلی الله علیه وسلم باندے څنګه څنګه ظلمونه کړی وو. لیکن نبیؐ چه کله مکه فتح کړه او د مکے خلق ئے ټول په خوشحالئ سره معاف کړل نو د عربو ټولو خلقو ته دا اطمینان حاصل شو چه د هغوئ معامله د یو ظالم سره نه ده بلکه د یو ډیر رحمدله او مهربانه او سخی رهنما سره ده. دا وجه وه چه د مکے د فتح کولو نه روستو د عربو د ټولے جزیرے په تابع کولو کښے د دوو کالو نه زیات وخت اُونه لګید و.

د حُنَین د جنګ نه روستو چه د هَوازِن قبیلے د له کله د خپلو قیدیانو د آزادولو د پاره راغله نو ټول قیدیان تقسیم کړے شوی وُو. نبیؐ ټول مسلمانان راجمع کړل او ورته فرمائیل چه دا خلق توبه ګار شوی دی او زما رائے دا ده چه د دوئ قیدیان دے دوئ له واپس ورکړے شی. په تاسو کښے چه څوک په خپله خوشئ سره خپل قیدی بے معاوضے پریښودل غواړی هغه دے بے معاوضے آزاد کړی، او چه څوک معاوضه اخستل غواړی هغه له به موږ د بیت المال د اولنی آمدن نه معاوضه ورکړو. نو په دے طریقه شپږ زره قیدیان آزاد کړے شو او چه کوم خلقو معاوضه اخستله هغوئ له د حکومت د طرفنه معاوضه ورکړے شوه (بخاری، ابوداؤد، مُسندِ احمد، طبقات ابن سعد). د دے نه دا هم معلومه شوه چه د قیدیانو د تقسیمیدو نه روستو حکومت ته د هغوئ د آزادولو اختیار نشته، بلکه حکومت به دا کار هله کړے شی چه کوم خلقو ته قیدیان حواله کړے شوی وی چه د هغوئ رضا حاصله کړی یا هغوئ ته معاوضه ورکړی.

د نبی صلی الله علیه وسلم نه روستو د صحابه کرامو په دور کښے هم د احسان په طور د قیدیانو د آزادولو مثالونه مسلسل ملاویږی. حضرت ابوبکرؓ اشعث بن قیس کِندی آزاد کړو، او حضرت عمرؓ هُرمُزان له او د مَناذِر او میسان قیدیانو له آزادی ورکړه (کتاب الاموال لابی عُبَید).

ذٰلِكَ ۛ وَلَوْ يَشَآءُ اللّٰهُ لَانْتَصَرَ مِنْهُمْ وَلٰكِنْ لِّيَبْلُوَا۟ بَعْضَكُمْ بِبَعْضٍ ؕ وَالَّذِيْنَ قُتِلُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ فَلَنْ يُّضِلَّ اَعْمَالَهُمْ ﴿۴﴾

دا دے ستاسو د کولو کار۔ که الله غوښتلے نو ځپلہ به ئے د دوئ فیصلہ ختمه کړے وے، لیکن (دا طریقه هغه ځکه اختیار کړی ده) چه تاسو د یو بل په ذریعه وآزمائی۔[9] او کوم خلق چه د الله په لار کښے اُووژلے شی الله به د هغوئ عملونه هر ګز نه ضائع کوی۔[10]

(۹) د مال په بدله کښے د قیدیانو د آزادولو مثال د نبی صلی الله علیه وسلم په زمانه کښے صرف د بدر د جنګ په موقع ملاویږی چه د یو قیدی په بدله کښے د یو زرنه واخله د څلورو زرو پورے پیسے واغستلے شوے او هغوئ آزاد کړے شو (طبقات ابن سعد، کتاب الاموال)۔ د صحابه کرامو په دور کښے دا سے یو مثال نشته۔ او د اسلام فقهاء عام طور دے ته په ښه نظر نه ګوری، ځکه چه د دے دا مطلب دے چه مونږ پیسے واخلو او د دشمن یو سړے د دے د پاره پریږدو چه هغه بیا زمونږ خلاف توره را واخلی۔ لیکن چونکه په قرآن کښے د فدیے اخستلو اجازت شوے دے او رسول الله صلی الله علیه وسلم په دے باندے یو ځل عمل کړے دے، نو په دے وجه دا سے کول مطلقاً منع نه دی۔ امام محمد په السیر الکبیر کښے وائی چه که چرے مسلمانانو ته د دے ضرورت پیښ شی نو هغوئ د مال په بدله کښے قیدیان آزادولے شی۔

(۱۰) د خدمت په بدله کښے د قیدی د آزادولو مثال هم د جنګ بدر په موقع ملاویږی۔ د قریشو په قیدیانو کښے چه کوم خلقو مالی فدیه نه شوه ورکولے، د هغوئ د آزادولو د پاره نبی دا شرط اولګولو چه هغوئ دِ د انصارو لسو لسو ماشومانو ته لیکل لوستل اُوښائی (مسند احمد، طبقات ابن سعد، کتاب الاموال)۔

(۱۱) د کافرو قیدیانو په بدله کښے د خپلو قیدیانو د آزادولو ډیر مثالونه مونږ ته د نبی صلی الله علیه وسلم په زمانه کښے ملاویږی۔ یو ځلے نبی حضرت ابوبکرؓ د جنګ په کار اُولیږو او په هغے کښے یو څو قیدیان اُونیولے شو۔ په هغوئ کښے یوه ښائسته ښځه هم وه چه د حضرت سلمه بن اکوع په حصه کښے را غله۔ رسول الله صلی الله علیه وسلم هغه د حضرت سلمه نه ډیر په ټینګتیا سره اوغوښتله او بیا ئے هغه مکے ته اُولیږله او د هغے په بدله کښے ئے ډیر مسلمانان قیدیان آزاد کړل (مسلم، ابوداؤد، طحاوی، کتاب الاموال لابی عُبید، طبقات ابن سعد)۔ د حضرت عمران بن حُصین روایت دے چه یو ځلے ثقیف قبیلے د مسلمانانو دوه سړی قید کړل د دے نه لږه موده روستو د ثقیف د حلیف قبیلے د بنی عُقیل یو سړے مسلمانانو اُونیوو۔ نبی هغه طائف ته اُولیږو او د هغه په بدله کښے ئے هغه دواړه مسلمانان را آزاد کړل (مسلم، ترمذی، مسند احمد) په فقهاؤ کښے امام ابو یوسف، امام محمد، امام شافعی، امام مالک او امام احمد د قیدیانو تبادلے ته جائز وائی۔ د امام ابوحنیفهؒ یو قول دا دے چه تبادله نه کول پکار دی، لیکن دویم قول د هغه هم دغه دے چه تبادله کیدے شی۔ البته په دے خبره باندے د ټولو اتفاق دے چه کوم قیدی مسلمان شی نو هغه د په تبادله کښے کافرانو ته نه حواله کیږی

سَیَهۡدِیۡهِمۡ وَ یُصۡلِحُ بَالَهُمۡ ۝۵ وَ یُدۡخِلُهُمُ الۡجَنَّةَ عَرَّفَهَا لَهُمۡ ۝۶
یٰۤاَیُّهَا الَّذِیۡنَ اٰمَنُوۡۤا اِنۡ تَنۡصُرُوا اللّٰهَ یَنۡصُرۡكُمۡ وَ یُثَبِّتۡ اَقۡدَامَكُمۡ ۝۷
وَ الَّذِیۡنَ كَفَرُوۡا فَتَعۡسًا لَّهُمۡ وَ اَضَلَّ اَعۡمَالَهُمۡ ۝۸ ذٰلِكَ بِاَنَّهُمۡ كَرِهُوۡا

هغه به هغوئ ته لار ښودنه کوی، د هغوئ حالت به صحیح کوی، او هغوئ به هغه جنت ته داخلوی چه د کوم نه هغه هغوئ خبردار کړی دی.[11]

اے هغه خلقو چه ایمان مو راوړے دے، که چرے تاسو د الله امداد کوئ نو هغه به ستاسو امداد کوی[12] او ستاسو ښپے به مضبوطوی. او پاتے شو هغه خلق چه کفر ئے کړے دے، نو د هغوئ د پاره هلاکت دے[13] او الله د هغوئ عملونه ضائع کړی دی. ځکه چه هغوئ هغه څیز ناخوښه کړو کوم چه

د دے تشریح نه دا خبره څرګندیږی چه اسلام د جنګی قیدیانو په معامله کښے یوه داسے فراخه ضابطه جوړه کړی ده چه په هغے کښے د هرے زمانے او د هر قسم حالاتو مطابق د دے مسئلے د حل کیدو ګنجائش شته. کوم خلق چه د قرآن مجید د دے آیت بس دا مختصر شان مطلب اخلی چه په جنګ کښے قید شوی کسان خو دیا "د احسان په طور آزاد کړے شی او یا د هغوئ نه فدیه واخستلے شی او آزاد دِ کړے شی" نو هغوئ د دے خبرے نه نه دی خبر چه د جنګی قیدیانو معامله څومره مختلف اړخونه لری، او په مختلفو زمانو کښے د دے نه څومره مسئلے پیدا شوی دی او په راتلونکی زمانه کښے نور نورے مسئلے هم پیدا کیدے شی.

[9] یعنی الله تعالی که چرے باطل پرستو خلقو ته سزا ورکول نو هغه د دے کار د پاره ستاسو محتاج نه دے. دا کار خو هغه یوه زلزلے یا یو طوفان د سترګے په رپ کښے کولے شو. لیکن د هغه مقصد خو دا دے چه په انسانانو کښے څوک حق پرست دی هغه د باطل پرستو سره او جنګیږی او د هغوئ په مقابله کښے کوشش او کړی، د پاره د دے چه په چا کښے څه صفتونه دی هغه په دے امتحان کښے ښه پوره راڅرګند شی او هر یو چه د خپل عمل په لحاظ سره د کوم مقام او د کومے مرتبے مستحق وی هغه ورله ورکړے شی.

[10] مطلب دا دے چه د الله په لار کښے د وژلے کیدو مطلب دا هرګز نه دے چه سړے مړ شو او د دا طور چه هغه څه کړی دی هغه ټول ختم شو. که څوک دا وائی چه د شهیدانو قربانیانے پخپله د هغوئ د پاره نه بلکه صرف د هغه خلقو د پاره فائده مند دی څوک چه د هغوئ نه روستو په دے دنیا کښے ژوندی پاتے شی او د هغوئ د قربانونه د لته فائده واخلی، نو هغوئ غلط سوچ کوی. اصل حقیقت دا دے چه څنګه شهیدان کیدونکو د پاره هم دا د نقصان سودا نه ده بلکه د نفعے سودا ده.

[11] دا ده هغه نفع چه د خدائے په لار کښے سر ورکونکو خلقو ته به حاصلیږی، د دے درے مرتبے بیان کړے شوی دی. یوه دا چه الله به د هغوئ رهنمائی کوی. دویم دا چه د هغوئ حال به صحیح کوی. دریم دا چه هغوی به جنت ته بوځی د کوم نه چه هغوئ مخکښے خبر کړے شوی دی. د

مَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ فَاَحْبَطَ اَعْمَالَهُمْ ۝۹ اَفَلَمْ يَسِيْرُوْا فِى الْاَرْضِ فَيَنْظُرُوْا
كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ ۭ دَمَّرَ اللّٰهُ عَلَيْهِمْ ۡ وَلِلْكٰفِرِيْنَ
اَمْثَالُهَا ۝۱۰ ذٰلِكَ بِاَنَّ اللّٰهَ مَوْلَى الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَاَنَّ الْكٰفِرِيْنَ
لَا مَوْلٰى لَهُمْ ۝۱۱ اِنَّ اللّٰهَ يُدْخِلُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ

الله نازل کړے دے، نو ځکه الله د هغوی عملونه ضائع کړل۔ آیا هغوی په زمکه کښے ګرزیدلی راګرزیدلی نه دو چه د هغه خلقو انجام ئے لیدلے وے کوم چه د هغوی نه مخکښے تیر شوی دی؟ الله د هغوی هرڅه په هغوی باندے راسترګول، او هم دغسے انجام د دے کافرانو د پاره لیکلے شوے دے. دا ځکه چه د مومنانو مرستیال او مدد ګار الله دے او د کافرانو مرستیال او مدد ګار هیڅوک نشته.[۱۷] کوم خلق چه ایمان راوړے دے او نیک عملونه کوی الله به هغوی

رهنمائی کولو نه مراد جنت ته رهنمائی کول دی. د حالت صحیح کولو نه مراد دا دے چه جنت ته د ننوتو نه مخکښے به الله تعالیٰ هغوی په جامو بنائسته کړی او پس د هغے نه به ئے جنت ته بوځی او هر هغه ګندګی به تری لرې کړی کومه چه هغوی ته په دنیا کښے لګیدلی وی. او د دریمے مرتبے مطلب دا دے چه په دنیا کښے د مخکښے نه هغوی ته د قرآن او د نبی صلی الله علیه وسلم په ژبه وئیلے شوی دی چه کوم جنت الله تعالیٰ د هغوی د پاره تیار کړے دے هغه څنګه دے. هغه جنت ته چه کله هغوی ورځی نو بالکل به آشنا ځائے ته به ور ننوزی، او هغوی ته به معلومه شی چه د کوم څیز وعده د هغوی سره شوی وه هم هغه هغوی له ورکړے شوی دے، په هغے کښے د ویخته هومره فرق نشته۔

[۱۲] د الله د مدد کولو یو ساده مطلب خو دا دے چه د هغه د کلمے د اوچتولو د پاره په سر و مال سره جهاد وکړے شی. لیکن د دے یو بل مطلب هم شته چه د یر په کرانه پر سره پوهیدے شی چه د هغے تشریح موږ په د دے نه مخکښے کړی ده (اوګوره تفهیم القرآن اول جلد، آل عمران حاشیه ۵۰)۔

[۱۳] اصل الفاظ دی فَتَعْسًا لَّهُمْ. تعس د دے ته وائی چه سړے تیندک اوخوری او د پړمخے پریوزی.

[۱۴] یعنی هغوی د جاهلیت خپلو پخوانو خیالاتو او رسمونو رواجونو او ډینو اخلاقو له ترجیح ورکړه او هغه تعلیم ئے خوښ نه کړو کوم چه الله هغوی ته د نیغے لارے ښودلو د پاره نازل کړے وو۔

[۱۵] د دے فقرے دوه مطلبونه دی. یو دا چه کومه تباهی په هغه کافرانو راغلی وه هم هغه تباهی اوس د دے کافرانو د پاره لیکلے شوی ده څوک چه د محمد صلی الله علیه وسلم دعوت نه منی. دویم مطلب دا دے چه د هغه خلقو تباهی صرف د دنیا په عذاب باندے ختمه شوی نه ده بلکه دغه تباهی د هغوی د پاره په آخرت کښے هم لیکلے شوی ده۔

[۱۶] په جنګِ اُحد کښے چه کله نبی صلی الله علیه وسلم زخمی شو او هغه د یو څو صحابو سره په یو میدان کښے ولاړ وو نو په هغه وخت کښے ابو سفیان په زوره زوره نعرے کړے چه لَنَا عُزّٰى وَلَا عُزّٰى لَكُمْ

جَنّٰتٍ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ ؕ وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا يَتَمَتَّعُوْنَ وَ يَاْكُلُوْنَ كَمَا تَاْكُلُ الْاَنْعَامُ وَالنَّارُ مَثْوًى لَّهُمْ ﴿۱۲﴾ وَكَاَيِّنْ مِّنْ قَرْيَةٍ هِيَ اَشَدُّ قُوَّةً مِّنْ قَرْيَتِكَ الَّتِيْٓ اَخْرَجَتْكَ ۚ اَهْلَكْنٰهُمْ فَلَا نَاصِرَ لَهُمْ ﴿۱۳﴾ اَفَمَنْ كَانَ عَلٰى بَيِّنَةٍ مِّنْ رَّبِّهٖ كَمَنْ زُيِّنَ لَهٗ سُوْٓءُ عَمَلِهٖ وَاتَّبَعُوْٓا اَهْوَآءَهُمْ ﴿۱۴﴾ مَثَلُ الْجَنَّةِ الَّتِيْ وُعِدَ الْمُتَّقُوْنَ ؕ فِيْهَآ اَنْهٰرٌ

هغه جنتونو ته داخل کړي چې لاندې ئې نهرونه بهيږي، او کُفر کونکي خلق بس د دُنيا د ورځو د ژوند مزې چړچې دي، د ځناورو پشان خوراک څکاک کوي [۱۷]، او د هغوئ د اوسيدو آخرى ځائے دوزخ دے.

اے نبي، څومره ډيرکلي داسې تير شوي دي چې هغه ستا د هغه کلي نه ډير زيات زور ور وو کوم کلي چې ته ئې ايستلے يې. هغوئ مونږ داسې هلاک کړل چې هيڅوک د هغوئ بچ کونکے نه وو [۱۸]. آيا داسې چرته کيدے شي چې څوک د خپل رب د طرف نه په يو صفا او ځرګند هدايت باندې وي، هغه د هغه خلقو پشان شي چې د هغوئ د پاره د هغوئ بد عمل ښائسته جوړ کړے شوے دے او هغوئ په خپلو خواهشاتو پسې روان شوي دي؟ د پرهيزګارو خلقو سره د کوم جنت وعده شوې ده د هغې شان خو داسې دے چې په هغې کښې به د صفا اوبو

"زمونږ سره عُزّي ده او ستاسو عُزّي نشته." نو نبي صلی الله علیه وسلم صحابو ته اُوفرمائيل چې جواب ورکړئ او ورته وائي چې "اَللّٰهُ مَوْلَانَا وَلَا مَوْلٰى لَكُمْ" زمونږ مرستيال او مددګار الله دے او ستاسو مرستيال او مددګار نشته." د نبي دا جواب هم د دې آيت نه اخستے شوے وو.

[۱۷] يعني لکه څنګه چې، ځناور خوراک کوي او څه سوچ نه کوي چې دا رزق د کوم ځائے نه راغلے دے، چا پيدا کړے دے، او د دې رزق سره په ما باندې د رازق څه حقونه راځي، دغه شان دا خلق هم بس خوراک کوي، د خوړلو او نه وړلو د دوئ سره بل هيڅ فکر نشته.

[۱۸] د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره د مکے نه په وتلو ډير خفګان وو. کله چې هغه په هجرت کولو مجبوره شو نو د ښار نه بهر اُووتو او مکے ته ئې مخ کړو او وې فرمائيل "اے مکے! ته د دُنيا په ټولو ښارونو کښې خدائے ته د ټولو نه زيات غوره ئې، او د خدائے په ټولو ښارونو کښې زما د ټولو نه زيات مينه ستا سره ده، که مشرکانو زه نه وے ايستلے نو زه ستا نه هيڅکله نه وتلم." په دې باندې اُوفرمائيلے شو چې ستا په ايستلو سره د مکے د خلقو دا خيال دے چې هغوئ لويه کاميابي حاصله کړې ده. حالانکه په دے کار کولو سره هغوئ خپل بد انجام ته آواز کړے دے. د آيت د انداز کلام نه صفا معلوميږي چې دا آيت به ضرور د هجرت سره جوخت نازل شوے وي.

مِّنْ مَّآءٍ غَيْرِ اٰسِنٍ ۚ وَاَنْهٰرٌ مِّنْ لَّبَنٍ لَّمْ يَتَغَيَّرْ طَعْمُهٗ ۚ وَاَنْهٰرٌ مِّنْ خَمْرٍ لَّذَّةٍ لِّلشّٰرِبِيْنَ ۚ وَاَنْهٰرٌ مِّنْ عَسَلٍ مُّصَفًّى ۗ وَلَهُمْ فِيْهَا مِنْ كُلِّ الثَّمَرٰتِ وَمَغْفِرَةٌ مِّنْ رَّبِّهِمْ ۗ كَمَنْ هُوَ خٰلِدٌ فِى النَّارِ

نهرونه بهیږی[20]، او دداسې پیو نهرونه بهیږی چه په خوند کښې به ئې د ذرې هومره فرق نه وی راغلے[21] او ددا سې شرابو نهرونه به بهیږی چه د څکونکو د پاره به خوندناک وی،[22] او د صفا شهدو نهرونه به بهیږی په هغې کښې به د هغوئ د پاره هر قسم میوې وی او د هغوئ د خپل رب د طرفنه به بخښانه وی.[23] (آیا هغه سړی چه د هغه په حصه کښې دا جنّت راتلونکے دے) د هغه خلقو پشان کیدے شی چه هغوئ به په دوزخ کښې همیشه

[19] یعنی آخر دا څنګه کیدے شی چه پیغمبر او د هغه اُمتیان، چه د خدائے د طرفنه ورته یوه صفا نیغه لار ملاؤ شوی ده او هغوئ بنه د زړهٔ په دلیل سره په هغې لار باندې ټینګ ودریدلی دی، نو اُوس د هغوئ د هغه خلقو سره روان شی چه هغوئ په خپل بخوانی جاهلیت پورې نختلی دی، چه خپله ګمراهی هدایت ګنړی او خپله بدعملی ورته ښه ښکاری، او چه د څه دلیل په بُنیاد نهٔ بلکه تش د خپلو خواهشاتو په بنیاد باندې دا فیصلے کوی چه دا حق دے او دا باطل دے. اُوس څرنګه په دے دُنیا کښې د دے دواړو دلو ژوند یو شان کیدے شی او نهٔ په آخرت کښې د هغوئ انجام یو شان کیدے شی.

[20] اصل الفاظ دی مَآءٍ غَيْرِ اٰسِنٍ. اٰسِن هغه اُوبو ته وائی چه د هغې خوند او رنګ بدل شوے وی یا پکښې څه بد بوئی پیدا شوی وی. په دُنیا کښې د دریابونو او د نهرونو اُوبهٔ عام طور خړے وی. د هغې سره شګه، خاوره او نور قسما قسم بوټی وغیره شامل شوی وی او د هغې رنګ او خوند بدل وی. او څه نه څه بوئی پکښې هم وی. په دے وجه د جنّت د دریابونو او د نهرونو د اُوبو دا تعریف بیان شوے دے چه هغه به غیر اٰسن وی. یعنی هغه به خالصے او صفا سُتره اُوبهٔ وی. هیڅ قسم ګډون به پکښې نهٔ وی.

[21] په مرفوع حدیث کښې د دے تشریح دا شوی ده چه "هغه به د څاروُو د تیوُلونه راوتلی نهٔ وی." یعنی الله تعالیٰ به دا پئ د زمکے نه د چینو په شکل کښې راوُباسی او د نهرونو په شکل کښې به ئې بهَوی. دا سے به نهٔ وی چه د څارو د تیوُلونه به راولوشلے کیږی او بیا به د جنّت په نهرونو کښې اچولے کیږی. د دے قدرتی پئ دا تعریف بیان شوے دے چه" د دے په مزه کښې به د ذرے هومره فرق نهٔ وی راغلے." یعنی په هغې کښې به هغه معمولی شان سور بوئی هم نهٔ وی کوم چه د څاروُونه په لوشلو شوُ پئ کښې وی.

[22] په مرفوع حدیث کښې د دے تشریح دا شوی ده چه شراب به" انسانانو د خپو په ذریعه نچوړ کړی نهٔ وی." یعنی هغه به د دُنیا د شرابو پشان د سخا شوُ میوُونه د خپو په ذریعه نهٔ وی راایستلے شوی بلکه الله تعالیٰ به هغه هم د چینو په شکل کښې را پیدا کوی او د نهرونو په شکل کښې به ئې بهَوی. بیا د هغے

وَسُقُوْا مَآءً حَمِيْمًا فَقَطَّعَ اَمْعَآءَهُمْ ﴿۱۵﴾ وَمِنْهُمْ مَّنْ يَّسْتَمِعُ اِلَيْكَ ۚ حَتّٰٓى اِذَا خَرَجُوْا مِنْ عِنْدِكَ قَالُوْا لِلَّذِيْنَ اُوْتُوا الْعِلْمَ مَاذَا قَالَ اٰنِفًا ۣ اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ طَبَعَ اللّٰهُ عَلٰى قُلُوْبِهِمْ وَاتَّبَعُوْٓا اَهْوَآءَهُمْ ﴿۱۶﴾

---

اُو سیېږی اوداسې اُوبۀ بۀ پرې څکولې کیږی چه کولمې بۀ ورله پرېکوی؟

په دوی کښې څۀ خلق داسې دی چه په غور سره ستا خبرې آوری او بیا چه کله ستا د مجلس نه بهر اُوزی نو د هغه کسانو نه چه هغوی ته د علم نعمت ورکړې شوې دې، تپوسونه کوی چه اُوس اُوس ئې څه وئیلی وو؟[۲۵] دا هغه خلق دی چه په زړونو ئې الله تاپه لګولې ده او دوی په خپلو خواهشاتو پسې روان شوی دی۔[۲۶]

---

تعریف بیان شوې دې چه" هغه به د څکونکو د پاره خوند ناک وی"۔ یعنی د دُنیا د شرابو پشان به هغه تراخه او بد بویه نۀ وی چه کۀ د غښتونه غټ بو شرابی ئې څکی نو هغه هم پرې خله وراتوی۔ په سورة صافات کښې د دې زیات تعریف داشوې دې چه د دې په څکلو به بدن ته څه نقصان نۀ وی او نۀ به پرې عقل خرابیږی۔ (آیت ۴۷) او په سورة واقعه کښې فرمائیلې شوی دی چه په دې سره به نۀ سر کردانی راځی او نۀ به سړی کا واکې واټی (آیت ۱۹)۔ د دې نه معلومه شوه چه هغه شراب به نشه نۀ راولی بلکه خوند ناک او مزه ناک به وی۔

**۲۳** په مرفوع حدیث کښې د دې تشریح داشوې ده چه" هغه به د چوګ کیرونه را وتلی شهد نۀ وی۔" یعنی هغه به هم د چینو نه را اُوزی او په نهرونو کښې به بهیږی۔ نو په هغې کښې به د تش کېین تهوتې او د مرو شوؤ مچو څپې وغیره نۀ وی، بلکه هغه به خالص شهد وی۔

**۲۴** د جنّت د دې نعمتونو نه روستو چه د الله د طرفنه د بخښانې ذکرا وشو نو د دې دوۀ مطلبونه کیدې شی۔ یو دا چه د دې ټولو نعمتونو نه زیات نعمت دا دې چه الله تعالیٰ به هغوی ته بخښانه اُوکړی دوېم مطلب ئې دا دې چه په دُنیا کښې کوم ګناهونه د هغوی نه شوی وُو هغه به په جنت کښې دوئ ته هډو یاد ولې کیږی نۀ بلکه الله تعالیٰ به پرې د هیشه د پاره پرده اچوی چه په جنت کښې چرته شرمنده نۀ شی۔

**۲۵** دا د هغه کافرانو او منافقانو او اهلِ کتابو ذکر دې چه د نبی صلی الله علیه وسلم په مجلس کښې به کیناستل او د هغه خبری او د قرآن مجید آیتونه به ئې آوریدل، خو چونکه د نبیؐ خبری د هغوی زړونو ته نۀ لګیدې، نو په دې وجه به ئې د هر څه آوریدو باوجود هیڅ نۀ آوریدل او چه بهر ته به اُووتل نو د مسلمانانو نه به ئې تپوسونه کول چه اُوس اُوس ئې څه وئیل؟

**۲۶** دا د هغه اصلی سبب چه د دې په وجه د هغوی د زړۀ غوږونه د نبی صلی الله علیه وسلم د وینا د پاره کانړه شوی وُو۔ هغوی د خپلو خواهشاتو بندګان وُو، او نبیؐ چه کوم تعلیمات بښودل هغه د دوی د خواهشاتو خلاف وُو، په دې وجه که هغوی به چرته

وَالَّذِيْنَ اهْتَدَوْا زَادَهُمْ هُدًى وَّاٰتٰهُمْ تَقْوٰهُمْ ﴿۱۷﴾ فَهَلْ يَنْظُرُوْنَ اِلَّا السَّاعَةَ اَنْ تَاْتِيَهُمْ بَغْتَةً ۚ فَقَدْ جَآءَ اَشْرَاطُهَا ۚ فَاَنّٰى لَهُمْ اِذَا جَآءَتْهُمْ ذِكْرٰىهُمْ ﴿۱۸﴾ فَاعْلَمْ اَنَّهٗ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَاسْتَغْفِرْ

بلکه شو هغه خلق چه هغوئ په سمه لار روان دي، الله هغوئ ته نور زیات هدایت کوی[27] او هغوئ ته د هغوئ د حصے تقوای ورکوی.[28] نو آیا دا خلق بس د قیامت په انتظار دی چه ناساپه پرې راشی؟[29] د قیامت علامات خو راغلی دی.[30] او کله چه هغه پخپله راشی نو بیا به د دوئ د پاره د نصیحت قبلولو موقع چرته وی؟

نو اے نبی! ښه پوهه شه چه د الله نه سوا بل څوک د عبادت مستحق نشته، او معافی غواړه

د نبیؐ مجلس ته راغلل او په نازړه به ئے د هغه خبرو ته غوږ هم کیښودو خو د هغوئ په دماغو کښ به څه نه کیناستل.

[27] یعنی کافرانو او منافقانو چه به کومے خبرې آوریدلے وے او بیا به ئے هم تپوسونه کول چه اوس اوس هغه څه او فرمائیل هم هغه خبرې به د هدایت موندونکو (یعنی د اسلام په نیغه لار تلونکو خلقو) د پاره زیات د هدایت سبب وی، او د کوم مجلس نه چه به هغوئ بد نصیبه تش طور راپاسیدل هم د هغے مجلس نه دا خوش قیسمته خلق د علم او د پوهے یوه نوے خزانه د ځان سره واپس راوړی.

[28] یعنی کومه تقوای او پرهیزکاری چه هغوئ په خپل ځان کښے پیدا کوی الله تعالیٰ ورله د هغے توفیق ورکوی.

[29] یعنی د کومه پورے چه د حق واضحه کولو تعلق دے هغه خو په ډیلونو سره، د قرآن مجید په معجزانه بیان سره، د محمد صلی الله علیه وسلم په پاک سیرت سره، او د صحابه کرامو د ژوند په انقلاب سره دیرے په صفا طریقه واضحه کړے شوے دے. آیا اوس د ایمان راوړلو د پاره دا خلق د دے انتظار کوی چه قیامت ورته مخے له راشی؟

[30] د قیامت د علاماتو نه مراد هغه علامات دی چه د هغے نه معلومیږی چه د قیامت د راتلو وخت اوس رانزدے شوے دے. په هغے کښے د ټولو نه غټه علامه د حضرت آخری نبی راتلل دی چه د هغه نه روستو به د قیامته پورے بل نبی نه راځی. په بخاری، مسلم، ترمذی او مسند احمد کښے د حضرت انسؓ، د حضرت سهیل بن سعد ساعدی او د حضرت بُریدهؓ روایتونه نقل کړے شوی دی چه نبیؐ خپله مسواکه گوته او منځنۍ گوته دواړه نیغے کړے او وے فرمائیل بُعِثْتُ انا والساعة کهاتین "زما پیغمبری او قیامت کښے دے دوؤ گوتو پشان دی" یعنی لکه څنگه چه د دے دوؤ گوتو په مینځ کښے بله گوته نشته دغه شان زما او د قیامت

لِذَنۢبِكَ وَلِلۡمُؤۡمِنِينَ وَٱلۡمُؤۡمِنَٰتِۗ وَٱللَّهُ يَعۡلَمُ مُتَقَلَّبَكُمۡ وَمَثۡوَىٰكُمۡ ﴿١٩﴾ وَيَقُولُ ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَوۡلَا نُزِّلَتۡ سُورَةٞۖ فَإِذَآ أُنزِلَتۡ سُورَةٞ مُّحۡكَمَةٞ وَذُكِرَ فِيهَا ٱلۡقِتَالُ رَأَيۡتَ ٱلَّذِينَ فِي قُلُوبِهِم مَّرَضٞ يَنظُرُونَ إِلَيۡكَ نَظَرَ ٱلۡمَغۡشِيِّ عَلَيۡهِ مِنَ ٱلۡمَوۡتِۖ فَأَوۡلَىٰ

دَ خپل قصور دَپاره هم اودَ مومنانو سړو او ښځو دَپاره هم.[۳۱] الله تعالیٰ ته ستاسو منډې ترړې هم معلومې دی اوستاسو دَ استوګنې دَ ځایونو نه هم بنه خبر دے.ع

کوم خلقو چه ایمان راوړے دے هغوئ به وئیل چه یو (داسے) سورة ولے نه نازلیږی (چه په هغے کښې دَ جنګ حکم اُوشی) خو چه کله یو محکم سورة نازل کړے شو چه په هغے کښې دَ جنګ ذکر وُو نو تا ولیدل[۳۲] چه دَ کومو خلقو په زړونو کښې مرض وُو هغوی تا ته داسے ګوری لکه څنګه چه په چا مرګ راخور شوے وی. افسوس

په منځ کښې یل بنی هم را تلو دا لا نشته۔ زمانه روستو به اُوس قیامت راځی۔

[۳۱] اسلام چه کوم اخلاق انسان ته ښودلی دی، په هغے کښې دا هم دی چه بنده که دَ خپل رب په بندګی او عبادت کولو کښې، او دَ دین دَ پاره په محنت کولو کښې، دَ خپل طرفه هرڅومره کوشش کوی، خو هغه له دا هیڅکله نه دی پکار چه دا ګمان اوکړی چه څه ماله کول پکار وُو هغه ما کړی دی، بلکه هغه له دَ همیشه دَپاره دا سوچ کول پکار دی چه زما دَ مالک په ما باندې کوم حق وُو هغه ما ادا نه کړے شوی، او پکار ده چه هروخت دَ خپل قصور اقرار کوی او دَ الله نه دا دُعا غواړی چه ستا په خدمت کښې زما نه څه کوتاهی شوی ده هغه ما ته معاف کړه. هم دا اصل رُوح دے دَ الله تعالیٰ دَ دیے حکم چه "اے نبیؐ، دَ خپل قصور معافی غواړه". دَ دیے مطلب دا نه دے چه معاذ الله نبی صلی الله علیه وسلم واقعی قصداً اڅه قصور کړے وُو. بلکه دَ دیے صحیح مطلب دا دے چه کوم بنده دَ خدائے دَ ټولو بندګانو نه زیات بندګی کولے وُو، دَ هغه مقام هم دا نه وُو چه په خپله کارنامه باندې دَ هغه په زړه کښې دَ فخر څه خیال راشی، بلکه دَ هغه مقام هم دا وُو چه دَ خپلو ټولو قدرمنو خدمتونو باوجود دَ خپل رب په دربار کښې هروخت دَ قصور اقرار کوی. دا وجه وه چه رسول الله صلی الله علیه وسلم به همیشه استغفار ډیر ډیر وئیلو. دَ ابو داؤد، نسائی او مسند احمد په روایت کښې دَ نبیؐ دا حدیث نقل کړے شوے دے چه "زهٔ هره ورځ سل ځله دَ الله نه دَ خپل قصور بخښنا نه غواړم (یعنی استغفار کوم)."

[۳۲] مطلب دا دے چه په هغه وخت کښې په مسلمانانو کوم حالات تیریدل، او دَ کافرانو دَ اسلام او مسلمانانو سره څه سلوک وُو، دَ هغے په وجه دَ جنګ دَ حکم دَ راتلو نه مخکښې دَ مومنانو دا عامه رائے وه چه "اُوس مونږ ته دَ جنګ اجازت پکار دے. بلکه هغوی به ډیر په بے قراری سره دَ الله دَ فرمان انتظار کولو او بار بار به ئے تپوسونه کول چه دَ دیے ظالمانو سره دَ جنګ کولو حکم مونږ ته ولے نه کیږی؟ لیکن کوم

لَهُمْ ﴿۲۰﴾ طَاعَةٌ وَّقَوْلٌ مَّعْرُوْفٌ ۚ فَاِذَا عَزَمَ الْاَمْرُ ۚ فَلَوْ صَدَقُوا اللّٰهَ لَكَانَ خَيْرًا لَّهُمْ ﴿۲۱﴾ فَهَلْ عَسَيْتُمْ اِنْ تَوَلَّيْتُمْ اَنْ تُفْسِدُوْا فِي الْاَرْضِ وَتُقَطِّعُوْٓا اَرْحَامَكُمْ ﴿۲۲﴾ اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ لَعَنَهُمُ اللّٰهُ

دَ هغوئ په حال باندې. (دَ هغوئ په ژبه) دَ اِطاعت اقرار او ښې خبرې دي. خو چې هر کله قطعي حکم اُوکړے شو او په هغه وخت کښې هغوئ دَ الله سره په خپله وعده کښې رښتيني ثابت شوي وے نو دَ هغوئ دَ پاره به ښه وه. آيا اُوس ستاسو نه دَ دے نه سوا څه بله توقع کيدے شي چه که چرے تاسو مخ واړَوَدَ نو په زمکه کښې به بيا فساد را پورته کړئ او په خپلو کښې به دَ يو بل په مرئ چاړه را کاږئ؟ دا هغه خلق دي چه الله پرلعنت اوکړ

خلق چه دَ منافقت سره په مسلمانانو کښې شامل شوي وُو دَ هغوئ حال دَ مومنانو دَ حال نه بالکل مختلف وُو. هغوئ ته خپل سر او مال دَ خدائے او دَ هغه دَ دين نه غوره وُو او دے ته تيار نه وُو چه دَ خدائے او دَ هغه دَ دين دَ پاره څه خطره په خپل سر واخلي. دَ جنګ دَ حکم دَ راتلو سره دَ منافقانو او دَ رښتيني مومنانو پته اولګيده. تر څو چه دَ جنګ حکم نه وُو راغلے تر هغې پورے په منافقانو کښې او په هامورښتينو مومنانو کښې په ظاهره هيڅ فرق نه کيدو. مونځ به هغوئ هم کوو او دوئ هم. په روژه نيولو کښې به ئے هم ناراستي نه کوله. آسان آسان دَ مزے اسلام دَ هغوئ قبول وُو. خو چه کله دَ اسلام دَ پاره دَ سر ورکولو وخت راغے نو دَ هغوئ منافقت ښکاره شو او دَ ايمان هغه نمائشي جامے دَ هغوئ نه اُوويستلے شوے چه هغوئ دَ خپل منافقت پټولو دَ پاره اغوستلے وے. په سورة نساء کښې دَ هغوئ دا حالت په دے طريقه بيان کړے شوے دے: "تا اوليدل هغه خلق چه ورته وئيلے شوي وُو چه خپل لاسونه رامنع کړئ او مونځ قايم کړئ او زکوٰة ورکوئ؟ اُوس چه هغوئ ته دَ جنګ حکم ورکړے شو نو په هغوئ کښې دَ يو ډلے حال دا دے چه دَ انسانانو نه داسے يريږي لکه څنګه چه دَ خدائے نه يره پکار ده بلکه دَ دے نه هم څه زيات. هغوئ وائي اے خدايه! دا دَ جنګ حکم مونږ ته ولے دا کړے شو؟ مونږ ته دِ نور مهلت ولے را نه کړو؟" (آيت ۷۷).

۳۳ اصل الفاظ دي اِنْ تَوَلَّيْتُمْ. دَ دے يوه ترجمه هغه ده کومه چه مونږ دَ بره په متن کښې کړې ده او دويمه ترجمه دا ده چه "که چرے تاسو دَ خلقو حاکمان جوړ شوئ."

۳۴ دَ دے حکم يو مطلب دا دے چه که چرے تاسو په دے وخت کښې دَ اسلام دَ پاره دَ جنګ کولو نه ډډه کوئ او دَ هغه لوئ اصلاحي انقلاب دَ پاره دَ سر او دَ مال قربانولو نه مخ اړَوئ دَ کوم کوشش چه محمد صلی الله عليه وسلم او مومنان کوي، نو دَ دے نتيجه آخر دَ دے نه سوا بله څه کيدے شي چه تاسو بيا دَ جاهليت هغه نظام ته واپس شئ چه په هغے کښې تاسو سوونو کالو راسے دَ يو بل په مرئ چړے را کاږئ، آن تر دے پورے چه خپل بچي هم ژوندي خښوئ، او دَ خدائے زمکه دَ ظلم او دَ فساد نه ډکوئ. دويم مطلب دا دے

فَاَصَمَّهُمْ وَاَعْمٰۤى اَبْصَارَهُمْ ﴿۲۳﴾ اَفَلَا يَتَدَبَّرُوْنَ الْقُرْاٰنَ اَمْ عَلٰى قُلُوْبٍ اَقْفَالُهَا ﴿۲۴﴾ اِنَّ الَّذِيْنَ ارْتَدُّوْا عَلٰۤى اَدْبَارِهِمْ مِّنْۢ بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُمُ الْهُدَى ۙ الشَّيْطٰنُ سَوَّلَ لَهُمْ ؕ وَاَمْلٰى لَهُمْ ﴿۲۵﴾

او ړانده ئې کاڼړه ئې کړل - آیا دے خلقو په قرآن غور اُونه کړو، یا ئې زړونو ته جندرے لګیدلی دی؟ حقیقت دادے چه څوک د هدایت واضح کیدو نه روستو د هغے نه په شا شول د هغوی د پاره شیطان دا لار آسانه کړې ده او د دروغژنو اُمیدونو سلسله ئې د هغوی د پاره اُوږده کړې ده۔[۳۵]

چه هر کله ستاسو عمل دا حال دے چه په کوم دین باندے د ایمان راوړلو اقرار تاسو کړے وو د هغے د پاره په تاسو کښے څه اخلاص او وفاداری نشته، او د هغے د پاره تو یا نی درکولو ته تیار نه یئ نو د دے اخلاقی حالت سره چه الله تعالیٰ تاسو له اقتدار درکړی او د دُنیا د معاملاتو واګے ستاسو په لاس کښے راشی نو ستاسو نه د ظلم او فساد نه سوا او د ورولئ د ختمولو نه سوا بل د څه خیر اُمید کیدے شی۔

دا آیت د دے خبری څرګند د نکوی چه په اسلام کښے خپلولی ختمول حرام دی۔ بل طرف ته په قرآن مجید کښے په ډیرو ځایونو کښے د رشتے دارانو سره ښه سلوک سا تلو ته غټه نیکی وښلے شوی ده او د صله رحمی یعنی د رشته دارئ د قایم ساتلو حکم شوے دے۔ (د مثال په طوره وګوره البقره ۸۳، ۱۷۷ - النساء ۸، ۳۶ - النحل ۹۰ - بنی اسرائیل ۲۶ - النور ۲۲) - د "رحم" لفظ په عربئ ژبه کښے د خپلولئ او رشته دارئ د پاره د استعارے په طور استعمالیږی۔ د یو سړی ټول رشته داران، که نزدے وی او که لرے وی، د هغه ذوی الارحام دی۔ د چا سره چه څومره نزدے رشته وی هغومره د هغه حق په سړی باندے زیات دے او د هغه سره خپلولی ختمول هغومره غټه ګناه ده - صله رحمی دا ده چه د خپل رشته دار سره څه نیکی کول د سړی په وس کښے وی چه د هغے نه مخ وانړوی - او قطعه رحمی دا ده چه سړے د هغه سره خراب سلوک اوکړی، یا ور سره څه نیکی کولے شی او د هغے نه قصداً ډډه اوکړی - حضرت عمر رضی الله عنه د دے آیت نه دلیل پیش کړے وو او د اُمِّ وَلَد خرڅول ئې حرام کړی وو او صحابه کرامو ور سره اتفاق کړے وو - حاکم په مستدرک کښے د حضرت بریده نه دا روایت نقل کړے دے چه یو ورځ زه د حضرت عمرؓ په مجلس کښے ناست وُوم چه ناساپه په محله کښے شور جوړ شو. د تپوس نه روستو معلومه شوه چه یوه وینځه خرڅولے کیږی او د هغے لور په چغو چغو ژاړی - حضرت عمرؓ په هغه وخت انصار او مهاجرین راجمع کړل او د هغوی نه ئې تپوس اوکړو چه کوم دین محمد صلی الله علیه وسلم راوړے دے آیا په هغے کښے تاسو ته معلومه ده چه خپلوی قطع کول جائز دی؟ ټولو اووئیل چه نه۔ حضرت عمرؓ اوفرمائیل چه دا څنګه خبره ده چه په تاسو کښے مور د لور نه جدا کیږی؟ د دے نه غټه قطع رحمی به څه کیدے شی؟ بیا هغه دا آیت تلاوت کړو. خلقو ورته اُووئیل چه ستا په رائے کښے د دے د منع کولو د پاره څه

ذٰلِكَ بِأَنَّهُمْ قَالُوا لِلَّذِينَ كَرِهُوا مَا نَزَّلَ اللّٰهُ سَنُطِيعُكُمْ فِي بَعْضِ الْأَمْرِ ۚ وَاللّٰهُ يَعْلَمُ إِسْرَارَهُمْ ﴿٢٦﴾ فَكَيْفَ إِذَا تَوَفَّتْهُمُ الْمَلٰٓئِكَةُ يَضْرِبُونَ وُجُوهَهُمْ وَأَدْبَارَهُمْ ﴿٢٧﴾ ذٰلِكَ بِأَنَّهُمُ اتَّبَعُوا مَآ أَسْخَطَ

په دې وجه هغوئ هغه خلقو ته چه د خدائ دین ته خوښ نه دی، اُو وئیل چه په څینو معاملاتو کښې به مونږه ستاسو اُو منو[36] الله تعالیٰ د هغوئ په دې پټو خبرو ښه پوهه دې. نو په هغه وخت کښې به د هغوئ څه حال وی چه فرښتې ئې د کله رُوحونه اخلی او د هغوئ مخونه او شاګانې به وهی او بوځی به ئې؟[37] دا خو به څکه وی چه هغوئ په هغه لاره لاړل په کومه چه الله ناراضه کیږی

مناسب وی هغه اوکړه. نو حضرت عمرؓ تولو اسلامی ملکو نو ته دا عام فرمان جاری کړو چه دا سې وینځې د نه خرڅولې کیږی چه د مالک په کور کښې د هغې نه اولاد پیدا شوې وی څکه چه دا قطعه رحمی ده او دا حلال نه ده.

[35] یعنی یا خو دا خلق په قرآن مجید باندې غور نه کوی، یا د غور کولو کوشش خو کوی لیکن د قرآن تعلیمات او مطلب ئې زړونو ته نه کوزیږی څکه چه د هغوئ زړونو ته جندرې لګیدلی دی. او دا چه فرمائیلې شوی دی چه "د هغوئ زړونو ته جندرې لګیدلی دی" نو د دې مطلب دا دې چه زړونو ته ئې هغه جندرې لګیدلی کوم چه د داسې حق شناسو زړونو د پاره خاص دی.

[36] یعنی باوجود د دې چه د ایمان اقرار ئې کړې وو او د مسلمانانو په ډله کښې شامل وو، هغوئ پټ په پټه د اسلام د دُشمنانو سره ساز باز کولو او وعدې ئې ورسره کولې چه په څینو معاملاتو کښې به مونږه ستاسو ملګرتیا کوؤ.

[37] یعنی په دنیا کښې خو هغوئ دا عمل په دې وجه اختیار کړو چه خپله فائده په حفاظت کښې اُو ساتی، او د کفر او د اسلام د جنګ د خطرونو نه ځان اُو ساتی، لیکن د مرګ نه روستو به د وفق د خدائ د ګرفت نه چرته ځی؟ په هغه وخت کښې به د هغوئ یو تدبیر هم د فرښتو د وهلو نه هغوئ نشی بچ کولې. دا آیت هم د قرآن مجید په هغه آیتونو کښې شامل دې چه هغه دا څرګندونه کوی چه عذاب برزخ (یعنی د قبر عذاب) شته دې. د دې نه صفا معلومیږی چه د مرګ سره سم په کافرانو او منافقانو باندې عذاب شروع کیږی، او دا عذاب د هغې سزا نه مختلف دې کوم چه به په قیامت کښې د هغوئ د مقدمې د فیصله کیدو نه روستو هغوئ له ورکړې کیږی. د ذیاتې تشریح د پاره اوګوره سورة نساء آیت ۹۷. الانعام، ۹۳، ۹۴ - الانفال ۵۰ - النحل ۲۸، ۳۲ - المومنون ۹۹، ۱۰۰ یٰسٓ ۲۶، ۲۷ (سره د حاشیې ۲۲، ۲۳). المومن، ۴۶ (سره د حاشیې ۶۳).

اللّٰهَ وَكَرِهُوا رِضْوَانَهٗ فَاَحْبَطَ اَعْمَالَهُمْ ﴿۲۸﴾ اَمْ حَسِبَ الَّذِيْنَ فِيْ قُلُوْبِهِمْ مَّرَضٌ اَنْ لَّنْ يُّخْرِجَ اللّٰهُ اَضْغَانَهُمْ ﴿۲۹﴾ وَلَوْ نَشَآءُ لَاَرَيْنٰكَهُمْ فَلَعَرَفْتَهُمْ بِسِيْمٰهُمْ ؕ وَلَتَعْرِفَنَّهُمْ فِيْ لَحْنِ الْقَوْلِ ؕ وَاللّٰهُ يَعْلَمُ اَعْمَالَكُمْ ﴿۳۰﴾ وَلَنَبْلُوَنَّكُمْ حَتّٰى نَعْلَمَ الْمُجٰهِدِيْنَ مِنْكُمْ وَالصّٰبِرِيْنَ ۙ وَنَبْلُوَا۟ اَخْبَارَكُمْ ﴿۳۱﴾ اِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَصَدُّوْا عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَشَآقُّوا الرَّسُوْلَ مِنْۢ بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ

او د هغه د رضا په لاره تلل ئې خوښ نه کړل. په دې وجه هغه د هغوئ ټول عملونه ضائع کړل.[۳۸] آیا هغه خلق چه په زړونو کښې ئې مرض پروت دے دا گمان کوی چه الله به د هغوئ د زړونو خرابتیا نه را برسیره کوی؟ که مونږ ئې اوغواړو نو هغوئ به درته عاغځ اوښایو او تاسو به ئې د مخونو او پیژنې او د خبرو د طرز نه خو به ئې خامخا او پیژنې. الله ستاسو ټولو عملونو نه بنه خبر دے. مونږ به ضرور تاسو په آزمیښت کښې اچوو چه ستاسو حالات وجانچ واخلو او اوگورو چه په تاسو کښې مجاهدین او مضبوط ودریدونکی څوک دی.

کومو خلقو چه کفر اوکړو او د خدائ د لارے نه ئې خلق منع کړل او د رسول سره ئې جګړه اوکړه، روستو د دے نه چه هغوئ ته نیغه لاره

۳۸ے د عملونو نه مراد هغه ټول عملونه دی کوم چه به هغوئ د مسلمان په حیثیت سره کول. د هغوئ مونځونه، د هغوئ روژے، د هغوئ زکوٰة، غرض دا چه هغه ټول عبادتونه او هغه ټول نیکیانے چه په ظاهره به په نیکو عملونو کښې شماریدلے، په دے وجه ضائع شول چه هغوئ د مسلمانئ باوجود د الله سره او د هغه د دین سره او د اسلامی ملت سره اخلاص او وفاداری اونه کړه، بلکه صرف د خپلے دُنیاوی فائدے د پاره ئې د دین د دُشمنانو سره ساز باز کولو او کله چه د الله په لار کښې د جهاد کولو موقع راغله نو هغوئ د خپل ځان د بچ کولو په فکر کښې اخته شو.

دا آیتونه بالکل د دے خبرے څرګندوَنه کوی چه د کفر او د اسلام په جنګ کښې د کوم سړی همدردیانے او مینه د اسلام او د مسلمانانو سره نه وی، یا د کفر او د کافرانو سره وی نو د هغه ایمان هم او د سرنه معتبر نه دے نو عمل به ئې څنګه خدائ ته قبول وی۔

لَهُمُ الْهُدٰى ۙ لَنْ يَّضُرُّوا اللّٰهَ شَيْـًٔا ۭ وَسَيُحْبِطُ اَعْمَالَهُمْ ﴿۳۲﴾ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اَطِيْعُوا اللّٰهَ وَاَطِيْعُوا الرَّسُوْلَ وَلَا تُبْطِلُوْٓا اَعْمَالَكُمْ ﴿۳۳﴾ اِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَصَدُّوْا عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ثُمَّ مَاتُوْا وَهُمْ كُفَّارٌ فَلَنْ يَّغْفِرَ اللّٰهُ لَهُمْ ﴿۳۴﴾ فَلَا تَهِنُوْا وَتَدْعُوْٓا اِلَى السَّلْمِ ۖ وَاَنْتُمُ الْاَعْلَوْنَ ۖ وَاللّٰهُ مَعَكُمْ وَلَنْ يَّتِرَكُمْ اَعْمَالَكُمْ ﴿۳۵﴾

واضحه شوی وه، په حقیقت کښې هغوئ د الله هیڅ نقصان هم نشی کولے، بلکه الله به د هغوئ ټول عملونه برباد کړی.[۳۹] اے هغه خلقو چه ایمان مو راوړے دے، تاسو د الله حکمونه منئ او د رسول خبره منئ او خپل عملونه مه برباد وئ.[۴۰] کومو خلقو چه کفر اوکړو او د خدائے د لارے نه ئے خلق منع کړل او د مرګ پورے په کفر باندې ټینګ وُو نو الله به هغوئ هرګز معاف نه کړی. پس تاسو بزدله (کم همته) مه جوړیږئ او د صُلح درخاستونه مه کوئ.[۴۱] هم تاسو به غالب یئ. الله ستاسو سره دے او ستاسو عملونه به هغه هرګز نه ضایع کوی.

[۳۹] د دے نقرے دوه مطلبونه دی. یو دا چه کوم کارونه هغوئ په خپل نزکښے د نیکئ په ګمان کړی دی، الله به هغه ټول ضایع کړی او په آخرت کښے به د هغے هیڅ اجر بیا اُونه مومنده شی. دویم مطلب دا دے چه هغوئ د الله او د هغه د رسول د دین د لارے نه د خلقو منع کولو د پاره څو مره تدبیرونه کوی هغه ټول به ناکام او بے فایده شی.

[۴۰] یعنی د عملونو نایئڅا هله سری ته رسی چه سړے د الله او د هغه د رسول حکم منونکے بنده شی. او په سرے د حکم نه مخ واړوی نو بیا د هغه یو عمل ته هم نیک عمل نه شی ویلے کیدے چه هغه په د څه اجر مستحق شی.

[۴۱] دلته دا خبره په نظر کښے ساتل پکار دی چه دا حکم په هغه زمانه کښے شوے وُو کله چه د مدینے په یو ور وکی شان کلي کښے یو څو سوؤ مهاجرینو او انصارو د اسلام جنډه اُوچته کړې وه او مقابله ئے یو ازے د قریشو د طاقتورے قبیلے سره نه وه بلکه د ټول عرب د کافرانو و مشرکانو سره وه. په دے حالت کښے فرمائیلے کیږی چه همت مه بائیلئ او د دُشمنانو ته د صُلحے درخاستونه مه کوئ بلکه ځان ترپایانو لو ته تیار شئ. د دے حکم دا مطلب نه دے چه مسلمانانو له هډو د صُلحے خبرې کول نه دی پکار. بلکه د دے مطلب دا دے چه په داسے حالت کښے د صُلحے درخاستونه کول صحیح نه دی کله چه د هغے نه د خپلے کمزورئ اظهار کیږی او په هغے سره دُشمن نور هم زیات زړه ور کیږی. مسلمانانو له پکار دی چه اول د خپلے بهادرئ طاقت دُشمنانو ته اُوښائی او پس د هغے که د صُلحے خبرې کوی نو باک نشته.

إِنَّمَا الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا لَعِبٌ وَّلَهْوٌ ۚ وَإِن تُؤْمِنُوا وَتَتَّقُوا يُؤْتِكُمْ أُجُورَكُمْ وَلَا يَسْـَٔلْكُمْ أَمْوَالَكُمْ ﴿٣٦﴾ إِن يَسْـَٔلْكُمُوهَا فَيُحْفِكُمْ تَبْخَلُوا وَيُخْرِجْ أَضْغَانَكُمْ ﴿٣٧﴾ هَآأَنتُمْ هٰٓؤُلَآءِ تُدْعَوْنَ لِتُنفِقُوا فِي سَبِيلِ اللّٰهِ فَمِنكُم مَّن يَبْخَلُ ۖ وَمَن يَبْخَلْ فَإِنَّمَا يَبْخَلُ عَن نَّفْسِهِ ۚ وَاللّٰهُ الْغَنِيُّ وَأَنتُمُ الْفُقَرَآءُ ۚ

دَ دُنیا ژوند خویوه لوبه او تماشه ده۔[۴۲] که تاسو ایمان راوړو او دَ تقوٰی پهٔ لار روان شوئ نو الله به ستاسو اجر تاسو له درکړي او ستاسو مال به ستاسو نهٔ غواړي۔[۴۳] که چرې هغه ستاسو مالونه ستاسو نه اُوغواړي او سراسر ټول مال درنه اُوغواړي نو تاسو به شومتیا اُوکړئ او هغه به ستاسو عیبونه راڅرګند کړي۔[۴۴] ګورئ، تاسو ته بلنه درکړې کیږي چه دَ الله پهٔ لار کښې مال خرچ کړئ. نو پهٔ تاسو کښې څه خلق دي چه شومتیا کوي، حالانکه څوک چه شومتیا کوي هغه پهٔ حقیقت کښې دَ خپل ځان سره شومتیا کوي۔ الله خو غني دے، او تاسو هغه ته محتاج یئ۔

۴۲ یعنی دَ آخرت پهٔ مقابله کښې دَ دے دُنیا حیثیت دَ دے نه زیات نور څه نهٔ دے چه بس دَ زړهٔ دَ خوشحالئ یو څو ورځې دي۔ دَ دے ځائے کامیابي او ناکامي څه حقیقي او پائیدار څیز نهٔ دے۔ اصل ژوند دَ آخرت ژوند دے چه دَ هغے دَ کامیابئ دَ پاره انسان له فکر کول پکار دي (دَ زیاتے تشریح دَ پاره اُوګورئ تفهیم القرآن دریم جلد، دَ سورۃ عنکبوت تفسیر، حاشیه ۱۰۲)۔

۴۳ یعنی هغه غني دے۔ دَ هغه هیڅ ضرورت نشته چه دَ خپل ذات دَ پاره ستاسو نه څه واخلي۔ که هغه تاسو ته داوائي چه زما پهٔ لار کښې څه خرچ کړئ نو هغه دَ خپل ځان دَ پاره نهٔ بلکه ستاسو دَ نیکړې دَ پاره وائي۔

۴۴ یعنی هغه پهٔ دومره لوئ آزمینت کښې تاسو نهٔ اچوي چه پهٔ هغے سره ستاسو کمزوریانے را برسیره شي۔

وَإِن تَتَوَلَّوْا يَسْتَبْدِلْ قَوْمًا غَيْرَكُمْ ثُمَّ لَا يَكُونُوا أَمْثَالَكُم ﴿۳۸﴾ ع

که تاسو مخ واړئ نو الله به ستاسو په ځائے یو بل قوم راولی او هغوی به ستاسو غوندې نه وی. ع



# الفتح

**نوم** دَ اولنی آیت اِنَّا فَتَحۡنَا لَكَ فَتۡحًا مُّبِيۡنًا نه اخستے شوے دے۔ دا یوازے دَ دے سورة نوم نه دے بلکه دَ مضمون په لحاظ سره هم دَ دے عنوان دے، ځکه چه په دے کښے په هغه لویه فتح باندے کلام شوے دے کومه چه الله تعالیٰ نبی صلی الله علیه وسلم او مسلمانانو له دَ صلح حُدَیبیۓ په شکل کښے ورکړې وه۔

**دَ نازلیدو زمانه** ټول روایتونه په دے مضمون متفق دی چه دا سورة دَ شپږمے هجری دَ ذی القعده په میاشت کښے په هغه وخت نازل شوے وو کله چه نبیؑ دَ مکے دَ کافرانو سره دَ صلح حدیبیۓ معاهده اُوکړه او واپس مدینے منورے ته راروان وو۔

**مخکینی تاریخی حالات** دَ کومو واقعاتو په سلسله کښے چه دا سورة نازل شو هغه په دے ډول شروع شوی دی چه یوه ورځ رسول الله صلی الله علیه وسلم په خوب کښے اولیدل چه هغه دَ خپلو ملګرو سره مکے معظمے ته تلے دے او هلته ئے عُمره کړې ده۔ دَ پیغمبر خوب خو هسے یو خوب او خیال نه شو کیدے۔ هغه خو دَ وحی دَ قسمونو نه یو قسم دے، او وړاندے په ۲۷ آیت کښے الله تعالیٰ پخپله دَ دے خبرې ښکاره کړے دے چه دا خوب مونږه خپل رسول ته ښودلے وو۔ نو په حقیقت کښے دا هسے یو خوب نه وو بلکه دَ خدائے دَ طرف نه یوه اشاره وه چه په هغے عمل کول نبیؐ له ضروری وو۔

په ظاهره خو په دے حکم باندے دَ عمل کولو هیڅ اِمکان په نظر نه راتلو۔ دَ قریشو کافرانو دَ شپږو کالو راسے دَ بیت الله لار دَ مسلمانانو دَ پاره بنده کړې وه او په دے ټوله موده کښے ئے یو مسلمان هم دَ حج او دَ عُمرے دَ پاره دَ حرم حدُودو ته نژدے نه وو پریښودلے۔ اُوس آخر دا اُمید څنګه کیدے شو چه هغوئ به رسول الله صلی الله علیه وسلم دَ خپلو ملګرو ډلے سره مکے ته پریږدی که دَ عُمرے دَ پاره ئے احرام تړلے او دَ جنګی ساز و سامان سره وے، نو دا خو پخپله جنګ ته بلنه ورکول وو، او که بے وسلے تلے نو خپل ځان او خپل ملګری دَ مرګ دَ خطرے سره مخامخول وو۔ په دے حالاتو کښے هیچوک په دے نه شو پوهیدلے چه دَ الله تعالیٰ په دے اشاره باندے به څنګه عمل کیدے شی۔

لیکن دَ پیغمبر مقام دا وو چه خپل رب هغه ته څه حکم اُوکړی نو په هغے به بے شکه بے شُبهے عمل کوی۔ دا وجه وه چه رسول الله صلی الله علیه وسلم زر خپل خوب صحابه کرامو ته واوروو او دَ سفر دَ پاره ئے تیاری شروع کړه۔ خوا وُ شا چه کوم قبائل وو هغوئ ته ئے هم عام اِعلان اُوکړو چه مونږه عُمرے له ځو، څوک چه زمونږ سره تلل غواړی هغوئ دِ راځی۔ دَ کومو خلقو نظر چه په ظاهری اسبابو باندے وو هغوئ دا خیال اُوکړو چه دا خلق دَ مرګ خُلے له ځی۔ په هغوئ کښے هیڅوک دَ هغه سره تلو ته تیار نه شو۔ خو دَ چا چه په الله او دَ هغه په رسول باندے رښتینے ایمان وو هغوئ دَ دے خبرې هیڅ پروا نه لرله چه انجام به څه وی۔ دَ هغوئ دَ پاره بس دا خبره کافی وه چه دَ الله اشاره ده او دَ الله رسولؐ دَ حکم منلو دَ پاره راپاسیدلے دے۔ دَ دے نه

روستو هیڅ یا هغوی د خدائے د رسول سره د ملګرتیا کولو نه شو منع کولے۔ خوارلس سوه صحابه کرامؓ د نبیؐ په ملګرتیا کښې د دے خطرناک سفر ته د تللو د پاره تیار شو۔

د شپږم هجری د ذی القعدے د میاشتے په اوّلو ورځو کښې دا مبارکه قافله د مدینے نه روانه شوه چه ذُوالحُلَیفه[1] ته اُورسیدل نو ټولو د عُمرے د پاره اِحرام اُوتړو۔ د قربانئ د پاره ئے اویا اوښان د ځان سره روان کړل چه په غاړو کښې ئے د هَدْی د علامے په طور پټئ پرتے وے۔ په سامانونو کښې ئے صرف یو یو تُوره کیښودله چه د عربو د عامے قاعدے مطابق د حجّ د کیښودلو اجازت هر حاجی ته وُو، او د دے نه سیوا د جنګ نور سامان ئے د ځان سره وانه نه خستو۔ په دے شان سره دا قافله د لبّیک لبّیک د اُوچتو آوازونو سره بیت الله شریف ته روانه شوه۔

په هغه وخت کښې چه د مکے او د مدینے د یو بل سره کوم تعلقات وُو، هغه د عربو هر یو ته معلوم وُو۔ تیر کال د پنځمے هجرئ د شوال په میاشت کښې خو قریشو د عربو د قبائیلو سره په شریکه په مدینه باندې حمله کړی وه او مشهوره غزا "غزوهٔ احزاب" شوی وه۔ دا وجه وه چه کله رسول الله صلی الله علیه وسلم د دومره لوئے قافلے سره د خپلو هغو دُشمنانو کلی ته روان شو چه هغوی د هغه د وینو ځکلو ته تکی ناست وُو، نو د ټول عرب سترګے د دے ناآشنا سفر ته راواوړیدلے، او خلقو دا هم اولیدل چه دا قافله د جنګ د پاره نه ځی بلکه په محترمه میاشت کښې، احرام تړلی، د هَدْی د اوښانو سره د بیت الله شریف طواف له ځی او بالکل بے وسلے دی۔

د نبیؐ په دے کار سره د قریشو خلق سخت په پریشانئ کښې پریوتل۔ ذی القعدهٔ میاشت په هغه محترمو میاشتو کښې وه چه په عربو کښې د حجّ او د عُمرے د پاره د سوونو کالو راهسے عزتمندے ګڼلے شوے۔ په دے میاشت کښې چه په کومے قبیلے احرام اُوتړو او د حجّ او د عُمرے د پاره به روانه شوه نو هیڅ یو ته به د هغے د منع کولو حق نه وُو، آن تردے پورے چه که د هغے په کوم قبیلے سره دُشمنی هم وه نو د عربو د منلی شوی قانون تر مخه هغوی په خپله علاقه باندې د تیریدو نه نه شو منع کولے۔

د قریشو خلق به په دے پریشانئ کښې پریوتل چه که چرے مونږه د مدینے په دے قافله باندې حمله اوکړه او هغوی مو مکے ته د راتلو نه منع کړل نو ټول ملک به په دے باندې واویلا جوړه کړی۔ د عربو هر سړے به اُووائی چه دا سرا سر زیاتے دے۔ د عربو د ټولو قبائیلو به دا خیال راشی چه مونږه د خانه کعبے مالکان جوړ شوی یو۔ هره قبیله به په دے شک کښې پریوزی چه بل کال له به څوک حجّ او عُمرے ته پریږدو او څوک به نه پریږدو، او کوم قبیله چه مونږ ته ناخوښه وی هغه به د بیت الله نه داسے منع کوو لکه څنګه چه نن د مدینے دا خلق منع کوو۔ دا به داسے غلطی وی چه په دے سره به ټول عرب زمونږ نه واوړی۔ لیکن که چرے مونږه محمد صلی الله علیه وسلم له د دومره لوئے قافلے سره خپل ښار ته په خیریت سره د داخلیدو اجازت ورکړو نو په ټول ملک کښې به زمونږه دبدبه

[1] دا ځائے د مدینے نه مکے طرفته تقریبًا شپږ میله لرے دے۔ اوس ورته خلق بِئرِ علی وائی او د مدینے جانان د دے ځائے نه د حجّ او د عُمرے احرام تړی۔

ختمه شی او خلق به وائی چه موږ ه د محمد صلی الله علیه وسلم نه اُویرید و. آخر دا چه د دې سوچ نه رو ستو د هغوی جاهلی ضد په هغوی باندې غالب شو او هغوی د خپل عزت د خاطره دا فیصله او کړ چه په هیڅ قیمت باندې دا قافله موږ ه خپل ښار ته نه پریږدو.

رسول الله صلی الله علیه وسلم د بنی کعب قبیلې یو سړے د مخبر په حیثیت مخکښې لیږلے وُو چه هغه نه د قریشو د ارادو او د هغوی د تیارۍ خبر په وخت باندې ورکوی. هرکله چه هغه عُسفان[1] ته اُورسید و نو هغه راغے او نبی[ؐ] له ئے اطلاع ورکړه چه د قریشو خلق ښه د تیارۍ سره ذی طُوی[2] نومې ځائے ته را رسیدلی دی او خالد بن ولید ئے د دوه سوه سورو سره کُراع الغمیم[3] طرفته مخکښې لیږلے د دې د پاره د دے چه ستاسو لاره بنده کړی. د قریشو کار دا وُو چه په څه طریقه د نبی[ؐ] د ملګرو سره چیړ چاړ اوکړی او هغوی ځان ته اُوقهروی او بیا که جنګ اوشی نو په ټول ملک کښې دا مشهوره کړی چه دا خلق په اصل کښې د جنګ د پاره راغلی وُو، خو بهانه ئے د عُمرے کړې وه او احرام ئے د دوکې د پاره تړلے وُو.

رسول الله صلی الله علیه وسلم په دې[4] اطلاع سره فوراً لاره بدله کړه او په یوه سخته لار باندې ډیر په سختۍ سره د حدیبیې مقام ته اُورسید و چه بالکل د حرم په سرحد باندې پروت وُو. دلته د بنی خُزاعه سردار بُدیل بن ورقاء د خپلې قبیلې د یو څو کسانو سره نبی[ؐ] له راغے او تپوس ئے تری اوکړو چه تاسو د څه غرض د پاره راغلی یئ؟ نبی[ؐ] ورته اُوفرمائیل چه موږ[5] د چا سره جنګ له نه یو راغلی، صرف د بیت الله زیارت او د هغے نه چار چاپیره طواف کول زموږ ه غرض دے. هغوی لاړل او هم دا خبره ئے د قریشو سردارانو ته اوکړه. او دا مشوره ئے ورله ورکړه چه د حرم د زیارت کونکو لاره مه بندوی. لیکن هغوی په ضد ټینګ ودریدل او د احابیش سردار حُلَیس بن عَلقَمه[6] ئے نبی[ؐ] ته اُولیږلو چه هغه واپس تللو ته تیار کړی. د قریشو د سردارانو مقصد دا وُو چه هرکله محمد صلی الله علیه وسلم د هغه خبره اُونه منی نو هغه به تری خفه شی او واپس به راشی او بیا به د احابیش ټول طاقت زموږ سره وی. خو چه کله هغه راغے او په خپلو سترګو ئے اُولیدل چه ټولے قافلے احرام تړلے دے. د هَدی اُوښان ئے غاړو ته ولاړ دی چه په غاړه کښې ئے پټې تړلے دی او دا خلق جنګ له نه بلکه د بیت الله طواف له راغلی دی نو هغه د نبی[ؐ] سره

---

[1] دا ځائے د مدینې نه د مکې په لار د مکې نه تقریباً د دوه ورځو په فاصله لرے دے (یعنی د اُوښ په سورلۍ باندې د دے ځائے نه مکې ته په رسیدو کښې دوه ورځے لږی.

[2] د مکې نه بهر د عُسفان په لاره باندې یو ځائے دے.

[3] د عُسفان نه آته میله لرے مکې طرفته.

[4] د جدے نه چه مکې ته کوم سړک تللے دے په هغه سړک باندې دا ځائے ټیک هلته دے د کوم ځائے نه چه د حرم حدُونه شروع کیږی. اُوس ورته شُمیسی ویئلے کیږی د مکې نه تقریباً دیارلس میله لرے دے.

[5] دا یو څو قبائیل وُو چه د مکې په اطرافو کښې اُوسیدل او د قریشو سره ئے حلیفانه تعلقات وُو.

څه خبری اُونه کړې او سیده مکې ته واپس لاړو او د قریشو سردارانو ته ئې صفا صفا اوویل چه داخلق د بیت الله شریف عظمت یعنی لوئی والے منی او د بیت الله زیارت له راغلی دی. که تاسو دوئ منع کوئ نو احابیش به په دے کار کښے ستاسو سره ملګرتیا هرګز نه کوی. مونږ د دے د پاره ستاسو حلیفان نه یو جوړ شوی چه تاسو به حرمتونه د خپرلانی کوئ او مونږ به درسره په هغې کښې مرسته کوو.

بیا د قریشو د طرفنه عُروه بن مسعود ثقفی راغے او هغه په خپل تر کښے ډیرے کوز پاس خبری اوکړ چه رسول الله صلی الله علیه وسلم دے ته اماده کړی چه هغه مکې ته د داخلیدو د ارادے نه منع شی، لیکن نبیؐ هغه له هم هغه جواب ورکړو کوم چه هغه د بنی خُزاعه سردار له ورکړے وُو چه مونږه د جنګ په اراده نه یو راغلی بلکه د بیت الله په تعظیم کښے ډیوے دینی فریضے ادا کولو د پاره راغلی یو. واپس چه عُروه لاړو نو د قریشو خلقوته ئې اُوویل چه زهٔ د قیصر او د کسریٰ او د نجاشی دربارونو ته هم تلے یم، لیکن په خدائے م دِ قسم وی، ما فُلیدل چه د محمدؐ ملګری د محمد (صلی الله علیه وسلم) څنګه قدر کوی داسے قدر ما د لویو لویو بادشاهانو هم نه دے لیدلے. د هغوئ خو دا حال دے چه محمدؐ اودس کوی نو د هغه ملګری (اصحابان) د اُوبو یو څاڅکے په زمکه پریوتو ته نه پریږدی او تولے په خپل بدن او کپړو پورے مږی. اُوس تاسو خپله سوچ اوکړئ چه ستاسو مقابله د چا سره ده -

د اَستاذو د تلو راتلو او د هغوئ د خبرو اترو په دوران کښے قریشو بار بار دا کوشش کولو چه پټ په پټه د نبیؐ په کیمپ بانډې حمله اوکړی او صحابه کرام په غُصه کښے راولی او په څه طریقه د هغوئ د لاسه څه کار اوکړی چه د هغے نه د جنګ بهانه جوړه شی. لیکن هر ځل د صحابو د صبر او د تابوتوجه، او د نبیؐ د حکمت او هوښیارتیا په وجه د هغوئ ټول تدبیرونه ناکام شول. یو ځل د هغوئ څلویښت پنځوس کسان د شپے راغلل او د مسلمانانو په کیمپ بانډې ئې کانړی او غشی وَرول شروع کړل صحابو هغه ټول راَاُونیول او نبیؐ کریم ته ئې پیش کړل، لیکن هغه هغوئ ټول پریښودل. په بله موقعه کښے د تنعیم[1] د طرفنه اتیا کسان عین د سحر د مانځه په وخت کښے راغلل او ناساپه ئې حمله اوکړه. دوئ هم اُونیوے شو لیکن نبیؐ هغوئ هم پریښودل - په دے طریقه به د قریشو هر کاراو هر تدبیر ناکامیږی و.

آخر دا چه نبیؐ پخپله د خپل طرفنه حضرت عثمانؓ د اَستاذی په حیثیت مکې ته اولیږو او د هغه په ذریعه ئې د قریشو سردارانو ته دا پیغام اولیږو چه مونږه جنګ له نه یو راغلی بلکه د زیارت د پاره د هدی سره راغلی یو، چه طواف او قربانی اوکړو واپس به ځو. لیکن هغوئ دا خبره اونه منله او حضرت عثمانؓ ئې په مکه کښے منع کړو. په دے دوران کښے دا خبر خور شو چه حضرت عثمانؓ وژلے شوے دے، او هغه چه واپس رانغے نو د مسلمانانو دا یقین شو چه دا خبر رښتیا دے. اُوس د زیات صبر څه

---

[1] دا مکې ته نزدے د حرم د حدونو نه بهر یو مقام دے. د مکې خلق عام طور د عُمرے کولو د خاطره دے مقام ته ځی او احرام تړی او بیا واپس ځی او عُمره ادا کوی۔

موقع نه وه، مکے ته د ننوتلو خبره خو بېله وه، د هغې د پاره د طاقت د استعمالولو خيال هرګز نه وو. خو چه کله خبره د استاذی (یعنی د سفير) وژلو ته اورسیده نو بیا خو د دې نه سوا بله څه چاره پاتې نه شوه چه مسلمانان د جنګ د پاره تيار شی. د اوجه وه چه رسول الله صلی الله علیه وسلم خپل ټول ملګری راجمع کړل او د هغوئ نه ئې په دې خبرې پخه وعده واخستله چه اوس به مونږ د دې ځائې نه د مرګه پورې نه روستو کیږو. د موقعې باريکوالی چه په نظر کښې وی نو سړی ته پته لګی چه دا څه معمولی وعده نه وه. مسلمانان صرف څوارلس[۱۴۰۰] سوه وو او د سامانِ جنګ نه بغير راغلی وو. د خپل مرکز نه دوه نیم سوه میله لرې، بالکل د مکې په سرحد باندې ديره شوی وو چه هلته پرې دشمن بنه د پوره طاقت سره حمله کولې شوه. او د څوا و شا علاقې نه ئې هم خپلې ملګری قبيلې راوستلې شوې او هغوئ ئې راګيرولې شو. کړې باوجود د یو سړی نه سوا ټول له قافله د نبی صلی الله علیه وسلم په لاس باندې د مرګ جنګ وعده ته بنه په راستئ سړ تيار شوه. د دې خلقو د ایمان په اخلاص باندې او د خدائې په لار کښې د سرقربانولو د دې نه زیات بل غټ ثبوت څه کیدې شی. دا هغه وعده ده چه د بيعتِ رضوان په نوم د اسلام په تاريخ کښې مشهوره ده.

روستو پته اولګیده چه د حضرت عثمان رضی الله عنه د قتل کولو خبر غلط وو. حضرت عثمان رضی الله عنه پخپله هم واپس راغې او د قريشو د طرفه د سهيل بن عمرو په مشرئ کښې يوه ډله هم د صُلحې د خبرواترو د پاره د نبی صلی الله علیه وسلم کيمپ ته راورسیده. اوس قریشو خپل دا ضد پرېښودې وو چه هغوئ به نبی صلی الله علیه وسلم او د هغه ملګری مکې ته هډو پرې نږدی. البته د خپل عزت بچ کولو د پاره هغوئ په دې خبره ټينګ وو چه مسلمانان دِ سکال واپس لاړ شی، او بل کال له د عُمرې د پاره راتلې شی. د اوږدو خبرو نه روستو چه په کومو شرطونو صلح نامه اولیکلې شوه هغه شرطونه دا وو.

(۱) د لسو کالو پورې به د دواړو ډلو په مينځ کښې جنګ بند وی، او د يو بل خلاف به په پټه يا په ښکاره هيڅ قسم څه کارروائی نه کيږی.

(۲) په دې دوران کښې که د قريشو يو سړې د خپل سرپرست د اجازت نه بغير او تښتيدو او محمد صلی الله علیه وسلم له راغې نو هغه به تاسو واپس کوئ، او که ستاسو د ملګرو نه څوک قريشو له راغې نو هغه به هغوئ نه واپس کوی.

(۳) د عربو په قبائيلو کښې چه کومه قبيله د کوم ډلې سره حليف جوړيدل غواړی او په دې معاهده کښې شامليدل غواړی نو هغې ته به د د اسې کولو اختيار وی.

(۴) محمد صلی الله علیه وسلم به سکال واپس ځی او بل کال له به د عُمرې د پاره راځی او صرف درې ورځې به په مکه کښې تيروی. خو په دې شرط چه د ځان سره به صرف يوه يوه توره راوړی او د جنګ سامان به د ځان سره نه راوړی. په دې درې ورځو کښې به د مکې خلق هغوئ ته ښار خالی کوی. (د پاره د دې چه جنګ جګړه او نه شی). ليکن واپس چه ځی نو د دې ځائې ير سړې به هم د ځان سره

نۀ بوځي.

څه وخت چه دَدے معاهدے دَ شرطونو فيصله کيده نو دَ مسلمانانو ټول لښکر ډير پريشانه وُو. هيڅوک په هغه نسکړه نۀ پوهيدل دَکومے ترمخه چه رسول الله صلی الله عليه وسلّم دا شرطونه قبلول. دَ هيڅا نظر دومره لرے نۀ تلېدو چه په دے صلح کښے دَ مسلمانانو کومه لويه خيروُو چه هغه ځلېده وه. دَ قريشو کافرانو دا خپله کاميابي ګنړله او مسلمانان په دے خفه وُو چه موږه دا ذليله شرطونه آخر ولے قبلو وُ. دَ حضرت عمرؓ غوندے پوهه انسان هم دا حال وُو چه هغه وئيل چه دَ مسلمانيدو نه روستو هيڅکله زمانه په له شک نۀ وُو راغلے، ليکن په دے موقعه زۀ هم دَدے نه محفوظ پاتے نۀ شوم. هغه ډير په بے قراري سره دَ حضرت ابوبکرؓ خواله لاړ او ورته ئے اُووئيل "آيا حضرتؐ دَ الله رسول نۀ دے؟ آيا موږ مسلمانان نۀ يُو؟ آيا دا خلق مشرکان نۀ دي؟ نو آخر دَ خپل دين په معامله کښے موږ دا ذلت ولے قبول کړو؟" هغه ورته اُووئيل چه "اے عمره! هغه دَ الله رسول دے او الله به هغه هرګز نۀ ضائع کوي." بيا ترے صبر اُونۀ شو نو لاړو او هم دا پوښتنه ئے پخپله دَ رسول الله صلی الله عليه وسلم نه هم اوکړله او نبيؐ ورله هم هغسے جواب ورکړو کوم چه ورله حضرت ابوبکرؓ ورکړے وُو." روستو بيا حضرت عُمرؓ ډيره موده په هغه خبرو اترو باندے شرمنده وُو کومے چه هغه په هغه موقعه باندے دَ رسول الله صلی الله عليه وسلّم سره کړے وے، او صدقے به ئے ورکولے او نفلونه به ئے کول چه الله تعالی هغه ته معافي اوکړي.

په دے معاهده کښے خلق په دوو خبرو دَ ټولو نه زيات خفه وُو. يو، دويم نمبر شرط وُو، چه خلقو به دَ هغے په حقله وئيل چه دا ښکاره دَ بے انصافۍ شرط دے. که دَ مکے نه را تښتيدونکي خلق موږ واپس کوو نو دَ مدينے نه را تښتيدونکي خلق هغوئي ولے نۀ واپس کوي؟ نبيؐ ورته دَ دے په جواب کښے اُوفرمائيل چه څوک زموږ نه اُوتښتي او هغوي له لاړ شي نو آخر هغه زموږ دَ څه کار دے؟ الله دِ موږه دَ هغه نه لرے اُوساتي. او څوک چه دَ هغوي نه را اُوتښتي او موږ له راشي هغه که موږه واپس کړو نو الله به هغه له دَ خلاصي څه يو شکل پيدا کړي. دويم دَ خفګان څيز څلورم شرط وُو. مسلمانانو دا ګنړله چه دَدے مطلب دا دے چه ګنه موږه دَ ټول عرب په مخکښے په ناکامۍ سره واپس ځو. په دے دَ پاسه به دا خبره هم په زړونو کښے را اوچتيده چه نبيؐ خو په خوب کښے دا ليدلي وُو چه موږه په مکّه کښے طواف کوو، ليکن دلته موږه دَ طواف کولو نه بغير دَ واپس تللو شرط منو. نبيؐ خلق پوهه کړل چه په خوب کښے خو دا سے صفا نۀ وُو وئيلي شوي چه موږه به خامخا په دے کال کښے طواف کوو. دَ صُلحے دَ شرطونو مطابق که سکال نۀ وي نو انشاء الله راتلونکي کال له به طواف اُوشي.

دَ يل کړي وُور دَ پاسه تيل په هغه وخت کښے وا وريدل کله چه دَ معاهدے صُلح ليکلے کيده، او دَ سهيل بن عمرو خپل ځوے ابو جندل چه مسلمان شوے وُو او دَ مکے کافرانو قيد کړے وُو، په څه طريقه راؤتښتيدو او دَ نبيؐ کيمپ ته را اُورسيدو. دَ هغه په خپو کښے بيړۍ پرتے وے او په بدن ئے دَ ووهلو

تکو لونبے بنکاریدلے۔ هغه نبیؐ ته فریاد اوکړو چه ما دَ بے ځایه قید نه خلاص کړه۔ صحابه کرامو چه دا حالت اولیدو نو ځان قابو کولو ورته ګران شو۔ لیکن سُهیل بن عمرُو اوویئیل چه صلح نامه اګرچه لیکلے شوی نهٔ ده، خو زمونږه او ستاسو په منځ کښے شرطونه فیصله شوی دی په دے وجه دا هلک دِ ما ته حواله کړے شی۔ رسول الله صلی الله علیه وسلم دَ هغه دلیل اومنو او ابوجندل ظالمانو ته حواله کړے شو۔

چه دَ صُلحے نه وزګار شو نو نبیؐ صحابو ته اُوفرمائیل چه اُوس هم دلته قربانیانے اوکړئ، سرُونه اُوخروئ او اِحرام ختم کړئ۔ لیکن هیڅوک دَ خپل ځائے نه اُونهٔ خوزیدو۔ نبیؐ درے ځله حکم اُوکړو لیکن په صحابو باندِ په هغه وخت کښے دا سے سخت غم او خفګان وُو چه هغوئ دَ خپل ځائے نه هم اُونهٔ خوزیدل۔ دَ نبیؐ دَ پیغمبرئ په ټوله زمانه کښے دَ دے یو موقعے نه سوا بله داسے موقعه هیڅکله نهٔ ده راغلے چه نبیؐ دِ صحابو ته حکم کړے وی او هغوئ دِ پرِعمل نهٔ وی کړے۔ نبیؐ ته په دِے باندِ سخت تکلیف اُورسیدو او خپلے خیمے ته لاړو او اُمّ المؤمنین حضرت اُمِّ سلمه ته ئے دَ خپل خفګان اظهار اُوکړو۔ هغے ورته اُووے چه ته په خاموشئ سره لاړ شه او خپل اُوښ ذبحه کړه او نائی راوُغواړه او خپل سر اُوخروه۔ بیا به خلق په خپله ستا پشان عمل کوی او پوهه به شی۔ چه کومه فیصله شوی ده هغه اوس بدلیدونکی نهٔ ده۔ بس هم دغسے اُوشوه، دَ نبیؐ کار ته چه خلقو اوکتل نو هغوئ هم قربانیانے اوکړے، سرُونه ئے اُوخرول یا ئے ویښته واړه کړل او اِحرام ئے مات کړو۔ لیکن زړونه ئے دَ غم نه ډک وُو۔

بیا چه کله دے قافلے په زړهٔ کښے دَ حُدیبیئے صُلحے خپله شکست او ذلّت ګنړلو او مدینے ته واپس روانه وه، نو په هغه وخت کښے په ضَجنانؐ نومے ځائے کښے (یا دَ ځینو خلقو دَ وینا مطابق په کُراع الغَمِیم کښے) دا سورة نازل شو، چه پکښے مسلمانانو ته اُوویئیلے شو چه دا کومه صُلحه تاسو دَ خپل ځان دَ پاره شکست ګنړئ، دا په اصل کښے لویه فتحه ده - دَ دے سورة دَ نازلیدو نه روستو نبیؐ مسلمانان راجمع کړل او ورته ئے اُوفرمائیل چه نن په ما باندِ هغه څیز نازل شوے دے چه هغه زما دَ پاره دَ دُنیا وما فیها نه زیات قیمتی دے۔ بیا دا سورت نبیؐ تلاوت کړو او خاص طور حضرت عُمرؓ ئے رااُوغوښتو او هغه ته ئے واورولو ځکه چه هغه دَ ټولو نه زیات خفه وُو۔

اګرچه مؤمنان خو دَ الله تعالیٰ دَ دے سورة په اَوریدو سره مطمئن شوی وُو، لیکن څه زیاته موده لا نهٔ وه تیره شوی چه دَ دے صُلحے فائدے په ښکاره کیدو شروع شوے آن تر دے پورے چه هیڅوک ته په دے خبره کښے شک پاتے نهٔ شو چه واقعی دا صُلحه یو عظیم الشانه فتحه وه -

(۱) په دے کښے په اول ځل په عربو کښے دَ اسلامی ریاست وجود باقاعده اُومنلے شو۔ دَ دے نه مخکښے دَ عربو په نظر کښے محمد صلی الله علیه وسلم او دَ هغه دَ ملګرو حیثیت دَ قریشو او دَ عربو دَ قبائیلو خلاف دَ یو بغاوت کونکی ډلے وُو او هغوئ دَ رورولئ نه بهر (Out Law) ګنړلے شو۔ اُوس په خپله

---

سله دَ مکے نه تقریباً یخیشت میله لرے یو ځائے دے۔

قریشو دَ هغوئ سره معاهده اوکړه او دَ اسلامي سلطنت چه په کومو علاقو قبضه وه په هغې باندې دَ هغوئ اقتدار اُومنو او دَ عربو دَ قبائیلو دَ پاره دا دروازه هم پرانستې شوه چه په دے دواړو سیاسي طاقتو نو کښې هغوئ دَ چا سره دَ حلیف جوړېدو وعده کوي نو کولے شي.

(۲) قریشو چه دَ مسلمانانو دَ پاره دَ بیت الله شریف دَ زیارت کولو حق اُومنو دا ئے چه هغوئ پخپله دا خبره هم اُومنله چه اسلام څه بے دیني نه ده، لکه څنګه چه به هغوئ دَ دوسه پورے وئیل، بلکه دَ عربو دَ منلوشو دینو نو نه یو دین دے او دَ نورو عربو پشان دَ دے دین پیروکاران هم دَ حج او دَ عُمرے کولو حق لري. په دے سره دَ عربیانو دَ زړونو هغه نفرت کم شو کوم چه دَ قریشو دَ پروپیګنډے په وجه دَ اسلام خلاف را پیدا شوے وُو.

(۳) دَ لسو کالو دَ جنګ بندئ په معاهده سره مسلمانانو ته اَمن حاصل شو او هغوئ دَ عربو په خوا ؤ علاقه کښې خواره شو او دومره په تیزئ سره ئے اِسلام خور کړو چه دَ صُلح حُدیبیې نه مخکښې پوره په نولسو کالو کښې دومره کسان مسلمانان شوي نه وُو لکه څومره چه دَ دے نه روستو په دوه کاله کښې دننه مسلمانان شو. دا دَ دے صُلحے برکت وُو چه یا خو هغه وخت وُو چه دَ حدیبیې په موقعه باندې دَ نبي سره صرف څوارلس سوه کسان وُو یا دوه کاله روستو چه کله رسول الله صلی الله علیه وسلم دَ قریشو دَ وعدے دَ ماتولو په وجه په مکه باندې حمله اوکړه نو لس زره کسان دَ هغه سره ملګري وُو.

(۴) دَ قریشو دَ طرفه چه کله جنګ بندي او شوه نو بیا ئې ته دا موقعه ملاؤ شوه چه دَ خپلے قبضے په علاقه باندې اسلامي حکومت په ښه شان سره محکم کړي او اسلامي قانون جاري کړي او مسلمانانو له دَ ژوند تیرولو یوه مکمله نقشه ورکړي. دا هغه لوئ نعمت دے چه دَ دے په حقله الله تعالیٰ دَ سورة مائدے په آیت ۳ کښې فرمائي چه "نن ما ستاسو دین ستاسو دَ پاره مکمل کړے دے او خپل نعمت مې په تاسو تمام کړے دے او ستاسو دَ پاره مې اسلام ستاسو دَ دین په حیثیت سره قبول کړے دے". (دَ تشریح دَ پاره اوګوره تفهیم القرآن اول جلد، دیباچه دَ سورة مائدے او حاشیه ۱۵).

(۵) دَ قریشو سره دَ صُلحے کولو نه روستو چه دَ جنوب دَ غاړے نه اطمینان نصیب شو نو دَ دے دا فائده هم اُوشوه چه مسلمانانو دَ عربو دَ شمالي او وسطي علاقے ټول مخالف طاقتونه په آسانئ سره تابع کړل. دَ صُلحے حدیبیې صرف درے میاشتے شوي وے چه دَ یهودیانو دَ ټولو نه لوئ مرکز یعني خیبر فتح شو او دَ هغې نه روستو فدک، وادی القری، تیما، او دَ تبوک یهودي کلي دَ اسلام ما تحت شول. بیا دَ عربو دَ وسطي علاقے هغه ټول قبیلے هم تابع شوے دَ کومو چه دَ یهودو او دَ قریشو سره دوستانه وه. په دا شان دَ حدیبیې دَ صُلح سره په دوه کاله کښې دننه په عربو کښې حالات دومره بدل شو چه دَ قریشو او دَ مشرکانو طاقت کم شو او دَ اسلام غلبه یقیني شوه.

دا وُو هغه برکتونه چه مسلمانانو ته دَ هغې صلحے په وجه حاصل شو چه هغه مسلمانانو خپله ناکامي او قریشو خپله کامیابي ګڼړله. په دے صلحه کښې چه مسلمانانو دَ ټولو نه زیات په کوم څیز خفه شوي وُو، او چه قریش پرے دَ ټولو نه زیات خوشحاله شوي وو هغه دا وُو چه دَ مکے نه څوک مدینے ته

اُو تښتي هغه به واپس کيدے شي او چه د مديني نه څوک مکے ته اُو تښتي هغه به نشي واپس کيدے۔
ليکن لږه موده شوي وه چه دا شرط هم د قريشو خلاف شو او په تجربے سره ثابته شوه چه د رسول الله صلي الله عليه وسلم د زيرکتيا نظر د يرلرے لګيد و څکه ئے دا شرط قبول کړے وُو. د صلحے نه پوڅو ورځے روستو د مکے نه يو مسلمان ابو بصير د قريشو د قيد نه اُو تښتيدو او مدينے ته اُورسيدو. قريشو د هغه د واپس کولو مطالبه اُوکړه او نبي ﷺ د معاهدے مطابق هغه، هغه خلقو ته حواله کړو څوک چه د هغه د نيولو د پاره د مکے نه رااستولے شوي وُو. ليکن مکے ته چه تللو په لاره کښے هغه بيا د هغوئي نه ځان آزاد کړو او د بحر احمر په غاړه په هغه لاره باندے کيناستو په کومه چه به د قريشو تجارتي قافلے تللے. بيا چه به کوم مسلمان د قريشو د قيد نه تښتيدو نو هغه به مدينے ته نه تلو بلکه ابو بصير ته به ئے ځان رسولو، آخر ترد ے پورے چه اوياکسان هلته جمع شو او هغوئي به د قريشو په قافلو باندے حملے کولے او هغوئي ئے ډيرتنګ کړل ـ آخر دا چه قريشو پخپله رسول الله صلي الله عليه وسلم ته درخواست اُوکړو چه دا خلق مدينے ته رااُوغواړه، او د حديبيے د معاهدے دا شرط پخپله ختم شو۔

چه دا تاريخي حالات په نظر کښے اُوساتلے شي او دا سورت اُولوستلے شي نو بيا پرے ښه پوهيدے شي۔

---

## سُورَةُ الْفَتْحِ مَدَنِيَّةٌ

اٰیَاتُهَا ۲۹ — رُكُوْعَاتُهَا ۴

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

اِنَّا فَتَحْنَا لَكَ فَتْحًا مُّبِيْنًا ﴿۱﴾ لِّيَغْفِرَ لَكَ اللّٰهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْۢبِكَ وَمَا تَاَخَّرَ وَيُتِمَّ نِعْمَتَهٗ عَلَيْكَ وَيَهْدِيَكَ صِرَاطًا مُّسْتَقِيْمًا ﴿۲﴾

اے نبیؐ، مونږه تاله ښکاره فتح درکړه[1] د پاره د دې چې الله ستا وړاندې روستو هره کوتاهي معاف کړي[2] او په تا باندې خپل نعمت تمام کړي[3] او تا ته نیغه لار اوښائي[4].

[1] د صُلحِ حدیبیې نه روستو چې کله د فتحې دا خوشخبري واورولې شوه نو خلق حیران وُو چې آخر د صُلحې ته فتحه څنګه ویلې کیدے شي. د ایمان په وجه د الله تعالیٰ د حکم منلو خبره خو بیله وه. لیکن د دې صُلحې د فتحې اړخ د چا په عقل کښې نه راتلو. حضرت عمرؓ دا آیت واوریدو او تپوس ئې اوکړو، اے د الله رسوله آیا دا فتحه ده؟ نبیؐ اُوفرمائیل هو (ابن جریر) یو بل صحابي راغے او هغه هم دا تپوس اوکړو، نبي اوفرمائیل ای والذی نفس محمد بیده انه لفتح." قسم دے په هغه ذات چې د هغه په لاس کښې د محمدؐ روح دے، یقیناً دا فتحه ده." (مُسند احمد، ابوداؤد) مدینې ته چې راورسیدل نو یو بل صاحب خپلو ملګرو ته اووئیل "دا څنګه فتح ده؟ مونږه د بیت الله د تلو نه منع کړے شو، زمونږه د قربانۍ اوښان هم مخکښې لاړ نه شول، رسول الله صلی الله علیه وسلم په حدیبیه کښې مجبوراً پاتے شو او د دے صُلحې په وجه زمونږ دوه مظلومان رونړه (ابوجندل او ابوبصیر) ظالمانو ته حواله کړے شو" دا خبره چې نبي صلی الله علیه وسلم ته اورسیدله نو وے فرمائیل "دا ډیره غلطه خبره شوې ده په حقیقت کښې دا ډیره لویه فتحه ده. تاسو د دُشمن کور ته اُورسیدئ او هغوئ درته سوال اوکړو چې سکال واپس لاړ شئ او راتلونکي کال له عمرے له راشئ. هغوئ ستاسو سره پخپله د جنګ بندولو او د صلحې کولو خواهش اوکړو حالانکه د هغوئ په زړونو کښې چې ستاسو د پاره کوم بغض دے هغه تاسو ته معلوم دے. الله تعالیٰ تاسو له په هغوئ باندې غلبه درکړې ده. وَلے ستاسو هغه ورځے هیرے شوے چې په اُحد کښې مو منډے وهلے او ما درته د روستو نه آوازونه کول؟ وَلے هغه ورځے مو هیرے شوے چې په جنګ احزاب کښې د هر طرفه دُشمنانو حملے کړې وې او زړونه خُلې ته راختلي وُو؟" (بیهقي په روایت د عُروه بن زُبیر) لیکن څه زیاته موده نه وه تیره شوې چې دا خبره بالکل څرګنده شوه چې دا صلحه فتحه ده او هر خاص عام ته پته اولګیده چې واقعي د اسلام د فتحے شروع هم د صُلحے حدیبیې نه شوې وه. د حضرت عبد الله بن مسعودؓ، د حضرت جابر بن عبد اللهؓ او د حضرت براء بن عازبؓ، دریواړو نه تقریباً په یوه معنیٰ سره دا قول نقل کړے شوے دے چې "خلق د مکے فتحے ته فتحه وائي، حالانکه مونږ د اصلي فتحه

حدیبیې ته وایو" (بخاري، مُسلم، مُسند احمد، ابن جریر).

۲ـــه په کومه موقعه چه دا خبره وئیلے شوې ده هغه موقعه چه سړے په نظر کښې اُوساتی نو صفا معلومیږی چه دلته د کومو کوتاهیانو د معاف کولو ذکر دے د هغې نه مراد هغه کمے دے کوم چه د اسلام د کامیابۍ او ترقۍ د پاره په هغه کوششونو کښې پاتے شوے وُو کوم چه د رسول الله صلی الله علیه وسلم په مخرُنی کښې د تیرو نولسو کالو را مسلمانانو کولو. دا کمے د انسان په علم کښې نه راځی، بلکه د انسان عقل خو د دغه "قطعی طور عاجزه دے چه په هغه کوششونو کښې څه کمے بیا موهی. لیکن د الله تعالیٰ په نظر کښې چه د کمال کوم لوړ معیار دے د هغې په لحاظ سره په هغې کښې څه داسے کمے وُو چه د هغې په وجه مسلمانانو ته د عربو په مشرکانو باندې آخری فتحه دومره زر نه شوه حاصلیدے. د الله تعالیٰ د فرمان مطلب دا دے چه که چرے تاسو کېدے خامیانو سره کوشش کولے نو د عربو په تابع کولو کښې لا ډیره موده بکار وه، لیکن مونږ هغه ټولے کمزوریانې او کوتاهیانې معافې کړے او خالص په خپل فضل سره مو په حدیبیه کښې ستاسو د پاره د هغې فتحے او کامیابۍ دروازه پرانستله چه هغه د معمول مطابق ستاسو په خپلو کوششونو سره نه شوه نصیب کیدے.

دلته په دے خبره هم بنه ځان پوهه کول بکار دی چه د څه خاص مقصد د پاره یوه ډله کوم کوشش کوی او په هغه کوشش کښې څه خامیانې او کمزوریانې موجود وی نو د هغې د پاره د هغې ډلے مشرته مخاطع خبره کیږی. د دے مطلب دا نه وی چه هغه کوتاهیانې د هغه ډلے د مشر ذاتی کوتاهیانې وی. په اصل کښې هغه د هغه کوشش کمزوریانې وی چه یوه ډله ئے په مجموعی حیثیت سره کوی. لیکن خبره د ډلے مشرته کیږی چه ستاسو کار کښې دا کمزوریانې دی.

بیا هم چونکه خبره نیغ په نیغه رسول الله صلی الله علیه وسلم ته ده، او دا فرمائیلے شوی دی چه الله تعالیٰ ستا هره وړاندې او روستو کوتاهی معاف کړه، نو په دے وجه د دے عامو الفاظو دا مطلب هم دا اُوو توچه الله تعالیٰ د خپل پاک رسول ټولے کوتاهیانې (چه د هغه د لوړ مقام په لحاظ سره کوتاهیانې وے) اُو بخښلے. دا وجه وه چه کله به صحابو نبی کریم اولیدو چه په عبادت کښې دیرے سختے برداشت کوی نو عرض به ئے کولو چه ستاخو وړاندې روستو ټولے کوتاهیانې معاف شوے دی، نو بیا ولے په خپل ځان دومره سختی تیروئے؟ او نبی به ورته په جواب کښې فرمائیل: افلا اکون عبداً شکوراً. "آیا زهٔ دِ یو شکر گذار بنده جوړ نه شم؟ (احمد، بخاری، مُسلم، ابوداؤد).

۳ـــه د نعمت د پوره کیدو نه مراد دا دے چه مسلمان د هر خطره، د هر مخالفت او د بهرنی هر مداخلت نه محفوظ شی او د اسلامی نقشے مطابق د اسلامی حکمونو لاندې د ژوند تیرولو د پاره پوره آزادی او دا طاقت ورته هم نصیب شی چه هغه په دُنیا کښې د الله کلمه اُوچته کړے شی. د کفر او د نافرمانۍ هغه غلبه چه د پروردګار د بندګۍ په لار کښې خنډ وی او د الله د کلمے د اُوچتولو په کوشش کښې رکاوټ وی، د مومنانو د پاره د تیرولو نه غټ مصیبت دے چه قرآن ورته "فتنه" وائی. د دے فتنے نه چه مومنان خلاص شی او یو داسے دارالاسلام ورته ملاؤ شی چه په هغې کښې د الله پوره دین په پوره پوره جاری وی، او ورسره هغوی ته داسے ذریعے هم په لاس ورشی چه د هغې په وجه هغوی د دنیا په زمکه د

وَّيَنۡصُرَكَ اللّٰهُ نَصۡرًا عَزِيۡزًا ۝۳ هُوَ الَّذِىۡۤ اَنۡزَلَ السَّكِيۡنَةَ فِىۡ قُلُوۡبِ الۡمُؤۡمِنِيۡنَ لِيَزۡدَادُوۡۤا اِيۡمَانًا مَّعَ اِيۡمَانِهِمۡ ؕ وَلِلّٰهِ جُنُوۡدُ السَّمٰوٰتِ وَالۡاَرۡضِ ؕ وَكَانَ اللّٰهُ عَلِيۡمًا حَكِيۡمًا ۝۴

او تاله زبردست امداد درکړي.[۵] هم هغه ذات دے چه د مومنانو په زړونو کښے ئے سکینت نازل کړو[۶] د پاره د دے چه هغوئ د خپل ایمان سره یو ایمان بل زیات کړي.[۷] د زمکے او د آسمانونو ټول لښکرے د الله په قدرت کښے دي او هغه په هر څه پوهه[۸] او د حکمت خاوند دے.[۹] (هغه دا کار د دے د پاره کړے دے)

کفر او د نافرمانئ په ځائے د ایمان او د تقوی حکومت جاری کړے شي، نو دا به هغوئ باندے د الله نعمت پوره کیدل دي. دا نعمت چونکه مسلمانانو ته د رسول الله صلی الله علیه وسلم په ذریعه حاصل شوے وو، نو په دے وجه الله تعالی نبی ته فرمائی چه مونږ دا په تا باندے خپل نعمت پوره کول غوښتل نو ځکه مو دا فتحه تاله درکړه.

[۴] دلته رسول الله صلی الله علیه وسلم ته د نیغ لار ښودلو مطلب د فتحے او د کامیابئ لاره ښودل دي یعني د دے نه مراد دا دے چه الله تعالی د حدیبیے په مقام کښے د صلحے دا معاهده د مسلمانانو او د کافرانو په مینځ کښے اوکړه نو د نبی د پاره ئے یوه داسے لار هواره کړه او یو داسے تدبیرئے ورته اوښودو چه په هغے سره هغه د اسلام مخالف ټول طاقتونه لاندے کړي.

[۵] د دے ترجمه دا هم کیدے شي چه "تاله بے مثاله امداد درکړی". په اصل کښے لفظ نَصۡرًا عَزِيۡزًا استعمال شوے دے. د عزیز معنی زبردست هم ده او بے مثاله هم ده. د اولے معنی په لحاظ سره د دے فقرے مطلب دا دے چه د دے صلحے په ذریعه الله تعالی ستا داسے مدد کړے دے چه د هغے سره به ستا دښمن عاجزه شي. او د دویمے معنے په لحاظ سره د دے مطلب دا دے چه د امداد کولو داسے عجیبه طریقه ډیره کمه کومه اختیار کړے شوې ده چه په ظاهره کوم څیز خلقو ته هسے د یو بل د رضا یوه صلح نامه ښکاریدو په حقیقت کښے هغه یوه فیصله کن فتحه جوړیدونکی وه.

[۶] "سکینت" په عربئ ژبه کښے آرام او اطمینان او د زړه مضبوطیا ته وائی، او دلته الله تعالی د مومنانو په زړه کښے سکینت نازلولو ته د هغے فتحے یو اهم سبب وائی کومه چه د حدیبیے په مقام کښے اسلام او مسلمانانو ته نصیب شوه. د هغه وخت په حالاتو باندے چه سړے لږ شان غور اوکړي نو دا خبره ورته ښه معلومه شي چه هغه کوم قسم سکینت وو چه په هغه ټوله زمانه کښے د مسلمانانو په زړونو کښے نازل کړے شو او هغه څنګه د دے فتحے سبب جوړ شو. په کوم وخت کښے چه رسول الله صلی الله علیه وسلم د عمرے د پاره مکے معظمے ته د تللو اراده ظاهره کړه، که چرے په هغه وخت کښے په مسلمانانو یره راغلے وے او د منافقانو په شان ئے دا سوچ شروع کړے وے چه دا خو ښکاره د مرګ خلے له ورتلل دي، یا په لاره چه کله دا خبر ملاؤ شو چه کافران جنګ ته تیار شوی دي، که په هغه

لِّيُدْخِلَ الْمُؤْمِنِيْنَ وَالْمُؤْمِنٰتِ جَنّٰتٍ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا

چه مومنان سړي او ښځې د همیشه اوسید ودپاره داسې جنتونو ته داخل کړي چه لاندې به تر

وختا کښې د مسلمانانو سره دا یره مکري شرې وے چه موږ به د جنګي سامان نه بغیر د دشمن مقابله ځکه اوکړو، او په دے وجه په هغوی کښې اړے ګړے شروع شوے وے، نو ښکاره خبره ده چه هغه فایده به هیڅکله نه وے حاصله شوے کومه چه په حدیبیه کښې حاصله شوه. بیا چه په حدیبیه کښې کله کافرانو مسلمانان د ورانګې تللو نه منع کړل، کله چه کافرانو د شپے شپے حملے شروع کړے او د مسلمانانو د غصے کولو کوشش ئے شروع کړو او کله چه د حضرت عثمان رضی الله عنه د شهادت خبر ملاؤ شو او کله چه ابو جندل د یو مظلوم په حیثیت مسلمانانو له راغے، په دے کښې هره یوه موقعه داسے وه چه که چرے مسلمانان په غصه کښې راغلے وے او هغه نظم او قاعده ئے ماته کړے وے کوم چه رسول الله صلی الله علیه وسلم قایم کړے وُو نو ټول کار به خراب شوے وے. او د ټولو نه زیاته خو دا چه کله رسول الله صلی الله علیه وسلم په هغه شرطونو باندې صُلحے کولو ته تیار شو په کومو شرطونو چه ټول مسلمانان سخت خفه وُو، که چرے په هغه وخت کښې هغوی د نبی نافرمانی کړے وے نو د حدیبیے لویه فتحه به په لویه شکست کښې بدله شوې وے. اوس دا خاص د الله فضل وُو چه په دے نازکو وختونو کښې مسلمانانو ته د رسول پاک په رهنمائی باندې، د حق دین په صداقت باندې او د خپل کار په حقانیت باندې پوره اطمینان نصیب شو. خاص په دے وجه هغوی د زړه په تسلی سره دا فیصله اوکړه چه د الله په لار کښې هر څه راپیښ شی هغه ټول موخوښ دی. خاص په دے وجه هغوی ډیرے ترهے، د غصے او د ناامیدۍ نه محفوظ پاتے شو. د دے په برکت د هغوی په کیمپ کښې پوره نظم او ضبط برقرار پاتے شو. او خاص هم په دے وجه هغوی د سخت خفګان باوجود د صُلحے شرطونه د رسول الله صلی الله علیه وسلم د فیصلے مطابق او منل. دا هغه سکینت وُو چه الله تعالیٰ د مومنانو په زړونو باندې نازل کړے وُو، او خاص د دے دا برکت وُو چه دا سخت خطرناک کار یعنی د عمره د پاره وتل د بهترینے کامیابۍ سبب جوړ شو.

ــــه یعنی یو ایمان خو هغه وُو چه د دے صُلحے د معاملے نه مخکښې هغوی ته حاصل وُو، او په هغې باندې زیات ایمان هغوی ته په دے وجه حاصل شو چه د دے صلحے په معامله کښې څومره سخت سخت آزمیښتونه مخے ته راتلل په هغې ټولو کښې هغوی د اخلاص، د تقوىٰ او د اطاعت په لار تینګ پاتے شو. دا آیت هم د هغې آیتونو نه دے چه د هغې نه دا معلومیږی چه ایمان یو مستقل حالت نه دے، بلکه په دے کښې زیاتے هم راځی او کمے هم. د اسلام قبلولو نه روستو د مرګ د وخته پورے مومن ته په ژوند کښې داسے آزمیښتونه مخے ته راځی چه په هغې کښې به هغه خامخا دا فیصله کوی چه آیا هغه د الله د دین د پاره خپل سر او مال، خپلو جذباتو او خواهشاتو، او خپلو د وختونو او فائدو قربانولو ته تیار دے او که نه. که په داسے هر آزمیښت کښې هغه د قربانۍ لار اختیار کړه نو د هغه ایمان زیاتیږی او ترقی کوی، او که مخ ئے واړو نو د هغه ایمان کمیږی، آن تر دے پورے چه یو وخت داسے هم راځی چه د

الْاَنْهٰرُ خٰلِدِیْنَ فِیْهَا وَ یُكَفِّرَ عَنْهُمْ سَیِّاٰتِهِمْ ؕ وَ كَانَ ذٰلِكَ عِنْدَ اللّٰهِ فَوْزًا عَظِیْمًا ۙ﴿۵﴾ وَّ یُعَذِّبَ الْمُنٰفِقِیْنَ وَ الْمُنٰفِقٰتِ وَ الْمُشْرِكِیْنَ وَ الْمُشْرِكٰتِ الظَّآنِّیْنَ بِاللّٰهِ ظَنَّ السَّوْءِ ؕ عَلَیْهِمْ دَآىِٕرَةُ السَّوْءِ ۚ وَ غَضِبَ اللّٰهُ عَلَیْهِمْ وَ لَعَنَهُمْ وَ اَعَدَّ لَهُمْ جَهَنَّمَ ؕ وَ سَآءَتْ مَصِیْرًا ﴿۶﴾

نهرونه بهیږی او چه د هغوئ گناهونه هغوئ نه معاف کړی ۱۰ ـــ د الله په نز دا لویه کامیابی ده ـــ او چه هغه منافقانو سړو او ښځو له او هغه مشرکانو سړو او ښځو له سزا ورکړی چه هغوئ د الله په حقله بدگمانی ساتی ۱۱ ـ د بدئ په چکر کښې هغوئ پخپله راغلل ۱۲ په هغوئ د الله غضب راغے او هغه په هغوئ لعنت اوکړو او د هغوئ د پاره ئے جهنم تیار کړو چه ډیر خراب ځائے د اوسیدو دے ـ

د سرې هغه ایمان هم په خطره کښې پریوزی د کوم په وجه چه هغه په اسلام کښې داخل شوے وُو ـ (د زیاتے تشریح د پاره اوکورئ تفهیم القرآن دویم جلد، د سورۃ انفال تفسیر، حاشیه ۲ ـ شلورم جلد، الاحزاب حاشیه ۳۸) ـ

۸ے مطلب دا دے چه د الله سره خو دا سے لښکرے دی چه هغه کله اوغواړی نو په هغے کافران تس نس کولے شی لیکن هغه د حکمت په وجه دا ذمه واری په مومنانو اچولی ده چه هغوئ د کافرانو په مقابله کښې کوشش اوکړی او د الله دین اوچت کړی ـ په دے سره د هغوئ درجے اوچتیږی او د آخرت کامیابی ورته نصیب کیږی لکه څنګه چه په وړاندې آیت کښې راځی ـ

۹ے په قرآن مجید کښې عام طور د مومنانو د اجر ذکر په مجموعی طور کیږی، نارینوا و زنانو ته د اجر ملاوید و ذکر جُدا جُدا نهٔ کیږی ـ لیکن دلته جُدا ذکر نه وے شوے نو د اکمان راپیدا کیدے شو چه شاید دا اجر یوازے د نارینو د پاره وی، نو ځکه الله تعالیٰ د مومنو زنانو په حقله جُدا ذکرا وکړو چه هغوئ هم د مومنانو نارینو سره شریکے دی ـ د دے وجه صفا ظاهره ده ـ چه کوم خُدا پرستو زنانو خپل خاوندان، ځامن، رونړه او پلاران د دے خطرناک سفر نه منع نهٔ کړل او ژړا الګولا ئے اونهٔ کړه او د هغوئ حوصلے ئے خرابے نهٔ کړے بلکه د هغوئ د حوصلو اوچتولو د پاره ئے هغوئ له دا دو ورکړو، هغوئ ئے د خپل کور، د خپل مال، د خپل عزت او د خپلو بچو د طرفه بے فکره کړل، هغوئ په دے خبره هم هیڅ واویلا اونهٔ کړه چه څوارلس سوه صحابه ناساپه روان شی او ټول کلے خالی کړی نو هسے نه چه د خوا و کافران او منافقان په موږ ډه حمله اوکړی، نو دا قسم خُدا پرستے زنانه که په خپلو کورو نو کښې ناستے هم وی خو یکاردی چه د جهاد په اجر کښې د خپلو نارینو سره یو شان شریکے وی ـ

۱۰ے یعنی د انسانی کمزورئ په وجه چه څه ګناهونه د هغوئ نه شوی وی هغه ورته معاف

وَلِلّٰهِ جُنُوْدُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ؕ وَكَانَ اللّٰهُ عَزِیْزًا حَكِیْمًا ﴿۷﴾ اِنَّاۤ اَرْسَلْنٰكَ شَاهِدًا وَّمُبَشِّرًا وَّنَذِیْرًا ﴿۸﴾ لِّتُؤْمِنُوْا بِاللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ وَتُعَزِّرُوْهُ وَتُوَقِّرُوْهُ ؕ وَتُسَبِّحُوْهُ بُكْرَةً وَّاَصِیْلًا ﴿۹﴾

د زمکے او د آسمانونو لښکرے خاص د الله په قدرت کښے دی او هغه زبردست دے او د حکمتونو خاوند دے[13]

اے نبیؐ، مونږه ته د شهادت ورکونکی،[14] د زیری ورکونکی، او د خبرداروونکی په حیثیت لیږلے ئے[15] د پاره د دے چه اے خلقو، تاسو په الله او د هغه په رسول ایمان راوړئ او د هغه ملګرتیا اوکړئ د هغه تعظیم او عزت اوکړئ او سحر ماښام د هغه تسبیح بیان کړئ[16]

کړی له جنّت ته د بوتلو نه مخکښے هغوئ د ګناهونو د هرا ثرنه پاک کړی، او جنت ته په داسے شان سرورشی چه هیڅ یو داغ د هغوئ په لمنه داسے نه وی چه د هغے په وجه هغوئ هلته شرمنده وی۔

[11] د مدینے د خوا ؤشا منافقانو خو په دے موقع داګمان وو، لکه څنګه چه ئے په آیت ۱۲ کښے وړاندې ذکر شوے دے، چه رسول الله صلی الله علیه وسلم او د هغه ملګری به د دے سفرنه واپس ژوندی رانشی. یاتے شو د مکے مشرکان او کافران، نو د هغوئ دا خیال وو چه هغوئ کښی د عمرے نه په منع کو سره رسول الله صلی الله علیه وسلم او د هغه ملګرو له کامیاب شکست ورکړو. دے دواړو ډلو چه دا هرڅه سوچ کړے وو په دے کښے په حقیقت کښے د الله تعالیٰ په حقله د هغوئ دا بدګمان وو چه هغه به د خپل نبیؐ امداد نه کوی او د حق او د باطل په دے جنګ کښے به باطل له په حق باندې د غلبے کولو آزادی ورکوی۔

[12] یعنی د کوم بدانجام نه چه هغوئ بچکیدل غوښتل او چه د هغے نه د بچکیدو د پاره هغوئ دا تدبیرونه کړی وو، هم په هغے کښے پخپله راګیر شو، او هم د هغوئ هغه خپل تدبیرونه د هغه انجام د رازیکولو سبب جوړ شو۔

[13] دلته دا خبره د یو بل مقصد د پاره بیان کړے شوې ده. په آیت نمبر۴ کښے هغه خبره د دے غرض د پاره بیان کړے شوې وه چه الله تعالیٰ د کافرانو مقابله د خپل فوق الفطری لښکرو په ذریعه اونه کړه بلکه د مومنانو په ذریعه ئے په دے وجه اوکړه چه هغه هغوئ له درجے اوچتول غوښتل او دلته دا خبره دوباره د دے غرض د پاره بیان کړے شوې ده چه الله تعالیٰ چاله سزا ورکول او غواړی نو هغه له د سزا ورکولو د پاره د خپلو بے شماره لښکرو نه چه کوم لښکر او غواړی هغه استعمالولے شی، په هیڅ کښے دا طاقت نشته چه په خپلو تدبیرونو سره د هغه سزا منع کړی۔

[14] شاه ولی الله صاحب د شاهد ترجمه "اظهار حق کننده" کړی ده او نور ترجمه کونکی د دے ترجمه "ګواهی ورکونکے" کوی. د شهادت په لفظ کښے دا دواړه مطلبونه شامل دی. د تشریح د پاره

إِنَّ الَّذِينَ يُبَايِعُونَكَ إِنَّمَا يُبَايِعُونَ اللَّهَ ۚ يَدُ اللَّهِ فَوْقَ أَيْدِيهِمْ ۚ فَمَن نَّكَثَ فَإِنَّمَا يَنكُثُ عَلَىٰ نَفْسِهِ ۖ وَمَنْ أَوْفَىٰ بِمَا عَاهَدَ عَلَيْهُ اللَّهَ فَسَيُؤْتِيهِ أَجْرًا عَظِيمًا ⑩



اے نبیؐ، کوم خلق چه ستا سره لوز (یعنی بیعت)[۱۷] کولو هغوئ په اصل کښے دَ الله سره لوز کولو. دَ هغوئ په لاس باندے دَ الله لاس وو۔[۱۸] اوس چه څوک دا لوز مات کړی نو دَ هغه دَ بے لوزئ سزا به دَ هغه په خپل ذات باندے وی، او چا چه هغه لوز پوره کړو کوم چه هغه دَ الله سره کړے دے[۱۹]، نو ډیر زر به الله هغه له لوئ اجر ورکړی۔ ع

اُوګوره تفهيم القرآن څلورم جلد، دَ سورة احزاب تفسير، حاشيه نمبر ۸۲۔

[۱۵] دَ تشریح دَ پاره اوګوره تفهيم القرآن څلورم جلد، دَ سورة احزاب تفسير، حاشيه ۸۳۔

[۱۶] څینو مفسرینو دَ تُعَزِّرُوْهُ او دَ تُوَقِّرُوْهُ ضمیرونه رسول الله صلی الله علیه وسلم ته ګرځولی دی، او دَ تُسَبِّحُوْهُ ضمیر ئے الله تعالیٰ ته ګرځولے دے۔ یعنی دَ هغوئ په نزد دَ آیت مطلب دا دے چه "تاسو دَ رسول ملګرتیا اوکړئ او دَ هغه تعظیم او عزت اوکړئ او سحر ماښام دَ الله تسبیح وائئ"۔ لیکن په یوه جمله کښے دوه جُدا جُدا ضمیرونه ویل، چه څه نزدے مناسبت ئے نه وی، صحیح نه معلومیږی۔ په دے وجه دَ مفسرینو یوے بلے ډلے ټول ضمیرونه الله تعالیٰ ته راګرځولی دی او دَ هغوئ په نزد دَ آیت مطلب دا دے چه "تاسو دَ الله ملګرتیا اوکړئ او دَ هغه تعظیم او عزت اوکړئ او سحر ماښام دَ هغه تسبیح بیان کړئ"۔

دَ سحر ماښام تسبیح بیانولو نه مُراد یوازے سحر ماښام نه دے بلکه هر وخت تسبیح بیانول دی۔ دا داسے ده لکه چه مونږ وایو چه فلانئ خبره په مشرق او مغرب کښے خوره شوی ده، نو دَ دے دا مطلب نه وی چه یوازے دَ مشرق او دَ مغرب خلقو ته دا خبره معلومه ده، بلکه دَ دے مطلب دا وی چه په ټوله دنیا کښے دا مشهوره شوی ده۔

[۱۷] اشاره ده هغه بیعت (یعنی لوز) ته کوم چه رسول الله صلی الله علیه وسلم دَ صحابه کرامو نه په هغه وخت کښے اخستے وُو کله چه هغوئ په مکه کښے دَ حضرت عثمانؓ دَ شهادت خبر واوریدو۔ دَ څینو روایتونو ترمخه دا لوز په مرګ باندے وُو او دَ څینو روایتونو مطابق لوز په دے خبره باندے وُو چه مونږ به دَ میدانِ جنګ نه نه تښتو۔ اولنئ خبره دَ حضرت سلمه بن اکوعؓ نه روایت کړے شوی ده، او دویمه خبره دَ ابن عمرؓ، جابر بن عبد الله او معقل بن یسار نه روایت کړے شوی ده۔ انجام دَ دواړو روایتونو یو دے۔ صحابه کرامو دَ رسول پاکؐ په لاس باندے لوز دَ دے خبرے کړے وُو چه که چرے دَ حضرت عثمانؓ دَ شهادت معامله صحیح ثابته شوه نو ټول به هم دلته په دے وخت کښے دَ قریشو سره جنګیږو او که مونږ

سَيَقُولُ لَكَ الْمُخَلَّفُونَ مِنَ الْأَعْرَابِ شَغَلَتْنَا أَمْوَالُنَا وَأَهْلُونَا فَاسْتَغْفِرْ لَنَا ۚ يَقُولُونَ بِأَلْسِنَتِهِمْ مَا لَيْسَ فِي قُلُوبِهِمْ ۚ قُلْ فَمَنْ يَمْلِكُ لَكُمْ مِنَ اللَّهِ شَيْئًا إِنْ أَرَادَ بِكُمْ ضَرًّا أَوْ أَرَادَ بِكُمْ نَفْعًا ۚ بَلْ كَانَ اللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرًا ﴿١١﴾

اے نبیؐ، په بانډې يشو عربيانو کښې چه کوم خلق روستو پاتے کړے شوي وُو اوس به هغوي ضرور تا له راځي او وائي به چه" مونږه خپلو مالونو او بال بچو مشغوله ساتلي وُو، ته زمونږه د پاره د بښنې دُعا وغواړه"[20] دا خلق په خپله ژبه هغه خبرې کوي چه د هغوي په زړونو کښې نه وي۔[21] دوي ته اُووايه"ښه، چه دا خبره ده نو څوک ستاسو په معامله کښې د الله د فيصلې د بندولو څه لږ اختيار هم لري که الله تاسره څه نقصان يا نفع در رسول اوغواړي؟ ستاسو د عملونو نه خو خاص الله خبردار دے۔[22] (ليکن اصل خبره هغه نه ده کومه چه تاسو وائي)۔

تول مړه شو، په دے موقع چونکه دا خبره هم يقيني نه وه چه حضرت عثمانؓ واقعي شهيد شوے دے او که ژوندے دے، نو ځکه رسول الله صلي الله عليه وسلم په خپله خپل يو لاس په بل لاس باندې کيښودو او د هغه د طرفنه ئے لوز اوکړو او په دے طريقه هغه ته دا لوئ عزت حاصل شو چه نبيؐ خپل لاس مبارک د هغه د لاس په ځائے مقرر کړو او هغه ئے په دے لوز کښې شريک کړو۔ نبيؐ چه د هغه د طرفنه په خپله لوز اوکړو نو د دے دا مطلب دے چه د نبيؐ په هغه باندې دا پوره اعتماد وُو چه که چرے هغه موجود وے نو يقيناً چه لوز به ئے کولے۔

[18] يعني چه په کوم لاس باندې خلقو په هغه وخت کښې لوز کولو د رسول د ذات لاس نه وُو بلکه د الله د نمائنده لاس وُو او دا لوز د رسول په واسطه سره په حقيقت کښې د الله سره کيدو۔

[19] دلته يوه باريکه نکته په نظر کښې ساتل پکار دي۔ د عربۍ د علم قاعدے مطابق دلته عَلَيْهِ اللهَ وئيل پکار وُو، ليکن دلته د دے علم قاعدے نه بدل عَلَيْهُ اللهَ وئيلے کيږي۔ علامه آلوسي د دې دوه وجې بيان کړي دي۔ يوه دا چه په دے خاص موقع باندې د هغه لوئ او بزرګ ذات شان ښکاره کول مقصد دي د چا سره چه دا لوز کيږي نو په دے وجه دلته د عَلَيْهِ په ځائے عَلَيْهُ زيات مناسب دے۔ دويم دا چه په عَلَيْهِ کښې "ه" په اصل کښې د "هُوَ" په ځائے ده او اصلي اعراب د دے پيښ وُو نه چه زير، نو په دے وجه د دے اصلي اعراب برقرار ساتل د وعدے او د لوز د خبرې سره زيات مناسبت لري۔

[20] دا د مدينې د خوا وشا د هغه خلقو ذکر دے چه هغوي ته رسول الله صلي الله عليه وسلم عمرے ته د يو ځائے د تلو دعوت ورکړے وُو، ليکن هغوي د ايمان د دعوے باوجود صرف په دے وجه د خپلو کورونو نه وُو وتلي چه هغوي ته خپل ځان خوږ وُو۔ د روايتونو نه معلوميږي چه دا د اسلم

بَلْ ظَنَنْتُمْ اَنْ لَّنْ يَّنْقَلِبَ الرَّسُوْلُ وَالْمُؤْمِنُوْنَ اِلٰۤى اَهْلِيْهِمْ اَبَدًا وَّزُيِّنَ ذٰلِكَ فِيْ قُلُوْبِكُمْ وَظَنَنْتُمْ ظَنَّ السَّوْءِ ۚۖ وَكُنْتُمْ قَوْمًۢا بُوْرًا ﴿۱۲﴾ وَمَنْ لَّمْ يُؤْمِنْ بِاللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ فَاِنَّاۤ اَعْتَدْنَا لِلْكٰفِرِيْنَ سَعِيْرًا ﴿۱۳﴾ وَلِلّٰهِ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ؕ يَغْفِرُ

بلکه تاسو دا خیال اوکړو چه رسول او مومنان به خپل کورونو ته هیڅکله واپس رانشی او دا خیال ستاسو زړونو ته ډیر ښه اولګیدو[۲۱] او تاسو ډیر خراب ګمانونه اوکړل او تاسو په زړه کښې سخت خراب[۲۲] خلق یئ.

کوم خلق چه په الله او د هغه په رسول باندې ایمان نه لری نو د داسې کافرانو د پاره مونږ د غورځنګ اور تیار ساتلے دے.[۲۳] د آسمانونو او د زمکې بادشاهی خاص الله لره ده. د هغه خپله خوښه ده

مُزینه، جُهَینه، غِفار، اَشجع، دِیل وغیره قبائیلو خلق وو.

[۲۱] د دې دوه مطلبونه دی. یو دا چه تاسو کله مدینې ته اُورسیځ نو دا خلق چه به اوس د خپلو نه تلو کوم عُذر پیش کوی هغه به هسې د دروغو بهانه وی، کنې نو هغوی ته په خپلو زړونو کښې معلوم ده چه هغوی ولې روستو پاتې شوی وو. دویم دا چه د الله د رسول نه بغیر د کوم معقول وجې نه یوازې د هغوی کارونو بهانې قرار ورکولے شی، او د دې غوښتل به د هغوی هسې د خُلے تش وینا وی - په اصل کښې هغوی نه په خپل کار شرمنده دی، نه ورسره دا فکر شته چه یئ د رسول په مکلرتیا نه کولو سره هغوی څه ګناه کړې ده، او نه ئې په زړونو کښې د بخښنې څه خیال شته، د هغوی خو دا خیال دے چه دې خطرناک سفر ته په نه تلو سره هغوی لویه هوښیاریا کړې ده. که چرې د هغوی سره واقعی د الله او د رسول د بخښنې څه فکر وے نو په کور کښې به ناست نه وو.

[۲۲] یعنی د الله فیصله خو به د هغه علم په بنیاد باندې وی کوم چه هغه ستاسو د عملونو د حقیقت په حقله لری. که ستاسو عمل د سزا مستحق وی او زه ستاسو د پاره د بخښنې دُعا وغواړم نو زما دا دُعا به تاسو د الله د سزا نه بچ نه کړی. او که ستاسو عمل د سزا مستحق نه وی او زه ستاسو په حق کښې د بخښنې دُعا ونه غواړم نو زما دُعا نه غوښتل به تاسو ته څه نقصان نه دررسوی. اختیار زما نه دے بلکه د الله دے او د هغه خُلے خبرې هغه له دکه نشی ورکولے. نو که زه ستاسو ظاهری خبره رښتیا هم اوګنړم او د هغې په وجه ستاسو په حق کښې د بخښنې دُعا اُو غواړم نو د دې هیڅ فائده نشته.

[۲۳] یعنی تاسو په دې خبره ډیر خوشحاله شوئ چه تاسو د هغه خطرے نه خپل ځان بچ کړو کوم خطرے له چه رسول او د هغه ملګری مومنان ورځی. ستاسو په نظر کښې دا ډیره هوښیارتیا کار وو. او تاسو له د دې خبرې په خوشحالیدو شرم هم نه درتلو چه رسول او مومنان یو داسې کار له روان دی چه د هغې نه به هغوی بچ نشی. د ایمان د دعوې کولو باوجود هم تاسو له په دې خمکان درنه رنځې بلکه

لِمَنْ يَّشَآءُ وَيُعَذِّبُ مَنْ يَّشَآءُ ۚ وَكَانَ اللّٰهُ غَفُوْرًا رَّحِيْمًا ﴿۱۴﴾
سَيَقُوْلُ الْمُخَلَّفُوْنَ اِذَا انْطَلَقْتُمْ اِلٰى مَغَانِمَ لِتَاْخُذُوْهَا
ذَرُوْنَا نَتَّبِعْكُمْ ۚ يُرِيْدُوْنَ اَنْ يُّبَدِّلُوْا كَلٰمَ اللّٰهِ ۚ قُلْ

چه څوک ئې معاف کوي او چاله سزا ورکوي، او هغه بخښونکے مهربانه دے.[۲۶]

څه وخت چه تاسو د غنيمت د مال حاصلولو د پاره روان شئ نو دا روستو پاتے کيدونکي خلق به تاته ضرور وائي چه مونږ هم پريږده چه درسره لاړ شو.[۲۷] دوی غواړي چه د الله فرمان بدل کړي.[۲۸] دوئ ته

خپل دا کار د رتنه وړ سينه معلوم شو چه تاسو خپل ځان د رسول سره په دے خطره کښے شامل نه کړو.

ف[۲۴] اصل الفاظ دي كُنْتُمْ قَوْمًا بُوْرًا. بُور جمع ده د بائر، او د بائر دوه معنے دي. يوه معنیٰ د هغه فاسد او خراب سړي چه د هيڅ بنه کار لائق نه وي، چه په نيت کښے ئے فساد وي. دويمه معنیٰ د هلاکيدونکے، خراب انجام والا، د تباهئ په لار باندې تلونکے.

ف[۲۵] دلته الله تعالیٰ په صفا تکو سره وائي چه څوک د الله او د هغه د دين په معامله کښے مخلص نه وي او چه څوک د آزمينت په وخت کښے د دين د پاره خپل سر او مال او د خپلو فائدو قربانول نه وي کوي نو هغوئ کافران دي او د ايمان نه خالي دي. ليکن خيال کوئ چه دا هغه کفر نه دے د کوم په وجه چه په دنيا کښے يو سړے يا يوه ډله د اسلام نه بهر کنړلے کيږي، بلکه دا هغه کفر دے چه د دے په وجه به هغه ته په آخرت کښے مومن نشي وپيژلے کيدے. د دے دليل دا دے چه د دے آيت د نازليدو نه روستو هم رسول الله صلى الله عليه وسلم هغه خلق، د کوموپه باره کښے چه دا آيت نازل شوے وو، د اسلام نه بهر او نه کنړل، او نه ئے د هغوئ سره هغه معامله او کړه کومه چه د کافرانو سره کيږي.

ف[۲۶] تر ډيره سخته خبره شوي ده او د هغے نه روستو دا ذکر دے چه الله بخښونکے مهربانه دے نو په دے کښے د نصيحت يوه باريکه شان نکته ده. د دے مطلب دا دے چه که چرے اوس هم تاسو د منافقت لار پريږدئ او د اخلاص لار موخپله کړه نو الله بخښونکے مهربانه دے. هغه به ستاسو مخکيني گناهونه معاف کړي او آئنده به ستاسو سره هغه معامله کوي چه د کومے تاسو د خپل خلوص په وجه مستحق يئ.

ف[۲۷] يعنى ډير زر هغه وخت راتلونکے دے چه دا کوم خلق نن د خطرے د وجه نه ستاسو سره د ملگرتيا کولو نه ډډه کوي، د دوئ چه کله تاسو وينئ چه تاسو يو داسے کار له روان يئ چه په هغے کښے فتحه آسانه ده او مال غنيمت پکښے ډير دے، نو په هغه وخت کښے به دوئ خپله رامنډې وهي او وائي به چه مونږه هم د ځان سره بوځه. دا وخت د حُد يبيئ د صلحے نه درے مياشتے روستو راغے څه وخت چه رسول الله صلى الله عليه وسلم په خيبر حمله او کړه او ډيره آسانئ سره ئے هغه فتحه کړو. په هغه وخت کښے هر سړي ته دا خبره صفا په نظر راتلله چه د قريشو سره د صُلحے کولو نه روستو اوس يواځے خيبر

لَّنْ تَتَّبِعُونَا كَذٰلِكُمْ قَالَ اللّٰهُ مِنْ قَبْلُ ۚ فَسَيَقُولُونَ بَلْ تَحْسُدُونَنَا ۚ بَلْ كَانُوا لَا يَفْقَهُونَ إِلَّا قَلِيلًا ﴿۱۵﴾ قُلْ لِّلْمُخَلَّفِينَ مِنَ الْأَعْرَابِ سَتُدْعَوْنَ إِلَىٰ قَوْمٍ أُولِي بَأْسٍ شَدِيدٍ تُقَاتِلُونَهُمْ أَوْ يُسْلِمُونَ ۖ فَإِنْ تُطِيعُوا يُؤْتِكُمُ اللّٰهُ أَجْرًا حَسَنًا ۖ

صفا اُووایه چه "تاسو زمونږ سره هرګز تلے نه شئ، الله مخکښے دا فرمائیلی دی." دوی به وائی چه "نه، بلکه تاسو زمونږ سره حسد کوئ." (حالانکه خبره د حسد نه ده) بلکه د اخلق په صحیح خبره ډیر کم پوهیږی. د روستو پاتے کیدونکو عربیانو ته بیا نو ته اُووایه چه "ډیر زر به تاسو د اسے خلقو سره د جنګ کولو د پاره را اُوبللے شئ چه هغوی ډیر زورور دی. تاسو به د هغوی سره جنګ کوئ یا به هغوی سلامی شی.[۳۰] په هغه وخت که چرے تاسو د جهاد حکم اُومنلو نو الله به تاسو له ښه اجر درکړی.

نه، بلکه د تیما، د فدك، د وادیُ القُرٰی، او د قبلی حجاز نور یهودیان د مسلمانانو د طاقت مقابله نشی کولے او دا ټول ګلی به د پخے میوے پشان د اسلامی حکومت په غیږ کښے را پریوزی. په دے وجه الله تعالٰی په دے آیتونو کښے رسول الله صلی الله علیه وسلم مخکښے خبردار کړو چه د مدینے د خوا وشا دا مطلب پرست خلق کله دا آسانے فتحے اُوینی نو په دے کښے به د حصے اخستلو د پاره را پاسی، لیکن ته هغوی له صفا جواب ورکړه چه په دے کښے به تاسو له د حصے اخستلو موقع هرګز نه درکړے کیږی، بلکه دا د هغه خلقو حق دے چه د خطرو په مقابله کښے سر قربانولو ته ورپاندے شوی وُو.

[۲۸] د الله د فرمان نه مُراد دا فرمان دے چه د نبیؐ سره به خیبر ته د تلو اجازت صرف هغه خلقو ته وی کوم چه حدیبیے ته د هغه سره تلی وُو او په بیعتِ رضوان کښے شریک شوی وُو. الله تعالٰی د خیبر مالِ غنیمت خاص د دے خلقو د پاره مخصوص کړے وُو لکه څنګه چه وړاندے په آیت ۱۸ کښے صفا حکم شوے دے.

[۲۹] " الله مخکښے دا فرمائیلی دی" د دے الفاظو نه په مطلب اخستلو کښے خلق غلط شوی دی چه ګنی د دے آیت نه به مخکښے څه حکم دا سے را غلے وی چه دلته هغے ته اشاره شوی ده، او چونکه په د سورة کښے د غسے څه حکم د دے آیت نه مخکښے نه ملاویږی نو په دے وجه هغوی د قرآن مجید په نورو ځایونو کښے د دے لټون شروع کړو. اَنْ ترده چه د سورة توبه آیت ۸۳ ورته ملاؤ شو چه په هغے کښے هم دا خبره په یوه بله موقع باندے شوی ده. لیکن په حقیقت کښے هغه آیت د دے سره نه لږی، ځکه چه هغه د تبوک د غزا په سلسله کښے نازل شوے وُو او د هغے د نازلیدو زمانه د سورة فتح د نازلیدو د زمانے نه درے کاله روستو ده. اصل خبره دا ده چه د دے آیت اشاره پخپله د دے سورة آیتونو ۱۸، ۱۹ ته ده، او د الله د مخکښے فرمائیلو مطلب د دے آیت نه مخکښے فرمائیل نه دی بلکه د روستو پاتے کیدونکو سره د دے خبرو کولو نه مخکښے فرمائیل دی. دا کومه خبره چه دلته رسول الله صلی الله علیه

لَقَدۡ رَضِیَ اللّٰہُ عَنِ الۡمُؤۡمِنِیۡنَ اِذۡ یُبَایِعُوۡنَکَ تَحۡتَ الشَّجَرَۃِ

الله د مومنانو نه خوشحاله شو، وخت چه هغوی د ونې لاندې ستا سره بیعت (یعنی لوز) کولو[۳۲]

یا هغه خلق چه جنګ د پاره تیار وی لیکن جنګ وشی او د لوړ ضروری سامانونه ورسره نه وی، یا الله ته قرضدار انسان چه زر تر زره خپل قرض ادا کړی، او قرض غوښتونکے ورله مهلت نه ورکوی، یا هغه خلق چه د هغوی مور او پلار دوا په یا په هغوی کښې یو ړوند وی او هغه د دے ته محتاج وی چه څوک د هغه نګرانی وکړی. دلته د دے خبرے وضاحت هم ضروری دے چه که چرے مور او پلار مسلمانان وی نو ولاړ له پکار دی چه د هغوی د اجازت نه بغیر جهاد له لاړ نه شی، خو که چرے مور او پلار کافران وی نو بیا د هغوی منع کولو منع کیدل جائز نه دی.

۳۲ـــ دلته بیا د هغه لوز ذکر شوے دے کوم چه د حدیبیه په مقام بانډی د صحابه کرامو نه اخستلے شوے وو، په کوم ته "بیعت رضوان" وائی، ځکه چه الله تعالی په دے آیت کښې دا زیرے ورکړے دے چه هغه د هغه خلقو نه راضی شو کوم خلقو چه په دے خطرناکه موقع بانډی د سر ورکولو نه ډډه اګر نه کړه او د رسول په لاس بانډی ئے د سر قربانولو لوز وکړو او د خپل ایمان د صداقت ثبوت ئے پیش کړو. وخت هغه دا وو چه مسلمانان صرف د یو یو تورے سره راغلی وو، په شمار صرف څوارلس سوه وو، د جنګ جامه ورسره هم نه وه بلکه د احرام څادرے ئے تړلے وے. هغوی د خپل کلی یعنی مدینې نه دوه نیم سوه میله لرے وو او د دشمنانو مرکز چه هغوی ته هر قسم امداد حاصلیدے شو، صرف دیارلس میله لرے وو. که چرے په دے خلقو کښې د الله او د هغه د رسول او د هغه د دین د پاره مضبوط خلوص نه وے نو هغوی به په دے خطرناکه موقع بانډی د رسول الله صلی الله علیه وسلم ملګرتیا پریښودے وے او اسلام به د همیشه د پاره شکست خوړلے وے. د هغوی د خپل اخلاص نه سیوا بل هیڅ داسے دباؤ نه وو چه د هغے په وجه هغوی په دے بیعت ته مجبوره شوی وے. په دغه وخت کښې د خدائے د دین د پاره مرګ ته تیاریدل د دے خبرے ثبوت دے چه هغوی په خپل ایمان کښې صادقان او مخلصان وو او د خدائے او د رسول په وفاداری کښې کمال ته رسیدلی وو. په دے وجه الله تعالی هغوی ته د خپلے رضامندئ دا زیرے ورکړے وو. او د الله د زیری ورکولو نه روستو که څوک د هغوی نه ناراضه وی، یا په هغوی باندے ژبه اوږدوی نو د هغوی جګړه د هغوی سره نه ده بلکه د الله سره ده. او که څوک دا وائی چه په کوم وخت کښې الله تعالی هغوی ته د رضامندئ دا زیرے ورکړو په هغه وخت کښې خو هغوی مخلصان وو، لیکن روستو د خدائے او د رسول بے وفا شو، شاید چه هغوی په خدائے باندے دا بدګمانی کوی چه هغه د دے آیت د نازلیدو په وخت کښې د هغوی د مستقبل نه خبر نه وو، په دے وجه هغه تش د هغه وخت د حالت په لیدو ورسره دا زیرے ورکړو، او غالباً د دے ناخبرئ په وجه ئے په خپل پاک کتاب کښې هم اولیکو چه دا کلمه اعلان په وفاهم شی، که چرے د هغوی په حقله د دُنیا خلق دا آیت لولی او د هغه خدائے د علم غیب تعریف نه کوی چا چه معاذ الله د بے وفا خلقو د پاره د رضامندئ دا سند ورکړے دے.

فَعَلِمَ مَا فِي قُلُوبِهِمْ فَأَنزَلَ السَّكِينَةَ عَلَيْهِمْ وَأَثَابَهُمْ فَتْحًا قَرِيبًا ﴿۱۸﴾ وَمَغَانِمَ كَثِيرَةً يَأْخُذُونَهَا ۗ وَكَانَ اللَّهُ عَزِيزًا حَكِيمًا ﴿۱۹﴾ وَعَدَكُمُ اللَّهُ مَغَانِمَ كَثِيرَةً تَأْخُذُونَهَا فَعَجَّلَ لَكُمْ هَٰذِهِ وَكَفَّ أَيْدِيَ النَّاسِ عَنكُمْ وَلِتَكُونَ آيَةً

دَ هغوئ دَ زړونو حال هغه ته معلوم وُو، نو ځکه ئې په هغوئ باندې سکينت[۳۳] نازل کړو، هغوئ له ئې په انعام کښې نزدې فتحه ورکړه، او ډېر مالِ غنيمت ئې ورکړو چه هغوئ به ئې (ډېر زر) حاصل[۳۴] کړي. الله زبردست او حکيم دې. الله ستاسو سره دَ ډېر مالِ غنيمت وعده کړې چه هغه به تاسو واخلئ[۳۵] فوري طور خو هغه دا فتحه تاسو ته نصيب کړه[۳۶] او ستاسو خلاف ئې دَ خلقو لاسونه دَ اُوچتيدو نه منع کړل[۳۷]، دَ پاره دَ دې چه دا دَ مؤمنانو دَ پاره يوه نښه

دَ کوم وُنې لاندې چه دا الوز شوې وُو دَ هغې په حقله دَ حضرت نافع مولیٰ ابن عمر دا روايت عام طور مشهور شوې دې چه خلقو دَ هغه وُنې خواته مونځونه شروع کړي وُو، حضرت عمرؓ ته چه پته اولګيدهٔ نو هغه خلقو له زورنه ورکړه او هغه ونه ئې پرېکړه (طبقات ابن سعد، ج ۲، ص ۱۰۰) ليکن ډېر روايتونه دَ دې خلاف هم دي. يو روايت پخپله دَ حضرت نافع نه په طبقات ابن سعد کښې دا نقل کړې شوې دې چه دَ بيعتِ رضوان نه ډېر کلونه روستو صحابه کرامو دَ هغه وُنې لټون اوکړو خو هغه ئې اُونهٔ پيژندې شوه او په دې خبره کښې ئې اختلاف راغې چه هغه ونه کومه يوه وه (ص ۱۰۵) دويم روايت په بخاري او په مُسلم او په طبقات ابن سعد کښې دَ حضرت سعيد بن المسيّب دې. هغه وائي چه زما پلار په بيعتِ رضوان کښې شريک وُو هغه ما ته اُووئيل چه په دويم کال کله مونږ دَ قضائي عمرې له لاړو نو هغه وُنه زمونږ نه هيره شوې وه، ډېره مو اوکتله خو بيا مو اُونهٔ موندې شوه. دريم روايت دَ ابن جرير دې. هغوئ وائي چه حضرت عمرؓ کله دَ خپل خلافت په زمانه کښې په حُديبيه تيريدو نو هغه تپوس اوکړو چه هغه ونه کوم ځائې ده چه دَ هغې لاندې بيعت شوې وُو. چا اُووئيل چه فلانئ ونه ده او چا اُووئيل چه فلانئ. بيا حضرت عمرؓ اوفرمائيل چه پرېږدئ دَ دې کوشش څه ضرورت دې.

[۳۳] دَ لته دَ سکينت نه مُراد دَ زړهٔ هغه حالت دې چه په هغې کښې يو سړې دَ يو لوئې مقصد دَ پاره بنه په اطمينان سره دَ خطرې مخې له ورځي او په زړهٔ کښې ئې هيڅ يره نهٔ وي او وائي چه دا کار کول په هر حالت کښې ضروري دي خواه که انجام ئې هر څه وي.

[۳۴] دا اشاره ده دَ خيبر فتحې ته او دَ هغې مالِ غنيمت ته. او دا آيت دَ دې خبرې څرګند ونه کوي چه الله تعالیٰ دا انعام صرف دَ هغه خلقو دَ پاره خاص کړې وُو څوک چه په بيعتِ رضوان کښې شريک شوي وُو، دَ هغوئ نه سوا بل چا ته په دغه فتحه او په دغه غنيمتونو کښې دَ شريکيدو لو حق نهٔ وُو. دا وجه

لِّلْمُؤْمِنِيْنَ وَيَهْدِيَكُمْ صِرَاطًا مُّسْتَقِيْمًا ﴿۲۰﴾ وَّاُخْرٰى لَمْ تَقْدِرُوْا عَلَيْهَا قَدْ اَحَاطَ اللّٰهُ بِهَا ۭ وَكَانَ اللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرًا ﴿۲۱﴾ وَلَوْ قٰتَلَكُمُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَوَلَّوُا الْاَدْبَارَ ثُمَّ لَا يَجِدُوْنَ وَلِيًّا وَّلَا نَصِيْرًا ﴿۲۲﴾ سُنَّةَ اللّٰهِ الَّتِيْ قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلُ ښ وَلَنْ تَجِدَ لِسُنَّةِ

جوړه شي[۳۸] او الله تاسو ته د نېغې لارې هدايت اوکړي.[۳۹] د دې نه علاوه هغه تاسو ته د نورو غنيمتونو هم وعده کوي چې لا تر اوسه پورې پرې تاسو قادر شوي نه يئ او الله هغه په ګېره کښې اغستې دي. الله په هر څيز قادر دے.

دا کافران خلق که په دې وخت کښې ستاسو سره جنګيدلي وے نو يقيناً چې په شا به تښتېدلي وو او هيڅوک مرستيال او مدد ګار به ئې نه موندلے.[۴۰] دا د الله دستور دے چې د پخوا راسې راچليږي او نه به د الله په دستور

چې کله رسول الله صلى الله عليه وسلم د هجرت په اوم کال د صفرې په مياشت کښې په خيبر باندې د حملے کولو د پاره روان شونو يواځې هم دغه کسان ئې د ځان سره روان کړل. په دې کښې شک نشته چې روستو بيا نبي ﷺ هغه مهاجرينو ته چې هغوي د حبشې نه واپس راغلي وو او حُبينو دُوسي او اَشعري صحابيانو ته هم د خيبر د مالونو نه څه حصه ورکړه، ليکن هغه يا خو د خُمس نه وه، يا د بيعت رضوان د ملګرو په رضا مندئ سره ورکړے شوه. په دې مال کښې د حق په طور هيڅوک حصه دار جوړ نه کړے شو.

[۳۵] د دې نه مُراد هغه نُور فتوحات دي کوم چې د خيبر نه روستو مسلمانانو ته مسلسل حاصليدل.

[۳۶] د دې نه مُراد د صلح حديبيه چې د سورة په شروع کښې ورته فتحه مبين ويلے شوي ده.

[۳۷] يعني د قريشو کافرانو ته الله دا همت ورنه کړو چې په حديبيه کښې ستاسو سره جنګيدلے وے، حالانکه په ظاهره د هغوي حالت ويرښه وو، او په جنګي لحاظ سره تاسو د هغوي په مقابله کښې ډير کمزوري ښکاريدئ. او د دې نه دا مُراد هم دے چې يو دشمن ته هم په دې زمانه کښې په مدينه باندې د حملے کولو همت اُونه شو، حالانکه د مدينې هاؤ د څوارلس سوُ جنګيالو په وتلو سره ډير کمزورے شوے وُو او يهوديانو او مشرکانو او منافقانو د دې موقعے نه فايده اغستلے شوه.

[۳۸] نښه د دې خبرې چې څوک د الله او د هغه د رسول اطاعت ته مضبوط ودريږي او د الله په بروسه باندې د حق او صداقت مرستے ته راپاسي نو د هغه سره الله تعالىٰ په کومه طريقه امداد کوي.

[۳۹] يعني چې تاسو ته زيات پوهه او يقين حاصل شي، او آئينده تاسو هم دغسې د الله او د رسول په اطاعت باندې قايم پاتے شئ او د الله په اعتماد باندې په حقه لاره کښې وړاندې والے کوئ، او دا تجربه تاسو ته دا سبق اُوښائي چې د خدائے دين څه غواړي، نو د مومن سړي دا کار دے چې د خدائے په بروسه باندې هغه اوکړي، او په دې بحثونو کښې اخته نه شي چې زما طاقت څومره دے او د باطل

## إِذْ جَعَلَ الَّذِينَ كَفَرُوا فِي قُلُوبِهِمُ الْحَمِيَّةَ حَمِيَّةَ الْجَاهِلِيَّةِ

(دا رچه دا چې) کله چې کافرانو په خپلو زړونو کښې د جاهلیت ننګ را ټینګ کړو [۴۵]

کامیابۍ موقعه ختمه شي.

امام ابو حنیفهؒ، امام ابو یوسفؒ، امام زفرؒ او امام محمدؒ وائي چې په داسې حالاتو کښې ګولۍ ورول بالکل جائز دي، آن تردې پورې که چرې کافرانو د مسلمانانو بچي د ځان د پاره وال کړي او مخې ته ئې راولي نو بیا هم په هغوئ باندې ګولۍ چلول څه ګناه نه ده - او کوم مسلمانان چې په دې حالت کښې مړه شي د هغوئ د وینې کفاره او تاوان (دیت) په مسلمانانو باندې واجب نه دې (احکام القرآن للجصاص، کتاب السیر للامام محمد، باب قطع الماء عن اهل الحرب).

امام سفیان ثوري هم په دې حالت کښې ګولۍ ورول جائز وائي، لیکن هغه وائي چې کوم مسلمانان په دې حالت کښې مړه شي نو د هغوئ دیت (یعنې د وینې تاوان) خو نشته، البته کفاره (یعنې د ګناه بدله) په مسلمانانو باندې واجب ده (احکام القرآن للجصاص).

امام اوزاعي او لیث بن سعد وائي چې که چرې کافران د ځان د پاره مسلمانان وال کړي او مخې ته ئې راولي نو په هغوئ باندې ګولۍ چلول نه دي پکار. دغه شان که چرې موږ ته پته وي چې د کافرانو په جنګي جهاز کښې زمونږه قیدیان هم موجود دي نو په دې حالت کښې هغه تباه کول نه دي پکار. لیکن که مونږه د کافرانو په ښار باندې حمله او کړو او مونږ ته پته وي چې په دې ښار کښې مسلمانان هم شته نو په هغه ښار باندې ګوله باري کول جائز دي، ځکه چې دا خبره یقیني نه ده چې زمونږه ګولۍ به په مسلمانانو باندې پریوزي، او که چرې مسلمان په دې ګوله باري باندې مړ شي نو دا به زمونږ د طرفه قصداً د مسلمان وژل نه وي بلکه په بې علمۍ کښې به یوه حادثه وي. (احکام القرآن للجصاص)

د امام شافعيؒ مذهب دا دې چې که چرې په داسې حالت کښې ګوله باري کول ضروري نه وي نو مسلمانان د هلاکت نه بچ کول بهتر دي. اګرچه په داسې حالت کښې ګوله باري کول حرام نه دي خو مکروه ضرور دي لیکن که چرې واقعي د ګوله باري ضرورت وي، او دا خطره چې که چرې ګوله باري او نه کړې شي نو دا به د کافرانو د پاره په جنګي حیثیت سره فائده مند وي او د مسلمانانو د پاره به نقصاني وي نو بیا ګوله باري کول جائز دي. لیکن په دې حالت کښې هم د مسلمانانو د بچ کولو کوشش د خپله وسه پورې پکار دې. د دې نه علاوه امام شافعيؒ دا هم وائي چې که چرې د جنګ په میدان کښې کافران د ځان د پاره مسلمانان وال کړي او مسلمانانو ته ئې وروړاندې کړي او هغه د مسلمان د لاسه قتل شي نو د دې دوه حالتونه دي یو دا چې قاتل ته معلومه وي چې دا مسلمان دې، او بل دا چې هغه ته معلوم نه وي چې دا مسلمان دې. په اول حالت کښې دیت او کفاره دواړه واجب دي، او په دویم حالت کښې یوازې کفاره واجب ده. (مغني المحتاج)

[۴۵] د جاهلیت د ننګ نه مطلب دا دې چې یو سړې تش د خپل غیرت د خاطره یا د خپلې خبرې په

فَاَنْزَلَ اللّٰهُ سَكِيْنَتَهٗ عَلٰى رَسُوْلِهٖ وَعَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ وَاَلْزَمَهُمْ كَلِمَةَ التَّقْوٰى وَكَانُوْٓا اَحَقَّ بِهَا وَاَهْلَهَا ۭ وَكَانَ اللّٰهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمًا ﴿۲۶﴾ لَقَدْ صَدَقَ اللّٰهُ رَسُوْلَهُ الرُّءْيَا بِالْحَقِّ ۚ لَتَدْخُلُنَّ الْمَسْجِدَ الْحَرَامَ اِنْ شَاۗءَ اللّٰهُ اٰمِنِيْنَ ۙ مُحَلِّقِيْنَ رُءُوْسَكُمْ

نو الله تعالیٰ په خپل رسول باندې او په مومنانو باندې سکینت نازل کړو[۴۲] او مومنان ئې د تقوٰی د خبرې پابند او ساتل ځکه چه هم هغوئ د هغې زیات حقدار وو او د هغې اهل وو۔ الله د هر څیز علم لري۔ ع

واقعي چه الله خپل رسول ته رښتیا خوب ښودلے وو چه ټیک ټیک د حق مطابق وو[۴۳]۔ تاسو به ان شاء الله مسجد حرام ته خامخا پوره په امن سره ورننوزئ، خپل سرونه به خروئ

ضد کېښې یونا روا کار اوکړي۔ د مکې کافرانو خپله دا خبره منله چه هر سړي ته دا حق حاصل دے چه د حج او د عمرې د پاره د بیت الله شریف زیارت اوکړي، او د هیچا دا حق نشته چه څوک د دې مذهبي فریضه نه منع کړي۔ دا د عربو پخوانے منلے شوے قانون وو۔ لیکن د دې باوجود چه خپل ځان ئې سراسر بېناحقه کړل او مسلمانان ئې بالکل په حقه کړل، هغوئ نش د خپل غیرت د خاطره مسلمانان د عمرې نه منع کړل۔ چپله په مشرکانو کښې چه کوم ښه خلق وو هغوئ به هم دا وئیل چه کوم خلقو احرام تړلے دے او د قربانۍ اوښان ئې د ځان سره راوستي دي او عمرې له راغلي دي هغوئ منع کول صېب بے ځایه کار دے۔ لیکن د قریشو سردارانو صرف په دے خیال هغوئ منع کړل چه که چرے محمد صلی الله علیه وسلم د دومره لوئے ډلے سره مکے ته ورننوزي نو په ټول عرب کښې به زمونږه عزت خاورے شي۔ هم دا د هغوئ د جاهلیت ننګ وو۔

[۴۲] دلته د سکینت نه مراد دے صبر او درونه خوئ چه په هغې سره نبي صلی الله علیه وسلم او مسلمانانو د کافرانو د دې جاهلي ننګ مقابله اوکړه۔ هغوئ د کافرانو په دې ضد او ښکاره زیاتي باندې غصه او نه کړه، او د هغوئ په جواب کښې هیڅ داسې خبره اونه کړه چه هغه د حق نه خلاف وي، یا په هغې سره معامله د سمېدو په ځلئے ښه ورانېږي۔

[۴۳] دا د هغه خبرې جواب دے کوم چه به بار بار د مسلمانانو په زړونو کښې راتلو هغوئ به وئیل چه رسول الله صلی الله علیه وسلم خو دا خوب لیدلے وو چه هغه مسجد حرام ته داخل شوي دے او د بیت الله طواف ئې کړے دے، نو بیا دا څه اوشو چه مونږ د عمرې ادا کولو نه بغیر واپس څو۔ د دې په جواب کښې اګرچه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلي وو چه په خوب کښې خو د سکال د عمرې کولو څرګندونه نه وه، لیکن د دې باوجود بیا هم څه نه څه تلوسه په زړونو کښې باقي وه۔ د دې وجه نه الله تعالیٰ پخپله دا اوفرمائیل چه هغه خوب مونږه ورښودلے وو، او هغه بالکل رښتیا وو او هغه به خامخا پوره کېږي۔

وَ مُقَصِّرِيْنَ لَا تَخَافُوْنَ ؕ فَعَلِمَ مَا لَمْ تَعْلَمُوْا فَجَعَلَ مِنْ دُوْنِ ذٰلِكَ فَتْحًا قَرِيْبًا ﴿۲۷﴾ هُوَ الَّذِيْۤ اَرْسَلَ رَسُوْلَهٗ بِالْهُدٰى وَ دِيْنِ الْحَقِّ لِيُظْهِرَهٗ عَلَى الدِّيْنِ كُلِّهٖ ؕ وَ كَفٰى بِاللّٰهِ شَهِيْدًا ﴿۲۸﴾ؕ

او ځيل ويښته به پريکوئ[۵۰]، او ډاربه درته هيڅ نه وي. هغه ته هغه خبره معلومه وه کومه چه تاسو ته معلومه نه وه، نو د هغه خوب پوره کيدو نه مخکښې هغه دا نزدې فتح تاسو له درکړه.

هغه الله دې چه خپل رسول ئې د هدايت او د حق دين سره ليږلې دې د پاره د دې چه هغه په ټول جنس دين باندې غالب کړي او په دې حقيقت باندې د الله ګواهي کافي[۵۱] ده.

---

[۴۸] دلته چه الله تعالىٰ خپله د خپله وعدې سره د "ان شاء الله" کوم الفاظ استعمال کړي دي، په دې باندې يو اعتراض کيږي. دا اعتراض کولې شي چه هر کله الله تعالىٰ خپله دا وعده کوي نو د دې د الله د خوښې سره د شرط کولو څه مطلب دې؟ د دې جواب دا دې چه دلته دا الفاظ په دې معنى کښې نه دي استعمال شوي چه که چېرې الله نه غواړي نو دا خپله وعده به نه پوره کوي. بلکه په اصل کښې د دې تعلق د هغه عکينو حالاتو سره دې په کوم حالاتو کښې چه دا وعده شوې ده. د مکې کافرانو چه په کوم ګمان باندې مسلمانان د عمرې نه منع کړي وو هغه دا وو چه مونږه څوک عمرې ته پرېنږدو. غواړو نو هم هغه به عمره کولې شي او چه په څه وخت کښې ئې پرېنږدو ل غواړو هم په هغه وخت کښې به ئې کولې شي. په دې باندې الله تعالىٰ فرمائيلي دي چه دا د هغوئ په غوښتلو پورې نه ده بلکه زمونږ په غوښتلو پورې ده. سکال چه عمره اُو نه شوه نو د دې وجه دا نه وه چه د مکې کافرانو دا غوښتله چه دا دې اُو نه شي، بلکه د دې وجه دا وه چه مونږه نه غوښتله چه دا دې اُوشي. او بيا چه کله مونږه دا عمره کول اُو غواړو نو کيدې شي که کافران ئې غواړي او که نه. د دې سره په دې الفاظو کښې دا مطلب هم پټ پروت دې چه مسلمانان هم کومه عمره کوي نو په خپل زور به ئې نه شي کولې بلکه هله به ئې کولې شي چه مونږه ئې اُو غواړو. او که نه چرې مونږه نه غواړو نو د هغوئ دا طاقت نشته چه پخپله عمره اوکړي.

[۴۹] دا وعده مخکښې کال له د اُووم هجري د ذى القعدې په مياشت کښې پوره شوه. په تاريخ کښې د "عمرة القضاء" په نوم مشهوره ده.

[۵۰] دا الفاظ په دې خبره دلالت کوي چه په عمره کښې او په حج کښې سر خرول لازم نه دي بلکه و يښته پريکول هم جائز دي. البته سر خرول بهتر دي ځکه چه الله تعالىٰ د هغې بيان مخکښې کړې دې او د و يښتو پريکولو ذکر ئې روستو کړې دې.

[۵۱] دلته د دې خبرې د کولو وجه دا ده چه په حديبيه کښې کله د صلحې معاهده ليکلې کيدله نو د مکې کافرانو د نبى ﷺ د نوم سره په "رسول الله" ليکلو باندې اعتراض کړې وُو او د نبى ﷺ پخپله د هغوئ په ټينګتيا باندې د معاهدې د خط نه دا الفاظ لرې کړي وُو. په دې باندې الله تعالىٰ فرمائي چه زمونږ رسول خو

مُحَمَّدٌ رَّسُولُ اللّٰهِ ؕ وَالَّذِیْنَ مَعَهٗۤ اَشِدَّآءُ عَلَی الْکُفَّارِ رُحَمَآءُ بَیْنَهُمْ تَرٰىهُمْ رُکَّعًا سُجَّدًا یَّبْتَغُوْنَ فَضْلًا مِّنَ اللّٰهِ وَرِضْوَانًا ؗ سِیْمَاهُمْ فِیْ وُجُوْهِهِمْ مِّنْ اَثَرِ السُّجُوْدِ ؕ ذٰلِكَ مَثَلُهُمْ فِی

محمد د الله رسول دے[۵۲]، او کوم خلق چه د هغه سره ملګری دی هغوی په کافرانو باندې سخت دی[۵۳] او په خپل منځ کښې رحم کونکی دی[۵۴] ته چه څه وخت کورې نو هغوی به په رکوع او سجدو کښې، او د الله د فضل او د رضا په تلاش کښې مشغوله بیا مومې. د سجدو د اثرات د هغوی په مخونو باندې موجود دی چه د هغې په وجه هغوی بیکاره پیژندې شي[۵۵]. دا دے د هغوی صفت په

په حقیقت کښې رسول دے، په هغې کښې د چا په منلو یا نه منلو سره هیڅ فرق نه راځي. هغه که څوک نه منی نو نه دې منی. د هغه په حق والی باندې یوازې د الله زمونږه ګواهي کافی ده. د هغوی په انکار کولو سره به دا حقیقت نه بدلیږي، بلکه دے رسول چه زمونږ د طرفنه کوم هدایت او حق دین را وړے دے هغه به په ټولو دینونو باندې غالب کیږي، خواه که دا منکرین د هغې د غلبې د پاره هرڅومره زور او لګوي. د "ټول جنس دین" نه مراد د ژوند هغه ټول نظامونه دي کوم چه د "دین" حیثیت لري. د دې تفصیلی تشریح موږ دې د دې نه مخکښې په تفهیم القرآن څلورم جلد، د سورة زمر په تفسیر حاشیه ۳ کښې او د سورة شوریٰ په تفسیر حاشیه ۲۰ کښې کړې ده. دلته چه کوم خبره الله تعالیٰ په صفا ټکو کښې فرمائیلې ده هغه دا ده چه د محمد صلی الله علیه وسلم د رالیږلو مقصد یوازې کړے دین تبلیغ نه وو بلکه د ژوند په نورو ټولو دینونو باندې دے غالب کول وو. یعنی هغه دا دین د دے د پاره نه وو راوړے چه د ژوند په ټولو څانګو باندې دې غلبه خو دې باطل دینونو وي او هغه د حکومت لاندې دا دین د هغه حدونو دننه اوسی د کوم دننه چه غالب دین هغه ته د اوسیدو اجازت ورکړي، بلکه دین حق نبي دے د دے د پاره راوړے وو چه د ژوند غالب دین دې دا وي او بل دین که چرے وي هم نو د هغه حدونو دننه دې اوسی د کوم دننه چه دا حق دین هغه ته د اوسیدو اجازت ورکړي. (د زیاتې تشریح د پاره اوګوره تفهیم القرآن څلورم جلد، د سورة زمر تفسیر حاشیه ۴۸).

[۵۳] اصل الفاظ دی اَشِدَّآءُ عَلَی الْکُفَّارِ، په عربئ ژبه کښې وائی فُلَانٌ شَدِیْدٌ عَلَیْهِ، فلانے سړے هغه ته سخت دے یعنی هغه رضا کول او خپل مطلب له راوستل د هغه د پاره ګران دی. کافرانو ته د محمد صلی الله علیه وسلم د ملګرو د سخت کیدو مطلب دا نه دے چه هغوی ګنی د کافرانو سره په سختئ او په تریو تندی ملاویږي، بلکه د دې مطلب دا دے چه هغوی د پوخ ایمان، د خپلو مضبوطو اصولو، د خپل روښ خوی او د خپل ایمانی هوښیارتیا په وجه کافرانو ته د کاڼي د غر په شان دی. هغوی د موم ګوډ اګی نه دی چه کافران ئې په خپله خوښه اړوی رااړوی، هغوی نرمه پسته غله نه ده چه کافران ئې په آسانئ سره تیره کړي. هغوی په یره دیا ویږي نه. او هغوی په هیڅ لالچ خرڅیدی نه. په کافرانو کښې دا طاقت نشته چه

التَّوْرٰىةِ ۚۖۛ وَمَثَلُهُمْ فِي الْإِنْجِيْلِ ۚ كَزَرْعٍ اَخْرَجَ شَطْئَهٗ

تورات کښې. او په انجیل کښې د هغوئ مثال داسې بيان کړې شوې دې لکه چه يو پټی دې چه اول ئې تيغ زرغون کړه

هغوئ د هغه لوئ مقصد نه وارَوی د کوم مقصد دپاره چه هغوئ د محمد صلی الله عليه وسلم سره د ملګرتيا کولو دپاره خپل سرونه او مالونه تيار شوی دی.

۵۳ يعنی د هغوئ تو له سختی د دين د دُشمنانو دپاره ده. د مومنانو دپاره نه ده. مومنانو ته هغوئ نرم دی، په مومنانو رحم کونکی او مهربانه دی، د مومنانو په درد درد مند او په غم غمژن دی. د اُصولو او د مقصد د يو والی په وجه په هغوئ کښې د يو بل سره مينه، يو شان والی او موافقت پيدا شوې دې.

۵۴ د دې نه مُراد د تندی هغه تُور داغ نه دې کوم چه د سجدې کولو په وجه د ځينو مونځ ګذارو په تندی جوړيږی. بلکه د دې نه مُراد د خُدا ترسئی او د شرافت او د ښو اخلاقو هغه اثرات دی کوم چه د سړی په مخ باندې خدائې ته د ټيټيدو په وجه فطرةً ښکاری. د انسان مخ يو څُور کتاب دې چه په هغې کښې د سړی د زړه حالات په آسانئ سره کتلې کيدې شی. د يو مغروره انسان مخ د عاجز مزاجه انسان د مخ نه مختلف وی. د يو بد اخلاقه انسان مخ د يو نيک او خواخلاقو والا انسان د مخ نه جُدا پيژندې شی. د يو لفنګ او بدکار انسان په شکل کښې او د يو شريف او پاکباز انسان په شکل کښې ښکاره فرق وی. د الله تعالیٰ د فرمان مطلب دا دې چه د محمد صلی الله عليه وسلم دا ملګری خو دا سې دی چه د دوئ په ليد وسره يو سړې په اول نظر دا معلومولې شی چه دا د ښو اخلاقو انسانان دی، ځکه چه د خُدا پرستئ نُور د هغوئ په مخونو باندې ځليږی. دا هم هغه څيز دې چه د دې په حقله امام مالکؒ فرمائی چه کله د صحابه کرامو فوځونه د شام زمکې ته ورننوتل نو د شام عيسايانو به ويل چه د مسيحؑ د حواريانو په حقله به کومې خبرې مونږ ده اوريدلې دوئ خو هم بالکل د هغوئ په شان په نظر رائی.

۵۵ غالبًا چه دا اشاره د کتاب استثناء، باب ۳۳، آيتونو ۲ – ۳ ته ده چه په هغې کښې د رسول الله صلی الله عليه وسلم د ذکر سره د هغه صحابو دپاره "قُدسی" لفظ استعمال کړې شوې دې. د دې نه علاوه که د صحابه کرامو څه صفت په تورات کښې بيان شوې وُو نو هغه اُوس په موجوده بدل شوی تورات کښې نه ملاويږی.

۵۶ دا مثال د حضرت عيسیٰ عليه السلام په يو وعظ کښې بيان شوې دې چه د بائيبل په نوی عهدنامه کښې په دې طريقه نقل کړې شوې دې:

"او هغه اُوويل د خدائې بادشاهی داسې ده لکه چه يو سړې په زمکه کښې تخم واچوی او د شپې اُوده شی او د ورځې راپاسی او هغه تخم په داسې طريقه راوُخيژی او لوئ شی چه هغه ته هيڅ پته اُونه لږی. زمکه په خپله ميوه نيسی. اول پانړې، بيا وږی، بيا د وږو نه تيارې دانې، بيا چه کله فصل پوخ شی نو هغه زر که ريبلو دپاره لُور راواخلی، ځکه چه د ريبلو وخت راوُرسيدو ..... هغه د وری د دانې په شان ده چه کله په زمکه کښې اُوکرلې شی نو د زمکې د ټولو تخمونو نه ورکې وی. خو چه کله اوکرلې شی او زرغون شی نو بيا د ټولو



فَاٰزَرَهٗ فَاسْتَغْلَظَ فَاسْتَوٰى عَلٰى سُوْقِهٖ يُعْجِبُ الزُّرَّاعَ لِيَغِيْظَ بِهِمُ الْكُفَّارَ ؕ وَعَدَ اللّٰهُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ مِنْهُمْ مَّغْفِرَةً وَّاَجْرًا عَظِيْمًا ﴿۲۹﴾ ع

بیا ئے هغه مضبوط کړو، بیا هغه راؤتوکیدو، بیا په خپله تنه ودریدو. هغه کروندګر خوشحالوی د پاره د دے چه کافران د هغوئ په ترقئ باندې اُوسوزی. د دے ډلے د خلقو سره، چه ایمان ئے راوړے دے او نیک عملونه ئے کړی دی، الله د بخښانے او د لوئ اجر وعده کړې ده. ع

تر کاریانو نه لوئ شی او دا سے لوئ لوئ غانګے اُوکړی چه د هوا مارغان د هغے په سوری کښے کور جوړ ولے شی." (مرقس، باب ۴، آیتونه ۲۶ تا ۳۲. د دے وعظ آخری حصه په انجیل متّیٰ باب ۱۳، آیتونو ۳۱ - ۳۲ کښے هم ده).

۵۵ یو ډله په دے آیت کښے د مِنْهُمْ د "مِنْ" نه د تبعیض معنیٰ اخلی او د آیت ترجمه داکوی چه "په هغوئ کښے کومو خلقو ایمان راوړو او نیک عملونه ئے اوکړل الله د هغوئ سره د بخښانے او د لوئ اجر وعده کړې ده." دغه شان دا خلق په صحابو باندې د طعن لار اُوباسی او دعوی کوی چه د دے آیت ترغه په صحابو کښے ډیر خلق مومنان او صالحان نه وُو. لیکن دا تفسیر هم د دے سورة د آیتونو ۴ - ۵ - ۱۸ او ۲۶ نه خلاف دے، او بخپله د دے آیت د اولنو فقرو سره هم مطابقت نه لری. په آیت ۴ او ۵ کښے الله تعالیٰ د هغه ټولو صحابو په زړونو کښے د سکینت نازلولو او د هغوئ په ایمان کښے د زیاتوالی راوستلو ذکر کړے دے کوم چه په حدیبیه کښے د نبیؐ سره ملګری وُو. او هغوئ ټولو ته ئے جنت ته د داخلیدو زیره ورکړے ده. په آیت ۱۸ کښے الله تعالیٰ د هغه ټولو خلقو په حق کښے د خپلے رضا اظهار کړے دے چا چه د وُنے لاندې د نبیؐ سره بیعت یعنی لوز کړے وُو، او په هغے کښے ئے هم څوک بیلول شوی نه وُو. په آیت ۲۶ کښے ئے هم د نبیؐ د ټولو ملګرو د پاره لفظ مومنین استعمال کړے دے، په هغوئ باندې د خپل سکینت نازلولو خبره ئے ورکړے ده، او فرمائیلی ئے دی چه دا خلق د تقوی د کلمے د پابندئ زیات حقدار او اهل دی. دلته ئے هم دا اُونه فرمائیل چه په هغوئ کښے کوم مومنان دی صرف د هغوئ په حق کښے دا خبره کړے کیږی. بیا بخپله د دے آیت په اولنو فقرو کښے هم چه کوم تعریف بیان کړے شوے دے هغه د هغه ټولو خلقو د پاره دے کوم چه د محمد صلی الله علیه وسلم سره ملګری وُو. الفاظ دا دی چه کوم خلق د هغه ملګری دی هغه دا سے او دا سے دی. د دے نه روستو یودم په آخری فقره کښے د دے وینا آخر څه مرتع وه چه په هغوئ کښے څه خلق مومنان او صالحان وُو او څه نه وُو. دا وجه ده چه دلته مِنْ د تبعیض په معنیٰ کښے اغستل د کلام د نظم نه خلاف دے. په حقیقت کښے دلته مِنْ د بیان د پاره دے لکه څنګه چه په آیت فَاجْتَنِبُوا الرِّجْسَ مِنَ الْاَوْثَانِ (د بُتانو د ګندګئ نه ځان ساتئ) کښے مِنْ د تبعیض د پاره نه دے بلکه لازمًا د بیان د پاره دے. کنئ نو بیا د آیت معنیٰ دا سے شی چه "په بُتانو

کښې کوم پاک نهٔ دی دَ هغې نه ځان ساتئ." او دَدې نه به دا مطلب را اُوځي چه څه يَئان پاک هم دی
چه دَ هغوئ نه به ځان ساتنه لازم نهٔ وی.



# الحُجُرات

**نُوم** دا نوم دَ آیت ۴ دَ فقرې اِنَّ الَّذِیۡنَ یُنَادُوۡنَکَ مِنۡ وَّرَآءِ الۡحُجُرٰتِ نه اغستے شوے دے. مطلب دا دے چه هغه سورة چه په هغې کښې لفظ الحُجُرات راغلے دے.

**دَ نازلیدو زمانه** دا خبره دَ روایتونو نه هم معلومیږی او دَ سورة مضمونونه هم دَ دے تائید کوی چه دا سُورة دَ هغه حکمونو او هدایاتو مجموعه ده کوم چه په مختلفو موقعو باندِ نازل شوی دی خو دَ مضمون په مناسبت سره راټولے کړے شوی دی. دَ دے نه علاوه دَ روایتونو نه دا هم معلومیږی چه دَ دے اکثر حکمونه دَ مدینے په آخری دَور کښې نازل شوی دی. مثلاً دَ آیت ۴ په حقله دَ مفسرینو بیان دے چه دا دَ بنی تمیم په باره کښې نازل شوے وُو، څه وخت چه دَ هغوی یو وفد راغلے وه او نبی صلی الله علیه وسلم ته ئے دَ کوردَ بهرنه نعرے وهلے، او دَ سیرت په ټولو کتابونو کښې دی چه دا وفد په نهمه هجری کښې راغلے وه. دغه شان دَ آیت ۶ په حقله دَ ډیرو حدیثونو نه معلومیږی چه دا دَ ولید بن عقبه په باره کښې نازل شوے وُو، چه رسول الله علیه وسلم بنی المُصطَلِق قبیلے ته دَ زکوٰة اغستلو دَ پاره لیږلے وُو، او دا خبره معلومه ده چه ولید بن عُقبه دَ مکے دَ فتحے په موقع مسلمان شوے وُو.

**موضوع او بحثونه** دَ دے سُورة موضوع مسلمانانو ته هغه آداب ښودل دی چه کوم دَ مومنانو دَ شان سره ښائی.

په اولنو پنځو آیتونو کښې هغوی ته هغه آداب ښودلے شوی دی کوم چه دَ الله او دَ هغه دَ رسول په معامله کښې هغوی له پکار وُو.

بیا دا حکم شوے دے چه په هره خبره باندِ یقین کول او په هغې باندِ عمل کول مناسب نه دی. که دَ یو سړی یا دَ یوې ډلے یا دَ یو قوم خلاف څه خبر ملاؤ شی نو په غور سره کتل پکار دی چه دَ خبر ملاویدو ذریعه دَ بروسے قابل ده او که نه. که دَ بروسے قابل نه وی نو په هغې باندِ دَ عمل کولو نه مخکښې دا تحقیق کول پکار دی چه خبر صحیح دے او که نه دے.

دَ دے نه روستو بیا دا وئیلے شوی دی چه که چرے دَ مسلمانانو دوه ډلے په خپلو کښې په جنګ شی نو نورو مسلمانانو له په دے کښې څه کول پکار دی.

بیا مسلمانانو ته تاکید شوے دے چه دَ هغه بدئ نه ځان ساتئ چه هغه په اجتماعی ژوند کښې فساد راپورته کوی او چه دَ هغې دَ وجه نه په خپلو کښې تعلقات خرابیږی. په یو بل پورے ټوقے کول دَ یو بل خلاف بد بد رد وئیل، یو بل له خراب نومونه کیښودل، بدګمانی کول، دَ بل حالات رالټول، دَ خلقو پسے شا دَ هغوی بد وئیل، دا هغه کارونه دی چه پخپله ګناه هم ده او په خلقو کښې فساد هم راپورته کوی. الله تعالیٰ دَ یو یو بدئ نوم ذکر کړے دے او هغه ئے حرام کړی دی.

دَدې نه روستو هغه خيالاتو خلاف ذکر شوے مه چه هغه دَ قومونو او دَ نسلونو په منځ کښې زيات راپيدا کوي اوچه هغه په دُنيا کښې دَ عالمګير فساد سبب جوړيږي. قومونه او قبيلې او خاندانونه چه خپل ځان په فخر او غرور سره اُوچت ګڼړي او نور خلق دَ ځان نه کم ګڼړي او دَ خپلې لويئ قايمولو دَپاره دَ بل دَ راغورزولو کوشش کوي، نو دا ټول هغه کارونه دي چه دَدې په وجه دُنيا دَ ظلم نه ډکه شوې ده. الله تعالیٰ په يو مختصر غوندې آيت کښې دَدې دَ بدۍ جرړې اُوويستلې او وې فرمائيل چه ټول انسانان دَ اَکې يو نسل نه پيدا شوي دي او دَ قومونو او دَ قبيلو تقسيم دَ يو بل دَ پيژندګلو دَپاره دے، په يو بل باندې دَ فخر کولو دَپاره نه دے. او دَ يو انسان په بل انسان باندې دَ برترۍ دَپاره دَ اخلاقي غوره والي نه سِوا هيڅ جائز بنياد نشته.

په آخر کښې خلقو ته وئيلے شوي دي چه اصل څيز دَ ايمان زباني دعوې نه ده بلکه دَ زړهٔ په صدق سره الله او دَ هغه رسول منل دي، عملاً حکم منونکے جوړيدل دي، او په اخلاص سره دَ الله په لار کښې خپل سر او مال قربانول دي. حقيقي مومن هم هغه دے څوک چه دا طريقه خپله کړي. پاتې شو هغه خلق چه دَ زړهٔ دَ صدق نه بغير تش په ژبه دَ اسلام اقرار کوي او بيا داسے طريقه اختيار وي کړي چه هغوئ په اسلام راوړلو سره په اسلام باندې احسانکړے وي، نو په دُنيا کښې خو هغوئ په مسلمانانو کښې شمارلے کيدے شي، او هغوئ سره دَ مسلمانانو پشان سلوک هم کيدے شي، ليکن دَ الله سره هغوئ دَ مومنانو په شمير کښې نشي راتللے.

آیاتها ۱۸ — سُوْرَةُ الْحُجُرَاتِ مَدَنِيَّةٌ — رکوعاتها ۲

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تُقَدِّمُوْا بَيْنَ يَدَيِ اللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ وَاتَّقُوا اللّٰهَ ؕ اِنَّ اللّٰهَ سَمِيْعٌ عَلِيْمٌ ۝۱ يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَرْفَعُوْۤا اَصْوَاتَكُمْ فَوْقَ صَوْتِ النَّبِيِّ وَلَا تَجْهَرُوْا لَهٗ بِالْقَوْلِ كَجَهْرِ بَعْضِكُمْ لِبَعْضٍ اَنْ تَحْبَطَ اَعْمَالُكُمْ وَاَنْتُمْ لَا تَشْعُرُوْنَ ۝۲

اے هغه خلقو چه ایمان مو راوړے دے، د الله او د هغه د رسول نه ځان مه وړاندې کوئ[1] او د الله نه اُویرېږئ، الله هر څه اورېدونکے دے او پوهه دے[2]

اے هغه خلقو چه ایمان مو را وړے دے، خپل آواز د نبی د آواز نه مه اُوچتوئ او مه د نبی سره په هغه اُوچت آواز خبرې کوئ لکه څنګه چه تاسو په خپل منځ کښې د یو بل سره کوئ هسے نه چه ستاسو کړی عملونه ټول برباد شی او تاسو ته خبر هم نه وی[3]۔

[1] دا د ایمان د ټولو نه اولنئ او بنیادی خبره ده ۔ څوک چه الله خپل رب منی، او د الله رسول خپل رهنما او رهبر منی، هغه که چرے په دے خپله عقیده کښې رښتینے وی نو هغه هیڅکله دا نه شی کولے چه خپله رائے او خپل خیال د الله او د رسول د فیصلے نه وړاندې کړی، یا په معاملاتو کښې آزاده نه رائے قایم کړی او د خپلو معاملاتو فیصلے د خپله ځانه اوکړی او دا هیڅ فکر ورسره نه وی چه په دے معاملاتو کښې د الله او د هغه د رسول څه حکم شته او که نه، او که شته نو هغه څه دے۔ په دے وجه حکم شوے دے چه اے مومنانو، د الله او د هغه د رسول نه "ځان مه وړاندې کوئ" یعنی د هغوئ نه مخکښے مه ځئ بلکه روستو ځئ پیشوا مه جوړېږئ تابع جوړ شئ۔ دا حکم د سورة احزاب آیت ۳۶ د حکم نه یو قدم وړاندې دے۔ هلته فرمایلے شوی وُو چه د کومے معاملے فیصله الله او د هغه رسول کړی وی نو یو مومن ته دا اختیار نشته چه د هغے په باره کښے د خپله ځانه یوه جُدا فیصله اُوکړی۔ او دلته دا فرمایلے شوی دی چه مومنان د خپلو معاملاتو په فیصلو کولو کښے خپل ځان نه وړاندې کوی یعنی د خپلو معاملاتو فیصلے دِ د خپله ځانه نه کوی بلکه کوری دِ چه د الله په کتاب کښے او د هغه د رسول په سنتو کښے د هغے په حقله څه حکم ملاویږی

دا حکم یوازے د مسلمانانو د انفرادی معاملاتو د حده پورے محدود نه دے بلکه په دے کښے د مسلمانانو اجتماعی معاملات هم شامل دی. په حقیقت کښے دا د اسلامی قانون بنیادی دفعه ده چه د دے د پابندئ نه نه د مسلمانانو حکومت آزادیدے شی، نه عدالت او نه قانون ساز مجلس. په مسند احمد، ابوداود

ترمذی او ابن ماجه کښې دا روایت د صحیح سند و لو سره نقل کړے شوے دے چه کله نبی صلی الله علیه وسلم یمن ته حضرت معاذ بن جبل د عدالتی حکم په حیثیت سره لیږلو نو نبی ﷺ د هغه نه تپوس اوکړو چه "ته به د کوم څیز مطابق فیصله کوے؟" هغه عرض اوکړو چه "د الله د کتاب مطابق." نبی ﷺ تپوس اوکړو "که چرے د الله په کتاب کښې د یوے معاملے حکم ملاؤ نه شی نو بیا به کوم څیز ته رجوع کوے؟" هغه اوویل "د رسول الله سنتو ته." نبی ﷺ اُو فرمایل "که چرے په هغے کښې هم څه ملاؤ نه شی؟" هغه عرض اوکړو "بیا به زه خپله اجتهاد کوم." په دے خبره نبی ﷺ د هغه په سینه لاس کیښودو او وے فرمایل "شکر دے د هغه الله چه هغه د خپل رسول نمائنده ته هغه لار اوښودله کومه چه د هغه د رسول خوښه ده." په خپل اجتهاد باندې د الله کتاب او د رسول سُنّت ته کښې کول او د هدایت حاصلولو د پاره د تولو نه اول هغے ته رجوع کول، دا هغه څیز دے چه د یو مسلمان جج او د غیر مسلمان جج په مینځ کښې فرق راولی. دغه شان د قانون جوړولو په معامله کښې په دے خبره قطعی طور اتفاق دے چه د قانون د تولو نه اولنے بنیاد د خدائے کتاب دے او د هغے نه روستو د رسول الله صلی الله علیه وسلم سُنّت دی. د تول اُمت اجماع نه د دے دواړو نه خلاف کیدے شی او نه د دے دواړو نه آزاده کیدے شی نو لا د یو اُمتی قیاس او اجتهاد به د دے نه څنګه خلاف یا آزاد شی.

**۲** یعنی که تاسو چرته د الله او د هغه د رسول نه بے پروا شوئ او د خپل اختیار مو شروع کړو یا مو خپله رائے او خپل خیال د هغوی په حکم باندې وړاندې کړو نو پوهه شئ چه ستاسو معامله د هغه خدائے سره ده چه هغه ستاسو ټولے خبرے آوری او ستاسو د نیتو نه هم خبر دے.

**۳** دا ادب هغه خلقو ته ښودلے شوے وو څوک چه به د رسول الله صلی الله علیه وسلم په مجلس کښې کیناستل او د هغه خدمت کښې به حاضریدل. د دے غرض دا وو چه مومنان د نبی ﷺ سره په ملاقات کولو کښې او په خبرو اترو کښې د هغه د عزت ډیر خیال اُوساتی. د چا آواز د نبی ﷺ د آواز نه اُوچت نه وی. د نبی ﷺ سره د خبرو اترو کولو په وخت کښې و خلق دا خبره نه هیروی چه هغوی د یو عام سړی سره یا د خپل ځان په شان برابر سړی سره خبرے کوی بلکه د الله د رسول سره خبرے کوی. په دے وجه د یو عام سړی سره په خبرو اترو کولو کښې او د نبی ﷺ سره په خبرو اترو کولو کښې ښکاره فرق پکار دے او هیچاله پکار نه دی چه د نبی ﷺ سره په اُوچت آواز خبرے اوکړی.

دا ادب اګرچه د نبی صلی الله علیه وسلم د مجلس د پاره ښودلے شوے وو او دا حکم نیغ په نیغه هغه خلقو ته وو څوک چه د نبی ﷺ په زمانه کښې موجود وو، لیکن روستنو خلقو له پکار دی چه کله د نبی ﷺ ذکر کیږی، یا د هغه حکم اوروے کیږی، یا د هغه احادیث بیانیږی نو چه د هغے هم دغسے ادب اوکړی. د دے نه علاوه دا خبره هم د دے آیت نه راوځی چه د خپل ځان نه د مشرانو او بزرګانو خلقو سره په خبرو اترو کښې څه طریقه اختیارول پکار دی. څوک چه د خپلو مشرانو په مخکښې هغسے خبرے کوی لکه څنګه چه هغه د خپلو دوستانو یا د عامو خلقو په مخکښې خبرے کوی، نو دا په اصل کښې د دے خبرے علامه ده چه د هغه په زړه کښې د هغوی د پاره څه احترام نشته او هغه په خپلو مشرانو کښې او په عامو خلقو کښې هیڅ فرق نه کوی.

**۴** د دے حکم نه معلومیږی چه په دین کښې د رسول الله د ذات د بزرګئ څومره اهم مقام دے. د رسول پاک ﷺ

إِنَّ الَّذِينَ يَغُضُّونَ أَصْوَاتَهُمْ عِندَ رَسُولِ اللَّهِ أُولَٰئِكَ الَّذِينَ امْتَحَنَ اللَّهُ قُلُوبَهُمْ لِلتَّقْوَىٰ ۚ لَهُم مَّغْفِرَةٌ وَأَجْرٌ عَظِيمٌ ﴿٣﴾ إِنَّ الَّذِينَ يُنَادُونَكَ مِن وَرَاءِ الْحُجُرَاتِ أَكْثَرُهُمْ لَا يَعْقِلُونَ ﴿٤﴾ وَلَوْ أَنَّهُمْ صَبَرُوا حَتَّىٰ تَخْرُجَ إِلَيْهِمْ لَكَانَ خَيْرًا لَّهُمْ ۚ وَاللَّهُ غَفُورٌ

کوم خلق چه د الله د رسول سره خبرې کولو په وخت کښې خپل آوازونه لاندې ساتي هغوی په حقیقت کښې هم هغه خلق دي چه زړونه ئې الله تعالیٰ د تقوی د پاره آزمائیلي دي،[۵] د هغوی د پاره بخښنه ده او لوئې اجر دې.
اے نبی کوم خلق چه تا ته د کور د بهر نه نعرې وهي په هغوی کښې اکثر خلق بے عقله دي. که چرې هغوی ستا د راوتو پورې صبر کړې نو د هغوی د پاره بهتره وه،[۶] الله معاف کونکے

نه سوابل څوک، که په خپل ځائے هر څومره د عزت قابل وي، خو دا حیثیت په هیڅ حال کښې نه لري چه د هغه سره بے ادبي کول دې د الله په دربار کښې د هغې سزا مستحق وي کومه چه په حقیقت کښې د کفر سزا ده. دا د زیات نه زیات یوه بدتمیزي ده، د تهذیب نه خلاف یو حرکت دے. لیکن د رسول الله صلی الله علیه وسلم په عزت کښې د ذرې هومره کمي هم دومره لویه ګناه ده چه په هغې سره د سړي د ټول عمر کټه برباد یدے شي. ځکه چه د نبی عزت کول په اصل کښې د هغه خدائے عزت دے چا چه هغه د خپل رسول په حیثیت سره رالیږلے دے او د هغه په عزت کښې کمي کول د خدائے په عزت کښې کمي کول دي.

[۵] یعنی کوم خلق چه د الله په آزمینتونو کښې پوره ختلي دي او دا ئې ثابته کړې ده چه د هغوی په زړونو کښې واقعي تقوی موجوده ده هم هغوی د الله د رسول ادب کوي او د هغه د عزت خیال ساتي. د دې حکم نه دا خبره په خپله را اوځي چه په کوم زړه کښې د رسول عزت نه وي په حقیقت کښې هغه د تقوی نه خالي وي او د رسول د آواز د پاسه خپل آواز اوچتول یوازې په ظاهره بد تهذیبي نه ده، بلکه په باطن کښې د تقوی د نیشتوالي علامه ده.

[۶] د نبی په مبارکه زمانه کښې چه کوم خلق د هغه په مجلس کښې ناست وو او د اسلامي آداب او د اسلامي تهذیب تربیت ئې موندلے وو هغوی خو به همیشه د هغه د وختونو لحاظ ساتلو. د هغوی سره دا خبره پوره فکر وو چه نبی د الله په کار کښې څومره مصروف ژوند تیروي، او د دې پیغمبري کار په دوران کښې څه وخت ضرور د هغه د آرام د پاره، څه وخت د هغه د خپلو اهم کارونو د پاره او څه وخت د هغه د خپلو کورني معاملاتو د پاره هم پکار دے. نو هغوی به د هغه سره د ملاقات کولو د پاره په هغه وخت کښې راتلل څه وخت چه به هغه د کور نه بهر راوتلو، او چه به هغه لا نه وو راوتلے نو د هغه د راوتلو انتظار به ئې کولو او د سخت ضرورت نه بغیر به ئې هغه له د بهر راوتلو تکلیف نه ورکولو. لیکن د عربو خلقو ته لا په هغه وخت کښې د سړیتوب او د اخلاقو تربیت نه وو ملاو شوے، نو په هغوی کښې به داسې شړي

رَّحِيمٌ ۝ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓا۟ إِن جَآءَكُمْ فَاسِقٌۢ بِنَبَإٍ فَتَبَيَّنُوٓا۟ أَن تُصِيبُوا۟ قَوْمًۢا بِجَهَٰلَةٍ فَتُصْبِحُوا۟ عَلَىٰ مَا فَعَلْتُمْ نَٰدِمِينَ ۝

او رحم کونکے دے ؏

اے هغه خلقو چه ایمان مو راوړے دے، که چرے یو فاسق تاسو ته څه خبر راوړي نو تحقیق ئے کوئ، هسے نه چه تاسو یوے ډلے ته په ناپوهئ کښے نقصان ورا ورسوئ او بیا په خپلو کړو پښیمانه نه شئ۔

کسان هم د نبیؐ ملاقات له راتلل چه د هغوئ دا خیال وو چه شوک د دعوت الی الله او د خلقو د اصلاح کارکوی نو هغه ته په هیڅ وخت کښے د آرام کولو حق نشته، او زمونږ دا حق دے چه د شپے او د ورځے کله اوغواړو نو هغه له به ورځو او د هغه دا فرض دے چه کله مونږه راشو نو هغه به زمونږ سره د ملاویدو دپاره تیار وی۔ په دا سے قسم خلقو کښے به عام طور، او د عربو د خوا اوشا نه چه به کوم خلق راتلل په هغوئ کښے به خاص طور څینی دا سے به اد به خلق هم وُو چه کله به د نبیؐ ملاقات له راتلل نو د نوکو په ذریعه د اطلاع ورکولو تکلیف به ئے نه کولو بلکه د پاکو بیبیا نو د کوټو نه به تاویدل او بهر نه به ئے نبیؐ ته نعرے وهلے۔ دا قسم ډیر واقعات په احادیثو کښے صحابو بیان کړی دی۔ رسول الله صلی الله علیه وسلم ته به په دے خبره سخت تکلیف رسید ولیکن د خپل صبرناک طبیعت په وجه به هغه دا تکلیف برداشت کولو۔ آخر دا چه الله تعالیٰ په دے بے ادبئ او بد اخلاقئ باندے خلق ملامته کړل او دا هدایت ئے ورته اوکړو چه کله تاسو د نبیؐ ملاقات له راشئ او هغه بهر موجود نه وی نو په ځائے د دے چه د بهر نه نعرے او وهئ، تاسو په صبر سره کینئ او د هغه وخت انتظار اوکړئ چه هغه پخپله ستاسو ملاقات له بهر را اوځی۔

؏ یعنی د اوسه پورے چه څه اُوشو هغه اُوشو، که د آینده د پاره دا غلطی دوباره اُونه کړے شوه نو الله تعالیٰ به مخکینی گناهونه معاف کړی او د خپل رحم په وجه به هغه خلق نه رانیسی چا چه د هغه رسول ته دا قسم تکلیفونه ورزرسول۔

شه ۸

اکثر مفسرین وائی چه دا آیت د ولید بن عُقبه بن ابی مُعَیط په باره کښے نازل شوے دے۔ د دے قیصه داده چه بنی المصطلق قبیله کله مسلمانه شوه نو رسول الله صلی الله علیه وسلم هغوئ ته ولید بن عُقبه اُولیږلو چه د هغوئ نه زکوٰة وصول کړی۔ دے چه د هغوئ علاقے ته اُورسید و نو په څه وجه اُویریدو او د قبیلے والو سره ملاو نه شو۔ مدینے ته واپس راغے او رسول الله صلی الله علیه وسلم ته ئے شکایت اوکړو چه هغوئ د زکوٰة ورکولو نه انکار کړے دے او زما وژلو ته تیار وُو۔ نبیؐ چه دا خبر واوریدو نو سخت خفه شو او اراده ئے اوکړه چه د دے خلقو د سزا د پاره څه خلق اُولیږی۔ په څینو روایتو نو کښے راغلی دی چه نبیؐ څه خلق لیږلی وُو او په څینو کښے راغلی دی چه دی لیږل ئے۔ بهر

حال په دے خبره د ټولو اتفاق دے چه د بنی المصطلق سردار حارث بن ضرار (چه د اُم المومنین حضرت جویریهؓ پلار وو) پخپله د یوے ډلے سره د نبیؐ په خدمت کښے حاضر شو او عرض ئے اُوکړو چه په خدائے ئے م د قسم وی موږه خو ولید لیدلے هم نه دے نو د زکوٰة نه انکار او د هغه د وژلو خیال څنګه اوشو، موږه په ایمان باندے مضبوط ولاړ یو او د زکوٰة ورکولو نه هم کړ انکار نه کوو. په دے باندے دا آیت نازل شو. د لږ شان لفظی اختلاف سره دا قیصه امام احمدؒ، ابن ابی حاتمؒ، طبرانی او ابن جریرؒ د عبدالله بن عباس، د حارث بن ضرار، د مجاهد، د قتاده، د عبدالرحمٰن بن ابی لیلی د یزید بن رومان، د ضحاک او د مقاتل بن حیان نه نقل کړی ده. د حضرت اُم سلمیٰ په روایت کښے دا ټوله قیصه بیان شوی خو هم د غسے ده لیکن په هغے کښے د ولید نوم نه دے څرګند کړے شوے.

په دے نازکه موقعه چه په یوے بنیاد خبر باندے د اعتماد کولو په وجه یوه لویه غلطی کیدونکی وه خو اُونه شوه، الله تعالیٰ مسلمانانو ته دا اُصولی حکم اُوکړو چه کله تاسو ته یو داسے غټ خبر ملاؤ شی چه د هغے یوه لویه نتیجه راوتونکی وی، نو په هغے باندے د عمل کولو نه مخکښے دا تحقیق اوکړئ چه خبر راوړونکے څنګه سړے دے. که هغه یو فاسق سړے وی، یعنی که د هغه د ظاهری حال نه دا معلومیږی چه د هغه خبره د بروسے لائقه نه ده، نو د هغه په خبر باندے د عمل کولو نه مخکښے تحقیق اُوکړئ چه حقیقت څه دے. د الله تعالیٰ د دے حکم نه یوه داسے اهمه شرعی قاعده راوځی چه په هغے باندے د عمل کولو میدان ډیر فراخه دے. د دے حکم تر مخه د مسلمانانو حکومت له دا جائز نه دی چه د بے اعتماده مخبرانو په خبر باندے د یو سړی یا د یوے ډلے یا د یو قوم خلاف څه کار روائی اوکړی. هم د دے قاعدے په بنیاد باندے محدثینو په علم حدیث کښے د جرحے او د تعدیل فن ایجاد کړو د پاره د دے چه د هغه خلقو د حالاتو تحقیق اُوکړی چه د هغوی په ذریعه روستنو نسلونو ته د نبی صلی الله علیه وسلم احادیث رسیدلے وُو، او فقهاؤ د شهادت په قانون کښے دا اُصول قایم کړو چه په یوه داسے معامله کښے چه د هغے نه یو شرعی حکم ثابتیږی، یا په یو انسان باندے څه حق راځی، د فاسق سړی ګواهی قبول نه ده.

البته په دے خبره د عالمانو اتفاق دے چه په عامو دُنیاوی معاملاتو کښے د هر خبر تحقیق کول او د خبر راوړونکی په عقلمند خپله بروسه راوستل څه ضروری خبره نه ده، ځکه چه په آیت کښے لفظ نبأ استعمال شوے دے او نبأ هر خبر ته نه وائی بلکه یو اهم او غټ خبر ته وائی. په دے وجه فقهاء وائی چه په عامو معاملاتو کښے دا قاعده نه جاری کیږی. مثلاً ته د چا کره ځے او کور ته د ننوتو اجازت اوغواړے او د دننه نه څوک راشی او اُووائی چه راځه، نو ته د هغه په وینا دننه تلے شے اګر که د کوروالو د طرفنه د اجازت خبر ورکونکے سړے فاسق وی او که صالح وی. د غه شان د عالمانو په دے خبره هم اتفاق دے چه کوم خلق دروغژن او بد عمله نه وی خو عقیده ئے خرابه وی نو د هغوی شهادت هم قبلیدے شی او خبر هم. یوازے د هغوی د عقیدے د خرابئیا په وجه د هغوی شهادت یا روایت ردکیدے نه شی.

وَاعْلَمُوْٓا اَنَّ فِيْكُمْ رَسُوْلَ اللّٰهِ ۭ لَوْ يُطِيْعُكُمْ فِيْ كَثِيْرٍ مِّنَ الْاَمْرِ لَعَنِتُّمْ وَلٰكِنَّ اللّٰهَ حَبَّبَ اِلَيْكُمُ الْاِيْمَانَ وَزَيَّنَهٗ فِيْ قُلُوْبِكُمْ وَكَرَّهَ اِلَيْكُمُ الْكُفْرَ وَالْفُسُوْقَ وَالْعِصْيَانَ ۭ اُولٰۗىِٕكَ هُمُ الرّٰشِدُوْنَ ۝ۙ فَضْلًا مِّنَ اللّٰهِ وَنِعْمَةً ۭ وَاللّٰهُ عَلِيْمٌ حَكِيْمٌ ۝۸

ښه پوه شئ چه ستاسو په منځ کښې د الله رسول موجود دے. که چرے هغه په ډيرو معاملاتو کښې ستاسو خبره منل شروع کړي نو تاسو به په خپله په مشکلاتو کښې اخته شئ۹ ليکن الله تاسو ته د ايمان محبت درنصيب کړو او هغه ئے ستاسو زړونو ته غوريزکړو، او کفر او فسق او د نافرمانۍ ئے درته بده ښکاره کړه. دغسے خلق د الله په فضل او احسان سره په نيغه لار روان دي۱۰ او الله عليم (يعني په هر څه پوه) او حکيم (يعني د حکمت خاوند) دے۱۱

۹ د اخبره د وړاندې روستو عبارت نه هم معلوميږي، او ډيرو مفسرينو هم د دے آيت نه دا مطلب اخستے دے چه د بني المصطلق قبيلے په معامله کښې وليد بن عقبه کوم خبر راوړو په هغے باندې نبي صلى الله عليه وسلم د هغوئ خلاف په فوجي کارروائۍ کولو کښې تلوارنه کوله، ليکن څينو خلقو کښې زور اُوتکوو چه په هغوئ دې فوراً حمله اُوکړے شي. په دے باندې هغه خلقو ته خبرداريے ورکړے شو چه تاسو دا خبره مه هيروئ چه ستاسو په منځ کښې رسول الله صلى الله عليه وسلم موجود دے چه هغه ستاسو په فائيدو ستاسو نه زيات پوهيږي. ستاسو دا خيال چه په اهمو معاملاتو کښې کومه رائے تاسو ته مناسبه ښکاره شي هم په هغے دې عمل اُوشي، دا سخت بے ځايه خيال دے. که چرے دغسے ستاسو په وينا عمل کولے شروع شي نو په ډيرو موقعو کښې به دا سے غلطيانے اُوشي چه د هغے سزا به هم ستاسو سره راځي.

۱۰ مطلب دا دے چه ټولو مومنانو دا غلطي اُونه کړه بلکه بوخو کسانو وُوچه دا ئے غوښتله چه رسول الله صلى الله عليه وسلم دې زمونږ د رائے مطابق کار اُوکړي. او د کومو مومنانو د لارچه په نيغه لاره قايم پاتے شو د هغے وجه دا ده چه الله تعالىٰ په خپل فضل او احسان سره د ايمان لار هغوئ ته خوږه او غوريزه کړي ده او د کفر او د فسق او د نافرمانۍ لار ئے هغوئ ته بده ښکاره کړي ده. د دے آيت په دوو حصو کښې خبرے دوه جُدا جُدا ډلو ته شوي دي. په لَوْ يُطِيْعُكُمْ فِيْ كَثِيْرٍ مِّنَ الْاَمْرِ کښې خطاب ټولو صحابو ته نه دے بلکه هغه خاص صحابو ته دے چه هغوئ دا زور لګولے وُوچه په بني المصطلق قبيلے باندې دې حمله اُوشي. او وَلٰكِنَّ اللّٰهَ حَبَّبَ اِلَيْكُمُ کښې خطاب عامو صحابو ته دے چه د رسول الله صلى الله عليه وسلم په مخکښې به ئے خپله رائے له هيڅکله زور نه ورکوو بلکه په نبي به ئے پوره اعتماد وو، او هميشه به ئے د هغه خبره منله او هم دا د ايمان تقاضا ده. د دے نه دا نتيجه نه راوُځي چه کومو خلقو خپلے رائے له زور ورکوو د هغوئ زړونو کښې د ايمان سره محبت نه وُو. بلکه د دے نه چه کومه خبره راوُځي هغه دا ده چه د بے فکرۍ په وجه د هغوئ نه د ايما

وَإِن طَائِفَتَانِ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ اقْتَتَلُوا فَأَصْلِحُوا بَيْنَهُمَا
فَإِن بَغَتْ إِحْدَاهُمَا عَلَى الْأُخْرَىٰ فَقَاتِلُوا الَّتِي تَبْغِي حَتَّىٰ

او که چرې د مومنانو دوه ډلې په خپل منځ کښې اُوجنګیږي[12] نو د هغوی په منځ کښې صُلح اُوکړئ[13]. بیا که چرې په هغوی کښې یوه ډله بله ډله باندې زیاتے اُوکړي نو د زیاتی کونکې ډلے سره اُوجنګیږئ[14] آن تر دې

دا تقاضا هیره شوې ده چه د هغې په وجه هغوی د رسول الله صلی الله علیه وسلم په موجودګئ کښې خپلے رائے له د زور ورکولو غلطی اُوکړه. څکه خو الله تعالیٰ اول هغوی په دے غلطئ کولو باندې او د دے په خراب انجام باندې خبردار کړل، او بیائے دا اُوفرمایل چه د ایمان صحیح لار هغه ده په کومه چه عام صحابه روان دی۔

[11] یعنی د الله دا فضل او احسان څه د رند وتقسیم نۀ دے. دا لوئ نعمت چه هغه چا له ورکوی نو د حکمت او د دے علم په بنیاد باندې ئے ورکوی چه هغه د دے مستحق دے۔

[12] دا ئے نۀ دی فرمایلی چه "کله د مومنانو دوه ډلے په خپل منځ کښے جنګ اُوکړي" بلکه دا ئے فرمایلی چه "که چرے د مومنانو دوه ډلے په خپل منځ کښے اُوجنګیږی". د دے الفاظو نه دا خبره پخپله را اُوځی چه په خپل منځ کښے جنګ کول د مومنانو کار نۀ دے او نۀ پکار دی چه جنګ اُوکړي. نۀ د هغوی نه د دے خبرې توقع ده چه د ایمان باوجود به په خپل منځ کښے جنګونه کوی. البته که چرے داسے اُوشی نو بیا په هغه طریقه عمل پکار دے کوم چه وړاندې بیا نیږی. د دے نه علاوه د دے د پاره هم د لفظ "فرقے" په ځائے لفظ "طائفه" استعمال کړے شوے دے. په عربئ ژبه کښے فِرقه د لوئے ډلے د پاره او طائفه د ورے ډلے د پاره ویلے کیږی. د دے نه هم دا خبره راڅرګندیږی چه د الله تعالیٰ په نظر کښے دا یو ډیر ناخوښه حالت دے چه په دے کښے د مسلمانانو لوئے لوئے ډلے اخته کیدل نۀ دی پکار۔

[13] دا حکم هغو ټولو مسلمانانو ته دے څوک چه په دے دواړو ډلو کښے شامل نۀ وی، او څوک چه د هغوی په منځ کښے د صُلحے کوشش کولے شی. یعنی د الله تعالیٰ په نزد د مسلمانانو دا کار نۀ دے چه د هغوی د ملت دوه ډلے دِ په خپلو کښے جنګونه کوی او هغوی دِ ناست وی د هغوی تماشه دِ کوی. بلکه دا د افسوس نه ډک حالت چه کله را پیدا هم شی، نو ټولو مومنانو له پکار دی چه فکرمند شی او د هغوی د اصلاح د پاره چه تر څومره کیدے شی هغومره کوشش دِ اوکړی. دواړو ډلو ته دِ نصیحت اُوشی چه د جنګ نه منع شی. هغوی دِ د خدائے نه اُویَروے شی. بااثره خلق دِ د دواړو ډلو د ذمه وارو خلقو سره ملاو شی. د جګړے اسباب دِ معلوم کړی. او د خپله وسه پورے دِ هر هغه کوشش اوکړی چه په هغے سره د هغوی په منځ کښے صُلحه راتلے شی۔

[14] یعنی د مسلمانانو دا کار هم نۀ دے چه هغوی دِ زیاتی کونکی خلق زیاتی کولو ته پریږدی او چه په چا زیاتے کیږی هغوی دِ په خپل حال پریږدی، یا دِ اُلټا د زیاتی کونکو خلقو ملګرتیا اُوکړی. بلکه د هغوی فرض دا دے چه که چرے د دواړو ډلو په منځ کښے د صُلحے ټول کوششونه ناکام شی، نو بیا دِ اوکړی چه په حقه څوک دی او زیاتے څوک کوی. چه څوک په حقه وی د هغوی ملګرتیا دِ اُوکړی او چه څوک زیاتے کوی د هغو

تَفِیْٓءَ اِلٰٓى اَمْرِ اللّٰهِ ۚ فَاِنْ فَآءَتْ فَاَصْلِحُوْا بَیْنَهُمَا بِالْعَدْلِ

چه هغوئ د الله حکم ته واپس راشي.[۱۵] بیا که چرے هغوئ واپس راشي نو د هغوئ په مینځ کښے په انصاف سره ‌صلح اوکړئ

سره د اُوجنګیږي. د دے جنګ حکم چونکه الله تعالٰی کړے دے نو په دے وجه دا واجب دے او د جهاد په حکم کښے راځي. دا په هغه فتنه کښے نه شمارېږي د کومے په حقله چه نبي صلی الله علیه وسلم فرمائیلي دي چه القائم فیها خیرٌ من الماشي والقاعد فیها خیرٌ من القائم (په هغے کښے ولاړ سړے د روان نه، او ناست سړے د ولاړ نه بهتر دے). ځکه چه د هغه فتنے نه خو مراد د مسلمانانو په خپل مینځ کښے هغه جنګ دے چه په هغے کښے د دواړو ډلو مقصد د ناروا کار د پاره، او د جاهلي ضد د راټینګولو د پاره او د دُنیا د برولو د پاره جنګیږي او په دواړو ډلو کښے یوه ډله هم برحقه نه وي. باقي شو دا جنګ چه د زیاتي کونکے ډلے په مقابله کښے د حق ډلے د مکلرتیا د پاره کیږي، نو دا په فتنه کښے حصه اخستل نه دي بلکه د الله تعالٰی حکم منل دي. د ټولو فقهاؤ په دے اتفاق دے چه دا جنګ واجب دے او د رسول الله صلی الله علیه وسلم په صحابو کښے د دے په واجب کیدو کښے هیڅ اختلاف نه وُو (احکام القرآن للجصّاص). بلکه ځینې فقهاء خو دا د جهاد نه هم غوره ګڼړي او د هغوئ دلیل دا دے چه حضرت علی رضي الله عنه د خلافت خپله ټوله زمانه د کافرانو سره د جهاد کولو په ځائے د باغیانو سره په جنګ کولو کښے تیره کړه. (روح المعاني) د دے په نه واجب کیدو که څوک دا خبره په دلیل کښے پیش کوي چه د حضرت علي رضي الله عنه په دے جنګونو کښے حضرت عبدالله بن عمر او ځینو نورو صحابو حصه نه وه اخستے نو هغه په غلطه دے. ابن عمر په خپله فرمائي چه "ما وجدت في نفسي من شيءٍ ما وجدت من هذه الاٰیة اني لم اقاتل هذه الفئة الباغیة کما امرني الله تعالٰی". (المستدرک للحاکم، کتاب معرفة الصحابه، باب الدفع عمن قعدوا عن بیعة علي). "ما ته په زړه کښے دومره خفګان نه دے راغلے لکه څومره چه د دے آیت په وجه راغے، چه ما د الله د حکم مطابق د دے باغي ډلے سره جنګ اُونه کړو".

د زیاتي کونکے ډلے سره د "قتال" کولو د حکم دا مطلب نه دے چه د هغوئ خلاف دے په وسلو سره جنګ اوکړے شي او ضرور دے هغوئ قتل کړے شي. بلکه د دے نه مراد د هغوئ خلاف د طاقت استعمال دے، او اصل مقصد د هغوئ زیاتے ختمول دي. د دے مقصد د پاره چه د کوم طاقت استعمال ضروري وي هغه استعمالول پکار دي او چه څومره طاقت استعمالول کافي وي، نه د هغے نه کم استعمالول پکار دي او نه د هغے نه زیات.

دا حکم هغه خلقو ته دے چه هغوئ په دے خبره قادر وي چه د طاقت په استعمال سره زیاتے ختم کړي.

[۱۵] د دے نه معلومه شوه چه دا سزا باغي (یعني زیاتي کونکي ډلے) له د بغاوت (یعني د زیاتي) د سزا ورکولو د پاره نه ده بلکه د دے د پاره ده چه باغیان د الله حکم ته واپس مجبوره کړے شي. د الله د حکم نه مراد دا دے چه د الله د کتاب او د رسول الله د سنتو ترمخه کومه خبره حقه وي چه د هغے قبلولو ته دا باغي ډله تیاره شي او کوم عمل چه د حق د دے معیار ترمخه زیاتے وي چه هغه پریږدي. او کله چه یوه باغي ډله د الله دے حکم ته غاړه کیږدي او راضي شي نو په هغه وخت د هغوئ خلاف د طاقت استعمال بندول پکار دي، ځکه چه هم دا د قتال مقصد او آخري حد دے. د دے نه روستو چه څوک څه کوي

وَاَقۡسِطُوۡا ؕ اِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ الۡمُقۡسِطِيۡنَ ۞ اِنَّمَا الۡمُؤۡمِنُوۡنَ

او انصاف کوئ ځکه چه الله تعالیٰ انصاف کونکی خوښوی[۱۷] مومنان خو دیو بل

هغه به بیا هغوی په زیاتی کوونکے وی. اوس پاتے شوه دا خبره چه د الله د کتاب او د رسول الله صلی الله علیه وسلم د سنتو ترمخه په یو جنګ کښے حق څه دے او زیاتے څه دے، نو د دے فیصله کول د هغه خلقو کار دے چه هغوی په اُمت کښے د علم او د پوهے په لحاظ سره د دے د تحقیق کولو خاوند وی.

[۱۶] یوازے د صُلحے کولو حکم نه دے بلکه د عدل او د انصاف سره د صُلحے کولو حکم دے. د دے نه معلومه شوه چه د الله تعالیٰ په نظر کښے د هغه صُلحے هیڅ قدر نشته چه په هغے کښے د حق او د باطل لحاظ اُو نه ساتلے شی او نش د جنګ د بندولو د پاره صُلح اُوکړے شی او چه کومه ډله په حقه وی هغوی دباؤ کړے شی او د زیاتی کونکی ډلے سره بے ځایه رعایت اُوکړے شی. صُلح هغه صحیح ده چه هغه د انصاف صُلح وی. هم په دے سره فساد ختمیږی، کنی نو د حقے ډلے د دباو هلو او د زیاتی کونکو د حوصلے اُوچتو نتیجه به خامخا داوی چه د فساد جرړه به په ځائے پاتے وی، بلکه هغه به نور هم زیاتیږی، او د هغے نه به بار بار فساد راپورته کیږی.

[۱۷] د مسلمانانو په منځ کښے چه کله جنګ اُونختلی نو دا آیت د هغے په باره کښے د شرعی قانون اصلی بنیاد دے. د دے قانون تشریح د رسول الله صلی الله علیه وسلم په سنتو کښے د یو حدیث نه سیوا، چه وړاندے مونږه ذکر اُوکړو، په بل ځائے کښے نه ملاویږی، ځکه چه د نبیؐ په زمانه کښے د مسلمانانو په منځ کښے جنګ چرته راغلے نه دے چه د هغے په حقله د نبیؐ د عمل او د قول نه د هغے د حکمونو تفصیلات معلوم شی. روستو بیا د دے قانون مستند تشریح په هغه وخت کښے اُوشوه کله چه د حضرت علیؓ د خلافت په زمانه کښے پخپله د مسلمانانو په منځ کښے جنګونه اُوشو. په هغه وخت کښے چونکه ډیر صحابه موجود وُو، نو په دے وجه د هغوئی د عمل نه او د دے په حقله چه هغوئی کوم حکمونه بیان کړی دی د هغے نه د اسلامی قانون د دے ځائے تفصیلی قاعدے مقرر شوه. خاص طور د حضرت علی رضی الله عنه نمونه په دے معامله کښے د ټولو فقهاؤ اصل بنیاد دے. لاندې مونږه د دے قاعدے یوه ضروری خلاصه لیکو:

(۱) د مسلمانانو په خپل منځ کښے د جنګ ډیر صورتونه دی چه د هغے حکمونه جُدا جُدا دی.

(الف) چه جنګ کونکی دواړه ډلے د یو مسلمان حکومت رعیت وی. په دے صورت کښے د هغوئی په منځ کښے صُلح کول، یا دا فیصله کول چه په هغوئی کښے زیاتی والا څوک دے، او د طاقت په زور هغه حق طرف ته مجبوره کول د حکومت کار دے.

(ب) چه جنګ کونکی ډلے دوه ډیرے غټے ډلے وی، یا دوه مسلمانانان حکومتونه وی، او د دواړو جنګ د دُنیا د پاره وی. په دے صورت کښے د مومنانو کار دا دے چه په دے فتنه کښے د حصے اخستو نه قطعی ځان ساتی او دواړو ډلو ته د خدائے یره وړاندے کوی او د جنګ بندولو نصیحت ورته کوی.

(ج) جنګ کونکی هغه دوه ډلے چه په جُز (ب) کښے ئے بره ذکر شوے دے، په هغوئی کښے یوه ډله

په حقه وي او بل- زياتے کوي، او په نصيحت سره سمُلے ته نۀ تيارېږي- په دے صورت کښے د مومنانو کار دا دے چه د زياتي کونکي ډلے خلاف د د حق د ډلے ملګرتيا اُوکړي.

(د) په دوؤ ډلو کښے چه يوه ډله رعيت وي او هغوئ د حکومت، يعنې د مسلمانانو د حکومت خلاف خروج کړے وي. فقهاء د دے خروج کونکي ډلے ته "باغي" وائي-

(۲) باغي، يعنې د حکومت خلاف خروج کونکي ډلهم په ډېر قسمه کيدے شي:

(الف) هغه ډله چه صرف د فسا د پورته کولو د پاره پاسيدلې وي او د دے خپل خروج د پاره ورسره هيڅ شرعي دليل نۀ وي- د هغوئ خلاف د حکومت جنګ په اتفاق سره جائز دے او د هغه ملګرتيا کول په مومنانو باندې واجب ده، که حکومت عادل وي او که نۀ وي.

(ب) هغه ډله چه د حکومت اړ ولو د پاره خروج اوکړي او د هغوئ سره هيڅ شرعي دليل نۀ وي، بلکه د هغوئ د ظاهر حال نه دا معلومېږي چه هغوئ ظالمان او فاسقان دي- په دے صورت کښے که چرے حکومت عادل وي نو بيا خو د هغه ملګرتيا بے وېنا واجب ده، ليکن که چرے حکومت عادل نۀ هم وي نو د هغے حکومت د برقرار ساتلو د پاره جنګ واجب دے د کوم په ذريعه چه فی الحال د وطن نظم قايم دے.

(ج) هغه ډله چه د يو شرعي دليل په بنياد باندې د حکومت خلاف خروج اوکړي، ليکن د هغوئ دليل باطل وي او د هغوئ عقيده فاسده وي مثلاً خوارج- په دے صورت کښے هم، مسلمان حکومت خواه که هغه عادل وي او که نۀ وي، د هغوئ سره د جنګ کولو جائز حق لري او د هغه ملګرتيا واجب ده-

(د) هغه ډله چه د يو داسے عادل حکومت خلاف خروج اوکړي چه د هغے مشر په جائزه طريقه جوړ کړے شوے وي- په دے صورت کښے که د هغوئ سره څه شرعي دليل وي او که نۀ وي، بهر حال د هغوئ سره د جنګ کولو حق حکومت ته حاصل دے او د هغه ملګرتيا واجب ده-

(ه) هغه ډله چه د يو داسے ظالم حکومت خلاف خروج اوکړي چه د هغے مشر په زور ناسته وي او حاکمانئے فاسقان وي، او خروج کونکي د عدل د پاره او د الله د حدودو قائمولو د پاره راپاسيدلي وي او د هغوئ د ظاهر حال نه دا معلومېږي چه هغوئ پخپله نيکان خلق دي- په دے صورت کښے هغوئ ته "باغيان" يعنې زياتي کونکي وئيل او د هغوئ خلاف جنګ کولو ته واجب وئيل د فقهاؤ په منځ کښے سخت اختلافي خبره ده، چه دلته ئے مونږه مختصر بيانوو-

د جمهور فقهاؤ يعنې د اکثرو فقهاؤ او د اهل حديثو رائے دا ده چه د کوم امير مشرئ يو ځل قائمه شوي وي او د وطن امن و امان او نظم و نسق د هغه د انتظام لاندې چليږي، خواه که هغه عادل وي او که ظالم وي، او د هغه مشري که په هره طريقه قايمه شوي وي، د هغے خلاف خروج کول حرام دي، ماسوا د دے نه چه هغه څرګند کفر اوکړي- امام سرخسيؒ ليکي چه "کله مسلمانان خان له يو مشر جوړ کړي او د هغه په وجه ورته امن حاصل وي او لارے محفوظ وي، په داسے حالت کښے که د مسلمانانو يوه ډله د هغه خلاف خروج اوکړي نو څوک چه د جنګ طاقت لري په هغوی باندې واجب دي چه د مسلمانانو د دغے مشر يا حاکم سره ملګرے شي او د خروج کونکو خلاف

جنګ اُوکړي" (المبسوط، باب الخوارج). امام نووي د مُسلم په شرح کښې وائي چه" د اماما نو یعنې د مسلمانانو د بادشاهانو (مشرانو) خلاف خروج او جنګ حرام دے، خو که هغه بادشاه فاسق او ظالم وي" او امام نووي دا دعوٰی کوي چه په دے باندې اجماع هم شوې ده.

لیکن په دے باندې د اجماع دعوٰی صحیح نه ده. د اسلام د فقهاؤ یوه لویه ډله، چه په هغې کښې لوئې لوئې عالمان شامل دي، خروج کونکو خلقو ته صرف په هغه صورت کښې "باغیان" وائي چه هغوي د عادل امام خلاف خروج اوکړي. د ظالمانو او فاسقانو مشرانو خلاف چه نیکان خلق خروج اوکړي نو هغې ته هغوي د قرآن مجید د اصطلاح مطابق "بغاوت" نه وائي او نه د هغوي خلاف جنګ کولو ته واجب وائي. د ظالم بادشاه سره د جنګ کولو په معامله کښې د امام ابوحنیفهؒ طریقه عالمانو ته معلومه ده. ابوبکر جصّاص په احکام القرآن کښې صفا لیکي چه امام صاحب دے جنګ ته نۀ یوازے جائز وائي بلکه ساز کار حالات تو کښې ورته واجب وائي (اول جلد، ص ۸۱، دویم جلد ص ۳۹). د بني اُمیه خلاف چه زید بن علي کوم خروج کړے وُو په هغې کښې هغه نۀ یوازے مالي امداد وکړو بلکه نورو خلقو ته ئے هم وینا اوکړه (الجصّاص ج ۱، ص ۸۱). د منصور خلاف د نفسِ زکیّه په خروج کښې هغه ډیر په سرګرمۍ سره د نفسِ زکیّه حمایت کولو او چه جنګ ته ئے د کافرانو سره د جهاد کولو غوره جنګ وئیلو. (الجصّاص ج ۱، ص ۸۱. مناقب ابي حنیفه للکَرْدَرِي ج ۲، ص ۷۱-۷۲) بیا حنفي فقهاء هم په هغه مسلک باندې متفق نه دي کوم چه امام سرخسي بیان کړے دے. ابن همام د هدایه په شرح الفتح القدیر کښې لیکي چه البا غي في عرف الفقهاء الخارج عن طاعة امام الحق، "د فقهاء په عُرف کښې باغي هغه دے چه د حق امام د اطاعت نه اُووځي". په حنبلیانو کښې ابن عقیل او ابن الجوزي د غیر عادل (یعنې ظالم) امام خلاف خروج ته جائز وائي او په دے باندې دلیل د حضرت حسینؓ خروج پیش کوي (الانصاف ج ۱۰، باب قتال اهل البغي) امام شافعيؒ په کتاب الاُم کښې باغي هغه سړي ته وائي چه هغه د عادل امام خلاف جنګ کوي (جلد ۴، ص ۱۳۵). په المُدَوَّنه کښې د امام مالک مسلک دا نقل کړے شوے دے چه" که د عادل امام خلاف خروج کونکي د جنګ د پاره راووځي نو د هغوي خلاف دِ جنګ اوکړے شي" (جلد اول، ص ۴۰۷). قاضي ابوبکر ابن العربي په احکام القرآن کښې د هغه دا قول را نقل کوي: "هر کله چه یو سړے د عمر بن عبدالعزیز غوندې عادل بادشاه خلاف خروج اوکړي نو د هغه دفعه کول واجب دي او که بل قسم امام وي نو هغه په خپل حال باندې پریږدئ. الله تعالیٰ به د یو بل ظالم په ذریعه هغه له سزا ورکړي او بیا به د یو دریم ظالم په ذریعه هغه دواړو له سزا ورکړي." هغه د امام مالک یو بل قول دا نقل کړے دے: "هر کله چه د یو امام سره بیعت یعنې لوز شوے وي او بیا د هغه ورور د هغه د مقابلے ته ودریږي نو د هغه سره به جنګ کیږي که چرے هغه عادل امام وي. پاتے شو دا نمونږ د زمانے امامان (یعنې بادشاهان) نو د دوي د پاره څه بیعت نشته، ځکه چه د دوي بیعت په زبردستۍ سره اخستلے شوے دے" بیا د مالکي عالمانو چه کوم مسلک د سَحْنُون په حواله سره قاضي صاحب بیان کړے دے هغه دا دے چه "جنګ خو به صرف د عادل امام په ملګرتیا کښې کیږي خواه که اولنے امام عادل وي یا هغه سړے چا چه د هغه خلاف خروج کړے وي. لیکن که چرے دواړه عادلان نه وي نو د دواړو نه جُدا اُوسئ،

البته که چرته پخپله په تاسو باندې حمله اُوشي یا مسلمانان مظلومان کیږي نو مدافعت (یعنی مقابله) کوئ.
د دې مسلکو نو د نقل کولو نه روستو قاضي ابوبکر وائي لا نقاتل الا مع امام عادل یقدمه اهل الحق لانفسهم. مونږ به صرف د هغه عادل امام په ملګرتیا کښې جنګ کوو چې هغه اهلِ حق خلقو د خپلې امامتۍ (یعنی مشرۍ) د پاره وړاندې کړے وي.

(۳) خروج کونکي خلق که چرې په کم تعداد کښې وي او د هغوئ شا ته دې یو لوئې ډلې حمایت نه وي، او نه ورسره زیات جنګي سامان وي، نو هغوي د بغاوت په قانون کښې نه راځي بلکه د هغوئ سره به د سزا ګانو د عام قانون مطابق سلوک کیږي، یعنی که هغوئ قتل اُوکړي نو د هغوئ نه به قصاص اغستلے کیږي او که د مال نقصان اوکړي نو د هغې تاوان به ادا کوي. د بغاوت په قانون کښې صرف هغه باغیان راځي چې د هغوئ سره لوئې طاقت وي، او د لوئې ډلے او د ډیر جنګي سامان سره خروج اوکړي.

(۴) خروج کونکي خلق چې ترڅو پورې خپلې فاسدې عقیدې صرف بیانوي، یا د حکومت او د هغې د سربراه خلاف هسې د بغاوت او د دُشمنۍ خبرې کوي، نو ترهغې پورې به نه هغوئ قتلولے کیږي او نه به قید ولے کیږي. د هغوئ خلاف به جنګ صرف په هغه وخت کښې کیږي کله چې هغوئ د وسلې سره عملاً بغاوت اوکړي او په مرګ ژوبله شروع اوکړي. (المبسوط، باب الخوارج. فتح القدیر، باب البغاة احکام القرآن للجصاص).

(۵) د باغیانو خلاف د جنګ شروع کولو نه مخکښې به هغوئ ته د قرآن د هدایت مطابق اُووئیلې شي چې بغاوت پریږدئ او د انصاف لار اختیار کړئ. که چرې د هغوئ څه شک شبهې او اعتراضونه وي نو د هغوي د پوهه کولو کوشش به اوکړې شي. او که په دې هم منع نه شوا و د جنګ شروع د هغوئ د طرفنه اُوشوه نو پس د هغې به د هغوئ خلاف تُوره راخستے کیږي. (فتح القدیر. احکام القرآن للجصاص).

(۶) د باغیانو سره به چې په جنګ کولو کښې د کومو خبرو لحاظ ساتلے کیږي د هغې بنیاد د نبي صلی الله علیه وسلم هغه حدیث دے کوم چې د حضرت عبدالله په حواله حاکم، بزار او الجصاص نقل کړے دے: "نبي د حضرت عبدالله بن مسعود نه تپوس اوکړو اے ابن اُم عَبد، پوهیږې چې د دې اُمت د باغیانو په باره کښې د الله څه حکم دے؟ هغه عرض اوکړو چې الله او د هغه رسول ښه پوهیږي. نبي اُوفرمائیل د هغوئ په زخمیانو به حمله نه کیږي، د هغوئ قیدیان به نه قتلولے کیږي، هغوئ چې تیښته اوکړي نو د هغوئ پسې ورپسې نه ځي، د هغوئ مال به د غنیمت په طور نه تقسیمیږي." د دې قاعدې دویم بنیاد د حضرت علی رضی الله عنه قول او عمل دے چې د اسلام ټولو فقهاو پرې اعتماد کړے دے. هغه چې په جنګ جمل کښې فتح اوکړه نو اعلان ئے اوکړو چې څوک تیښته اوکړي په هغه پسې روستو مه ځئ، په زخمیانو حمله مه کوئ، چې څوک بندي شوي وي هغوئ مه قتلوئ، څوک چې وسله کیږدي هغوئ له امن ورکړئ، د خلقو په کورونو کښې مه ورننوزئ، او په ښځو حملې مه کوئ اګرکه هغوئ تاسو ته کنځلے کوي. د هغوئ د فوج ځینو خلقو مطالبه اوکړه چې مخالفین او د هغوئ بال بچ دې غلامان کړے شي او تقسیم دې کړے شي. هغه په دې غُصه شو او ورته فرمائیل، په تاسو کښې څوک اُم المؤمنین حضرت عائشه رض په خپله حصه کښې اغستل غواړئ؟

(۷) د باغیانو د مالونو حکم، چه کوم د حضرت علیؓ د عل نه اخستلے شوے دے، هغه دا دے چه د باغیانو مال که په لښکر کښے ملاؤ شوے وی او که د هغوئی نه روستو د هغوئی په کورونو کښے وی، او که هغوئی ژوندی وی او که مړه وی، بهرحال هغه به نه مالِ غنیمت وی او نه به په فوج کښے تقسیمولے کیږی. البته چه د کوم مال نقصان شوے وی د هغے هیڅ ضمانت نشته. د جنګ د ختمیدو او د بغاوت د ختمیدو نه روستو به د هغوئی مالونه هم هغوئی ته واپس ورکړے کیږی. د هغوئی وسله او سورلئی که د جنګ په وخت کښے لاس له راشی نو هغه به د هغوئی خلاف استعمالیدے شی، لیکن ناتحینوله به په ملکیت کښے د مالِ غنیمت په طور نه شی ورکړے کیدے، او که چرے د هغوئی نه بیا د بغاوت یره نه وی نو د هغوئی دا څیزونه به هم هغوئی له واپس ورکړے کیږی. صرف د امام ابو یوسف رائے دا ده چه حکومت به د هغے نه غنیمت جوړوی (المبسوط، فتح القدیر، الجصاص).

(۸) په بغاوت کښے چه کوم خلق نیولے شوی وی د هغوئی نه به دا وعده اخستلے کیږی چه هغوئی به بیا بغاوت نه کوی، نو بس د هغے په آزادولے کیږی (المبسوط)

(۹) د وژلو شوو باغیانو نه سر پریکول او هغه د ځان سره ګرزول سخت مکروه کار دے، ځکه چه دا مُثله ده او د دے نه رسول الله صلی الله علیه وسلم منع کړی ده. حضرت ابوبکرؓ له چه د رومی بطریق سر راوړے شو نو هغه پرسخت خفه شو او وے فرمایل چه د رومیانو او ایرانیانو پشان کارکول زمونږ کار نه دے. هر کله چه دا کار د کافرانو سره ناروا دے نو د مسلمانانو سره خو خامخا ناروا دے (المبسوط).

(۱۰) د جنګ په دوران کښے چه د باغیانو د لاسه کوم جانی او مالی نقصان شوے وی، د جنګ د ختمیدو او د امن د قائمیدو نه روستو به د هغے هیڅ قصاص او تاوان په هغوئی نه راځی. نه به د یو مړی بدله د هغوئی نه اخستے کیږی او نه به په څه مالی تاوان راوستے کیږی، د پاره د دے چه د فتنے وُور بیا لمبه نه شی. د صحابه کرامو خپل منځ په جنګونو کښے هم د دے قاعدے لحاظ ساتلے شوے وُو (المبسوط. الجصاص. احکام القرآن ابن العربی).

(۱۱) په کومو علاقو باندے چه باغیانو قبضه کړی وی او هلته هغوئی خپل انتظام شروع کړے وی او د خلقو نه ئے زکوٰة او نور محصولونه وصول کړی وی، بیا چه کله حکومت په هغه علاقو دوباره قبضه اوکړی نو د خلقو نه به بیا دوباره د دغه زکوٰة او د دغه محصولونو مطالبه نه کوی. که چرے باغیانو دغه مالونه په شرعی طریقه خرچ کړی وی نو د الله په نزد به هم د ورکونکو خلقو ذمه خلاصه وی، لیکن که چرے هغوئی په غیر شرعی طریقه خرچ کړی وی نو دا د ادا کوونکو خلقو او د هغوئی د خدائے په منځ کښے معامله ده. که هغوئی خپله غواړی نو خپل زکوٰة دِ دوباره ادا کړی (فتح القدیر، الجصاص. ابن العربی).

(۱۲) باغیانو چه په خپله قبضه کړی علاقه کښے کوم عدالتونه قایم کړی وی، که د هغے قاضیان عادلان وی او د شریعت مطابق ئے فیصلے کړی وی، نو هغوئی به په خپل ځائے برقرار ساتلے کیږی اګرچه د هغوئی مقرر کونکی د بغاوت مجرمان خلق وُو. البته که چرے د هغوئی فیصلے غیر شرعی وی او د بغاوت د ختمیدو نه روستو هغه فیصلے د حکومت عدالتونو ته راوړے شی نو هغه به نه جاری کړے کیږی. د دے نه علاوه د باغیانو د قایم کړو عدالتونو د طرفه چه کوم وارنټ یا حکم جاری شوے وی هغه به د حکومت

إِخْوَةٌ فَأَصْلِحُوا بَيْنَ أَخَوَيْكُمْ وَاتَّقُوا اللَّهَ لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُونَ ⑩ ع

رُونړه دی، نو دَ خپلو رونړو ترمنځه تعلقات صحیح کړئ[۱۸] او دَ الله نه اُویرېږئ اُمید دے چه په تاسو به رحم اوکړے شي ع

په عدالتونو کښے نهٔ تبلولے کیږی (المبسوط. الجصاص).

(۱۳) دَ باغیانو ګواهی به اسلامی عدالتونو کښے نهٔ تبلولے کیږی ځکه چه دَ انصاف دَ خاوندانو خلاف جنګ کول فسق دے. امام محمد وائی چه ترڅو پورے هغوئ جنګ نهٔ وی کړے او دَ انصاف دَ خاوندانو خلاف ئے عملاً خروج نهٔ وی کړے نو دَ هغوئ ګواهی به تبلولے کیږی خو چه کله ئے جنګ اوکړو نو بیا به زهٔ دَ هغوئ ګواهی نهٔ تبلوم (الجصاص).

دَ دے حکمونو نه داخبره معلومیږی چه دَ کافرانو خلاف دَ جنګ په قانون کښے او دَ مسلمان باغیانو خلاف دَ جنګ په قانون کښے څه فرق دے.

[۱۸] دا آیت دَ دُنیا دَ ټولو مسلمانانو ترمنځه یوه فراښه روروُلی قایموی او دا دَ دے برکت دے چه دَ بل دین یا دَ بل مسلک په خلقو کښے هغه روروُلی نهٔ وی کومه چه په مسلمانانو کښے وی. دَ دے حکم اهمیت او دَ دے تقاضے رسول الله صلی الله علیه وسلم په خپلو ګڼرو احادیثو کښے بیان کړی دی چه دَ هغے نه دَ دے پوره مطلب واضحه کیږی.

حضرت جَریر بن عبد الله وائی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم زمانه دَ دریو خبرو بیعت یعنی لوَزا خستے وُو. یو دا چه مونځ به قایموم. دویم دا چه زکوٰة به ورکوم. دریم دا چه دَ هر مسلمان خیرخواه به یم. (بخاری. کتاب الایمان)

دَ حضرت عبد الله بن مسعودؓ روایت دے چه نبیؐ فرمائیلی دی" مسلمان ته کنځل کول فسق دے او دَ مسلمان سره جنګ کول کفر دے" (بخاری. کتاب الایمان. په مسند احمد کښے هم دغسے روایت حضرت سعید بن مالکؓ دَ خپل پلار نه نقل کړے دے).

دَ حضرت ابوهُریرهؓ روایت دے چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائی" په هر مسلمان باندے دَ بل مسلمان مرګ، مال او عزت حرام دے" (مسلم کتاب البرّ والصّلة. ترمذی، ابواب البرّ والصّلة).

حضرت ابوسعید خُدریؓ او حضرت ابوهریرهؓ وائی چه نبیؐ فرمائی" یو مسلمان دَ بل مسلمان رور دے هغه په هغه ظلم نهٔ کوی، دَ هغه ملګرتیا نهٔ پرېږدی، او دَ هغه بے عزتی نهٔ کوی. دَ یو سړی دَ پاره دا شر ډیر دے چه هغه دَ خپل مسلمان رُور سپکاوے اوکړی" (مُسند احمد).

حضرت سهل بن سعد ساعدی دَ نبیؐ دا حدیث روایت کوی چه" دَ مومنانو دَ ډلے سره دَ یو مومن تعلق هغسے دے لکه څنګه چه دَ سر سره دَ بدن تعلق وی. هغه ته دَ مومنانو تکلیف داسے وررسی لکه څنګه چه سر ته دَ بدن دَ هر حصے درد وررسی" (مسند احمد). هم دا خبره په یو بل حدیث کښے ده چه نبیؐ فرمائی" دَ مومنانو مثال دَ یو بل سره په مینه محبت کښے، په تعلقاتو کښے او په یو بل باندے دَ رحم و کرم په معامله کښے داسے دے لکه یو بدن چه دَ بدن یو اندام ته هم تکلیف وی نو ټول

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا يَسْخَرْ قَوْمٌ مِّنْ قَوْمٍ عَسٰٓى اَنْ يَّكُوْنُوْا خَيْرًا مِّنْهُمْ وَلَا نِسَآءٌ مِّنْ نِّسَآءٍ عَسٰٓى اَنْ يَّكُنَّ خَيْرًا مِّنْهُنَّ

اے هغه خلقو چه ایمان مو راوړے دے، نه دې سړي په نورو سړو پورے ټوقے کوي، کیدے شي چه هغوی د دوی نه بهتر وي [۱۹] او نه دې ښځے په نورو ښځو پورے ټوقے کوي، کیدے شي چه هغوی د دوی نه بهترے وي [۲۰]۔

بدن د هغه سره ټول ناروغه وي او ویښ او تبه ورته وي۔" (بخاري، مسلم)۔

په یو بل حدیث کښے د نبي ﷺ دا حدیث نقل کړے شوے دے چه "مومنان د یو بل د پاره د یو ودانۍ د خښتو په شان دي چه هر یو په بل مضبوطیږي۔" (بخاري، کتاب الادب۔ ترمذي۔ ابواب البر والصلة)۔

[۱۹] په تیرو شوو دوؤ آیتونو کښے د مسلمانانو په خپل منځ کښے د جنګ په حقله ضروري هدایات ورکړے شوي وو او د هغے نه روستو مومنانو ته دا خبره ښودلے شوې وه چه د دین د پلوه رشتے په وجه تاسو د یو بل ورونړه یئ او تاسو له دا کوشش پکار دے چه د خدائے د ډیرے په خپل منځ کښے تعلقات صحیح ساتئ۔ اوس په وړاندے دوؤ آیتونو کښے حکم کیږي چه د هغه بدو کارونو نه بچ اوسئ چه هغه عام طور د خلقو په منځ کښے تعلقات خرابوي۔ د یو بل په عزت باندے حمله کول، د یو بل زړونه آزارول، په یو بل باندے بدګماني کول، او د یو بل عیبونه لټول، دا په حقیقت کښے هغه اسباب دي چه په دے سره په خپل منځ کښے دشمنیانے راپیدا کیږي او بیا چه نور اسباب ورسره ملګري شي نو لوئے لوئے فتنے تر جوړیږي۔ په دے سلسله کښے چه کوم حکمونه په وړاندینو آیتونو کښے ورکړے شوي دي او د هغے چه کومه تشریح په احادیثو کښے ملاویږي د هغے په بنیاد باندے د بے عزتۍ کولو یو تفصیلي قانون ( (Law of Libel) ) جوړیدے شي۔ په دے معامله کښے د مغرب د بے عزتۍ په قانون کښے دومره کمے دے چه یو سړے د هغے مطابق دعوې اوکړي چه زما لیه عزتي شوې ده نو نور هم ورپسے بے عزته کیږي۔ د دے برعکس اسلامي قانون د هر سړي د یو بنیادي عزت قائل دے چه په هغے باندے هیچا ته د حملے کولو حق حاصل نه دے، خواه که حمله واقعي وي او که نه وي، او چه په چا حمله شوې ده د هغه څه "عرفي حیثیت" وي او که نه وي. تش دا خبره چه یو سړي د بل سړي بے عزتي کړې ده د هغه د مجرم کیدلو د پاره کافي ده، سوا د دے نه چه د دغه بے عزتۍ څه شرعي جواز ثابت کړے شي۔

[۲۰] د ټوقو کولو نه مراد تش په ژبه په چا پورے ټوقے کول نه دي، بلکه د چا پیښے کول، د چا طرفته اشاره کول، د چا په خبره پورے یا د چا په کار پورے یا د چا په شکل پورے یا د چا په جامه پورے خندا کول، یا د چا عیب ته د خلقو توجه په دا سے طریقه راګرځول چه هغوی ورپورے اوخاندي، دا ټول کارونه په ټوقو کولو کښے داخل دي. کوم اصلي څیز چه منع دے هغه دا دے چه یو سړے په بل سړي پورے په څه نه څه طریقه خندا اوکړي، ځکه چه په دے خندا کښے ضمناً خپله لوئي او د بل بے عزتي او سپکاوے شامل وي چه اخلاقاً سخت عیبناک کار دے،

وَلَا تَلْمِزُوْٓا اَنْفُسَكُمْ وَلَا تَنَابَزُوْا بِالْاَلْقَابِ ؕ بِئْسَ الِاسْمُ الْفُسُوْقُ بَعْدَ الْاِیْمَانِ ۚ وَمَنْ لَّمْ یَتُبْ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الظّٰلِمُوْنَ ﴿۱۱﴾

په خپل منځ کښې په یو بل باندې طعن مه کوئ[۲۱] او مه یو بل په خرابو نومونو سره یادوئ[۲۲]. د ایمان راوړونه روستو په فسق کښې نوم پیدا کول ډیره خرابه خبره ده.[۲۳] کوم خلق چه د دې کار نه منع نه شو هم هغوئ ظالمان دی.

---

اوبله دا چه د دې په وجه د بل سړي زړه ته آزار هم رسي او په دې سره په خلقو کښې فساد راپورته کیږي. په دې وجه دا کار حرام کرځولے شوے دے.

د سړو او د ښځو جدا جدا ذکر کولو مطلب دا نه دے چه کښې د سړو د پاره په ښځو پورے توقے کول او د ښځو د پاره په سړو پورے توقے کول جائز دي. په اصل کښې چه په کومه وجه د دواړو ذکر جدا جدا شوے هغه وجه دا ده چه اسلام هغه د سرنه د مے خبرې قائل نه دے چه پردي نارینه او زنانه د شریک ګډونه تیروي. په یو بل پورے خندا کول عام طور په آزادو مجلسونو کښې کیږي او په اسلام کښې د دې خبرې هیڅ اجازت نشته چه غیر محرمه یعني چه د یو بل سره ئې نکاح نه کیږي هغه نارینه او زنانه دې په یو مجلس کښې راجمع شي او په خپلو کښې دې توقے خندا مکانې کوي. په دې وجه په مسلمانانو کښې دې خبرې ته د توجه کولو ضرورت نه دے پیښ شوے چه په یو مجلس کښې به سړي په ښځو پورے خندا کوي یا په ښځے په یو سړي پورے خندا کوي.

[۲۱] په اصل کښې لفظ لَمز استعمال شوے دے چه په هغې کښې د بدے ردے ویلو نه علاوه نورے ډیر معنے هم شاملے دي، مثلاً په خبرو کښې ټکونه ورکول، په مثالونو سره په چا پورے خندا کول، الزامونه لګول، اعتراضونه کول، عیبونه لټول، په ښکاره یا په پټه یا په اشارو سره څوک ملامته کول. دا ټول کارونه هم چونکه په خپلو کښې تعلقات خرابوي او په خلقو کښې فساد راپورته کوي نو په دې وجه حرام کړے شوي دي. د الله تعالیٰ د کلام صفائي دا ده چه د "لَا یَلْمِزْ بَعْضُکُمْ بَعْضًا (په یو بل باندې طعن مه لګوئ) په ځائے د "لَا تَلْمِزُوْٓا اَنْفُسَکُمْ" (په خپل ځان طعن مه لګوئ) الفاظ استعمال کړے شوي دي چه ځنې له تر دا خبره راوځي چه څوک په بل باندې د طعن د پاره ژبه راسپړي هغه په اصل کښې په خپل ځان طعنے لګوي. ظاهره خبره ده چه د چا ژبه د بل خلاف تر هغې نه را بر سیره کیږي تر څو چه د هغه زړه د بل خلاف د خرابو جذباتو نه ډک شوے نه وي. د هغه شان د د خرابو جذباتو په موجودګئ سره خو د هرچانه مخکښې د سړي خپل زړه د بدئ کور جوړیږي. بیا چه کله هغه په بل چا باندې د طعنے ګوزار ونه کوي نو د دې مطلب دا دے چه هغه ځپله په خپل ځان باندې د طعنے کولو د پاره نورو له دعوت ورکوي. دا بیله خبره ده چه څوک د خپل شرافت په وجه د هغه د طعنو جواب ورنه کړي. لیکن هغه خو د خپل طرفنه دا لار جوړه کړه چه هغه بل سړے دې هم په هغه باندې طعنے شروع کړي څوک چه د هغه د ژبے د لاسه زخمي زخمي دے.

سه ۲۲ دَ دې حکم دا مطلب دے چې څوک دِ چا ته داسې نوم نۀ وائي یا دِ دَ هغۀ نوم سره داسې تکے نۀ یو ځائے کوي چې هغه دَ هغۀ خوښ نۀ وي یا په هغې سره دَ هغۀ سپکاوے یا بے عزتي کیږي۔ مثلاً چا ته فاسق یا منافق وئیل۔ چا ته کوډ یا ړوند یا کانړا وئیل۔ دَ چا سره دَ هغۀ خپل عیب یا دَ هغۀ دَ مور یا دَ پلار یا دَ خاندان عیب تړل۔ چا ته دَ مسلمانیدو نه روستو دَ هغۀ دَ مخکینې مذهب په مناسبت سره یهودي یا نصراني وئیل۔ یو سړي له یا یو خاندان له یا یوې ډلے له داسې نوم کیښودل چې په هغې کښې دَ هغۀ سپکاوے وي۔ په دے حکم کښې صرف هغه نومونه شامل نۀ دي چې هغه په ظاهره خو بد غوندې ښکاري لیکن دَ هغې نه بدي مُراد نۀ وي بلکه هغه دَ هغه خلقو دَ پیژندګلو ذریعه وي چا ته چې هغه نومونه وئیلے کیږي۔ په دے وجه محدّثینو په اسماءُ الرّجالُ کښې سلیمان الاعمش (سلیمان چُوچن سترګے) او واصل الاحداب (واصل ټیټا) غوندې نومونه جائز کړي دي۔ چې په یو نوم ډیر سړي وي او په هغې کښې یو خاص سړے په یو خاص نوم سره پیژندے کیږي نو هم هغه نوم استعمالول جائز دي اګر که هغه نوم په خپل ځائے خراب وي۔ مثلاً دَ ډیرو سړو نوم عبد الله وي او په هغوی کښې یو ړوند وي نو دَ هغۀ دَ پیژندو دَ پاره ړوند عبد الله وئیل جائز دي۔ دارنګے داسې نومونه هم په دے حکم کښې نۀ دي شامل چې دَ هغې نه خو په ظاهره سپکاوے معلومیږي لیکن هغه په حقیقت کښې دَ مینے نه وئیلے کیږي، او چا ته چې هغه نوم وئیلے کیږي هغوئي ته په خپله هم خوښیږي لکه ابو هریره او ابو تراب۔

سه ۲۳ یعني دَ یو مومن دَ پاره دا سخته دَ شرم خبره ده چې دَ ایمان راوړلو باوجود هغه په بد زباني کښې نوم پیدا کړي۔ یو کافر سړے که په دې مشهور شي چې هغه په خلقو پورے ښه توقے کوي، یا په خلقو پورے ښه ښالونه جوړوي، یا خراب خراب نومونه ښه ږدي، نو دَ انسانیت په لحاظ سره اګر که ښه شهرت نۀ دے خو دا دَ هغۀ دَ کفر سره ډیر بد نۀ لګي۔ لیکن چې یو سړے په الله او دَ هغۀ په رسول او په آخرت باندې ایمان لري او بیا هم په دغې ذلیلو صفتو سره مشهور شي نو دا دَ مرګ لائق خبره ده۔

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اجْتَنِبُوْا كَثِيْرًا مِّنَ الظَّنِّ ۖ اِنَّ بَعْضَ الظَّنِّ اِثْمٌ وَّلَا تَجَسَّسُوْا وَلَا يَغْتَبْ بَّعْضُكُمْ بَعْضًا ؕ اَيُحِبُّ

اے هغه خلقو چه ايمان مو راوړے دے، ډير ګمان کولو نه ځان ساتئ ځکه چه ځينې ګمان ګناه وي.[24] تجسس يعني په چا پسے د رنړه مه لټوئ[25] او په تاسو کښے دِ څوک د بل چا غيبت نه کوي.[26] آيا په تاسو کښے څوک دا خوښوي

[24] د مطلق ګمان کولو نه منع نه ده شوی بلکه د ډير زيات ګمان کولو او په هر قسم ګمان پسے د تللو نه منع شوی ده او د دے وجه دا ښودلے شوی ده چه ځينې ګمانونه ګناه وي. په دے حکم باندې پوهيدلو د پاره مونږ له کتل پکار دی چه د ګمان څو قسمونه دی او د هر يو ګمان اخلاقی حيثيت څه دے:

يو قسم ګمان هغه دے چه اخلاقاً ډير غوره دے او دين اسلام هم هغه ګمان د خلقو نه غواړي او د هغے ستائينه کوي، مثلاً د الله او د هغه د رسول نه نيک ګمان کول او د هغه خلقو سره د نيک ګمان سلوک کول د چا سره چه د سري ناسته پاسته وي او چه د چا په حقله د بد ګمانئ کولو څه مناسبه وجه نه وي.

دويم قسم ګمان هغه دے چه د هغے نه بغير په ژوند کښے کار نه چليږي. مثلاً په عدالت کښے د دے نه بغير کار نه چليږي چه د عدالت حاکم د ګواهئ جاج واخلی او په غالب ګمان فيصله اوکړي، ځکه چه د معاملے د حقيقت علم نيغ په نيغه هغه ته نه شی کيدے، او د ګواهئ په بنياد باندې چه کومه رائے قائميږي هغه اکثر په يقين باندې نه وي بلکه په غالب ګمان باندې وي. دغه شان په اکثرو معاملاتو کښے چه څه نه څه فيصله کول ضروري وي او په هغے کښے د حقيقت علم حاصلول ممکن نه وي نو د انسان د پاره د دے نه بغير بله څه چاره نه وي چه د ګمان په بنياد باندې يوه رائے قائمه کړي.

د ګمان يو دريم قسم هغه دے چه اګرچه دے خو بد ګمانی، ليکن جائز نه ده او په ګناه کښے نشی شمارلے کيدے. مثلاً د يو سړي يا د يو ډلے په عمل کښے يا د هغه په معاملاتو او په طور طريقو کښے داسے ښکاره نښے وی چه د هغے په وجه هغه د ښه ګمان مستحق نه وي او د هغه سره د بد ګمانئ کولو د پاره مناسب وجوهات موجود وي. په داسے حالت کښے د شريعت مطالبه دا هرګز نه ده چه سړے دِ سادګی اختيار کړي او خامخا دِ د هغه نه ښه ګمان ساتی. ليکن د دے جائز بد ګمانئ آخری حد دا دے چه د هغه د شر نه د بچکيدو د پاره دِ بې د احتياط نه کار واخلی. د دے نه وړاندې صرف د ګمان په بنياد باندې د هغه خلاف څه کارروائی کول صحيح نه دی.

څلورم قسم ګمان چه په حقيقت کښے ګناه ده، هغه دا دے چه يو سړے د بل سړي سره بے سببه بد ګمانی کوي، يا د بل چا په حقله هميشه بد ګمانی لري، يا د داسے خلقو په معامله کښے د بد ګمانئ نه کار اخلی چه د هغوئ د ظاهري حالاتو نه دا معلوميږي چه هغوئ نيکان او شريفان دی. دغه شان دا هم ګناه ده چه د يو سړي يوه خبره يا يو کار ښه او بد دواړه طرفته اوړيدے شی او مونږ يوازے د بد ګمان نه کار اخلو او هغه بد طرفته اړ ړو. مثلاً يو ښه سړے د يو محفل نه را پاسيدو او د خپل پيزار په ځائے ئے

دَ بل چا پېژاره ځان سره وا غستوا وموبزه پرِ دا ګمان اوکرو چه هغه دا کار ځکه کاو ډ ورکه ناپا موژو اسر څاو ړینو څانته کېدو به دا یاا سنوپه حالانکه دا کار په خطا هم کېدے شي او بنه طرفته دَ اړولو په ځائے بد طرفته دَ راارولو وجه دَ بدګمانئ نه سوا بله نشته۔

دَ دے تشریح نه دا خبره څرګنده یږی چه ګمان په خپل ځائے څه خراب څیز نه دے، بلکه په ځینو حالاتو کښے غوریزدے، په ځینو حالاتو کښے ضروری دے، په ځینو حالاتو کښے دَ یو حده پورے جائزدے او دَ هغے نه وړاندِ ناجائز دے او په ځینو حالاتو کښے بالکل ناجائز دے۔ په دے وجه دا اُونه فرمائیلے شو چه دَ ګمان کولو نه یا دَ بدګمانئ کولو نه مطلقًا ځان ساتئ، بلکه دا فرمائیلے شوی دی چه دَ ډیر زیات ګمان کولو نه ځان ساتئ۔ بیا دَ حکم بنه واضحه کولو دَ پاره دا فرمائیلے شوی دی چه ځینی ګمان ګناه وی۔ دَ دے خبرداری نه پخپله دا نتیجه رااُوځی چه کله سړے دَ ګمان په بنیاد باندِ یو راتے قائموی یادَ څه کار کولو فیصله کوی نو هغه له پکار دی چه بنه سوچ فکر اُوکړی او اُوګوری چه دا زه کوم ګمان کوم چه دا چرته ګناه خونه ده؟ آیا واقعی دَ دے ګمان ضرورت دے؟ آیا دَ دے ګمان کولو دَ پاره زما سره مناسب دلیل شته؟ آیا دَ دے ګمان په وجه چه زه کوم کار کوم چه هغه جائز دے؟ دا احتیاط به لازمًا هر هغه سړے کوی چه څوک دَ خدائے نه یږیږی۔ خپل ګمان ته بالکل قطعی وئیل صرف دَ هغه خلقو کار دے چه هغوی دَ خدائے نه نه یریږی او دَ آخرت دَ حساب کتاب نه بے فکره وی۔

**ف ۲۵** یعنی دَ خلقو رازونه مهٔ لټوئ۔ دَ یو بل عیبونه مهٔ لټوئ۔ دَ بل په حالاتو ومعاملاتو پسے لټون مهٔ کوئ۔ دا کار خواه که دَ بدګمانئ په وجه اوکړے شي، یا دَ بد نیتئ په وجه چا ته دَ نقصان رسولو دَ پاره اوکړے شي، یا هسے تش دَ خپل شک ( (Curiosity) ) لرے کولو دَ پاره اوکړے شي، بهرحال دَ شرعے په لحاظ سره دا کار منع دے۔ دَ یو مومن سړی دا کار نه دے چه دَ خلقو دَ پټو حالاتو لټون اوکړی او دَ دے خبرے دَ معلومولو کوشش اوکړی چه په چا کښے څه عیب دَ او په چا کښے کومے کمزوریانے پټے دی. دَ خلقو ذاتی خطونه کتل، دَ دوؤ کسانو خبرو ته غوږ کېښودل، دَ ګاونډیانو کورته کتل، او په مختلفو طریقو سره دَ بل چا دَ کورنئ ژوند یا دَ هغوئ دَ ذاتی معاملاتو لټون کول ډیر دَ بد اخلاقئ کار دے چه قسما قسم فساد ونه تری را ولاړیږی۔ دا وجه ده چه نبی صلی الله علیه وسلم یو ځل په خپله خطبه کښے دَ تجسس کوونکو یعنی په چا پسے دَ ږونډ لګوونکو خلقو په حقله اُوفرمائیل،

یا معشر من امن بلسانه ولم یدخل الایمان قلبهٔ لاتتبعوا عورات المسلمین فانه من اتبع عوراتهم یتبع الله عورته ومن یتبع الله عورته یفضحه فی بیته (ابو داؤد)۔

اے خلقو چه په ژبه مو ایمان راوړے دے خو لاز پردنوته مو ایمان نهٔ دے کوز شوے، دَ مسلمانانو دَ پټو حالاتو لټون مهٔ کوئ ځکه چه څوک دَ مسلمانانو په عیبونو بسکار کولو پسے اوګرځی الله بهٔ هغه په عیبونو پسے اوګرځی او الله چه په چا پسے وریپسے شي نو هغه دَ هغه په کور کښے رسوا کوی۔

حضرت معاویهؓ وائی چه ما پخپله دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم نه اوریدلی دی:

انك ان اتبعت عورات الناس ته که چرے دَ خلقو دَ پټو حالاتو په معلومولو پسے وریپسے شوے نو

افسد تهم اوکدت ان تفسدهم — ته به هغوئ خراب کړے یا به ئے خرابو لو ته نژدے کړے.
(ابو داؤد)

په یو بل حدیث کښے د نبیؐ فرمان دے:

اِذا ظننتم فلا تحققوا — هرکله چه د یو سړي په حقله ستا بدګمانی راشی نو د هغے تحقیق مهٔ کوه.
(احکام القرآن للجصاص)

په یو بل حدیث کښے دی چه نبیؐ فرمائی:

من رأی عورة فسترها کان کمن احیا موؤدة — چا چه د چا پټ عیب اُولید ولو په هغے ئے پرده واچوله نو دا داسے ده لکه چه چا یوه ژوندئ خخ شوی ماشومه د مرګ نه بچ کړه.
(الجصّاص)

د تجسّس نهٔ کولو دا حکم یوازے د افرادو د پاره نهٔ دے بلکه د اِسلامی حکومت د پاره هم دے. شریعت چه د نهی عن المنکر کوم کار حکومت ته حواله کړے دے د هغے دا مطلب نهٔ دے چه هغه دِ د جاسوسئ یو نظام قایم کړی او د خلقو د پټو عیبونو ویونه دِ لګوی او په هغے دِ سزا ورکوی، بلکه حکومت له پکار دی چه صرف د هغه ګناهونو خلاف دِ خپل طاقت استعمالوی چه کوم ښکاره شی. پاتے شو پټ ګناهونه نو د هغے د سمے کولو طریقه د جاسوسئ لار نهٔ ده بلکه تعلیم، وعظ او نصیحت، د عوامو اجتماعی تربیت، او د یو پاک ماحول پیدا کولو کوشش دے. په دے باره کښے د حضرت عمرؓ دا واقعه ډیره عبرتناکه ده چه یوه شپه هغه د یو سړی آواز واورید وچه په خپل کور کښے ئے سندرے ویلے. د هغه پرِ شک راغے او په دیوال ور واؤ ریدا و ئے کوری چه هلته شراب هم دی او یوه ښځه هم ده. هغه ورته په زوره آواز اوکړو چه "اے د خدائے دُشمنه آیا ستا دا خیال دے چه ته به د الله نافرمانی کوے او الله به ستا پرده نهٔ ښکاره کوی؟" هغه ورله جواب ورکړو "امیرالمؤمنین تلوار مهٔ کوه. که چرے ما یوه ګناه کړی ده نو تا درے ګناهونه کړی دی. الله د تجسّس کولو نه منع کړی وه او تا تجسّس اُوکړو. الله حکم کړے وو چه کورونو ته په دروازو ورځئ او ته په دیوال را واوریدے. الله حکم کړے وو چه د خپلو کورونو نه بغیر د بل چا کورونو ته بے اجازه مهٔ ورځئ او ته زما د اجازت نه بغیر کور ته راغلے." حضرت عمرؓ چه دا جواب واوریدو نو خپله غلطی ئے اُومنله او د هغه خلاف ئے هیڅ کارروائی اُونهٔ کړه، البته د هغه نه ئے دا وعده واخستله چه هغه به د نیکئ لار اختیاروی. (مکارم الاخلاق لابی بکر محمد بن جعفر الخرائطی). د دے نه معلومه شوه چه یوازے د افرادو د پاره نهٔ بلکه پخپله د اسلامی حکومت د پاره هم دا خبره جائز نهٔ ده چه د خلقو رازونه دِ لټوی او د هغوئ د ګناهونو پته دِ لګوی او بیا دِ پرِ هغوئ رانیسی. هم دا خبره په یو حدیث کښے شوی ده چه په هغے کښے نبی صلی الله علیه وسلّم فرمائیلی دی:

ان الامیر اذا ابتغی الریبة فی الناس افسدهم — حکمران چه کله په خلقو کښے د شک شبهو د وجوهاتو لټون شروع کړی نو هغه خلق خرابوی.
(ابو داؤد)

په دے حکم کښے صرف هغه خاص حالات شامل نهٔ دی په کوم کښے چه په حقیقت کښے د تجسّس ضرورت

وی۔ مثلاً چہ د یو سړی یا د یوې ډلې په حقله د وراني کولو څه نیتې ښکارندې معلومې شي او دا یره وي چه هغه به څه جُرم کوي نو حکومت د هغه د حالاتو تحقیق کولې شي۔ یا مثلاً چا ته د واده پیغام لیږل وي یا د چا سره کاروبار شروع کول وي نو د خپل اطمینان د پاره د هغه د حالاتو تحقیق سره کولې شي۔

۲۶ غیبت دې ته وائي چه "یو سړے د چا په حقله پسې شاه داسې خبرې اوکړي چه که چرې هغه ته د هغې پته اولګي نو هغه پرې خفه کیږي۔" دا تشریح پخپله د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه نقل کړې شوې ده۔ د حضرت ابوهریرهؓ په روایت کښې، چه مسلم، ابوداؤد، ترمذی، نسائی او نورو محدثینو نقل کړې دے، نبیؐ د غیبت دا تعریف بیان کړې دے:

ذکرك اخاك بمایکره۔ قیل افرأیت ان کان فی اخی ما اقول۔ قال ان کان فیه ما تقول فقد اغتبته وان لم یکن فیه ما تقول فقد بهتّه۔

غیبت دې ته وائي چه "ته د خپل ورور په حقله داسې خبره اُوکړې چه هغه ته د هغې خوښه نه وي۔" چا اُووئیل چه که چرې زما په ورور کښې هغه خبره وي کوم چه زه کوم نو بیا ستا څه خیال دے؟ نبیؐ اُوفرمائیل چه که چرې په هغه کښې هغه خبره وي نو تا د هغه غیبت اوکړو، او که چرې په هغه کښې نه وي نو تا په هغه بهتان اُولګوؤ۔

یو بل روایت چه امام مالکؒ په مؤطّا کښې د حضرت مُطّلب بن عبدالله نه نقل کړې دے د هغې الفاظ دا دي:

ان رجلا سئل رسول الله صلی الله علیه وسلم ما الغیبة؟ فقال ان تذکر من المرء ما یکره ان یسمع۔ قال یا رسول الله وان کان حقا؟ قال اذا قلت باطلاً فذلك البهتان۔

یو سړي د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه تپوس اُوکړو چه غیبت څه دے؟ نبیؐ اُوفرمائیل "دا چه ته د یو سړي په حقله داسې خبره اُوکړې چه کله ئې هغه واوري نو هغه پرې خفه شي۔" هغه عرض اوکړو اے د الله رسوله! که چرې زما خبره حقه وي؟ نبیؐ جواب ورکړو که ستا خبره باطله وي نو بیا خو دا ئې بهتان دے۔

د دې احادیثو نه معلومه شوه چه د چا خلاف پسې شا د دروغو الزام لګول بهتان دے او د چا حقیقي عیبونه بیانول غیبت دے۔ دا کار که په ښکاره الفاظو سره اوکړے شي یا په اشارو کنایو سره، بهر حال حرام دے۔ د هغه شان که دا کار د چا په ژوند کښې اوکړے شي او که د چا د مرګ نه روستو، په دواړو حالتو کښې د دې حراموالے یو شان دے۔ د ابوداؤد روایت دے چه کله ماعز بن مالک اسلمي له د زنا په جُرم کښې د رجم سزا ورکړے شوه نو نبي صلی الله علیه وسلم په لاره کښې واوریدل چه یو سړي خپل ملګري ته وائي چه "د دې سړي ته اوګوره، الله په ده پرده اچولې وه، خو د ده نفس دے تر هغې پورې نښوو چه تر څو دے د سپي په مرګ مړ کړے نه شو۔" څه لږ مخکښې په لاره کښې یو مړ خر ملاؤ شو چه بوئي ئې کړے وو۔ نبیؐ اودریدو او دا دواړه کسان ئې راوغوښتل او ورته فرمائیل، "بوزشئ او د دې مړ خر نه څه اُوخورئ۔" دواړو عرض اوکړو چه اے د الله رسوله دا به څوک اُوخوري؟ نبیؐ اوفرمائیل فما نلتما من عرض اخیکما انفاً اشد من اکل منه۔" اُوس اُوس چه تاسو

دَ خپل رُورِ دَ عزّت په حقله کومے خبرې کوے هغه دَدے مرګ دَ خوراک نه زیاتے خرابے وے۔"

په دے حکم کښے صرف هغه حالات شامل نه دی په کوم کښے چه دَ چاپښے شا یا دَ چا دَ مرګ نه روستو دَ هغه دَ بدئ بیا نَولو یو داسے ضرورت وی چه هغه دَ شریعت په نظر کښے یو صحیح ضرورت وی، او هغه ضرورت دَ غیبت کولو نه بغیر نَه شی پوره کیدے، او دَ هغے دَ پاره که غیبت اُونه کړے شی نو دَ غیبت نه زیات غټه ګناه کیږی. نبی صلی الله علیه وسلم دَدے دَ پاره دا اُصول بیان کړی دی۔

ان من اربیٰ الربا الاستطاله فی عرض المسلم بغیرحق۔ (ابوداوٗد) دَ یو مسلمان په عزت باندے په ناحقه حمله کول دَ ټولو نه غټ زیاتے دے۔

په دے حدیث کښے دَ لفظ "ناحق" نه دا معلومیږی چه "په حقه" داسے کول جائز دی. بیا پخپله دَ نبی صلی الله علیه وسلم دَ عمل نه مونږ ته یو څو مثالونه داسے ملاویږی چه دَ هغے نه دا معلومیږی چه "حق" څه څیز دے او په کوم قسم حالاتو کښے دَ ضرورت مطابق غیبت کول جائز کیدے شی۔

یو کلے یو بانډیے راغے او په نبیؐ پسے په مانځه کښے شامل شو او دَ مونځ دَ ختمیدو سره روان شو او دائے وئیل چه "اے خدایه په ما رحم اُوکړے او په محمدؐ باندے، او زمونږ نه بغیر بل څوک په دَ رحمت کښے مه شریکوه۔" نبیؐ صحابو ته اُوفرمائیل: اتقولون هو اضل ام بعیره؟ الم تسمعوا الی ما قال؟ "تاسو څه وایئ چه دا سړے زیات ناپوه دے او که دَ دهٔ اُوښ؟ تاسو وا نَوریدل چه دهٔ څه وئیل؟ (ابوداوٗد)۔ داخبره نبیؐ دَ هغه پښے شا اُو فرمائیله ځکه چه هغه خو دَ سلام ګرځولو سره تلے وُو۔ هغه چونکه دَ نبیؐ په موجودګئ کښے یوه ډیره غلطه خبره کړی وه او نبیؐ له په هغے باندے خاموشه پاتے کیدل دَ یو دَ پاره دَ غلطیدو سبب جوړیدے شو چه څوک داسے خبره کول څه نه څه جائز کیدے شی، نو دَدے وجه نه دا ضروری وه چه نبیؐ دَ هغے تردید اُوکړی۔

دَ قیس لُور فاطمے ته دوو کسانو دَ نکاح پیغام ورالیږو. یو حضرت معاویه وُو او بل حضرت ابوالجهم. هغه نبیؐ له دَ مشورے دَ پاره راغله. نبیؐ ورته اُوفرمائیل "معاویه غریب دے او ابوالجهم ښځے ډیرے وهی۔" (بخاری او مسلم) دلته کیوه ښځے دَ آئینده ټول ژوند مسئله وه او هغے دَ نبیؐ نه مشوره غوښتلی وه نو په دے حالت کښے نبیؐ ضروری اُوګڼړله چه دَ دواړو کسانو کومے کمزوریانے دَ هغه په علم کښے دی چه هغه ورته اُوښائی۔

یوه ورځ نبیؐ دَ حضرت عائشےؓ کره وُو. یو سړے راغے او دَ ملاقات دَ پاره ئے اجازت اُوغوښتو. نبیؐ اُوفرمائیل چه دا په خپله قبیله کښے ډیر خراب سړے دے. بیا نبیؐ بهرته راؤوتو او دَ هغه سره ئے ډیره په نرمئ خبرې اُوکړے. نبیؐ چه کورته واپس راغے نو حضرت عائشےؓ ورته عرض اُوکړو چه تا خو دَ هغه سره ډیره په نرمئ خبرې اُوکړے حالانکه چه کله ته بهرته ورروتلے نو تا دَ هغه په حقله نور څه فرمائیلی وُو. په دے جواب کښے ورته نبیؐ اُوفرمائیل ان شرّ الناس منزلةً عند الله یوم القیٰمة من ودعه (اوترکه) الناس اتقاء فحشه۔ "دَ قیامت په ورځ به دَ خدائے په نز دَ ټولو نه خراب شائے دَ هغه چا وی چه دَ هغه دَ ژبے دَ خرابوالی دَ ډیرے نه خلق دَ

هغه سره ملاویدل پریږدی" (بخاری او مسلم)۔ چه په دے واقعه سړے غور اوکړی نو معلومیږی چه نبیؐ د هغه سړی په حقله ښه رائے نه لرله۔ ویائے هم د هغه سره خبری اتری په ښه طریقه اوکړے ځکه چه نبیؐ خود ښوا خلاق تو مالک وُو۔ لیکن د نبیؐ سره دا فکر شو چه د دے سړی سره د نرم سلوک کولو په وجه زما کوروالا چرته دا سړے زما دوست اُونه ګنړی او هغه روستو په څه وخت کښے د دے نه ناجائزه فائده واخلی، په دے وجه نبیؐ حضرت عائشهؓ خبردار کړه چه دا سړے په خپله قبیله کښے ډیر خراب سړے دے۔

په یوه موقعه کښے د حضرت ابو سفیان ښځه هند بنت عُتبه راغله او نبیؐ ته ئے عرض اوکړو چه " ابو سفیان یو شوم سړے دے، ماله او زما بچولو له دومره نه راکوی چه زمونږ د ضرورت د پاره کافی شی" (بخاری او مسلم) د ښځے د طرفنه دا شکایت د خاوند په غیر موجودګئ کښے اګرچه غیبت وُو، لیکن نبیؐ جائز اوګنړو، ځکه چه د مظلوم دا حق دے چه د ظلم شکایت یو داسے سړی له ویسی چه هغه ختمولے شی۔

د رسول الله صلی الله علیه وسلم د سنتو د یه مثالونو نه فقهاؤ او محدثینو فائده اخستی ده او دا قاعده ئے تړ را ایستلی ده چه " غیبت صرف په هغه وخت کښے جائز دے کله چه د یو صحیح (یعنی شرعًا صحیح) غرض د پاره د هغے ضرورت وی او هغه ضرورت د هغے نه بغیر نه شی پوره کیدے " بیا د دے قاعدے لاندے عالمانو د غیبت لاندینی شکلونه جائز کړی دی:

(۱) مظلوم سړے د ظالم خلاف خپل شکایت هر هغه چاته ویلے شی چه د هغه نه د مظلوم دا توقع وی چه هغه د دهٔ نه د ظلم لرے کولو د پاره څه نه څه کولے شی۔

(۲) د اصلاح په نیت د چا ید داسے خلقوته ښکاره کول چه د هغوئ نه دا اُمید وی چه هغوئ به د دغه بدئ لرے کولو د پاره څه اوکړے شی۔

(۳) د فتوے اخستلو په غرض یو مفتی ته داسے واقعه بیانول چه په هغے کښے د یو سړی د یو غلط کار ذکر راشی۔

(۴) خلق د یو سړی یا د ډیرو سړو د شر نه خبردار ول چه هغوئ د هغه د نقصان نه بچ شی۔ مثلاً د راویانو، د ګواهانو او د مصنفینو کمزوریانے بیانول په اتفاق سره یوازے جائز نه بلکه واجب دی ځکه چه د دے نه بغیر شریعت د غلطو روایتونو د خوریدو نه بچ کول، عدالتونه د بے انصافئ نه بچ کول، او عام خلق یا طالب علمان د ګمراهئ نه بچ کول ممکن نه دی۔ یا مثلاً یو سړے په یو خاندان کښے واده کول غواړی، یا د چا په ګاوند کښے کور اخستل غواړی، یا د چا سره د شراکت معامله کول غواړی، یا چاته خپل امانت حواله کول غواړی، او هغه ستا نه مشوره اخلی نو ستا د پاره واجب دی چه د هغه عیب او ښه ولے هغه ته اُو ښائے هسے نه چه په ناپوهتیا کښے چرته دوکه نه شی۔

(۵) کوم خلق چه بدی او ګناه خوروی، یا د بد عاتو (یعنی په دین کښے د نوؤ کارونو) او د ګمراهوۀ خورولو کار کوی، یا خلق په بے دینئ کښے او د ظلم په فتنو کښے اخته کوی، نو د هغوئ

خلاف آواز اوچتول جائز دی.

(۶) کوم خلق چه په خراب نوم دومره مشهور شوے وی چه هغوئ د هغه نوم نه بغیر په بل نوم نشی پیژندلے کیدے نو د پیژندګلو په غرض د هغوئ د پاره هغه نوم استعمالول جائز دی نه د سپکاوی په غرض. (د تفصیل د پاره اوګوره فتح الباری جلد ۱۰، ص ۳۶۲. شرح مسلم للنووی، باب تحریم الغیبة. ریاض الصالحین، باب مایُباح من الغیبة، احکام القرآن للجصّاص وروح المعانی، تفسیر آیة ولا یغتب بعضکم بعضًا.)

د دے خاصو حالاتو نه ماسوا پشے شا د چا بد وئیل مطلقًا حرام دی. دا بده وینا که رښتیا په چاکښے وی نو دا غیبت دے، او که په چاکښے نه وی نو بهتان دے، او که د دوو کسانو د جنګولو د پاره وی نو چُغلی ده. شریعت دے دریوا رو شیزو نو ته حرام وائی. د مسلمانانو په وطن کښے په هر مسلمان دا لازم دی چه که چرے د هغه په مخکښے په چا پسے د تهمت خبری کیږی نو هغه دِ په هغے خاموشه نهٔ پاتے کیږی بلکه د هغے تردید دِ کوی، او که چرے دِ یو جائز شرعی ضرورت نه بغیر څوک د چا داسے بدیانے بیا نوی چه هغه واقعی په هغه کښے وی نو هغوئ ته دِ نصیحت کوی چه د خدائے نه اُویریږی او د دے ګناه نه منع شی. د نبی صلی الله علیه وسلم حدیث دے چه:

مامن امرئٍ یخذل امرأً مسلمًا فی موضع تنتهك فیه حرمته وینتقص فیه من عِرضِه اِلّاخذله الله تعالیٰ فی مواطن یحبّ فیها نصرته، ومامن امرئٍ ینصر امرأً مسلمًا فی موضع ینتقص فیه من عِرضِه وینتهك فیه من حرمته اِلّا نصره الله عزوجل فی مواطن یحبّ فیها نصرته. (ابوداؤد)

که چرے یو سړے د بل مسلمان مرسته په داسے وخت کښے نه کوی څه وخت چه د هغه سپکاوے کیږی او د هغه عزت لوټلے کیږی نو الله تعالیٰ هم د هغه مرسته په داسے وختونو کښے نهٔ کوی څه وخت چه د الله تعالیٰ نه مدد غواړی. او که چرے یو سړے د مسلمان مرسته په داسے وخت کښے کوی څه وخت چه د هغه عزت لوټلے کیږی او هغه سپکاوے کیږی نو الله تعالیٰ د هغه مدد په داسے وخت کښے کوی څه وخت چه هغه د الله امداد غواړی.

پاتے شو غیبت کونکے سړے، نو هغه ته چه څه وخت دا پته اولګی چه زهٔ غیبت کوم یا م غیبت کړے دے، نو د هغه اولنے کار دا دے چه الله ته رااُوګرځی او توبه اُوباسی او د دے حرام کار نه منع شی. د دے نه روستو د هغه دویم کار دا دے چه د خپله وسه پورے دِ د هغے کمے پوره کړی. که چرے هغه د یو مړی غیبت کړے وی نو د هغه په حق کښے دِ د بخښنا نے ډیره ډیره دعاګانے او غواړی. که د یو ژوندی سړی غیبت ئے کړے وی او هغه د حقیقت نه خلاف هم وی نو د چا په مخکښے چه ئے د بهتان دا خبری کړی وی د هغوئ په مخکښے دِ د هغے تردید اوکړی (چه د فلانی په حق کښے ما دا خبری کړے وسے خو هغه ما دروغ وئیلی وُو). او که رښتیا غیبت ئے کړے وی نو آئنده دِ بیا هیڅکله د هغه بد نهٔ وائی او د چا په مخکښے چه ئے وئیلی وُو د هغه نه دِ معافی او غواړی. څینی عالمان وائی چه معافی تر هغه غوښتل پکار دی چه کله هغه ته د هغے پته لګیدلی وی، ګنی نو یوازے توبه ایستل کافی دی، ځکه چه که چرے هغه سړے ناخبره وی او غیبت کونکے معافی

أَحَدُكُمْ أَنْ يَأْكُلَ لَحْمَ أَخِيهِ مَيْتًا فَكَرِهْتُمُوهُ

چه د خپل مړ وُرور غوښه اُوخوري؟[۲۶] گورئ، تاسو پخپله دا نه خوښوئ -

غوښتلوله ورځي او دا ورته اُووائي چه ماستا غيبت کړے وُو نو دا به د هغه د پاره د خفګان سبب جوړ شي.

[۲۶] په دے فقره کښے الله تعالیٰ د غيبت کولو تشبيه د مړ وُرور د غوښو خوړلو سره ورکړي ده چه انسان د غيبت نه کرکه اُوکړي. د مُردار غوښے نه خو هسے هم کرکه کيږي، او چه لا هغه غوښه د څاروي نه وي بلکه د انسان وي، او انسان هم بل څوک نه بلکه خپل سکه وُرور وي. بله دا چه دا تشبيه د تپوس په انداز کښے ده چه په دے سره خبره نوره هم زُورداره شوي ده چه هر سړے د خپل زړهٔ نه تپوس اُوکړي او پخپله دِ فيصله اُوکړي چه آيا هغه د خپل مړ وُرور غوښے خوړلو ته تيار دے؟ که چرے نه دے تيار او هغه له تِرکرکه ورځي نو آخر هغه دا خبره څنګه خوښوي چه هغه دِ پښے شا د يو مومن وُرور په عزت حمله اُوکړي چه نه هغه له د هغے د جواب ورکولو د پاره څوک شته او نه تِر هغه خبر دے چه زما لپاره عزتي کيږي؟ د دے حکم نه دا خبره هم معلومه شوه چه د غيبت د حراموالي بنيادي وجه دا نه ده چه په دے سره د سړي زړهٔ ته خفګان رسي، بلکه پښے شا د چا بد رټيل پخپله خپله يو حرام کار دے خواه که هغه ته د هغے پته وي او که نه وي او خواه که هغه ته د هغے نه تکليف رسي او که نه رسي. ښکاره خبره ده چه د مړي غوښه خوړل په دے وجه حرام نه ده چه مړي ته د هغے نه تکليف رسي. مړے خو د مرګ نه پس د دے نه خبر نه وي چه څوک د هغه نه غوښه پريکوي- ليکن دا کار پخپله ډير سخت د کرکے کار دے. د غه شان د چا چه غيبت شوے وي هغه ته هم که چرے د دے غيبت اطلاع ورا اُونه رسي نو هغه به ټول عُمر د دے خبرې نه ناخبره وي چه چا د هغه په عزت باندې د کومو خلقو په محفل کښے او په څه وخت کښے حمله کړې وه او د هغے په وجه هغه د چا په نظر کښے سپک ښکاره شو. د ناخبرۍ په وجه به هغه ته د دے غيبت نه هيڅ تکليف ورا اُونه رسي، ليکن د هغه عزت ته خو بهرحال د دے نه نقصان رسي، نو په دے وجه دا کار د خپل مړ وُرور د غوښے خوړلو نه مختلف نه دے -

---

وَاتَّقُوا اللّٰهَ ؕ اِنَّ اللّٰهَ تَوَّابٌ رَّحِيْمٌ ﴿۱۲﴾ يٰۤاَيُّهَا النَّاسُ اِنَّا خَلَقْنٰكُمْ مِّنْ ذَكَرٍ وَّاُنْثٰى وَجَعَلْنٰكُمْ شُعُوْبًا وَّقَبَآئِلَ لِتَعَارَفُوْا ؕ اِنَّ اَكْرَمَكُمْ عِنْدَ اللّٰهِ اَتْقٰىكُمْ ؕ اِنَّ اللّٰهَ عَلِيْمٌ خَبِيْرٌ ﴿۱۳﴾

دَ الله نه اُویریږئ، الله ډیر توبه قبلونکے او رحم کونکے دے۔

اے خلقو مونږه تاسو دَ یو سړي او دَ یوے ښځے نه پیدا کړئ او بیا مو ستاسو قومونه او قبیلے جوړې کړے دَ پاره دَ دے چه تاسو یو بل اُوپیژنئ۔ په حقیقت کښے په تاسو کښے دَ ټولو نه زیات عزتمند دَ الله په نزد هغه دے څوک چه په تاسو کښے دَ ټولو نه زیات پرهیزګار دے۔[28] یقیناً چه الله په هرڅه پوهه دے او دَ هرڅه نه خبر دے[29]

[28] په تیرو شوؤ آیتونو کښے مسلمانانو ته دَ ګناهونونه دَ محفوظ پاتے کیدلو دَ پاره ضروري حکمونه شوی وُو۔ اُوس په دے آیت کښے ټولو انسانانو ته خطاب شوے دے او دَ هغه لوئے ګمراهئ اصلاح شوے ده کومه چه په دُنیا کښے هیشه دَ لوئی فساد سبب جوړیږی، یعني نسل، رنګ، ژبه، وطن او دَ قومیت تنګ دَ ښحوا زملغه راسے دَ نن ورځے پورے په هردور کښے انسان عام طور دَ انسانیت نه سترګے پټوی او دَ خپل ځان نه چاپیره یو څو وړے وړے کرښے راکاږی او چه څوک په هغه کرخو کښے دننه پیدا شوے وی هغه ته خپل وائی او چه څوک دَ هغه کرخونه بهر پیدا شوے وی هغه ته پردے وائی۔ دا کرښے دَ عقل او دَ اخلاق په بنیاد نه دی راښکلے شوی بلکه دَ اتفاق پیدائش په بُنیاد باندے راښکلے شوی دی۔ چرته دَ دے بُنیاد په یو خاندان کښے، په یوه قبیله کښے یا په یو نسل کښے پیدا کیدل وی، او چرته دَ زمکے په یو ټکړه کښے یا دَ یو خاص رنګ په قوم کښے یا دَ یوے خاصے ژبے ویونکی په قوم کښے پیدا کیدل وی۔ بیا چه په دَ بنیادونو باندے دَ خپل او دَ پردی په مینځ کښے دَ فرق کولو کوم اُصول جوړ کړے شوی دی، هغه یوازے دا نه دی چه دَ خپلو سره به دَ پردو په نسبت زیاته مینه او زیاته مرسته وی، بلکه دَ دغه اُصولو وجه نه نفرت، عداوت، حقارت او تذلیل تر دے حده ورسیدو چه دَ دے دَ پاره فلسفے جوړے کړے شوے دی۔ مذهبونه جوړ کړے شوی دی۔ قانونونه جوړ کړے شوی دی۔ اخلاقي اُصول جوړ کړے شوی دی۔ قومونو او حکومتونو تر ځان له خپل مستقل تانون جوړ کړے دے او دَ سوؤنو کالو پورے ئے پرِ عمل کړے دے۔ یهودیانو هم په دے بنیاد باندے بنی اسرائیل دَ خدائے غوره مخلوق اوګنړل او په خپلو مذهبي حکمونو کښے ئے دَ غیر اسرائیلیانو حقونه او مرتبے دَ اسرائیلیانو نه لاندے کړلے۔ په هندوانو کښے وَرن آشرم (یعني دَ نسل مقام) هم دَ دے فرق په بنیاد باندے پیدا شو چه دَ هغے تر مخه برهمن اُوچت نسل اُوګنړلے شو او نور ټول انسانان لاندے او ناپاکه اُوګنړلے شو او په شودر باندے دَ ذلت تا په اُووهلے شوه۔ په افریقه او امریکه کښے چه دَ تورو او دَ سپینو په جګړه کښے په تورو خلقو باندے کوم ظلمونه اُوشو، دَ تاریخ په پانړو کښے دَ هغے کتلو ته ضرورت نشته، نن په دے شلمه صدئ کښے هرسړے هغه په خپلو سترګو کتلے شی۔ دَ یُورپ خلق چه امریکے ته لاړل او دَ ریډ اِنډین نسل سره ئے کوم سلوک اوکړو او دَ ایشیا او دَ افریقے په کمزورو

قومونو باندې چه ئې غلبه حاصله کړه او د هغوئ سره ئې کوم سلوک اوکړو د هغې اصلي سبب هم دا وُو چه د هغوئ په خيال کښې کوم خلق د هغوئ د وطن او د هغوئ د قوم نه بهر پيدا شوي وي نو د هغوئ سر او مال او عزت ټول په هغوئ باندې حلال دي او هغوئ ته دا حق حاصل دے چه د هغوئ مالونه لُوټ کړي، د هغوئ نه غُلامان جوړ کړي او که ضرورت پيښ شو نو هغه او د مځکې نه ئې لرې کړي. په مغربي قومونو کښې چه کوم د قوم پرستي ده هغې خوچه يو قوم د بل قوم د پاره په کوم طريقه ماتونکے څناور جوړ کړے دے د هغې کِسه مثالُونه د نزدے زمانې په جنګونو کښې ليدلے شوي دي او نن هم ليدلے کيږي. خاص طور د نازي جرمنۍ د نسليت فلسفه او د نارډک نسل د اُوچتوالي فکر چه په تير شوي جنګ عظيم کښې کوم کارنامے ښکاره کړي دي هغې ته چه سړے اُوګوري نو په آسانئ سره دا اندازه لګولے شي چه د ديره غټې ګمراهۍ د اصلاح د پاره د قرآن مجيد دا آيت نازل شوے دے.

په دے وړوکي شان آيت کښې الله تعالىٰ ټولو انسانانو ته درے اهم اُصولي حقيقتونه بيان کړي دي:

يو دا چه ستاسو د ټولو اصل يو دے، د يو نارينه او د يوے زنانه نه تاسو ټول پيدا شوي يئ او نن چه ستاسو څومره نسلونه په دُنيا کښې خواره دي هغه په حقيقت کښې د يو نسل څانګے دي چه د يوے مور او د يو پلار نه شروع شوي دي. د پيدائش په دے زنځير کښې په يو ځائے کښې هم د هغے د له بازئ او غوره ذات او د ټيټ ذات د پاره هيڅ بنياد نشته کوم چه ستاسو په باطل ګمان کښې موجُود دے. اِکئ يو خدائے ستاسو خالق (يعني پيدا کونکے) دے، داسے نه ده چه مختلف انسانان مختلفو خدايانو پيدا کړي دي. د اِکئ يوے مادے نه تاسو جوړ شوي يئ، داسے هم نه ده چه څه انسانان د پاکے او غوره مادے نه جوړ شوي دي او څه انسانان د ګنده يا خرابے مادے نه جوړ شوي دي. په اِکئ يوه طريقه تاسو پيدا شوي يئ، دا هم نه ده چه د مختلفو انسانانو د پيدا کيدو طريقے جُدا جُدا دي. او تاسو د يو مور او پلار اولاد يئ، دا هم نه ده شوي چه اول انساني جوړے ويرے وے چه کئ د دُنيا د مختلفو حصو آباديانے جُدا جُدا پيدا شوي دي.

دويم دا چه د اصل په اعتبار سره تاسو ټول يو يئ خو بيا هم په قومونو او په قبيلو کښې ستاسو تقسيميدل يو فطري کار وُو. ښکاره خبره ده چه په ټوله زمکه باندې د ټولو انسانانو اِکئ يو خاندان خونه شو کيدے. د نسل د ويريدو سره دا خبره ضروري وه چه بے شماره خاندانونه جوړ شي او بيا د خاندانونو نه قبيلے او قومونه جوړ شي. د غه شان د زمکے په مختلفو حصو کښې د آباديدو نه روستو په رنګونو کښې، په شکلونو کښې، په ژبو کښې او د اُوسيدو په طريقو کښې مختلف کيدل ضروري وُو، او د يو حصے په اُوسيدونکو کښې د يو بل سره نزدے والے او د لرو لرو حصو په اُوسيدونکو کښې لرے والے هم ضروري وُو. ليکن د دے فطري فرق او اختلاف مطلب هيڅ کله نه وُو چه د دے په بنياد باندې د اُوچت ذات او د ټيټ ذات د شرافت او د رذالت غوره او ناغوره والے جوړ کړے شي، يو نسل دے په بل نسل باندې ځان برتر اُوګنړي، د يو رنګ خلق دے د بل رنګ خلق ذليل او سپک اُوګنړي، يو قوم دے په بل قوم باندې خپل ځان لوئ ګنړي او په انساني حقونو کښې دے يو خو والے ته په بله والا باندې برتري حاصله وي. الله تعالىٰ چه په کومه وجه

انسانی ډلے په قومونو او په قبیلو کښے تقسیم کړی دی هغه صرف د او د چه د هغوی په منځ کښے د پیژند ګلو او د یو بل سره د امداد کولو فطری طریقه هم دا وه. هم په دے طریقه د یو خاندان، او د یوے ګورو لئ خلقو، د یوے قبیلے او د یو قوم خلقو په شریکه ژوند تیرولے شوا و د ژوند په معاملاتو کښے ئے د یو بل سره امداد کولے شو. لیکن دا ئے شیطانی جهالت وُو چه د الله تعالیٰ جوړ کړے شوی فطرت د پیژند ګلو د پاره کوم څیز جوړ کړے وُو د هغے نه په یو بل باندے د فخر کولو او د یو بل نه د نفرت کولو ذریعه جوړه کړے شوه او بیا خبره ظلم او زیاتی ته اورسولے شوه.

دریم: دا چه د انسانانو په منځ کښے د برتری او غوره والی څه بنیاد کیدے شی نو هغه صرف اخلاقی غوره والے دے. د پیدائش په اعتبار سره ټول انسانان یو شان دی، ځکه چه د هغوی پیدا کونکے یو دے، د هغوی د پیدا کید و ماده او د پیدا کید و طریقه یو یو ده، او د هغوی ټولو نسب یو مور او پلار ته رسی. د دے نه علاوه د چا په یو خاص ملک کښے یا په یو خاص قوم کښے، یا په یو خاص ګورو لئ کښے پیدا کید ل یو داسے اتفاقی خبره ده چه په هغے کښے د چا د خپلے اراده، د چا د خپلے خوښے او د چا د خپل کوشش هیڅ دخل نشته. هیڅ مناسب وجه نشی کیدے چه په دے لحاظ سره د یو انسان ته په بل انسان باندے فضیلت یعنی غوره والے حاصل وی. د کوم اصل څیز په وجه چه یو انسان ته په بل انسان باندے فضیلت حاصلیږی هغه دا دے چه هغه د بل نه زیات د خدائے نه یریدونکے، د ګناهونو نه ځان کیدونکے او د نیکئ په لاره تلونکے وی. داسے انسان که د هر نسل، د هر قوم او د هر ملک سره تعلق لری، خو هغه د خپلے ذاتی خوبئ په وجه د قدر کولو قابل دے. او څوک چه د دے نه خلاف وی هغه بهرحال د یو ښکته درجے انسان دے خواه که هغه تور وی او که سپین وی، که په مشرق کښے پیدا شوے وی او که په مغرب کښے.

د قرآن دا کوم حقیقتونه چه په دے مختصرشان آیت کښے بیان کړے شوی دی، دا رسول الله صلی الله علیه وسلم په خپلو مختلفو خطبو کښے زیات په تفصیل سره بیان کړی دی. د مکے د فتحے په موقعه چه د کعبے د طواف کولو نه روستو نبیؐ کوم تقریر کړے وُو په هغے کښے ئے فرمائیلی وُو:

الحمد لله الذی اذهب عنکم عیبة الجاهلیة و تکبرها. یا ایها الناس، الناس رجلان، بر تقی کریم علی الله، وفاجر شقی هین علی الله. الناس کلهم بنو آدم وخلق الله آدم من تراب.
(بیهقی فی شعب الایمان. ترمذی)

شکر دے د هغه الله چه ستاسو نه ئے د جاهلیت عیب او د جاهلیت تکبر لرے کړو. اے خلقو، ټول انسانان بس په دوو حصو کښے تقسیمیږی. یو نیک او پرهیزګار، چه د الله په نظر کښے عزت من دے. دویم ګنهګار او بد بخته، چه د الله په نظر کښے ذلیل دے. ټول انسانان د آدم اولاد دی او الله تعالیٰ آدم د خاورے نه پیدا کړے وُو.

د حجة الوداع په موقع د ایام تشریق په منځ کښے نبیؐ یو تقریر اوکړو او په هغے کښے ئے اوفرمائیل:

یا ایها الناس، الا ان ربکم واحد لا فضل لعربی علی عجمی ولا لعجمی علی

خلقو خبردار شئ، ستاسو د ټولو خدائے یو دے، عربی له په عجمی باندے او عجمی له په عربی باندے، او سور له په تور

عربي ولا لاسود على احمر ولا لاحمر على اسود الّا بالتقوىٰ، ان اكرمكم عند الله اتقٰكم، الا هل بلّغتُ؟ قالوا بلىٰ يارسول الله، قال فليبلغ الشاهد الغائب.

(بیهقی)

باندې او تور له په سور باندې هیڅ فضیلت نشته، او که شته نو یوازې په تقوىٰ سره دے. د الله په نزد په تاسو کښې د ټولو نه زیات عزت والا هغه دے چه هغه د ټولو نه زیات پرهیزګار وي. آیا ما تاسو ته خبره ورسوله؟ ټولو خلقو ووئیل چه هو، اے د الله رسوله. رسول اوفرمائیل، چه څوک موجود دي نو هغوئ دې هغه خلقو ته دا خبره ورسوي څوک چه موجود نه دي.

د نبیؐ یو حدیث دے.

كلكم بنوا آدم وآدم خُلق من تُراب ولينتهينّ قوم يفخرون بآبائهم او ليكوننّ اهون على الله من الجعلان.

(بزار)

تاسو ټول د آدم اولادیئ او آدم د خاورے نه پیدا کړے شوے وو. خلق دې په خپل پلار نیکه فخر پریږدي کنه نو هغوئ به د الله په نظر کښې د یو سپک چینجي نه زیات ذلیل وي.

په یو بل حدیث کښې نبیؐ فرمائي:

انّ الله لا يسئلكم عن احسابكم ولا عن انسابكم يوم القيٰمة، ان اكرمكم عند الله اتقٰكم. (ابن جریر)

الله به د قیامت په ورځ ستاسو نه ستاسو د اصل نسل تپوس نه کوي. د الله په نزد د ټولو نه زیات عزتمند هغه کس دے چه هغه د ټولو نه زیات پرهیزګار وي.

د یو بل حدیث الفاظ دا دي:

انّ الله لا ينظر الىٰ صوركم واموالكم ولكن ينظر الىٰ قلوبكم واعمالكم.

(مسلم، ابن ماجه)

الله ستاسو شکلونو او ستاسو مالونو ته نه ګوري بلکه هغه ستاسو زړونو او ستاسو عملونو ته ګوري.

دا تعلیمات هسے تشے خبرې نه دي بلکه اسلام د دے مطابق د مومنانو یوه داسے لویه ورورولي عملاً قائم کړې ده چه په هغې کښې د رنګ، د نسل، د ژبے، د وطن او د قومیت هیڅ فرق نشته، چه په هغې کښې د اوچت او د لاندې د ګندې نسل او د اعلىٰ نسل او د جُد ایئ او د ننګ هیڅ تصوّر نشته، چه په هغې کښې د هر نسل، د هر قوم او د هر وطن خلق شامیدے شي او شامل شوي دي، او د شاملیدو نه روستو د هغوئ ټولو یو شان برابر حقونه دي. کوم خلق چه د اسلام مخالفین دي هغوئ هم دا خبره منلي ده چه د انساني برابرئ او یووالي په اصولو باندې په مسلمانانو کښې څومره په کامیابئ سره عمل شوے دے د هغې مثال د دُنیا په بل یو دین او بل یو نظام کښې نه موندے کیږي او نه چرته موندے شوے دے. یوازے اسلام هغه دین دے چه د زمکے په مخ باندې خواره شوي بے شماره نسلونه او قامونه ئے را یوځائے کړل او یو اُمت ئے ترې جوړ کړو.

په دے سلسله کښې د یوے غلط فهمۍ لرے کول هم ضروري دي. د واده کولو تړون په معامله کښې چه اسلامي قانون "کُفو" ته کوم اهمیت ورکوي د هغے نه څیني خلقو دا مطلب اخستے دے چه څه خلق شریفان دي او څه خلق رذیلان دي او د دوئ په منځ کښې یو بل سره نکاح کول ښه خبره نه ده. لیکن دا په اصل کښې

قَالَتِ الْأَعْرَابُ اٰمَنَّا ۭ قُلْ لَّمْ تُؤْمِنُوْا وَلٰكِنْ قُوْلُوْٓا اَسْلَمْنَا

دا باندیسیان وائی چه "مونږه ایمان راوړو" دوی ته اُووایه، "تاسو ایمان نه دے راوړے[۳۰] بلکه داسے وایئ چه " مونږه غاړه کیښوده یعنی تابع شو[۳۱]"

یو غلط خیال دے. د اسلامی قانون ترمخه د هر مسلمان سړی د هرے مسلمانے ښځے سره نکاح کیدے شی، لیکن کورنی ژوند به هله بنه کامیاب وی چه د ښځے او د خاوند ترمنځه په عادتونو کښے، په خوئی خصلت کښے، د ژوند په طریقو کښے، په خاندانی رسمونو کښے او د میل مِلاپ په رواجونو کښے د زیاتو نه زیات مطابقت وی د پاره د دے چه هغوی د یو بل سره بنه ژوند تیر کړی. دا د کفاءت اصلی مقصد دے. چرته چه د سړی او د ښځے په منځ کښے په دے لحاظ سره ډیر زیات فرق وی نو هلته تول عمر د خوږ ژوند تیرولو اُمید ډیر کم کیدے شی، په دے وجه اسلامی قانون داسے کسان یو ځائے کول نه خوښوی، په دے وجه نه چه په دوارو کښے یو شریف دے او بل کمینه دے، بلکه په دے وجه چه کله د دواړو په حالاتو کښے ډیر زیات فرق او اختلاف وی نو د وادهٔ د ژوند د ناکامیدو زیات اِمکان وی.

۲۹ یعنی دا خبره الله ته معلومه ده چه څوک واقعی د اعلیٰ درجے انسان دے او څوک د ادنیٰ درجے انسان دے. خلقو چه د ځپله ځانه د اعلیٰ او د ادنیٰ کوم معیار جوړ کړے دے هغه د الله سره نه چلیږی. کیدے شی چه یو سړے په دُنیا کښے د اُوچتے مرتبے گنړلے شی او هغه د الله تعالیٰ په آخری فیصله کښے د کمے درجے په خلقو کښے راشی، او کیدے شی چه یو سړے دلته په دُنیا کښے سپک گنړلے شی او هغه هلته په اُوچته مرتبه کښے راشی. اصل خبره د دُنیا عزت او ذلت نه دے بلکه اصل عزت او ذلت هغه دے کوم چه د الله نه انسان ته نصیب شی. په دے وجه انسان له پکار دی چه تول فکر د دے خبرے او کړی چه په ځپل ځان کښے هغه حقیقی صفتونه پیدا کړی چه هغه د الله په نظر کښے سړے د عزت لائق جوړ ولے شی.

۳۰ د دے نه مراد تول باندیسیان خلق نه دی بلکه دلته د باندیسیانو د هغو خاصو ډلو ذکر کیږی چه هغوی د اسلام د زیات طاقت په لیدو سره صرف په دے خیال مسلمانان شوی وُو چه د مسلمانانو د حملو نه به هم محفوظ پاتے شی او د اسلامی فتوحاتو فائدے به هم واخلی. دے خلقو په حقیقت کښے د زړهٔ په صدق سره ایمان نهٔ وُو راوړے، تش په ژبه ئے د ایمان اقرار کړے وُو او ځانونه ئے په مسلمانانو کښے شمار کړی وُو. او د هغوی د زړهٔ دا راز به په هغه وخت کښے ښکاره کیدو کله چه به هغوی رسول الله صلی الله علیه وسلم له راتلل او قسما قسم مطالبے به ئے کولے او ځپل حق به ئے په داسے طریقه ژ یاتلو لکه چه هغوی په اسلام قبلولو سره په نبیؐ ډیر احسان کړے دے. په روایتونو کښے د کنړو قبائلو د دے عمل ذکر راغلے دے، مثلاً مزینه، جُهینه، اَسلم، اَشجع، غِفار وغیره. خاص طور د بنی اَسد بن خُزیمه په حقله د ابن عباس او د سعید بن جُبیر بیان دے چه یو ځل په سوکړه کښے هغوی مدینے ته راغلل، د مالی امداد مطالبه ئے کوله او بار بار ئے رسول الله صلی الله علیه وسلم ته وئیل چه "مونږه بغیر د جنگ نه مسلمانان شوی یُو، مونږه ستا سره هغسے جنګ نه دے کړے لکه څنګه چه فلانی او فلانی قبیلے کړے دے." د دے نه د

هغوی صفا مطلب دا ؤو چه د الله د رسول سره جنګ نه کول او اسلام قبلول د هغوی د طرف نه پر وغتې احسان دے چه د رسول او د مومنانو د طرف نه ورته د هغې بدله ملاویدل پکار دی. د مدینې د خوا ؤشا د بانډیسیانو دا هغه عمل ؤو چه په دے آیتونو کښې پرې تبصره شوې ده. د دے تبصرے سره چه د سورۂ توبے آیتونه ۹۰ تا ۱۰۱ او د سورۂ فتح آیتونه ۱۱ تا ۱۷ یوځائے او لوستلے شی نو په خبره به نور هم زیات سرے پوهه شی.

**۳۱** په اصل کښې د قُوْلُوْٓا اَسْلَمْنَا الفاظ استعمال شوی دی چه د هغې بله ترجمه دا هم کیدے شی چه "اُووایئ، مونږه مسلمانان شوی یو" د دے الفاظو نه څینو خلقو دا نتیجه راایستلې ده چه د قرآن په ژبه کښې "مومن" او "مسلم" دوه مخالف ټکی دی، مومن هغه دے چه د زړهٔ په صدق سره ئے ایمان راوړے وی، او "مسلم" هغه دے چه د ایمان نه بغیر ئے تش په ظاهره اسلام قبول کړے وی. لیکن په حقیقت کښې دا خیال بالکل غلط دے. په دے کښې هیڅ شک نشته چه دلته د ایمان لفظ د زړهٔ د تصدیق د پاره او د اسلام لفظ تش د ظاهری اطاعت د پاره استعمال شوے دے. لیکن دا خبره صحیح نه ده چه دا کښې د قرآن دوه مستقل او د یو بل نه مخالف ټکی دی. د قرآن په کومو آیتونو کښې چه اسلام او مُسلم الفاظ استعمال شوی دی په هغې بانډې د غور کولو نه دا خبره معلومیږی چه د قرآن په ژبه کښې "اسلام" د هغه حق دین نوم دے چه هغه الله تعالیٰ د تولو انسانانو د پاره نازل کړے دے، د هغې په مفهوم کښې ایمان او حکم منل دواړه شامل دی، او "مُسلم" هغه دے چه د زړهٔ نه ئے اُومنی او عمل پرې اوکړی. د مثال په طور لاندینی آیتونه اُوګورئ:

| | |
|---|---|
| اِنَّ الدِّیْنَ عِنْدَ اللّٰهِ الْاِسْلَامُ (آل عمران ۱۹) | یقیناً د الله په نزد دین صرف اسلام دے۔ |
| وَمَنْ یَّبْتَغِ غَیْرَ الْاِسْلَامِ دِیْنًا فَلَنْ یُّقْبَلَ مِنْهُ ۔ (آل عمران ۸۵)۔ | او څوک چه د اسلام نه علاوه بل دین اُوغواړی د هغهٔ هغه دین به هرګز قبول نه شی۔ |
| وَرَضِیْتُ لَکُمُ الْاِسْلَامَ دِیْنًا (المائدہ ۳) | او ما ستاسو د پاره اسلام د دین په حیثیت سره خوښ کړے دے۔ |
| فَمَنْ یُّرِدِ اللّٰهُ اَنْ یَّهْدِیَهٗ یَشْرَحْ صَدْرَهٗ لِلْاِسْلَامِ (الانعام ۱۲۵) | الله چه چا ته هدایت کول غواړی نو د هغه سینه د اسلام د پاره فراخه کوی۔ |

ښکاره خبره ده چه په دے آیتونو کښې د "اسلام" نه مراد بے ایمانه حکم منل نه دی. بیا اُوګورئ ځائے په ځائے دا قسم آیتونه راغلی:

| | |
|---|---|
| قُلْ اِنِّیْٓ اُمِرْتُ اَنْ اَکُوْنَ اَوَّلَ مَنْ اَسْلَمَ (الانعام ۱۴) | اے نبی اُووایه، ما ته دا حکم شوے دے چه د ټولو نه اول زهٔ اسلام قبلونکے یم۔ |
| فَاِنْ اَسْلَمُوْا فَقَدِ اهْتَدَوْا (آل عمران ۲۰) | پس که چرے هغوی اسلام راوړو نو هدایت ئے بیا موند و۔ |
| یَحْکُمُ بِهَا النَّبِیُّوْنَ الَّذِیْنَ اَسْلَمُوْا۔ (المائدہ ۴۴) | پیغمبرانو به د توراة مطابق فیصلے کولے هغه پیغمبرانو چه اسلام ئے راوړے ؤو۔ |

وَلَمَّا يَدْخُلِ الْإِيمَانُ فِي قُلُوبِكُمْ ۖ وَإِنْ تُطِيعُوا اللَّهَ وَرَسُولَهُ لَا يَلِتْكُمْ مِنْ أَعْمَالِكُمْ شَيْئًا ۚ إِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَحِيمٌ ﴿١٤﴾ إِنَّمَا الْمُؤْمِنُونَ الَّذِينَ آمَنُوا بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ ثُمَّ لَمْ يَرْتَابُوا وَجَاهَدُوا بِأَمْوَالِهِمْ وَأَنْفُسِهِمْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ ۚ أُولَٰئِكَ هُمُ الصَّادِقُونَ ﴿١٥﴾

ايمان لا ستاسو په زړونو کښې ورننوتے نۀ دے ـ که چرے تاسو د الله او د هغۀ د رسول حکمونه اُومنل نو هغه به ستاسو د عملونو په اجر کښې هيڅ کمے اُونۀ کړی، بے شکه چه الله ډير بخښونکے او مهربان دے ـ په حقيقت کښې خو مومنان هغه خلق دی چه په الله او د هغۀ په رسول ئے ايمان راوړو او بيائے هيڅ شک اُونۀ کړو او د الله په لار کښې ئے په خپل سر او مال سره جهاد اوکړو هم دغه رښتينی خلق دی ـ

آيا دلته او دغه شان په نورو ډيرو ځايونو کښې د اسلام قبلولو يا د اسلام راوړلو مطلب د ايمان نه بغير حکم منل دی؟ دغه شان د "مسلم" لفظ چه بار بار په کومه معنیٰ کښې استعمال شوے دے د هغې د پاره د نمونے په طور لاندينی آيتونه اوګورئ:

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا اللَّهَ حَقَّ تُقَاتِهِ وَلَا تَمُوتُنَّ إِلَّا وَأَنْتُمْ مُسْلِمُونَ ۝ (آل عمران ـ ۱۰۲)

اے خلقو چه ايمان موراوړے دے، د الله نه اُويريږئ لکه څنګه چه د هغۀ نه د يرے حق دے او تاسو له دِ مرګ نۀ راځی مګر په داسے حال کښې چه تاسو مسلمانان يئ ـ

هُوَ سَمَّاكُمُ الْمُسْلِمِينَ مِنْ قَبْلُ وَفِي هَٰذَا (الحج ـ ۷۸)

هغه اول هم ستاسو نوم مسلمان ايښودلے وُو او په دے کتاب کښې هم ـ

مَا كَانَ إِبْرَاهِيمُ يَهُودِيًّا وَلَا نَصْرَانِيًّا وَلَٰكِنْ كَانَ حَنِيفًا مُسْلِمًا ـ (آل عمران ۶۷)

ابراهيم نۀ يهودی وُو او نۀ نصرانی وُو، بلکه هغه يو خيږنه مسلمان وُو ـ

رَبَّنَا وَاجْعَلْنَا مُسْلِمَيْنِ لَكَ وَمِنْ ذُرِّيَّتِنَا أُمَّةً مُسْلِمَةً لَكَ ـ (البقره ـ ۱۲۸)

(د کعبے د جوړولو په وخت کښې د حضرت ابراهيم او اسماعيل دُعا) اے زمونږه ربه، او مونږه دواړه د خپل ځان مسلمانان کړه او زمونږ د نسل نه يو داسے اُمت راپيدا کړے چه ستا مسلمانان وی ـ

يَا بَنِيَّ إِنَّ اللَّهَ اصْطَفَىٰ لَكُمُ الدِّينَ فَلَا تَمُوتُنَّ إِلَّا وَأَنْتُمْ مُسْلِمُونَ ۝ (البقره ـ ۱۳۲)

(د حضرت يعقوبؑ وصيت خپل اولادته) اے زما بچو الله ستاسو د پاره هم دا دين خوښ کړے دے لو تاسو له دِ مرګ نۀ راځی مګر په داسے حال کښې چه تاسو مسلمانان يئ ـ

قُلْ اَتُعَلِّمُوْنَ اللّٰهَ بِدِيْنِكُمْؕ وَاللّٰهُ يَعْلَمُ مَا فِى السَّمٰوٰتِ وَمَا فِى الْاَرْضِؕ وَاللّٰهُ بِكُلِّ شَىْءٍ عَلِيْمٌ ﴿۱۶﴾ يَمُنُّوْنَ عَلَيْكَ اَنْ اَسْلَمُوْاؕ قُلْ لَّا تَمُنُّوْا عَلَىَّ اِسْلَامَكُمْۚ بَلِ اللّٰهُ يَمُنُّ عَلَيْكُمْ اَنْ هَدٰىكُمْ لِلْاِيْمَانِ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ﴿۱۷﴾ اِنَّ اللّٰهَ يَعْلَمُ غَيْبَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِؕ وَاللّٰهُ بَصِيْرٌۢ بِمَا تَعْمَلُوْنَ ﴿۱۸﴾

اے نبیؐ، دے (دَ ایمان دعوه کیرو) ته اُووایه، آیا تاسو الله ته دَ خپل دین خبر ورکوئ؟ حالانکه الله دَ زمکے اؤ دَ آسمانونو دَ هر څیز نه خبردے اؤ هغه دَ هر څیز علم لري. دا خلق په تا باندِ احسان ږدي چه دوئ اسلام قبول کړو. دوئ ته اُووایه چه دَ خپل اسلام احسان په ما مه کوئ بلکه دَ الله په تاسو احسان دے چه هغه تاسو ته دَ ایمان لار اُوښوده که چرے واقعي تاسو دَ ایمان په خپله دعوه کښے رښتيني يئ. الله ته دَ زمکے اؤ دَ آسمانونو دَ هر پټ څيز علم دے اؤ څه چه تاسو کوئ هغه ټول دَ هغه په نظر کښے دي۔ ع

دَ دے آیتونو دَ لوستلو نه روستو آخر څوک دا وئیلے شي چه په دے کښے دَ مسلمان نه مراد هغه سړے دے چه دَ زړهٔ نه ئے نه مني، خو بس ظاهري طور اسلام قبول کړي؟ په دے وجه دا دعوی بالکل غلطه ده چه په قرآن کښے دَ اسلام نه مراد بغیر دَ ایمان نه حکم منل دی، او مسلمان تش په ظاهره اسلام قبلونکي ته وائي. دغه شان دا دعوی هم غلطه ده چه دَ "ایمان" اؤ دَ "مومن" الفاظ په قرآن مجید کښے خامخا دَ زړهٔ په صدق سره دَ منلو په معنیٰ کښے استعمال شوي دي بے شکه چه په ډیرو ځایونو کښے دا الفاظ هم دَ دے معنیٰ دَ پاره راغلي دي، لیکن ډیر ځایونه داسے هم دي چه هلته دا الفاظ دَ ایمان دَ ظاهري اقرار دَ پاره هم استعمال کړے شوي دي اؤ دَ يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا خطاب هغه ټولو خلقو ته شوے دے څوک چه دَ ژبے په اقرار سره دَ مسلمانانو په ډله کښے شامل شوي دي خواه که هغه رښتيني مومنان دي اؤ که کمزوري ایمان والا دي، اؤ که صرف منافقان دي. دَ دے ډیر مثالونه دي خو صرف دَ یو مثالونو دَ پاره اوګوره آل عمران، آیت ۱۵۶- النساء، ۱۳۶- المائده ۵۴- الانفال، ۲۰، ۲۷- التوبه ۳۸- الحدید ۲۸- الصّف، ۲

# قٓ

**نوم** دَ اوّل ټکی ق نه اخستلے شوے دے. مطلب دا دے چه هغه سورة چه دَ هغې شروع دَ ق ټکی نه شوې ده.

**دَ نازلیدو زمانه** دَ یو معتبر روایت نه دا پته نه لګی چه دا سورة ټیک په کومه زمانه کښې نازل شوے دے لیکن دَ دے په مضمون چه سړے غور او کړی نو معلومیږی چه دَ دے دَ نازلیدو زمانه دَ مکے معظمے دویم دور دے چه دَ نبوّت دَ دریم کال نه شروع شوے وُو او دَ پنځم کال پورے وُو. دَ دے دَور خاصیتونه موږ دَ سورة اَنعام په دیباچه کښې بیان کړی دی. دَ هغه خاصیتونو په لحاظ سره اندازه دا لګیدلے شی چه دا سورة به دَ نبوّت په پنځم کال نازل شوے وی چه دَ کافرانو مخالفت ښه په زور سره وُو، لیکن دَ ظلمونو شروع لا نه وه شوی.

**موضوع او مختونه** دَ معتبرو روایتونو نه معلومیږی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم به اکثر دَ اختر په موقعونو کښې دَ دے سورة تلاوت کولو. اُمّ هشام بن حارثه، چه دَ نبیؐ ګاونډۍ وه، وائی چه ما دَ سورة قٓ یاد شوے په دے طریقه دے چه دَ جمعې په خطبو کښې به ما اکثر دَ نبیؐ دَ خُلے مبارکے نه دا اوریدو. په ځینو نورو روایتونو کښې راغلی دی چه دَ سحر په مونځ کښې به هم نبیؐ اکثر دا سورة لوستلو. دَ دے نه دا خبره معلومیږی چه دَ نبیؐ په نظر کښې دا یو ډیر اهم سورة وُو. په دے وجه به هغه یار یار لوستلو چه دَ دے مطلب دَ زیاتو نه زیاتو خلقو تر اُورسی.

چه سړے دا سورة په غور سره اُولولی نو دَ دے دَ اهمیّت په وجه په آسانئ سره پوهیږی. دَ ټول سورة موضوع آخرت دے. رسول الله صلی الله علیه وسلم چه کله په مکّه معظمه کښې خپل دعوت شروع کړو نو خلق چه به دَ ټولو نه زیات په کومه خبره حیرانیدل هغه دا وه چه دَ مرګ نه روستو به انسان دوباره راژوندے کیږی او دَ هغوئ سره به دَ عملونو حساب کتاب کیږی. خلقو به وئیل چه دا خو بالکل ناشونی خبره ده، عقل نه منی چه دا دے کیدے شی، آخر دا خبره څنګه ممکنه ده چه کله موږ ذرّه ذرّه شوی یو او په زمکه کښې خواره واره شوی یو نو دا څو ورے ذرّے به زرګونه کاله روستو بیا راټولی ځائے کړے شی او زمونږ دا بدن به تر بیا جوړ شی او موږ به ژوندی شو او راپاڅو به سو؟ دَ دے په جواب کښې دَ الله تعالیٰ دَ طرفنه دا تقریر نازل شو. په دے کښې ډیر په مختصره طریقه په وړو وړو فقرو کښې یو طرفته دَ آخرت دَ اِمکان او دَ راتلو دَ لیلونه ورکړے شوی دی او بل طرفته خلقو له خبردارے ورکړے شوے دے که تاسو حیرانتیا کوئ، او که دَ عقل نه لرے خبره ګنړئ، او که دروغ ئے ګنړئ، بهرحال دے سره حقیقت نشی بدلیدے. او حقیقت او قطعی حقیقت دا دے چه ستاسو دَ بدن هغه یو یوه ذره کوم چه په زمکه کښې خوره وره شوی دی هغه الله ته معلومه ده چه هغه په کوم ځائے کښې ده او په څه حال کښې ده. دَ الله تعالیٰ یو ه

اشاره دَ دے دَ پاره کافی ده چه دا تو لے خورے دَ ریے ذرّے بیا راجمع شی او تاسو دَ مخکینی پشان بیا دوباره جوړ کړے شئ او جوندی الله تعالیٰ ته حاضر کړے شئ۔ دغه شان ستاسو دا خیال هم غلط دے چه تاسو دلته دَ بے مُهاره اُوښ پشان پریښودلے شوی یئ او ستاسو نه به هیڅوک تپوس نه کوی۔ حقیقت دا دے چه الله تعالیٰ نیغ په نیغه ځپله هم ستاسو دَ هرے خبرے او دَ هر کار نه، بلکه ستاسو په زړونو کښے چه کوم خیالات تیریږی دَ هغے تو لو نه خبر دے، او دَ هغه فرښتے هم په هر سړی پسے ټکید لی دی او دَ هغه ټو لے خبرے اتری او دَ هغه ټول کاروبار محفوظ ساتی۔ چه وخت راشی نو تاسو به په یو آواز بالکل هغسے راژوندی شئ لکه څنګه چه دَ باران په څاڅکو دَ زمکے بوټی زرغونیږی۔ اُوس چه دَ غفلت کوم پرده ستاسو په عقل پرته ده هغه به په هغه وخت کښے ستاسو دَ مخے نه لرے شی او تاسو به په خپلو سترګو هغه ټول هر څه اُوینئ دَ کومو نه چه تاسو نن انکار کوئ۔ په هغه وخت کښے به تاسو ته معلومه شی چه تاسو په دنیا کښے غیر ذمه وار نه وئ بلکه ذمه وار خلق وَئ۔ نن چه درته دَ جزا او دَ سزا، دَ عذاب او دَ ثواب او دَ جنت او دَ دوزخ خبرے هسے ناآشنا قیصے ښکاری، دا ټول حقیقتو نه به په هغه وخت کښے ستاسو دَ سترګو وړاندې وی۔ دَ حق سره دَ دُشمنئ کولو په وجه به هغه دوزخ ته ورغورځولے شئ چه نن تاسو دَ عقل نه لیرے ګنړئ، او کوم خلق چه دَ خدائے نه ویریږی او په نیغه لار روان دی هغوئ به ستاسو په مخکښے هغه جنت ته ځی چه نن دَ هغے په ذکر آوریدو سره تاسو حیرانیږئ۔

# سُوْرَةُ قٓ مَكِّيَّةٌ

اٰياتها ۴۵ — رکوعاتها ۳

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

قٓ ۚ وَالْقُرْاٰنِ الْمَجِيْدِ ۝۱ بَلْ عَجِبُوْٓا اَنْ جَآءَهُمْ مُّنْذِرٌ مِّنْهُمْ فَقَالَ الْكٰفِرُوْنَ هٰذَا شَيْءٌ عَجِيْبٌ ۝۲ ءَاِذَا مِتْنَا وَكُنَّا تُرَابًا ۚ ذٰلِكَ رَجْعٌۢ بَعِيْدٌ ۝۳ قَدْ عَلِمْنَا مَا تَنْقُصُ الْاَرْضُ

ق. قسم دے په قرآن مجید[1] ــــ بلکه دا خلق په دے خبره حیران شوچه یو خبردارؤنکے د دوئ د خپل قوم نه دوئ ته راغے[2] بیا انکار کونکو اُووئیل "داخو عجیبه خبره ده، کله چه مونږه مړه شو او خاوری شو (نوکنی دوباره به بیا راژوندی کیږو) ؟ دا واپسی خو د عقل نه لرے خبره ده[3]"، (حالانکه) زمکه چه د دوئ د بدن نه څه خوری هغه ټول زمونږ

[1] د "مجید" لفظ په عربئ ژبه کښے د دوؤ معنو د پاره استعمالیږی. یوه معنی ده، اُوچت مرتبه لوئی والا، بزرگ او عزتمند. دویمه معنی ده کریم یعنی سخی، ډیر ورکړه والا، ډیره نفع رسونکے. د قرآن د پاره دا لفظ په دے دواړو معنو کښے استعمال کړے شوے دے. قرآن په دے لحاظ سره عظیم دے چه د دُنیا یو کتاب څوک د دے په مقابله کښے نشی پیش کولے. قرآن د خپلے ژبے او د خپل ادب په لحاظ سره هم معجزه ده او د خپل تعلیم او حکمت په لحاظ سره هم معجزه ده. په کوم وخت چه قرآن نازل شوے وو په هغه وخت کښے هم انسان د دے په شان د کلام جوړولو نه عاجزه وو او نن هم عاجزه دے. د قرآن یوه خبره هم چرته په یوه زمانه کښے غلطه نه ده ثابته کړے شوی او نه غلطه ثابتیدے شی، باطل نه مخامخ د قرآن مقابله کولے شی او نه د روستو نه شکست ورکولے شی. او قرآن په دے لحاظ سره کریم دے چه انسان د ده نه د څومره زیاتے رهنمائی حاصلولو کوشش کوی هغومره زیاته رهنمائی هغه ته کوی او چه څومره زیاته د ده پیروی کوی هغومره ورته د دُنیا او د آخرت نیکیانے زیاتے حاصلیږی. د قرآن د فائدو دا حد نشته چه هلته انسان اُورسی نو بیا بے پروا به شی، یا به د قرآن فائدے ختمے شی.

[2] دا فقره د فصاحت بهترینه نمونه ده. په دے کښے یو لوئی مضمون په یو څو الفاظو کښے را یو ځائے کړے شوے دے. د قرآن قسم چه په کومه خبره خوړلے شوے دے هغه نه ده بیان کړے شوی. د هغے د بیانولو په ځائے په منځ کښے یوه بارېکه خلا پریښودے شوی ده او وړاندینئ خبره د "بلکه" نه شروع کړے شوی ده سړے چه لږ شان غور او کړی او په هغه حالاتو هم نظر اُولری چه په کوموکښے دا خبره شوی ده نو دا پته لږی چه د قسم او د "بلکه" په منځ کښے کومه خلا پریښودے شوی ده د هغے مضمون څه دے. په هغے کښے چه په اصل کښے په کومه خبره قسم خوړلے شوے دے هغه دا ده چه "د مکے خلقو د محمد صلی الله علیه

هُم وَعِندَنَا كِتٰبٌ حَفِيظٌ ④ بَلْ كَذَّبُوا بِالْحَقِّ لَمَّا جَآءَهُمْ

په علم کښې دی او زمونږ سره یو کتاب دے چه پکښې هرڅه محفوظ دی.[۲]

بلکې دے خلقو چه څه وخت حق راغے نو په هغه وخت ئے صفا دروغ او کنړو۔

وسلم د پيغمبرئ د منلو نه انکار څه د حقے خبرې په بنياد بانږ نه دے کړے بلکه د دے سرا سر ناحقے خبرې په بنياد بانږ ئے کړے دے چه د هغوئ د خپل جنس نه يو انسان، او د هغوئ د خپل قوم نه يو تن د خدائے د طرفنه د خبرد ارؤنکي په حيثيت سره راغلے دے نو دا د هغوئ د پاره سخته د حيرانتيا خبره ده. حالانکه د حيرانتيا خبره وه نو هغه دا وه چه خدائے تعالیٰ د خپلو بندګانو د ښه او بد نه بے پروا شوے وے او د هغوئ د خبرد ارولو څه انتظام ئے نه کولے، يائے د انسانانو د خبرد ارولو د پاره د انسان نه علاوه بل څه مخلوق راليږلے وے، يائے د عربيانو د خبرد ارولو د پاره د چين يو سړے ليږلے وے. نو د انکار کولو دا بنياد ئے بالکل نامناسب دے او يو عقلمند انسان يقيناً د دے خبرې په منلو مجبوره دے چه د خدائے تعالیٰ د طرفنه د بندګانو د خبرد ارولو د پاره انتظام ضروري پکار دے او په دا سے شکل پکار دے چه خبرد ارؤنکے انسان د خاص هم د هغه خلقو نه وي چا ته چه هغه ليږلے شوے وي.[۲] اوس پاتے شوه دا خبره چه آيا محمد صلی الله عليه وسلم خاص هم هغه سړے دے چه خدائے د دے کار د پاره راليږلے دے او که نه دے، نو د دے فيصلے کولو د پاره د بل شهادت حاجت نشته، دا عظيم او کريم قرآن چه هغه ئے پيش کوي بس هم دا د دے خبرې د ثبوت د پاره بالکل کافي دے.

د دے تشريح نه معلوميږي چه په دے آيت کښې په دے خبره د قرآن قسم خوړلے شوے دے چه محمد صلی الله عليه وسلم واقعي د الله رسول دے او د هغه په رسالت بانديد د کافرانو حيرانيدل بے ځايه دي. او د قرآن صفت "مجيد" د دے دعوے په ثبوت کښې پيش کړے شوے دے.

[۳] دا د دے خلقو دويمه حيرانتيا وه. اولنئ او اصل حيرانتيا د مرګ نه پس په دوباره ژوندي بانږ نه وه بلکې په دے وه چه د دوئ د جنس او د دوئ د قوم يو سړے راپاسيدلے دے او دعوى ئے کړې وه چه زه د خدائے د طرفنه ستاسو د خبرد ارولو د پاره راغلے يم. د دے نه روستو هغوئ په دے خبره نور هم زيات حيران شو چه هغه سړي هغوئ ته د کوم خير خبر داره ورکولو هغه دا وو چه تول انسانان به د مرګ نه روستو بيا دوباره را ژوندي کيږي، او تول به په جمع د الله په عدالت کښې پيش کړے کيږي، او د عملو نو د حساب کتاب نه په روستو هغوئ له جزا او سزا ورکړے کيږي.

[۴] يعني دا خبره که د دے خلقو په عقل کښې نه راځي نو دا د دوئ د خپل عقل تنګوالے دے. د دے سره خو دا نه لازمي کيږي چه د الله علم او د هغه قدرت د هم تنګ شي. د دوئ دا خيال دے چه د ازل نه شروع نه د قيامته پورے کوم بے شماره انسانان مړه کيږي او د هغوئ د بدن کومے حصے چه په زمکه کښې خورے شوي دي او لا نور به هم خوريږي، د هغوئ را جمع کول په هيڅ طريقه ممکن نه دي. ليکن حقيقت دا دے چه د بدن هره هره حصه چه په کوم ځائے کښې په کوم شکل کښې ده هغه الله تعالیٰ ته نيغ په نيغه معلومه ده او

فَهُمْ فِیْۤ اَمْرٍ مَّرِیْجٍ ۝۵ اَفَلَمْ یَنْظُرُوْۤا اِلَى السَّمَآءِ فَوْقَهُمْ كَیْفَ بَنَیْنٰهَا وَ زَیَّنّٰهَا وَ مَا لَهَا مِنْ فُرُوْجٍ ۝۶ وَ الْاَرْضَ مَدَدْنٰهَا

په دې وجه اوس دوئ په دې تردد کښې پریوتی دی[۵]۔

بنه[۶]. نو دوئ چرته د ځان د پاسه آسمان ته نه دی کتلی؟ هغه مونږ څنګه جوړ کړو او څنګه مو ښائسته کړو[۷] او په هغې کښې هیڅ درز چرته نشته[۸] او زمکه مونږه اوغوړوله او په هغې کښې

بلکه دا چه د هغې پوره پوره ریکارډ د الله په دفتر کښې محفوظ ساتلے کیږی او یوه ذره قدر له ترهم نه پاتے کیږی. څه وختیچه د الله حکم اوشی په هغه وخت به یو دم د الله فرښتے د دغه ریکارډ نه یوه یوه ذره راوباسی او د تولو انسانانو هغه بدن به بیا جوړ کړی په کوم کښې چه هغه د دُنیا په ژوند کښې کار کړے وُو.

دا آیت هم د هغه آیتونو نه یو آیت دے په کوم کښې چه د دے خبرې ثرګنده نه شوی ده چه د آخرت ژوند به نه صرف دا چه هم هغسے جسمانی ژوند وی لکه څنګه چه په دے دُنیا کښې دے، بلکه د هر سړی بدن به هم هغه وی کوم چه په دنیا کښې وُو. که چرے حقیقت دا نه وے نو د کافرانو د خبرې په جواب کښې دا وینا بالکل بے مطلبه وه چه زمکه ستاسو د بدن نه څه خوری هغه ټول زمونږ په علم کښې دی او د ذرے ذرے ریکارډ موجود دے. (د زیاتے تشریح د پاره اُګوره تفهیم القرآن څلورم جلد، تفسیر د سورة حٰمٓ السجدة حاشیه[۲۵])

[۵] په دے مختصر شان نقره کښې هم یو ډیر لوئے مضمون بیان شوے دے. د دے مطلب دا دے چه دے خلقو یوازے په حیرانتیا کولو او د عقل نه پلرے کنړ لو اکتفا اُونه کړه، بلکه څه وخت چه محمد صلی الله علیه وسلم خپل حق دعوت پیش کړو نو په هغه وخت ئے تلوار اوکړه او قطعی دروغ ئے اوګنړو. د دے نتیجه به خامخا دا او دا شوه هم چه د دے دعوت په معامله کښې او د دے د پیش کونکی رسول په معامله کښې د هغوی خبره یوه نه ده. کله هغه ته شاعروائی، کله کاهن (غیب ویونکے) او کله مجنون (یعنی لیونے). کله وائی چه د جادو کړے، او کله وائی چه جادو پرے جادو کړے دے. کله وائی چه د خپل زورتیا مولو د پاره ئے دا څیز پخپله جوړ کړے دے، او کله دا الزام لګوی چه د ده په شا باندې د بل چالاس دے چه دا کلام د ده د پاره جوړوی او ده له ئے ورکوی. د دے ادلو بدلو خبرو نه معلومیږی چه دا خلق په خپله خبره په شک کښې دی. په دے شک او تردُد کښې به هرګز دوئ نه پریوتلے که چرے تلوار ئے نه وے کړے او د نبی خبره ئے په اول ځل دروغ نه وے ګنړلے او د بے سوچه بے فکره فیصلے کولو نه ئے ځان ساتلے وے او په فکر سره غور کړے وے چه دا دعوت څوک پیش کوی، څه خبره کوی او د دے د پاره څه دلیل ورکوی. ښکاره خبره ده چه هغه سړے دوئ ته څه نا آشنا نه وُو. نا ساپه چرته د بل وطن نه نه وُو راغلے. د دوئ د خپل قوم سړے وُو. هر چا پیژندو. د هغه د خوئ بوئ او د هغه د قابلیت نه نا خبره نه وُو. د داسے سړی د طرف نه چه هر کله یوه خبره پیش کړے شوی وه نو هغه که فوراً نه وه قبوله کړے شوی نو نه د وه قبوله کړے شوی لیکن دا کار ورسره هم نه وُو پکار چه د اوریدو سره دې رد کړے شی. بیا هغه خبره بے دلیله هم نه وه

هغه به دَ هغې دَ پاره دلیلونه پیش کول. پکار وه چه دَ هغه دلیلونه په آزاد دوغوږ و نو اوریدلے شوے وے او دَ ضد نه بغیر دَ هغې جاج اخستلے شوے وَے او کتلے شوے وَے چه هغه دلیلونه دَ کومه حده پورې مناسب دی. لیکن دَ دے په ځائے چه کله دوئ په ضد کښې راغلل او دَ اول سر نه ئې هغه د روغوږ نه اوکړو نو نتیجه ئې دا شوه چه حقیقت ته دَ رسیدو دروازه خو دوئ پخپله دَ ځان دَ پاره بنده کړه او هر طرفته ئې دَ تیندکو نو خوړلو دَ پاره لارې جوړې کړلے. اُوس دوئ دَ خپلے اولنئ غلطئ دَ پوره کولو دَ پاره لس آد لے بدلے خبرے خو جوړولے شی لیکن په دے یوه خبره سوچ کولو ته تیار نه دی چه نبی ریشتینے کیدے هم شی او دَ هغه خبره حقیقت هم کیدے شی.

٦ـه پاسنو نیمو آیتونو کښې دا خبره واضح کړے شوه چه دَ مکے دَ کافرانو ضد بالکل نامناسب دے او اُوس وئیلے کیږی چه محمد صلی الله علیه وسلم دَ آخرت په حقله کوم آواز کړے دے دَ هغې دَ صحیح والی دلیلونه څه دی. دلته دا خبره بنه په ذهن کښې کینول پکار دی چه کافرانو دَ کومو دَوو خبرو په حقله دَ حیرانتیا اظهار کولو په هغې کښې دَ یوے، یعنی دَ محمد صلی الله علیه وسلم دَ پیغمبرئ دَ حقانیت دوه دلیلونه په اول کښې بیان کړے شوی دی. اول دا چه هغه ستاسو په وړاندې قرآن مجید پیش کوی چه دَ هغه دَ پیغمبرئ ښکاره ثبوت دے. دویم دا چه هغه ستاسو دَ خپل جنس او ستاسو دَ خپل قوم او دَ خپلے رورولئ سړے دے. ناسا په دَ آسمان نه یا دَ بلے زمکے نه چرته نه دے راغلے چه تاسو ته کښې دَ هغه دَ خوئ بوئ او دَ هغه دَ ژوند په حقله دا تحقیق کول گران وی چه آیا هغه دَ اعتبار دَ قابل سړے دے او که نه دے. او دا قرآن دَ هغه خپل جوړ کړے کلام کیدے هم شی او که نه، په دے وجه دَ هغه په پیغمبرئ باندې ستاسو حیرانتیا بے ځایه ده. دا دلیلونه په تفصیل سره د پیش کولو په ځائے دَ دوؤ مختصرو اشارو په شکل کښې بیان کړے شوی دی، ځکه چه په کومه زمانه کښې محمد صلی الله علیه وسلم پخپله په مکه کښې راپاسیدو او هغه خلقو ته ئې قرآن اَوروؤ چا چه دَ هغه ټول ژوند دَ ورد کوالی نه دَ ځوانئ او دَ بوډاوئ عُمر پورې لیدلے وُو، په هغه وخت کښې په دغه اشارو باندې هر سړے پخپله بنه په تفصیل سرپوهیدو په دے وجه اُوس دا ضرورت نه ؤ چه تفصیل ئې بیان کړے شی. او دَ هغه دویمے خبرے دَ صداقت دَ پاره بنه په تفصیل سره دلیل بیانوی کوم ته چه هغوی دَ حیرانتیا په نظر کوری او دَ عقل نه ئې لرے گنړی.

٧ـه دلته دَ آسمان نه مراد پورته هغه ټول جهان (یعنی عالم) دے کوم چه انسان شپه او ورځ دَ ځان دَ پاسه گیر چاپیره وینی. چه کښې دَ ورځے نمر ځلیږی او دَ شپے سپوږمئ او بے شماره ستورې روښانه ښکاری چه هغه سړے هم دغسې په لغړو سترگو وینی نو حیرانیږی. لیکن که چرے دوربین او لگوی نو بیا داسے نرا بنه کائنات ئې مخے ته راځی چه آخر حد ئې نه معلومیږی او دا پته نه لږی چه دَ کوم ځائے نه شروع شوے دے او چرته ځائے ختم شوے دے. زمونږ دَ زمکے نه په لکونو چنده لوئے لوئے سیارے په هغې کښې دَ پندو سونو پشان څرلگونه خوری. زمونږ دَ نمر نه په زرگونو درجے زیات روښانه ستورې په هغې کښې ځلیږی. زمونږ دا ټول نظام شمسی دَ هغې صرف دَ یو کهکشان (GALAXY) په یو کوټ کښې پروت دے. یوازے په دے یو کهکشان کښې زمونږ دَ نمر غوندې کم نه کم دریے اربه نور ستورې (ثوابت) موجود دی، او دَ اُوسه پورے دَ انسان په معلوماتو کښې دغسے دَ لسو لکو کهکشانونو پته لږیدلی ده. په دے لکونو کهکشانونو کښې مونږ ته دَ ټولو نه نږدے کهکشان دومره لیرے دے چه دَ هغې رڼا په سیکنډ کښې دَ یولاک شپږ اتیا زره میله په رفتار سره

وَ اَلۡقَيۡنَا فِيۡهَا رَوَاسِيَ وَ اَنۡۢبَتۡنَا فِيۡهَا مِنۡ كُلِّ زَوۡجٍۢ بَهِيۡجٍ ۝۷

مو غورونه کلک وَدَرول او په هغې کښې موهر قسم ښائسته ښائسته بُوټي زرغون کړل[9] - داټول څيزونه

په لس لاکه کاله کښې زمکے ته رارسي. دا خو د کائناتو د فراښتي صرف د هغه حيص حال دے چه هغه د انسان په علم او معلوماتو کښې راغلی دے. د خدائے خدائۍ څومره فراښه ده، د دے هيڅ اندازه مونږ نه شو لګولے. کيدے شي چه انسان ته کوم کائنات معلوم دے هغه د ټول کائنات په مقابله کښې داسے وي لکه د سمندر په څاڅکے. دا لوئې جهان چه کوم خدائے پيدا کړے دے د هغه په باره کښې دا په زمکه باندے ورو کے شان کرځنده گويا نه ځناور چه نوم ئے انسان دے، که چرے دا حکم اولګوي چه هغه د دے د مرګ نه روستو دوباره بيا نشي را پيدا کولے، نو دا د ده د خپل عقل تنګوالے دے، د کائناتو د خالق قدرت به په دے سره څنګه تنګ شي؟

[8] يعني د کائناتو د دے دومره فراښتيا باوجود د دے نظام دومره باقاعده او مضبوط دے او د دے ترون دومره سخت دے چه په دے کښې په هيڅ ځائے کښې چرته د درز يا سُورے نښته او د دے تسلسل چرته ماتيږي نه. دا خبره په يو مثال سره ښه په ذهن کښې راتلے شي. د نوے زمانے هغه عالمان چه د غږ او د ستورو او د سپوږمۍ وغيره ريډيائي علم (يعني د بے تاره پيغامونو علم) لرى هغوئ يو کهکشانى نظام ليدلے دے چه هغوئ ورته منبع ۳ ج ۲۹۵ ( (Source 302.5) ) وائي. د دے په حقله د هغوئ اندازه دا ده چه د دے کوم رڼا کانې اوس مونږ ته رارسي هغه به د څلور ارب کاله نه هم زيات موده مخکښې د هغې نه رارواني شوي وي. د دے دومره لرے فاصلے نه به دا رڼا کانے آخر زمکے ته څنګه رارسيدلی وے که چرے د زمکے او د هغه کهکشان په منځ کښې د کائناتو تسلسل چرته مات شوے وے او د هغې په ترون کښې د رز راغلے وے. الله تعالیٰ دے حقيقت ته اشاره کوي او په اصل کښې دا خبره د انسان مخے ته راولي چه هر کله ته زما د کائناتو په دے نظام کښې د ذرے هومره عيب هم نشي په کوته کولے نو زما د قدرت په حقله دا کمزورے خيال ستا په دماغ کښې څنګه راغے چه هر کله ستا د امتحان وخت ختم شي او د حساب کتاب کولو د پاره تا بيا دوباره راژوندے کول غوارم او ځان ته دې حاضرول غوارم نو زه به ئے نشم کولے.

دا يوازے د آخرت د امکان ثبوت نه دے بلکه د توحيد ثبوت هم دے. د رڼا د رفتار په حساب سره د څلور ارب کاله لرے فاصلے نه د دے رڼا کانو زمکے ته رارسيدل، او دلته د انسان په جوړو کړے شوو آلاتو کښې راتلل ښکاره په دے خبره دلالت کوي چه د هغه کهکشان نه را واخله د زمکے پورے دا ټوله دُنيا مُسلسل د اکیّ يو مادے نه جوړه کړے شوي ده، يو قسم طاقتونه په کښے کار کوي، او د څه فرق نه بغير ټول د يو قسم قانون لاندے کار کوي. که چرے داسے نه وے نو دا رڼا کانے نه د لته رارسيدے شو او هغه آلاتو را نيولے شوي کوم چه انسان د زمکے د قانون په پوهه جوړ کړي دي. د دے نه ثابتيږي چه اکیّ يو خدائے د دے ټول کائنات خالق او مالک او حاکم او انتظام چلونکے دے.

[9] د تشريح د پاره اوګوره تفهيم القرآن دويم جلد، النحل، حاشيے ۱۲-۱۳-۱۴ - دريم جلد النمل

تَبۡصِرَةً وَّ ذِكۡرٰى لِكُلِّ عَبۡدٍ مُّنِيۡبٍ ۝ وَنَزَّلۡنَا مِنَ السَّمَآءِ مَآءً مُّبٰرَكًا فَاَنۡۢبَتۡنَا بِهٖ جَنّٰتٍ وَّحَبَّ الۡحَصِيۡدِ ۝۹ وَالنَّخۡلَ بٰسِقٰتٍ لَّهَا طَلۡعٌ نَّضِيۡدٌ ۝۱۰ رِّزۡقًا لِّلۡعِبَادِ ۙ وَاَحۡيَيۡنَا بِهٖ بَلۡدَةً مَّيۡتًا ؕ كَذٰلِكَ الۡخُرُوۡجُ ۝۱۱

سترګے رڼاکوئکی او نصیحت کوئکی دی د هر هغه بنده د پاره څوک چه (حق ته) رجوع کوئکی وی. او موږ د آسمان نه برکتی اوبه نازلے کړے، بیا موږ په هغے سره باغونه او د پټی غلے او د کجوړو د لوړے ونے پیدا کړے چه د میوو نه ډک غونچکونه قط په قط بیسی.[10] دا انتظام دے بندګانو ته د رزق ورکولو. په دے اوبو موږه مړه زمکه راژوندئ کوو. هم د غسے به وی (د مړو شوو انسانانو د زمکے نه) راوتل[11]

حاشیے ۳، ۴، ۷۔ څلورم جلد، الزُّخْرُف، حاشیه ۷)۔

[10] د تشریح د پاره اوګوره تفهیم القرآن دویم جلد، النمل، حاشیے ۷۳، ۷۴، ۸۱۔ الروم، حاشیے ۲۵، ۳۳، ۳۵۔ څلورم جلد، یٰس، حاشیه ۲۹۔

[11] دلیل دا دے چه کوم خدائے په زمکه باندے د ژوندو مخلوقاتو د اوسیدو د پاره مناسب حالات جوړ کړل او چه کوم خدائے د زمکے د مړے خاورے سره د آسمان مړے اوبے یو ځائے کړے او د دومره ښکلے د بڼو بوټونو ونے پیدا کړے چه تاسو ئے د خپلو باغونو او د خپلو فصلونو په شکل کښے په غوږ زنګونو وینئ، او چه کوم خدائے دا بوټی د انسانانو او د ټولو حیواناتو د پاره د رزق ذریعه جوړه کړه، د هغه په حقله ستاسو دا ګمان چه هغه ستاسو د مرګ نه روستو دو باره ستاسو په پیدا کولو باندے قادر نه دے، سراسر د بے عقلئ ګمان دے. تاسو هره ورځ په خپلو سترګو وینئ چه یوه علاقه بالکل وچه او مړه ده. د باران په څاڅکو سره په هغے کښے یو دم د ژوند چینے راوخوټیږی، د مودو مودو مړے جرړے یو دم شنے شی، او قسما قسم ژوندئ سر د زمکے د لاندے نه راوزی او منډے ترړے شروع کړی. دا د دے خبری ښکاره ثبوت دے چه د مرګ نه روستو دوباره ژوند ناممکنه نه دے. هرکله چه تاسو دا د خپلو سترګو لیدلے حال نه شئ دروغژن کولے نو دا خبره څنګه دروغژنه کوئ چه کله خدائے اوغواړی نو تاسو به څپله هم هغسے د زمکے نه راوځئ لکه څنګه چه د بوټو تیغے راوځی. په دے سلسله کښے دا خبره د ذکر کولو قابل ده چه د عربو په زمکه کښے داسے علاقے دی چه هلته اکثر پنځه پنځه کاله باران نه کیږی، بلکه کله نا کله د دے نه هم زیاته موده تیره شی او د آسمان نه یو څاڅکے را پرے نه وځی. په کرمو شګو کښے د دومره ډیرے زمانے پورے د بوټو جرړے او ژوندی سری ژوندی پاتے کیدل په عقل کښے د راتلو خبره نه ده. د دے باوجود هم چه کله هلته په څه وخت کښے څه لږ شان باران اوشی نو ګیا زرغونه شی او د زمکے نه ژوندی سری راژوندی

كَذَّبَتْ قَبْلَهُمْ قَوْمُ نُوحٍ وَّأَصْحٰبُ الرَّسِّ وَثَمُودُ ﴿١٢﴾ وَعَادٌ وَّفِرْعَوْنُ وَإِخْوَانُ لُوطٍ ﴿١٣﴾ وَّأَصْحٰبُ الْأَيْكَةِ وَقَوْمُ تُبَّعٍ ۚ كُلٌّ كَذَّبَ الرُّسُلَ فَحَقَّ وَعِيدِ ﴿١٤﴾ أَفَعَيِينَا بِالْخَلْقِ الْأَوَّلِ ۚ بَلْ هُمْ فِي لَبْسٍ مِّنْ خَلْقٍ جَدِيدٍ ﴿١٥﴾

دَ دوئ نه مخکښې دَ نوحؑ قوم، او اصحاب الرّس[12]، او ثمود، او عاد، او فرعون[13]، او دَ لوط رونړه او دَ ایکه خلقو، او دَ تُبّعَ دَ قوم خلقو[14] هم دروغژن ګڼړلی دی[15]. هر یو رسولان دروغژن او ګڼړل او آخر دا چه زما عذاب په هغوئ باندې راغے[16].

آیا مونږه دَ روميې ځل پيدا کولو نه عاجزه وُو؟ خو دا خلق دَ یو نوی پیدائښت په حقله په شک کښې پراته دی[18] ع

شی۔ په دے وجه دَ عربو خلق دَ هغه خلقو په نسبت په دے دلیل سره پوهیدے شی چا چه دومره لوَیه سُوکره نهٔ وی لیدلی۔

[12] دَ دے نه مخکښې په سورۃ فرقان کښې، په آیت ۳۸ کښې دَ اصحاب الرّس ذکر تیر شوے دے، او په دویم ځل اوس دلته دَ هغوئ ذکر کیږی۔ خو په دوا روځایونو کښې دَ هغه قومونو په سلسله کښې صرف دَ هغوئ نوم اخستلے شوے دے کوم چه خپل خپل پیغمبران دروغژن ګڼړلی دی، او دَ نوم اخستو نه سوائے زیات تفصیل نهٔ دے بیان کړے شوے۔ دَ عربو په روایتونو کښې دَ الرّس په نوم دوه ځایونه مشهور دی۔ یو په نجد کښې، بل په شمالی حجاز کښې۔ په دے کښې دَ نجد الرّس زیات مشهور دے او دَ جاهلیت په شعرونو کښې زیات تر ذکر دَ هغے راغلے دے۔ اوس قطعی طور دا وئیل ګران دی چه اصحاب الرّس په دے دوا روځایونو کښې دَ کوم ځائے اوسیدونکی وُو۔ دَ هغوئ دَ قیصے تفصیل هم چرته په یو روایت کښې نهٔ ملاویږی۔ دَ زیاتو نه زیات ته بس دومره صحیح خبره سړے کولے شی چه دا یو داسے قوم چه خپل نبی ئے کوهی ته غورزولے وُو۔ لیکن لکه څنګه چه په قرآن مجید کښې هغوئ ته صرف اشاره شوې دَ او بیا په ځائے پریښودلے شوی دی دَ دے نه معلومیږی چه دَ قرآن دَ نازلیدو په زمانه کښې دَ عربو خلق عام طور دَ دے قوم نه او دَ هغوئ دَ قیصے نه خبر وُو او روستو بیا دا روایات په تاریخ کښې محفوظ پاتے نهٔ شو۔

[13] دَ فرعون دَ قوم په ځائے صرف دَ فرعون نوم اخستلے شوے دے، ځکه چه دَ هغه په خپل قوم باندې داسے غلبه وه چه دَ هغے په مقابله کښې دَ قوم څه آزاده رائے او حوصله نهٔ وه پاتے شوی۔ چه کومے ګمراهئ ته به هغه تلو قوم به ورپسے بے اختیاره روان وُو۔ په دے وجه دَ ټول قوم دَ ګمراهئ ذمه واریوازے هغه شو۔ چرته چه دَ قوم دَ پاره دَ رائے او دَ عمل آزادی وی هلته هغوئ دَ خپلو عملونو بوج پخپله

اُوچتوی - اوچرته چه دَیو سړی دَګل اختیاری دَ وجے نه توم بے وَسه وی هلته هم هغه یو سړے دَ ټول قوم دَ ګناهونو پیتے په خپل سر اخلی - دَدے مطلب دا نه دے چه ګنی په یو تن باندِ دَ دے پیتی دَ بار کیدو نه روستو دَ قوم غاړه آزادیږی - نه، په قوم باندِ خاص دَدے اخلاقی کمزورئ ذمه واری راځی چه هغوی ولے یو سړے په خپل ځان باندِ غالب کیدو ته پریښودو - دَے خبری ته دَ سورة زخرف په آیت ۴۰ کښے اشاره شوی ده چه ﴿ فَاسْتَخَفَّ قَوْمَهٗ فَاَطَاعُوْهُ ۭ اِنَّهُمْ كَانُوْا قَوْمًا فٰسِقِيْنَ ﴾ "فرعون خپل قوم سپک اُوګڼړو او هغوئ دَ هغه حکم اومنو، په حقیقت کښے هغوئ وو فاسقان خلق" دَ تشریح دَپاره اُوګوره تفهیم القرآن څلورم جلد، تفسیر دَ سورة زخرف، حاشیه ۵۰).

۱۴ه دَ تشریح دَپاره اُوګوره تفهیم القرآن، څلورم جلد، تفسیر دَ سورة سبا، حاشیه ۳۷، سورة دُخان حاشیه ۳۲

۱۵ه یعنی دے ټولو دَ خپلو رسولانو پیغمبری هم دروغ اُوګڼړله او دَ هغوئ دَ طرفنه دا خبره هم دروغ اُوګڼړه چه تاسو به دَ مرګ نه روستو بیا را ژوندی کیږئ.

۱۶ه اګرچه هر قوم صرف هغه رسول دروغژن ګڼړلے وُو کوم چه هغوئ ته لیږلے شوے وُو، خو چونکه هغوئ هغه خبره دروغ ګڼړلو کوم چه په اتفاق سره ټولو رسولانو پیش کړُو نو په دے وجه یو رسول دروغ ګڼړل په حقیقت کښے ټول رسولان دروغ ګڼړل وُو - دَدے نه علاوه په دے ترمونو کښے هر قوم یوا نه دَ خپل رسول دَ پیغمبرئ نه انکار نه وُو کړے بلکه هغوئ هسے دے خبری منلو ته تیار نه وُو چه دَ انسانانو دَ لارښودنے دَپاره یو انسان دَ الله تعالیٰ دَ طرفنه راتلے شی، په دے وجه هغوئ دَ نوعے پیغمبرئ نه منکر وُو او په هغوئ کښے دَ یو تن جُرم هم یوازے دا نه وُو چه بس صرف دَ یو رسول تکذیب ئے کړلو.

۱۷ه دا دَ آخرت په حق کښے تاریخی دلیل دے - دَدے نه په وړاندینو شپږو آیتونو کښے دَ آخرت دَ امکان دلیلونه ورکړے شوی وُو، او اُوس په دے آیتونو کښے دَ عربو او دَ عربو دَ خوا اُو شا قومونو تاریخی انجام دَدے خبرے دَپاره دَ دلیل په طور پیش کړے شوے دے چه دَ آخرت کومه عقیده ټولو پیغمبرانو پیش کړله هم هغه بالکل دَ حقیقت مطابق ده، ځکه چه دَ هغے نه کوم قوم انکار کړے دے هغوئ په سخته بد اخلاقئ کښے اخته شوی دی او آخر دا چه دَ خدائے عذاب پرِ راغلے دے او دَ هغوئ نه ئے دنیا پاکه کړی ده - دَ تاریخ په دوران کښے چه دا کومه خبره مُسلسل مخے ته راځی چه دَ آخرت نه دَ انکار کولو سره بد اخلاقی خامخا راپیدا کیږی، نو دا دَدے خبری ثبوت دے چه انسان واقعی په دے دنیا کښے داسے نه دے پریښودے شوے چه نه به پرِ څه ذمه واری وی او نه به ترے څه تپوس کیږی، بلکه دَ مرګ نه روستو به دَ هغه نه خامخا دَ هغه دَ خپلو عملونو تپوس کیږی - هم دا وجه ده چه کله هغه خپل ځان غیر ذمه وار اُوګڼړی او په دنیا کښے کار کوی نو دَ هغه ژوند دَ تباهئ پهلار روانیږی - دَ یو کار رچه مسلسل غلط انجام راځیږی نو دا صفا دَ دے خبری علامه ده چه هغه کار دَ حقیقت نه خلاف دے.

۱۸ه دا دَ آخرت په حق کښے عقلی دلیل دے - څوک چه دَ خدائے نه منکر نه وی او دَ بے وقوفئ دَ حد ته نه وی رسیدلے چه دَ دے منظم کائنات پیدائش ته او به مخکښے دَ انسان پیدائش ته هسے یو اتفاق

وَلَقَدْ خَلَقْنَا الْإِنسَانَ وَنَعْلَمُ مَا تُوَسْوِسُ بِهِ نَفْسُهُ ۖ وَنَحْنُ أَقْرَبُ إِلَيْهِ مِنْ حَبْلِ الْوَرِيدِ ﴿١٦﴾ إِذْ يَتَلَقَّى الْمُتَلَقِّيَانِ عَنِ الْيَمِينِ وَعَنِ الشِّمَالِ قَعِيدٌ ﴿١٧﴾ مَّا يَلْفِظُ مِن قَوْلٍ إِلَّا لَدَيْهِ رَقِيبٌ عَتِيدٌ ﴿١٨﴾ وَجَاءَتْ سَكْرَةُ الْمَوْتِ بِالْحَقِّ ۖ

مونږ ﴿۱۹﴾ انسان پيدا کړے دے او د هغه په زړه کښې چه کومے وسوسے راپورته کيږي په هغے هم مونږ پوهيږو. مونږ هغه ته د هغه د مرۍ د رګ نه هم زيات نزدے يو ﴿۲۰﴾ (او زمونږ د دے نيغ په نيغه علم نه علاوه) دوه ليکونکي د هغه ښي او ګس ته ناست دي او هر څيز ليکي. يو لفظ د هغه د خُلے نه داسے نه راوځي چه د هغے د محفوظ ساتلو د پاره هر وخت حاضر اوسيدونکے نګران موجود نه وي ﴿۲۱﴾ بيا ګوره هغه د مرګ سکتي د حق سره راورسيده ﴿۲۲﴾ ،

حادثه اُوواتي، نو د هغه د پاره د دے نه بغير څه بله چاره نشته چه دا اُومني چه خاص هم يو الله مونږ پيدا کړي يُو او دا ټول کائنات هم پيدا کړے دے. اُوس دا حقيقت چه مونږ په دے دنيا کښې موجود يُو او د زمکے او د آسمان دا ټول کارخانه زمونږ په مخکښې چليږي، پخپله د دے خبرې څرګند ثبوت دے چه الله تعالى زمونږ او د دے کائنات د پيدا کولو نه عاجزه نه وُو. د دے نه روستو که يو سړے دا وائي چه د قيامت راوستلو نه روستو به هم هغه خدائے د جهان يو بل نظام نشي جوړولے، او د مرګ نه روستو به هغه دوباره مونږه نشي راپيدا کولے، نو هغه خالص د عقل نه خلاف يوه خبره کوي. که خدائے عاجزه وے نو په اول ځل به ئے پيدا کول نه شو کولے. اُوس چه هغه اول ځل پيدا کول کړي دي او د هغے په وجه مونږ پخپله دا دے جوړ ژوندي ګرزو، نو آخر د دے خبرې د پاره څه پرتوک جوړيدے شي چه خپل جوړ کړے شوے څيز د ماتولو نه روستو بيا دوباره هغه نشي جوړولے؟

﴿۱۹﴾ د آخرت په حقله د دليلونو بيا نو لو نه روستو اُوس دا وئيلے کيږي چه که تاسو آخرت منئ او که نه ئے منئ هغه به په هرحال کښې راځي او دا يو داسے حقيقت دے چه ستاسو د انکار با وجود به راځي. که د پيغمبرانو خبره مو اُومنله او د آخرت د پاره موخه تياري او کړه نو د ځان سره به ښه او کړئ. که مو اُونه منله نو پخپله به د ځان سره بد اُوکړئ. ستاسو په نه منلو سره به آخرت د راتلو نه نه منع کيږي او که خدائے د انصاف قانون به نه ختميږي.

﴿۲۰﴾ يعني انسان زمونږ په قدرت او زمونږ په علم کښې داسے راګير دے چه د هغه د مرۍ رګ هم هغه ته دومره نزدے نه دے لکه څنګه چه زمونږه علم او زمونږه قدرت هغه ته نزدے دے. د انسان د خبرې د اوريدو د پاره مونږه منزل نه کوو د هغه د زړه پټ خيالات مونږ ته نيغ په نيغه معلوم دي. د غه شان به د هغه د نيولو د پاره مونږه منزل نه کوو، هغه چه په کوم ځائے کښې دے، هر وخت زمونږ په قبضه کښې دے چه کله او غواړو را نيسو به ئے

ذٰلِكَ مَا كُنْتَ مِنْهُ تَحِيْدُ ﴿١٩﴾ وَنُفِخَ فِي الصُّوْرِ ۚ ذٰلِكَ يَوْمُ

دا هم هغه څيز دے چه ته ترې تښتيدے[۲۲]. او بيا په صُور کښے پوکے اُووهلے شُو، دا ده هغه ورځ چه ته به ترې

[۲۱] يعنې يو طرفته خو موږ ره په ځپله د انسان د هر عمل نه اود انسان د هر خيال نه نيغ په نيغه خبر يو او بل طرفته په هر انسان باندې دوه فرښتے مقررې دي چه د هغه هره خبره ليکي او د هغه هر عمل په ريکارډ کښے محفوظ ساتي. د دے مطلب دا دے چه کله وخت د الله تعالىٰ په عدالت کښے د انسان پيشي وي نو په هغه وخت کښے به الله تعالىٰ ته په ځپله هم دا معلوم وي چه انسان څه کړي دي، او د شهادت د پاره به پرے دوه گواهان هم موجود وي چه د هغه د عملونو ريکارډ به په ثبوت کښے مخے ته کيږدي. دا ريکارډ (يعني ليکلے شوے ثبوت) به په څه شکل کښے وي، د دے ټيک ټيک تصوّر کول خو زمونږ د پاره گران دے. ليکن کوم حقيقتونه چه نن زمونږ مخے ته راځي د هغے په ليد وسره دا خبره بالکل يقيني معلوميږي چه په کومه فضا کښے انسان اوسي او کار کوي په هغے کښے هر طرفته د هغه آوازونه، د هغه تصويرونه، او د هغه هره ناسته پاسته په هره ذرّه باندې نقش کيږي او بيا دوباره د هغے نه هر څيز بالکل هم په هغه شکلونو او آوازونو کښے پيش کړے کيدے شي چه په اصل کښے او په نقل کښے د ذرّے هومره فرق نه وي. انسان دير په محدوده پيمانه باندې د آلاتو په مدد سره دا کار کوي. ليکن د خدائے فرښتے نه د دے آلاتو ته محتاجه دي او نه د نورو څيزونو پابندے دي. د انسان خپل بدن او د هغه نه گيرچاپيره هر څيز د هغوئ ټيپ او د هغوئ فلم دے چه په هغے باندې هغوئ هر آواز او هر تصوير بالکل هُم هغه شان محفوظ کولے شي او د قيامت په ورځ سره ته د هغه خپلو غوږونو ته د هغه په خپل آواز کښے د هغه خپلے هغه خبرے آورولے شي کومے چه به هغه په دُنيا کښے کولے، او د هغه خپلو سترگو ته د هغه د خپلو ټولو عملونو تصويرونه ښودلے شي چه د هغے نه انکار کول به د هغه د پاره ممکن نه وي.

دلته په دے خبره هم ځان پوهه کول پکار دي چه د آخرت په عدالت کښے به الله تعالىٰ چا ته يوازے د خپل ذاتي علم په بنياد باندې سزا نه ورکوي بلکه د انصاف ټول شرطونه به پوره کوي نو هله به سزا ورکوي. د وجه ده چه په دُنيا کښے د هر سړي د خبرو او د عملونو مکمل ريکارډ تيار ولے کيږي چه د شهادتونو په ذريعه د هغه د عملونو پوره ثبوت تيار شي.

[۲۲] د حق سره د راسيدو نه مراد دا دے چه د مرگ د سکنو شروع کيدو سره هغه حقيقت ښکاره کيدل شروع شي چه په کوم باندې د دُنيا په ژوند کښے پرده پرته وه. د دغه وخت نه سړے هغه دويم جهان صفا وينې د کوم په حقله چه پيغمبرانو خبر ورکړے وُو. په دغه وخت کښے سړي ته دا هم معلوميږي چه آخرت بالکل حق دے، او دا حقيقت هم سړي ته بالکل معلوميږي چه د ژوند په دے دويمه مرحله کښے هغه د نيک بخت په حيثيت سره ور ننوځي او که د بد بخت په حيثيت سره.

[۲۳] يعني دا هم هغه حقيقت دے چه ته به نه منلو او دوه به د ترکوله. تا غوښتله چه په دُنيا کښے د بے مهاره ځاروي په شان آزاد اوگرځے او د مرگ نه روستو بل ژوند نه وي چه تا ته په هغے کښے د خپلو عملونو

الْوَعِيْدِ ﴿٢٠﴾ وَجَآءَتْ كُلُّ نَفْسٍ مَّعَهَا سَآئِقٌ وَّشَهِيْدٌ ﴿٢١﴾
لَقَدْ كُنْتَ فِيْ غَفْلَةٍ مِّنْ هٰذَا فَكَشَفْنَا عَنْكَ غِطَآءَكَ
فَبَصَرُكَ الْيَوْمَ حَدِيْدٌ ﴿٢٢﴾ وَقَالَ قَرِيْنُهٗ هٰذَا مَا لَدَيَّ عَتِيْدٌ ﴿٢٣﴾

---

بَرَولے کیدے[۲۵]۔ هر سرے په دا سے حال کښې راغے چې دَ هغه سره یو راوستونکے دے او یو گواهی کونکے۔ دَدے څیز نه تهٔ په غفلت کښې وے، مونږ درنه هغه پرده لرے کړه کومه چې ستا مخے ته وه او نن ستا نظر ډیر تیز دے[۲۶]۔ دَ هغه ملګری اُووئیل ما ته چه څوک حواله وُو هغه دا دے حاضر دے[۲۷]۔

---

سزا ملاؤ شي۔ په دے وجه به تهٔ دَ آخرت نه لرے تښتیدلے او په هیڅ طریقه دے منلو ته تیار نهٔ وے چې لا آخرت دِ هم راشي۔ اُوس اوګوره دا هغه دویم جهان ستا مخے ته دراروان دے۔

[۲۴] دَدے نه مُراد دَ شپیلئ (صُور) هغه آواز دے چه دَ هغے سره به ټول مړي دوباره بیا راژوندی شي۔ دَ تشریح دَ پاره اوګوره تفهیم القرآن اول جلد، الانعام، حاشیه ۴۷، دویم جلد، ابراهیم حاشیه ۵۷۔ دریم جلد، طٰهٰ، حاشیه ۷۸۔ الحج، حاشیه ۱۔ څلورم جلد، یٰسٓ، حاشیه ۴۶، ۴۷۔ الزمر، حاشیه ۷۹۔

[۲۵] زیات غالب ګمان دا دے چه دَدے نه مُراد هم هغه دوه فرښتے دي کومے چې په دنیا کښې دَ هغه سړي دَ قول او دَ عمل لیکلو دَ پاره مقرر شوي وے۔ دَ قیامت په ورځ چې کله دَ صُور یعنی دَ شپیلئ آواز شروع شي او هر انسان دَ خپل قبر نه را پاسي نو فوراً به هغه دوه فرښتے راشي او دَے به په خپله قبضه کښې واخلي۔ یوه فرښته به ئے دَ خدا ئے عدالت ته بوځي او بله فرښته به ورسره دَ هغه عملنامه وړي۔

[۲۶] یعنی اُوس خو دِ ته ښه په نظر راځي چې هغه ټول هر څه دا دي د لته موجود دي دَ کوم په حقله چې به درته دَ خدا ئے نبي خبرداره درکولو۔

[۲۷] ځینو مفسرینو دَدے مطلب دا بیان کړے دے چې دَ "ملګری" نه مُراد هغه فرښته ده چې هغے ته په آیت نمبر ۲۱ کښې "ګواهی کونکې" فرښته وئیلے شوي ده۔ هغه به اُووائي چې دا کیدے سړي عملنامه ما سره تیاره ده۔ ځیني نور مفسرین وائي چې دَ "ملګری" نه مُراد هغه شیطان دے چې هغه په دنیا کښې دَ هغه سړي سره نښتے وُو۔ هغه به اُووائي ما چه کوم سړے په خپل قابو کښې راوستلے وُو او دَ دوزخ دَ پاره مې تیار کړے وُو هغه مې اُوس دا دے تاسو ته حاضر کړو۔ لیکن دَ مخکښې رو ستو عبارت سره چې کوم تفسیر سمون خوري هغه هغهٔ تفسیر دے کوم چې دَ قتاده او دَ ابن زید نه نقل کړے شوے دے۔ هغوئ وائي چې دَ ملګری نه مراد راوستونکی فرښته ده او هم هغه چې کله دَ خدا ئے عدالت ته اُورسي نو عرض به اوکړي چې ما ته کوم سړے حواله کړے شوے وُو هغه دا دے مالک ته حاضر دے۔

أَلْقِيَا فِي جَهَنَّمَ كُلَّ كَفَّارٍ عَنِيدٍ ﴿٢٤﴾ مَنَّاعٍ لِّلْخَيْرِ مُعْتَدٍ مُّرِيبٍ ﴿٢٥﴾ الَّذِي جَعَلَ مَعَ اللَّهِ إِلَٰهًا آخَرَ فَأَلْقِيَاهُ فِي الْعَذَابِ الشَّدِيدِ ﴿٢٦﴾ قَالَ قَرِينُهُ رَبَّنَا مَا أَطْغَيْتُهُ وَلَٰكِنْ كَانَ فِي

حکم اُوکړے شو "اُوغورزوئ دوزخ ته[28] هر یو سخت کافر[29] چه هغه د حق سره په ضد کښې وُو، خیر منع[30] کونکے او د حد نه اوړیدونکے[31] وُو، په شک کښې پروت[32] وُو، او الله سره ئے بل خدائے جوړ کړے وُو، اُوغورزوئ هغه سخت عذاب ته۔" د هغه ملګری عرض اوکړو "اے خدایه ما دهٔ نه سرکشه نهٔ دے جوړ کړے

[28] اصل الفاظ دی "اَلْقِيَا فِي جَهَنَّمَ" "اُوغورزوئ جهنم ته تاسو دواړه۔" د روانے خبرې نه ښکاره داښه لږی چه دا حکم به هغه دوؤ فرښتو ته کیږی کوم چه د قبر نه د پاسیدو وسره مجرم نیولے وُو او بیائے راوستے وُو او د خدائے عدالت ته ئے حاضر کړے وُو۔

[29] په اصل کښې لفظ "کَفَّار" استعمال شوے دے چه د هغے دوه معنے دی۔ یوه معنیٰ ده سخت ناشکره۔ بله معنیٰ ده د حق نه سخت منکر۔

[30] د خیر لفظ په عربئ ژبه کښې د مال د پاره هم استعمالیږی او د ښیګړے د پاره هم۔ د اولے معنے په لحاظ سره ئے مطلب دا دے چه هغه د خپل مال نه د چا حق نهٔ ادا کولو، نهٔ د خدائے او نهٔ د بندګانو۔ د دویمے معنے په لحاظ سره به مطلب داوی چه د ښیګړے د لارے نه ئے ځان د منع کیدو سره هغه اکتفا نهٔ کوله بلکه نورخلق به ئے هم د هغے نه منع کول۔ په دنیا کښې د خیر د پاره د لارے خنډ جوړ شوے وُو۔ خپل ټول طاقت ئے په هغه کار کښې لګول چه نیکی په هیڅ طریقه خوره نهٔ شی۔

[31] یعنی په خپل هر کار کښې د اخلاقو حدونه ماتونکے وُو۔ د خپلے ناپیدے او د خپل غرض او د خپلو خواهشاتو د پاره هر څه کولو ته تیار وُو۔ په حرامه طریقه به ئے مال را جمع کولو او په حرامو لارو به ئے خرچ کولو۔ د خلقو حقونه به ئے په زور اغستل۔ نهٔ د هغه ژبه د څه حد پابنده وه او نهٔ د هغه لاسونه د یو ظلم او زیاتی نه منع وُو۔ بوازے دا نه چه د خیر سره لار کښې ئے بند یزونه راوستل بلکه څوک چه به نیکئ په لار روان وُو هغوئ به ئے تنګول او چا چه د نیکئ د پاره کار کولو په هغوئ به ئے ظلمونه کول۔

[32] په اصل کښې لفظ مُرِیب استعمال شوے دے چه د هغے دوه معنے دی۔ یوه معنیٰ ده شک کونکے۔ بله معنیٰ ده په شک کښې اچونکے، او دواړه معنے دلته مراد دی۔ مطلب دا دے چه هغه ځپله په شک کښې پروت وُو او د نورو خلقو په زړونو کښې به ئے شکونه اچول۔ د هغه په نزد الله او آخرت او فرښتے او پیغمبری او وحی غرض دا چه د دین ټولے خبرې شکمنے وے۔ د حق کومه خبره چه به د پیغمبرانو د طرف نه پیش کړے کیده، د هغه په خیال کښې به هغه د یقین کولو قابله نهٔ وه؛ او هم دا مرض به هغه د الله په نورو بندګانو ورپورے کوؤ۔ چه کوم سړے به ورله مخے له ورتلو د هغه په زړهٔ کښې به ئے څهٔ نه څهٔ شک او څهٔ نه څهٔ وسوسه اچوله۔

ضَلٰلٍۭ بَعِيۡدٍ ﴿۲۷﴾ قَالَ لَا تَخۡتَصِمُوۡا لَدَىَّ وَقَدۡ قَدَّمۡتُ اِلَيۡكُمۡ بِالۡوَعِيۡدِ ﴿۲۸﴾ مَا يُبَدَّلُ الۡقَوۡلُ لَدَىَّ وَمَاۤ اَنَا بِظَلَّامٍ لِّلۡعَبِيۡدِ ﴿۲۹﴾ ع

بلکه دے پخپله په ډیره لرې ګمراهئ کښې پروت وو"۔ په جواب کښې حکم اُوشو "زما وړاندې جګړه مه کوئ، ما تاسو مخکښې د بد انجام نه خبردار کړي وئ۔[۳۵] زما په دربار کښې خبره واپس کیږي نه[۳۶] او زه په خپلو بندګانو باندې ظلم کوونکے نه یم[۳۷]"۔ ع

[۳۳] په دے آیتونو کښې الله تعالیٰ هغه صفتونه په شمار ښودلي دي کوم چه انسان د دوزخ مستحق کوي: (۱) د حق نه انکار (۲) د خدائے ناشکري۔ (۳) د حق سره او د حق پرستو خلقو سره ضد او عناد (۴) د نیکئ په لار کښې بندیز جوړیدل (۵) د خپل مال نه د خدائے او د بندګانو حق نه ادا کول۔ (۶) په خپلو معاملاتو کښې د حد نه اووښتل (۷) په خلقو باندې ظلم زیاتے کول (۸) د دین په خبرو باندې شک کول (۹) د نورو خلقو په زړونو کښې شکونه اچول او (۱۰) د الله سره نور څوک په خدائي کښې شریک کول۔

[۳۴] دلته د کلام د انداز نه پخپله معلومیږي چه د "ملګري" نه مراد هغه شیطان دے کوم چه په دُنیا د هغه سره نښتے وو۔ او دا خبره هم معلومیږي چه هغه سړے او که هغه شیطان دواړه د خدائے په عدالت کښې د یو بل سره جګړې کوي۔ هغه سړے وائي چه دا ظالم په ما پسے راپسے شوے وو او آخر دا چنړه ئے بے لارے کړم، نو سزا د ده له پکار ده۔ او شیطان په جواب کښې وائي چه جناب زما خو په ده باندې څه زور نه چلیدو، دے کم بخت خو پخپله د وُو چه ګډ ده سرکشه جوړیدل نه غوښتل او ما په زور دے سرکشه جوړ کړو، دے کم بخت خو پخپله د نیکئ نه نفرت کولو او د بدئ سره ئے مینه لرله۔ په دے وجه د پیغمبرانو خبره د ده خوښه نه شوه او زما د لمسون په خبرو او لمسیدو۔

[۳۵] یعنې تاسو دواړو ته ما خبردارے درکړے وو چه په تاسو کښې څوک یو بل څوک بے لارے کوي هغه به څه سزا موي او څوک چه بے لارے شي هغه به څه سزا موي۔ زما د دے خبردارئ باوجود چه کله تاسو دواړه د خپلے خپلے حصے د جُرم کولو نه منع نه شوئ نو اوس د جګړے کولو نه څه جوړیږي۔ بے لارے شوي سړي ته به د بے لارے کیدو او بے لارے کوونکي سړي ته به د بے لارے کولو سزا اُوس لا زما ملاویږي۔

[۳۶] یعنې د فیصلے بدلولو طریقه زمونږ په دربار کښې نشته۔ دوزخ ته ستاسو د غورځولو کوم حکم چه ما کړے دے هغه اوس واپس کیدے نشي۔ او نه هغه قانون بدلیدے شي چه د هغے اعلان ما په دنیا کښې کړے وُو چه د بل د بے لارے کولو او پخپله د بے لارے کیدلو به په آخرت کښې څه سزا ورکړے کیږي۔

[۳۷] په اصل کښې لفظ "ظَلَّام" استعمال شوے دے چه معنیٰ ئے ده ډیر ظالم۔ د دے دا مطلب نه دے چه زه د خپلو بندګانو په حق کښې ظالم خو یم لیکن ډیر ظالم نه یم۔ بلکه مطلب دا دے چه که چرے زه د یو خالق او پروردګار په حیثیت سره په خپل پاللي شوي مخلوق باندې ظلم اوکړم نو ډیر غټ ظالم به یم۔ په دے وجه زه په خپلو بندګانو باندې هدو ګ سرته څه ظلم هم نه کوم۔ دا کومه سزا چه زه تاسو له درکوم دا ټیک هم هغه سزا ده چه تاسو ئے پخپله خپل ځان

وَأُزْلِفَتِ الْجَنَّةُ لِلْمُتَّقِينَ غَيْرَ بَعِيدٍ ﴿٣١﴾ هَٰذَا مَا تُوعَدُونَ لِكُلِّ أَوَّابٍ حَفِيظٍ ﴿٣٢﴾ مَنْ خَشِيَ الرَّحْمَٰنَ بِالْغَيْبِ وَجَاءَ بِقَلْبٍ مُنِيبٍ ﴿٣٣﴾ ادْخُلُوهَا بِسَلَامٍ ۖ ذَٰلِكَ يَوْمُ الْخُلُودِ ﴿٣٤﴾ لَهُمْ

او جنت به متقیانو ته ورنزدې کړې شي لرې به هم لرې نه وي.[39] حکم به اُوشي "دا هغه څیز دے چې ستاسو سره به ئې وعده کیدله، د هر هغه سړي د پاره چې ډیر رجوع کونکے[40] او ډیر حفاظت کونکے وو،[41] چې بے لیدو به د رحمٰن نه یریدلو،[42] او چې د رجوع کونکي زړه سره را غلے دے.[43] ورننوزئ جنت ته د سلامتیا سره."[44] هغه ورځ به د همیشه ژوند ورځ وي. هلته به د هغوئ د پاره

[39] یعني د الله تعالیٰ د عدالت نه چې څنګه د یو سړي په حقله دا فیصله اُوشي چې هغه متقي دے او د جنت مستحق دے نو فوراً به جنت د هغه مخے ته حاضر وي. هلته د رسیدو د پاره به هغه څه مزل نه کوي چې پیاده مزل به اوکړي یا د څه سورلئ په ذریعه به سفر اوکړي او هلته به اُورسي او د فیصلے په وخت کیدے او جنت ته د ننوتو په منځ کیدے به څه وخت اُولږي. بلکه دے خوا به فیصله اُوشي او دا خوا به متقي جنت ته ورننوزي. یعني هغه به جنت ته رسولے شوے نه وي بلکه جنت به د هغه خوا ته را نزدے کړے شوے وي. د دے نه لږ ه لږه دا اندازه لګیدے شي چې د آخرت په جهان کیدے به د وخت او د ځائے تصورات زمونږ د دے دنیا د تصوراتو نه خومره مختلف وي. زر او ناوخته، لرے او نزدے کوم الفاظ چې مونږ په دنیا کیدے استعمالوو هغه ټول به هلته بے معنے وي.

[40] په اصل کیدے لفظ "اَوَّابٌ" استعمال شوے دے چې مطلب ئې ډیر فراخه دے. د دے نه مُراد داسے سړے دے چې د نافرمانئ لارا او د نفس د خواهشاتو لارے پرېښودے وي او د حکم منلو او د الله د رضا لټولو لار ئې اختیار کړې وي. هر هغه څیز چې هغه د الله خوښ نه وي هغه پریږدي، او کوم څیز چې د الله خوښ وي هغه اختیار وي، چې د بندګئ د لارے نه ئې یو ذره خپه اخوا کیږي نو ژر په را ځي او ژر توبه اُوباسي او د بندګئ لارے ته واپس را ځي، چې الله ډیر ډیر یادونکے وي او په خپلو ټولو معاملاتو کیدے خاص الله ته رجوع کونکے وي.

[41] په اصل کیدے لفظ "حفیظ" استعمال شوے دے چې معنیٰ ئې ده "حفاظت کونکے" د دے نه مراد داسے سړے دے چې هغه د الله د حدونو او د هغه د فرائضو او د هغه د حرامو او د هغه د امانتونو حفاظت کوي، چې د الله د طرفنه په هغه کوم حقونه دي د هغې حفاظت کوي، چې د خپل رب سره ئې د ایمان راوړلو په ذریعه کوم وعده کړې ده د هغې پابندي کوي، چې هغه د خپلو وختونو او د خپلو قوتونو او د خپلو محنتونو او کوششونو نګراني کوي چې چرته په غلطو کارونو کیدے اُونه لږي، چې هغه د خپلے توبے حفاظت کوي چې واپس ئې ماته نه کړي، چې هغه هر وخت د خپل ځان جائزه اخلي او ګوري چې څه خو په خپل قول کیدے او په خپل عمل کیدے چرته د خپل پروردګار نافرماني نه کوم.

[42] یعني باوجود د دے چې رحمٰن هغه ته چرته په نظر نه راتلو، او د نورو حواسو په ذریعه ئې هم نه شو

محسوسولے، خو بیا هم د هغه د نافرمانئ نه یریدلو. د نورو محسوسو طاقتونو او د ځرګندو زورورو هستیانو نه د یرے کولو په نسبت د هغه په زړهٔ باندې د نالیدلی رحمان یره ډیره غالبه وه. او دا ئے پوخ یقین وو چه هغه رحمان یعنی بخښونکے دے، خو بیا هم د هغه د رحمت په پروسیائی ګنهګار جوړ نهٔ شو بلکه همیشه د هغهٔ ناراضه کیدو نه یریدو. په دے طریقه دا آیت د مؤمن دوو بنیادی خوبیانو ته اشاره کوی. یوه خوبی دا چه مؤمن نه خدائے وینی او نهٔ ئے په نورو خواسو محسوسوی خو بیا هم د خدائے نه یریږی. بله خوبی دا چه مؤمن د خدائے د بخښنانے د صفت نه بنه خبر دے خو بیا هم په ګناهونو زړور کیږی نهٔ. ددے دوو خوبیانو په وجه هغه د الله سره قدرمن کیږی. ددے نه علاوه په دے کښے یو بله باریکه نکته هم ده چه هغه امام رازیؒ بیان کړی ده. هغه دا چه په عربئ ژبه کښے د خوف او د خشیت دوه لفظونه استعمالیږی چه د دواړو په مطلب کښے یو باریک شان فرق دے. د "خوف" لفظ عام طور د هغه یرے د پاره استعمالیږی چه هغه د یو طاقت په مقابله کښے د ځان کمزوری کنړلو په وجه د سړی په زړهٔ کښے راپیدا شی. او خشیت هغه هیبت ته وائی چه هغه د چا د لوئی د خیال کولو د وجے نه د سړی په زړهٔ کښے راشی. دلته د خوف په ځائے د خشیت لفظ استعمال کړے شوے دے چه مقصد ئے دا دے چه د مؤمن په زړهٔ کښے د الله یره تش د هغه د سزا د یرے د وجے نه نهٔ وی بلکه د هغه سره ددے نه هم زیات د الله د لوئی او د بزرګئ هیبت هر وخت په زړهٔ کښے ملګرے وی.

۴۳ ے اصل الفاظ دی د "قلب منیب" سره راغلی دے. منیب د انابت نه دے چه معنیٰ ئے ده یو طرفته مخ کول او بار بار هغے طرفته واپس کیدل. لکه څنګه چه د قطب نما ستن همیشه قطب طرفته ولاړه وی او ته ئے که هر څو مره اوخوزوے را او خوزوے، هغه اخوا دیخوا لاړه شی او بیا قطب طرفته راشی. نو د قلب منیب نه مراد دا دے زړهٔ دے چه د هر طرفنه ئے مخ یو د الله طرفته را اړولے وی او بیا په ټوله کښے چه پیر هر څنګه حالات راغلل په هغے کښے هغه بار بار د الله طرفته راګرزیدو. دا مطلب مونږه په "دل ګرویده" یعنی د "رجوع کونکی زړهٔ" په الفاظو سره ادا کړے دے. ددے نه معلومه شوه چه د الله سره اصلی قدر د هغه سړی دے چه تش په ژبه نهٔ بلکه د زړهٔ په خلوص او د زړهٔ په صداقت سره خاص د الله شی.

۴۴ ے اصل الفاظ دی اُدْخُلُوْهَا بِسَلَامٍ. سلام که د سلامتیا په معنیٰ کښے واخستلے شی نو د هغے مطلب دا دے چه د هر قسم خفګان نه او د هر قسم غم او فکر او آفتونو نه محفوظ شه او دے جنت ته ورننوځه. او که دا هم د سلام په معنیٰ کښے واخستلے شی نو مطلب به ئے دا وی چه راشه دے جنت ته د الله او د هغهٔ فرښتو د طرفنه په تا سلام دے.

په دے آیتونو کښے الله تعالیٰ هغه صفتونه ښودلی دی چه د هغے په وجه یو سړے د جنت مستحق کیږی او هغه دا دی (۱) تقویٰ (۲) الله ته واپس کیدل (۳) د الله سره د چپل تعلق ساتلو حفاظت کول (۴) د الله نه یریدلو او د هغه د بخښنے په صفت باندې د یقین ساتلو باوجود د هغه نه یریدل او (۵) د قلب منیب یعنی د مینې ډکی زړهٔ سره الله ته رسیدل، یعنی د مرګه پورے الله ته رجوع کول.

---

مَّا يَشَآءُونَ فِيهَا وَلَدَيْنَا مَزِيدٌ ﴿٣٥﴾ وَكَمْ أَهْلَكْنَا قَبْلَهُم مِّن قَرْنٍ هُمْ أَشَدُّ مِنْهُم بَطْشًا فَنَقَّبُوا فِي الْبِلَادِ هَلْ مِن مَّحِيصٍ ﴿٣٦﴾ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَذِكْرَىٰ لِمَن كَانَ لَهُ قَلْبٌ أَوْ أَلْقَى السَّمْعَ وَهُوَ شَهِيدٌ ﴿٣٧﴾ وَلَقَدْ خَلَقْنَا السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَا فِي سِتَّةِ أَيَّامٍ

هغه هر څه ورې څه چه هغوئ غواړي، او زمونږ سره د دے نه هم زيات ډيرڅه د هغوئ د پاره دي[۳۵] مونږ د دوئ نه مخکښے ډير قومونه هلاک کړي دي چه هغوئ د دوئ نه ډير زيات طاقتور وو او د دُنيا ملکونه ئے چاڼ کړي وو[۳۶] نو آيا هغوئ ته د پناه ځائے بيا موند و؟ په دے تاريخ کښے د عبرت سبق دے د هر هغه چا د پاره چه زړه لري يا خبره په توجه سره آوري[۳۷]-[۳۸] مونږ زمکه او آسمانونه او د دے په مينځ کښے ټول څيزونه په شپږو ورځو کښے پيدا کړل[۳۹]

[۳۵] يعنی څه چه هغوئ غواړي هغه خو به ورته ملاؤ بری، ليکن د هغے د پاسه به مونږ ه هغوئ ته هغه څه هم ورکوؤ چه هغه د هغوئ په خيال کښے هم نه دی راغلی چه لا د هغے د حاصلولو خواهش به اُوکړي -

[۳۶] يعنی يو ازے په خپل ملک کښے هغوئ زور ور نه وُو بلکه د دُنيا نورو ملکونو ته هم ورننوتی وُو او د هغوئ د حملو او د تباهئ سلسله د زمکے په څنډ د لوے لرے پورے رسيدلی وه -

[۳۷] يعنی هر کله چه د خدائے د طرف نه د هغوئ د نيولو وخت راغے نو آيا د هغوئ هغه طاقت هغوئ بچ کړے شول؟ او آيا په دنيا کښے بيا چرته هغوئ ته پناه ملاؤ شوه؟ اُوس آخر تاسو په کومه بروسه دا اُميد لرئ چه د خدائے په مقابله کښے به بغاوت اوکړئ او تاسو ته به چرته د پناه ځائے ملاؤ شی؟

[۳۸] يعنی چه يا خو يخپله دومره عقل لري چه د صحيح خبری سوچ اوکړي، او که نه وی نو چه د غفلت او د تعصب (يعنی ضد) نه دومره پاک وی چه بل څوک ئے په حقيقت پوهه کوی نو د هغه خبره په آزاد غوږونو آوري داسے نه وی چه د پوهه کونکی آوازئے په غوږونو تيريږی او د آوريدونکی دماغ په بل طرف کښے مشغول وی۔

[۳۹] د تشريح د پاره اوګوره تفهيم القرآن څلورم جلد، تفسير د سورة حٰمٓ السجدة، حاشيے ۱۱ تا ۱۵-

وَمَا مَسَّنَا مِن لُّغُوبٍ ﴿٣٨﴾ فَاصْبِرْ عَلَىٰ مَا يَقُولُونَ وَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ قَبْلَ طُلُوعِ الشَّمْسِ وَقَبْلَ الْغُرُوبِ ﴿٣٩﴾ وَمِنَ اللَّيْلِ فَسَبِّحْهُ وَأَدْبَارَ السُّجُودِ ﴿٤٠﴾ وَاسْتَمِعْ يَوْمَ يُنَادِ الْمُنَادِ مِن مَّكَانٍ قَرِيبٍ ﴿٤١﴾

او مونږ له څه ستړیا والے رانغے. نو اے نبی، کومے خبرې چه دا خلق جوړوی په هغې صبر کوه[۵۰] او د خپل رب د حمد سره د هغه تسبیح وایه، د نمر ختلو او د نمر پریوتلو نه مخکښې، او د شپې په وخت کښې بیا د هغه تسبیح وایه او د سجدو د وزګاریدو نه روستو هم.[۵۱]
او واوره، په کومه ورځ چه آواز کوونکے (هر سړی ته) د نزدے نه آواز اوکړی،[۵۲]

[۵۰] یعنی حقیقت خبره دا ده چه دا ټول کائنات مونږ په شپږو ورځو کښې جوړ کړی دی او د دے په جوړولو مونږه ستړی شوی نه یو چه څوک د دے دوباره آبادول زمونږ په وس کښې نه دی. اوس که چرے دا بے وقوفه خلق د مرګ نه روستو د دوباره ژوندی کیدو خبرې ستا نه واوری او پېتا پورے توقے کوی او تا ته لیونے وائی نو په دے صبر کوه. ښه په صبر سره د دوئ هره بے عقله خبره آوره او د کوم حقیقت بیانولو د پاره چه ته مقرر کړے شوے یې هغه بیانوه.

په دے آیت کښې یو باریک شان طنز په یهودو و نصاراؤ باندې هم دے چه د هغوئ په بائبل کښې دا قیصه د ځانه جوړه کړے شوې ده چه الله تعالیٰ په شپږو ورځو کښې زمکه او آسمان جوړ کړل او بیا اومه ورځ ئے آرام اوکړو (پیدائش ۲: ۲). اګرچه اوس مسیحی پادریان د دے خبرې نه شرمیدلی دی او هغوئ د خپل مقدس کتاب په اردو ترجمه کښې لفظ آرام اوکړو په لفظ "فارغ هوا" یعنی وزګار شو سره بدل کړے دے. لیکن د کنګ جیمز په مستند انګریزئ بائبل کښې (And he rested on the seventh day) الفاظ صفا موجود دی. او هم دا الفاظ په هغه ترجمه کښې دی کومه چه په ۱۹۵۴ء کښې یهودیانو د فلیډلفیا نه شائع کړې ده. په عربی ترجمه کښې هم "فاستراح فی الیوم السابع" الفاظ دی.

[۵۱] دا هغه ذریعه ده چه په دے سره سړی ته دا طاقت حاصلیږی چه حق ته د بلنې په لاره کښې که هر څومره د زړه ماتی او خطرناک حالات مخے ته راشی، او د هغه د کوششونو که هر وخت نا ثمره په نظر نه راځی، خو بیا هم هغه د کلکے ارادے سره خپل ټول عمر د خلق د اوچتولو و نیکئ ته رابللو کوشش جاری ساتی. د رب د حمد او د هغه د تسبیح نه دلته مراد مونځ دے، او په قرآن مجید کښې چه په کوم ځائے کښې حمد او تسبیح د خاصو وختونو سره خاص کړے شوی وی د هغې نه مراد مونځ وی. "د نمر ختو نه مخکښې" د سحر مونځ دے "د نمر پریوتو نه مخکښې" دوه مونځونه دی، یو ماسپښین، بل مازیګر. د "شپې د وخت" نه مراد د ماښام او ماسخوتن مونځونه دی او دریم د تهجد مونځ هم د شپې په تسبیح کښې شامل دے (د تشریح د پاره اوګوره تفهیم القرآن دوېم جلد، بنی اسرائیل، حاشیه ۹۱ تا ۹۷. دریم جلد، طٰهٰ، حاشیه ۱۱۱. الروم، حاشیه

۲۳-۲۴) - پلته شوه هغه تسبیح چه د هغې هدایت " د سجدو وروستو" شوې ده، نو دَ نه مُراد دَ مانځه نه روستو ذکر هم کیدے شي او دَ فرضونو روستو نفل کول هم۔ حضرت عمرؓ، حضرت علیؓ، حضرت حسن بن علی، حضرت ابوهریره، ابن عباس، شعبي، مجاهد، عکرمه، حسن بصري، قتاده، ابراهیم نخعيؒ او اوزاعي دَدے نه مُراد دَ ماښام دَ مانځه نه روستو دوه رکعته اخلي۔ دَ حضرت عبد الله بن عمرو بن العاص او دَ یو روایت په سبب سره دَ حضرت عبد الله بن عباس هم دا خیال دے چه دَدے نه مُراد دَ مانځه نه روستو ذکر دے۔ او ابن زید وائي چه دَدے حکم مقصد دا دے چه دَ فرضونو روستو دِ نفل مونځ ادا کولے کیږي۔

په صحیحینو کښې دَ حضرت ابوهریره روایت دے چه یو ځل غریبانان مهاجرین حاضر شو او عرض ئې او کړو چه اے دَ الله رسوله مالدارو خلقو خو لوئے لوئے درجے حاصلے کړے۔ نبيؐ او فرمائیل " څه چل اوشو؟" هغوئ عرض او کړو هغوئ هم مونځونه کوي لکه څنګه چه مونږه کوؤ، او روژے نیسي لکه څنګه چه مونږه نیسو۔ لیکن صدقے ورکوي او مونږه نه شو ورکولے، هغوئ غلامان آزادوي او مونږه نه شو آزادولے۔ رسول الله صلی الله علیه وسلم او فرمائیل " راځئ چه زۀ درته داسے کار او ښایم چه که چرے تاسو او کړو نو تاسو به دَ نورو خلقونه وړاندِ شئ بغیر دَ هغه چا نه چه هغه عمل او کړي کوم چه تاسو کوئ۔ هغه کار دا دے چه تاسو دَ هر مانځه نه روستو دری دیرش، دری دیرش[۳۳] ځله سبحان الله، الحمد لله او الله اکبر وایئ " څه موده روستو هغوئ عرض او کړو چه زمونږه مالدارو ورونړو هم دا خبره اوریدلي ده او هغوئ هم دا عمل شروع کړے دے۔ نو نبيؐ او فرمائیل ذٰلِكَ فَضْلُ اللّٰهِ يُؤْتِيهِ مَنْ يَشَآءُ۔ په یو روایت کښې دَ دے کلمو شماره دَ دری دیرش ځله په ځائے لس لس ځله هم روایت کړے شوې ده۔

دَ حضرت زید بن ثابت روایت دے چه رسول الله صلی الله علیه وسلم مونږ ته فرمائیلي وو چه دَ هر مانځه نه روستو دری دیرش دری دیرش ځله سبحان الله او الحمد لله وایئ او څلور دیرش ځله الله اکبر وایئ۔ روستو بیا یو انصاري عرض او کړو چه ما په خوب کښې لیدلي دي چه څوک وائي که ته پنځیش[۲۵] پنځیش[۲۵] ځله دا دریه کلمے او وائے او بیا پنځیش ځله لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ او وائے نو دا به زیات بهتر وي۔ نبيؐ او فرمائیل ویره ښه ده داسے کوه۔ (احمد۔ نسائي۔ دارمي)

حضرت ابوسعید خدري وائي چه رسول الله صلی الله علیه وسلم به کله مونځ او کړو او راګرځیدو نو ما اوریدلي دي چه هغه دا الفاظ ویل سُبْحَانَ رَبِّكَ رَبِّ الْعِزَّةِ عَمَّا يَصِفُوْنَ ۝ وَسَلٰمٌ عَلَى الْمُرْسَلِيْنَ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ۔ (احکام القرآن للجصاص)۔

دَدے نه علاوه هم دَ مونځ نه روستو دَ ذکر دیر شکلونه دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم نه نقل کړے شوي دي څوک چه دَ قرآن مجید په دے هدایت باندِ عمل کول غواړي هغه دِ دَ مشکوٰة شریف باب الذکر بعد الصلوٰة نه یو ذکر چه کوم دَ هغه پسند خوښ وي را واخلي او هغه دِ یاد کړي او هغه دِ لولي۔ دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم دَ ښودلے شوي ذکر نه بهتر ذکر بل څه کیدے نشي۔ لیکن دا خیال ساتئ چه دَ ذکر اصلي مقصد صرف په ژبه الفاظ ویل نه دي بلکه دَ هغے مطلب په ذهن کښې کینول دي او محکم کول دي۔ دا وجه ده چه دَ هر ذکر په مطلب ځان ښه پوهه کول پکار دي او بیا دَ پوهے سره ذکر کول پکار دي

يَوْمَ يَسْمَعُونَ الصَّيْحَةَ بِالْحَقِّ ۚ ذَٰلِكَ يَوْمُ الْخُرُوجِ ﴿۴۲﴾ إِنَّا نَحْنُ نُحْيِي وَنُمِيتُ وَإِلَيْنَا الْمَصِيرُ ﴿۴۳﴾ يَوْمَ تَشَقَّقُ الْأَرْضُ عَنْهُمْ سِرَاعًا ۚ ذَٰلِكَ حَشْرٌ عَلَيْنَا يَسِيرٌ ﴿۴۴﴾

په کومه ورځ چه ټول خلق د حشر چغه ټیک ټیک واوري[۵۳]، هغه ورځ به د زمکے نه د مړو د راوتلو ورځ وي. خاص هم مونږه ژوند ورکوؤ او هم مونږه مرګ راولو، او خاص هم مونږ ته د ټولو واپس راتلل دي په هغه ورځ چه کله زمکه اوشلیږي او خلق د هغے نه راووزي او په منډه منډه راغلي دا حشر (یعنی د خلقو راغونډول) مونږ ته ډیر آسان دی[۵۴]

[۵۲] یعنی انسان چه په کوم ځائے کښے مړ پروت وي، یا په دنیا کښے په کوم ځائے کښے هغه ته مرګ راغلے وي، هم هلته به د حضرت اسرافیل د آواز کونکي آواز هغه ته اورسیږي چه پاسه او خپل رب ته د حساب کتاب د پاره. دا آواز به څه داسے نه وي چه د زمکے په مخ په هر ځائے کښے څوک راڅرګند شي نو هغه به وائي چه کیني آواز کونکي چرته د نزدے نه ماته آواز کړے دے. په یو وخت به دا یو آواز د ټولے زمکے په هر ځائے کښے یو شان واوریدے شي. د دے نه هم اندازه لګیدے شي چه د آخرت په جهان کښے به د زمان او مکان پیمانے د موجوده دنیا په نسبت څومره بدلے شوے وي او څه طاقتونه به د څه رنګه قانون مطابق کار کوي.

[۵۳] اصل الفاظ دي يَسْمَعُونَ الصَّيْحَةَ بِالْحَقِّ. د دے دوه معنے کیدے شي. یوه دا چه ټول خلق به د حق آواز آوري. دویمه دا چه خلق به د حشر چغه ټیک ټیک آوري. د اولے معنے په لحاظ سره مطلب دا دے چه خلق به د هغه حق آواز په خپلو غوږونو اوري د کوم منلو ته چه هغوئ په دنیا کښے تیار نه وو، د کوم نه چه هغوئ په انکار کولو کښے په ضد ټینګ ولاړ وو، د کوم خبر چه به پیغمبرانو کولو او هغوئ به ورپورے توقے کولے. د دویمے معنے په لحاظ سره مطلب دا دے چه هغوئ به په یقین سره د حشر آواز آوري، هغوئ ته به پخپله پته اولګي چه دا څه وهم نه دے بلکه واقعي دا خاص د حشر آواز دے. د هغوئ به په دے خبره کښے هیڅ شک نه وي چه د کوم حشر هغوئ له خبر ورکړے شوے وو هم هغه حشر راغلے دے او دا هم خاص د هغے آواز دے.

[۵۴] دا د کافرانو د هغه خبرے جواب دے کومه چه په آیت نمبر ۳ کښے نقل کړے شوے ده. هغوئ به وئیل چه بیا دا څنګه کیدے شي چه مونږه مړه شوي یو او خاورے شوي یو نو بیا د هغے نه به مونږه بیا راژوندي کړے شو دا خو د عقل نه لرے خبره ده. د هغوئ د دے خبرے په جواب کښے فرمائیلے شوي دي چه دا حشر یعنی د رانیا روستو ټول انسانان په یو وخت راژوندي کول او راجمع کول زمونږ د پاره بالکل آسان دي. زمونږ د پاره دا معلومول څه ګران نه دي چه د یو انسان خاوره په کوم ځائے کښے پرته ده. مونږ ته به په دے معلوماتو کولو کښے هم څه مشکلات مخے ته نه راځي چه په دے خاورو ورو ذرو کښے د "زید" ذرے کومے کومے دي او د "بکر" ذرے کومے کومے دي. هغه ټولے ذرے جدا جدا راغونډول او د یو یو سړي بدن بیا جوړول،

نَحۡنُ اَعۡلَمُ بِمَا یَقُوۡلُوۡنَ وَ مَاۤ اَنۡتَ عَلَیۡهِمۡ بِجَبَّارٍ ۟ فَذَکِّرۡ بِالۡقُرۡاٰنِ مَنۡ یَّخَافُ وَعِیۡدِ ﴿۴۵﴾

اے نبیؐ کومے خبرې چه دا خلق جوړوی هغه مونږ ته ډیرے ښے معلومے دی، او ستا کار دا نۀ دے چه په دوئ خبره په زور اوُ منے - بس ته دَمے قرآن په ذریعه هر هغه سړی ته نصیحت کوه څوک چه زما دَ خبری نه یره کوی۵۵ ع

او په هغه بدن کښے هم هغه سړے بیا دَ نوی سره جوړول کوم چه اول په هغے کښے پاتے شوے وُو، زمونږ دَپاره دَ څه محنت کار نۀ دے، بلکه زمونږه په یوه اشاره دا ټول هر څه په یو ساعت کښے کیدے شی، کوم انسانان چه دَ آدمؑ دَ وخت نه دَ قیامته پورے په دنیا کښے پیدا شوی دی هغوئ ټول په دے یو حکم ډیر په آسانئ سره راجمع کیدے شی. که ستاسو واړه شان دماغ دا دَ عقل نه لرے خبره ګڼړی نو ګڼړی دے، خو دَ کائناتو دَ خالق دَ قدرت نه لرے خبره نۀ ده -

۵۵ په دے فقره کښے دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم دَپاره تسلی هم ده او دَ کافرانو دَپاره خبرداری هم دے. نبیؐ ته فرمائیلے کیږی چه دا خلق په تا پورے کومے خبرې جوړوی دَ هغے بالکل پروا مۀ کوه، مونږه هر څه آورو او دَ هغوئ سره کار ختمول زمونږه کار دے. کافرانو ته خبرداری ورکړے کیږی چه زمونږ په نبی پورے کومے خبرې تاسو جوړوئ هغه به درته ډیرے ګرانے پریوزی - مونږه بیخپله یوه یوه خبره آورو او دَ هغے سزا به خامخا تاسو مومئ-

۵۶ دَ دے دا مطلب نۀ دے چه نبی صلی الله علیه وسلّم په زور خپله خبره په خلقو منله او الله تعالیٰ هغه دَ هغے نه منع کړو. بلکه دا خبره نبیؐ ته کیږی او په اصل کښے کافرانو ته اَورولے کیږی. یعنی هغوئ ته دا ویلے کیږی چه زمونږ نبی خو دا سے نۀ دے در لیږلے شوے چه ستاسو نه په زور کار اخلی. دَ هغه کار دا نۀ دے چه تاسو په زُور مؤمنان کړی چه تاسو نۀ منل غواړئ او هغه دِ ئے در باندې په زور اُومنی. دَ هغه خو بس دومره ذمه واری ده چه دَ چا عقل کار کوی نو چه هغه ته قرآن واَوروی او په حقیقت ئے پوهه کړی. اُوس که چرے تاسو نۀ منئ نو نبی به ستاسو سره خبره نۀ ختموی بلکه مونږ به ستاسو سره خبره ختموُ او فیصله به کوُو-

---

# الذّٰریٰت

**نُوم** دَدے سورة نوم دَ اولنئ ټکی وَالذّٰرِیٰتِ نه اخستلے شوے دے۔ مطلب دا دے چه هغه سورة چه دَ هغې شروع دَ لفظ الذّٰرِیٰتِ نه شوی ده۔

**دَ نازلیدو زمانه** دَ مضمونونو او دَ انداز بیان نه صفا معلومیږی چه دا سورة په هغه زمانه کښې نازل شوے دے چه کله دَ نبی صلّی الله علیه وسلّم دَ دعوت مقابله په توتو ټقالو سره او دَ دروغو په الزامونو سره خو ډیره په زور شور سره کیدله، لیکن دَ ظلم زیاتی دَور لا شروع شوے نه وَو۔ په دې وجه دا سورة هم دَ هغې دَور نازل شوے سورة معلومیږی چه په کوم دَور کښې سورة قٓ نازل شوے دے۔

**موضوع او بحثونه** دَدے سورة ډیره حصه دَ آخرت په حقله ده۔ او په آخر کښې دَ توحید دعوت پیش کړے شوے دے۔ دَدے سره سره خلق دَدے خبری نه هم خبردار کړے شوی دی چه دَ پیغمبرانو خبرې نه منل او دَ جاهلیت په خبرو باندې ټینګیدل هغه څیز دے دَ هغه قومونو دَپاره دَ تباهئ سبب جوړ شوے دے کوم چه دا طریقه اختیار کړی ده۔

دَ آخرت په حقله چه کومه خبره دَدے سورة په وړو وړو نقرو او دَ مطلب نه په ډکو نقرو کښې بیان کړے شوی ده هغه دا ده چه دَ انسانانو ژوند دَ آخری انجام په باره کښې دَ خلقو کومے مختلفې مختلفې او ډیو بل نه بدلے بدلے عقیدے دی، دا پخپله دَدے خبری څرګند ثبوت دے چه په دے کښې یو عقیده هم دَ علم په بنیاد باندې نه ده بلکه هر یو خپل خپل قیاسونه زغلولی دی او څان له ئے یوه نظریه جوړه کړی ده او هم دَ هغې نه ئے دَ څان دَپاره عقیده جوړه کړی ده۔ چا دا خیال او کړو چه دَ مرګ نه پس به ژوند نه وی۔ چا دَ مرګ نه پس ژوند ونو اُومنو خو دَ تناسُخ (یعنی کوم څیز چه مرشی نو دَ هغې رُوح په بل کښې ننوزی) په شکل کښې ئے اُومنو۔ چا دَ آخرت ژوند او جزا او سزا اُومنله خو دَ عملونو دَ بدلے نه دَ بچ کیدلو دَپاره ئے قسما قسم خبری جوړے کړے۔ دا دومره لویه او اهم ترینه بنیادی مسئله ده چه که دَدے په حقله دَ سړی رائے غلطه شوه نو دَ هغه ټول ژوند په غلطیږی او دَ هیشه هیشه دَپاره ئے راتلونکے ژوند بربادیږی۔ او څوک چه دَ علم نه بغیر تش دَ قیاسونو او ګمانونو په بنیاد باندې دَ څان دَپاره یوه عقیده جوړوی نو دا دَ بے وقوفتیا حد دے او دَ تباهئ جرړه ده۔ دَدے مطلب دا دے چه یو سړے څان په غټه دوکه کښې واچوی او خپل ټول عُمر دَ جاهلیت په غفلت کښې تیر کړی او دَ مرګ نه روستو ناساپه دَ داسے حالت سره مخ شی چه دَ هغې دَپاره هغه قطعًا هم تیاری نه وه کړی۔ دَ داسے مسئلے په باره کښې دَ صحیح رائے قایمولو بس یو یوه لار ده، او هغه دا ده چه انسان ته دَ آخرت په حقله کوم علم دَ خدائے دَ طرفنه هغه نبی بنائی چه په هغې دَ پوهے سره غور او کړی او دَ زمکے او دَ آسمان په نظام باندې او پخپله په خپل وجود باندې نظر واچوی او په غرېدلو سترګو او ګوری چه آیا دَ هغه علم دَ صحیح والی شهادت هر طرفنه موجود نه دے؟ په دے سلسله کښې دَ هوا او دَ باران انتظام، دَ زمکے جوړښت او په هغې کښې

دَ سیدو کی مخلوقات، دَ انسان خپل نفس، دَ آسمان پیدا وښت، او دَ دُنیا ټول څیزونه دَ جوړو جوړو په شکل کښې جوړیدل په دے طور کښې پیش کړے شوی دی چه دا ټول کارونه دَ آخرت ګواهی کوی. او دَ انسانی تاریخ نه مثالونه ورکړے شوی دی او ویئیلے شوی دی چه دَ کائناتو دَ بادشاهئ طرز دا دے بنکاری چه په دے کښې دَ بدلے او دَ سزا قانون یعنی قانون مکافات پکار دے.

دَ دے نه روستو دیر په مختصر انداز کښې دَ توحید دعوت ورکړے شوے دے او ویئیلے شوی دی چه ستاسو خالق تاسو دَ بل دَ بندګئ دَ پاره نه یئی پیدا کړی بلکه دَ خپلے بندګئ دَ پاره ئے پیدا کړی یئی. هغه ستاسو دَ جوړو کړو معبودانو پشان نه دے چه کښې ستاسونه رزق اخلی او ستاسو دَ امداد نه بغیر دَ هغه خدائی نه شی چلیدے. هغه داسے معبود دے چه ټولو له رزق ورکوی، دَ چانه دَ رزق دَ اخستلو محتاج نه دے او چه دَ هغه خدائی دَ هغه په خپل طاقت چلیږی.

په دے سلسله کښې دا خبره هم شوی ده چه دَ پیغمبرانو مقابله کله هم شوی ده نو په څه مناسب بنیاد بانډی نه ده شوی بلکه په هغه ضد او جاهلانه غرور بانډی شوی ده کوم چه نن دَ محمد صلی الله علیه وسلم سره کیږی، او دَ دے اصل سبب دَ سرکشئ نه بغیر بل هیڅ څیز نه دے. بیا محمد صلی الله علیه وسلم هدایت شوے دے چه دَ سرکشانو خلقو ته توجه مه ورکوه، او دَ خپل دعوت او دَ خپلے بلنے کار کوه، ځکه دا کار که دَ دے خلقو دَ پاره فائدہ مند نه وی نو نه به وی لیکن دَ مومنانو دَ پاره فائده مند دے. باقی شو هغه ظالمان خلق چه هغوی په خپله سرکشئ بانډی ټینګ ولاړ دی، نو دَ دوی نه مخکښے چه کوم خلق په دے لار تلل هغوی ته دَ خپلے حصے عذاب ملاؤ شوے دے او دَ دوی دَ حصے عذاب تیار دے.

---

## سُوْرَةُ الذّٰرِيٰتِ مَكِّيَّةٌ

اٰيَاتُهَا ٦٠ — رُكُوْعَاتُهَا ٣

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

وَالذّٰرِيٰتِ ذَرْوًا ۙ﴿۱﴾ فَالْحٰمِلٰتِ وِقْرًا ۙ﴿۲﴾ فَالْجٰرِيٰتِ يُسْرًا ۙ﴿۳﴾ فَالْمُقَسِّمٰتِ اَمْرًا ۙ﴿۴﴾ اِنَّمَا تُوْعَدُوْنَ لَصَادِقٌ ۙ﴿۵﴾ وَّاِنَّ الدِّيْنَ

قسم دے په هغه هوا گانو چه دوړې الوزوُنکې دی، بیا اُوبونه ډکے وریځے اُوچتوُنکې دی[1]، بیا په مزه مزه چلیدونکې دی، بیا د یو لوئې کار (یعنې د باران) تقسیموُنکې دی[2]، حقه دا دے چه د کوم څیز نه تاسو یرَولے کیږئ هغه رښتیا دے[3] او د عملونو بدلے به

---

[1] په دے خبره د ټولو مفسرینو اتفاق دے چه د اَلذّٰرِیٰتِ نه مُراد څیزونه کړ وَږوُنکې او دوړې الوزوُنکې هوا گانے دی، او د "اَلْحٰمِلٰتِ وِقْرًا" (درونډ بوج اُوچتوُنکو) نه مُراد هغه هوا گانے دی چه د سمندرونو نه په لکونو کروړونو ټنه اُوبۀ د بړاس یعنې د وریځو په شکل کښے اُوچتوی. هم دا تفسیر حضرت عُمرؓ، د حضرت علیؓ، د حضرت عبدالله بن عباس، د حضرت عبدالله بن عُمر او د مجاهد، د سعید بن جُبیر، د حسن بصری، د قتادَه او د سُدّی وغیره حضراتو نه نقل کړے شوے دے.

[2] د اَلْجَارِیَاتِ یُسْرًا او د اَلْمُقَسِّمٰتِ اَمْرًا په تفسیر کښے د مفسرینو په مینځ کښے اختلاف دے. یو ډله دے خبرې له ترجیح ورکړې ده، یا ئے ترے دا مطلب اخستل جائز گڼلی دی چه د دے دواړو نه هم مُراد هوا گانے دی. یعنې هم دا هوا گانے وریځے د ځان سره وړی او بیا زمکې په مختلفو حصو کښے تقسیم شی او د الله تعالیٰ د حکم مطابق، چه کوم ځائے څومره حکم وی هلته هغومره اُوبۀ تقسیموی. دویمه ډله د اَلْجٰرِیٰتِ یُسْرًا نه مُراد په مزه مزه تلونکې کشتۍ اخستلی دی او د اَلْمُقَسِّمٰتِ اَمْرًا نه ئے مراد هغه فرښتے اخستلی دی چه هغوئ د الله تعالیٰ د حکم مطابق د مخلوقاتو د نصیب څیزونه په هغوئ کښے تقسیموی. د یو روایت مطابق حضرت عُمر رضی الله عنهٗ د دے دواړو فقرو دا مطلب بیان کړو او وے فرمائیل چه که چرے ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه نۀ وی اَوریدلی نو ما دا نۀ بیانولو. په دے وجه علامه آلوسی د دے خیال اظهار کړے چه د دے سوا بل مطلب د دے فقرو نه اخستل جائز نۀ دے او کوم خلقو چه ترے بل مطلب اخستلے دے هغوئ ئے ځایه زړورتیا کړې ده. لیکن حافظ ابن کثیر وائی چه د دے روایت سند کمزورے دے او په دے وجه قطعی طور څوک دا نۀ شی وئیلے چه دا قعی نبی د دے نقل وړا تفسیر بیان کړے دے. په دے کښے هیڅ شک نشته چه د صحابو او د تابعینو یو ډلے نه هم دا دویم تفسیر نقل کړے شوے دے. لیکن د مفسرینو یو ډله دے اولنی تفسیر هم بیان کړے دے او د کلام د سلسلے سره هغه زیات سمون خوری. شاه رفیع الدین صاحب، شاه عبدالقادر صاحب او مولانا محمود الحسن صاحب هم په خپلو ترجمو کښے اولنے مطلب اخستے دے.

لَوَاقِعٌ ۝٦ وَالسَّمَآءِ ذَاتِ الْحُبُكِ ۝٧ إِنَّكُمْ لَفِي قَوْلٍ

ضرور مخې ته راتلونکی دی۔[٤]

قسم دے په آسمان باندې چه مختلف شکلونو والا دے،[٥] (د آخرت په باره کښې) ستاسو خبره د یو بل نه

[٣] په اصل کښې لفظ توعدون استعمال شوے دے۔ دا که چیرې د وَعد نه وي نو د دې مطلب به دا وي "د کوم شي چه ستاسو سره وعده کیږي"۔ د ژبې په لحاظ سره دواړه مطلبونه یو شان صحیح دي۔ لیکن د موقع او د محل سره دویم مطلب زیات سمون خوري، ځکه چه خبره هغه خلقو ته کیږي څوک چه په کفر او په شرک کښې او په گناهونو کښې ډوب وو او د دې خبرې منلو ته تیار نه وو چه لا څنګا کتاب به هم کیږي او د عملونو بدله به هم ورکړے کیږي۔ په دې وجه موږ د توعدون د وعده په ځائے د وعید (یعنې ډیرونه) په معنی کښې اخستلے دے۔

[٤] دا دویمه خبره ده چه په کومې قسم خوړلے شوے دے۔ د دې قسم مطلب دا دے چه د کوم بې مثاله انتظام او رواني سره د باران دا عظیم الشان طریقه ستاسو سترګو ته راڅرګندېږي، او کوم حکمتونه او کومه فائده چه په دې کښې څرګنده په نظر راځي، هغه د دې خبرې ګواهي کوي چه دا دنیا څه بې مقصدا او بې مطلبه کور نه دے چه پکښې د لکونو کروړونو کلونو راسے یوه څه تماشو به هم بس هم دغسې په آټکل واروانه کیږي بلکه دا په حقیقت کښې د کمال درجې یو حکمتي نظام دے چه هر کار پکښې د یو مقصد او د څه فائدې د پاره کیږي۔ په دې نظام کښې دا په هیڅ شان سره ممکنه نه ده چه دلته دا انسان غوندې مخلوق له عقل، شعور، تمیز او په خپله خوښه د کارکولو اختیار ورکړے شي، په هغه کښې د نیکۍ او د بدۍ معلومولو اخلاقي حس پیدا کړے شي او هغه ته د هر قسمه د ښو او بدو کارونو، د صحیح او د غلطو کارونو موقعې ورکړے شي۔ او هغه د په زمکه کښې د لوټ مار او منډو ترړو د پاره هسې بې مطلبه او فضول په بینوره شي، او د هغه نه دا پوښتنه دا تپوس نه کیږي چه زړه او دماغ او د بدن کوم طاقتونه چه هغه له ورکړے شوي وو، په دنیا کښې د کار کولو د پاره چه کومه فراښه ذریعې هغه ته حواله کړے شوې وې او د کوم الله په بې شماره مخلوقاتو چه د حکم کولو کوم اختیارات هغه له ورکړے شوي وو، دا ټول هغه په څه طریقه استعمال کړل، د کائناتو په کوم نظام کښې چه هر څه خامخا څه مقصد لري نو په هغې کښې د انسان غوندې عظیم مخلوق پیدا ایش ځکه بې مقصدا کیدے شي؟ په کوم نظام کښې چه هر شي د حکمت نه ډک د په هغې کښې یوازې د یو انسان پیدا ایش ځکه فضول او عبث کیدے شي؟ د مخلوقاتو کوم قسمونه چه عقل او شعور نه لري د هغوی د پیدا ایش غرض په دې طبیعي جهان کښې یعنې په دې دنیا کښې پوره کیږي۔ نو هغوی که چیرې د خپل عمر د ختمیدو نه روستو ضائع کړے شي نو دا بالکل مناسب خبره ده، ځکه چه هغوی له څه اختیارات هم نه دي ورکړے شوي نه دي چه کښي څه حساب کتاب د ورسره اوکړے شي۔ لیکن هغه مخلوق چه عقل او شعور او اختیارات ورکړے شوي دي، چه د هغوی کارونه یوازې د دنیا د حده پورې محدود نه دي بلکه اخلاقي حیثیت هم لري، او چه د هغوی هغه عملونه چه د هغې نه څه نه څه اخلاقي انجام را اوزي، د هغې سلسله تش د دُنیا د ژوند د آخري ساعت پورې نه چلیږي بلکه د مرګ نه روستو هم د هغې اخلاقي اثرات پاتے کیږي، نو هغه صرف د هغه د دُنیا د کار د ختمیدو نه روستو د ګناورو او د بوټو په شان څنګه ضائع کړے شي؟ هغه خو چه په خپل اختیار او ارادے سره

کومه نیکي یا بدي کړي ده د هغې بدله هغه ته تیک تیک د حق او د انصاف مطابق ملاویدل پکار دي
ځکه چه دا د هغه مقصد تر ټولو ضروري ده د کوم مقصد لاندې چه د نورو مخلوقاتو خلاف هغه
بااختیاره او باخلاقه مخلوق جوړ شوی دے. که د هغه سره حساب کتاب نه وي، او د هغه د اخلاقي کارونو
هغه له څه سزا یا جزا نه وي، او هغه د بے اختیاره مخلوقاتو په شان د دُنیا د ژوند د ختمیدو نه
روستو ضائع کړے شي، نو بیا به خامخا د هغه پیدا کیدل عبث وي او د یو حکیم نه د عبث کار
کولو اُمید کیدے نه شي.

د دے نه علاوه د آخرت او د جزا او د سزا په واقع کیدو باندې د کائناتو په دے څلورو څیزونو د قسم
خوړلو یوه بله وجه هم ده. د آخرت نه انکار کوونکي چه د مرګ نه پس ژوند په کومه وجه ناممکنه ګڼړي
هغه دا ده چه هغه وائي چه کله موږ ټول مړه شو او د خاورو سره خاورے شو، او چه کله زموږ د یوه
یوه ذره په زمکه کښے خوره وره شي نو څنګه کیدے شي چه د بدن دا خورے ورے ذرے بیا راجمع شي
او موږ دوباره جوړ کړے شو. دا شک د کائناتو په هغه څلورو څیزونو باندې په غور کولو سره په ځپله
ختمیږي کوم چه د آخرت د پاره د دلیل په طور پیش کړے شوي دي. د نمر د تاثیر نه چه د زمکے په مخ
د اوبو کوم ذخیرو ته رسي په هغې تولو باندې د ګرمۍ اثر غورزوي. د دے عمل د وجے نه د اوبو بے
حسابه قطرے د سمندرونو نه والوزي. لیکن هغه ختمیږي نه بلکه د بړاس په شکل کښے یوه یوه قطره
په هوا کښے محفوظه وي. بیا چه کله د خدائے حکم وشي نو هم دا هوا د هغې بړاس قطرے راغونډے
کړي، هغه د درنو وریځو په شکل کښے راجمع کړي بیا دغه وریځے د ځان سره واخلي او د زمکے په
مختلفو حصو کښے خورے شي، او د خدائے د طرف نه چه کوم وخت مقرر دے تیک په هغه وخت یوه یوه
قطره هم په هغه شکل کښے چه په کوم شکل کښے اول وه زمکے ته واپس راورسوي. دا کوم کار چه هره
ورځ د انسان د سترګو د وړاندې کیږي د دے خبرې ګواهي ورکوي چه د مړو شوو انسانانو د بدن ذرے
هم د الله تعالیٰ په یوه اشاره راجمع کیدے شي او ټول انسانان هم په هغه شکل کښے بیا ژوندي
کولے شي په کوم شکل کښے چه اول هغوی موجود وو. دا ذرے خواه که په خاورو کښے وي، او که په
اوبو کښے وي، او که په هوا کښے وي، بهرحال هغه وي په دے زمکه کښے او د دے په ماحول کښے. کوم
خدائے چه د اوبو بخارات په هوا کښے کخورید ونه روستو بیا هم د هغے هوا په ذریعه راغونډوي او هغه
بیا د اوبو په شکل کښے راوړوي، د هغه خدائے د پاره به د انسان د بدن خورے ورے ذرے د هوا او د
اوبو او د خاورے نه راغونډول، او بیا په پخواني شکل کښے راجمع کول آخر ولے ګران دي؟

۵ ــــ په اصل کښے لفظ ذَاتِ الْحُبُكِ استعمال شوے دے. حُبُك لارو ته هم وائي، حُبُك هغه چپو ته هم وائي
چه د هوا د چلید وسره په شګو نه علاقه کښے او په ولاړو اوبو کښے پیدا کیږي. او په کلکتو و نجتو کښے چه کوږے لارے
جوړیږي هغې ته هم دا لفظ وئیلے کیږي. دلته آسمان ته حُبُك والا یا خو په دے لحاظ سره وئیلے شوے دے چه په آسمان
باندې اکثر دا ډول وریځے خورې وي چه د هغے قسما قسم شکلونه وي او هغه د هوا د وجے نه بار بار بدلیږي رابدلیږي
نه څه همیشه یو شکل وي او نه څه یو شکل د بل شکل په شان وي. یا ورته په دے وجه حُبُك والا فرمائیلے شوے دے چه په
کله په آسمان باندې ستوري خواره واره خُلیږي نو سړے وینې چه د هغے ډیر مختلف شکلونه دي او یو شکل د بل شکل په شان نه دے.

مُّخْتَلِفٍ ﴿۸﴾ یُّؤْفَكُ عَنْهُ مَنْ اُفِكَ ﴿۹﴾ قُتِلَ الْخَرّٰصُوْنَ ﴿۱۰﴾ الَّذِیْنَ هُمْ فِیْ غَمْرَةٍ سَاهُوْنَ ﴿۱۱﴾ یَسْـَٔلُوْنَ اَیَّانَ یَوْمُ الدِّیْنِ ﴿۱۲﴾ یَوْمَ هُمْ عَلَى النَّارِ یُفْتَنُوْنَ ﴿۱۳﴾ ذُوْقُوْا فِتْنَتَكُمْ هٰذَا الَّذِیْ

مختلف دہ۔[6] دَ هغې نه هغه څوک مخ اړوی څوک دَ حق نه په شاشوے دے۔[7]

په قیاس او په ګمان سره حکم لګونکی خلق تباه شو[8] چه په جهالت کښې ډوب او په غفلت کښې بے هوشه پراته دی۔ تپوس کوی چه آخر هغه دَ بدلے ورځ به کله راځی؟ هغه به په هغه ورځ راځی چه کله دا خلق به وور سوزولے کیږی۔ (دوی ته به ویلے کیږی چه) اُوس اُوڅکئ مزه دَ خپلے فتنے۔ دا هم هغه څیز دے

سـ٦ـه په دے مختلفو خبرو باندِ دَ تشبیه په طور دَ مختلفو شکلونو والا آسمان قسم خوړلے شوے دے۔ یعنی لکه څنګ چه دَ آسمان دَ وریځو او دَ ستورو دَ ټولګو شکلونه مختلف دی او په هغې کښې هیڅ مطابقت دَ یو بل سره نه وی، دغه شان دَ آخرت په حقله تاسو دَ خپله خپله رائے مطابق خبرې کوئ او دَ هر یو خبره دَ بل نه مختلف ده۔ څوک وائی چه دا دنیا همیشه ده او قیامت نشی راتلے۔ څوک وائی چه دا نظام فانی دے او په یو وخت کښې دا ختمیدے هم شی لیکن دَ انسان سره چه کوم څیزونه یو ځل فنا شو بیا دَ هغې دوباره راژوندی کیدل ممکن نه دی۔ څوک دا منی چه دوباره ژوندی کیدل شته لیکن دَ هغوی عقیده دا ده چه انسان دَ خپلو عملونو دَ نتیجے نه بدلے دَ پاره بار بار هم په دے دنیا کښې راپیدا کیږی۔ څوک دَ جنت او دَ دوزخ هم قائل دی، لیکن دَ دے سره دَ تناسخ عقیده هم شاملوی یعنی دَ هغوی دا خیال دے چه ګنهګار انسان دَ سزا دَ پاره دوزخ ته هم ځی او بیا په دے دنیا کښې هم سزا دَ پاره راپیدا کیږی۔ څوک وائی چه دَ دُنیا ژوند پخپله یو عذاب دے، ترڅو چه دَ انسان دَ نفس تعلق دَ مادی دنیا سره باقی وی تر هغې به هغه انسان په دے دنیا کښې بار بار مری او بار بار به ژوندے کیږی، او دَ هغه حقیقی خلاصے (یعنی نِروان۔ نجات) دا دے چه هغه بالکل فنا شی۔ څوک دَ آخرت او دَ جنت او دَ دوزخ قائل دی، لیکن وائی چه حضرت عیسیٰ ځان په صلیب مرکړے دے او دَ انسانانو دَ همیشه ګناه کفاره ئے ادا کړی ده، او څوک چه په هغه باندې ایمان راوړی نو هغه به دَ خپلو بدو عملونو دَ بد انجام نه بچ شی۔ څوک آخرت او جزا و سزا، او هر څه منی خو ځینی داسے بزرګان دَ ځان دَ پاره سفارشیان ګنړی چه هغوی دَ الله داسے نیازبین دی، یا دَ الله په دربار کښې دا سے زور چلیږی چه چا دَ هغوی لمن او نیوله نو هغه که په دنیا کښې هر څه کوی نو دَ سزا نه بچ کیدے شی۔ دَ دے بزرګو هستیانو په باره کښې هم دَ دے عقیدے په خلقو کښې اتفاق نشته، بلکه هر یو ډلے دَ خپل ځان دَ پاره جُدا جُدا سفارشیان جوړ کړی دی۔ دا مختلف تولونه پخپله دَ دے خبرې ثبوت دے چه انسان کله خپل ځان دَ وحی او دَ رسالت نه بے پروا کړے دے او دَ دے دنیا دَ انجام په حقله ئے خپله رائے قائم کړے ده، نو دَ علم نه بغیر ئے قایم کړے ده۔ او که نه چرے دَ انسان سره په دے معامله کښې واقعی نیغ په نیغه دَ علم څه ذریعه وے نو دومره مختلف او اډلے بدلے عقیدے به نه پیدا کیدے۔

سـ٧ـه اصل الفاظ دی یُؤْفَكُ عَنْهُ مَنْ اُفِكَ۔ په دے فقره کښې چه په عَنْهُ کښې کوم ضمیر دے هغه دَ دَ

ځای یونو ته کیږي شي. یو د عملونو بدلے ته. دریم مختلف قولونو ته. د اولے معنے مطابق مطلب دا دے چه
"د عملونو بدله خو به ضرور وی ستاسو د هغې په باره کښې مختلفې عقیدې دي، لیکن د هغې د منلو نه هغه
سړے مخ اړوی چه هغه د حق نه مخ اړولے وی." د دویمې معنے مطابق مطلب دا دے چه "د دې مختلفو
قولونو په وجه هغه سړے بے لارے کیږي چه هغه په اصل کښې د حق نه مخ اړولے وی"۔

۸ــه په دے الفاظو کښې قرآن مجید انسان ته د یو اهم حقیقت خبردارے ورکوی. د قیاس او د ګمان په بنیاد باندې
یو اندازه لګول، د دُنیا په ورو ورو معاملو کښې خو د څه حده پورے چلیدے شي اګرچه د علم ځائے بیا
هم نشي نیولے، لیکن دومره لویه بنیادی مسئله چه آیا زمونږ به د خپلو عملونو تپوس کیږي او که نه
او آیا مونږ به د خپلو عملونو ذمه واریو او که نه، او که یو نو چا ته یو، کله به یو او د څه تپوس به زمونږ نه کیږي
او په هغې سوال او جواب کښې به د کامیابۍ او د ناکامۍ څه انجام وی، دا داسے مسئله نه ده چه کوم دے په
حقله سړے لښ د خپل قیاس او ګمان مطابق یو اندازه قایمه کړي او بیا د دې جوارۍ په داؤ باندې
د خپل ژوند ټوله پنګه لاهو کړي. ځکه چه که چرے دا اندازه غلط شوه نو د دے به دا مطلب وی چه سړی
خپل ځان بالکل تباه او برباد کړو. د دې نه علاوه دا مسئله هم د سړی په هغه مسئلو کښې شامله نه ده چه
د هغې په حقله سړے لښ د قیاس او ګمان او د تخمینې په ذریعه صحیح رائے قایمولے شي. ځکه چه قیاس په هغه
کارونو کښې چلیدے شي چه هغه د انسان د علم په ذریعو (یعنی محسوساتو) کښې شامل وی، او دا مسئله داسے ده
چه د دے یو اړخ هم د محسوساتو په دائره کښې نه راځي. نو په دے وجه دا خبره هم ممکنه نه ده چه د دے مسئلے
په باره کښې څه قیاسی اندازه صحیح شي. اوس پاتې شوه دا خبره چه بیا د انسان د پاره د محسوساتو نه د پورته
مسئلو په باره کښې د رائے قایمولو صحیح شکل څه دے، نو د دے جواب په قرآن مجید کښې ځائے په ځائے ورکړے
شوے دے او څپله د دے سورة نه هم دا جواب څرګندیږی چه انسان تبلیغ په ذریعه څپله حقیقت ته نشی
رسیدے، د حقیقت علم الله تعالیٰ د خپل نبی په ذریعه بنائي، او د هغه علم د صحیح والي په حقله سړے خپله
تسلی په دے طریقه کولے شي چه په زمکه او په آسمان کښې او څپله د انسان په خپل نفس کښې کومے بے شماره
نښے موجودې دي چه په هغې ژور نظر واچوی او او وکوری او بیا په غیرجانبدارۍ سره سوچ اوکړی چه آیا دا
نښے د هغه حقیقت ګواهي کوی کوم چه نبی بیانوی، یا د هغه مختلفو نظریو تائید کوی کوم چه نورو خلقو
د دے په باره کښې پیش کړی دی؟ د خدائے او د آخرت په حقله د علمی تحقیق هم دا یوه طریقه ده کومه
چه په قرآن کښې ښودلے شوی ده. د دے نه برعکس چه هر څوک په خپل قیاسی اندازو روان شو هغه برباد شو

۹ــه یعنی هغوی ته هیڅ پته نشته چه هغوی د دے خپلو غلطو اندازو په وجه کوم انجام ته روان دی.
د دے اندازو په بنیاد باندې چه کومه لاره چا اختیار کړې ده هغه نیغه د تباهۍ طرف ته ځي. څوک چه د
آخرت نه منکر وی هغه هم د سرنه د جواب ورکولو تیارے نه کوی او په دے خیال کښې مست وی چه د
مرګ نه روستو به بل ژوند نه وی، حالانکه ناساپه به هغه وخت راشی کله چه د هغه د اُمیدونو نه بالکل
خلاف په دویم ژوند کښې د هغه سترګے او غوږونه اولور ته معلومه شي چه دلته به هغه د خپل یو یو عمل
جواب ورکوی. څوک چه په دے خیال کښې خپل ټول عمر تیروی چه د مرګ نه روستو به بیا واپس د
دنیا ته راځم، هغه ته به د مرګ سره پته اولګی چه اوس د واپس تللو ټولے دروازے بندے دي، او په

نوی عمل سره ډېر شوی ژوند د عملونو کمی پوره کولو اود هیڅ موقع نشته، او وړاندې یو بل ژوند ده چه په هغه کښې به د همیشه همیشه د پاره د خپل ډېرو ژوند انجام وینی او هغه به برداشت کوی. څوک چه په دې اُمید کښې خپل عمر په سختئ کښې تېروی چه کله زۀ خپل نفس او د نفس خواهشات په پوره طریقه سره کرم نو د خالص فنا کیدو په شکل کښې به ما ته د هستئ یعنی د موجودګئ د عذاب نه خلاصے ملاؤ شی، هغه چه د مرګ د دروازې نه ورتېرشی نو اُوبه وینی چه هلته نه فنا کیدل نشته بلکه همیشه ژوند ورته ده او اُوس به د هغه نه د دې خبری تپوس کوی چه آیا تا د موجودګئ نعمت د دې د پاره درکړے شوے وُو چه تا د دې کجروئی او خباثت کولو په ځای د دې په ختمولو کښې خپل محنتونه لګول؟ دغه شان څوک چه د الله د څوئ د کفاره جوړیدو یا د یو بزرګ د سفارشئ جوړیدو په بروسه باندې تمول عمر د الله نافرمانیا کوی هغه چه د خدائے مخے ته او دریږی نو پته به ورته اولګی چه هلته نه څوک د چا کفاره اداکونکے شته او نۀ په چا کښې دا طاقت شته چه هغه خپل زور یا د خپلے میینے په وجه څوک د خدائے نه بچ کړی. نو بس دا ټولے قیاسی عقیدے په حقیقت کښې افیم دی چه د هغے په نشه کښې دا خلق بیهوشه پراته دی او هیڅ پته ورته نۀ لګی چه د خدائے او د پیغمبرانو د صحیح علم نه د وتۀ د کوم جهالت په وجه مخ اړوی هغه دوئ کوم طرف ته بوځی۔

۱۰ــه د کافرانو دا تپوس چه د بدلے ورځ به کله راځی، د ځان د خبرو لوۀ پاره نۀ وُو بلکه د طعنے او د خندا په طور وُو، په دې وجه هغوئ له جواب په دے انداز کښې ورکړے شو۔ دا بالکل داسے ده لکه چه ته چا د بدعملئ نه د منع کیدو نصیحت کوے او هغه ته او وائے چه یوه ورځ به د دې کار خراب انجام وینے، او هغه په برق برق اوخاندی او ستا نه تپوس اوکړی چه حضرته، آخر هغه ورځ به کله راځی؟ بنکاره خبره ده چه د هغه دا تپوس د خراب انجام د تاریخ معلومولو د پاره نۀ دے بلکه ستا په نصیحتونو پورے د خندا د پاره دے۔ په دې وجه ورته صحیح جواب دا دے چه هغه انجام به په هغه ورځ راځی کله چه ستا د سزا وخت راشی۔ دې سره په دے خبره هم ځان بنه پوهه کول پکار دی چه د آخرت په مسئله باندې که د آخرت نه منکر سړے بنه د پوهے سره بحث کوی نو هغه خو د آخرت په حق کښې یا مخالفت کښې خبری کولے شی، لیکن ترڅو چه د هغه دماغ بالکل خراب شوی نۀ وی هغه دا تپوس هیڅکله نشی کولے چه اُووایه هغه آخرت به په کوم تاریخ راځی۔ د هغه د طرف نه چه دا تپوس کله هم وی هغه به د توقع او د خندا په طور وی۔ ځکه چه د آخرت د راتلو د تاریخ بیانولو او نۀ بیانولو هیڅ اثر په اصل بحث باندې نۀ پریوزی۔ څوک نۀ په دے بنیاد باندې د آخرت نه انکار کوی چه د آخرت د راتلو کال، میاشت او ورځ نۀ ده ښودلے شوی، او نۀ په دے او ریدو سره د آخرت راتلل منی چه هغه به په فلانی کال او په فلانی میاشت کښې او په فلانی تاریخ راځی۔ تاریخ مقررول هډو د سړی دلیل نۀ دے چه یو منکر به ئې اقرار ته تیار کړی ځکه چه د هغے نه روستو بیا دا تپوس کیدے شی چه د هغه ورځ د راتلو نه مخکښې آخر دا یقین څنګه اوکړے شی چه په هغه ورځ به واقعی آخرت وی۔

۱۱ــه د فتنے د لفظ دلته دوه معنے دی۔ یوه معنیٰ دا ده چه د دې خپل عذاب مزه اُوڅکئ، دویمه معنیٰ دا ده چه د خپلے هغه فتنے مزه اوڅکئ کومه چه تا په دنیا کښې راپورته کړی وه۔ په عربئ ژبه کښې د دې لفظ دا دواړه مطلبونو ښودلو ګنجائش شته دے۔

كُنۡتُمۡ بِهٖ تَسۡتَعۡجِلُوۡنَ ﴿۱۴﴾ اِنَّ الۡمُتَّقِيۡنَ فِىۡ جَنّٰتٍ وَّعُيُوۡنٍ ﴿۱۵﴾ اٰخِذِيۡنَ مَاۤ اٰتٰهُمۡ رَبُّهُمۡ ؕ اِنَّهُمۡ كَانُوۡا قَبۡلَ ذٰلِكَ مُحۡسِنِيۡنَ ﴿۱۶﴾

چه تاسو به ورته تلوار کوله.[۱۲] البته متقيان خلق[۱۳] به په هغه ورځ په باغونو او په چينو کښې وي، څه چه ورله خپل رب ورکوی هغه به په خوشحالئ خوشحالئ سره[۱۴] اخلی. هغوئ د هغه ورځ د راتلو نه مخکښې نيکان وو،

[۱۲] د کافرانو دا پوښتنه کول چه "آخر هغه ورځ به کله راځی" د دے نه پخپله دا مطلب را اوزی چه د هغے په راتلو کښے وخت ولے لږی؟ هرکله چه موږ د هغے نه انکار کوو او د هغے د دروغو گڼړلو سزا په موږ لازم شوی ده نو هغه راځی ولے نه؟ دا وجه ده چه کله هغوئ به دوزخ کښے سوزولے کيږی نو په هغه وخت کښے به ورته او وئيلے شی چه دا ده هغه څيز چه تاسو به ورته تلوار کوله. د دے فقرے نه دا مطلب پخپله را اوزی چه دا خو د الله تعالیٰ مهربانی وه چه ستاسو نافرمانئ کولو سره فورًا تاسو را اونه نيولئ او تاسو له ئے د سوچ کولو د پوهے حاصلولو او د ځان تيارولو د پاره يو اوږد مهلت درکړو. ليکن تاسو دا سے بے وقوفان وئ چه د دے مهلت نه د فائدے اغستلو په ځائے مو الټا دا مطالبے کولے چه دا وخت ژر په تاسو زر راشی. اوس اوګورئ چه هغه څه څيز وو چه تاسو به ئے د زر راتللو مطالبه کوله.

[۱۳] په دے ورانديِ روستو عبارت کښے د لفظ مُتَّقی مفاد دا مطلب دے چه د دے نه مراد هغه خلق دی چه هغوئ د خدائے په کتاب او د هغه د رسول په خبرو يقين او کړو او آخرت ئے اومنو، او په هغه لار روان شو کومه چه د آخرت د کاميابئ د پاره هغوئ ته ښودلے شوی وه، او د هغه لارے نه ئے ځان په دے وجه کړو چه د هغے په حقله هغوئ ته دا وئيلے شوی وُو چه دا د خدائے د عذاب لار ده.

[۱۴] اګرچه اصل الفاظ اٰخِذِيۡنَ مَاۤ اٰتٰهُمۡ رَبُّهُمۡ دی، او د دے لفظی ترجمه صرف دا ده چه "اخلی به هغوئ هر هغه څه چه ورله خدائے ورکړی وی" ليکن د موقعے او د محل په مناسبت سره دلته د "اغستلو" مطلب تش "اغستل" نه دی بلکه په خوشحالئ خوشحالئ سره اغستل دی، لکه څنګه چه يو څوک څوک سړی ډک موټے انعامونه چاله ورکوی او هغه ئے په خوشحالئ سره د هغه نه اخلی. هرکله چه چا ته د هغه د خوښے څيز ورکړے شی نو د هغے په اغستلو کښے پخپله په خوشحالئ سره د قبلولو مطلب را پيدا کيږی. په قرآن مجيد کښے په يو ځائے کښے فرمائيلے شوی دی چه اَلَمۡ يَعۡلَمُوۡۤا اَنَّ اللّٰهَ هُوَ يَقۡبَلُ التَّوۡبَةَ عَنۡ عِبَادِهٖ وَيَاۡخُذُ الصَّدَقٰتِ (التوبه -۱۰۴) "آيا خلقو ته معلومه نه ده چه هغه خاص الله دے چه د خپلو بندګانو توبه قبلوی او صدقے اخلی." دلته د صدقو اغستلو نه مراد صرف د هغے اغستل نه دی بلکه په خوښئ سره د هغے قبلول دی.

كَانُوْا قَلِيْلًا مِّنَ الَّيْلِ مَا يَهْجَعُوْنَ ⑰ وَبِالْاَسْحَارِ هُمْ يَسْتَغْفِرُوْنَ ⑱ وَفِيْٓ اَمْوَالِهِمْ حَقٌّ لِّلسَّآئِلِ وَالْمَحْرُوْمِ ⑲

دَ شپې به ډېر کم اُودهٔ کیدل[15] بیا به هم هغوئ دَ شپې په روستو حصو کښې معافیانې غوښتلې[16] او دَ هغوئ په مالونو کښې حق وُو دَ سوالګرو او دَ محرومانو دَ پاره[17]۔

[15] دَ مفسرینو یو ډله دَ دې آیت مطلب دا اخستلے دے چه ډېر کم به داسې کیدله چه ټوله شپه به هغوئ اُودهٔ وُو او دَ شپې څه نه څه حصه، کمه یا زیاته، په اوده شپه کښې یا په منځ کښې یا په آخر کښې به نه را پاسیدل او دَ الله تعالیٰ په عبادت کښې به ئې نه تیروله۔ دا تفسیر دَ لږ شان لفظي اختلافاتو سره دَ حضرت ابن عباسؓ انس بن مالک، محمد الباقر، مطرف بن عبدالله، ابوالعالیه، مجاهد، قتاده او دَ ربیع بن انس وغیرو نه نقل کړے شوے دے۔ دویمې ډلې دَ دې مطلب دا بیان کړے دے چه هغوئ به دَ خپلو شپو زیاته حصه دَ الله تعالیٰ په عبادت کښې تیروله او ډېر کم به اُودهٔ کیدل۔ دا قول دَ حضرت حسن بصري، احنف بن قیس او دَ ابن شهاب زُهري دے او روستنو مفسرینو و مترجمینو هم دے له ترجیح ورکړې ده، ځکه چه دَ آیت دَ الفاظو سره او دَ موقعې او دَ محل په لحاظ سره هم دا تفسیر زیات مناسب په نظر راځي۔ په دے وجه مونږ دَ په ترجمه کښې هم دا معنیٰ کړې ده۔

[16] یعني هغوئ هغه خلق نه وُو چه خپلې شپې به ګناهونو او بے حیائي کښې تیره کړي او بیا ئې هم دَ بښنا خبره په خیال کښې نه راځي. بلکه دَ دے برعکس دَ هغوئ دا حال وُو چه دَ شپې ډېره حصه به ئې دَ الله تعالیٰ په عبادت کښې تیروله او بیا به ئې هم دَ شپې په روستنو حصو کښې دَ خپل رب نه معافیانې غوښتلې چه ستا دَ بندګئ کوم حق په مونږ وُو هغه مونږ پوره نه دے ادا کړے۔ په هُمْ يَسْتَغْفِرُوْنَ کښې یوه اشاره دَ خبرې ته هم ده چه دے عمل دَ هغوئ سره ښائسته کوو. هم هغوئ دَ دارنګې عبادت کولو لائق وُو چه دَ خپل رب په بندګئ کښې ځانله هم ستړې کوي او بیا په هغې باندې دَ خوشحالیدلو او په خپله نیکئ باندې دَ فخر کولو په ځائې ډیر په عاجزئ سره دَ خپلو ګناهونو معافي هم غواړي. دا دَ هغه بے شرمو ګنهګارو رویه نه وُو چه ګناه به ئې هم کوله او بیا به ئې دَ پاسه غرور هم کولو۔

[17] یعني، یو طرفته هغوئ دَ خپل رب حق په دے طریقه پیژندو او ادا کولو به ئې، او دویم طرفته دَ بندګانو سره دَ هغوئ معامله دا وه. څه چه ورله الله تعالیٰ ورکړي وُو، که لږ وُو او که ډیر وُو. په هغې کښې به هغوئ صرف دَ خپل ځان او دَ خپل یال بچ حق نه ګڼړلو، بلکه دَ هغوئ سره به دا فکر وُو چه زمونږ په دے مال کښې دَ الله تعالیٰ دَ هر هغه بنده حق دے څوک چه زمونږ دَ مدد محتاج وي. هغوئ به دَ بندګانو امداد دَ خیرات په طور نه کولو چه ګني دَ هغوئ نه به دَ شکریې طلبګار وُو او هغوئ به ئې دَ خپل احسان لاندې راوستل، بلکه هغوئ به دا دَ هغوئ حق ګڼړلو او دَ هغوئ سره امداد کول به ئې خپل فرض ګڼړلو هغوئ به صرف دَ هغه خلقو امداد نه کولو چه په خپله به هغوئ له دَ سوالګرو په حیثیت دَ امداد غوښتلو

وَفِي الْأَرْضِ آيَاتٌ لِّلْمُوقِنِينَ ﴿٢٠﴾ وَفِي أَنفُسِكُمْ أَفَلَا

په زمکه کښې ډېرې نښې دي د یقین کونکو د پاره[۱۸] او ستاسو په خپل وجود کښې دي[۱۹] آیا

د پاره راتلل، بلکه د چا په حقله چې به هغوی ته پته اولګېده چې هغه د روزۍ ګټلو نه محرومه شوې دې نو د هغه امداد له به پخپله تلل. یو یتیم ماشوم چې بې آسرې پاتې شوې وي، یوه کونډه چې څوک سرپرست ئې نه وي، یو معذوره انسان چې خپله روزي ګټلو د پاره لاس پښې نشي وهلې، یو سړې چې روزګار ئې ختم شوې وي یا ئې ګټه د ضروریاتو نه کمه وي، یو سړې چې څه آفت پرې راغلې وي او خپل کمې په خپله نشي پوره کولې، غرض دا چې یو حاجتمند داسې نه وي چې د هغه نه هغوی خبر وي او هغوی ئې امداد کولې شي، او بیا ئې هم د هغوی د امداد کولو نه سترګې پټې کړې وي.

دا درې صفتونه دي چې د دې په وجه الله تعالیٰ هغوی ته متقي او محسن وائي او فرمائي چې د دې صفتونو په وجه هغوی د جنت مستحق شوي دي. یو دا چې په آخرت ئې ایمان راوړو او د هر هغه لاره نه ئې ډډه اوکړه چې هغې ته الله تعالیٰ او د هغه رسول د آخرت د تباهۍ لار روښانه وه. دویم دا چې هغوی د الله د بندګۍ پوره حق ادا کولو کښې د زړه د اخلاصه کوشش اوکړو او په هغې باندې د فخر کولو په ځائې به ئې د الله نه د بخښنې دعا غوښتله. دریم دا چې هغوی د الله د بندګانو خدمت کول خپل فرض او د هغوی حق ګڼړو، د هغوی په خدمت کولو سره به هغوی خپل احسان نه زیاتو.

دلته په دې خبره هم ځان پوهه کول پکار دي چې د مومنانو په مالونو کښې د سوالګرو او د محرومانو د کوم حق ذکر دلته شوې دې د هغې نه مراد زکوٰة نه دې چې په شریعت کښې په هغوی فرض کړې شوې دې، بلکه دا هغه حق دې چې د زکوٰة ورکولو نه روستو ئې یو مالدار مومن په خپل مال کښې ثابت ګڼړي او د خپل زړه په خوښه ئې ادا کوي اګرچه شریعت په هغه لازم کړې نه وي. ابن عباس، مجاهد، او زید بن اسلم وغیره بزرګانو د دې آیت هم دا مطلب بیان کړې دې. په حقیقت کښې د الله تعالیٰ د دې فرمان اصلي مقصد دا دې چې یو متقي او نیکوکاره انسان هیڅکله هم د دې نه دا غلط مطلب نه اخلي چې د الله او د هغه د بندګانو کوم حق زما په مال کښې وو، د هغې نه کمې زه په زکوٰة ادا کولو سره خلاص شوم، اوس ما د دې خبرې څه تیکه نه ده اخستې چې د هر نغړ، او د هر وږي، او د هر مصیبت زپلي انسان امداد به کوم. د دې برعکس چې د الله کوم بندګان داتعې متقي او نیکوکاره انسان وي هغه هر وخت هر هغه نیکۍ ته د زړه د اخلاصه تیار وي کوم چې د هغه په وس کښې وي، او په دنیا کښې چې د نیک کار کولو کومه موقع هغه ته ملاؤ یږي هغه په هیڅ شان سره نه ضایع کوي. هغه هډو په دې انداز سوچ نه کوي چې کومه نیکي په ما فرض کړې شوې وه هغه ما کړې ده، اوس زیاته نیکي ولې اوکړم؟ د نیکۍ ته چې چا پیژندلې وي هغه د نیکۍ کار په ځان بوج نه ګڼړي بلکه د خپلې نفعې سودا ئې ګڼړي او د زیاتې کښې کوشش کوي.

[۱۸] د نښو نه مراد هغه نښې دي چې د آخرت د امکان او ضرورت او د هغې د خامخا کیدو شهادت پیش کوي. د زمکې خپل وجود او خپل شکل، زمکه د نمر نه په یوه خاص فاصله او په یو خاص طرف باندې لرې ساتل، په هغې باندې د ګرمۍ

او د دې نظام انتظام په هغې باندې د مختلفو موسمونو او ربدلو د راتګ، د هغې د پاسه د هوا او د اوبو موجود والے، په هغې کښې د دومره قسما قسم خزانې، د هغې په سر باندې د زرغینه مخ خورول، په هغې کښې قسما قسم بې حسابه بوټو را زرغونول، په هغې کښې د اوچې او د اوبو او د هوا د ځناورو بې شماره نسلونه جاری کول، په هغې کښې د هر قسم مخلوق د ژوند د پاره د مناسبو حالاتو او د مناسب خوراک انتظام کول، په هغې کښې د انسان د پیدا کیدو نه مخکښې هغه ټولې ذریعې او هغه ټول وسائل پیدا کول چه هغه د تاریخ په هره مرحله کښې یوازې د انسان د ضرورتونو سره نه بلکه د هغه د ودې د ستورو د ترقۍ سره هم برابر تګ کوی، دا او داسې نورې د بې حده بې شماره نښې دی چه هغې ته عقلمند سړے د زړه په سترګو وکوری نو د هغه زړه ځان طرفته را کاږی. چاچه د یقین د پاره د خپل زړه دروازې بندې کړی دی نو د هغه خبره خو بیل ده. هغه به په هغې کښې نور هرڅه وینی، خو بس کومه نښه چه حقیقت ته اشاره کوی هغه به نه وینی. لیکن د چا زړه چه د ضد نه پاک دے او کوم اقت د پاره فرابنه دے هغه چه دے ځینو نوته او کوری نو دا خیال به هرګز په زړه کښې نه راولی چه دا ټول هرڅه د یو اتکلی چاودنې په وجه په وجود کښې راغلی دی چه هغې په اربونو کاله مخکښې په کائناتو کښې ناساپه شوې وه، بلکه د هغه په دې خبره یقین راځی چه دا د حکمت نه ډکه د کمال درجې کاریګری ده او دا یے پیدا کونکے ضرور یو قادر او یو هغه خدائے دے، او هغه خدائے چه دا زمکه ئے جوړه کړې ده هغه نه د دې خبرې نه عاجزه کیدے شی چه انسان د مرګ نه روستو دوباره پیدا کړی، او نه دا سے ناپوهه کیدے شی چه په خپله زمکه کښې د عقل او د سوچ والا یو مخلوق له اختیارات ورکړی او بیائے د یو بې مهاره ځناور په شان پریږدی. اختیارات ورکول په خپله د محاسبے تقاضا کوی ځکه چه که چرے د اختیاراتو سره محاسبه نه وی نو دا به د حکمت او د انصاف نه خلاف وی. او په کائناتو کښې د یو مطلق قدرت موندل په خپله د دې خبرې ثبوت دے چه په دنیا کښې د انسان د کار د ختمیدو نه روستو د هغه خالق کلاو غواړی چه د محاسبے د پاره د دُنیا ټول انسانان د زمکے د هر کوټ نه، چه په هر ځائے کښې هغوی مره پراته وی، را وښکلے شی.

**۱۹** یعنی بهر کتلو ته هم حاجت نشته، خپل ځان ته د ننه او ګوره نو تا ته به دا سے بې شماره نښې ملا ؤ شی چه هغه به په دې حقیقت ګواهی کوی. په نظر نه راتلونکے یو ورو کے چینجے د یو ښځه لید و تکی اتئی سره په څه طریقه یو ځائے کړے شو او د مور د بدن نه په یو کوټ کښې ستا د پیدا کیدو بنیاد کیښود شو. په دغه تور تیپ کوټ کښې ستا پالنه څنګه او شوه او په څه طریقه ته ژوندو لوئ کړے شوے. تاله څنګه یو بې مثاله بدن او د ناآشنا قوتونو نه ډک نفس ورکړے شو. د مور په ځیته کښې ستا د جوړیدو پوره کیدو نه روستو ته په څه طریقه د دغه تنګ تورځائے نه را اووېستلے شوے او ولې فرابنه دُنیا ته په د شان سړ را وستلے شوے چه په تا کښې په خپله چلیدو کے یو دا سے زبردست شین لګیدلے دے چه هغه د پیدا کیدو د ورځ نه د ځوانۍ او د بوډا والی پورې د سا اخستلو، د خوراک هضمولو، د وینې جوړولو، او په رګ رګ کښې د وینې د ګرځولو، د ګندګئ د بهر کولو، او د بدن د حل شوو حصو

په ځانګې ډ نورو حصو تیار ولو، ډ دننه آفتونو سرځ یا ډ بهرنو آفتونو سره ډ مقابلې کولو او ډ نقصانونو پوره کولو، آن تر دې پورې چې ډ سترګې والي ندروستو تاله ډ آنامردر کولو ډ پاره ډ اوده کولو کار هم پخپله کوي، او ډ ژوند ډ دې بنیادي ضرورتونو په پوره کولو کښې ستا ډ غور فکر کولو او ستا ډ کوششونو هیڅ حصه نه خرچ کیږي. دا ستې عجیب دماغ ستا ډ سر په کنډول کښې کیښودلې شوی دی چې ډ هغې په کږکیچنو قطونو کښې ډ عقل، ډ فکر، ډ خیالاتو، ډ شعور، ډ تمیز، ډ ارادې، ډ حافظې، ډ خواهشاتو، ډ احساساتو او ډ جذباتو، ډ مینې او ډ خوښې او ډ نورو ډغې قوتونو یو قیمتي دولت پروت دی. ډ علم ډیرې ذریعې تاله درکړې شوي دي چې په سترګو او په پوزه او په غوږونو او ډ بدن په ټولو تاله هرقسم خبر دررسوي. ډ ژبې او ډ وینا طاقت تاله درکړې شوې دې چې ډ هغې په ذریعه ته ډ خپلو خیالاتو اظهار کولې شې. بیا ستا ډ بدن په دې ټوله بادشاهۍ باندې ستا ځان (آنا) ډیو سردار په حیثیت سره کینولې شو دې چې ډ دې ټولو قوتونو نه کار واخلي او دا فیصله اوکړي چې ته به په کوم لاره کښې خپل وختونه او محنتونه او کوششونه لګوې، کوم څیز به رد کوې او کوم څیز به قبلوې، کوم څیز به خپل مقصود جوړوې او کوم څیز به نه جوړوې.

کله چې دا سې هستي درنه جوړه شوه او دُنیا ته را وستلې شوې نو بیا شان او ګوره چې دلته ډ راتلو سره څومره سامانونه ستا ډ پالنې، ستا ډ تهیدو، او ستا ډ ترقۍ، او ستا ډ ذات ډ پوره کیدو ډ پاره تیار وو چې ډ هغې په وجه ته ډ ژوند یو خاص مرحلې ته اورسیدې او ډ دې خپلو اختیاراتو استعمالولو قابل شوې. ډ دې اختیاراتو ډ استعمالولو ډ پاره تاله په زمکه کښې ډیرې ذریعې درکړې شوې. تا ته ډیرې موقعې جوړې کړې شوې. په ډیرو څیزونو باندې تاله ډ واک اختیار طاقت درکړې شو. ډ ډیرو انسانانو سره تا قسما قسم معاملات اوکړل. تا ته ډ کفر او ډ ایمان ډ منلو او ډ نه منلو، ډ ظلم او ډ انصاف، ډ نیکۍ او ډ بدۍ، او ډ حق او ډ باطل ټولې لارې پرانستې شوې وې، او هرې یوې لارې ته بلونکي او پر تلونکي اسباب موجود وو. په تاسو کښې چا کومه لار خوښه کړه هغه ئې په خپله ذمه واري سره خوښه کړه، ځکه چې ډ فیصلې او ډ خوښې طاقت په هغه کښې ډ امانت په طور کیښودې شوې وو. هر یو ته چې ډ خپلې خوښې مطابق ډ خپلو نیتونو او ډ خپلو ارادو پوره کولو کوم موقعې په لاس ورغلې ډ هغې نه ئې فائده اوچته کړه. یو څوک نیک انسان جوړ شوا وڅوک بد، څوک ډ ایمان په لاره لاړو او څوک ډ کفر او ډ شرک یا ډ دهریت په لاره لاړو، چا خپل ځان ډ ناجائزه خواهشاتو نه منع کړو او چا ډ نفس په بندګۍ کښې هرڅه اوکړل، چا ظلم اوکړو او چا ظلم برداشت کړو، چا حقونه ادا کړل او چا حقونه اوو هل، چا ډ مرګه پورې په دنیا کښې نیکي اوکړه او چا ډ ژوند ډ آخري سلګو پورې ګناهونه کول، چا ډ حق ډ اوچتولو ډ پاره ځان قربان کړو، او چا ډ باطل ډ اوچتولو ډ پاره په حق پرستو خلقو حملې کولې.

آیا اوس یو سړې چې ډ هغه ډ زړه سترګې بالکل ړندې شوې نه وي، دا ویلې شي چې دا قسم یوه هستي په زمکه باندې اتفاقًا پیدا شوې ده؟ په دې کښې پټ کښې څه حکمت او څه منصوبه نشته؟ په زمکه چې ډ هغه ډ لاسه دا کومې هنګامې راپورته کیږي دا ټولې بې مقصده دي او هیڅ نتیجه ئې نشته؟ ډ نیکۍ څه فائده او ډ بدۍ څه نقصان نشته؟ ډ ظلم څه سزا او ډ ظالم نه څه تپوس نشته؟ دا قسم خبرې خو یو بې عقله

تُبْصِرُوْنَ ﴿۲۱﴾ وَفِي السَّمَآءِ رِزْقُكُمْ وَمَا تُوْعَدُوْنَ ﴿۲۲﴾ فَوَرَبِّ السَّمَآءِ وَالْاَرْضِ اِنَّهٗ لَحَقٌّ مِّثْلَ مَآ اَنَّكُمْ تَنْطِقُوْنَ ﴿۲۳﴾ هَلْ اَتٰىكَ حَدِيْثُ ضَيْفِ اِبْرٰهِيْمَ الْمُكْرَمِيْنَ ﴿۲۴﴾ اِذْ دَخَلُوْا

ع ۱ ۴۶۳ ۱۸

وقف لازم

تاسو ته په نظر نه راځي؟ خاص په آسمان کښې ستاسو رزق هم او هغه څیز هم چه د هغې ستاسو سره وعده[۲۰] کیږي. نو د آسمان او د زمکې په مالک مې قسم ده چه دا خبره حقه ده، بالکل داسې یقیني ده لکه څنګه چه تاسو خبري کوئ. ع

اے نبی د ابراهیم د عزتمند میلمنو قیصه هم تا ته در رسیدلې ده[۲۲]؟ کله چه هغوئ د هغه کره

---

انسان کولے شي؟ یا ئې هغه سره کولے شي چه هغه د ځکښې نه دا قسم نور لے وي چه د انسان په پیدا کیدو کښې د یو حکیم حکمت په هیڅ شان سره نه منم. لیکن یو غیر جانبدار عقلمند سړے بغیر د دے منلو نه شي پاتے کیدے چه انسان د کومو قوتونو او قابلیتونو سره په دے دنیا کښې پیدا کړے شوے دے او کوم حیثیت هغه له ورکړے شوے دے هغه یقینًا چه یوه د یره حکمتي منصوبه ده، او د کوم خدائے چه دا منصوبه ده د هغه حکمت خامخا دا تقاضا کوي چه د انسان نه د هغه د عملونو تپوس او شي، او د خدائے د قدرت په باره کښې دا ګمان کول هرګز صحیح کیدے نه شي چه کوم انسان هغه د یو دومره وړوکي څیز نه راشروع کړو چه هغه اول په نظر نه شو راتلے او بیا مرتبے ته ئې را اورسوو نو هغه به ئې بیا دوباره راژوندے نه کړے شي.

[۲۰] دلته د آسمان نه مراد پاسنے جهان دے. د رزق نه مُراد هغه ټول هر څه دی کوم چه په دُنیا کښې انسانانو ته د ژوند تیرولو د پاره او د کارکولو د پاره ورکړے کیږي. او د مَا تُوْعَدُوْنَ نه مُراد قیامت، حشر نشر، حساب کتاب، جزا او سزا، او جنت او دوزخ دی چه د دے د راتلو وعده په ټولو آسماني کتابونو کښې او په دے قرآن کښې کیږي. د الله د بیان مطلب دا دے چه په پاسني جهان کښې دا فیصله کیږي چه په دُنیا کښې د چا ته څه ورکړے شي، او هم د هغه ځائے نه به دا فیصله هم کیږي چه د حساب کتاب او د عملونو د بدلے د پاره د تاسو کله را اوغوښتلے شي.

[۲۱] اوس د دے ځائے نه د دویمے رکوع د ختمیدو پورے د پیغمبرانو او د مخینو تیرو شوو قومونو انجام ته ډیر لیږے مختصرے اشارے شوې دی چه د هغې نه دوه خبرې په ذهن کښې کینول مقصد دی.

یوه دا چه په انساني تاریخ کښې د خدائے د بدلے قانون برابر کار کوي چه په هغې کښې د نیکانو خلقو د پاره انعام او د ظالمانو د پاره د سزا مثالونه مسلسل موندلے کیږي. دا د دے خبرې ښکاره علامه ده چه د دُنیا په دے ژوند کښې هم د انسان سره د هغه د خالق معامله یوازے د طبیعي قانون ( (Physical Law) ) په بنیاد نه ده بلکه اخلاقي قانون ( (Moral Law) ) د دے سره کار کوي. او هر کله چه د کائناتو د بادشاهۍ مزاج دا دے چه کوم مخلوق له په طبیعي بدن کښې دننه د اخلاقي عملونو موقع ورکړے شوې وي د هغوئ

عَلَيْهِ فَقَالُوْا سَلٰمًا ۭ قَالَ سَلٰمٌ ۚ قَوْمٌ مُّنْكَرُوْنَ ﴿٢٥﴾ فَرَاغَ اِلٰٓى اَهْلِهٖ فَجَاۗءَ بِعِجْلٍ سَمِيْنٍ ﴿٢٦﴾ فَقَرَّبَهٗٓ اِلَيْهِمْ قَالَ اَلَا تَاْكُلُوْنَ ﴿٢٧﴾ فَاَوْجَسَ مِنْهُمْ خِيْفَةً ۭ قَالُوْا لَا تَخَفْ ۭ وَبَشَّرُوْهُ بِغُلٰمٍ عَلِيْمٍ ﴿٢٨﴾

راغلل نو هغه وئیل پر تا سلام دے۔ هغه ورته اُووئیل په تاسو هم سلام دے ـــــ څه نا آشنا شان خلق دي[۲۳]۔ بیا هغه غلے شان د خپل کور خلقو له لاړو[۲۴] او یو غوړ سخے ئے راوړو او د میلمنو مخے ته ئے کیښودو۔ هغه اُووئیل تاسو خورئ نه؟ بیا هغه په خپل زړهٔ کښے د هغوئ نه اُویریدو[۲۵]۔ هغوئ اُووئیل یریږه مه، او هغه ته ئے د یو عالم ځوئ د پیدا کیدو زیرے واورولو[۲۶]۔

سره د ځنا وړو او د بوټو پشان یو ازے په طبیعي قانون باندے معامله اُونه کړے شي بلکه د هغه په اخلاقي عملونو د اخلاقي قانون هم جاری کړے شي، نو دا خبره چنیله دے حقیقت ته صفا اشاره کوي چه په دے بادشاهئ کښے یو وخت داسے ضرور راتلل پکار دي چه په دے طبیعي دنیا کښے کله د انسان کارختم شي نو د هغے نه روستو خالص د اخلاقي قانون مطابق د هغه د اخلاقي عملونو انجام پوره راښکاره کړے شي، ځکه چه په دے طبیعي دنیا کښے هغه مکمل طور نشي راښکاره کیدے۔

دویمه خبره دا ده چه کوم قومونو د پیغمبرانو خبره نه ده منلے او خپل ټول ژوند ئے د توحید، رسالت او د آخرت په انکار کښے تیر کړے دے هغوئ آخر تباه شوي دي۔ د تاریخ دا مسلسله تجربه په دے خبره ګواهي کوي چه هغه کوم اخلاقي قانون د پیغمبرانو په ذریعه رالیږلے دے او چه د هغے مطابق به د انسانانو د هغوئ د عملونو تپوس په آخرت کښے کیږي، هغه سراسر حقیقت دے، ځکه چه کوم قوم د دے قانون نه بے پرواهي کړي ده او خپل ځان ئے غیر ذمه وار او بے تپوسه ګڼړلے دے او د هغے مطابق ئے په دنیا کښے ژوند تیر کړے دے نو هغوئ آخر د تباهئ سره مخامخ شوي دي۔

[۲۲] دا قیصه په قرآن مجید کښے په دے ځایونو کښے مخکښے تیره شوي ده۔ اوګوره تفهیم القرآن دویم جلد ص ۳۵۳ تا ۳۵۵، ۳۰۹ تا ۵۱۱ ـ دریم جلد، ص ۶۹۶ ـ

[۲۳] د وړاندې روستو عبارت سره د دے فقرے دوه معنے کیدے شي۔ یو دا چه حضرت ابراهیم علیه السلام چنیله هغه میلمنو ته اُووئیل چه تاسو سره مخکښے چرته ملاقات نه دے شوے۔ کیدے شي چه دے هلاقے ته نوي راغلي يئ. دویم دا چه د هغوئ د سلام د جواب ورکولو نه روستو حضرت ابراهیم په خپل زړهٔ کښے اووئیل، یا ئے چه کله په کور کښے د میلمستوب انتظام کولو نو خپلو نوکرانو ته ئے اُووئیل چه دا څه نا آشنا شان خلق دے، مخکښے چرته په دے علاقه کښے دا قسم خلق نه دي لیدلي شوي۔

[۲۴] یعني خپلو میلمنو ته ئے دا اونه وئیل چه زهٔ ستاسو د پاره د خوراک انتظام کوم بلکه هغوئ ئے کینول او د میلمستیا د انتظام د پاره غلے شان لاړو، چه میلمانه دا اُونه وائي چه

فَاَقْبَلَتِ امْرَاَتُهٗ فِیْ صَرَّةٍ فَصَكَّتْ وَجْهَهَا وَ قَالَتْ عَجُوْزٌ عَقِیْمٌ ﴿۲۹﴾ قَالُوْا كَذٰلِكِ ۙ قَالَ رَبُّكِ ؕ اِنَّهٗ هُوَ الْحَكِیْمُ الْعَلِیْمُ ﴿۳۰﴾

قَالَ فَمَا خَطْبُكُمْ اَیُّهَا الْمُرْسَلُوْنَ ﴿۳۱﴾ قَالُوْا اِنَّاۤ اُرْسِلْنَاۤ



دَ دې په اَوريدو سره دَ هغه ښځې يوه چغه کړه او راوړاندې شوه او خپل مخ لئے يو ټس ورکړو او وې ويل "بوډئ، شنړه !"[۲۸] هغوئ او وئيل "هم دا فرمائيلی دی ستا رب، هغه دَ حکمت خاوند دے او په هرڅه پوهيږی."[۲۹]

ابراهيمؑ ورته اُووئيل، اے دَ خدائے آستاذو! مخے ته موخه لوئ کار دے[۳۰] هغوئ اووئيل، "مونږه يو

تکليف مه کوه هيڅ حاجت نشته.

[۲۵] په سورة هود کښې دَ عِجْلٍ حَنِيْذٍ (وريت کړے سخے) الفاظ دی. دلته وئيلے شوی دی چه هغه به څورب سخے کيلے وُو، او هغه وريت کړے وُو.

[۲۶] يعنی هرکله چه ئے لاسُونه خوراک ته رااُونه غزول نو دَ حضرت ابراهيمؑ په زړهٔ کښې يره راپيدا شوه. دَ دے يَرے وجه دا هم کيدے شي چه نا آشنا مسافران دَچا کور ته لاړ شي او خوراک نهٔ کوی نو په قبائيلو کښې دا دَ دے خبری علامه وی چه هغوئ دَ خراب نيت سره راغلی دی. ليکن غالبه خبره دا ده چه دَ هغوئ دَ خوراک نهٔ کولو نه حضرت ابراهيمؑ پوهه شو چه دا فرښتے دی او په انسانی شکل کښې راغلی دی، او فرښتے عام طور دَ څه لوئ کار دَ پاره په انسانی شکل کښې راځی، نو په دے وجه هغه اُويريدو چه څه خطرناک معامله خو نهٔ ده چه دَ هغې دَ پاره دا کسان په دے شان سره راغلی دی.

[۲۷] په سورة هود کښې وئيلے شوی دی چه دا دَ حضرت اسحٰق عليه السلام دَ پيدا کيدو زيرے وُو او په هغې کښې دا زيرے هم ورکړے شوے وُو چه دَ حضرت اسحٰقؑ نه به دَ هغهٔ نوسے حضرت يعقوبؑ هم کيږی.

[۲۸] يعنی يو خو دا چه زهٔ بوډئ يم او بله دا چه شنړه هم يم. اُوس به زما څوئے کيږی؟ دَ بائيبل بيان دے چه په هغه وخت کښې دَ حضرت ابراهيمؑ عُمر سل کاله وُو او دَ حضرتِ سارے عُمر لس اتيا کاله وُو (پيدائش ۱۸ : ۱۲).

[۲۹] دَ دے تيمبرے دَ بيانولو دا مقصد دے چه کوم بندهٔ دَ خپل رب دَ بندګئ حق په دے دُنيا کښې ټيک ټيک ادا کړے وُو، دَ هغه سره نو چه به په آخرت کښې څه معامله وی هغه به وی؛ په دے دنيا کښې هغه لره انعام ورکړے شو چه دَ عامے قاعدے ترمخه په کوم عُمر کښې دَ هغه اولاد نهٔ شو پيدا کيدے، او دَ هغه بوډئ ښځه چه ټول عُمر شنړه وه او دَ بچی راوړو نه بالکل نا اميده شوی وه په هغه وخت کښې الله تعالٰی هغه له نيکوانه اولاد ورکړو بلکه دا سے بے مثاله اولاد ئے ورکړو چه هغے اولاد دَ نن ورځے پورے چا ته نهٔ دے نصيب شوے. په دُنيا کښې بل يو انسان دا سے نشته چه دَ هغه په نسل کښې پرلپسے څلور پيغمبران پيدا شوی وی. هغه صرف حضرت ابراهيمؑ وُو چه دَ هغهٔ کورنهٔ دَ نبوت سلسله دَ دريو پښته

إِلَىٰ قَوْمٍ مُّجْرِمِينَ ﴿٣٢﴾ لِنُرْسِلَ عَلَيْهِمْ حِجَارَةً مِّن طِينٍ ﴿٣٣﴾ مُّسَوَّمَةً عِندَ رَبِّكَ لِلْمُسْرِفِينَ ﴿٣٤﴾ فَأَخْرَجْنَا مَن كَانَ فِيهَا مِنَ الْمُؤْمِنِينَ ﴿٣٥﴾ فَمَا وَجَدْنَا فِيهَا غَيْرَ بَيْتٍ مِّنَ الْمُسْلِمِينَ ﴿٣٦﴾ وَتَرَكْنَا فِيهَا آيَةً لِّلَّذِينَ يَخَافُونَ الْعَذَابَ

مجرم قوم ته رالیږلی شوی یو[۳۱] چې په هغوی باندې د پخې شوې خټې کانړي اُورَوُو چې په هغې باندې د حد نه د اوړیدونکو خلقو دپاره ستا د رب سره نښې لګیدلی دی[۳۲]۔ بیا په هغه کلي کښې چه کوم مومنان وُو هغوی ټول ترمونږه را اُوویستل او هلته مونږه د یو کور نه سِوا د مسلمانانو بل کور اُونه موندلو[۳۳]۔ د دې نه روستو مونږه په هغه ځائے کښې بس یوه نښه د هغه خلقو د پاره پریښوده ځوک چه د دردناک عذابـ

پورے او چلیده او حضرت اسمٰعیل، حضرت اسحٰق، حضرت یعقوب او حضرت یوسف علیهم السلام غونډې قدرمن پیغمبران د هغه په کورنئ کښې پیدا شول۔

۳۰؎ فرښتے چه کله په انسانی شکل کښې راځی نو د یو لوئی کار د پاره راځی، او په دے وجه حضرت ابراهیم علیه السلام د هغوی نه په لفظ خطب سره تپوس اوکړو۔ خطب په عربئ ژبه کښې د معمولی کار د پاره نه ویلے کیږی بلکه د یو لوئی کار د پاره ویلے کیږی۔

۳۱؎ اشاره ده د لوطؑ قوم ته۔ د هغوی جرمونه دومره زیات شوی وُو چه تش د "مجرم قوم" لفظ د دے د پاره کافی وُو چه د دے نه کوم قوم مُراد دے۔ د دے نه مخکښے په قرآن مجید کښې په لاندینو ځایونو کښې د هغوی ذکر شوے دے: تفهیم القرآن، دویم جلد، ص ۵۱ تا ۵۳۔ ۳۵۵ تا ۳۵۹۔ دریم جلد ص ۵۲۱ تا ۵۲۰، ۵۸۲۔ ۵۸۰۔ ۵۹۴ تا ۵۹۰۔ څلورم جلد الصّافات۔ ص ۳۰۶۔

۳۲؎ یعنی په یو یو کانړي باندې ستا د رب د طرفه نښه لګولے شوې ده چه دا به د کوم مجرم په سر راغورزولے کیږی۔ په سورة هود او په سورة الحجر کښې د دے عذاب تفصیل دا بیان کړے شوے دے چه د هغوی کلی تباه کړے شو او د بره نه پرے د پخې شوې خټې کانړي را اُووَرولے شو۔ د دے نه دا تصور کیدے شی چه ټوله علاقه د سختې زلزلے سره پاسترکړے شوه، او کوم خلق چه د زلزلے نه بچ شوی و تښتیدے کول نو هغوی د آتش فشانی کانړو په باران سره ختم شو۔

۳۳؎ په منځ کښې دا قیصه پریښودے شوې ده چه د حضرت ابراهیم علیه السلام د خوانه دا فرښتے څنګه د حضرت لوطؑ خواته اورسیدے او هلته د هغوی او د لوطؑ د قوم په منځ کښې څه اُوشو۔ دا تفصیلات په سورة هود، الحجر او العنکبوت کښې تیر شوی دی۔ دلته صرف د هغه آخری وخت ذکر کیږی کله چه پیدے قوم باندې عذاب نازلیدونکے وُو۔

۳۴؎ یعنی په پوره قوم کښې، او د هغوی په پوره علاقه کښې صرف یو کور وو چه په هغے کښې د ایمان او د

الْاَلِیْمَ ﴿۳۷﴾ وَفِیْ مُوْسٰۤی اِذْ اَرْسَلْنٰهُ اِلٰی فِرْعَوْنَ بِسُلْطٰنٍ

یریږی۔ [۳۵]

او (ستاسو دپاره نښه ده) د موسیٰؑ په قیصه کښې۔ کله چه مونږه هغه د واضحې سند سره فرعون

اسلام رانه وړو، او هغه اګی یو ازې د حضرت لوط علیه السلام کور وو۔ باقی ټول قوم په ګناهونو کښې ډوب شوې وو، او د هغوئ ټول ملک د ګندګئ نه ډک شوې وو۔ په دې وجه الله تعالیٰ د هغې یو کور خلق د دې ته کړل او د هغې نه روستو ئې په هغه ملک باندې هغه تباهي راوستلې چه د هغې نه د هغه بدکاره توا یوتن هم بچ پاتې نهٔ شو۔

په دې آیت کښې درې اهم مضمونونه بیان شوی دی۔

یو داچه د الله د بدلې قانون تر هغه وخته پورې د یو قوم د مکمل تباهئ فیصله نهٔ کوی ترڅو چه په هغه قوم کښې څه نه څه نیکی موجود وی۔ د ډیرو خرابو خلقو په مقابل کښې که لږ خلق هم داسې وی چه هغوئ د بدئ نه منع کول کوی او نیکئ ته رابلل کوی، نو الله تعالیٰ هغوئ له د کار کولو موقع ورکوی او د هغه قوم مهلت زیاتوی چه لا د خیر نه بالکل خالی شوی نهٔ وی۔ لیکن هر کله چه حالت داسې شی چه په قوم کښې دومره قدر له خیر هم پاتې نهٔ شی لکه چه په اوړه کښې مالګه وی نو بیا د الله قانون داد چه کوم دوه درې انسانان د هغه قوم په کلو کښې د بدئ خلاف په جنګیدو جنګیدو عاجزه شوی وی هغه الله تعالیٰ په خپل قدرت سره په څه طریقه بچ کوی او د باقی پاتې خلقو سره هغه معامله کوی کوم معامله چه هر هوښیار مالک د خپلې سخا شوی میوې سره کوی۔

دویم داچه "مسلمان" صرف د هغه اُمت نوم نهٔ دې کوم چه د محمد صلی الله علیه وسلّم پیروکاران دی بلکه د نبیؑ نه مخکښې ټول پیغمبران او د هغوئ پیروکاران هم مسلمانان وو۔ د هغوئ دینونه جګ اجُدا نهٔ وُو چه څوک د ابراهیم په دین وُو او څوک د موسیٰ او څوک د عیسیٰ۔ بلکه هغوئ ټول مسلمانان وُو او د هغوئ دین هم دا اسلام وُو۔ په قرآن مجید کښې دا حقیقت ځائې په ځائې دومره په وضاحت سره بیان کړې شوې دې چه په دې کښې د شک شبهې کولو هیڅ ګنجائش نشته۔ د مثال په طور لاندې آیتونه اوګورئ: البقره ۱۲۸-۱۳۱-۱۳۲-۱۳۳- آل عمران ۶۷- مائده ۴۴، ۱۱۱- یونس ۷۲، ۸۴- یوسف ۱۰۱- الاعراف ۱۲۶- النمل ۳۱-۴۲-۴۴-

دریم داچه په دې آیت کښې د "مومن" او د "مسلمان" الفاظ بالکل په یو معنیٰ کښې استعمال کړې شوی دی۔ دا آیت که چرې د سورة حجرات د آیت ۱۴ سره یوځائې اولوستلې شی نو د هغه خلقو د خیال غلطی بالکل صفا ښکاره کیږی چه وائی چه "مومن" او "مسلم" د قرآن مجید دوه داسې مستقل تکی دی چه په هر ځائې کښې د جُدا جُدا، مستقل معنو دپاره استعمال شوی دی او "مسلم" خامخا هغه سړی ته وائی چه هغه د ایمان نه بغیر تش په ظاهره په اسلام کښې داخل شوې وی۔ (د زیاتې تشریح دپاره اوګورئ تفهیم القرآن، پنځم جلد، تفسیر د سورة حجرات حاشیه ۳۱)۔

مُّبِيْنٍ ﴿۳۸﴾ فَتَوَلّٰى بِرُكْنِهٖ وَ قَالَ سٰحِرٌ اَوْ مَجْنُوْنٌ ﴿۳۹﴾ فَاَخَذْنٰهُ وَ جُنُوْدَهٗ فَنَبَذْنٰهُمْ فِى الْيَمِّ وَ هُوَ مُلِيْمٌ ﴿۴۰﴾

نو اُولېږلو[۳۶] هغه د خپل زور په غرور کښې مخ واړولو او وې وئيل چه دا جادوګر دے يا ليونے دے.[۳۷] آخر مونږ هغه او د هغه لښکرے راونيولے او ټول مو په سمندر کښې ورګوزار کړل او هرچا په هغه ملامتيا وئيله.[۳۸]

**۳۵** د دے نه مُراد بحيرهٔ مُردار (Dead Sea) دے چه د هغے سويلي علاقه نن هم د يو لوئے تباهئ پته ورکوي. د آثارِ قديمه د پوهانو اندازه دا ده چه د لُوطؑ د قوم لوئ لوئ ښارونه غالبًا چه د سختے زلزلے په وجه په زمکه کښې دننه ننوتلي وُو او د هغے د پاسه د بحيرهٔ مُردار اُوبه خورے شوي وے ځکه چه د دے درياب هغه حصه کومه چه د "اللّسان" نومے ورُکي شان جزيره نما په جنوب کښې پرته ده صفا معلوميږي چه روستو جوړه شوي ده او د پخواني بحيرهٔ مُردار کومے نښے چه د دے جزيره نما د شمال پورے په نظر راځي هغه د هغه ښونه ډيرے مختلفے دي کومے چه په جنوب کښې موندے شي. د دے نه دا قياس راپيدا کيږي چه د جنوب حصه اول د دے درياب د سطحے نه اُوچته وه، روستو بيا په څه وخت کښې لاندے ننوتله. د دے د ننوتلو زمانه تقريبًا د مسيحؑ نه دوه زره کاله مخکښې معلوميږي، او تاريخي طور هم دا زمانه د حضرت ابراهيمؑ او د حضرت لُوطؑ زمانه ده. سنه ۱۹۶۵ء کښې د آثارِ قديمه لټونکي امريکنۍ ډلے ته په اللّسان باندے يو غټ قبرستان ملاؤ شوے دے چه په هغے کښې د شلو زرونه زيات قبرونه دي، د دے نه اندازه لګي چه خامخا به څه يو غټ ښار ضرور آباد وو. ليکن د يو داسے ښار نښے څرګندے هيچرے نشته چه د هغے سره جوخت دومره لوئ قبرستان جوړيدے شي. د دے نه هم دا شُبه قوي کيږي چه دا قبرستان د کوم ښار وُو هغه په درياب کښې ډوب شوے دے. د درياب په جنوب کښې چه کومه علاقه ده په هغے کښې اوس هم هرطرفه د تباهئ نښے موجود دي او په زمکه کښې د ګوګړو، د چيړ سليم، د تارکولو او د قدرتي ګيس دومره ډيرے ذخيرے دي چه سړے ورته اوګوري نو وائي چه څه وخت به د تندرونو راغورزيدو سره يا د زلزلے په وجه د پيټرول په راوتلو سره دلته يو قيامت جوړ شوے وي (د زياتے تفصيل د پاره اوګوره تفهيم القرآن دريم جلد، الشعراء، حاشيه ۱۱۴).

**۳۶** يعني داسے څرګند ومعجزو او د داسے څرګند و نښو سره مو اُولېږلو چه د هرچا دا يقين راتلو چه هغه د زمکے او د آسمان د خالق د طرفه رالېږلے شوے دے.

**۳۷** يعني کله به ئے هغه ته جادوګر وئيلو او کله به ئے وئيل چه دا سړے ليونے دے.

**۳۸** په دے وړه شان فقره کښې د تاريخ يو اُوږد داستان راپوځائے کړے شوے دے. د ځان پوهولو د پاره لږ شان د خيال سترګو ته دا نقشه راوله چه فرعون په هغه وخت کښے د دُنيا د ټولو نه د لوئ مرکز يو لوئ بادشاه وُو چه د هغه د دبدبے نه به د خوا اُوشا ټول قومونه ريږيدل. ښکاره خبره ده چه هغه کله د خپلو لښکرو سره يو ورځ ناساپه ډوب شوے وي نو يوا ځے په مصر کښې به نه، بلکه خوا اُوشا

وَفِيْ عَادٍ اِذْ اَرْسَلْنَا عَلَيْهِمُ الرِّيْحَ الْعَقِيْمَ ﴿۴۱﴾ مَا تَذَرُ مِنْ شَيْءٍ اَتَتْ عَلَيْهِ اِلَّا جَعَلَتْهُ كَالرَّمِيْمِ ﴿۴۲﴾ وَفِيْ ثَمُوْدَ اِذْ قِيْلَ لَهُمْ تَمَتَّعُوْا حَتّٰى حِيْنٍ ﴿۴۳﴾ فَعَتَوْا عَنْ اَمْرِ رَبِّهِمْ فَاَخَذَتْهُمُ

او (ستاسو د پاره نښه ده) په عاد کښے، کله چه مونږه په هغوئ باندې یوه داسے بے خیره هوا راالوېږوله چه په کوم څیز به ورتلله نو هغه به ئے خاورے هیرے کوو.[۳۹]
او (ستاسو د پاره نښه ده) په ثمود کښے، کله چه هغوئ ته ووئیلے شوی وُو چه د یو خاص وخته پورے مزے کوئی۔ لیکن د دے خبردارئ باوجود هغوئ د خپل رب د حکم نه مخ واړولو۔ آخر دا چه هغوئ د عذاب

په تولو تومونو کښے به یوه غوغا جوړه شوی وی۔ لیکن په دے باندې بغیر د هغه خلقونه چه د هغوئ خپل نږدے رشته داران دوب شوی وُو، بل هیچا له داسے نه وُوچه د هغوئ د پاره ئے په خپل ملک کښے یا د دُنیا په نورو قومونو کښے ماتم کړے وے، یا ئے په هغوئ خفگان ښکاره کړے وے، یا ئے کم نه کم دومره ووئیلے وے چه افسوس دے، دیر بنه خلق په دے حادثه کښے مړه شول۔ د دے په ځائے د هغوئ په دے عبرتناک انجام باندې هرسړی د اطمینان سا واخستله، هر یو به هغوئ باندې ملا متیا اُووئیله، او هرچا اُووئیل چه دا ظالمان هم د دے انجام مستحق وُو، داځکه چه ټوله دنیا د هغوئ د ظلمونو نه تنګ شوی وه۔ په سورة دُخان کښے دا حالت په دے الفاظو سره بیان کړے شوے دے چه فَمَا بَكَتْ عَلَيْهِمُ السَّمَآءُ وَالْاَرْضُ "بیا پرِ نه آسمان اُوژړل او نه زمکے"۔ (د تشریح د پاره اُوګوره تفهیم القرآن څلورم جلد، تفسیر د سورة دُخان، حاشیه ۲۵)۔

۳۹ د دے هوا د پاره لفظ عَقِیْمٌ استعمال شوے دے چه د شنړے ښځے د پاره ووئیلے کیږی، او په لُغت کښے د دے اصلی معنیٰ ده "وچ" څیز۔ که د دے لُغوی معنیٰ اوکړے شی نو د دے مطلب به دا وی چه هغه داسے سخته ګرمه او وچه هوا وه چه په کوم څیز به ورتلله هغه به ئے وچولو۔ او که د محاورے معنیٰ ئے اوکړے شی نو مطلب به ئے دا وی چه هغه د شنړے ښځے په شان داسے هوا وه چه هیڅ فایده کښے نه وه۔ نه مزیداره وه، نه پکښے باران وُو، نه د ونو باردار کولو والا وه او نه پکښے د هغه فایدو نه یوه فایده وه د کومو فایدو د پاره چه هوا کانے چلیږی۔ په نورو ځایونو کښے ووئیلے شوی دی چه دا یوازے وچه او بے خیره هوا نه وه بلکه د تیز طوفان په شکل راغلے وه چه خلق یه ئے اُوچتول او په زمکه به ئے راګوزارول او هغه پرلپسے آته ورځے او اوه شپے چلیده له۔ تر دے پورے چه د عاد قوم ټوله علاقه ئے تس نس کړه۔ (د تشریح د پاره اُوګوره تفهیم القرآن، څلورم جلد، تفسیر د سورة حٰم السجده، حاشیے ۲۰، ۲۱ – الاحقاف، حاشیے ۲۵ تا ۲۸)۔

۴۰ د مفسرینو په دے خبره کښے اختلاف دے چه د دے نه مراد کوم مهلت دے۔ حضرت قتاده

الصّٰعِقَةُ وَهُمْ يَنْظُرُوْنَ ﴿۴۴﴾ فَمَا اسْتَطَاعُوْا مِنْ قِيَامٍ وَّمَا كَانُوْا مُنْتَصِرِيْنَ ﴿۴۵﴾ وَقَوْمَ نُوْحٍ مِّنْ قَبْلُ اِنَّهُمْ كَانُوْا قَوْمًا فٰسِقِيْنَ ﴿۴۶﴾ وَالسَّمَآءَ بَنَيْنٰهَا بِاَيْىدٍ وَّاِنَّا لَمُوْسِعُوْنَ ﴿۴۷﴾ وَالْاَرْضَ



یوناساپی شرق[۴۱] راګیر کړل او هغوی ورته په غتو غتو کتل. بیا نه په هغوی کښې د راپاسیدو طاقت وُو او نه هغوی ځان بچ کولے شو[۴۲]

او د هغوی نه وړاندې مونږ د نوح قوم هلاک کړو ځکه چه هغوی فاسقان خلق وُو.

آسمان مونږ په خپل زور جوړ کړے دے او مونږه د دے طاقت لرو[۴۳] زمکه مونږه

والې چه دا اشاره د سورة هود هغه آیت ته ده چه په هغې کښې وئیلے شوی دی چه د ثمود خلقو کله د حضرت صالح اُوښه مړه کړه نو د الله تعالیٰ د طرفه هغوی ته خبرداری ورکړے شو چه د درے ورځو پورې زمونږه کوئ، د هغې نه روستو به در باندې عذاب راځي. د دے برخلاف د حضرت حسن بصری خیال دے چه اخبره حضرت صالح علیه السلام د خپل دعوت په شروع کښې خپل قوم ته کړې وه او د دے نه د هغه مطلب دا وو که چرے تاسو توبه او د ایمان په لاره لا نړئ نو د یو خاص وخته پورې به تاسو ته په دنیا کښې د ژوند تیرولو مهلت نصیب شي خو بیا به د ربانی عذاب راځي. په دے دواړو تفسیرونو کښې دا دویم تفسیر زیات صحیح معلومیږي، ځکه چه روستنے آیت فَعَتَوْا عَنْ اَمْرِ رَبِّهِمْ (بیا هغوی د خپل رب د حکم نه وا اړوُو) نه دا معلومیږي چه د کوم مهلت ذکر دلته کیږي هغه د ځان اړولو نه مخکښې ورکړے شوے وُو او هغوی د هغه خبرداری نه روستو ځان وا اړوُوه. د دے برعکس چه د سورة هود په کوم آیت کښې د درې ورځو د مهلت ذکر شوے دے هغه ظالمانو له هله ورکړے شوے وُو کله چه هغوی آخري نافرماني او کړه

[۴۱] په قرآن مجید کښې په مختلفو ځایونو کښې د دے عذاب د پاره مختلف الفاظ استعمال شوی دی په یو ځائے کښې دے ته رَجْفَة (یره راوستونکے او خوزونکے آفت) وئیلے شوے دے. په بل ځائے کښې دے ته صَيْحَة (لوئ کړس) وئیلے شوے دے. په بل ځائے کښې د دے د پاره د طَاغِيَه (ډیر سخت آفت) الفاظ استعمال کړے شوی دی. او دلته دے ته صَاعِقَة وئیلے شوی دی چه معنیٰ ئے د تند رپشان ناسا په راتلونکے آفت هم ده او سخت کړس هم دے. غالبًا چه دا عذاب د یوه داسے زلزلے په شکل کښې راغلے وُو چه د هغې سره خطرناک آواز هم وُو.

[۴۲] اصل الفاظ دی مَا كَانُوْا مُنْتَصِرِيْنَ. لفظ انتصار په عربئ ژبه کښې د دوه معنو د پاره استعمالیږي. د یوه معنیٰ ده خپل ځان د بچاؤ د حملے نه بچ کول. او دویمه معنیٰ ده د حملے کونکی نه بدله اغستل.

[۴۳] د آخرت په حق کښې د تاریخي دلیلونو پیش کولو نه روستو اوس بیا د آخرت په ثبوت کښې

فَرَشْنٰهَا فَنِعْمَ الْمٰهِدُوْنَ ﴿٤٨﴾ وَمِنْ كُلِّ شَيْءٍ خَلَقْنَا زَوْجَيْنِ لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُوْنَ ﴿٤٩﴾ فَفِرُّوْٓا اِلَى اللّٰهِ ۭ اِنِّىْ لَكُمْ مِّنْهُ نَذِيْرٌ مُّبِيْنٌ ﴿٥٠﴾ۚ

غوړولې ده او موږ ډېر ښه هوارونکي يو.[45] او موږ د هر شي جوړې جوړې کړي دي[46] کېدې شي چې تاسو د دې نه سبق واخلئ.[47] نو منډه کړئ د الله طرف ته، زه تاسو د پاره د هغه د طرف نه صفا صفا خبردار ورکوونکي يم.

آفاقي يعني په ټوله دنيا کې خوره ورې دليلونه پېش کېږي.

[44] اصل الفاظ دي وَ اِنَّا لَمُوْسِعُوْنَ. د موسع معنیٰ طاقت او قدرت لرونکے هم کېدے شي او فراخه کوونکے هم. د اولې معنیٰ په لحاظ سره د دې مطلب دا دے چې دا آسمان موږ د چا په امداد سره نه دے جوړ کړے بلکه په خپل زور مو جوړ کړے دے او د دې جوړولو زمونږ د قدرت نه بهر نه وو. بيا دا خيال ستاسو په دماغو کښې آخر څنګه راغے چې موږ به دوباره تاسو پيدا نه کړے شو؟ د دويمې معنیٰ په لحاظ سره ئې مطلب دا دے چې دا سے نه ده چې موږ دا لوئ کائنات بس يو ځل جوړ کړے دے او بيا په قلار ناست يو بلکه په دې کښې مسلسل فراخي کېږي او هر وخت په دې کښې زمونږ د جوړښت نوي نوي کارنامے رااوڅي. الله تعالیٰ دا سې يو زبردسته پيدا کوونکي هستي ده آخر هغه تاسو د مخلوق د دوباره پيدا کولو نه عاجزه ګڼړلے دے؟

[45] د دې تشريح په حاشيه ۱۸ کښې تېره شوې ده. د زياتې تشريح د پاره اوګوره تفهيم القرآن دريم جلد، النمل، حاشيه ۷۴. څلورم جلد، تفسير د سورة يٰس، حاشيه ۲۹. الزّخرف، حاشيې ۷ تا ۱۰.

[46] يعنې د دُنيا ټول څيزونه د جوړې په اُصولو جوړ کړے شوي دي. د ټول جهان دا کارخانه په دې قاعده چلېږي چې د څينو څيزونو جوړه د څينو څيزونو سره لګي او بيا د جوړ لګېدو سره تسما قِسم نور څيزونه جوړېږي. دلته يو څيز هم داسې يو ازے نشته چې د هغې د بل څيز سره جوړه نه وي بلکه هر څيز چې د خپلې جوړې سره يو ځائے شي نو هله فائده کوي. (د زياتې تشريح د پاره اوګوره تفهيم القرآن، څلورم جلد يٰس، حاشيه ۳۱- الزُّخرف، حاشيه ۱۲).

[47] مطلب دا دے چې ټول کائنات د جوړې په اصولو جوړول، او د دُنيا ټول څيزونه جُوړې جُوړې کېدل يو داسې حقيقت دے چې د آخرت په راتلو څرګنده ګواهي کوي. که چرې ته غور اوکړې نو ستا عقل په خپله د دې نه دا نتيجه را ايستلے شي چې هر کله د دُنيا د هر څيز يوه جوړه شته، او هر څيز د خپلې جوړې سره د يو ځائے کېدو نه بغير فائده مند نه وي، نو د دُنيا دا ژوند څنګه بې جوړې کېدے شي؟ د دې جوړه خامخا آخرت دے. که آخرت نه وي نو دا دنيا قطعًا بې فائده پاتے کېږي.

په وړاندې ئې خبره باندې د مخکښې کولو د پاره دلته ځان په دے خبره هم پوهه کول پکار دي چې دلته ټول بحث په آخرت باندې کېږي، ليکن د دې بحث او د دے دليلونو نه د توحيد ثبوت هم ملاويږي. د باران انتظام، د زمکې جوړښت، د آسمان پيدائش، د انسان خپل وجود، په کائنات کښې د جوړې جوړې

وَلَا تَجْعَلُوْا مَعَ اللّٰهِ اِلٰهًا اٰخَرَ ؕ اِنِّیْ لَكُمْ مِّنْهُ نَذِیْرٌ مُّبِیْنٌ ﴿۵۱﴾ كَذٰلِكَ مَاۤ اَتَی الَّذِیْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ مِّنْ رَّسُوْلٍ اِلَّا قَالُوْا سَاحِرٌ اَوْ مَجْنُوْنٌ ﴿۵۲﴾ اَتَوَاصَوْا بِهٖ ۚ بَلْ هُمْ قَوْمٌ طَاغُوْنَ ﴿۵۳﴾ فَتَوَلَّ عَنْهُمْ

او مه جوړوئ د الله سره بل معبود، زهٔ ستاسو د پاره د هغه د طرفنه صفا صفا خبردارونکے یم[۴۸]. هم دغسے کیږی، د دوی نه مخکینو قومونو ته یو رسول داسے نه دے راغلے چه هغوئ ورته دا نه وی ویلی چه دا جادوګر دے یا لیونے دے[۴۹]. آیا دے ټولو خلقو په خپلو کښے په دے خبره باندې څه فیصله کړې ده؟ بلکه دا ټول سرکشه خلق دی[۵۰]. نو اے نبی، ته د دوی نه مخ واړوه،

کیږی ود قانون کارنامے، دا ټول څیزونه لکه څنګه چه د آخرت په کیدو او د آخرت په راتلو ګواه دی، د غه شان هم دا څیزونه د دے خبرې ګواهی کوی چه دا کائنات نهٔ بے خدایه دی او نهٔ د دے ډیر خدایان دی، بلکه اکیلو حکیم او قادر خدائے د کائنات پیدا کونکے، او مالک او انتظام چلونکے دے. په دے وجه وړاندې هم د دے دلیلونو په بنیاد باندې د توحید دعوت پیش کیږی. د دے نه علاوه د آخرت د منلو لازمی نتیجه دا ده چه انسان د خدائے نه د بغاوت کولو لار پریږدی او د حکم منلو او د بندګئ په لار روان شی. انسان د خدائے نه د هغه وخته پورے په شاګړئ ترڅو چه هغه په دے غفلت کښے مبتلا وی چه زما نه د تپوس کولو څوک نشته او د عملونو حساب کتاب نشته. دا غلط فهمی چه په څه وخت کښے ختمه شی د هغے سره فوراً د سړی په زړهٔ کښے دا فکر راپورته کیږی چه ځان غیر ذمه وار ګنړل ډیر سخته غلطی ده او دا فکر هغه خدائے ته په واپس کیدو مجبوره کوی. په دے وجه د آخرت د دلیلونو ختمولو سره جوخت دا ارشاد فرمائیلے شو" نو منډه کړئ د الله طرفته".

[۴۸] دا نقره اګرچه د الله کلام دے لیکن په دے کښے خبره کونکے الله نه دے بلکه نبی صلی الله علیه وسلم دے. یعنی خبره په اصل کښے داسے ده چه الله د خپل نبیؐ په ژبه دا وائی چه منډه کړئ د الله طرفته زهٔ تاسو هغه د طرفنه خبروم. په دے طرز باندې مثال د قرآن مجید په اولنی سورة، یعنی سورة فاتحه کښے موجود دے چه په هغې کښے کلام خو د الله تعالیٰ دے لیکن د خبرې کونکی په حیثیت سره بندهٔ عرض کوی: اِیَّاكَ نَعْبُدُ وَ اِیَّاكَ نَسْتَعِیْنُ. اِهْدِنَا الصِّرَاطَ الْمُسْتَقِیْمَ. لکه څنګه چه هلته دا خبره نه ده شوی چه" اے مومنانو تاسو د خپل رب نه داسے دُعا غواړئ." لیکن د کلام د انداز نه پخپله دا خبره معلومیږی چه دا بندهٔ عاد چه الله د خپلو بندګانو ته ښائی، دغه شان دلته هم دا نه دی فرمائیلے شوی چه" اے نبی ته د دے خلقو ته اُووایه" لیکن د کلام د انداز نه پخپله دا معلومیږی چه دا د توحید یو دعوت دے چه رسول الله صلی الله علیه وسلم د الله تعالیٰ د هدایت مطابق پیش کوی. د سورة فاتحه نه علاوه د کلام د دے طرز نور هم ډیر مثالونه په قرآن مجید کښے موجود دی چه په هغې کښے کلام خو د الله تعالیٰ وی لیکن خبره کونکے کله فرښته وی او کله نبی صلی الله علیه وسلم، او د دے اظهار کولو نه بغیر چه دلته خبره کونکے څوک

دے، دَ عبارت نه ښکاره دا معلومیږی چه الله تعالیٰ دا خپل کلام دَ چا په ژبه ادا کوی. دَ مثال په طور اوګوره سورة مریم ۶۴-۶۵، الصّٰفّٰت ۱۵۹ تا ۱۶۷، الشوریٰ ۱۰.

۴۹ یعنی دَ دا خو اول ځل نه دے چه کُنی خلقو دَ الله دَ رالیږلی شوی رسول دَ خُلے نه دَ آخرت خبرې او دَ توحید دعوت دا اوریدو او هغه ته جادوګر او لیونے وائی. دَ پیغمبرئ ټول تاریخ په دے ګواه دے چه دَ کله نه انسان ته دَ هدایت دَ پاره رسولان رالیږل شروع شوی دی دَ هغه وخت نه دَ نن زمانے پورے جاهلان خلق هم دا یوه خبره په یو طرز بار بار کوی. کوم رسول چه را غلے او دا خبره ئے کړې ده چه تاسو دَ پیدا شوی بندګان نه یئ بلکه اکی یو خدائے ستاسو خالق او معبود دے او ستاسو دَ قسمتونو مالک او اختیار دے، نو جاهلانو شور جوړ کړے دے چه دا جادوګر دے او دے غواړی چه په خپل جادو زمونږ عقلونه خراب کړی. کوم رسول چه را غلے دے او دا خبره ئے کړې ده چه تاسو په دنیا کښے غیر ذمه وار مخلوق نه یئ بلکه ستاسو چه کله دَ دُنیا ژوند ختم شی نو خپل خالق او مالک ته به حاضریږئ او حساب کتاب به درسره کیږی او دَ خپلو عملونو مطابق به جزا او سزا مومئ، نو به وتوفانونو خلقو چغے جوړې کړې دی چه دا پاګل دے، دَ ده عقل کار نه کوی، دَ مرګ نه روستو به مونږه دوباره بیا څنګه را ژوندی کړے شو؟

۵۰ یعنی دا خبره خو څرګنده ده چه دَ زرګونو کلونو پورے په هره زمانه کښے دَ مختلفو ملکونو او دَ مختلفو قومونو خلق دَ پیغمبرانو دَ دعوت په مقابله کښے کومه یوه خبره کوی، نو دا داسے نه وه چه ګنی وړاندې روستو نسلونو په خپلو کښے په یو کانفرنس کښے دا فیصله کړې وه چه کله یو نبی را شی او دا دعوت پیش کړی نو دَ هغے په دا جواب ورکوئ. نو بیا هغوئ دا یو شان خبره ولے کوی او با ربار په یو طرز جواب ئے ولے ورکوی؟ دَ دے بله وجه دَ دے نه سیوا نشته چه دَ سرکشئ صفت په دوئ ټولو کښے شریک دے. چونکه دَ هرے زمانے جاهلان خلق دَ خدائے دَ بندګئ نه آزاد او دَ حساب کتاب نه بے پروا په دنیا کښے دَ بے مهاره څناور پشان ژوند تیرول غواړی، نو په دے وجه چه څوک ئے دَ الله بندګئ ته رابلی او وړته وائی چه دَ الله نه په یره یره ژوند تیروئ نو هغوئ ورله هم دغه یو جواب په یو څه ورکوی.

دَ دے آیت نه بل یو اهم حقیقت هم را څرګندیږی، او هغه دا دے چه دَ ګمراهئ او دَ هدایت، دَ نیکئ او دَ بدئ، دَ ظلم او دَ انصاف او دَ دا رنګے دَ نورو عملونو کومے ارادے چه دَ انسان په نفس کښے قدرتی طور موجود دی هغه په هره زمانه کښے او دَ زمکے په هره حصه کښے همیشه په یو طرز څرګندیږی اګرکه دَ وسائلو دَ ترقئ په وجه دَ هغے شکلونه په ظاهره هرڅومره مختلف ښکاری. نن که انسان دَ ټینکونو او دَ هوائی جهازونو او دَ هایډروجن بمونو په ذریعه جنګ کوی او څو په زمانه کښے که انسان دَ کانړو او دَ لرګو په ذریعه جنګ کولو، خو دَ انسانانو په منځ کښے دَ جنګ په بنیادی اسبابو کښے دَ سرو و بیخته هومره فرق نه دے را غلے. دغه شان دَ نن زمانے کافران که دَ خپل کفر دَ پاره دَ دلیلونو هرڅومره انبارونه اُونکوی، خو دَ هغوئ دَ کفر اسباب بالکل هم هغه دی کوم چه دَ نن نه شپږ زره کاله مخکښے دَ یو کافر وُو. او هغوئ په خپلو دلیلونو پیش کولو کښے هم بنیادی طور دَ خپلو مخکینو مشرانو نه هیڅ مختلف نه دی.

فَمَآ اَنْتَ بِمَلُوْمٍ ﴿۵۴﴾ وَّ ذَكِّرْ فَاِنَّ الذِّكْرٰى تَنْفَعُ الْمُؤْمِنِيْنَ ﴿۵۵﴾

په تا باندې هیڅ ملامتیا نشته.[۵۱] البته نصیحت کوه، ځکه چه نصیحت د مومنانو د پاره نافع مند دے.[۵۲]

---

[۵۱] په دے آیت کښې د دین د تبلیغ کولو یوه قاعده بیان کړے شوې ده چه په هغې سره ځان پوهه کول پکار دی. د حق یو داعي چه کله د یو سړي په عقلي کښې د مناسبوه لیلونو سره خپل دعوت صفا صفا پیش کړي او د هغه د شک شبهو او د هغه د اعتراضونو او دلیلونو جواب هم ورکړي نو د حق واضح کولو چه کوم فرض د هغه په ذمه وُو د هغې نه هغه خلاص شو. د دے نه روستو هم که هغه سړے په خپل عقیده او په خپل خیال باندې ټینګ پاتے شي نو د حق په داعي باندې د هغې هیڅ ذمه واري نه راځي. بیا د دے خبرې هیڅ ضرورت نشته چه هغه دِ په هغه سړي پسے اُولګي او خپل ټول عمر دِ د هغه سړي سره په بحثونو کولو کښې تیر کړي، او بس د هغه دِ دا کار شي چه دغه سړے دِ په څه طریقه د خپل خیال منکرے کړي. داعي خپل فرض ادا کړو. که هغه نه مني نو نه دِ مني. هغه ته په توجه نه ورکولو سره په داعي باندې څوک دا الزام نه شي لګولے چه تا یو سړے بے لاره پریښودو، ځکه چه اُوس هغه د خپلے ګمراهۍ په خپله ذمه وار دے.

رسول الله صلی الله علیه وسلّم ته دا قاعده د دے د پاره نه ده بیان کړے شوې چه معاذ الله ګني نبی[۴] به په خپل تبلیغ کښې په غلطه طریقه په خلقو پسے لګیدو او الله تعالیٰ غوښتل چه هغه د دے نه منع کړي. په اصل کښې د دے قاعدے د بیا نولو وجه دا ده چه هر کله د حق یو داعي څه خلقو ته د زیاتو نه په زیاته مناسبه طریقه سره د هغوی د پوهه کولو حق ادا کړي او په هغوی کښې د منډ او د جګړے نښے اووینی او د هغوی نه دِ دا کول شروع کړي نو هغوی په داعي پسے اُولګي او په هغه باندې الزام لګول شروع کړي چه واه صاحب، ته خو د حق د دعوت پیش کولو دیره ښه دعوٰی کوے، مونږ ه ځان پوهه کولو د پاره ستا سره بحث کول غواړو او ته مونږ ته توجه نه راکوے. حالانکه د هغوی مقصد ځان پوهه کول نه وی بلکه په خپل بحث کښې داعي نخلول غواړي او خالص د هغه وخت ضائع کوي. په دے وجه الله تعالیٰ په خپله په خپل کلام پاک کښې په څرګند والفاظو دا اُوفرمایئل چه "دا سے خلقو ته توجه مه ورکوه، هغوی ته په توجه نه ورکولو سره په تا هیڅ ملامتیا نشته." د دے نه روستو چا په رسول الله صلی الله علیه وسلّم دا الزام نه شو لګولے چه کوم کتاب تا اوړے دے د هغې تر مخه خو ته په دے مقرر شوے چه مونږ په دین پوهه کړے نو بیا زمونږ د خبرو جواب ولے نه راکوے.

[۵۲] په دے آیت کښې د تبلیغ دویمه قاعده بیان کړے شوې ده. د حق د دعوت اصلي مقصد هغه نیکانو خلقو ته د ایمان نعمت ور رسول دی څوک چه د دے نعمت ته ریښتنی او دا نعمت په خپله حاصلول غواړي. لیکن داعي ته دا نه وی معلوم چه په زرګونو لکونو انسانانو کښې هغه نیکان خلق په کوم ځائے کښې دی. په دے وجه د داعي کار دا دے چه د خپل عام دعوت سلسله برابر جاری اُوساتي د پاره د دے چه په کوم کوم ځائے کښې ایمان قبلونکی خلق موجود وی چه هلته د هغه آواز ورا اُورسي. هم دا خلق د هغه اصلي دولت دے. هم د دے خلقو لټون کول د هغه اصلي کار دے.

وَمَا خَلَقْتُ الْجِنَّ وَالْإِنْسَ إِلَّا لِيَعْبُدُونِ ﴿۵۶﴾ مَا أُرِيدُ مِنْهُمْ مِنْ رِزْقٍ وَمَا أُرِيدُ أَنْ يُطْعِمُونِ ﴿۵۷﴾ إِنَّ اللّٰهَ هُوَ الرَّزَّاقُ

ما پیریان او انسانان پیدا کړي دي د دې کار د پاره دي چه هغوئ زما بندګي اوکړي[۵۳] زه د هغوئ نه څه رزق نه غواړم او نه دا غواړم چه ماله دې خوراک ورکوي. الله خو پخپله روزي ورکونکے دے

اوهم دا خلق را جمع کول او د حق دعوت ورته ورسول دي. نو کله چه هغوئ نصیحت ته غوږ نه نیسي نو نصیحت کوونکے خپل مسئولیت سره ادا کړے دے او هغه ملامت نه دے. بیا ئې اوفرمائیل چه ته لږ نصیحت کوه ځکه چه نصیحت مؤمنانو ته فائده ورکوي. یعني په دې صورت کښې خو ورته ضرور نصیحت کول پکار دي ترڅو پورې چه تجربه سره دا معلومه شوې نه وي چه هغوئ د دعوت هیڅ اثر نه قبلوي. هرکله چه داعي ته د هغوئ د دعوت نه قبلولو تجربه اوشي نو پس د هغې په دغه قسم خلقو باندې خپل قیمتي وخت ضائع کول نه دي پکار، ځکه چه هغوئ د نصیحت نه فائده اخستونکي خلق نه دي، او په هغوئ باندې د خپل توت لګولو سره نقصان د هغه خلقو کیږي څوک چه د نصیحت نه فائده اخستونکي دي.

۵۳ یعني ما دوئ د بل چا د بندګئ د پاره نه بلکه د خپلې بندګئ د پاره پیدا کړي دي. زما بندګي خو دوئ له په دې وجه پکار ده چه زه د هغوئ خالق یم. نو بل چا چه دوئ پیدا کړي نه دي نو د هغوئ څه حق دے چه دوئ د هغه بندګي اوکړي، او د دوئ د پاره دا څنګه جائز کیدے شي چه د دوئ خالق خو زه یم او دوئ دې بندګي کوي د بل چا.

دلته دا تپوس کیدے شي چه الله تعالیٰ یوازې د پیریانو او د انسانانو خالق نه دے بلکه د ټول جهان او د هر څیز خالق دے، نو بیا دلته خاص د پیریانو او د انسانانو په حقله ولې اوفرمائیلے شو چه ما هغوئ د خپلې بندګئ نه سوا د بل چا د بندګئ د پاره نه دي پیدا کړي؟ حالانکه د مخلوقاتو یوه یوه ذره خاص د الله د بندګئ د پاره ده. د دې جواب دا دے چه په زمکه باندې یوازې پیریان او انسانان داسې مخلوق دے چه هغوئ ته دا آزادي ورکړے شوې ده چه که هغوئ په خپل اختیار د الله تعالیٰ بندګي کول غواړي نو کوي دې، کنه نو هغوئ د بندګئ نه مخ هم اړولے شي، او د الله نه سوا د بل چا بندګي هم کولے شي. نور ټول مخلوقات چه په دې دنیا کښې دي هغوئ دا قسم هیڅ آزادي نه لري. د هغوئ هېڅ اختیار شته دے نه چه هغوئ په هغې کښې د الله بندګي اونه کړي یا د بل چا بندګي اوکړے شي. په دې وجه دلته صرف د پیریانو او د انسانانو په حقله فرمائیلے شوي دي چه که هغوئ په خپل اختیار سره د خپل خالق د اطاعت او د بندګئ نه مخ اړوي، او د خالق نه سوا د بل چا بندګي کوي، نو هغوئ پخپله د خپل فطرت خلاف جنګیږي، هغوئ له دا خبر په دې پوهه کول پکار دي چه هغوئ د خالق نه سوا د بل چا د بندګئ د پاره نه دي پیدا کړے شوي او د هغوئ د پاره نیغه لار دا ده چه کومه آزادي هغوئ له ورکړے شوې ده هغه په غلطه استعمال نه کړي بلکه په دې آزادئ کښې دننه هم پخپله مرضي سره د خدائے بندګي هغه اوکړي لکه څنګه چه د هغه د بدن یو یو ذره

ذُو الْقُوَّةِ الْمَتِيْنُ ﴿۵۸﴾ فَاِنَّ لِلَّذِيْنَ ظَلَمُوْا ذَنُوْبًا مِّثْلَ ذَنُوْبِ

د لوئ طاقت خاوند دے او مضبوط دے[۵۶] نو کومو خلقو چه ظلم کړے دے هغوی لره هم هغسے عذاب تیار

د هغه د ژوند په ے اختیاره حصه کښے دننه د خدائے بندګی کوی۔

د عبادت لفظ په دے آیت کښے یوازے د مونځ روژے او د دے قسم نورو عباداتونو په معنیٰ کښے نه دے استعمال کړے شوے چه څنی خوک تر دا مطلب واخلی چه پیریان او انسانان یوازے د مونځ کولو او د روژے نیولو او د تسبیح تهلیل ویلو د پاره پیدا کړے شوی دی۔ دا مطلب هم اګرچه په دے کښے شامل دے لیکن دا د دے پوره مطلب نه دے۔ د دے پوره مطلب دا دے چه پیریان او انسانان د الله نه سیوا د بل چا د عبادت د پاره، د بل چا د حکمونو منلو د پاره، بل چا ته د عاجزئ کولو د پاره نه دی پیدا کړے شوی د هغوی کار بل چا ته سر ښکته کول، د بل چا حکمونه منل، د بل چا نه یره کول، د بل چا په جوړ کړے شوی دین پسے تلل، بل څوک خپل قسمتونو جوړولو او ورانولو والا ګڼل، او بل چا ته د دُعا د پاره لاسونه خوړول نه دی۔ (د زیاتے تشریح د پاره اوګوره تفهیم القرآن څلورم جلد، تفسیر د سورة سبا، حاشیه ۶۳۔ الزُّمَر، حاشیه ۲۔ الجاثیه، حاشیه ۳۰)۔

یوه بله خبره چه د دے آیت نه څرګندیږی هغه دا ده چه پیریان د انسانانو نه جدا یو مستقل مخلوق دے۔ د دے نه د هغه خلقو خیال بالکل غلط ثابتیږی چه هغوی دا دعویٰ کوی چه په قرآن مجید کښے په انسانانو کښے دننه څه خلقو ته پیریان ویلے شوی دی۔ په دے حقیقت باندے د قرآن مجید لاندینی آیتونه هم مکمل شهادت پیش کوی: الانعام ۱۰۰، ۱۲۸۔ الاعراف ۳۸۔ ۱۷۹۔ هود، ۱۱۹ الحجر، ۲۷ تا ۳۳۔ بنی اسرائیل، ۸۸۔ الکهف، ۵۰۔ السجدہ ۱۳۔ سبا، ۴۱۔ صٓ ۷۵، ۷۶۔ حٰمٓ السجده ۲۵۔ الاحقاف، ۱۸۔ الرحمٰن، ۱۵، ۳۹، ۵۶ (په دے مسئله باندے د تفصیلی بحث د پاره اوګورئ تفهیم القرآن دریم جلد، الانبیاء، حاشیه ۲۱۔ النمل، حاشیه ۲۳ و ۴۵۔ څلورم جلد، تفسیر د سورة سبا، حاشیه ۲۴)۔

[۵۵] یعنی زما پیریانو او انسانانو ته څه حاجت نشته چه که دوی زما عبادت کوی نو زما خدائی به چلیږی او که دوی زما د بندګئ نه مخ واړوی نو زه به خدائے پاتے نه شم۔ زه د دوی د عبادت محتاج نه یم بلکه زما عبادت کول بخپله د دوی د فطرت تقاضا ده، هم د دے د پاره دوی پیدا کړے شوی دی، او د خپل فطرت سره په جنګیدو کښے د دوی خپل نقصان دے۔

او دا چه وے فرمائیلے چه " زه د دوی نه رزق نه غواړم او نه دا غواړم چه دوی ما له خوراکونه راکړی۔" په دے کښے معمولی شان د اعتراض یوه پټه خبره ده۔ کافران چه په دنیا کښے د چا بندګی کوی، هغوی ټول په حقیقت کښے د دے خپلو بندګانو محتاج دی۔ که دوی د هغوی خدائی نه چلوی نو هغه یوه ورځ هم نه چلیږی، هغوی د دوی رزق رسان نه دی بلکه اُلټا دوی هغوی له روزی وررسوی۔ هغوی دوی له خوراکونه نه ورکوی، بلکه اُلټا دوی هغوی له خوراکونه ورکوی۔

اَصْحٰبِهِمْ فَلَا يَسْتَعْجِلُوْنِ ﴿۵۹﴾ فَوَيْلٌ لِّلَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْ يَّوْمِهِمُ الَّذِيْ يُوْعَدُوْنَ ﴿۶۰﴾ ع

لکه څنګه چه د دوئ غوندې خلقوته د خپلې حصې عذاب ملاؤ شوے دے، د دے د پاره دِ داخلق په ما تلوار نهٔ کوی.[۵۷] آخر د اچه تباهي ده د کافرانو د پاره په هغه ورځ چه د کومے ورځ د راتلو نه هغوئ يَروِلے کيږی. ع

هغوئ د دوئ محافظان نهٔ دی بلکه اُلټا دوئ د هغوئ حفاظت کوی. دوئ د هغوئ بنکريات دی او د دوئ په وجه د هغوئ خدائی چليږی. په کوم ځائے کښې چه د دے دروغو خدايانو حمايتان بند کان نهٔ وی، يا بندګانو د هغوئ حمايت پريښودے وی هلته د هغوئ ټول شان شوکت ختم شو او د دُنيا خلقو د هغوئ په حال اُوليدو. په ټولو معبودانو کښې اکيلے يو الله جلّ شانهٔ هغه حقيقی معبود دے چه د هغه خدائی په خپل طاقت چليږی، چه هغه د خپلو بندګانو نه څه اخلی نهٔ بلکه هغه خپلو بندګانو ته هرڅه ورکوی۔

[۵۵] په اصل کښې لفظ "متين" استعمال کړے شوے دے. چه معنیٰ ئے ده مضبوط او نهٔ رټيد ونکے چه څوک ئے خوزولے نشی

[۵۶] د ظلم نه مُراد دلته په حقيقت او په صداقت بانديِ ظلم کول دی، او خپله په خپل فطرت بانديِ ظلم کول دی. د وړاندې روستو عبارت نه ښکاره معلوميږی چه دلته د ظلم کونکو نه مُراد هغه خلق دی چه هغوئ د خدائے نه سوا د بل چا بندګی کوی، د آخرت نه منکر دی، او خپل ځان په دُنيا کښې غير ذمه وار ګنړی، او هغه پيغمبران دروغژن ګنړی کوم چه هغوئ ته د حقيقت نه د خبر دارولو کوشش کړے دے۔

[۵۷] دا جواب دے د کافرانو د دے مطالبے چه هغه د بدلے ورځ به آخر کله راځی؟۔

---

# الطُّوْرُ

**نوم** | دَ دے سورة نوم دَ اولنی لفظ "وَالطُّوْرِ" نه اغستلے شوے دے۔

**دَ نازلیدو زمانه** | دَ ننه دَ مضمون دَ شهادت نه دا اندازه معلومیږی چه دا سورة هم دَ مکے معظمے په هغه دَورکښے نازل شوے دے په کوم دَورکښے چه سورة ذاریات نازل شوے وُو۔ دَ دے دَ لوستلو په دوران کښے خو دا ضرور معلومیږی چه دَ دے دَ نازلیدو په زمانه کښے دَ نبی صلی الله علیه وسلم خلاف ډیر ډیر الزامونو او اعتراضونه وُو، لیکن دا تر نهٔ معلومیږی چه ظلم زیاتے پرے په زُور شُور سره شروع شوے وُو۔

**موضوع او مضمون** | دَ دے سورة په اوله رکوع کښے دَ آخرت بیان شوے دے۔ په سورة ذاریات کښے دَ آخرت دَ امکان او دَ آخرت دَ راتلو دلیلونه ورکړے شوی وُو، په دے وجه دلته دوباره دَ هغې ذکر اُونهٔ کړے شو، البته په یو څو هغو حقیقتونو او علامو باندې قسم خوړلے شوے دے چه هغه دَ آخرت په راتلو باندې ګواهی کوی، او ډیر په زُور سره دا فرمائیلے شوی دی چه هغه به یقیناً راځی او په هیڅ کښے دا طاقت نشته چه هغه دَ راتلو نه منع کړی۔ بیا دا وئیلے شوی دی چه کله آخرت راشی نو څوک چه آخرت دروغ ګڼړی دَ هغوی انجام به څه وی، او څوک چه آخرت منی او دَ خدائے دَ حکمونو مطابق ژوند تیروی هغوی ته به الله څه څه انعامونه ورکوی۔

دَ دے نه روستو په دویمه رکوع کښے دَ قریشو دَ سردارانو په هغه عمل تنقید شوے دے کوم چه هغوی دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم دَ دعوت په مقابله کښے شروع کړے وُو۔ هغوی به نبیؐ ته کله کاهن (یعنی غیبی خبری کونکے)، کله لیونے او کله شاعر وئیلو او عام خلق به ئے دَ هغهٔ نه دَ دے غرض دَ پاره په شا کول چه دَ هغه پیغام په توجه سره وانتوری۔ هغوی نبیؐ دَ خپل ځان دَ پاره یو نا ساپی آفت ګڼړلو او په ډاګه به ئے وئیل چه که په نبیؐ څه آفت راغے نو مونږ به تری خلاص شو۔ هغوی به په نبیؐ الزام لګولو چه دا قرآن دے پخپله دَ ځان نه جوړ وی او دا یوه دوکه ده چه دهٔ جوړه کړی ده (معاذالله)۔ هغوی به بار بار دَ توقو په طور دا خبره کوله چه خدائے دَ پیغمبرئ دَ پاره رالیږو نو بس دا صاحب ئے را اُولیږو بل څوک نهٔ وُو۔ هغوی به دَ دعوت او دَ تبلیغ نه داسے تښتیدل لکه چه هغه دَ هغوی نه څه غواړی او هغوی تر دَ ځان خلاصولو دَ پاره پټ پټ ګرزی۔ هغوی به په خپلو کښے کینا ستل او سوچونه به ئے کول چه دَ نبیؐ خلاف څه داسے کار اوکړی چه په هغې سره دَ هغه دعوت ختم شی۔ دا ټول هر څه به ئے کول او دَ دے خبری ته ئے هډو فکر نهٔ کوؤ چه دا مونږ په څنګه جاهلانه عقیدو کښے نخښتی یو چه محمد صلی الله علیه وسلم دَ هغې دَ تیرونه دَ خلقو دَ راایستلو دَ پاره بالکل

په بې غرضۍ سره خپل کوشش نه کوي - الله تعالیٰ د مغوي په دے عمل تنقید کړے دے او پر لپسې ئې ترې څه تپوس نه کړي دي چه په هغې کښې هر تپوس یا خو د مغوي د یو تپوس جواب دے یا د مغوي په جهالت تبصره ده - بیا ئې فرمائیلي دي چه ستا د نبوّت د قائل کولو د پاره دے خلقو ته څه معجزه ښودل بالکل بې فایدے دي، ځکه چه دا داسې ضدیان خلق دي چه دوئ ته که هر څه اُوښودلے شي خو دوئ به د هغې څه وجه بیانوي او د ایمان راوړلو نه به پوره کوي۔

د دے رکوع په شروع کښې هم رسول الله صلی الله علیه وسلم ته دا فرمائیلے شوي دي چه د دے مخالفو خلقو او د دے دُشمنانو د الزامونو او اعتراضونو پروا مه کوه او د خپل دعوت کار جاري ساته، او په آخر کښې هم فرمائیلے شوي دي چه د دے مخالفتونو مقابله په صبر سره کوه اَنۡ تر دے پورے چه د الله تعالیٰ فیصله راشي - د دے سره هغه ته تسلي ورکړے شوې ده چه ستا رب ته د حق د دُشمنانو په مقابله کښې وَډ رولے ئې او نه ئې په خپل حال نه ئې پریښودے بلکه هغه برابر ستا نګراني کوي - چه تر څو د الله د فیصلے وخت نه وي راغلے تر هغې ته هر څه برداشت کوه او د خپل رب حمد او تسبیح وایه او په دے سره هغه طاقت حاصلوه کوم چه په داسې حالاتو کښې د الله د کارکولو د پاره ضروري وي -

آیاتها ۴۹ — سُوْرَةُ الطُّوْرِ مَكِّيَّةٌ — رکوعاتها ۲

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

وَالطُّوْرِ ﴿۱﴾ وَكِتٰبٍ مَّسْطُوْرٍ ﴿۲﴾ فِيْ رَقٍّ مَّنْشُوْرٍ ﴿۳﴾ وَالْبَيْتِ الْمَعْمُوْرِ ﴿۴﴾

قسم دے په طور[۱] باندې، او په داسے ښکاره کتاب باندې چه هغه په نرمه څرمن کښے ليکلے شوے[۲] دے، او په آباد کور[۳] باندې،

[۱] دَ طور اصلي معنیٰ ده غر۔ او دَ الطّور نه مُراد هغه خاص غر دے چه هلته الله تعالیٰ حضرتِ موسیٰ له پيغمبري ورکړې وه ۔

[۲] پخوا په زمانه کښے چه به کوم کتابونه اوکوم خطونه دَ ډيرے زمانے پورے محفوظ ساتل پکار وُو نو، هغه به دَ کاغذ په ځائے دَ هوسۍ په څرمن ليکلے کيدل ۔ دا څرمن به دَ ليکلو دَ پاره خاص طور نرمه کړے کيده او خلقو به ورته رَق وئيلو۔ اهلِ کتابو به توراة، زبور، انجيل او دَ پيغمبرانو صحيفے په دے رَق باندې ليکلو چه دَ ډيرے مودے پورے محفوظ پاتے شی ۔ دلته دَ ښکاره کتاب نه مُراد هم دا دَ مقدّس کتابونو مجموعه ده چه دَ اهلِ کتابو سره موجود وه ۔ هغې ته "ښکاره کتاب" ځکه وئيلے شوے دے چه هغه څه ورک کتاب نهٔ وُو، هرچا به لوستلو، او په آسانۍ سره به معلوميدله چه په هغې کښے څه ليکلے شوی دی ۔

[۳] دَ "آباد کور" نه مُراد دَ حضرت حسن بصری په نز بيت الله، يعنی خانه کعبه ده چه هيڅکله دَ حاجيانو نه، دَ عُمرے کونکو نه، او دَ طواف کونکو نه نهٔ خالی کيږی ۔ او حضرت علی، ابن عباس، عِکرِمه، مُجاهد، قَتاده، ضحّاک، ابن زيد او نورو مفسّرين وائی چه دَ دے نه مراد هغه بيتِ معمور دے چه دَ هغې ذکر دَ معراج په سلسله کښے نبی صلی الله عليه وسلم کړے دے، چه دَ هغې دَ ديوال سره هغه حضرت ابراهيم عليه السّلام ليد لے وُو چه ډډه ئے ورته وهلی وه ۔ مجاهد، قتاده او ابن زيد وائی چه لکه څنګه خانه کعبه دَ زمکے دَ خلقو دَ پاره دَ خدا پرستو خلقو مرکز دے، دغه شان په هر آسمان کښے دَ هغه آسمان دَ اوسيدونکو دَ پاره هم دغسے يوه کعبه ده چه هغه دَ الله دَ عبادت ګزارو خلقو دَ پاره دَ مرکز حيثيت لری۔ په دغه کعبو کښے يوه کعبه هغه وه چه دَ هغې ديوال ته حضرت ابراهيم عليه السّلام ډډه وهلی وه او نبی صلی الله عليه وسلم په معراج کښے ليد لے وُو، او دَ هغې سره دَ حضرت ابراهيم عليه السّلام مناسبت فطری وُو ځکه چه هغه دَ زمکے دَ کعبے جوړونکے وُو۔ په دے تشريح چه نظر اُوساتلے شی نو دا دويم تفسير دَ حضرت حسن بصری دَ تفسير نه مخالف کيږی نهٔ، بلکه دواړه چه رايو ځائے شی نو مونږ ترِ دا مطلب اغستلے شو چه دلته قسم يوازے دَ زمکے په کعبه نهٔ دے خوړلے شوے بلکه په دے کښے په هغه ټولو کعبو باندې قسم هم شامل دے چه هغه په ټول کائنات کښے موجود دی ۔

---

وَالسَّقْفِ الْمَرْفُوْعِ ﴿۵﴾ وَالْبَحْرِ الْمَسْجُوْرِ ﴿۶﴾ اِنَّ عَذَابَ رَبِّكَ لَوَاقِعٌ ﴿۷﴾ مَّا لَهٗ مِنْ دَافِعٍ ﴿۸﴾ يَّوْمَ تَمُوْرُ السَّمَآءُ مَوْرًا ﴿۹﴾

اوپه اُوچت چَت باندِ[۴]، اوپه چپووهونکی سمندر باندِ[۵]، چه ستا دَ رب عذاب خامخا را تلونکے دے دَ هغے هیڅوک دفع کونکے نشته[۶]. هغه به په هغه ورځ وی کله چه آسمان په سختئ سره اُوخوزیږی[۷]

[۴] دَ اُوچت چَت نه مراد آسمان دے چه دَ زمکے دَپاسه دَ گُمبد پشان خورشوے ښکاری او دلته دا لفظ دَ ټول عالمِ بالا دَپارهِ استعمال شوے دے (دَ تشریح دَ پاره اُوگوره تفهیم القرآن، پنځم جلد تفسیر دَ سورة قٓ، حاشیه نمبر ۷).

[۵] په اصل کښے لفظ اَلْبَحْرُ الْمَسْجُوْر استعمال شوے دے. دَدے ډیرے معنے بیان کړے شوی دی. ځینو مفسرینو دَ دے معنیٰ "دَ وُور نه ډک" کړی ده. ځینی وائی چه دَدے معنیٰ خالی سمندر دے چه دَ هغے اُوبه په زمکه کښے غیبے شوی وی. ځینی وائی چه دَ دے معنیٰ محبوس یعنی "بَند" ده، اودا مطلب ئے بیانوی چه سمندر را بند کړے شوے دے، نهٔ ئے اُوبه په زمکه کښے غائبیږی اونهٔ په اُوچه خوریږی چه دَ زمکے خلق ډوب کړی. ځینی وائی چه دَ دے معنیٰ مخلوط ده، په دے کښے خوږے، تروے، گرمے، یخے هرقیم اُوبهٔ وی. او ځینی وائی چه دَ دے معنیٰ ده ډک اوچپے وهونکے. په دے کښے اولنئ دوه معنے خودَ موقع اودَ محل سره سمُون نهٔ خوری. دَ سمندر دا دواړه حالتونه چه تَل ئے اُوشلیږی او اُوبهٔ په زمکه کښے غیبے شی اوهغه دَ وُورنه ډک شی، به دَ قیامت په وخت کښے ظاهریږی، لکه څنګه چه دَ سورة تکویر په آیت ۶ اودَ سورة انفطار په آیت ۳ کښے دَ دے بیان شوے دے. دَ را تلونکے زمانے حالت په دے وخت کښے موجود نهٔ دے چه په هغے قسم اُوخوړلے شی اودَ آخرت په را تلو باندِ دَ نن زمانے دَ خلقو یقین را وستلے شی. په دے وجه دَ دے دوو معنو په ځائے دلته دَ اَلْبَحْرِ الْمَسْجُوْر معنیٰ محبوس (یعنی را بَند)، مخلوط او ډک چپے وهونکے کیدے شی.

[۶] دا هغه حقیقت دے چه په هغے باندِ دَدے پنځو څیزونو قسم خوړلے شوے دے. دَ رب دَ عذاب نه مراد آخرت دے. چونکه دلته خبره په آخرت باندِ ایمان راوړونکو خلقوته نهٔ کیږی بلکه دَ آخرت نه انکارکونکو خلقوته کیږی، اودَ هغوی په حق کښے آخرت را تلل عذاب را تلل دی، نوپه دے وجه هغے ته دَ قیامت یا دَ آخرت یا دَ بَدلے دَ ورځے ویلو په ځائے دَ "رب عذاب" ویلے شوے دے. اُوس سوچ اوغور اُوکړئ چه دَ هغے په را تلو هغه پنځه څیزونه څنګه دلالت کوی په کوموچه قسم خوړلے شوے دے.

طُور هغه ځائے دے چه هلته دَ یو پریوتی قوم دَ اُوچتولو او دَ یو غالب اوظالم قوم دَ را غورزَولو فیصله اُوکړے شوه، اودا فیصله دَ طبیعی قانون (Physical Law) په بنیاد نهٔ بلکه دَ اخلاقی قانون (Moral Law) اودَ قانونِ مکافات (Law of Retribution) په بُنیاد باندِ وه. په دے وجه دَ آخرت په حق کښے دَ تاریخی دَلیل په طَور

طُور د يوے علامے په طور پيش کړے شوے دے۔ مطلب دا دے چه د بنی اسرائيلو غوندے يو بے وَسه قوم اُوچتول او د فرعون غوندے يو زبردست بادشاه د خپلو لښکريانو سره ډوبول، چه فيصله ئے د ښپے په څپه چپيا کښے په کوهِ طور کښے شوے وه، داپه انسانی تاريخ کښے د دے خبرے د ټولونه واضحه او صفا مثال دے چه د کائناتو نظام دا غواړی چه د انسان غوندے يو عقلمند او اختيارمند مخلوق سره دِ اخلاقی محاسبه اُوشی او هغهٔ له دِ د هغه د عمل بدله ورکړے شی، او د دے د پاره د حساب کتاب يوه داسے ورځ پکار او ضروری ده چه په هغې کښے ټول انسانان راجمع کړے شی او د هغوئ سره حساب کتاب اُوشی (د زياتے تشريح د پاره اُوګورئ تفهيم القرآن، پنځم جلد، تفسير د سورة ذاريات، حاشيه ٢١)۔

د مقدسو کتابونو په مجموعه باندِ قسم په دے وجه خوړلے شوے دے چه د الله تعالیٰ د طرفنه دُنيا ته څومره پيغمبران راغلی دی او هغوی د ځان سره څومره کتابونه راوړی دی، هغوئ ټولو په هره زمانه کښے هم دغه يوه خبره کړی ده کومه چه محمد صلی الله عليه وسلم کوی، يعنی دا چه وړاندِ روستو ټول انسانان به يوه ورځ د نوی سرنه بيا راژوندی کيږی او خپل خدائے ته به د حساب کتاب د پاره حاضريږی او د خپلو عملونو مطابق به جزا يا سزا مومی۔ يو آسمانی کتاب داسے نهٔ دے راغلے چه په هغې کښے دا خبره نهٔ وی، يا په هغې کښے انسان ته دا خبره شوی وی چه ژوند هم بس دا د دُنيا ژوند دے، او انسان چه مړ شی نو بس خاورے شی د هغې نه روستو بيا څه حساب کتاب نشته۔

د بيتِ مَعْمُور قسم په دے وجه خوړلے شوے دے چه خاص طور د عربو د خلقو د پاره په هغه زمانه کښے خانه کعبه يوه داسے ښکاره نښه وه چه هغې د پيغمبرانو په صداقت باندِ ګواهی کوله او په دے حقيقت باندِ ئے ګواهی کوله چه د هغې په شا باندِ د الله تعالیٰ لوئ طاقت او حکمت دے۔ د دے آيتونو د نازليدو نه دوه نيم زره کاله مخکښے يو سړے بے لښکره او بے سازوسامانه داسے غيرآباد غرونو ته راځی چه نهٔ پکښے اُوبهٔ شته او نهٔ شينکے او هغه خپله يوه ښځه او يو د تی ماشوم بچے بے اسرے پريږدی او واپس ترځی۔ بيا څه موده روستو هم دغه سړے راځی او په دغه خوشې ځائے کښے د الله تعالیٰ د عبادت د پاره يو کور جوړوی او آواز کوی چه اے خلقو را شئ، او د دے کور حج اوکړئ۔ دغه کور او دغه آواز په عجيبه طريقه خوريږی او دغه کور د ټولو عربيانو مرکز جوړيږی، او په دغه آواز خلق د عربو د هر کوټ نه لَبَّيْكَ لَبَّيْكَ وائی او راځی۔ د دوه نيم زره کاله پورے دا کور د امن داسے مقام وی چه چار چاپيره په ټول ملک کښے جنګ جګړے کيږی خو د دے کور حد ته چه را اُورَسی نو څوک په چا لاس نهٔ شی اُوچتولے، او د دے کور په وجه په هر کال کښے څلور مياشتے د عربيانو د پاره داسے امن وی چه په هغې کښے قافلے په اطمينان سره سفر کوی، تجارتونه کيږی او بازارونه لګی۔ بيا د هغه کور دا شان او دبدبه وه چه د غټونه غټ ظالم به هم هغې ته په ورانو سترګو نهٔ شو کتلے، او چا چه ورته په بد نيت کتلی وُو هغوئ د الله په غضب کښے داسے راګير شو چه د عبرت نښه ترجوړه شوه۔ دا کارنامه د دے آيتونو د نازليدو نه صرف پنځه شپږ کاله مخکښے خلقو په خپلو سترګو ليدلی وه، او کله چه دا آيتونه د مکے خلقو ته اوروَلے کيدل نو په هغه وخت کښے ډير خلق په مکهٔ معظمه کښے داسے موجود وُو چه هغوی دا حالت په خپلو سترګو ليدلے وُو۔ د دے نه زيات بل څه څيز د دے خبرے دليل کيدے شو چه د خدائے پيغمبران هوائی خبری نهٔ کوی۔ هغوئ هر هغه څه وينی چه نور څوک ئے نهٔ شی ليدلے۔ هغوی هر هغه څه وائی چه هغې ته د بل چا عقل نهٔ شی رسيدے۔ هغوئ په ظاهره داسے کارونه کوی چه هغه د يو وخت خلق اُووينی نو ليونتوب ئے ګڼی او

چه د سوونو کالو روستنی خلق ورته اوګوری نو د هغوی پوهے ته حق حیران پاتے شی ۔ د داسے شان خلق چه کله په اتفاق سره په هره زمانه کښے دا خبره کوی چه قیامت به راځی او حشر نشر به کیږی نو دا لیونتوب ګڼل پخپله لیونتوب دے ۔

په اوچت چت (یعنی په آسمان) او په چپو وهونکی سمندر قسم ځکه خوړلے شوے دے چه دا دواړه څیزونه د الله په حکمت او د هغه په قدرت دلالت کوی او د دے حکمت او قدرت نه د آخرت امکان هم ثابتیږی او د آخرت راتلل هم ۔ د آسمان په دلالت باندے د دے نه مخکښے مونږه د سورة ق په تفسیر حاشیه ۷ کښے خبری کړی دی ۔ پاتے شو سمندر، نو هر هغه څوک چه د انکار فیصله ئے د مخکښے نه په خیال کښے نه وی کړے نه د غور په نظر سره اوګوری نو د هغه زړه به دا ګواهی ورکوی چه په زمکه کښے دومره ډیرے اوبه سائل پخپل ځائے یوه داسے کاریګری ده چه هغه هیڅکله د یوے اتفاقی حادثے نتیجه نه شی کیدے ۔ بیا د هغے سره دومره بے شماره حکمتونه تړلے شوی دی چه اتفاقاً داسے حکمتی نظام قائمیدل ممکن نه دی ۔ په سمندر کښے بے حسابه ځناور پیدا کړے شوی دی د هر قسم ځناور جسمانی نظام ټیک د هغه ژور والی مناسب جوړ کړے شوے دے په کوم کښے چه هغه اوسی ۔ د هغے اوبه مالګینے جوړے کړے شوی دی د پاره د دے چه په هغے کښے روزانه کوم په کروړونو ځناور مره کیږی چه هغه تښخانه شی ۔ د هغے اوبه د یو خاص حده پورے په داسے طریقه راښندے کړے شوی دی چه نه خو هغه د زمکے په درزونو کښے ښکته د زمکے خیټے ته کوزیږی او نه وچے ته راخیږی، بلکه د لکونو کروړونو کلونو راسے هم په دغه یو حد ولاړے دی ۔ د دے دومره ډیرو اوبو د برقرار پاتے کیدو سره د زمکے په وچه حصه باندے د باران انتظام کیږی چه په هغے کښے د نمر ګرمی او د هوا ګانو چلن د هغے سره برابر امداد کوی ۔ د هغے د آبادیدو او په هغے کښے د قسما قسم مخلوقاتو د پیدا کیدو نه دا فائده حاصله شوی ده چه انسان د هغے نه خپل خوراکونه او د خپل ضرورت ډیر څیزونه په زیات مقدار کښے حاصلوی ۔ په یو حد باندے د سمندر د اوبو ودریدو د وجے نه د زمکے هغه وچے حصے قائمے دی چه په هغے انسانان اوسیږی ۔ او د سمندر اوبه چه د کومے خاصے قاعدے په سختئ سره پابندی کوی د هغے د وجے نه د اوبو په مخ د کشتئ او د جهازونو چلول ممکن شوی دی ۔ د یو حکیم د حکمت او د یو طاقتور د طاقت نه بغیر دا انتظام د چا په خیال کښے هم نه شی راتلے او نه دا د چا په خیال کښے راتلے شی چه د انسان او د زمکے د نورو مخلوقاتو د مفادو سره د سمندر د دے انتظام دا ژور تعلق بس په اټکل باندے قائم شوے دے ۔ اوس که چرے واقعی دا د دے خبری یو مضبوط شهادت دے چه یو حکیم او قادر خدائے په زمکه باندے د انسان د آبادولو د پاره د نورو بے شمارو انتظامونو سره دا مالګین سمندر هم د دے شان سره پیدا کړے دے نو هغه سړے به سخت بے وقوف وی چه د هغه حکیم ذات نه د دے بے وقوفتیا امید لری چه هغه خو به د دے سمندر په ذریعه د انسان د فصلونو اوبه کولو او د هغے په ذریعه انسان له د رزق ورکولو انتظام کوی لیکن د انسان نه به هیڅکله دا تپوس نه کوی چه تا ځما د رزق حق څنګه ادا کړو، او هغه خو به د سمندر په سینه باندے انسان له د کشتئ او د جهازونو زغلولو قدرت ورکوی لیکن د هغه نه به دا تپوس هیڅکله نه کوی چه تا دا کشتئ او جهازونه د حق د پاره زغلولی وو او که د دے په ذریعه دے په دُنیا کښے لوټ مار کړے وو ۔ دغه شان دا خیال کول هم ډیره د بے عقلئ خبره ده چه د کوم قادر خدائے د قدرت

وَّتَسِیْرُ الْجِبَالُ سَیْرًا ﴿۱۰﴾ فَوَیْلٌ یَّوْمَىِٕذٍ لِّلْمُكَذِّبِیْنَ ﴿۱۱﴾ الَّذِیْنَ هُمْ فِیْ خَوْضٍ یَّلْعَبُوْنَ ﴿۱۲﴾ یَوْمَ یُدَعُّوْنَ اِلٰى نَارِ جَهَنَّمَ دَعًّا ﴿۱۳﴾ هٰذِهِ النَّارُ الَّتِیْ كُنْتُمْ بِهَا تُكَذِّبُوْنَ ﴿۱۴﴾

اوغرونه به په هوا گرزی[۸] - تباهی ده په هغه ورځ دَ هغه دروغ گڼرونکو خلقو دَ پاره چه هغوی نن دَ لوبو په طور په خپلو دلیل بازوکښې مشغوله[۹] دی - په کومه ورځ چه هغوی دَ دوزخ وُور ته په دیکو دیکو بوتللے کیږی په هغه وخت به هغوئ ته اُووئیلے شی چه " دا هم هغه وُور دے کوم چه به تاسو دروغ گڼړلو ،

دا یوه ادنیٰ کارنامه ده چه دا عظیم الشان سمندرے ئے پیدا کړے دے، چه هغه په دے آویزانه او چُوړلیدونکی زمکه باندِ دَ اوبو دومره لویه ذخیره را بنده کړی ده ، چه هغه دومره ویره مالکه په دے کښې ویلی کړی ده ، چه هغه په دے کښې قِسما قِسم بے شماره مخلوق پیدا کړی دی او دَ هغوی دَ روزئ انتظام ئے په هغې کښې دَ تنه کړے دے ، چه هغه هر کال په اربونو ټنه اُوبهٔ دَ دِے نه اُوچتوی او دَ هوا په ذریعه ئے وُچو علاقو ته وُړی او هلته په باقاعدگئ سره بارانونه وَرَوِی ، نو هغهٔ اگرچه انسان یو ځل پیدا کړے دے خو بیا دوباره ئے که پیدا کول غواړی هم نو نهٔ ئے شی پیدا کولے -

[۷] اصل الفاظ دی تَمُوْرُ السَّمَآءُ مَوْرًا - مَور په عربئ ژبه کښې چُور لیدو، لوټ کاڼی اړَولو ، تالئ وهلو ، چور لکونو خوړلو او بار بار مخکښې روستو کیدو ته وئیلے شی - دَ قیامت په ورځ چه به دَ آسمان څه حالت وی هغه په دے الفاظو سره بیان کړے شوے دے او دے خبری ته دَ انسان فکر راگرزولے شوے دے چه په هغهٔ ورځ به دَ عالَم بالا ټول نظام گډوډ شی او کتو نکی چه کله آسمان ته گوری نو هغه ته به دا سے ښکاری چه هغه مضبوطه نقشه چه همیشه به په یو شان سره ښکاریدله بالکل گډه وډه شوی ده او هر طرف ته آړے گړے شروع دے -

[۸] یعنی دَ زمکے هغه تړون چه غرونه ئے را ټینگ کړی دی ، هغه به پرانستے شی او غرونه به دَ ویخ نه راوځی او په هوا کښې به دا سے آلوزی لکه چه وریځے الوزی -

[۹] مطلب دا دے چه دَ نبیؐ نه کله دَ قیامت او دَ آخرت او دَ جنت او دَ دوزخ خبری واوری نو په هغې پورے ټوقے کوی او په هغې باندِ دَ سوچ فکر کولو په ځائے دَ ځان خوشحالولو دَ پاره په هغې پورے خندا گانے کوی - هغوی چه په آخرت باندِ بحثونه کوی نو دَ دے نه دَ هغوی مقصد په حقیقت باندِ دَ ځان پوهه کولو کوشش نهٔ وی بلکه یوه لوبه ده چه خپل زړونه پرِ خوشحالوی او دَ هغوی وِ ے ته هیڅ فکر نشته چه په حقیقت کښې هغوی دَ کوم انجام سره مخ کیدو ته روان دی -

أَفَسِحْرٌ هَٰذَا أَمْ أَنتُمْ لَا تُبْصِرُونَ ﴿١٥﴾ اصْلَوْهَا فَاصْبِرُوا أَوْ لَا تَصْبِرُوا سَوَاءٌ عَلَيْكُمْ ۖ إِنَّمَا تُجْزَوْنَ مَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ ﴿١٦﴾ إِنَّ الْمُتَّقِينَ فِي جَنَّاتٍ وَنَعِيمٍ ﴿١٧﴾ فَاكِهِينَ بِمَا آتَاهُمْ رَبُّهُمْ وَوَقَاهُمْ رَبُّهُمْ عَذَابَ الْجَحِيمِ ﴿١٨﴾ كُلُوا وَاشْرَبُوا هَنِيئًا بِمَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ ﴿١٩﴾ مُتَّكِئِينَ

اُوس اُووايئ چه دا جادو دے اوکه تاسوته په نظر نهٔ راځی؟[10] ځئ اُوس سوزئ په دے کښے، تاسوکه صبر کوئ اوکه نهٔ کوئ، دواړه تاسوله يو برابر دی، تاسوله هم هغسے بدله درکړے کيږی لکه څنګه چه به تاسو عمل کوؤ۔

متقيان خلق[11] به هلته په باغونو او نعمتونو کښے وی، مزے به اخلی د هغه څيزونو نه کوم چه به ورله خپل رب ورکوی، او خپل رب به ئے د دوزخ د عذاب نه بچ کړی[12] (هغوی ته به اووئيلے شی) ښه په مزه سره خورئ څکئ[13] د خپلو هغو عملونو په بدله کښے کوم چه به تاسوکول۔ هغوی به يو بل ته مخامخ په غوړيدلو

[10] يعنی په دُنيا کښے چه به کله رسول تاسو د دے دوزخ د عذاب نه يرَوَلئ نو تاسو به وئيل چه دا هسے د خبرو جادو وګری ده چه زمونږ نه پرے وقوفان جوړوی۔ اُوس اُووايئ چه داکوم دوزخ ستاسو مخے ته دے آيا دا د هغه جادوګار نامه ده او که اُوس هم ستاسو په عقل کښے نهٔ راځی چه واقعی دا هم هغه دوزخ د ے د کوم خبر چه به تاسوته درکړے کيدو۔

[11] يعنی هغه خلق چه هغوی په دُنيا کښے د پيغمبرانو په خبره ايمان راوړو او خپل ځان ئے بچ کړو او د هغه فکرونو او کارونو نه ئے پرهيز اوکړو چه په هغے سره انسان د دوزخ مستحق کيږی۔

[12] جنت ته د داخلولو د ذکر کولو نه روستو بيا د دوزخ نه د بچ کولو ذکر په ظاهره بے حاجته ښکاری۔ ليکن په قرآن مجيد کښے په ډيرو ځايونو کښے دا دواړه خبرے په دے توجه جُدا جُدا بيان کړے شوی دی چه د دوزخ نه د بچکيدل پخپل ځائے يو ډير لوئ نعمت دے او دا فرمان چه " الله هغوی د دوزخ د عذاب نه بچ کړل " په اصل کښے اشاره ده دے حقيقت ته چه د دوزخ نه بچکيدل هم خاص د الله په فضل سره کيدے شی، ګنی د انسانی کمزورياګانو د هرسړی په عمل کښے داسے خاميانے را پيدا کوی چه که چرے الله تعالیٰ په خپله مهربانئ سره هغه معاف نهٔ کړی او سخت حساب کتاب ورسره شروع کړی نو هيڅوک هم د سزا نه نهٔ شی بچ کيدے۔ دا وجه ده چه جنت ته ننوتل د الله تعالیٰ څومره لوئ نعمت دے د هغے نه کم نعمت دا نهٔ دے چه سړے د دوزخ نه بچ کړے شی۔

عَلٰى سُرُرٍ مَّصْفُوْفَةٍ ۚ وَزَوَّجْنٰهُمْ بِحُوْرٍ عِيْنٍ ﴿۲۰﴾ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَاتَّبَعَتْهُمْ ذُرِّيَّتُهُمْ بِاِيْمَانٍ اَلْحَقْنَا بِهِمْ ذُرِّيَّتَهُمْ وَمَآ اَلَتْنٰهُمْ مِّنْ عَمَلِهِمْ مِّنْ شَيْءٍ ۚ كُلُّ امْرِئٍۢ بِمَا كَسَبَ

تختونو باند پرتې وي او ناست به وي او مونږ به د ښایسته سترګو حورې هغوی ته واده کړو. [۱۴] کومو خلقو چه ایمان راوړی دې او د هغوی اولاد هم د ایمان په یوه درجه کښې د هغوی په قدم پسې تلی دی نو د هغوی هغه اولاد به هم مونږه (په جنت کښې) د هغوی سره یو ځائې کړو او د هغوی په عمل کښې به هغوی له څه نقصان نهٔ ورکوو. [۱۵] هر سړے د خپلې ګټې په بدله کښې

[۱۳] د دلته لفظ "بنهٔ په مزه سره" ډیر فراخه مطلب لري. په جنت کښې چه انسان ته څه ملاویږي هغه به بې محنته بې مشقته هغه ته ملاویږي. د هغې د ختمیدو یا په هغې کښې د کمي راتلو هیڅ یره به نهٔ وي. د هغې د پاره به انسان هیڅ نهٔ خرچ کوي. هغه به بالکل د هغه د خواهش او د هغه د زړهٔ مطابق وي. څومره چه غواړي او کله چه غواړي هغومره به په هغه وخت حاضرېدې کېږي. هلته به هغه د میلمه په طور نهٔ وي چه په څه غوښتلو سره به شرمیږي بلکه ټول هر څه به د هغه د خپلو عملو بدله وي او د هغهٔ د خپلې ګټې نفع به وي. د هغه د خوراک څکاک نه به چاته د مرض خطره نهٔ وي. هغه به د لوږې ختمولو د پاره نهٔ وي بلکه صرف د خوند حاصلولو د پاره به وي او سړے چه تر څومره خوند حاصلول غواړي هغومره به حاصلولے شي او د هغې د وجې نه به پرې بد هضمي نهٔ راځي. او هغه خوراک به څه قسم کندګي هم نهٔ پیدا کوي. دا وجه ده چه په دُنیا کښې د مزه ناک خوراک څکاک کوم مطلب دے په جنت کښې به د مزه ناک خوراک څکاک مطلب د هغې نه په څو چنده اعلیٰ او اوچت وي.

[۱۴] د تشریح د پاره اُوګورۀ تفهیم القرآن څلورم جلد، تفسیر د سورۃ الصّافات حاشیې ۲۶ - ۲۹ - الدّخان، حاشیه ۴۲.

[۱۵] دا خبره د دې نه مخکښې د سورۃ رعد په آیت ۲۳ کښې او د سورۃ مومن په ۸م آیت کښې تېره شوې ده، لیکن دلته د هغه دواړو ځایونو نه هم یوه ویره زیاته خوشخبري اوروله شوې ده. د سورۃ رعد په آیت کښې صرف دومره خبره شوې وه چه د جنتیانو په پلار نیکونو کښې او د هغوی په اولاد کښې او د هغوی په بیبیانو کښې چه کوم خلق نیکان صالحان وي هغوی به ټول د هغوی سره جنت ته ننوزي. او په سورۃ مؤمن کښې ویلے شوي وُو چه فرښتې د مومنانو په حق کښې د الله تعالیٰ نه دُعا غواړي چه د هغوی په اولاد کښې او د هغوی په بیبیانو کښې او د هغوی په پلارانو کښې کوم صالحان وي هغوی هم په جنت کښې د هغوی سره یو ځائې کړې. دلته د دې دواړو آیتونو نه زیاته کومه خبره چه شوې ده هغه دا ده چه که چرې اولاد د ایمان د څه نه څه درجه کښې هم د خپلو پلارانو پیروي کړې وي، نو اګر چه هغوی به د خپل عمل په لحاظ سره د هغې مرتبې حقدار نهٔ وي کومه مرتبه چه د هغوی پلارانو ته د هغوی د ښه ایمان او د ښه عمل په وجه حاصله شوې وي، خو بیا به هم دا اولاد د خپلو پلارانو سره

رَهِيْنٌ ﴿٢١﴾ وَاَمْدَدْنٰهُمْ بِفَاكِهَةٍ وَّلَحْمٍ مِّمَّا يَشْتَهُوْنَ ﴿٢٢﴾

کانړه[16] دے۔ مونږ به هغوئ له هر قِسم میوے او غوښے[17]، او چه څه څیز د هغوئ زړه غواړی، ډیر ډیر ورکوُو۔

یوځائے کړے کیږی۔ او دا یوځائے کیدل به دا سے نهٔ وی لکه څنګه چه څوک وخت په وخت دَچا سره ملاقات کوی، بلکه دَ دے دَپاره اَلْحَقْنَا بِهِمْ الفاظ استعمال کړے شوی دی چه دَ هغے مطلب دا دے چه هغوی به په جنّت کښے دَ هغوئ سره یوځائے ساتلے کیږی۔ او په دے دَپاسه دا تسلّی ورکړے شوی ده چه دَ اولاد سره دَ ملاویدو دَ پاره به پلاران لاندِ درجے ته نهٔ راکوزولے کیږی، بلکه دَ پلارانو سره دَ ملاویدو دَپاره به اولاد بره درجے ته رسَوَلے کیږی۔

دلته په دے خبره هم ځان پوهه کول پکار دی چه دا حکم دَ هغه بالغ اولاد په باره کښے دے چه هغوی ځلمیتوب ته رسیدلی وی او په خپل اختیار او په خپلے اراده سره یئے دَ ایمان راوړلو فیصله کړی وی او چه هغوی په خپله مرضئ سره دَ خپلو نیکانو مشرانو په نقش قدم تلی وی۔ پاتے شو دَ یو مومن هغه اولاد چه هغوی ځلمیتوب ته دَ رسیدو نه مخکښے مړه شوی وی نو دَ هغوی په معامله کښے دَ کفر او دَ ایمان دَ حکم منلو او نهٔ منلو هډو څه خبره نشته۔ هغوی خو به هسے هم جنّت ته ځی او دَ هغو دَ پلارانو دَ خوشحالئ دَپاره به دَ هغوی سره وُسی۔

[16] دلته دَ لفظ "رهن" استعمال دَ معنیٰ نه ډک دے۔ یو سړے چه دَ چانه قرض واخلی او قرض ورکونکے دَ ضمانت په طور دَ هغه نه څه څیز دَ ځان سره کانړه کیږدی نو تر څو چه قرض اغستونکی قرض نهٔ وی ورکړے ترهغے قرض غوښتونکے کانړه نهٔ ورکوی، او که چرے دَ مقررے نیټے دَ تیریدو نه روستو هم هغه خپله کانړه خلاصه نهٔ کړی یعنی قرض ورنهٔ کړی نو هغه کانړه شوے څیز ضبط شی۔ دَ انسان او دَ خدائے په منځ کښے دَ معاملے تشبیه په دے طریقه ورکړے شوی ده۔ الله تعالیٰ چه انسان له کوم څیزونه، کوم طاقتونه او صلاحیتونه او کوم اختیارات په دُنیا کښے ورکړی دی هغه لکه یو قرض دے چه مالک خپل بنده له ورکړے دے، او دَ دے قرض په ضمانت کښے دَ بنده نفس دَ خدائے سره کانړه دے۔ بنده که چرے دا څیزونه او دا طاقتونه او دا اختیارات په صحیح طریقه استعمال کړی او هغه نیکی او ګټی چه په هغے دا قرض ختمیدے شی نو هغه به خپل کانړه شوے نفس آزاد کړی، کنے نو دا به ضبط کړے شی۔ په تیر شوی آیت پسے جوخته دا خبره ځکه اوکړے شوه چه مومنان صالحان که په خپل ځائے هر څومره دَ لوئے مرتبے خلق وی خو دَ هغوی دَ اولاد دَ کانړه بغیر دَ دے نه نهٔ شی خلاصیدے چه هغوی په خپله محنت سره خپل نفس آزاد کړی۔ دَ پلار نیکه په ګټه اولاد نهٔ شی آزادیدے البته اولاد که چرے دَ ایمان په یوه درجه سره او دَ نیکانو خلقو په پیروئ سره خپل ځان آزاد کړی نو بیا دا دَ الله فضل او کرم دے چه په جنت کښے هغوی دَ پلار نیکه سره دَ ملاویدو دَ پاره دَ لاندِ مرتبے نه اوچتے مرتبے ته بوځی۔ دَ پلار نیکه دَ نیکو دا فائده خو اولاد ته ملاویدے شی، لیکن که چرے هغه په خپل عمل سره خپل ځان دَ دوزخ مستحق کړی نو دا څنګه کیدے شی چه هغوی دَ پلار نیکه دَ خاطره جنت ته اُو رسولے شی۔ دَ دے سره دا خبره هم دَ دے آیت نه راوځی چه دَ

يَتَنَازَعُونَ فِيهَا كَأْسًا لَّا لَغْوٌ فِيهَا وَلَا تَأْثِيمٌ ﴿٢٣﴾ وَيَطُوفُ عَلَيْهِمْ غِلْمَانٌ لَّهُمْ كَأَنَّهُمْ لُؤْلُؤٌ مَّكْنُونٌ ﴿٢٤﴾ وَأَقْبَلَ بَعْضُهُمْ

هلته به هغوئ دَ شرابو جام دَ يو بل نه په لاس لاس کښې زَر زَر زغلَوی ـ چه په هغ کښې به نۀ اَوتے بَوتے وی اونۀ به پکښې بدکردارئ[18] وی ـ او دَ هغوئ په خدمت کښې به هغه هلکان منډې وهی چه هم دَ هغوئ دَ پاره به خاص کړے شوی[19] وی ، داسے ښائیسته لکه پټے ساتلی شوی ملغلرې ـ دا خلق به په خپلو کښې دَ يو بل نه ( دَ دُنیا دَ تیر و شوو ) حالاتو

کے درجے نیکان اولاد دَ لوئ درجے نیکانو پلارانو سره یوځائے کول په اصل کښې دَ هغه اولاد دَ عمل نتیجه نۀ ده بلکه دَ هغه پلارانو دَ عمل نتیجه ده ـ هغوی به په خپل عمل سره دَ الله تعالیٰ دَ دے فضل مستحق وی چه دَ هغوی دَ زړه خوشحالولو دَ پاره ئې دَ هغوئ اولاد دَ هغوئ سره یوځائے کړے شی ـ په دے وجه الله به دا سے نۀ کوی چه دَ پلارانو درجه به کمه کړی او دَ اولاد خواله به ئې بوځی بلکه دَ اولاد درجه به اُوچته کړی او دَ پلارانو خواله به ئې بوځی ، دَ پاره دَ دے چه دَ نعمتونو مستحق پلاران دَ خپل اولاد نه په جُدا کیدو خفگان اُونۀ کړی او دَ خدائے په نعمتونو کښې دَ دے نعمت کمے پاتے نۀ شی ـ

[17] په دے آیت کښې جنتیانو ته مطلقاً دَ هر قِسم غوښے ورکولو ذکر شوے ، او دَ سورۃ واقعه په آیت ۲۱ کښې فرمائیلے شوی دی چه جنتیانوله به دَ مرغوغوښے ورکړے کیږی ـ دا خبره مونږ ته ټیک ټیک معلومه نۀ ده چه دا به څه قِسم غوښه وی ـ لیکن دَ قرآن په څینو بیاناتو کښې او په څینو احادیثو کښې دَ جنّت دَ میوو په حقله وئیلے شوی دی چه هغه به دَ ځارو دَ تیونو نۀ وی راوتلی ، او دَ جنت دَ شهدُ په حقله وئیلے شوی دی چه هغه به مچو نۀ وی جوړ کړی ، او دَ جنّت دَ شرابو په حقله وئیلے شوی دی چه هغه به دَ میوو څخوړ شوی اُو به نۀ وی بلکه دَ الله په قدرت سره به دا چینو نه دَ چینونه را اُوزی او په نهرونو کښه به بهیږی ، دَ دے نه سړے دا قیاس لګولے شی چه دَ جنّت غوښه به هم دَ ځارو غوښه نۀ وی بلکه دا به هم قدرتی طور پیدا کیږی ـ کوم خدائے چه دَ زمکے دَ څیزونو نه نیغ په نیغه پئ ، شهد او شراب پیدا کولے شی دَ هغه دَ قدرت نه دا بعید نۀ ده چه دَ هغه څیزونو نه داسے خوند ناکه غوښه پیدا کړی چه هغه دَ ځارو دَ غوښے نه هم په خوند کښې زیاته بهتره وی ( دَ زیاتے تشریح دَ پاره اُوګوره تفهیم القرآن څلورم جلد ، تفسیر دَ سورۃ صافات ، حاشیه ۲۵ ـ پنځم جلد ، تفسیر دَ سورۃ محمد ، حاشیے ۲۱ تا ۲۳ ) ـ

[18] یعنی هغه شراب به نشه نۀ راولی چه سړے اُوځکی نو کنی نشه کیږی به او فضول بکواس به کوی ، یا به شور شغف او کنځلے کوی ، یا به هغسے کار و نه کوی لکه څنګه چه په دُنیا کښې یو شرابی سړے کوی ـ ( دَ زیاتے تشریح دَ پاره اُوګوره تفهیم القرآن څلورم جلد ، تفسیر دَ سورۃ صافات ، حاشیه ۲۷ ) ـ

[19] په دے ټکی غور پکار دے چه غِلْمَانُهُمْ نۀ بلکه غِلْمَانٌ لَّهُمْ فرمائیلے شوے دے ـ که غِلْمَانُهُمْ وئیلے شوے وے نو دا ګمان کیدے شو چه په دُنیا کښې دَ هغوی کوم خادمان وُو هم هغوی به په جنت کښې دَ هغوی خادمان وی ، حالانکه دَ دُنیا کوم سړے چه جنّت ته ځی هغه به دَ خپل عمل په وجه ځی او دا کیدے نۀ شی چه څوک جنّت ته لاړ شی هغه به هم

عَلٰى بَعْضٍ يَّتَسَآءَلُوْنَ ﴿۲۵﴾ قَالُوْٓا اِنَّا كُنَّا قَبْلُ فِىْٓ اَهْلِنَا مُشْفِقِيْنَ ﴿۲۶﴾ فَمَنَّ اللّٰهُ عَلَيْنَا وَوَقٰىنَا عَذَابَ السَّمُوْمِ ﴿۲۷﴾ اِنَّا كُنَّا مِنْ قَبْلُ نَدْعُوْهُ ؕ اِنَّهٗ هُوَ الْبَرُّ الرَّحِيْمُ ﴿۲۸﴾ فَذَكِّرْ فَمَآ اَنْتَ بِنِعْمَتِ رَبِّكَ بِكَاهِنٍ وَّلَا مَجْنُوْنٍ ﴿۲۹﴾

تپوسونه کوی۔ دوی به وائی چه مونږ به مخکښے د خپل کور په خلقو کښے په یره یره ژوند تیروُو، آخر چه الله را باندِ فضل اُوکړو او مونږه ئے د سوزوُنکے[۲۱] هوا د عذاب نه بچ کړو۔ مونږ به په تیرشوی ژوند کښے هم د هغهٔ نه دُعاگانے غوښتلے، واقعی چه هغه ډیر احسان کوُنکے او رحم کوُنکے دے۔ ع

نو اے نبیؐ، تهٔ نصیحت کوه، تهٔ د خپل رب په فضل سره نهٔ کاهن ئے او نهٔ لیونے۔[۲۲]

د هغه خپل نا ئیک نوکروی د کوم چه دهٔ په دُنیا کښے خدمت کولو۔ بلکه دا هم کیدے شی چه یو نوکر د خپل عمل په وجه د خپل نا ئیک په نسبت اُوچته مرتبه په جنّت کښے حاصله کړی۔ په دے وجه غِلْمَانٌ لَّهُمْ استعمال کړے شوا ود دے گمان را تلو گنجائیش ئے پرِنهٔ ښودو۔ دا لفظ د دے خبری څرگندونه کوی چه دا به هغه هلکان وی چه په جنّت کښے به د هغوی د خدمت د پاره خاص کړے شوی وی ( د زیاتے تشریح د پاره اُوگوره تفهیم القرآن څلورم جلد، تفسیر د سورة صافّات، حاشیه ۲۶ )۔

[۲۰] یعنی مونږه هلته د دُنیا په عیش عشرت کښے اخته نهٔ وُو چه کنی د غفلت ژوند مو تیر وُو، بلکه زمونږ سره به هر وخت دا یره وه چه چرته دا سے کار رانه اُونهٔ شی چه په هغے مونږه خدائے را اونیسی۔ دلته خاص طور د خپل کور په خلقو کښے په یره یره د ژوند تیرولو ذکر په دے وجه شوے دے چه سړے د ډیرو لو نه زیات په کومه وجه په گناهونو کښے اخته کیږی هغه د خپل بال بچ د عیش او د هغوی د دُنیا جوړولو فکر دے۔ هم د دوی د پاره سړے حرام گټی، د بل حقونه ځان ته راکاږی او قِسما قِسم ناجائیزه کارونه کوی۔ په دے وجه جنتیان به په خپلو کښے وائی چه خاص طور د کوم څیز په وجه مونږ د خراب انجام نه بچ شو هغه دا وُو چه مونږ به په دُنیا کښے کله د خپل بال بچ سره ژوند تیروُو نو زمونږ سره به د هغوی د عیش او د هغوی د دُنیا جوړولو فکر دومره نهٔ وُو لکه څومره چه به راسره د دے خبری فکر وُو چه چرته د هغوی د خاطره هغه لارے چارے اختیار نهٔ کړو چه په هغے مو آخرت برباد شی، او خپل اولاد هم په دا سے لار روان نهٔ کړو چه هغوی پرِ د عذاب مستحق شی۔

[۲۱] په اصل کښے لفظ سَمُوم استعمال شوے دے چه معنیٰ ئے سخته گرمه هوا ده۔ د دے نه مُراد د گرمے هوا هغه شُغلے دی چه د دوزخ نه به اُوچتیږی۔

[۲۲] د آخرت په حقله د بحث کولو نه روستو اُوس خبره د مکے کافرانو ته را اوړیده۔

د مکې کافرانو چه د رسول الله صلی الله علیه وسلّم د دعوت په مقابله کښې کوم ضد تېنګ کړے وُو اُوس په هغې بحث کیږی۔ دلته په ظاهر خو خبره نبیؐ ته ده لیکن په اصل کښې دا خبرې د هغه په واسطه سره د مکې کافرانو ته اَوروَل مقصد دی۔ هغوی ته چه به کله نبیؐ د قیامت، د حشر نشر د حساب کتاب او د جزا سزا او د جنت دوزخ خبرې کولے، او د دے مطابق چه به ورته هغه د قرآن مجید آیتونه اَوروَل او دا دعویٰ به ئے کوله چه دا خبرې ما ته د الله تعالیٰ د طرفنه راغلی دی او دا د الله کلام دے چه په ما باندِ د وحی په ذریعه نازل شوے دے، نو د هغوی سردارانو او مذهبی مشرانو او غنډه کانو خلقو به د هغه په دے خبرو د پوهے په غرض نۀ پخپله غور کولو، او نۀ به ئے دا غوښتله چه عام خلق دِ دے خبرو ته توجه اُوکړی۔ نو په دے وجه هغوی به کله وئیل چه دے کاهن دے او کله به ئے وئیل چه دے لیونے دے او کله به ئے وئیل چه دے شاعر دے، او کله به ئے وئیل چه دے د ځانه نا آشنا خبرې جوړوی او بیا وائی چه دا خدائے وحی نازله کړی ده۔ د هغوی دا خیال وُو چه په دے خبرو به هغوی خلق د هغه نه بدګمانه کړی او د هغه ټولے خبرې به بے اثره شی۔ په دے حقله فرمائی چه اے نبی، واقعی حقیقت خو هم دغه دے کوم چه د سورة د شروع نه د دے ځائے پورے بیان شوے دے، اُوس که چرے دا خلق په دے خبرو تا ته کاهن او لیونے وائی نو هیڅ پروا مه کوه او د خدائے بندګان د غفلت نه بیدار وه او د حقیقت نه ئے خبردار وه، ځکه چه د خدائے په فضل سره نۀ ته کاهن ئے او نۀ لیونے۔

کاهن په عربئ ژبه کښې جوتګی، غیب ویونکی او چالاک سړی ته وائی۔ د جاهلیت په زمانه کښې دا یوه مستقله پیشه وه۔ کاهنانو به دعویٰ کوله، او د کمزورے عقیدِے خلقو به هم د هغوی په حقله دا سے ګڼړله چه هغوی د ستورو په حالاتو پوهیږی، یا د ارواحانو او د شیطانانو او د پیریانو سره د هغوی خاص تعلق دے چه د هغے په وجه هغوی د غیبو خبرې معلومولے شی۔ چه څه څیز ورک شی نو هغوئ ئے معلومولے شی چه هغه په کوم ځائے کښې پروت دے۔ چه غلا وُشی نو هغوئ ښودلے شی چه غل څوک دے۔ چه څوک د خپل قِسمت په حقله تپوس اُوکړی نو هغوئ ورته وئیلے شی چه د هغهٔ په قِسمت کښې څه لیکلے شوی دی۔ د دے کارونو د پاره به خلق هغوی له تلل او هغوی به تړِ نذرانے او شکرانے اغستلے او د غیبو خبرې به ئے ورته کولے۔ هغوی به آکثر پخپله هم په کوڅو کښې نعرے وهلے چه خلق ورته توجه اُوکړی۔ د هغوی به یو خاص قِسم جامے او شکل وُو چه خلقو به پیژندل۔ د هغوی ژبه به هم د عام وینانه مختلفه وه۔ هغوی به د شاعرئ په رنګ قافیه دارے خبرې په خوند خوند کولے او عام طور دا سے ګول مول فقرے به ئے استعمالولے چه هر سړی به تړِ د خپل مطلب خبره را ایستله۔ د قریشو سردارانو عوامو له د دوکے ورکولو د پاره په رسول الله صلی الله علیه وسلّم باندِ د کاهن الزام صرف په دے وجه اُولګوؤ چه نبیؐ به د هغه حقیقتونو په حقه خبرے کولے کوم چه د خلقو د نظر نه پناه وُو او هغه به دا دعویٰ کوله چه د خدائے د طرفنه یوه فرښته په ما وحی نازلوی، او د خدائے کوم کلام چه به هغه پیش کوُو هغه هم قافیه دار وُو۔ لیکن په عربو کښې هیڅوک

أَمْ يَقُولُونَ شَاعِرٌ نَّتَرَبَّصُ بِهِ رَيْبَ الْمَنُونِ ﴿٣٠﴾ قُلْ تَرَبَّصُوا فَإِنِّي مَعَكُم مِّنَ الْمُتَرَبِّصِينَ ﴿٣١﴾ أَمْ تَأْمُرُهُمْ

آيا دا خلق وائي چه دے شاعر دے او مونږ د ده په حق کښے د زمانے د گردش انتظار کوو[۲۳]؟ دوئ ته اُووايه بنه ده انتظار کوئ، زه هم ستاسو سره انتظار کوم[۲۴]- آيا دوئ ته خپل عقلونه

د هغوئ په دے الزام نه شو دوکه کيدے - ځکه چه د کاهنانو د پيشے، د هغوئ د شکل و شباهت، د خبرو اترو، او د هغوئ د کاروبار نه هيڅوک نا خبره نۀ وُو- هرچا ته معلومه وه چه هغوئ څه کار کوی، خلق هغوی له د څه مقصد د پاره ځي، هغوی خلقو ته څه څه خبری کوی، د هغوئ قافيه دارے فقرے څنگه وی او په هغې کښے څه مطلب پروت وی - او د ټولو نه غټه خبره داده چه د کاهن سړی به هيڅ دا کار نۀ وُو چه د قوم د موجوده عقيدے خلاف يوه عقيده راووچته کړی او شپه وُرځ د هغې په تبليغ کښے منډے ترړے وهي او د هغې د خاطره د ټول قوم دُشمنی په خپل سر واخلی - دا وجه وه چه د رسول الله صلی الله عليه وسلم سره د کهانت دے الزام هيڅ څه داسے سمون نۀ خوړو چه دا الزام په هغه لگيدلے وے او د عربو يو بے وقوف انسان پرِ دوکه شوے وے -

دغه شان په نبیؐ به د ليونی الزام هم د مکے کافرانو تش د خپل زړه د تسَلّئ د پاره لگولو لکه څنگه چه د نن زمانے ځينې بے شرمه مغربی ليکوالان د اسلام خلاف د خپلے غصے سړولو د پاره دا دعوئ کوی چه په نبی به (معاذالله) د مرگی (Epilepcy) دوره راتلله او د دے دورو په حالت کښے چه به څه د هغه د خلے نه وتل خلقو به هغه وحی گڼله - داسے فضول الزامونو ته نۀ په هغه زمانه کښے د يو عقلمند سړی توجه تلله او نۀ په نن زمانه کښے چه څوک قرآن اُولولی او د رسول الله صلی الله عليه وسلم د مشرئ لاندے حيرانونکی کارنامے اُووينی، دا باور کولے شی چه دا ټول هرڅه د مرگو د دورو کارنامے دی -

۲۳ يعنی مونږه په انتظار کښے يو چه په دے سړی څه آفت راشی او په څه طريقه ترِ مونږه خلاص شو - غالباً چه د هغوی خيال دا وُو چه محمّد (صلی الله عليه وسلّم) خو زمونږ د معبودانو مخالفت کوی او د هغوئ کرامات نۀ منی، يا خو به پرِ زمونږ د معبودانو قهر نازل شی، يا به يو زړور سړے د ده په دے خبرو غصه شی او قتل به ئے کړی -

۲۴ د دے دوه مطلبونه کيدے شی - يو دا چه زۀ هم گورم چه ستاسو دا آرزو پوره کيږی او که نه - دويم دا چه زۀ هم انتظار کوم چه سزا به څما وی او که ستاسو -

أَحْلَامُهُم بِهَٰذَآ ۚ أَمْ هُمْ قَوْمٌ طَاغُونَ ﴿٣٢﴾ أَمْ يَقُولُونَ تَقَوَّلَهُۥ ۚ بَل لَّا يُؤْمِنُونَ ﴿٣٣﴾ فَلْيَأْتُوا۟ بِحَدِيثٍ مِّثْلِهِۦٓ إِن كَانُوا۟ صَٰدِقِينَ ﴿٣٤﴾

ۜد داسې خبرو حکم کوی؟ یا دوئ په ضد کښې د حد نه اوړیدونکی خلق دی؟ [25]
آیا دوی وائی چه دې سړی دا قرآن پخپله د ځان نه جوړکړې دې؟ اصل خبره دا ده چه دوئ ایمان راوړل نهٔ غواړی۔ [26] که دوئ په دې خپله وینا کښې رښتینی وی نو دې غوندې یو کلام دِ جوړکړی او راد وړی۔

---

**۲۵** په دے دوؤ فقروکښے د مخالفینو د ټولے پروپیګنډا ے حقیقت بالکل ښکاره کړے شوے دے۔
د دلیل خلاصه دا ده چه دا د قریشو سرداران او هوښیاران خوځان ته عقلمند خلق وائی، خو آیا د دوئ عقل دوی ته دا وائی چه کوم سړے شاعر نهٔ دے هغه ته شاعر اُووائی، چه ټول خلق ورته هوښیار سړے وائی هغه ته لیونے اُووائی، او چه د کوم سړی د کهانت سره څه لږے تعلق هم نشته هغه ته خامخا کاهن اُووائی۔ او بیا که د عقل په بُنیاد باندې دوئ څه حکم لګولے نو یو حکیم به ئے لګولے وے۔ ډیر مخالف حکمونه خوئے په یو وخت نهٔ شو لګولے۔ یو سړے په یو وخت کښے هم شاعر او هم لیونے او هم کاهن څنګه کیدے شی۔ که هغه لیونے وی نو نهٔ شاعر کیدے شی او نهٔ کاهن۔ که کاهن وی نو شاعر نهٔ شی کیدے، او که شاعر وی نو کاهن نهٔ شی کیدے، ځکه چه د شعر خبری او بحث جُدا وی او د کهانت خبری او بحث جُدا وی۔ یو کلام ته په یو وخت هم شعر ویل او هم کهانت ویل د داسے سړی کار نهٔ شی کیدے چه هغه د شعر او د کهانت په فرق پوهیږی۔ بس دا بالکل ښکاره خبره ده چه د محمّد صلی الله علیه وسلّم په مخالفت کښے دا مختلفے خبرے د عقل په بُنیاد نهٔ کیږی بلکه سراسر د ضد او د کینے په بنیاد باندې کیږی، او د قوم دا لوئ لوئ سرداران د حسد او د کینے په جوش کښے ړانده شوی دی او داسے کاواک الزامونه لګوی چه پوهه انسان پرهیڅ پروا نهٔ لری۔ (د زیاتے تشریح د پاره اُوګوره تفهیم القرآن دویم جلد، الاعراف، حاشیه ۱۰۴۔ یونس، حاشیه ۳۔ بنی اسرائیل، حاشیے ۵۳۔۵۴۔ دریم جلد، الشعراء، حاشیے ۱۳۰، ۱۳۱، ۱۴۰، ۱۴۲، ۱۴۳، ۱۴۴)۔

**۲۶** یعنی د دے آیت مطلب دا دے چه د قریشو کوم خلق قرآن ته د محمّد صلی الله علیه وسلّم خپل جوړکړے کلام وائی هغوی په خپله په خپل زړه کښے په دے پوهه دی چه دا د محمّد کلام نهٔ شی کیدے، او نهٔ یوازے اهلِ زبان خلق په دے پوهیدل چه دا کلام د انسانی کلام نه ډیر اعلیٰ او ډیر اُوچت دے بلکه په هغوی کښے چه څوک هم د محمّد صلی الله علیه وسلم نه واقف وُو هغه دا ګمان نهٔ شو کولے چه دا واقعی د هغه کلام دے۔ نو بس سیده صفا خبره دا ده چه څوک قرآن مجید د نبی جوړکړے کتاب ګڼړی هغوی په اصل کښے ایمان نهٔ راوړل غواړی ځکه هغوی قِسما قِسم د دروغو بهانے جوړوی چه په هغے کښے یوه بهانه دا هم ده۔ (د زیاتے تشریح د پاره اُوګوره تفهیم القرآن دویم جلد، یونس، حاشیه ۲۱، دریم جلد الفرقان حاشیه ۱۲۔

القصص ، حاشيه ۶۴ - العنكبوت ، حاشيه ۸۸ - ۸۹ - څلورم جلد ، السجده ، حاشيه ۱ تا ۴ - حٰم السجده ، حاشيه ۵۴ - الاحقاف ، حاشيه ۸ تا ۱۰ ) -

۲۷ ؎ يعنى خبره صرف دومره نهٔ ده چه دا د محمد صلى الله عليه وسلّم كلام نهٔ دے ، بلكه حقيقت دا دے چه دا انسانى كلام هډو دے نهٔ او دا خبره د انسان د وَس نه بهرده چه داسے كلام جوړكړى. كه تاسو دے ته انسانى كلا وايئ نو د دے په رنګ داسے كلام اُوښايئ چه هغه يو انسان جوړ كړے وى - د مقابلے كولو دا خبره نهٔ يوازے قريشوته ، بلكه د ټولے دُنيا منكرو خلقو ته د ټولو نه مخكښے په دے آيت كښے شوى وه - د دے نه روستو درے ځله په مكّه معظّمه كښے او بيا په آخرى ځل په مدينه منوره كښے شوى ده - ( اُوګوره تفهيم القرآن ، يونس ، آيت ۳۸ - هود ، ۱۳ - بنى اسراءيل ، ۸۸ - البقره ، ۲۳ ) - ليكن نهٔ چا په هغه وخت كښے د دے د جواب وركولو همت اُوكړے شو او نهٔ د هغے نه روستو د نن ورځے پورے چا د قرآن په مقابله كښے انسانى كلام پيش كړو.

ځينى خلق د مقابلے په دے اعلان نهٔ دى پوهه شوى ، او د خپلے ناپوهتيا په وجه دا وائى چه يوازے قرآن نهٔ بلكه يو سړے د بل سړى په طرز نه نثر ليكلے شى او نهٔ نظم - هومر ، رومى ، شيكسپئر ، ګوئټے ، غالب ، اقبال ټول په دے لحاظ سره بے مثاله دى چه د هغوى غوندے كلام جوړول د چا په وَس كښے نهٔ دى - د قرآن د مقابلے چه څوك دا جواب وركوى هغوى په اصل كښے په دے غلط فهمئ كښے دى چه د " فَلْيَاْتُوْا بِحَدِيْثٍ مِّثْلِهٖ " مطلب د قرآن په طرز كښے د قرآن غوندے يو كتاب ليكل دى - حالانكه د دے نه مُراد په طرز كښے يوشان والے نهٔ دے بلكه مُراد دا دے چه د دے پائے او د دے شان او د دے مرتبے يو كتاب راوړئ چه صرف په عربئ ژبه كښے نهٔ ، بلكه د دُنيا په هره ژبه كښے چه وى خو چه هغه خاصيتونه پكښے وى د كوم په وجه چه قرآن يوه معجزه ده - مختصر طور يو څو لوئ لوئ خاصيتونه لاندے ليكلے شوى دى چه د هغے په وجه قرآن اوّل هم معجزه وه او نن هم معجزه ده -

۱ - قرآن مجيد چه په كومه ژبه كښے نازل شوے دے هغهٔ د هغے ژبے د ټولو نه لوړه او مكمله نمونه ده - په ټول كتاب كښے يو لفظ او يوه جُمله هم د معيار لاندے نشته - كوم مضمون چه بيان شوے دے هغه په مناسبو الفاظو كښے او په مناسب انداز كښے بيان شوے دے - يوه خبره بار بار بيان شوى ده او هر ځل د بيان انداز داسے نوے دے چه بار بار راتلل ئے بد نهٔ لږى - د اول نه واخله د آخره پورے په ټول كتاب كښے هر ځكے داسے لګيدلے دے لكه چه ملغلرى په ځائے ځائے لګيدلى شوى وى - كلام دومره اثرناك دے چه په ژبه پوهيدو نكے سړے ئے واورى نو د سر خوزولو نه بغير نهٔ پاتے كيږى ، آن تر دے پورے چه د منكرو او د مخالف سړى رُوح هم بے اثره نهٔ پاتے كيږى. د څوارلس سوَو كالو تيريدو نه روستو هم د نن زمانے پورے دا كتاب د خپلے ژبے د ادب د ټولو نه اعلىٰ نمونه ده - د عربئ ژبے په ادب كښے د دے ته يو كتاب هم نهٔ رسى - يوازے دا نهٔ ، بلكه دے كتاب عربى ژبه داسے رانيولى ده چه د څوارلس سوَو كالو تيريدو نه روستو هم د دے ژبے بنايست او فصاحت هم هغه دے كوم چه دے ژبے قائم كړے وو ، حالانكه په دومره موده كښے ژبے بيرے بدليږى را بدليږى - په دُنيا كښے يوه ژبه داسے نشته چه د دومره اوږدے مودے پورے د هغے الفاظ ، د هغے ليكل ، د هغے وينا ، د هغے

قاعدے او ژبه او دَ الفاظو استعمال په یو شان قایم وی لیکن دا صرف دَ قرآن طاقت دے چه عربی ژبه ئے دَ خپل مقام نه خوزیدو ته نهٔ ده پریښودے - دَ قرآن یو لفظ هم دَ نن ورځ پورے خلقو پریښودے نهٔ دے - دَ هغه هره محاوره دَ نن ورځ پورے په عربیٔ ژبه کښے استعمالیږی. دَ قرآن دَ ژبے ادب نن هم دَ عربیٔ ژبے معیاری ادب دے، او په لیک او په تقریر کښے نن هم فصیح ژبه هغې ته وئیلے شی کومه چه څوارلس سوه کاله مخکښے په قرآن کښے استعمال شوی وه - آیا دَ دُنیا په بله ژبه کښے یو انسانی لیکَ دَ دِے شان کیدے شی؟ -

۲ه دا دَ دُنیا واحد کتاب دے چه دَ انسان په فکر، په اخلاقو، په عمل او دَ ژوند په طرز باندِ ئے دومره فراښه، ژور او په هر اړخ خور اثر اچولے دے چه په دُنیا کښے دَ هغې مثال نهٔ ملاویږی - اول دَ هغې دَ اثر په وجه دَ یو قوم حالت بدل شو او بیا هغه قوم را پاسید او دَ دُنیا یوه لویه حصه ئے بدله کړه - بل یو کتاب داسے نشته چه دومره حالت بدلونکے ثابت شوے وی - دا کتاب یوازے دَ کاغذ په پاڼو باندِ لیکلے نهٔ دے پاتے شوے بلکه دَ عمل په دُنیا کښے دَ دے کتاب یو یو لفظ خیالاتو له ترتیب ورکړے دے او دَ ژوند یوه مستقله اډانه ئے جوړه کړی ده، دَ څوارلس سوو کالو راسے دَ دے دَ اثراتو لړئ جاری ده او وَرځ په وَرځ دَ دے دا اثرات نور خوریږی -

۳ه دَ کوم مضمون په حقله چه دا کتاب بحث کوی هغه دومره فراښه .خبری دی چه دَ ازل نه دَ آخره پورے ټول کائنات پکښے شامل دی - هغه دَ کائناتو په حقیقت باندِ، او دَ هغې په شروع او په انجام باندِ، او دَ هغې په نظم او دَ هغې په قانون باندِ بحث کوی - هغه وائی چه دَ دے کائناتو خالق او انتظام چلوونکے څوک دے، دَ هغه څه صفتونه دی، دَ څه اختیارات دی، او هغه اصلی حقیقت څه دے چه په هغې باندِ هغه دَ دے ټول جهان نظام قایم کړے دے - هغه په دے جهان کښے دَ انسان حیثیت او دَ انسان مقام ټیک ټیک مقرر وی او وائی چه دا دَ هغه فطری مقام دے او دا دَ هغه پیدائشی حیثیت دے چه دَ هغې په بدلولو هغه قادر نهٔ دے - هغه وائی چه دَ دِے مقام او دَ دِے حیثیت په لحاظ سره دَ انسان دَ پاره دَ فکر او دَ عمل هغه صحیح لار کومه یوه ده چه هغه دَ حقیقت سره پوره پوره سمون خوری، او هغه غلطے لارے کومے دی چه هغه دَ حقیقت سره سمون نهٔ خوری - دَ صحیح لارے په صحیح والی او دَ غلطے لارے په غلط والی باندِ هغه دَ زمکے او دَ آسمان دَ یو یو شیز نه، دَ کائناتو دَ نظام دَ یو یو کوټ نه، دَ انسان دَ خپل نفس نه او دَ هغه دَ خپل وجود نه او دَ انسان دَ خپل تاریخ نه بے شماره دلیلونه پیش کوی - او دَ دے سره سره هم دا هم وائی چه انسان په غلطو لارو باندِ څنګه او دَ کومو اسبابو په وجه روانیږی، او صحیح لار، چه دَ همیشه نه اِکیَ یوه لار ده او اِکیَ یوه به وی، هغه په کومه ذریعه هغه ته معلومیدے شی او په څه طریقه هغه ته په هره زمانه کښے ښودلے کیږی - هغه صحیح لارے ته یوازے اِشارے نهٔ کوی بلکه په هغه لاره باندِ دَ تللو دَ پاره دَ ژوند دَ پوره نظام نقشه پیش کوی، چه هغې کښے دَ عقیدے، دَ اخلاقو، دَ نفس دَ پاکوالی، دَ عباداتونو، دَ ژوند دَ روزګار، دَ سیاست، دَ عدالت، دَ قانون، غرض دا چه دَ انسانی ژوند دَ هر اړخ په حقله دَ یو بل سره تړلی شوی قاعدے بیان کړے شوی دی - دَ دے سره هغه پوره په تفصیل سره ښودلے کوی چه په دے صحیح لاره باندِ دَ تللو او په هغو غلطو لارو باندِ دَ تللو په دے دُنیا کښے څه انجام دے او په آخرت کښے به ئے څه انجام وی - هغه دَ دے دُنیا دَ ختمیدو او دَ آخرت دَ شروع کیدو حالت ډیر په تفصیل سره بیانوی -

دَ دې بدلون ټولې مرحلې يو په يو بيانوي، دَ آخرت پوره نقشه سترګوته وړاندې راولي، او په ډېره وضاحت سره وائي چې هلته به دَ انسان دويم ژوند څنګه وي، دَ هغه سره به دَ دُنيا دَ عملونو حساب كتاب څنګه كيږي، دَ كومو كومو خبرو تپوس به ترې كيږي، په څنګه ناخوښه حالت كښې به دَ هغه ټوله عملنامه دَ هغه مخې ته كيښودې كيږي، څنګه زبردست شهادتونه به دَ هغه په ثبوت كښې پيش كړې كيږي، جزا او سزا به چاته په كوم كوم عمل ملاويږي، بنه بدله چې چاته ملاؤ شي هغه ته به څنګه انعامونه وركړې كيږي او دَ بد و عملونو سزا به په كوم كوم شكل كښې ملاويږي. په دې خبرو چې كوم بحث په دې كتاب كښې شوې دې هغه په دې حيثيت سره نۀ دې چې دَ دې مُصنّف څۀ هغه دغه راجمع كړي دي او تش قياسونه ئې جنګولي دي، بلكه هغه په دې حيثيت سره دې چې دَ دې مُصنّف نيغ په نيغه دَ حقيقت علم لري، هغه دَ ازل نه دَ ابد پورې هرڅه وينې، ټول حقيقتونه هغه ته څرګند دي، ټول كائنات هغه ته دَ يو غوړيدلي كتاب پشان پرانسته دي، دَ انساني ژوند دَ شروع كيدونه دَ ختميدو پورې نه بلكه دَ ختميدونه روستو دَ دويم ژوند پورې هم هغه هرڅه په يو نظر وينې، او هغه دَ قياس او دَ ګمان په بنياد باندې نه بلكه دَ علم په بنياد باندې انسان ته لارښودنه كوي. كوم حقيقتونه چې هغه دَ علم په حيثيت سره پيش كوي په هغې كښې يو هم دَ نن ورځې پورې غلط نه دې ثابت كړې شوې. دَ انسان او دَ كائناتو كوم تصوّر چې هغه پيش كوي هغه دَ ټولو ښيزونو او دَ ټولو واقعاتو مكمل دليل دې او هغه دَ علم په هره څانګه كښې دَ تحقيق بُنياد جوړيدې شي. دَ فلسفې او دَ سائنس دَ مسئلو جوابونه، او دَ انساني روزګار دَ ټولو مسئلو جوابونه دَ هغه په كلام كښې موجود دي او دَ هغوي ټولو په منځ كښې داسې سلسله وارتړون موجود دې چې په هغې باندې يو مكمل، او دَ يو بل سره تړلې شوې او په هر اړخ باندې پوره نظام فكر قائميږي. بيا دَ عمل په حيثيت سره چې كومه لارښودنه هغه دَ ژوند دَ هر اړخ په حقله انسان ته كړې ده هغه يوازې ډېره مناسبه او پاكيزه نۀ ده بلكه دَ څوارلس سوو كالو راسې پر دَ دُنيا په مختلفو حصو كښې بې شماره انسانانو عمل كړې دې او په تجربې سره هغه عمل بهترين ثابت شوې دې. آيا دا قِسم انساني كتاب په دُنيا كښې چرته شته يا څكښې چرته وُو چې هغه دَ دې كتاب په مقابله كښې راوړې شي.

۵ دا كتاب په يو وخت پوره پوره ليكلې شوې دُنياته نۀ وُو پيش كړې شوې بلكه دَ يو څو اولنو حكمونو سره يو اصلاحي تحريك شروع شوې وُو او دَ هغې نه روستو دَ ډېرشتو كالو پورې هغه تحريك چې به دَ كومو كومو مرحلونه تيريدو او دَ هغې دَ حالاتو او دَ هغې دَ ضرورياتو مطابق به دَ دې كتاب حصې دَ هغه تحريك دَ رهنما په شكل كښې راتلازيدې. بيا چې كله دين كله دَ اوږدو اوږدو خطبو په شكل كښې او كله دَ لنډو لنډو فقرو په شكل كښې رانازيدلې. بيا چې كله دين مكمل شو او په مختلفو وختونو كښې چې كومې حصې نازلې شوې وې هغې له دَ يو مكمل كتاب په شكل كښې ترتيب وركړې شو نو دُنيا ته دَ " قرآن " په نوم راؤلين لې شو. دَ دې تحريك مشر رهنما وائي چې دا خطبې او دا جُملې هغه دَ خپله ځانه نۀ دي جوړې كړي بلكه دَ خدائې دَ طرفنه په هغه باندې نازلې شوي دي. كه څوك وائي چې دغه رهنما دا پخپله دَ ځانه جوړې كړې دې نو هغه دِ دَ دُنيا په ټول تاريخ كښې يو داسې مثال پيش كړي چې يو انسان دَ ډيرو كلونو پورې پخپله دَ يو زبردست اِجتماعي تحريك مشري كړې وي او كله دَ يو نصيحت كوُنكي او دَ اخلاقو دَ اُستاذ په حيثيت سره، كله دَ يو مظلومې ډلې دَ مشر په حيثيت سره، كله دَ يو وطن دَ بادشاه په حيثيت سره، كله دَ يو جنګي فوځ دَ سپه سالار په حيثيت سره، كله دَ يو فاتح په حيثيت

سره ، کله د يو شريعت او د يو قانون جوړونکي په حيثيت سره ، غرض دا چه هغه په مختلفو حالاتو کښې په مختلفو حيثيتونو سره کوم مختلف تقريرونه کړي دي يا ئې کومې مختلفې خبرې کړي وي هغه ټولې راجمع شي او يو مکمل، او د يو بل سره تړلې شوې او په هر اړخ پوره د فکر او د عمل يو نظام جوړ کړي، او په هغې کښې هيچرته د يو بل سره ټکراوْ او د يو بل مخالفت اونهٔ موندے شي ، او په هغې کښې هغه د اوّل نه د آخره پورے د عقائدو او د اعمالو يو داسے په هر اړخ پوره نظام جوړوي چه د هغې هره حصّه د بلې حصّې سره مکمل سمُون خوري، او هغه مجموعه چه يو پوهه سړے لولي نو خاما خا دا محسُوسوي چه د تحريک د شروع کولو په وخت کښې د تحريک د مشر مخے ته د تحريک د آخري مرحلې پورے ټوله نقشه موجود وه او دا سے هيچرے نهٔ دی شوی چه په منځ کښې د هغه په ذهن کښې څه داسے خيال را غلے وی چه هغه اول هغه ته معلوم نهٔ وُو يا ئې روستو بدل کړو۔ داسے انسان که چرته تير شوے وی او دومرهٔ کمالات ئې ښود لی وی نو هغه ي په ګوته کړے شي ۔

۵ ۔ د کوم مشر په ژبه چه داخطبے او دا تقريرونه کيدل هغه به ناساپه د يو کونج نه دوئ ته دا اورولو د پاره نهٔ راتللو او دا اورولونه روستو به چرته بل خوا نهٔ تلو۔ هغه د دے تحريک نه مخکښې هم په انسانانو کښې ژوند تيرکړے وُو او د هغې نه روستو هم د ژوند د آخري ساعته پورے په انسانانو کښې اوسيدو۔ د هغه د خپلې وينا او د خپلو تقريرونو طرز خلقو ته ښه معلوم وُو ۔ په احاديثو کښې د هغه د وينا ډيره حصّه اوُس هم محفوظ ده چه هغه د روستو زمانے عربيان خلق اولولي نو په آسانئ سره معلومولے شي چه د هغه رهنما د خپلو خبرو طرز څهٔ وُو۔ د هغه د خپلې ژبے خلقو ته په هغه وخت کښې هم ښه معلومه وه او نن هم په عربئ ژبه پوهيدونکي خلق په دے پوهه دي چه د دے کتاب الفاظ او د دے طرز د هغه رهنما د خپلو الفاظو او د هغه د خپل طرز نه ډير مختلف دے، ان تر دے پورے چه کله د هغه د خپل تقرير په منځ کښې د دے کتاب څه عبارت را شي نو د دواړو په الفاظو او په طرز کښې صفا فرق معلوميږي ۔ دا تپوس کيدے شي چه آيا په دُنيا کښې يو انسان چرته په دے خبره قابو موندلې ده يا موندلے شي چه د ډيرو کلونو پورے د دوُو مختلفو طرزونو کلام پيش کوي او چا ته د دے راز پته اونهٔ لګي چه دا د وه طرزونه په اصل کښې د يو سړي دی ؟

عارضي او وختي طور په دے قِسم د وو کلامونو جوړولو کښې کامیابيدل خو ممکن دی ۔ ليکن مسلسل د ډير يشتو کلونو پورے داسے کول په هيڅ شان سرهٔ ممکن نهٔ دی چه يو سړے کله د خدائے د طرفنه د وحي په طور کلام کوي نو د هغې الفاظ او طرز ي يو شان وي، او چه کله هغه د خپل طرفنه خبرے يا تقرير کوي نو د هغې الفاظ او طرز ي بالکل بل شان وي ۔

۶ ۔ د دے تحريک د مشرئ په دوران کښې به هغه رهنما باندې مختلف حالات راتلل ۔ کله به ډير کلونه د خپل وطن او د خپلې قبيلے خلقو په هغه پورے خندا ګانے کولے ، او په هغه به ئې سخت ظلمونه کول ۔ کله د هغه په ملګرو باندې دومره ظلمونه شروع شو چه هغوئ په وطن پريښودو باندې مجبوره شو ۔ کله به دُشمنانو د هغه د وژلو سازشونه کول ۔ کله خو پخپله د خپل وطن نه په هجرت کولو مجبوره شو ۔ کله ئې ډير د تنګسيا او د لوږے تند ے ژوند تيرولو ۔ کله به په يو مخه جنګونه وُو چه ګټه او بائيلا ت دواړه به پکښے وُو ۔ کله به هغه په دُشمنانو غالب شو او چه کوم دُشمنانو به په

أَمْ خُلِقُوا مِنْ غَيْرِ شَيْءٍ أَمْ هُمُ الْخَالِقُونَ ﴿٣٥﴾ أَمْ خَلَقُوا السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ ۚ بَل لَّا يُوقِنُونَ ﴿٣٦﴾ أَمْ عِندَهُمْ خَزَائِنُ رَبِّكَ أَمْ هُمُ الْمُصَيْطِرُونَ ﴿٣٧﴾ أَمْ لَهُمْ سُلَّمٌ يَسْتَمِعُونَ فِيهِ ۖ فَلْيَأْتِ

آیا دوئ دَ خالق نه بغیر پخپله پیدا شوی دی؟ یا دوئ پخپله دَ خپل ځان خالقان دی؟ یا زمکه او آسمانونه دوی پیدا کړی دی؟ اصل خبره داده چه دوئ یقین نهٔ لری [۲۸] ـ

آیا ستا دَ رب خزانے دَ دوئ په قبضه کښے دی؟ یا په هغے باندِ دَ دوی حکم چلیږی؟ [۲۹]

آیا دَ دوئ سره اندر پایه ده چه په هغے خیژی او دَ عالمِ بالا خبرے آوری؟ په دوئ کښے چه چا

هغے ظلم کړے وُو هغوئ به ورته الټر سرتیټی ولاړ وُو ـ کله ورته داسے اقتدار نصیب شو چه هغسے ویر کم چاته نصیب کیږی ـ په دے ټولو حالاتو کښے ظاهره خبره ده چه دَ یو انسان جذبات یو شان نهٔ شی پاتے کیدے ـ هغه رهنما چه کله په دِ مختلفو حالاتو کښے په خپل حیثیت سره څه خبرے کړی دی په هغے کښے هغه جذبات په ړاګه ښکاری کوم چه په داسے موقعو کښے دَ یو انسان په زړه کښے راپیدا کیږی ـ لیکن په دے مختلفو حالاتو کښے چه کله هغه دَ خدائے دَ طرفنه دَ وحی په طور کوم کلام اوړولے دے هغه دَ انسانی جذباتو نه بالکل خالی دے ـ په یو ځائے کښے هم دَ لوئ نه لوئ تنقید کوُنکے دا خبره نهٔ شی په ګوته کولے چه دلته انسانی جذبات رالړ زیدلی ښکاری ـ

۷ ـ کوم فراښه او جامع علم چه په دِ ے کتاب کښے دے هغه دَ هغه زمانے په اهلِ عربو او او په اهلِ روم او یونان او ایران کښے خولا پریږده نن هغه دَ دِ ے شلمے صدئ په لویو لویو عالمانو کښے هم دَ چاسره نشته ـ نن حالت دادے چه دَ فلسفے او دَ سائنس او دَ انسان په حقله ځومره علمونه دی دَ هغے دَ یوے څانګے په مطالعه کښے دَ خپل ټول عُمر لګولو نه روستو سړے ته پته لګی چه دَ علم دَ غه څانګے آخری مسئلے څه دی ـ او بیا چه کله هغه قرآن مجید په ژور نظر سره اُوګوری نو معلومه شی ورته چه په دِ ے کتاب کښے دَ هغه ټولو مسئلو یو واضحه جواب موجود دے ـ دا معامله یوازے دَ یو علم په حقله نهٔ ده بلکه دَ هغه ټولو علمونو په حقله صحیح ده کوم چه دَ کائناتو او دَ انسان سره څه تعلق لری ـ څنګه باور کیدے شی چه څوارلس سوه کاله مخکښے دَ عربو په ریګستان کښے یو اُمّی سړی ته دَ علم په هر کوټ باندِ دومره فراښه پوهه حاصله وه او هغه په هره بُنیادی مسئله باندِ سوچ فکر کړے وُو او دَ هغے یو صفا او قطعی جواب ئے را ایستلے وُو ـ

اګرچه دَ قرآن دَ معجزه کیدو نور هم وجوهات دی، لیکن صرف په دے یو څو وجوهاتو باندِ که سړے غور اُوکړی نو هغه ته به پته اُولګی چه څومره دَ قرآن دَ نازلیدو په زمانه کښے دَ قرآن معجزه کیدل واضحه وُو دَ هغے نه زیر زیات نن واضحه دی او انشاء الله چه دَ قیامته پورے به ښه واضح کیږی ـ

مُسْتَمِعُهُمْ بِسُلْطٰنٍ مُّبِيْنٍ ﴿٣٨﴾ اَمْ لَهُ الْبَنٰتُ وَلَكُمُ الْبَنُوْنَ ﴿٣٩﴾

څه اَوريدلی دی هغه دِ يو څرګند دليل راوړی۔ آيا دَ الله دَ پاره خودی لونړه او ستاسو دَ پاره دی ځامن ؟[۳۰]

---

[۲۸] دَ دِے نه مخکښے چه په کومو خبرو بحث شوے وُو هغه دَ دِے دَ پاره وُوچه دَ مکے دَ کافرانو فکر دِے خبری ته را اوګرزولے شی چه تا دَ محمد صلی الله علیه وسلّم دَ پيغمبریٔ دَ دروغژن کولو دَ پاره کومے خبری جوړَوی هغه څومره بے مناسبے دی۔ اُوس په دے آيت کښے هغوی ته دا خبره وړاندِ کړے شوی ده چه کوم دعوت محمد صلی الله علیه وسلّم پيش کوی آخر په هغے کښے هغه خبره څه ده چه تاسو پرِ دومره غصّه کيږئ۔ هغه خو هم دا وائی چه الله ستاسو خالق دے او تاسو له پکار دی چه خاص دَ هغه بندګی اُوکړئ۔ په دے باندِ ستاسو دَ غصّه کيدو آخر څه وجه ده ؟ آيا تاسو پخپله جوړ شوی يئ، چا جوړَونکی نه يئ جوړ کړی ؟ يا دَ ځانونو جوړَونکی پخپله يئ ؟ يا دا فرابنه کائنات تاسو جوړ کړے دے ؟ که په دے کښے يوه خبره هم صحيح نهٔ وی او تاسو پخپله منئ چه ستاسو خالق هم خاص الله دے او دَ دے کائناتو خالق هم هغه دے، نو دَ هغه سړی په خبره تاسو له غصّه ولے درځی چه تاسو ته وائی چه خاص هم دغه الله ستاسو دَ بندګیٔ او ستا دَ عبادت مستحق دے ؟ دَ غصّے لائق خبره داده اوکه دا چه کوم خالق نهٔ دے دَ هغه بندګی دِ اُوکړے شی او چه کوم خالق دے دَ هغه بندګی دِ نهٔ کيږی ؟ تاسو خو په ژبه دا اقرار ضرور کوئ چه الله ستاسو او دَ کائناتو خالق دے، ليکن که چرے واقعی ستاسو په دے خبره يقين دے خبره يقين وے نو دَ هغه بندګیٔ ته چه څوک را بلل کوی په هغه پسے به نهٔ ور پسے کيدئ۔

دا يو داسے بيدارونکے تپوس وُوچه دَ مشرکانو عقيده ئے دَ بيخه اُوخوزولے۔ دَ بخاری او دَ مُسلم روايت دے چه جُبَيْرٌ بن مُطْعِم دَ جنګ بدر نه روستو دَ قيديانو آزادولو په باره کښے دَ خبرواترو کولو دَ پاره دَ مکے دَ کافرانو دَ طرفنه مدينے ته راغے۔ دلته رسول الله صلی الله علیه وسلّم دَ ماښام مونځ مخکښے ورکولو او په هغے کښے ئے سورة طور لوستلو۔ هغه په خپله وائی چه نبیؐ کله دے ځائے را اُورسيدو نو ځما زړه ځما دَ سينے نه سم بهر راوتلو۔ روستو دَ هغه دَ مسلمانيدو يوه غټه وجه داوه چه په هغه ورځ دَ دِے آيتونو په اوريدو سره اسلام دَ هغه په زړه کښے ننوتلے وُو۔

[۲۹] دا دَ کافرانو دَ دے اعتراض جواب دے چه آخر محمد بن عبدالله (صلی الله علیه وسلّم) ولے رسول جوړ کړے شو۔ دَ دے جواب مطلب دادے چه دَ ګمراهیٔ نه دَ رايستلو دَ پاره دِ دے خلقو ته خو بهرحال يو رسول راليږل ضروری وُو۔ اُوس خبره داده چه دا فيصله به څوک کوی چه خدائے خپل رسول څوک مقرر کړی او څوک نهٔ ؟ که دا خلق دَ خدائے دَ مقرر کړے شوی رسول دَ منلو نه انکار کوی نو دَ دے خو دا مطلب دے چه يا خودوئ پخپله خپل ځان دَ خدائے دَ خدا يئ مالکان ګنړلی دی، يا بيا دَ دوئ ګمان دادے چه خدائے خو دِ دَ خپلے خدا يئ مالک وی ليکن په هغے کښے دِ حُکم دَ دوئ چليږی۔

أَمْ تَسْـَٔلُهُمْ أَجْرًا فَهُم مِّن مَّغْرَمٍ مُّثْقَلُونَ ﴿۴۰﴾ أَمْ عِندَهُمُ الْغَيْبُ فَهُمْ يَكْتُبُونَ ﴿۴۱﴾ أَمْ يُرِيدُونَ كَيْدًا ۖ فَالَّذِينَ كَفَرُوا هُمُ

آیا ته د دوی نه څه اجر غواړې چه دوی د جبرني تاوان د بوج لاندې زور لے کیږی ؟[۳۱] آیا د دوی سره د غیبی حقیقتونو علم دے چه د هغې په بنیاد باندې دوی لیکل کوی ؟[۳۲] آیا دوی څه چل جوړول غواړی ؟[۳۳] (که دا خبره وی) نو کافران به په خپل چل کښے

۳۰ ھ په دے وړو وړو فقرو کښے یو تفصیلی دلیل رابند کړے شوے دے۔ تفصیل د دے دا دے چه که چرے تاسو د رسول د خبرے نه انکار کوئ نو ستاسو سره پخپله د حقیقت د پیژندلو د پاره آخر څه ذریعه ده ؟ آیا په تاسو کښے څوک عالِم بالا ته رسیدلے دے او هغه د الله تعالیٰ، یا د هغه فرښتونه نیغ په نیغه دا معلومه کړی ده چه هغه عقیدے بالکل د حقیقت مطابق دی په کومو چه تاسو د خپل دین بنیاد کیښودلے دے ؟ دا دعوی که څوک کوی نو مخے ته دِ راشی او اُودِ وائی چه هغه کله او څنګه عالِم بالا ته رسیدلے دے او د هغه ځائے نه ئے کوم علم راوړے دے۔ او که دا دعوی تاسو نه کوئ نو بیا پخپله غور اُوکړئ چه د دے نه زیاته د خندا عقیده بله څه کیدے شی چه تاسو د الله رب العالمین د پاره اولاد جوړوی ، او اولاد هم جینکئ ، چه تاسوئے د خپل ځان د پاره د شرم او د ننګ سبب ګنړئ؟ تاسو د علم نه بغیر د جهالت په تیرو کښے تیند کونه خورئ ، او څوک چه د خدائے د طرفنه تاسو ته د علم رنړا پیش کوی د هغه دُشمنان شوی یئ ۔

۳۱ ھ تپوس په اصل کښے د کافرانو نه شوے دے ۔ مطلب دا دے چه که چرے رسول ستاسو نه څه غوښتلے او دا ټولے منډے ترړے ئے د خپلے فائدے د پاره وهلے نو بیا د هغه نه ستاسو د تیښتے کولو څه مناسب وجه وه لیکن تاسو پخپله پوهیږئ چه د هغه په دیکښے څه خپل غرض نشته او هغه خالص ستاسو د ښیګړے د پاره خپل ځان ستړے کوی ۔ نو بیا څه وجه ده چه تاسو په غور سره د هغه خبره هم نه اُورئ ؟ په دے تپوس کښے یو باریک اعتراض هم دے ۔ د ټولے دُنیا د بناوټی پیشواګانو او د مذهبی دربارونو د مجنورانو پشان په عربو کښے هم د مشرکانو مشرانو ، استاذانو او عالمانو په ښکاره مذهبی کاروبار چلولو ۔ په دے باندې دا تپوس د هغوی نه اُوشو چه یو طرفته دا مذهبی سوداګران دی چه په ښکاره ستاسو نه د هر مذهبی خدمت په بدله کښے نذرانے او شکرانے اخلی ۔ بل طرفته یو سړے بالکل په بے غرضئ سره ، بلکه خپل تجارتی کاروبار ئے تباه کړو او تاسو ته په مناسبو دلیلونو سره د دین د نیغے لارے ښودلو کوشش کوی ۔ اُوس دا ښکاره بے عقلی نه ده نو نور څه دی چه تاسو د ده نه تیښته کوئ او هغوئ ته په منډه ورځئ ۔

الْمَكِيدُونَ ﴿۴۲﴾ أَمْ لَهُمْ إِلَٰهٌ غَيْرُ اللَّهِ ۚ سُبْحَانَ اللَّهِ عَمَّا يُشْرِكُونَ ﴿۴۳﴾

راګير يږي[۳۴]۔
آيا دَ الله نه سِوا دَ دوئ بل معبود شته؟ الله پاک دے دَ هغه شرک نه کوم چه دا خلق کوي[۳۵]۔

[۳۲] يعنې رسول چه تاسو ته کوم حقيقتونه پيش کوي دَ هغې دَ دروغو ګڼړلو دَ پاره آخر ستاسو سره کوم علم دے چه دَ هغې په وجه تاسو دا دعوئ اُوکړئ چه دَ ظاهري پردے شاته کوم پټ حقيقتونه دي هغه نېغ په نېغه تاسو پېژنئ؟ آيا تاسو ته واقعي دا علم دے چه خدائے يو نهٔ دے بلکه تاسو چه کوم معبودان جوړ کړي دي هغوي هم خدائي صفتونه او اختيارات لري؟ آيا تاسو واقعي فرښتے ليدلي دي چه هغه جينکۍ دي او نعوذ بالله، دَ خدائے نه پيدا شوي دي؟ آيا واقعي تاسو ته دا علم دے چه نهٔ په محمد صلی الله عليه وسلم وحي راغلې ده او نهٔ په بل بنده دَ خدائے دَ طرفنه وحي راتلے شي؟ آيا آخرت به نهٔ راځي چه په هغې کښے به دَ انسان سره حساب کتاب کيږي او هغه له به جزا يا سزا ورکړے کيږي؟ که تاسو دَ دے قِسم علم دعوئ لرئ نو آيا تاسو دے ليکلو ته تيار يئ چه دَ دے قِسم خبرو په حقله تاسو دَ رسول بيانونه ځکه دروغ ګڼړئ چه دَ غيبي پردے شاته تاسو ته دا معلومه شوي ده چه حقيقت هغه نهٔ دے کوم چه رسول بيانوي؟ دلته يو سړے دا شک ظاهرولے شي چه که چرے دَ دے په جواب کښے هغه خلقو دَ ضد دَ وجے نه دا ليکل کړے دے نو آيا دا دليل به بے مطلبه کيدونه؟ ليکن دا شک په دے وجه غلط دے چه که چرے دَ ضد په وجه هغوئ ليکل کړے هم وے نو کومو خلقو ته چه دَ مقابلے دا عام دعوت ورکړے شوے وُو هغوئ خوڅه ړانده نهٔ وُو۔ هرچاته به پته وے چه دا ليکل سراسر دَ ضد په وجه شوي دي او په حقيقت کښے څوک دَ رسول بيانونه په دے بُنياد هرګز دروغ نهٔ شي ګڼړلے چه هغه ته دَ هغې دَ خلاف واقعه کيدو علم حاصل دے۔

[۳۳] هغه تدبيرونو او چلونو ته اشاره ده کوم چه به دَ مکے کافرانو رسول الله صلی الله عليه وسلّم ته دَ نقصان رسَولو او دَ هغه دَ هلاکولو دَ پاره کول۔

[۳۴] دا دَ قرآن دَ ښکاره پيشګويانو نه يوه پيشګوئي ده۔ دَ مکے دَور په اوله زمانهٔ کښے، چه دَ رسول الله صلی الله عليه وسلّم سره په ظاهره دَ يو موټي مسلمانانو نه سِوا بل څه طاقت نهٔ وُو، او ټول قوم دَ هغه مخالف شوے وُو، دَ اسلام او دَ کفر مقابله هرچاته برابر مقابله نهٔ ښکاريدله۔ هيچا په هغه وخت کښے دا اندازه نهٔ شوه لګولے چه يو څو کاله روستو به دلته دَ کفر دبدبه بالکل ختمه شي۔ بلکه په ظاهره خو دا معلوميدله چه دَ قريشو او دَ ټول عرب دَ مخالفت په وجه به آخر دا دعوت ختم شي۔ ليکن په دے حالت کښے پوره په يقين سره کافرانو ته

وَاِنْ يَّرَوْا كِسْفًا مِّنَ السَّمَآءِ سَاقِطًا يَّقُوْلُوْا سَحَابٌ مَّرْكُوْمٌ ﴿۴۴﴾ فَذَرْهُمْ حَتّٰى يُلٰقُوْا يَوْمَهُمُ الَّذِيْ فِيْهِ يُصْعَقُوْنَ ﴿۴۵﴾ يَوْمَ لَا يُغْنِيْ عَنْهُمْ كَيْدُهُمْ شَيْـًٔا وَّلَا هُمْ يُنْصَرُوْنَ ﴿۴۶﴾ وَاِنَّ لِلَّذِيْنَ ظَلَمُوْا عَذَابًا دُوْنَ ذٰلِكَ وَلٰكِنَّ اَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿۴۷﴾

داخلق که دَ آسمان نه راپریوتونکی ټوټې هم اُوویني نو وائی به چه داګنړے وریځے رارواں دی۔ نواے نبیؐ، دوئ په خپل حال باندِ پرېږده ترهغې چه خپلے هغې ورځے ته ورو اُورسی چه دوئ به پکښے په وهلو وهلورا غورزولے کیږی، هغه ورځ چه نهٔ به پکښے دَ دوئ تدبیرونه په کار راځی اونهٔ به ورله څوک امداد له ورځی۔ اودَ دغه وخت دَ راتلونه مخکښے هم دَ ظالمانو دَپاره یوعذاب دے، لیکن په دوئ کښے اکثر نهٔ پوهیږی۔[۳۷]

داصفاصفا اُووئیلے شوچه دَ دے دعوت دَ ختمولو دَپاره څومره تدبیرونه تاسوکول غواړئ هغهٔ اُوکړئ۔ هغه به ټول اُلټا ستاسو خلاف کیږی اوتاسو به دے په شکست ورکولوکښے هرګز کامیاب نهٔ شی۔

۳۵ ؎ یعنی حقیقی خبره داده چه هغوئ دَ چانه معبودان جوړکړی دی هغوئ په حقیقت کښے معبودان نهٔ دی اوشرک سراسر یو بے بُنیاده څیز دے۔ داوجه ده چه څوک دَ توحید دَ دعوت سره راپاسیدلے دے دَ هغه سره دَ رښتیاؤ طاقت دے اوڅوک چه دَ شرک مرسته کوی هغوی دَ یو بے حقیقته څیز دَپاره جنګ کوی۔ په دِے جنګ کښے به شرک آخرڅنګه کټه اُوکړی؟

۳۶ ؎ دَ دِے حکم مقصد یو طرفته داد ے چه دَ قریشو دَ سردارانو ضد ړاګے ته کړے شی، او بل طرفته رسول الله صلی الله علیه وسلّم او دَ هغه ملګرو له تسلّی ورکړے شی۔ دَ نبیؐ او دَ صحابه کرامو په زړه کښے به بار بار دا خواهش را پیدا کیدو چه دے خلقوته دِ دَ الله تعالیٰ دَ طرفنه یوه داسے معجزه اُوښودلے شی چه په هغې سره دوئ ته دَ محمدؐ دَ پیغمبرئ صداقت معلوم شی۔ په دے حقله اُوفرمائیلے شو چه دوئ که یوه معجزه په خپلو سترګو هم اُووینی خو بهرحال دوئ به دَ هغې څه بَدَله تشریح کوی او په خپل کُفر باندِ دَ ټینګیدو دَپاره به څه بهانه لټوی، ځکه چه دَ هغوئ زړونه ایمان راوړلوته تیار نهٔ دی۔ په قرآن مجید کښے په نورو ډیرو ځایونو کښے هم دَ هغوی دَ دے ضد ذکرشوے دے۔ مثلاً په سورة انعام کښے فرمائی "که چرے مونږه فرښتے هم په هغوی نازلے کړے وے اومړو دَ هغوئ سره خبرے کړے وے اودَ ټولے دُنیا څیزونه مونږه دَ هغوی مخے ته راجمع کړے وے خو بیا هم هغوئ ایمان راوړونکی نهٔ وُو" (آیت ۱۱۱)۔ او په سورة حجر کښے

وَاصْبِرْ لِحُكْمِ رَبِّكَ فَإِنَّكَ بِأَعْيُنِنَا وَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ حِينَ تَقُومُ ﴿٤٨﴾ وَمِنَ اللَّيْلِ فَسَبِّحْهُ وَإِدْبَارَ النُّجُومِ ﴿٤٩﴾

اے نبیؐ، دَ خپل رب دَ فیصلے دَ راتلو پورے صبر کوه[۳۸]، ته زمونږ په نظر کښے ئے[۳۹]، څه وخت چه ته پا سے نو دَ خپل رب دَ حمد سره دَ هغه تسبیح وایه[۴۰]، دَ شپے هم دَ هغه تسبیح وایه[۴۱] او ستوری چه کله واپس کیږی په هغه وخت کښے هم[۴۲]۔

فرمائی، "که چرے مونږه دوئ ته دَ آسمان دروازے هم پرانستے وے او دوئ په رڼړا وَرځ په هغے کښے ورختلے هم وے، بیا به هم دے خلقو دا ویئلے چه زمونږه سترگے دوکه کیږی، بلکه په مونږه جادو شوے دے"۔ (آیت ـ ۱۵)۔

[۳۷] دا دوباره بیا هغه خبره شوی ده کومه چه په سورة السجده آیت ۲۱ کښے تیره شوی ده چه "دَ هغه لوئ عذاب نه مخکښے به مونږه په دے دُنیا کښے دَ یو وړوکی عذاب مزه دوئ ته ورڅکوو، شاید چه دوئ دَ خپل باغیانه عمل نه منع شی"۔ یعنی په دُنیا کښے مونږ وخت په وخت شخصی او قومی مصیبتونه نازلوُو او دوئ ته دا خبره وریادَوُو چه دَ پاس نه یو بالا سر طاقت دَ دوئ دَ قسمتونو فیصلے کوی او هیڅوک دَ هغه دَ فیصلے دَ بدلولو طاقت نهٔ لری۔ لیکن کوم خلق چه په جهالت کښے مبتلا دی هغوئ نه مخکښے دَ دے نه څه سبق اغستلے دے او نهٔ به تردَ آئنده دَ پاره څه سبق واخلی۔ په دُنیا کښے چه کوم واقعات کیږی دَ هغے په مطلب هغوئ نهٔ پوهیږی، دا وجه ده چه دَ هغے هر هغه تشریح کوی کومه چه دوئ دَ حقیقت نه نور هم زیات لرے کوی، او دا سے تشریح ته دَ هغوئ ذهن هډو را گرزی نهٔ چه په هغے سره دَ هغوئ دَ خپل دهریت یا دَ خپل شرک غلطی هغوئ ته واضحه شی، هم دا خبره ده چه په یو حدیث کښے رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی ده "إِنَّ الْمُنَافِقَ اذا مرض ثم اعفی کان کالبعیر عقله اهله ثم ارسلوه فلم یدر لِمَ عقلوه و لم یدر لم ارسلوه" (ابوداؤد ـ کتاب الجنائز)۔ "یعنی منافق سړے چه کله ناجوړه شی او بیا ښه شی نو دَ هغه مثال دَ هغه اُوښ پشان وی چه هغه خپلو مالکانو اُوتړونو هغه پرهیڅ پوهه نهٔ شو چه ولے ئے هغه تړلے دے او چه کله ئے پرانستو نو هغه هیڅ پوهه نهٔ شو چه ولے ئے پرانستو"۔ (دَ زیاتے تشریح دَ پاره اُوگورئ تفهیم القرآن دریم جلد، الانبیاء، حاشیه ۴۵ ـ النمل، حاشیه ۶۶ ـ العنکبوت، حاشیه ۷۲-۷۳)۔

[۳۸] دویم مطلب دا هم کیدے شی چه په صبر او استقامت سره دَ خپل رب حکم منه او په هغے مضبوط وُدریږه۔

[۳۹] یعنی مونږه ستا نگرانی کوؤ ـ ته موږ خپل حال نهٔ ئے پریښودے۔

[۴۰] دَ دے حکم ویر مطلبونه کیدے شی، او کیدے شی چه دا ټول ترمُراد وی۔ یو مطلب دا دے چه ته کله دَ مجلس نه پا سے نو دَ الله حمد او تسبیح وایه ـ نبی صلی الله علیه وسلم به پخپله په دے باندے عمل کولو، او مسلمانانو ته ئے هم دا فرمائیلی وُو چه دَ مجلس نه پا سئ نو دَ الله حمد او تسبیح وایئ، په دے سره

دَ هغه ټولو خبرو کفّاره اداکیږي کومې چه په هغه مجلس کښې شوي وي - ابوداؤد، ترمذي، نسائيؒ او حاکم دَ حضرت ابوهریره په واسطه سره دَ نبيؐ دا حدیث نقل کړے دے چه یو سړے په یو مجلس کښې ناست وي او په هغې کښې هر رنګه خبرې اترې شوي وي، نو هغه که چرے دَ پاسیدو نه مخکښې دا الفاظ اُووائي نو الله تعالیٰ هغه خبرې معاف کوي کومې چه هلته شوي وي: سبحانك اللّهم وبحمدك، اشهد ان لا اله الا انت، استغفرك و اتوب اليك - " اے خدایا، څه ستا دَ حمد سره ستا تسبیح وایم، څه ګواهي کوم چه ستا نه بغیر بل خدائے نشته، څه ستا نه بخښنه غواړم او تا ته توبه اُوباسم".

دویم مطلب دَ دے دا دے چه کله تهٔ دَ خوب نه راویښ شے او دَ بسترے نه پاسے نو دَ خپل رب دَ تسبیح سره دَ هغه حمد وایه - په دے بانډې به هم نبي صلی الله علیه وسلّم پخپله عمل کولو او خپلو صحابوته ئے دا تعلیم ورکړے وُو چه دَ خوب نه راویښ شئ نو دا الفاظ وایئ، لا اله الا الله وحده لا شریك له، له الملك وله الحمد و هو علیٰ کل شيءٍ قدیر - سبحان الله والحمدُ لله، ولا اله الا الله، والله اکبر، ولا حول ولا قوة الا بالله - (مسند احمد، بخاري، په روایت دَ عُبادهؓ بن الصامت).

دریم مطلب دَ دے دا دے چه کله تهٔ مانځه ته ودریږے نو شروع دَ الله دَ حمد او دَ تسبیح نه کوه - په دے حکم بانډې دَ عمل کولو دَ پاره رسول الله صلی الله علیه وسلّم دا اُوفرمائیل چه دَ تکبیر تحریمے (یعنی الله اکبر) نه روستو دَ مونځ شروع په دے الفاظو سره کوئ، سبحانك اللّهم وبحمدك وتبارك اسمك وتعالیٰ جدك ولا اله غیرك -

څلورم مطلب دَ دے دا دے چه کله تهٔ دَ الله طرفته خلقوله دعوت ورکوے نو دَ هغې شروع دَ الله دَ حمد او تسبیح نه کوه - دا هم دَ نبي صلی الله علیه وسلّم مستقل معمول وُو چه هغه به همیشه خپلے خطبے دَ الله دَ حمد او دَ ثنا نه شروع کولے -

مفسّر ابن جَریر دَ دے یو بل مطلب دا بیان کړے دے چه کله تهٔ دَ غرمے دَ خوب (قیلوله) نه راپاسے نو مونځ کوه، او دَ دے نه مراد دَ ماسپخین مونځ دے -

[41] دَ دے نه مُراد دَ ماښام او دَ ماسختن او دَ تهجّد مونځونه هم دي، او دَ قرآن تلاوت هم او دَ الله ذکر هم -

[42] دَ ستورو دَ واپس کیدو نه مُراد دَ شپے په آخري حصّه کښې دَ هغوئ ډوبیدل او دَ صبا په سپینوالي کښې دَ هغوئ رڼا تتیدل دي - دا دَ سحر دَ مانځه وخت دے -

# النجـم

**نـوم** دَ دے سورۃ نوم دَ اولنی لفظ وَالنَّجْمِ نه اغستلے شوے دے ۔ دا نوم هم دَ مضمون په لحاظ سره دَ سورۃ عنوان نهٔ دے بلکه صرف دَ علامے په طور یو نوم دے ۔

**دَ نازلیدو زمانه** په بخاری، مُسلم، ابوداؤد، او نسائیؒ کښے دَ حضرت عبدالله بن مسعودؓ روایت دے چه اَوَّلُ سُوْرَةٍ اُنْزِلَتْ فِيْهَا سَجْدَةٌ النَّجْمِ (النجم اولنے سورۃ دے چه دَ سجدے آیت پکښے نازل شوے دے) ۔ دَ دے حدیث کومے حصّے چه دَ اَسْود بن یزید، دَ ابو اسحاق او دَ زُهَیر بن معاویه په روایتونو کښے دَ حضرت ابن مسعودؓ نه نقل شوی دی دَ هغے نه معلومیږی چه دا دَ قرآن هغه اولنے سورۃ دے چه رسول الله صلی الله علیه وسلّم دَ قریشو په یو عام مجلس کښے (او دَ ابن مَرْدُوَیه دَ روایت مطابق په حرم کښے) اوروَلے وُو ۔ په عام مجلس کښے کافران او مومنان ټول موجود وُو ۔ په آخر کښے چه کله نبیؐ دَ سجدے آیت اُولوستلو او سجده ئے اُوکړه نو ټولو حاضرو خلقو دَ هغه سره سجده اُوکړه او دَ مشرکانو هغه لوئ لوئ سرداران، چه دَ نبیؐ په مخالفت کښے په مخکښے مخکښے وُو، هم دَ سجدے نه بغیر پاتے نهٔ شو ۔ ابن مسعود رضی الله عنه فرمائی چه ما په کافرانو کښے صرف یو سړے اُمَیّه بن خَلَف اُولیـدو چه هغه دَ سجدے کولو په ځائے څه خاوره را اُوچته کړه او دَ خپل تندی سره ئے اُولګوله او وے وئیل چه ځما دَ پاره بس دا کافی ده ۔ روستو بیا ما اُولیدو چه هغه دَ کفـر په حالت کښے قتل شو ۔

دَ دے واقعے دویم دَ سترګو کواه حضرت مُطَّلِب بن ابی وداعهؓ دے چه په هغه وخت کښے لا مسلمان شوے نهٔ وُو ۔ په نسائیؒ او په مُسْنَدِ احمد کښے دَ هغه خپل دا بیان دے چه کله نبیؐ سورۃ النَّجْمِ اُولوستلو او سجده ئے اُوکړه او ټول حاضر خلق دَ هغه سره په سجده پریوتـل نو ما سجده اُونهٔ کړه، او دَ هغې کیے څه اُوس په دے طریقه پوره کوم چه دَ دے سورۃ دَ تلاوت په وخت کښے سجده هیڅکله نهٔ پریږدم ۔

دَ ابن سعید بیان دے چه دَ دے نه مخکښے دَ نبوّت دَ پنځم کال په رجب میاشت کښے دَ صحابه کرامو یو وړوکی شان جماعت حبشے ته هجرت کړے وُو ۔ بیا چه کله هم په دغه کال کښے دَ رمضان په میاشت کښے دا واقعه اُوشوه چه رسول الله صلی الله علیه وسلّم دَ قریشو په عام مجلس کښے دَ سورۃ نجم تلاوت اُوکړو او کافران او مومنان ټول دَ هغه سره په سجده پریوتـل، نو دَ حبشے مهاجرینو ته دا قیصه په دے شکل کښے اُورسیده چه دَ مکے کافران مسلمانان شوی دی ۔ دَ دے خبر په آوریدو سره څه مهاجرین دَ نبوّت په پنځم کال په شوال میاشت کښے مکے ته واپس راغلل ۔ خو چه دلته راغلل نو معـلومه شوه چه ظلم هم هـغسے دے لکه څنګه چه مخکښے وُو ۔

آخر داچه حبشے ته دویم هجرت اُوشو چه په هغې کښے د اولنی هجرت نه هم زیات خلق د مکے نه لاړل -

دغه شان دا خبره تقریباً یقینی طور معلومیږی چه دا سورة د نبوّت د پنځم کال په رمضان میاشت کښے نازل شوے دے -

## مخکینی تاریخی حالات

د دے سورة د نازلیدو د زمانے نه معلومیږی چه دا سورة په کومو حالاتو کښے نازل شوے وُو - د نبوّت د شروع کیدو نه واخله د پنځو کالو پورے به رسول الله صلی الله علیه وسلّم صرف پخپلو ذاتی او خاصو مجلسونو کښے د الله کلام اورولو او د الله دین ته به ئے خلق رابلل - په دے ټوله موده کښے نبیؐ ته چرته په عام مجلس کښے د قرآن اورولو موقعه نهٔ وه میلاوُ شوی ، ځکه چه کافران مخے ته یو لوئ رکاوټ وُو - هغوئ ته د دے خبرې ښه اندازه وه چه د نبیؐ په ذات کښے او د هغه په تبلیغ کښے، او د قرآن مجید په آیتونو کښے څومره لوئ اَثر وُو - په دے وجه هغوئ به کوشش کوُو چه نهٔ پخپله واوری ، نهٔ ئے بل څوک واوری ، او د نبیؐ خلاف به ئے قِسما قِسم غلطے خبرې خورولے او تش د دروغو پروپیګنډو په زور به ئے د هغهٔ د دعوت مقابله کوله - د دے غرض دپاره به یو طرفته هغوئ ځائے په ځائے دا خبره مشهوروله چه محمد صلی الله علیه وسلّم بے لارے شوے دے او خلق ګمراهه کوی - بل طرفته د هغوئ دا مستقل کار وُو چه په کوم ځائے کښے به نبیؐ د قرآن اورولو کوشش کولو هلته به هغوئ شور جوړکړو چه خلقو ته هډو دا پته اُونهٔ لږی چه هغه کومه خبره ده چه خلق پرِ نبیؐ ته ګمراهه او بے لارے وائی -

په دے حالاتو کښے یوه وُرځ رسول الله علیه وسلّم په حرم شریف کښے ، چه هلته د قریشو ګڼړ خلق موجود وُو ، ناساپه د تقریر د پاره وُدریدو او په هغه وخت کښے د الله تعالیٰ د طرفنه د نبیؐ په ژبه مبارکه دا خُطبه جاری شوه کومه چه د سورة نجم په شکل کښے زمونږه مخے ته ده - د دے کلام د اَثر دا حال وُو چه کله هغه دا شروع کړو نو د مخالفو خلقو هم وشور کولو ته فکر نهٔ شو ، او کله چه ختم شو او نبیؐ سجده اُوکړه نو ورسره هغوی هم په سجده پریوتل - روستو بیا هغوئ سخت پریشانه وُو چه دا زمونږه څه کمزوری اُوشوه ، او خلقو پرِهم ملامتیا ویئل شروع کړه چه نور خلق د دے کلام د اوریدو نه منع کوئ ، نن مو نهٔ صرف پخپله واوریدو بلکه د محمد صلی الله علیه وسلّم سره مو سجده هم اُوکړه - آخر دا چه هغوئ د ځان خلاصولو د پاره دا خبره جوړه کړه چه مونږ خو ، اَفَرَءَیْتُمُ اللّٰتَ وَالْعُزّٰی، وَمَنٰوۃَ الثَّالِثَةَ الْاُخْرٰی نه روستو د محمدؐ د خُلے نه دا الفاظ اوریدلی وُو ، تلك الغرانقة العُلیٰ ، و ان شفاعتهن لترتجیٰ ( دا د اُوچتے مرتبے دیوګانړے دی او د دوئ شفاعت خامخا متوقع دے ) ، په دے وجه زمونږه دا خیال راغے چه محمد زمونږه لارے ته واپس راغے - حالانکه صرف یو پاګل سړی دا سوچ کولے شو چه د دے ټول سورة په عبارت کښے هغه فقرے

هم سمون خوري دَ کومو په حقله چه دَهغوی دعویٰ وه چه دَ هغوئ غوږونو اوريدلی دی (دَ تفصيل دَپاره اُوګوره تفهيم القرآن، دريم جلد، الحج، حاشيے ۹۶ تا ۱۰۱)۔

**موضوع اومضمون** | دَ مکے کافرانو چه دَ قرآن او دَ محمد صلی الله عليه وسلّم په مقابله کښے کومه لار خپله کړی وه دَ هغے خبردارے ورکول دی چه دا غلطه ده۔

دَ کلام شروع په دے طريقه شوی ده چه محمد صلی الله عليه وسلّم بے لارے او ګمراهه سړے نهٔ دے، لکه څنګه چه تاسو دَ هغه په حقله شهرت کوئ، او نهٔ دَ اِسلام دا تعليم او دعوت هغه دَ خپله ځانه جوړکړے دے، لکه څنګه چه ئے تاسو ګنړئ، بلکه هغه چه څه پيش کوی دا خالصه وحی ده چه په هغه نازليږی۔ کوم حقيقتونه چه هغه ستاسو په مخکښے بيانوی دا هغه دَ خپل قياس او ګمان نه نهٔ دی جوړکړی بلکه دا هغه په خپلو سترګو ليدلی دی۔ هغهٔ هغه فرښته په خپله ليدلی ده دَ کومے په ذريعه چه هغه ته دا علم ورکړے کيږی۔ هغه ته دَ خپل رب لوئے لوئے ښنے نيغ په نيغه ښودلے شوی دی۔ هغه چه څه وائی نو دَ سوچ نه پس ئے نهٔ وائی، بلکه دَ ليدلو نه پس ئے وائی۔ دَ هغه سره ستاسو جګړه بالکل داسے ده لکه څنګه چه يو ړوند دَ سترګو والا سره په هغه څيز جګړه شروع کړی کوم چه هغه ته په نظر نهٔ راځی او سترګو والا ته په نظر راځی۔

دَ دے نه روستو ترتيب وار دريے مضمونونه بيان شوی دی؛

اوّل اوريدونکوته وئيلے شوی دی چه تاسو په کوم دين پسے روان يئ هغه تش ګمانونه او دَ خپله ځانه جوړکړی قياسونه دی۔ تاسو دَ لات او دَ منات او دَ عُزّیٰ غوندے دريو ګنړونه معبودان جوړکړی دی حالانکه په خدائيئ کښے دَ هغوی هيڅ حصّه نشته۔ تاسو فرښتوته دَ الله لونړه وايئ، حالانکه تاسو دَ خپل ځان دَپاره لُور شرم ګنړئ۔ تاسو په خپل سر کښے دا فرض کړی ده چه ستاسو دا معبودان په الله تعالیٰ ستاسو کار کولے شی، حالانکه ټولے مقرّبے فرښتے چه رايوځائے شی نو هم په الله باندے خپله څه خبره نشی منلے۔ دَ دے قِسم عقيدو لاندے چه تاسو ژوند تيروئ په هغے کښے يوه عقيده هم دَ علم او دَ دليل په بُنياد باندے نهٔ ده، بلکه څه خواهشات دی چه دَ هغے دَ خاطره تاسو څيني وهمونه حقيقت ګنړلی دی۔ دا يوه ډيره غټه بُنيادی غلطی ده چه تاسو په کښے اخته يئ۔ دين هغه صحيح دے چه هغه دَ حقيقت مطابق وی۔ او حقيقت دَ خلقو دَ خواهشاتو تابع نهٔ وی چه خلق څه ته حقيقت اُووائی نو هغه به حقيقت وی۔ دَ حقيقت سره دَ مطابقت پيدا کولو دَپاره قياس او ګمان کار نهٔ کوی، بلکه دَ هغے دَپاره علم ضروری دے۔ هغه علم چه تاسوته پيش کړے کيږی نو تاسو ترے مخ اړوئ او اُلټا هغه سړی ته ګمراهه وايئ چه هغه تاسوته صحيح خبره ښائی۔ ستاسو دَ دے غلطئ اصل وجه دا ده چه ستاسو سره دَ آخرت څه فکر نشته، بس دُنيا مو خپل غرض جوړ کړے دے۔ په دے وجه نهٔ تاسو دَ حقيقت علم زده کوئ او نهٔ دَ دے خبری څه پروا

لرئ چه ستاسو کومه عقیده ده چه هغه دَ حق مطابق ده اوکه نهٔ ده -

دویم خلقو ته دا و ښئیلے شوی دی چه خاص الله دَ ټول کائنات مالک او اختیار مند دے په نیغه لار هغه څوک دے، څوک چه دَ هغه په لاره وی، اوګمراهه هغه څوک دے څوک چه دَ هغه دَ لارے نه بے لارے وی - دَ خلقو دَ ګمراهئ او دَ هغوئ په نیغه لاره دَ تلو حال دَ هغه نه پټ نهٔ دے - دَ هر چا عمل هغه ته معلوم دے دَ هغه په دربار کښے به دَ بدئ بدله بده او دَ نیکئ بدله نیکه وی - اصل فیصله به په دِے خبره نهٔ وی چه تاسو په خپل ګمان کښے ځان څه ګنړلو، او په خپله مو دَ خپل ځان دَ پاکئ څومره دعوے کولے، بلکه فیصله به په دے خبره وی چه دَ خدائے په علم کښے تاسو متقیان یئ اوکه نهٔ - که چرے تاسو دَ لویو لویو ګناهونو نه ځان اوساتو نو دَ هغه رحم دومره فراښه دے چه واړه واړه ګناهونه به در نه معاف کړی -

دریم، دَ حق دین یو څو هغه بُنیادی خبری خلقو ته پیش کړے شوِے چه هغه دَ قرآن مجید دَ نازلیدو نه په سَوونو کاله مخکښے دَ حضرت ابراهیمؑ او دَ حضرت موسیٰؑ په صحیفو کښے بیان شوے وِے، دَ پاره دَ دے چه خلق په دے غلط فهمئ کښے پاتے نشی چه محمد صلی الله علیه وسلّم کُنی یو نوے او نا آشنا دین راوړے دے، بلکه چه هغوئ ته دا معلومه شی چه دا هغه بُنیادی حقیقتونه دی چه همیشه دَ خدائے پیغمبرانو بیان کړی دی - دَ دے سره دَ هغه صحیفو نه دا خبره هم نقل کړے شوی ده چه دَ عاد او دَ ثمود او دَ نوحؑ دَ قوم او دَ لوطؑ دَ قوم تباهی هسے اتفاقی نهٔ وه بلکه الله تعالیٰ هغوئ دَ هغے ظلم او سرکشئ په سزا کښے هلاک کړی وُو په کوم ظلم او سرکشئ کښے چه دَ مکے کافران اخته وُو او په هیڅ شان سره دَ هغے نه اوړیدو ته تیار نهٔ وُو -

دَ دے نه روستو تقریر په دے خبره ختم کړے شوے دے چه دَ فیصلے وخت رانژدے شوے دے هغه څوک بدلولے نشی - دَ هغه وخت دَ را تلو نه مخکښے دَ محمد صلی الله علیه وسلّم او دَ قرآن مجید په ذریعه تاسو ته هغسے خبردارے درکړے کیږی لکه څنګه چه مخکینی خلق خبردار کړے شوی وُو - آیا اوس هم دا هغه خبره ده چه تاسو ته نا آشنا ښکاری؟ چه تاسو ورپورے خندا کانے کوئ؟ چه تاسوئے پخپله هم اوریدل نهٔ غواړئ او شور دَ دے دَ پاره جوړوئ چه نور څوک ئے هم وانوری؟ تاسو له په دے خپله بے وقوفتیا باندِ ژړا نهٔ درځی؟ بس کړئ. دا خپل کار، الله ته سر ښکته کړئ او دَ هغه بندګی اوکړئ -

دا هغه اثر ناکه تقریر وُو چه دَ دے په اوریدو سره دَ سخت نه سخت کافران هم ټینګ نهٔ شول او رسول الله صلی الله علیه وسلّم چه کله دا کلام اولوستو او سجده ئے اوکړه نو هغوئ هم بے اختیاره په سجده پریوتل -

---

## سُوْرَةُ النَّجْمِ مَكِّيَّةٌ

ایاتها ۶۲ — رکوعاتها ۳

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

وَالنَّجْمِ إِذَا هَوٰى ① مَا ضَلَّ صَاحِبُكُمْ وَمَا غَوٰى ②

قسم دے په ستوری[1] کله چه هغه ډوب شو، ستاسو ملګرے[2] نۀ بے لارے شوے دے او نۀ په غلطه لار روان شوے دے[3] -

[1] په اصل کښې لفظ "النَّجْم" استعمال شوے دے۔ ابن عباس، مجاهد، او سُفیان ثَوری وائی چه ددے نه مُراد ثریّا ستورے (Pleiades) دے۔ ابنِ جَریر او زَمَخشَری دے قول له ترجیح ورکړې ده، ځکه چه په عربئ ژبه کښې کله مطلقاً لفظ النَّجْم وئیلے کیږی نو عام طور د هغې نه مراد ثریّا ستورے وی۔ سُدّی وائی چه ددے نه مراد زُهره ستورے (Venus) دے۔ او ابو عبیده نَحوی وائی چه دلته د النَّجْم نه مراد عام ستوری دی، یعنی مطلب دا دے چه کله سحر شو او ټول ستوری ډوب شو۔ د موقع او د محل په لحاظ سره زمونږ په نیز دا آخری قول د ټولو نه زیات قابل ترجیح دے۔

[2] مراد تری رسول الله صلی الله علیه وسلّم دے او خبره قریشو ته ده۔ اصل الفاظ صَاحِبُكُمْ (ستاسو صاحب) استعمال کړے شوے دے۔ "صاحب" په عربئ ژبه کښې دوست، ملګری، رفیق، یوځائے ناسته پاسته کوُنکی ته وائی۔ دلته د نبیؐ نوم نۀ دے اغستلے شوے او نۀ د "زمونږه رسول" الفاظ وئیلے شوی دی بلکه د دے په ځائے "ستاسو ملګرے" وئیلے شوے دے، نو په دے کښې ډیر زور مطلب پروت دے۔ د دے دا مقصد دے چه د قریشو فکرد خبری ته را اُوګرزی چه کوم سړے تاسو ته یا دولے کیږی هغه تاسو ته د بهرنه نۀ دے راغلے، څه نا اشنا سړے نۀ دے چه کِنی د محکښې نه ئے نۀ پیژنئ۔ ستاسو د خپل قوم سړے دے۔ ستاسو سره یوځائے ژوند تیروی۔ ستاسو بچے بچے هغه پیژنی چه څوک دے، د کوم خوئ انسان دے، څنګه ئے معاملات دی، څنګه ئے عادتونه او خصلتونه دی، او د نن ورځ پورے ستاسو تر منځه د هغه ژوند څنګه دے۔ د هغه په باره کښې که څوک ځان سترے کړی او څه اُووائی نو په تاسو کښې په زرګونو خلق داسے موجود دی چه هغه بنه پیژنی او په دے بنه پوهیږی چه دا خبره د هغه سره لږې هم اوکه نۀ۔

[3] دا ده هغه خبره چه د ډوبیدونکی ستوری یا د ډوبیدونکو ستورو قسم پرِ خوړلے شوے دے۔ د ضَلَّ نه مراد دے چه یو سړی ته لار نۀ وی معلومه او د هغې په وجه په غلطه لار روان شی او د غَوٰی نه مراد دے چه یو سړے قصداً په غلطه لار روان شی۔ د آیت مطلب دا دے چه په محمد صلی الله علیه وسلّم باندِ ستاسو دا الزام بالکل غلط دے چه هغه ګمراه شوے یا بے لارے شوے دے۔ په حقیقت کښې نۀ هغه بے لارے شوے دے او نۀ په غلطه لار روان شوے دے۔ په دے خبره باندِ چه د ستورو د ډوبیدو قسم په کوم مناسبت سره

وَمَا يَنْطِقُ عَنِ الْهَوٰى ③ اِنْ هُوَ اِلَّا وَحْيٌ يُّوْحٰى ④ عَلَّمَهٗ

هغه دَ خپل نفس دَ خواهش نه خبرې نهٔ کوی ، دا خو یوه وحی ده چه په هغه نازَوَلے کیږی[۴] - هغهٔ ته

خوړلے شوے دے هغه دا دے چه دَ شپے په تیاره کښے کله ستوری را ختلی وی نو سړے دَ خپل خواوُشا څیزونه صفا نشی لیدلے او دَ مختلفو څیزونو دَ خړوخړو شکلونو په باره کښے دَ غلطے اندازے لګولو امکان وی - مثلاً په تیاره کښے دَ لرے نه یوه وُنه هسے یو بَوبنکاری - ړَتے سړی ته مار بنکاری - دَ ځاورے خښ سړی ته یو خطرناک ځناور بنکاری - لیکن کله چه ستوری ډوب شی او صبا را اُوخیژی نو هر څیز په خپل اصلی شکل کښے بنکاره شی - دا رنګے معامله ستاسو دَ محمد صلی اللہ علیه وسلّم سره هم ده چه دَ هغه ژوند په تیاره کښے پټ نهٔ دے بلکه دَ صبا په شان بنکاره دے - تاسو ته پته ده چه ستاسو دا "صاحب" یو بنه طبیعت والا هوښیار سړے دے - دَ هغه په باره کښے به دَ قریشو یو سړے څنګه دوکه شی چه هغه بے لارے شوے دے - تاسو ته دا هم پته ده چه هغه ډیر نیک او ریښتینے سړے دے - دَ هغه په حقله په تاسو کښے څوک دا څنګه ویلے شی چه هغه قصداً ځنپله هم په کږه لاره روان شوے دے او نورخلق هم دغه کږے لارے ته را بَلی -

[۴] مطلب دا دے چه دَ کومو خبرو په وجه تاسو په هغه باندِ دا الزام لګوئ چه هغه ګمراه شوے دے یا په غلطه لار روان شوے دے ، هغه خبرې هغه دَ خپله ځانه نهٔ دی جوړے کړی ، نهٔ ئے دَ خپل نفس دَ خواهش نهٔ ویلی دی ، بلکه هغه دَ اللّٰه دَ طرفنه په هغه باندِ دَ وَحی په ذریعه نازلے شوی دی او نازلیږی - نبی جوړیدو ته دَ هغه خپل زړه نهٔ وُو چه ګنی دَ خپل خواهش پوره کولو دَپاره هغه دَ نبوّت دعویٰ اُوکړی ، بلکه اللّٰه تعالیٰ چه ورله دَ وَحی په ذریعه پیغمبری ورکړه نو پس دَ هغے هغه ستاسو په منځ کښے دَ پیغمبریٔ دَ تبلیغ دَپاره را پاسیدو او تاسو ته ئے اُوویل چه ځهٔ ستاسو دَپاره دَ خدائے نبی یم ، دغه شان دَ اِسلام دا دعوت ، دَ توحید دا تعلیم ، دَ آخرت او دَ حشر او دَ نشر او دَ عملونو دَ بدلے دا خبرې ، دَ کائناتو او دَ انسان په حقله دا حقیقتونه ، او دَ پاک ژوند تیرَولو دا اصول چه هغه پیش کوی ، دا ټول هرڅه هغه دَ خپله ځانه نهٔ دی جوړ کړی بلکه اللّٰه تعالیٰ دَ وحی په ذریعه هغه ته دَ دے خبرو علم ورکړے دے - دغه شان دا قرآن چه هغه تاسو ته اَوروی ، دا هم هغه دَ خپله ځانه نهٔ دے جوړ کړے ، بلکه دا دَ خدائے کلام دے چه دَ وَحی په ذریعه په هغه باندِ نازلیږی -

دلته دا تپوس کیدے شی چه دَ نبی صلی اللّٰه علیه وسلّم په باره کښے دَ اللّٰه تعالیٰ دا فرمان چه "نبی دَ خپل نَفس دَ خواهش نهٔ خبرې نهٔ کوی بلکه هغه چه څه وائی هغه یوه وَحی ده چه په هغه باندِ نازلولے کیږی" ؛ دا دَ نبیؐ دَ کومو خبرو په حقله دے ؟ آیا دَ دے نه مُراد هغه ټولے خبرې دی کومے چه به هغه کولے ، یا ځینی خبرې ترِمراد دی او ځینی نهٔ دی ؟ دَ دے جواب دا دے چه ترڅو پورے دَ قرآن مجید په حقله خبره ده نو هغه په اَولیٰ درجه

دَ دے نه مُراد دے ۔ پاتے شوٗ هغه نورے خبرې چه دَ قرآن مجید نه علاوه به نبیؐ کولے نو هغه درے قِسمه کیدے شی ،

یو قِسم هغه خبرې چه هغه به دَ دین دَ تبلیغ اودَ دعوت اِلیٰ الله دَ پاره کولے ، یا به ئے دَ قرآن مجید دَ تعلیماتو او دَ هغې دَ حکمونو تشریح کوله ، یا به ئے دَ قرآن دَ مدعا پوره کولو دَ پاره وعظ او نصیحت کولو او خلقو ته به ئے تعلیم ورکولو۔ دَ دِے په حقله خوځا هره خبره ده چه دَ دِے شک کولو هیڅ گنجایش نشته چه دا خبرې به کِنې هغه (معاذالله) دَ خپله ځانه کولے ۔ په دِے خبرو کښے خو دَ هغه حیثیت په حقیقت کښے دَ قرآن دَ سرکاری ترجمان، او دَ الله تعالیٰ دَ مجازی نمائنده وُو ۔ دا خبرې به اگرچه په هغه باندِ هغسے ټکی په ټکی نهٔ نازلیدلے لکه څنګه چه به پر قرآن نازلیدو ، لیکن دا خبرې لازماً دَ هغې علم په بُنیاد باندِ وے کوم چه دَ وحی په ذریعه هغه ته ورکړے شوے وُو۔ په دے کښے معنے او مطلبونه هغه وُو کوم چه دَ الله دَ طرفنه هغه ته ښودلے شوی وُو او الفاظ دَ نبیؐ خپل وُو۔ دَ دِے فرق په بُنیاد باندِ قرآن ته وحیِ جَلِی ، او دَ نبیؐ نورو خبرو ته وحیِ خَفِی ویئلے کیږی ۔

دویم قِسم خبرې هغه وے چه هغه به دَ الله دَ کلِمے دَ اُوچتولو او دَ دین دَ قائمولو په سلسله کښے کولے ۔ په دے کار کښے به هغه دَ مسلمانانو دَ یومشر رهنما په حیثیت سره مختلف قِسم بے شماره کارونه کول ، په دا سے کارونو کښے هغه اکثر دَ خپلو ملګرونه مشوره هم اغستلی ده ، خپله رائے ئے پریښودی ده اودَ هغوی رائے ئے هم منلی ده ، دَ هغوی په تپوس سره ئے کله ناکله دا خبره صفا هم ویئلی ده چه دا خبره څهٔ دَ خدائے په حکم نهٔ کوم ، بلکه دَ خپلے رائے په طور ئے وایم ، او ډیرځله دا سے هم شوی ده چه نبیؐ دَ خپل اِجتهاد نه یوه خبره کړې ده او روستو دَ الله دَ طرفنه دَ هغې خلاف هدایت راغلے دے ۔ دا قِسم څومره خبرې چه نبیؐ کړې دی په هغې کښے یوه خبره هم دا سے نهٔ ده او قطعاً کیدے نهٔ شوه چه هغه به دَ هغه دَ خپل نفس دَ خواهش مطابق وه ۔ پاتے شوه دا خبره چه آیا دِے قِسم خبرو ته وحی ویئلے کیږی ؟ دَ دِے جواب دا دے چه بغیر دَ هغه خبرونه دَ کومو په حقله چه نبیؐ پخپله فرمائیلی دی چه دا دَ الله حکم نهٔ دے ، یا په کومو خبرو کښے چه نبیؐ دَ صحابو نه مشوره اغستلی ده او دَ هغوی رائے ئے قبول کړې ده ، یا دَ نبیؐ دَ قول او فعل نه روستو الله تعالیٰ دَ هغې خلاف حکم نازل کړے دے ، باقی نورے ټولے خبرې هم هغسے وحی خَفِی وے لکه څنګه چه دَ اوّل قِسم خبرې وے ۔ ځکه چه دَ اسلامی دعوت دَ مشرئ اودَ مومنانو دَ سردارئ او دَ اِسلامی حکومت دَ حاکم کیدو کوم منصب چه هغهٔ ته حاصل وُو هغهٔ پخپله نهٔ وُو حاصل کړے ، نهٔ ورله خلقو ورکړے وُو بلکه په هغې باندِ هغه دَ الله دَ طرفنه مقرر شوے وُو ، او دَ دِے منصب دَ حق ادا کولو دَ پاره چه به هغه څه ویل یا به ئے څه کول په هغې کښے دَ هغهٔ حیثیت دَ الله تعالیٰ دَ یو نمائنده وُو ۔ په دے کار کښے چه نبیؐ کومے خبرې دَ خپل اِجتهاد نه کړې دی په هغې کښے هم دَ هغهٔ اِجتهاد دَ الله

خوښ وُو او دَ هغه علم په رڼا کښے وُو کوم چه الله تعالی هغه له ورکړے وُو ۔ ځکه خو چه کله دَ نبیؐ اِجتهاد یوه ذره دَ الله دَ مرضا نه خلاف شوے دے نو په هغه وخت فوراً په وحی جَلِی سره

شَدِيدُ الْقُوَىٰ ۝ ذُو مِرَّةٍ فَاسْتَوَىٰ ۝ وَهُوَ بِالْأُفُقِ

یو زبردست قوّت والا تعلیم ورکړے دے[۵] چه هغه ویرۃ حکمت خاوند دے[۶]۔ هغه مخامخ راغے او ودریدو

ډ هغے اصلاح شوی ده ۔ ډ نبیؐ ډ څینو اجتهاداتو دا اصلاح کول پخپله ډ دے خبرې دلیل دے چه ډ نبیؐ باقی ټول اجتهادونه بالکل ډ الله تعالیٰ ډ مرضیٔ مطابق وُو۔

دریم قِسم خبرې هغه وے چه نبیؐ به ډ یو انسان په حیثیت سره ډ ژوند په عامو معاملاتو کښے کولے ، چه ډ هغے تعلق به ډ پیغمبرئ ډ کارونو سره نهٔ وُو ، چه نبیؐ به ډ نبوّت نه مخکښے هم کولے او ډ نبوّت نه روستو به ئے هم کولے ۔ ډ دے قِسم خبرې په حقله ډ ټولونه اوّل په دے خبره ځان پوهه کول پکار دی چه ډ هغه خبرو په باره کښے ډ کافرانو سره هیڅ جګړه نهٔ وه ۔ کافرانو ډ هغے په وجه نهٔ هغه ته بے لارے وئیلے وُو او نهٔ ئے ورته په غلطه لار روئیلے وُو بلکه په اولنو دوُو قِسمو خبرو باندِ به هغوئ دا الزامونه لګول ۔ په دے وجه دا دریم قِسم خبرې هډو ډ بحث لاندِ نهٔ وے چه الله تعالیٰ ډ هغے په باره کښے دا آیت نازل کړے وے۔ لیکن دلته اګرچه په دے قِسم خبرو باندِ هډو څه بحث نهٔ وُو خو بیا هم دا حقیقت دے چه ډ رسول الله صلی الله علیه وسلّم ډ خُلے نه یوه خبره هم ډ خپل ذاتی ژوند په اړخ کښے ډ حق نه خلاف نهٔ وه شوی ، بلکه هروخت به په هرحال کښے ډ نبیؐ قول اوفعل په هغه حدکښے ډ ننه وُو کوم چه الله تعالیٰ ډ یو پیغمبرئ ژوند تیرَولو ډ پاره هغه ته ښودلے وُو ۔ نو په حقیقت کښے ډ وحی نُور په هغے کښے هم موجود وُو ۔ هم دا خبره ډ رسول الله صلی الله علیه وسلّم په څینو احادیثو کښے نقل کړے شوی ده ۔ په مُسنَدِ احمد کښے ډ حضرت ابوهریرهؓ روایت دے چه په یوه موقعه کښے نبیؐ اُوفرمائیل لا اقول الّا حقّا " څه ډ حق نه سِوا بله هیڅ خبره نهٔ کوم "۔ یو صحابی عرض اُوکړو ، فإنّك تداعبنا یا رسول الله ، " اے ډ الله رسوله کله ناکله خوتهٔ زمونږ سره ټوقے خندا هم کوے "۔ نبیؐ اُوفرمائیل إنّی لا أقول الّا حقّا ، " واقعی چه څه ډ حق نه سِوا بل هیڅ نهٔ وایم "۔ په مُسنَدِ احمد او ابوداوُد کښے ډ حضرت عبدالله بن عَمرو بن عاص روایت دے ، هغه وائیٔ چه ما به څه ډ رسول الله صلی الله علیه وسلّم نه اوریدل هغه به مِ لیکل چه زما سره محفوظ پاتے شی ۔ ډ قریشو خلقو څه ډ دے نه منع کړم او وے وئیل چه ته هره خبره لیکے ، حالانکه رسول الله صلی الله علیه وسلّم انسان دے ، کله په غُصه کښے هم خبرې کوی ، نو ما لیکل پریښودل ۔ روستو ما دا خبره نبیؐ ته اُوکړه نو هغه اُوفرمائیل اکتب فوالّذی نفسی بیدہٖ ما خرج منّی الّا الحق ، " ته لیکه ، په هغه ذات مِ دِ قسم وی چه زما روح ډ هغه په لاس کښے دے ، زما ډ خُلے نه هیڅکله یوه خبره ډ حق نه سِوا نهٔ ده وتلی "۔ (په دے مسئله باندِ ډ زیات تفصیل ډ پاره اُوګوره زما کتاب تفهیمات اوله حصّه مضمون " رسالت اور اس کے احکام " ) ۔

[۵] یعنی انسان هغه ته ښودنه نهٔ کوی ، لکه څنګه چه ستاسو ګمان دے ، بلکه دا علم هغه ته په بالائی ذریعه حاصلیږی ۔ " ډ زبردست قوّت والا " نه مراد ډ څینو خلقو په نزد ډ الله تعالیٰ ذات دے ، لیکن ډ مفسّرینو لویه ډله په دے خبره متفق ده چه ډ دے نه مراد حضرت جبریل علیه السّلام دے ۔ ډ حضرت عبدالله بن مسعودؓ

د حضرت عائشہؓ ، دَ حضرت ابوهریرهؓ ، دَ قتاده ، دَ مجاهد اودَ ربیع بن انس نه هم دا قول نقل کړے شوے دے ۔ ابن جریر ، ابن کثیر ، رازی او آلوسی وغیره هم دا قول اختیار کړے دے ۔ شاولی الله صاحب او مولانا اشرف علی صاحب هم په خپلو ترجمو کښے دَ دے پیروی کړی ده ، او صحیح خبره داده چه په خپله دَ قرآن مجید دَ نورو ځایونو نه هم دا ثابته ده ۔ په سورة تکویر کښے دَ الله تعالیٰ فرمان دے : اِنَّهٗ لَقَوْلُ رَسُوْلٍ كَرِيْمٍ ، ذِىْ قُوَّةٍ عِنْدَ ذِى الْعَرْشِ مَكِيْنٍ ، مُّطَاعٍ ثَمَّ اَمِيْنٍ ، وَمَا صَاحِبُكُمْ بِمَجْنُوْنٍ ، وَلَقَدْ رَاٰهُ بِالْاُفُقِ الْمُبِيْنِ ۝ ( آیتونه ۔ ۱۹ ۔ ۲۳ ) ۔ " په حقیقت دا دَ یو بے بزرگے فرښتے بیان دے چه هغه زبردست قوّت والا ده ، دَعرش دَ مالک سره هغه لویه درجه لری ، دَ هغے حکم منلے کیږی او هلته هغه قابل اعتبار ده ۔ ستاسو ملګرے لیونے نهٔ دے ، هغه دغه فرښته دَ آسمان په ښکاره غاړه باندِ لیدلی ده "۔ بیا دَ سورة بقرے په آیت ۹۷ کښے دَ هغه فرښتے نوم هم بیان کړے شوے دے دَ کومے په ذریعه چه دا تعلیم دَ نبیؐ په زړه باندِ نازل شوے وُو : قُلْ مَنْ كَانَ عَدُوًّا لِّجِبْرِيْلَ فَاِنَّهٗ نَزَّلَهٗ عَلٰى قَلْبِكَ بِاِذْنِ اللّٰهِ ۔ دا ټول آیتونه چه دَ سورة نجم دَ دے آیت سره یو ځائے اُولوستے شی نو په دے خبره کښے څه شک نهٔ پاتے کیږی چه دلته دَ زبردست قوّت والا معلم نه مراد جبریل امین دے نهٔ چه الله تعالیٰ ۔ په دے مسئله باندِ تفصیلی بحث وړاندِ راځی ۔

دلته ځینی حضرات دا شُبهه ظاهروی چه جبریل امین ته دَ رسول الله صلی الله علیه وسلّم مُعلّم څنګه ویئلے کیدے شی ، دَ دے خو به دا مطلب وی چه هغه اُستاذ دے او نبیؐ شاګرد دے ، او دَ دے نه به دَ جبریلؑ فضیلت په نبیؐ باندِ ښکاره راځی ۔ لیکن دا شُبهه په دے وجه غلطه ده چه جبریلؑ دَ خپل ذاتی علم نه نبیؐ ته تعلیم نهٔ ورکولو چه په هغے سره دَ هغه فضیلت په نبیؐ باندِ لازم شی ، بلکه هغه الله تعالیٰ نبیؐ ته دَ علم رَسَولو ذریعه جوړه کړی وه او هغه صرف دَ تعلیم دَ ذریعے په حیثیت سره مجازاً دَ نبیؐ مُعلّم وُو ۔ په دے سره دَ هغه دَ فضیلت څه خبره نهٔ راپیدا کیږی ۔ دا بالکل داسے خبره ده لکه څنګه چه دَ پښځوخته مونځونو فرض کیدو نه روستو الله تعالیٰ رسول الله صلی الله علیه وسلّم ته دَ مونځونو دَ صحیح وختونو ښودلو دَ پاره جبریلؑ هغه ته رااُولیږو او هغه دوه ورځے پنځوخته مونځونه هغه له ورکړل ۔ دا واقعه په بخاری ، مُسلم ، ابوداوُد ، ترمذی او مُوطّا وغیره کتابونو کښے دَ صحیح سَنَدونو سره بیان شوی ده او په هغے کښے رسول الله صلی الله علیه وسلّم په خپله فرمائی چه څه مقتدی وُوم او جبریلؑ امام وُو ۔ لیکن د غه شان صرف دَ تعلیم په غرض سره دَ هغه اِمام جوړیدل دا مطلب نهٔ لری چه هغه دَ نبیؐ نه غوره وُو ۔

۱۶ په اصل کښے لفظ ذُوْمِرَّةٍ استعمال کړے شوے دے ۔ ابن عباس او قتاده وائی چه دَ دے معنیٰ ده ښائسته او شاندار ۔ مجاهد ، حسن بصری ، ابن زید او سُفیان ثوریؒ وائی چه دَ دے معنیٰ ده طاقتور ۔ دَ سعید مُسَیَّب په نزد دے نهٔ مراد دے دَ حکمت خاوند ۔ په حدیث کښے نبیؐ صلی الله علیه وسلّم فرمائی : لاتحل الصدقة لغنی ولا لذی مِرَّةٍ سَوِیّ ۔ په دے حدیث کښے لفظ ذُومِرَّةٍ دَ تندرست او دَ صحیح قوت په معنی کښے استعمال کړے دے ۔ په عربیٔ ژبه کښے دا لفظ دَ ډیرے صحیح رائے والا او دَ عقلمند او دَ هوښیار په معنیٰ کښے هم استعمالیږی ۔ الله تعالیٰ دلته دَ جبریل علیه السّلام دَ پاره دا جامع لفظ په دے وجه غوره کړے دے چه په دَ کښے دَ عقلی او جسمانی ، دواړو قسمو طاقتونو کمال موند ے شی ۔ په اُردو ( یا پښتو ) ژبه کښے

الْاَعْلٰى ۝٧ ثُمَّ دَنَا فَتَدَلّٰى ۝٨ فَكَانَ قَابَ قَوْسَيْنِ اَوْ اَدْنٰى ۝٩ فَاَوْحٰٓى اِلٰى عَبْدِهٖ مَآ اَوْحٰى ۝١٠ مَا كَذَبَ الْفُؤَادُ

په دا حال کښې چه هغه دَ اُفق په اُوچته غاړه وُو،[۸] بیا نزدې راغے او بره (په هوا کښې) آویزان وُدریدو، اَنْ تردې پورې چه دَ دوو لیندو برابر یا دَ دې نه څه کمه فاصله پاتې شوه[۸] - پس دَ هغې هغه دَ الله بنده ته هغه وحی اُورسوله دَ کومې رسول چه دَ هغه په ذمه وُو[۹] هغه چه څه په نظر

یو لفظ دا سې نشته چه دا ټولے معنے پکښې راجع کړے شي،په دې وجه مونږ په ترجمه کښې دَ دے صرف یوه معنی کړې ده ، ځکه چه دَ جسمانی طاقتونو دَ کمال ذکر دَ دې نه پس مخکښې فقره کښې راغلے دے -

[۷] دَ اُفق نه مراد دے دَ آسمان ختیځه غاړه چه دَ کوم ځائے نه نمر راخیژی او دَ ورځے رڼا تر را خوریږی - دې ته دَ سورة تکویر په آیت ۲۳ کښې اُفق مُبین وئیلے شوے دے - دوارو آیتونه دا څرګندونه کوی چه کله نبیؐ صلی الله علیه وسلم ته په اول ځل جبریل علیه السّلام په نظر راغے نو په هغه وخت کښې هغه دَ آسمان دَ ختیځے غاړے نه راښکاره شوے وُو - او دَ ډیرو معتبرو روایتونو نه معلومیږی چه په هغه وخت کښې هغه په هغه اصلی شکل کښې وُو په کوم شکل کښې چه الله تعالیٰ پیدا کړے دے - وړاندِ به مونږ هغه ټول روایتونه را نقل کړو په کومو چه دا خبره بیان شوی ده -

[۸] یعنی کله چه جبریل علیه السّلام دَ آسمان دَ اُوچتے ختیځے غاړے نه راښکاره شو نو بیا دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم طرفته ور روان شو آن تردے پورے چه دَ نبیؐ دَ سر دَ پاسه راغے او په هوا کښې وُدریدو - بیا هغه نبیؐ ته راټیټ شو او دومره رانزدے شو چه دَ نبیؐ او دَ هغه په منځ کښې دَ دوو لیندو برابر یا څه کمه فاصله پاتے شوه - عام طور مفسرینو دَ قَابَ قَوْسَيْنِ معنیٰ " په قدر دَ دوو لیندو" کړی ده لیکن حضرت عبدالله بن عباسؓ او حضرت عبدالله بن مسعودؓ دَ قوس معنی ذراع ( یعنی لاس) کړی ده او دَ کَانَ قَابَ قَوْسَيْنِ دا مطلب بیانوی چه دَ دواړو په منځ کښې صرف دَ دوو لاسونو هومره فاصله پاتے شوه -

او دا چه فرمائیلے شوی دی چه فاصله دَ دوو لیندو برابر یا دَ دے نه څه کمه وه نو دَ دے دا مطلب نه دے چه (معاذ الله) ګنی دَ فاصلے په کچ میچ کښې دَ الله تعالیٰ څه شک وُو - په اصل کښې خبره په دے طرز ځکه شوی ده چه ټولے لیندے خامخا په یو کچ نه وی او دَ لیندو په حساب سره چه کله یوه فاصله بیانیږی نو دَ هغې په مقدار کښې به ضرور څه کمے زیاتے وی -

[۹] اصل الفاظ دی فَاَوْحٰٓى اِلٰى عَبْدِهٖ مَآ اَوْحٰى - دَ دے فقرے دوه ترجمے ممکنے دی - یوه دا چه " هغه وحی اُوکړه دَ هغه په بنده باندِ څه چه هغه وحی اُوکړه "- او دویمه دا چه " هغه وحی اُوکړه په خپل بنده باندِ څه چه هغه اُوکړه "- دَ اولے ترجمے په لحاظ سره به دَ دے معنیٰ دا وی چه جبریلؑ وحی اُوکړه دَ الله په بنده باندِ څه وحی کول چه دَ هغه په ذمه وُو - او دَ دویمے ترجمے په لحاظ سره به مطلب دا وی چه الله تعالیٰ وحی اُوکړه دَ جبریل په ذریعه څه وحی چه دَ هغه په ذمه وه - مفسرینو دا دواړه معنے بیان کړی دی - لیکن دَ وړاندِ روستو عبارت

مَا رَاٰی ﴿۱۱﴾ اَفَتُمٰرُوْنَهٗ عَلٰی مَا یَرٰی ﴿۱۲﴾ وَلَقَدْ رَاٰهُ نَزْلَةً اُخْرٰی ﴿۱۳﴾ عِنْدَ سِدْرَةِ الْمُنْتَهٰی ﴿۱۴﴾ عِنْدَهَا جَنَّةُ الْمَاْوٰی ﴿۱۵﴾

اُولیدل، په هغې کښې زړه دروغ شامل نهٔ کړل ـ اُیا اوس تاسو هغهٔ سره په هغه څیز جګړه کوئ چه هغه ئې په سترګو وینی؟ [11]

او یوځل بیا هغه دَ سِدْرَةُ الْمُنْتَهٰی په خواکښې هغه اُولید و چه هلته ورسره جَنَّتُ الْمَاْوٰی دے ـ [12]

سره اَولنی مطلب زیات مناسبت لری او هم دا مطلب دَ حضرت حسن بصری او ابن زید نه نقل کړے شوے دے ـ په دے حقله څوک دا اعتراض کولے شی چه دَ عبدهٖ ضمیر دَ اَوْحٰی فاعل ته دَ راتلو په ځائے الله تعالیٰ ته څنګه راتلے شی هرکله چه دَ سورة دَ شروع نه دَ دے ځائے پورے دَ الله نوم هیڅ ورسره راغلے نهٔ دے؟ دَ دے جواب دا دے چه په کوم ځائے کښې دَ وړاندِ روستو عبارت نه صفا معلومیږی چه ضمیر یو خاص سړی ته دے نو هلته ضمیر بغیر له هغه ته ګرځی اګرکه دَ هغه ذکر مخکښې نهٔ وی راغلے ـ دَ دے ډیر مثالونه بغیر له په قرآن مجید کښې موجود دی ـ دَ مثال په طور دَ الله تعالیٰ فرمان دے: اِنَّآ اَنْزَلْنٰهُ فِیْ لَیْلَةِ الْقَدْرِ "مونږ هغه په لیلة القدر کښې نازل کړے دے" دلته دَ قرآن هیڅ ورسره چرته ذکر نهٔ دے راغلے ـ لیکن دَ عبارت نه بغیر له معلومیږی چه ضمیر قرآن ته دے ـ په یو بل ځائے کښې دی، وَلَوْ یُؤَاخِذُ اللّٰهُ النَّاسَ بِمَا کَسَبُوْا مَا تَرَكَ عَلٰی ظَهْرِهَا مِنْ دَآبَّةٍ ـ "که چرے الله تعالیٰ خلق دَ خپلو عملونو په وجه رانیول شروع کړی نو دَ هغې په شا باندِ به یو دَ ساه څیز پریښی نهٔ دی" ـ دلته وړاندِ روستو دَ زمکے ذکر هډو راغلے نهٔ دے ـ لیکن دَ عبارت نه بغیر له معلومیږی چه "دَ هغې دَ شا" نه مُراد "دَ زمکے شا" ده ـ په سورة یٰس کښې فرمائی: وَمَا عَلَّمْنٰهُ الشِّعْرَ وَمَا یَنْۢبَغِیْ لَهٗ ـ "مونږ هغه ته دَ شعر تعلیم نهٔ دے ورکړے او نهٔ شاعری دَ هغه سره ښائی" ـ دلته مخکښې یا روستو دَ رسول الله صلی الله علیه وسلّم هیڅ ذکر نهٔ دے راغلے لیکن دَ عبارت نه معلومیږی چه دواړه ضمیرونه رسول الله ﷺ ته دی ـ په سورة رحمٰن کښې فرمائی، کُلُّ مَنْ عَلَیْهَا فَانٍ، "هغه ټول هرڅه چه په هغې دی، فانی دی" وړاندِ روستو هیڅ ذکر دَ زمکے نشته لیکن دَ عبارت دَ انداز نه معلومیږی چه دَ علیها ضمیر زمکے ته دے ـ په سورة واقعه کښې فرمائی، اِنَّآ اَنْشَاْنٰهُنَّ اِنْشَآءً ـ "مونږ به هغوی خاص طور پیدا کړی وی" ـ خو اُوس شا ته هیڅ څیز نشته چه دَ هُنَّ ضمیر ورته راواوګرځی ـ دا دَ کلام دَ انداز نه بغیر له معلومیږی چه دَ دے نه مُراد دَ جنّت ښځے دی ـ پس دَ اَوْحٰی اِلٰی عَبْدِهٖ مطلب خو په هیڅ حال دا نشی کیدے چه جبریل ؑ په خپل بنده وحی اُوکړه نو په دے وجه دَ دے نه په خامخا دا معنیٰ اغستلے کیږی چه جبریل ؑ دَ الله په بنده وحی اُوکړه، یا بیا دا چه الله دَ جبریل ؑ په ذریعه په خپل بنده وحی اُوکړه ـ

[11] یعنی دا کوم لیدل کتل چه دَ ورځے په رڼا کښې او پوره دَ بیدارئ په حالت کښې په غړیدلو سترګو محمد صلی الله علیه وسلّم اُوکړل، په دے باندِ هغه ته خپل زړه دا اُونهٔ وئیل چه دا دَ نظر دوکه ده، یا یو پیرے

یا شیطان دے چه ما ته په نظر راځی، یا ځما مخے ته یو خیالی شکل راغلے دے او ځه په ویخه یو خوب وینم، بلکه کوم څه چه ده هغه سترګو لیدل د هغه زړه ټیک ټیک هغه رښتیا وګڼړل - په دے باره کښے بے شکه د هغه دا یقین وُو چه واقعی دا جبریل دے او کوم پیغام چه دے راړسَوی دا واقعی دَ خدائے دَ طرفنه وحی ده۔

دلته دا تپوس کیدے شی چه آخر هغه څه خبره ده چه دَ هغې په وجه دَ یو داسے عجیبه او نا آشنا کار په باره کښے دَ رسول الله صلی الله علیه وسلّم هیڅ شک را نغے او پوره یقین ئے اُوکړه چه ځما سترګے څه وینی هغه بالکل حقیقت دے یو خیالی تصویر نهٔ دے او یو پیرے یا شیطان هم نهٔ دے؟ په دے خبره چه کله مونږه غور کوُو نو دَ دے پینځه وجے زمونږ په ذهن کښے راځی:

یوه دا چه په کومو بهرنی حالاتو کښے دا واقعه شوی وه هغه بالکل درست او صحیح وُو۔ رسول الله صلی الله علیه وسلّم چه جبریلِ امین لیدو نو نهٔ تیاره وه، نهٔ دَ مراقبے حالت وُو، نهٔ اُوده وُو او نهٔ پرکاله وُو، بلکه دَ سحر رنړا راختلی وه، هغه پوره بیدار وُو، ښه په ډاګه او په رنړا وُرځ ئے په خپلو سترګو جبریلؑ ټیک داسے لیدو لکه څنګه چه یو سړے دَ دُنیا نُور څیزونه وینی - که چرے په دے کښے دَ شک څه ګنجائش وی نو بیا خو چه مونږه دَ وُرځے کوم دریابونه، غرونه، مکانونه، او انسانان وغیره وینو هغه ټول شکمن کیدے شی او سړے ورته دَ نظر دوکه ویلے شی۔

دویمه دا چه دَ نبیؐ خپل اندرونی حالت هم دَ یقین کولو دَ پاره بالکل صحیح وُو۔ نبیؐ ښه پوره په هوش کښے وُو حوصله ئے ټیک وه۔ دَ مخکښے نه دَ هغه په ذهن کښے دا قِسم خیال هڅو وُونهٔ چه داسے څه واقعه پکار ده یا به داسے څه واقعه کیږی۔ دَ هغه په ذهن کښے داسے فکر بالکل نهٔ وُو۔ او په دے حالت کښے ناساپه هغه دَ دے واقعے سره مخ شو۔ په دے کښے دَ دے شک کولو هیڅ ګنجائش نهٔ وُو چه ګنی دَ سترګو مخے ته یوه حقیقی واقعه نهٔ ده بلکه یو خیالی تصویر مخے ته راغلے دے۔

دریمه دا چه په دے حالاتو کښے کومه هستی دَ هغه مخے ته راغلی وه هغه داسے لویه او شانداره، او ښکلے او روښانه وه چه نهٔ دَ نبیؐ په خیال او ګمان کښے چرته دَ دے نه مخکښے داسے هستی په فکر کښے راغلی وه چه ګنی دَ هغے په وجه دَ هغه دا ګمان راتلو چه داسے ځما دَ فکر خیالی واقعه ده، او نهٔ یو پیرے یا شیطان په دے شان سره کیدے شو چه هغه دَ فرښتے نه سِوا بل څه ګڼړلے وے۔ دَ حضرت عبد الله بن مسعودؓ روایت دے چه رسول الله صلی الله علیه وسلّم فرمائی چه ما جبریلؑ په دے شکل کښے اُولید وچه دَ هغه شپږ سوه وَزر وے۔ (مُسندِ احمد)۔ په یو بل روایت کښے ابن مسعودؓ زیاته تشریح کوی چه دَ جبریل علیه السّلام یو وَزر دومره لوئ وُو چه په اُفق باندِ خور ښکاریدو (مُسندِ احمد)۔ الله تعالیٰ پخپله دَ هغه شان په شَدِیْدُ الْقُوٰی او ذُوْمِرَّةٍ الفاظو سره بیانوی۔

څلورمه دا چه کوم تعلیم هغه هستئ نبیؐ له ورکوُو هغه هم دَ دے واقعے دَ صحیح والی دَ پاره تسله ناک وُو۔ دَ هغه تعلیم په ذریعه چه ناڅاپه کوم علم، او دَ ټول کائنات دَ حقیقتونو په حقله علم نبیؐ ته مِلاو شو دَ هغے څه خیال دَ اول نه دَ هغه په ذهن کښے نهٔ وُو چه هغه پرِ شک کرے وے چه دا ګنی ځما هغه خپل خیالات دی چه ځما مخے ته راغلی دی۔ دغه شان په هغه علم باندِ دَ دے شک کولو هم څه ګنجائش نهٔ وُو چه ګنی شیطان په دے شکل کښے راغلے دے او نبیؐ له

دوکه ورکوي - ځکه چه دَ شیطان دا کار کله کیدے شي او کله هغه دا کار کړے دے چه انسان ته دَ شرک او دَ بت پرستۍ خلاف دَ خالص توحید تعلیم ورکړي؟ دَ آخرت دَ سوال جواب نه ئے خبردار کړي؟ دَ جاهلیت نه او دَ جاهلیت دَ رسمونو نه ورله زړه تور کړي؟ ښو اخلاقو ته ئے را اُو بلي؟ او یو سړي ته دا اُو وائي چه نهٔ یوازے ته پخپله دا تعلیم قبول کړه بلکه دَ ټولې دُنیا نه دَ شرک او دَ ظلم او دَ ګناه دَ ختمولو او دَ هغې په ځائے دَ توحید او دَ عدل او دَ نیکۍ قائمولو دَ پاره را پا سه؟

پینځمه او دَ ټولو نه اهمه وجه دا ده چه الله تعالیٰ که یو سړے دَ خپل نبوّت دَ پاره غوره کوي نو دَ هغه زړه دَ شک شبهو او دَ وسوسو نه پاک کړي او دَ یقین او دَ برویسے نه ئے ډک کړي۔ په دے حالت کښے چه دَ هغه سترګے څه وینې، او دَ هغه غوږونه څه آوري، او دَ هغې دَ صحیح والی په حقله معمولي شان شک هم دَ هغه په ذهن کښے نهٔ راپیدا کیږي - هغه ښه په یقین سره هر هغه حقیقت قبلوي کوم چه دَ هغه دَ رب دَ طرفنه هغه ته ظاهر یږي، خواه که هغه دَ لید و په شکل کښے وي چه هغه ته په سترګو اُوښودلے شي، او که دَ الهامي علم په شکل کښے وي چه دَ هغه زړه ته ورواچولے شي، او که دَ وحي دَ پیغام په شکل کښے وي چه هغه ته ټکی په ټکی واورَولے شي - په دے ټولو شکلونو کښے پیغمبر ته دَ دے خبرې پوره یقین وي چه هغه دَ هر قسم شیطاني مداخلت نه قطعي طور محفوظ او په امن دے او هر څه چه هغه ته په هر شکل کښے وَررَسي هغه ټیک ټیک دَ هغه دَ رب دَ طرفنه دي - الله تعالیٰ چه انسان له کوم علمونه ورکړي دي دَ هغې ټولو علمونو په شان دَ پیغمبر دا علم هم یو داسے یقیني څیز دے چه په هغې کښے دَ دوکه کیدو څه امکان نشته - لکه څنګه چه مَهیِي ته دَ خپلے لامبو وهلو، مرغۍ ته دَ خپلے مرغۍ والی او انسان ته دَ خپل انسانو الی فکر بالکل دَ خدائے دَ طرفنه ورکړے شوے وي او په هغې کښے دَ دوکه کیدو هیڅ شک نشي کیدے، دغه شان پیغمبر ته دَ خپل پیغمبر کیدو فکر هم دَ خدائے دَ طرفنه ور کړے شوے وي، دَ هغه په زړه کښے دَ یو ساعت دَ پاره هم دا شک نهٔ راځي چه شاید هغه دَ پیغمبرۍ په حقله په دوکه کښے پروت دے -

[11] دا دَ نبي صلی الله علیه وسلّم سره دَ جبریل علیه السّلام دَ دویم ملاقات ذکر دے - په دے ملاقات کښے هم جبریلؑ نبيؐ ته په خپل اصلي شکل کښے ښکاره شوے وُو - دَ دے ملاقات ځائے "سِدْرَةُ الْمُنْتَهٰی" دے، او دا هم ویُلے شوي دي چه دَ هغې سره نزدے جَنَّةُ الْمَأْوٰی دے -

سِدْره په عربۍ ژبه کښے دَ بیرے ونے ته وائي، او دَ مُنْتَهٰی معنیٰ ده آخري سر - دَ "سِدْرَةُ الْمُنْتَهٰی" لغوي معنیٰ ده "دَ بیرے هغه وُنه چه په آخر سر کښے وي"۔ علامه آلوسيؒ په رُوحُ الْمَعَانِي کښے دَ دے تشریح داکړي ده چه: الیها ینتهی علم کل عالم وماوراء ها لا یعلمهٔ الا الله - "په دے باندے دَ هر عالِم عِلم ختمیږي وراندِ چه څه دي دَ هغې علم دَ الله نه سِوا بل چاته نشته"۔ تقریباً هم دا تشریح ابنِ جریر په خپل تفسیر کښے، او ابن اثیر په النِّهایه فی غریب الحدیث والاثر کښے کړي ده -

زمونږ دَ پاره دا معلومول ګران دي چه دَ دے مادي دُنیا په آخري سر باندِ دَ بیرے هغه وُنه څنګه ده او دَ هغې حقیقي حیثیت څه دے - دا دَ الله تعالیٰ دَ کائناتو هغه رازونه دي چه هغې ته زمونږه پوهه نهٔ رَسي - بهرحال هغه یو داسے څیز دے چه دَ هغې دَ پاره دَ انساني ژبے په الفاظو کښے دَ "سِدْره" ټکی نه زیات مناسب ټکے دَ الله تعالیٰ په نزبل نهٔ وُو۔

إِذْ يَغْشَى السِّدْرَةَ مَا يَغْشَىٰ ﴿١٦﴾ مَا زَاغَ الْبَصَرُ وَمَا طَغَىٰ ﴿١٧﴾ لَقَدْ رَأَىٰ مِنْ آيَاتِ رَبِّهِ الْكُبْرَىٰ ﴿١٨﴾

په هغه وخت کښې په سِدره بانْدِ راخوريدل څه چه راخوريدل[12] ـ نهٔ سترګې اُوبرېښيدې اونهٔ دَ حد نه واوړيدې[13] اوهغه دَ خپل رب لوئې لوئې ښنې اُوليدې لې[14] ـ

دَ "جَنَّتُ الْمَاوىٰ" لغوی معنیٰ ده "هغه جنّت چه دَ سړی دَ اُوسيدو ځائې شی" حضرت حسن بصریؒ وائیٔ چه داهم هغه جنّت دے چه په آخرت کښې به مومنانو او پرهيزګارو خلقو ته مِلاويږی، اودَ دے آيت نه هغه دا دليل پيش کوی چه هغه جنّت په آسمان کښې دے۔ قَتَادهؒ وائیٔ چه دا هغه جنّت دے چه په هغې کښې دَ شهيدانو روحونه ساتلے کيږی، دَ دے نه مُراد هغه جنّت نهٔ دے چه په آخرت کښې به مِلاويږی ـ ابن عباسؓ هم دا وائیٔ اوورسره بله دا خبره هم کوی چه په آخـرت کښې کوم جنّت مومنانوته ورکړے کيږی هغه په آسمان کښې نهٔ دے بلکه دَ هغه ځائے هم دا زمکه ده ـ

[12] يعنی دَ هغې شان اودَ هغې حالت دَ بيانولونه بهرد ے ـ هغه داسې پلوشې وے چه نهٔ انسان دَ هغې تصوّر کولے شی اونهٔ انسانی ژبه دَ هغې صفت بيانولے شی ـ

[13] يعنی يوطرفته دَ رسول الله صلی الله عليه وسلّم دَ صبراودَ برداشت دا حال وُو چه داسې تيزو شُغلوته هم دَ هغه سترګې اُونهٔ برېښيدې اوهغه ورته ښه په آرام سـره کتل ـ بل طرفته دَ هغه دَ کلکې حوصلې دا کمال وُو چه دَ څه مقصد دَ پاره هغه غوښتلے شوے وُو په هغې ئې کلک نظر وُو اوچه کومه نا آشنا واقعه هلته وه هغې ته ئې دَ يوتماشګير په شان اخوا ديخوا نهٔ کتل ـ دَ دے مثال داسې دے لکه چه يوسړے دَ يو لوئې باد شاه دربارته لاړ شی اوهلته هغه داسې شان اوشوکت اُووينی چه چرته دهٔ نهٔ وی ليدلے ـ اُوس که چرې هغه دَ کمې حوصلې يولاندِ سړے وی نوهلته به حيران دريان وُدريږی، اوکه چرې دَ درباری آدابو سره نابلَد وی نودَ شاهانه مقام قـدر به تر هير شی اودَ دربار دَ سيل دَ پاره به هرطرفته چاپيره کتل شروع کړی ـ ليکن دَ غښتے حوصلې، دَ ادَب سره آشنا او قدرمن سړے به نهٔ خوهلته څه تـه حيرانيږی اونهٔ به دَ دربار په تماشا کښې مشغوليږی، بلکه هغه به ښه په قدر اوعزت سره حاضريږی اوخپل ټول فکر به هغه مقصدته راګرزوی چه دَ کوم دَ پاره هغه شاهی دربارته غوښتلے شوے وی ـ دَ رسول الله صلی الله عليه وسلّم دَ دے خوبئ تعـريف په دے آيت کښې بيان شوے دے ـ

[14] دا آيت دَ دے خبری څرګندونه کوی چه رسول الله صلی الله عليه وسلّم الله تعالیٰ نهٔ وُوليدلے بلکه دَ هغه لوئې لوئې ښنې ئې ليدلې وې ـ اوچونکه دَ وړاندِ روستو عبارت ترمخه دا دويم ملاقات هم دَ هغه هستیٔ سره شوے وُو دَ کومے سره چه اولنے ملاقات شوے وُو، نوخامخا دا منل لازمی دی چه په اُفُقِ اعلیٰ بانْدِ نبیؐ په اوّل ځل څوک ليدلے وُو هغه هم الله نهٔ وُو، اوپه دويم ځل چه دَ سِدْرَةُ الْمُنْتَهٰی سره څوک ليدلے وُو

هم هغه الله نهٔ وُو۔که چرے هغه په دے یوه موقعه کښے هم الله تعالیٰ لیدلے وے نو دا دومره لویه خبره وه چه دلته به ئے ضرورصفا ذِکرشوے وے ۔ دَ حضرت موسیٰؑ په حقله په قرآن مجید کښے فرمائیلے شوی دی چه هغه دَ الله تعالیٰ دَ لیدلو درخواست کړے وُو او هغه ته جواب ورکړے شوے وُو چه ، لَنْ تَرَانِیْ ، " ته ما نشے لیدلے "۔ ( الاعراف ۱۴۳ ) ۔ اُوس ښکاره خبره ده چه دَ کوم قدر او عزت موقعه حضرت موسیٰؑ له نهٔ وه ورکړے شوی ، هغه چرے رسول الله صلی الله علیه وسلم له ورکړے شوے وے نو دا څنګه دومره لویه خبره وه چه په صفا الفاظو کښے به بیان کړے شوے وے ۔ لیکن موږ وینو چه په قرآن مجید کښے هیڅ ته دا نهٔ دی فرمائیلے شوی چه نبیؐ خپل رب لیدلے وُو ، بلکه دَ معراج کومه واقعه چه په سورة بنی اسراءیل کښے بیان شوی ده په هغے کښے الله تعالیٰ فرمائی چه موږه خپل بنده دَ دے غرض دَ پاره بوتلے وُو چه " موږه هغه ته خپلے ښے اُوښایو " ( لِنُرِیَهٗ مِنْ اٰیٰتِنَا ) ، او دلته دَ سِدْرَةُ الْمُنْتَهٰی په خواکښے دَ حاضریدو په سلسله کښے هم دا فرمائیلے شوی دی چه " هغه دَ خپل رب لوئے ښے اُولیدلے " ( لَقَدْ رَاٰی مِنْ اٰیٰتِ رَبِّهِ الْکُبْرٰی ) ۔

دَ دے وجوهاتو په بنا باندِ په ظاهره دَ دے بحث هیڅ ګنجائش نهٔ وُو چه رسول الله صلی الله علیه وسلم په دِے دواړو موقعو باندِ الله تعالیٰ لیدلے وُو او که جبریل علیه السّلام؟ لیکن په کومه وجه چه دا بحث پیدا شو هغه دا دے چه په دے مسئله باندِ دَ احادیثو په روایتونو کښے اختلاف دے ۔ لا ندِ موږه ترتیب وار هغه احادیث لیکو کوم چه په دے سلسله کښے دَ مختلفو صحابو نه نقل کړے شوی دی۔

( ۱ ) دَ حضرت عائشےؓ روایتونه ،

دَ بخاری په کتاب التفسیر کښے دَ حضرت مَسْرُوق بیان دے چه ما حضرت عائشے ته عرض اُوکړو " مورجی ، آیا محمد صلی الله علیه وسلّم خپل رب لیدلے وُو؟ هغے جواب راکړو " ستا په دے خبره خو زما ویښتے زیږ زیږ شو ۔ ستا نه دا څنګه هیرشوچه درے خبری داسے دی که څوک دَ هغے دعوی اُوکړی نو دعوی به ئے دروغ وی " ۔ ( په هغے کښے اولنئ خبره حضرت عائشےؓ دا اُوفرمائیله چه ) " څوک چه تا ته دا اُووائی چه محمد صلی الله علیه وسلم خپل رب لیدلے وُو نو هغه دروغ وائی " بیا حضرت عائشےؓ دا آیتونه اُولوستل ، لَا تُدْرِکُهُ الْاَبْصَارُ ( دَ نظرونو په قابو کښے هغه نشی راتلے ) ، او وَمَا کَانَ لِبَشَرٍ اَنْ یُّکَلِّمَهُ اللّٰهُ اِلَّا وَحْیًا اَوْ مِنْ وَّرَآئِ حِجَابٍ اَوْ یُرْسِلَ رَسُوْلًا فَیُوْحِیَ بِاِذْنِهٖ مَا یَشَآءُ ( دَ بشر دا مقام نهٔ دے چه الله دَ هغه سره خبرے اُوکړی ، اُوکه کوی نو یا دَ وحی په طور ، یا دَ پردے نه شاته ، یا دا چه یوه فرښته را اُولیږی او هغه په هغهٔ باندِ دَ الله په حکم سره وحی اُوکړی څه چه هغه غواړی ) دَ دے نه روستو هغے اُوفرمائیل " لیکن رسول الله صلی الله علیه وسلّم دوه ځله جبریل علیه السّلام په خپل اصلی شکل کښے لیدلے وُو "۔

دَ دے حدیث یوه حصّه دَ بخاری په کتاب التوحید باب ۴ کښے هم ده ۔ او په کتاب بدء الخلق کښے چه دَ مَسْرُوق کوم روایت امام بخاری نقل کړے دے په هغے کښے بیان کوی چه ما دَ حضرت عائشے دا خبره واوریده نو عرض مِ اُوکړو چه بیا به دَ الله تعالیٰ دَ دِے حکم څه مطلب وی ثُمَّ دَنٰی فَتَدَلّٰی ، فَکَانَ قَابَ قَوْسَیْنِ اَوْ اَدْنٰی ؟ دَ دے په جواب کښے هغے اُوفرمائیل " دَ دے نه مُراد جبریلؑ دے۔ هغه به همیشه رسول الله صلی الله علیه وسلم ته دَ انسان په شکل کښے راتلو ، لیکن په دے موقعه هغه په خپل اصلی شکل کښے هغه ته راغلے وُو او تول اُفق دَ هغه نه ډک شو"۔

دَ مُسلم په کتاب الایمان باب فی سِدْرَةِ الْمُنْتَهٰی کښے دَ حضرت عائشے سره دَ مَسْرُوق دا خبرې اتړے زیاتے په تفصیل سره نقل شوې دی اودَ دے دَ ټولونه اهمه حصّه داده، حضرت عائشےؓ اُوفرمائیل، "څوک چه دا دعوٰی کوی چه محمد صلی الله علیه وسلّم خپل رب لیدلے وُو نو هغه په الله تعالیٰ باندې لوئے دروغ جوړوی". مَسْرُوق وائی چه ما دِ په وهلی وه اوناست وُم ۔ دا خبره مِ چه واورېده نو را نیغ شوم اوعرض مِ اُوکړو، ام المؤمنین تلوار مه کوه ۔ وَ لے الله تعالیٰ دانهٔ دی فرمائیلی چه وَ لَقَدْ رَاٰهُ بِالْاُفُقِ الْمُبِیْنِ ؟ ، او لَقَدْ رَاٰهُ نَزْلَةً اُخْرٰی ؟ حضرت عائشےؓ په جواب کښے اُوفرمائیل چه په دِے اُمّت کښے دَ ټولونه اوّل ما دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم نه په دے معامله کښے تپوس کړے وُو ۔ نبیؐ

اُوفرمائیل انما هو جبریل علیه السّلام، لم اره علی صورته التی خلق علیها غیر هاتین المرتین، رایتهٗ منهبطا من السّماء سادّا عظم خلقه ما بین السماء والارض ۔" هغه خو جبریل علیه السّلام وُو ۔ هغه چه الله تعالیٰ په کوم اصلی شکل کښے پیدا کړے دے، ما په هغه اصلی شکل کښے دَ دوو موقعونه سِوا په بله موقعه نهٔ دے لیدلے ۔ په دے دوؤ موقعو کښے ما هغه لیدلے دے چه دَ آسمان نه راکوزیدو، اودَ هغه لویه هستی دَ زمکے او دَ آسمان په منځ کښے په ټوله فضا کښے خوره شوې وه".

ابن مَرْدُوَیه چه دَ مَسْرُوق دا روایت په کومو الفاظو کښے نقل کړے دے هغه الفاظ دا دی، "حضرت عائشےؓ اُوفرمائیل، دَ ټولونه اوّل ما دَ رسول الله صلی الله علیه وسلّم نه دا تپوس کړے وُو چه تا خپل رب لیدلے وُو؟ نبیؐ جواب راکړو، نهٔ ما خو جبریل علیه السّلام لیدلے وُو چه دَ آسمان نه راکوزیدو".

(۲) دَ حضرت عبدالله بن مسعودؓ روایتونه،

دَ بُخاری په کتاب التفسیر کښے، دَ مُسلم په کتاب الایمان کښے اودَ تِرمِذی په ابواب التفسیر کښے دَ زِرّ بن حُبَیْش روایت دے چه حضرت عبدالله بن مسعودؓ دَ فَکَانَ قَابَ قَوْسَیْنِ اَوْ اَدْنٰی په تفسیر کښے دا اُوفرمائیل چه رسول الله صلی الله علیه وسلّم جبریل علیه السّلام په داسے شکل کښے اُولیدو چه دَ هغه شپږ سوه وزرے وے ۔

دَ مُسلم په دوېم روایت کښے هم دا تفسیر دَ مَاکَذَبَ الْفُؤَادُ مَارَاٰی اودَ لَقَدْ رَاٰی مِنْ اٰیٰتِ رَبِّهِ الْکُبْرٰی زِرّ بن حُبَیْش دَ عبدالله بن مسعودؓ نه نقل کړے دے ۔

په مُسنَدِ احمد کښے دَ ابن مسعود رضی الله عنه دا تفسیر دَ زِرّ بن حُبَیْش نه علاوه دَ عبدالرحمٰن بن یزید اودَ ابو وائل په واسطه سره هم رانقل کړے شوے دے او بیا په مُسنَدِ احمد کښے دَ زِرّ بن حُبَیْش دوه روایتونه نور نقل شوی دی چه په هغے کښے حضرت عبدالله بن مسعودؓ دَ وَلَقَدْ رَاٰهُ نَزْلَةً اُخْرٰی، عِنْدَ سِدْرَةِ الْمُنْتَهٰی په تفسیر کښے فرمائی، قال رسول الله صلی الله علیه وسلم رأیت جبریل عند سدرة المنتهٰی علیه ستمائة جناح ۔"رسول الله صلی الله علیه وسلّم فرمائی چه ما جبریل" دَ سِدْرَةُ الْمُنْتَهٰی خواته اُولیدو، دَ هغه شپږ سوه وزرے وے". دغه شان روایت امام احمدؒ دَ شقیق بن سلمه نه هم نقل کړے دے چه په هغے کښے هغه وائی چه ما دَ حضرت عبدالله بن مسعودؓ دَ خُلے نه دا واوریدل چه رسول الله صلی الله علیه وسلم په خپله دا فرمائیلی وُو چه ما جبریل علیه السّلام په دے شکل کښے په سِدْرَةُ الْمُنْتَهٰی باندې لیدلے وُو۔

(۳) دَ حضرت ابوهريرهؓ نه عَطَاء بن ابى رَباح تپوس اُوکړو چه دَ لَقَدْ رَاٰهُ نَزْلَةً اُخْرٰى څه مطلب دے نو هغه ورته په جواب کښے اُوفرمائيل رَاٰى جبريل عليه السّلام - " نبیؐ جبريل عليه السّلام ليدلے وُو". (مُسلم كتاب الايمان) -

(۴) دَ حضرت ابوذرؓ غفارى نه دَ عبدالله بن شقيق دوه روايتونه امام مُسلمؒ په كتاب الايمان كښے نقل كړى دى - په يو روايت كښے هغه فرمائى چه ما دَ رسول الله صلى الله عليه وسلم نه تپوس اُوكړو چه تا خپل رب ليدلے وُو؟ نبیؐ را ته په جواب كښے اُوفرمائيل ، نُوْرٌ اَنّٰى اَرَاهُ - او په دويم روايت كښے فرمائى چه ځما دَ دے تپوس په جواب كښے نبیؐ دا اُوفرمائيل چه رَاَيْتُ نُوراً - دَ نبیؐ دَ اولنى حديث مطلب ابن قيمؒ په زاد المعاد كښے دا بيان كړے دے چه " ځما او ځما دَ رب په ليدو كښے نُور يو دَ بل ستر منځه وُو". او دَ دويم حديث مطلب هغه دا بيانوى چه " ما خپل رب نۀ دے ليدلے بس يو نُور مِ اوليدو".

نسائىؒ او ابن ابى حاتمؒ دَ حضرت ابوذرؓ قول په دے الفاظو كښے نقل كړے دے چه " رسول الله صلى الله عليه وسلم خپل رب په زړه سره ليدلے وُو، په سترګو سره نۀ".

(۵) دَ حضرت ابوموسىٰ اشعرىؓ نه امام مُسلم په كتاب الايمان كښے دا روايت نقل نقل كړے دے چه نبیؐ اُوفرمائيل ما انتهىٰ اليه بصرمن خلقه - " دَ الله تعالىٰ په مخلوق كښے الله تعالىٰ ته دَ چا نظر نۀ رسى".

(۶) دَ حضرت عبدالله بن عباسؓ روايتونه :

دَ مُسلم روايت دے چه دَ حضرت عبدالله بن عباسؓ نه دَ مَاكَذَبَ الْفُؤَادُ مارأى، وَلَقَدْ رَاٰهُ نَزْلَةً اُخْرٰى مطلب اُوتپوسلے شو نو هغه اُووئيل چه رسول الله صلى الله عليه وسلم خپل رب دوه ځله په زړه سره ليدلے وُو - دا روايت په مُسندِ احمد كښے هم دے.

ابن مَرْدويه دَ عطاء بن ابى رَباح په حواله سره دَ ابن عباس دا قول نقل كړے دے چه رسول الله صلى الله عليه وسلّم الله تعالىٰ په سترګو سره نۀ بلكه په زړه سره ليدلے وُو.

په نسائىؒ كښے دَ عكرمه روايت دے چه ابن عباسؓ اُوفرمائيل اتعجبون ان تكون الخلة لا براهيم والكلام لموسىٰ والرؤيه لمحمد؟ " آيا تاسو په دے خبره حيرانتيا ښكاره كوئ چه دَ ابراهيم عليه السّلام نه الله خپل خليل (يعنى دوست) جوړ كړو، او دَ موسىٰ عليه السّلام سره ئے كلام اُوكړو او محمّد صلى الله عليه وسلّم له ئے دَ خپلو ليدو عزت وركړو". حاكم هم دا روايت نقل كړے دے او هغۀ ته ئے صحيح وئيلى دى.

په ترمذىؒ كښے دَ شعبى روايت دے چه ابن عباس په يو مجلس كښے اُوفرمائيل" الله تعالىٰ خپل رؤيت (يعنى ديدار) او خپل كلام دَ محمد صلى الله عليه وسلم اودَ موسىٰ عليه السّلام په مينځ كښے تقسيم كړے وُو - دَ موسىٰ عليه السّلام سره هغه دوه ځله كلام اُوكړو، او محمد صلى الله عليه وسلم دوه ځله هغه اُوليدو". دَ ابن عباس دا وينا چه مَسْرُوق واوريده نو هغه حضرت عائشےؓ له لاړو او دَ هغې نه ئے تپوس اُوكړو چه " آيا محمد صلى الله عليه وسلم خپل رب ليدلے وُو"؟ هغې اُوفرمائيل" تا داسے خبره اُوكړه چه دَ هغې په اوريدو سره ځما ګوڼے زيږ شو". دَ دے نه روستو دَ حضرت عائشےؓ او دَ مسروق په مينځ كښے هغه خبرے اترے اُوشوے كومے چه مونږه بره دَ حضرت عائشےؓ په روايتونو كښے نقل كړى دى -

هم په ترمذی کښې چه کوم روایتونه د ابن عباسؓ نه نقل شوی دی د هغې نه په یو کښې هغه فرمائی چه نبیؐ الله تعالیٰ لیدلے وُو۔ په دویم کښې فرمائی چه دوه ځله ئې لیدلے وُو۔ او په دریم کښې فرمائی چه هغه الله تعالیٰ په زړه سره لیدلے وُو۔

په مُسند احمد کښې د ابن عباسؓ روایت دے چه قال رسول الله صلی الله علیه وسلم رأیت ربی تبارک و تعالیٰ۔ "ما خپل رب تبارک وتعالیٰ لیدلے وُو"۔ په دویم روایت کښې هغه وائی ان رسول الله صلی الله علیه وسلم قال اتانی ربی اللیلة فی احسن صورة، احسبه یعنی فی النوم۔ " رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائی نن شپه ځما رب په بهترین شکل کښې ځما خوا له راغلے وُو۔ څه کمان کوم چه د نبیؐ د دے وینا مطلب دا وُو چه هغه په خوب کښې الله تعالیٰ اُولیدو"۔

طبرانی او ابن مَردُویه د ابن عباس نه دا روایت هم نقل کړے دے چه رسول الله صلی الله علیه وسلم خپل رب دوه ځله اُولیدو، یو ځل په سترګو او بل ځل په زړه۔

(۷) محمد بن کعب القُرظی وائی چه د رسول الله علیه وسلّم نه څینو صحابو تپوس اُوکړو، آیا تا خپل رب لیدلے دے؟ نبیؐ په جواب کښې اُوفرمائیل " ما هغه دوه ځله په زړه سره لیدلے دے" (ابن ابی حاتم)۔ دا روایت ابن جریر په دے الفاظو کښې نقل کړے دے چه نبیؐ اُوفرمائیل، " ما هغه په سترګو نه بلکه په زړه سره لیدلے دے"۔

(۸) د حضرت انسؓ بن مالک کوم روایت چه د معراج د قیصے په سلسله کښې د شریک بن عبدالله په حواله سره امام بُخاری رحمة الله علیه په کتاب التوحید کښې نقل کړے دے په هغې کښې دا الفاظ دی؛ حتی جاء سدرة المُنتهٰی ودنا الجبّار رب العزة فتدلّٰی حتیٰ کان منه قاب قوسین او ادنیٰ فاوحی الله فیما اوحیٰ الیه خمسین صلٰوة۔ یعنی"کله چه هغه سدرة المُنتهٰی ته اُورسیدو نو الله رب العزة هغه ته نزدے راغے او د هغه د پاسه په هوا کښې اُودریدو اَن تر دے پورے چه د نبیؐ او د الله په مینځ کښې دوه لیندے یا د دے نه هم څه کمه فاصله پاتے شوه، بیا چه الله تعالیٰ په هغه باندې کومه وحی را اُولیږله په هغې کښې یو د پنځوسو مونځونو حکم وُو"۔ لیکن کوم اعتراضونه چه د دے روایت په سند او مضمون باندې امام خطّابی، حافظ ابن حجرؔ، ابن حزم او حافظ عبدالحق صاحبُ الجمع بین الصحیحین کړی دی د هغې نه علاوه د ټولونه لوئ اعتراض په هغې باندې دا واچی چه دا ښکاره د قرآن خلاف دے۔ ځکه چه قرآن مجید د دوو جُدا جُدا رؤیتونو ذکر کوی چه په هغې کښې یو اوّل په اُفقِ اعلیٰ باندې شوے وُو او بیا په هغې کښې د "دَنا فتدلّٰی فکان قاب قوسین او ادنیٰ" معامله مخې ته راغلې وه، او دویم رؤیت د سدرة المُنتهٰی خوانه شوے وو۔ لیکن دا روایت دا دواړه رؤیتونه ګډوډ کړی دی او یو روایت ترې جوړوی۔ نو د قرآن مجید سره د ټکراؤ خوړلو په وجه دا په هیڅ شان سره نشی قبلیدے۔

اُوس پاتے شوه هغه نوُر روایتونه کوم چه مونږه بره نقل کړی دی، په هغې کښې د ټولو نه زیات وزندار روایتونه هغه دی کوم چه د حضرت عبدالله بن مسعودؓ او د حضرت عائشےؓ نه نقل کړے شوی دی، ځکه چه د دے دواړو په اتفاق سره بخپله د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه دا حدیث بیان کړے دے چه په دے دواړو موقعو باندې نبیؐ الله تعالیٰ نه وُو لیدلے بلکه جبریل علیه السّلام ئې لیدلے وُو، او دا روایتونه د قرآن مجید د بیانانو او اشاراتو

اَفَرَءَيْتُمُ اللّٰتَ وَالْعُزّٰى ﴿۱۹﴾ وَمَنٰوةَ الثَّالِثَةَ الْاُخْرٰى ﴿۲۰﴾
اَلَكُمُ الذَّكَرُ وَلَهُ الْاُنْثٰى ﴿۲۱﴾ تِلْكَ اِذًا قِسْمَةٌ ضِيْزٰى ﴿۲۲﴾

اُوس راته دا اُووایئ چه آیا تاسو چرے دَدے لات اودَدے عُزّٰی، او دریم دیوے بلے بزرگے مَنات په حقیقت باندِ څه غور هم کړے دے [۱۵]؟ آیا ځامن ستاسو دَپاره دی او لُونړه دَخدائے دَپاره [۱۶]؟ دا خو بیر دَ بے انصافئ تقسیم شو!

سره پوره سمُون خوری. دَ دے دَپاسه دَ هغے تائید دَ نبیؐ دَ هغه احادیثونه هم کیږی کوم چه حضرت ابوذرؓ او حضرت ابوموسیٰ اشعریؓ دَ هغه نه نقل کړی دی. دَ دے بر عکس چه دَ حضرت عبدالله بن عباس کوم روایتونه دَ حدیثو په کتابونو کښے نقل کړے شوی دی په هغے کښے سخت شک را پیدا کیږی. په څینو روایتونو کښے هغه دواړه ځله دیدار ته دَ سترګو لید لے دیدار وائی، په څینو روایتونو کښے دواړو ته دَ زړه دیدار وائی، په څینو کښے یو ته دَ سترګو دیدار او بل ته دَ زړه دیدار وائی، او په څینو کښے دَ سترګو دَ دیدار نه صفا انکار کوی. په هغے کښے یو روایت هم داسے نشته چه هغه پکښے دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم خپل حدیث نقل کوی. او په کوم ځائے کښے چه هغه پخپله دَ نبیؐ خپل حدیث نقل کړے دے هلته خو اوّل په هغه دواړو رؤیتونو کښے دَ یو ذکر هم نشته کوم چه په قرآن مجید کښے بیان کړے شوی دی، او بله دا چه دَ هغے دَ یو روایت تشریح دَ دویم روایت نه دا معلومیږی چه نبیؐ په څه وخت کښے دَ بیدارئ په حالت کښے نهٔ بلکه په خوب کښے الله تعالیٰ لید لے وُو. نو په دے وجه په حقیقت کښے دَ دے آیتونو په تفسیر کښے په هغه ټولو روایتونو باندِ اعتماد نشی کیدے کوم چه حضرت عبدالله بن عباسؓ ته منسوب شوی دی. دغه شان دَ محمد بن کعب القُرَظِی روایتونه هم، اګرچه دَ رسول الله صلی الله علیه وسلّم یو حدیث نقل کوی، لیکن په هغے کښے دَ هغه صحابو دَ نومونو صفا ذکر نشته کوم چه دَ نبیؐ نه دا خبره اَوریدلی ده. دا ر نګے په هغے کښے په یو کښے وئیلے شوی دی چه نبیؐ دَ سترګو دَ دیدار صفا صفا نفی کړی وه.

[۱۵] مطلب دا دے چه محمد صلی الله علیه وسلّم تاسو له کوم تعلیم درکوی هغے ته خو تاسو ګمراهی وایئ، حالانکه دا علم هغه ته دَ الله تعالیٰ دَ طرفنه مِلا ویږی او الله تعالیٰ هغه ته په سترګو هغه حقیقتونه ښودلی دی دَ کوموګواهی چه هغه ستاسو په مخکښے کوی. اُوس لږ شان تاسو پخپله اُوګورئ چه په کومو عقیدو تاسو ټینګتیا کوئ هغه څومره نامناسبه عقیدے دی، او دَ دے په مقابله کښے چه څوک تاسو ته نیغه لار ښائی دَ هغے په مخالفت کولو سره آخر تاسو دَ چا نقصان کوئ؟ په دے سلسله کښے هغه درے دیوتو (یعنی بزرګے ښځے) دَ مثال په طور پیش کړے شوی دی دَ کومو چه دَ مکے، دَ مدینے، دَ طائف او دَ حجاز دَ خواو شا خلقو دَ ټولو نه زیات عبادت کولو. دَ هغوی په باره کښے تپوس شوے دے چه چرے تاسو دَ عقل نه کار اغستے دے او دا سوچ مو کړے دے چه دَ زمکے او دَ آسمان دَ خدائیئ په معاملا تو کښے دَ دوئ څه معمولی شان دخل هم کیدے شی؟ یا دَ خدائے تعالیٰ سره واقعی دَ دوئ څه رشته کیدے شی؟

دَلات دربار په طائف کښے وُو او دَ بنی ثقیف قبیلے دَ دے سره دومره سخته عقیده وه چه کله ابرهه

دَ هاتیانو فوج را روان کړو او دَ کعبې دَ وَرانولو دَ پاره ئې په مکه حمله کوله نو په هغه وخت کښې دِې خلقو صرف دَ دې خپل معبود دَ دربار دَ بچ کولو دَ پاره دَ غه ظالم له دَ خپل طرفنه څه حفاظتی کسان ورکړل چه دَ مکې لاروته اوښائی او په لات بُت باندې څه غرض اونۀ لری، حالانکه دَ ټولو عربیانو پښان دَ ثقیف خلقو هم دا منله چه کعبه دَ الله کور دے۔ دَ "لات" په معنیٰ کښې دَ عالمانو اختلاف دے۔ دَ ابن جریر طبری تحقیق دا دے چه دا دَ الله تانیث دے یعنی په اصل کښې دا لفظ اَللّٰهَةٌ وُو چه اللاّت ترجوړ کړے شو۔ دَ زمخشری په نزد دا دَ لویٰ یلویٰ نه مشتق دے۔ چه معنیٰ ئې ده تاویدل او یو طرفته تیتیدل۔ چونکه مشرکانو به دَ عبادت دَ پاره دے ته رجوع کوله او دے ته به تیتیدل او دَ دے نه به تاویدل نو په دے وجه به ورته خلقو لات وئیلو۔ ابن عباس رضی دا دَ "ت" په شد سره لاتّ وائی او وائی چه دا دَ لتّ یلتّ نه مشتق دے چه معنیٰ ئې ده شاربل او لړل۔ دَ هغه او دَ مجاهد بیان دے چه دا په اصل کښې یو سړے وُو چه دَ طائف خواته په یو ځټ اوسیدو او حج له چه به څوک تلل په هغوی به ئې دَ ستوان اوبۀ ګډولے او ډوډۍ به ئې پرِ خوړوله۔ چه هغه مړ شو نو خلقو هم په هغه ځټ باندې دَ هغه دربار جوړ کړو او دَ هغه عبادت ئې شروع کړو۔ لیکن دَ لاتّ دا تشریح اګرچه دَ ابن عباس او مجاهد غوندې بزرګانو کړې ده خو بیا هم په دوو وجو سره قابل قبول نۀ ده۔ یو دا چه په قرآن کښې دے ته لات وئیلے شوے دے نۀ چه لاتّ۔ دویم دا چه قرآن مجید دے ته دریو واړو ته بزرګانو ښځې وئیلی دی، او په دے روایت کښې دی چه لاتّ سړے وُو ښځه نۀ وه۔

عُزّیٰ لفظ دَ عزّت نه دے او دَ دے معنیٰ ده عزّتمنده ښځه۔ دا دَ قریشو خاص بزرګه وه او دَ دے دربار دَ مکې او دَ طائف ترمینځه په نخله میدان کښې په حُراض نومے ځائے کښې وُو (نخله په کوم ځائے کښې ده، دَ دے دَ پاره اُوګوره تفهیم القرآن، څلورم جلد، الاحقاف، حاشیه ۲۳)۔ دَ بنی شَیبان قبیلے خلق چه دَ بنی هاشم حلیفان وُو، هغوی دَ دے مجاوران وُو۔ دَ قریشو او دَ نورو قبائیلو خلق به زیارت له تلل او په هغې به ئې نذرانے اَچَولے او دَ هغې دَ پاره به ئې قربانیانے کولے۔ دَ کعبې پښان به دے ته هم خلقو دَ قربانئ ځاروی بوتلل او دَ ټولو بتانو نه به دَ دے زیات عزّت کیدو۔ دَ ابن هشام روایت دے چه ابُواُحَیحَه کله مرګ ته نږدے شو نو ابولهب ئې تپوس له لاړو۔ ګوری چه هغه ژاړی۔ ابولهب ورته اُووے چه وَلے ژاړے ابو اُحَیحه؟ ولے دَ مرګ نه یَریږے؟ حالانکه دا به په ټولو راځی۔ هغه اُووئیل په خدائے مې دِ قسم وی چه دَ مرګ دَ یرے نه نۀ ژاړم، بلکه ماسره دا غم دے چه ځما نه روستو به دَ عُزّیٰ عبادت څنګه کیږی۔ ابولهب ورته اُووئیل چه دَ دے عبادت ستا په ژوند کښې نۀ ستا دَ خاطره کیدو او نۀ به ستا نه روستو دَ دے عبادت پریښودے شی۔ ابواُحَیحَه اُووئیل اُوس ما تسلّی اُوشوه چه ځما نه روستو ځما دَ ځائے سنبالولو ئې څوک شته۔

دَ مَناة دربار دَ مکې او دَ مدینے ترمینځه دَ بحراحمر په غاړه په قدید نومے ځائے کښې وُو او خاص طور دَ خُزاعه او دَ اَوس او دَ خَزرَج خلق دَ دے زیات معتقد وُو۔ خلقو به دَ دے حج او طواف کولو او دَ نذر قربانیانے به ئې پیش کولے۔ دَ حج په زمانه کښې چه به کله حاجیان دَ بیت الله دَ طواف او دَ عرفات او دَ منیٰ نه وزګار شو نو هم دَ هغه ځائے نه به دَ مناة دَ زیارت دَ پاره دَ لبّیک لبّیک آوازونه اوچت کړے شو او کومو خلقو چه به دَ دے دویم "حج" نیت کړے وُو هغوی به دَ صفا او دَ مروه په مینځ کښې سعی نۀ کوله۔

إِنْ هِيَ إِلَّا أَسْمَاءٌ سَمَّيْتُمُوهَا أَنْتُمْ وَآبَاؤُكُمْ مَا أَنْزَلَ اللَّهُ بِهَا مِنْ سُلْطَانٍ ۚ إِنْ يَتَّبِعُونَ إِلَّا الظَّنَّ وَمَا تَهْوَى الْأَنْفُسُ ۖ وَلَقَدْ جَاءَهُمْ مِنْ رَبِّهِمُ الْهُدَىٰ ﴿٢٣﴾ أَمْ

په اصل کښے دا نور هیڅ نهٔ دی بس تش یو څو نومونه دی چه تاسو او ستاسو پلار نیکونو ایښودلی دی ـ الله د دوی د پاره هیڅ سند نهٔ دے نازل کړے[۱۷] ـ حقیقت دا دے چه دا خلق تش په وهم او ګمان پسے روان دی او د نفس د خواهشاتو مُریدان جوړ شوی دی[۱۸] ـ حالانکه د خپل رب د طرفنه هغوی ته هدایت راغلے دے[۱۹] ـ آیا

[۱۶] یعنی دے بزرګانو بخښوته تاسو د الله ربّ العالمین لُوڼړه وایئ او دا ډیره سخته غلطه عقیده ده ـ د دے عقیدے د جوړولو په وخت کښے تاسو دا سوچ هم اُونهٔ کړو چه د خپل ځان د پاره خو د لُوڼړو پیدا ئیښ یو ذلت ګڼړئ او نارینه اولاد موخوښ وی ، لیکن د الله د پاره چه اولاد جوړوئ نو هغه هم لُوڼړه !

[۱۷] یعنی تاسو چه چاته بزرګه ښځه او بزرګ سړے وایئ هغوئ نهٔ بزرګے دی او نهٔ بزرګان ، نهٔ په هغوئ کښے د خدائئ یو صفت شته او نهٔ د خدائئ د اختیاراتو څه ادنیٰ شان حصّه هغوئ ته حاصله ده ـ تاسو د خپله ځانه دوئ د خدائے اولاد او معبودان او په خدائئ کښے شریکان ګڼړلی دی ـ د خدائے د طرفنه څه سند داسے نهٔ دے راغلے چه هغه تاسو د دے خپلو خیالاتو په ثبوت کښے پیش کړے شئ ـ

[۱۸] یعنی د هغوئ د ګمراهئ بُنیادی وجے دوه دی ـ یوه دا چه هغوئ د خپلے عقیدے او د دین جوړولو د پاره د حقیقت د علم څه ضرورت لازمی نهٔ ګڼړی بلکه تش په قیاس او په ګمان سره یو خبره ځان ته مخے ته کړی او بیا په هغے هغسے ایمان راوړی لکه چه هغه یو حقیقت وی ـ بله دا چه هغوئ دا عمل په اصل کښے د خپل نفس د خواهشاتو پوره کولو د پاره اختیار کړے دے ـ د هغوئ زړه دا غواړی چه یو داسے معبود وی چه هغه په دُنیا کښے خو د دوئ کارجوړوی او آخرت که چرے راشی نو هلته هم د هغوئ د بخښنانے ذمه واخلی ، لیکن د حرامو او حلالو څه پابندی په هغوئ اُونهٔ لګوی او د اخلاقو څه ذمه واری پرے رانهٔ لی ـ دا وجه ده چه هغوئ د پیغمبرانو په طریقه باندے د یو خدائے بندګئ کولو ته نهٔ تیاریږی او د دے جوړ وکړو معبودانو او معبودنړو عبادت ئے خوښیږی ـ

[۱۹] یعنی په هره زمانه کښے پیغمبران د الله تعالیٰ د طرفنه د دے ګمراهانو خلقو ته حقیقت ښائی او اُوس محمد صلی الله علیه وسلم هغوئ ته دا حقیقت ښکاره کړے دے چه په کائناتو کښے اصلی خدائی د چا ده ـ

لِلْاِنْسَانِ مَا تَمَنّٰى ﴿۲۴﴾ فَلِلّٰهِ الْاٰخِرَةُ وَالْاُوْلٰى ﴿۲۵﴾ وَكَمْ مِّنْ مَّلَكٍ فِي السَّمٰوٰتِ لَا تُغْنِيْ شَفَاعَتُهُمْ شَيْـًٔا اِلَّا مِنْۢ بَعْدِ اَنْ يَّاْذَنَ اللّٰهُ لِمَنْ يَّشَآءُ وَيَرْضٰى ﴿۲۶﴾ اِنَّ الَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ بِالْاٰخِرَةِ لَيُسَمُّوْنَ الْمَلٰٓئِكَةَ تَسْمِيَةَ الْاُنْثٰى ﴿۲۷﴾ وَمَا لَهُمْ

انسان چه څه غواړي دَ هغه دَ پاره هم هغه حق دے[۲۰]؟ دَ دُنیا او دَ آخرت مالک خو خاص الله دے۔ ع
په آسمانونو کښے څومره ډیرے فرښتے دی، دَ هغوی سفارش هیڅ هم په کار نهٔ شی راتلے تر څو چه الله دَ یو داسے سړی په حق کښے دَ سفارش کولو اجازت او نهٔ کړی چه دَ هغه دَ پاره هغه څه درخواست اوریدل غواړی او دَ هغه خوښ وی[۲۱]۔ خو کوم خلق چه آخرت نهٔ منی هغوی په فرښتو باندِ دَ بزرګو زنانو نومونه ږدی[۲۲]، حالانکه دَ دِے معاملے

[۲۰] دَ دے آیت دویم مطلب دا هم کیدے شی چه آیا انسان ته دا حق حاصل دے چه هغه په خپله خوښه ځان له معبود جوړ کړی؟ او دریم مطلب تر دا هم اغستلے کیدے شی چه انسان دَ دے معبودانو نه دَ خپلو مُرادونو پوره کیدو کومه آرزو لری آیا هغه چرے پوره کیدے هم شی؟

[۲۱] یعنی که ټولے فرښتے هم رایوځائے شی او دَ چا سفارش کوی نو هغه ته هیڅ فائده نشی رَسَولے، لا ستاسو دَ جوړو کړو معبودانو سفارش به دَ چا څه ورانه ودانه کړے شی۔ دَ خدائیٔ اختیارات بالکل ټول دَ الله په لاس کښے دی۔ فرښتے هم دَ چا په حق کښے هغه ته تر هغې سفارش نهٔ شی کولے تر څو چه هغه اجازت نهٔ وی کړے او دَ چا په حق کښے دَ هغوی په سفارش اوریدو باندِ راضی نهٔ وی۔

[۲۲] یعنی یوه بے وقوفتیا خو دَ هغوی دا ده چه دا بے اختیاره فرښتے چه الله ته دَ سفارش کولو طاقت قدر له نهٔ لری، دوئ دَ هغوئ نه معبودان جوړ کړی دی او دَ دے دَ پاسه بله بے وقوفتیا دا ده چه هغوئ فرښتے زنانه ګنړی او دَ خدائے لونړه ورته وائي۔ دَ هغوئ دَ دے ټولو جهالتونو بُنیاد دی وجه دا ده چه هغوی آخرت نهٔ مَنی۔ که هغوی آخرت منلے نو هیچرے به ئے داسے خبری نهٔ وَے کړے۔ دَ آخرت نه دَ اِنکار په وجه هغوئ دَ انجام نه بے فکره شوی دی او وائی چه خدائے منل یا نهٔ منل یا په زرګونو خدایان منل هیڅ فرق نهٔ لری، ځکه چه په دِے کښے دَ یو عقیدے هم څه ښه یا بد انجام دَ دُنیا په ژوند کښے په نظر نهٔ راځی۔ که دَ خدائے نه منکر خلق دی او که مشرکان دی او که خدائے ته یو ویونکی خلق دی دَ هغوئ ټولو فصلونه پخیږی شم او سوزیږی هم۔ ټول بیمار ت کیږی هم او ښه کیږی هم۔ هر قسم ښه او خراب حالات په هر چا تیریږی۔ په دے وجه دَ هغوی دَ پاره دا دَ څه ډیر غور فکر خبره نهٔ ده چه سړے څوک معبود اومنی او که وے نهٔ منی، یا چه څومره او څنګه

بِهٖ مِنْ عِلْمٍ ؕ اِنْ يَّتَّبِعُوْنَ اِلَّا الظَّنَّ ۚ وَاِنَّ الظَّنَّ لَا يُغْنِيْ مِنَ الْحَقِّ شَيْـًٔا ﴿۲۸﴾ فَاَعْرِضْ عَنْ مَّنْ تَوَلّٰى ۙ عَنْ ذِكْرِنَا وَلَمْ يُرِدْ اِلَّا الْحَيٰوةَ الدُّنْيَا ﴿۲۹﴾ ذٰلِكَ مَبْلَغُهُمْ مِّنَ الْعِلْمِ ؕ

هیڅ علم هغوئ ته حاصل نهٔ دے - هغوئ صرف په ګمان پسے روان[۲۳] دی، او ګمان د حق په ځائے هیڅ کار نهٔ شي ورکولے -

نو اے نبی، څوک چه زمونږ د ذکرنه مخ اړوی[۲۴]، او د دُنیا د ژوند نه سوا بل هیڅ مقصد نهٔ لری، هغه په خپل حال باندِ پرېږده[۲۵] ——— د دے[۲۶] خلقو د علم حد بس هم دا دے[۲۷]،

غواړی هغومره او هغسے معبودان دِ جوړوی - هرکله چه د هغوئ عقیده دا ده چه د حق او د باطل فیصله به هم په دے دُنیا کښے کیږی، او په دے دُنیا کښے چه څه کیږی هم دا د خلقو د عملونو آخری انجام دے، نو ښکاره خبره ده چه د دُنیا انجام نهٔ خو د چا د عقیدے د حق والی قطعی فیصله کوی او نهٔ د چا د عقیدے د باطل کیدو - نو د داسے خلقو د پاره یوه عقیده اختیارول او بله رد کول هسے د مزے خبره ده -

[۲۳] یعنی د فرښتو په حقله د هغوئ دا عقیده څه په دے وجه نهٔ ده چه هغوئ ته ګنی د علم په ذریعه دا معلومه شوی ده چه هغه زنانه دی او د خدائے لُونړه دی، بلکه هغوئ تش په خپل قیاس او ګمان سره یوه خبره راښیولی ده او د هغې په وجه ئے دا دربارونه جوړ کړی دی چه مُرادونه ترِ غوښتلے کیږی او نذرانے شکرانے وَرله وړلے کیږی -

[۲۴] د لفظ ذکر دلته ډیرے معنے دی - د دے نه مُراد قرآن هم کیدے شی، صرف نصیحت ترِ هم مُراد کیدے شی، او د دے دا مطلب هم کیدے شی چه د خدائے ذکر اَوریدل ئے خوښ نهٔ دی -

[۲۵] یعنی په هغه پسے مَه ورپسے کیږه او د هغه په پوهه کولو وخت مَه ضائع کوه - ځکه چه داسے سړے به یو داسے دعوت قبلولو ته تیار نهٔ شی چه د هغه نه خدا پرستی غواړی، چه هغه د دُنیا د مادی فایدو نه اُوچتو فایدو ته رابلی، او چه په هغې کښے اصل مقصد د آخرت همیشه کامیابی وی - په دے قسم ماده پرست او خدا بیزاره انسان باندِ د محنت کولو په ځائے خپله توجه هغه خلقو ته کړه چه هغوئ د خدائے ذکر اوریدو ته تیار وی او د دُنیا پرستئ په مرض کښے اخته نهٔ وی -

[۲۶] دا د روان تقریر په منځ کښے یوه خبره ده چه د تیرے شوے خبرے د تشریح په طور فرمائیلے شوی ده -

[۲۷] یعنی دا خلق د دُنیا او د دُنیا د فایدو نه وړاندِ نهٔ څه پیژنی نهٔ څه سوچ کولے شی، په دوی باندِ محنت کول بے فائدے دی -

إِنَّ رَبَّكَ هُوَ أَعْلَمُ بِمَنْ ضَلَّ عَنْ سَبِيلِهِ وَهُوَ أَعْلَمُ بِمَنِ اهْتَدَىٰ ﴿۳۰﴾ وَلِلَّهِ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ لِيَجْزِيَ الَّذِينَ أَسَاءُوا بِمَا عَمِلُوا وَيَجْزِيَ الَّذِينَ أَحْسَنُوا بِالْحُسْنَى ﴿۳۱﴾ الَّذِينَ يَجْتَنِبُونَ كَبَائِرَ الْإِثْمِ وَالْفَوَاحِشَ إِلَّا اللَّمَمَ ۚ

داخبره ستارب ته ښه معلومه ده چه دَ هغه دلارې نه څوک بے لارې شوے دے او څوک په ښغه لاره روان دے،[۲۸] او دَ زمکے او دَ آسمانونو دَ هر څیز مالک خاص الله دے.[۲۹] دَ پاره دَ دے چه الله تعالیٰ بدعمله خلقوله دَ هغوی دَ عملونو بدله ورکړی او هغه خلقوله ښه بدله ورکړی چاچه نیک عمل اختیارکړے دے،[۳۰] او دَ لویو لویو گناهونو[۳۱] او دَ بے حیائیٔ دَ کارونو نه ځان ساتی، سوا دَ دے نه چه څه واړه گناهونه ترے اوشی.[۳۲]

[۲۸] یعنی دا فیصله به نهٔ په دے دنیاکښے کیږی چه فلانے سړے گمراهه دے یا په ښغه لاره دے، او نهٔ دا فیصله دَ دُنیا خلقوته پریښودے شوی ده. دَ دے فیصله خو دَ الله په لاس کښے ده، هم هغه دَ زمکے او دَ آسمان مالک دے، هم هغه ته داخبره معلومه ده چه دَ دُنیا خلق په کومو مختلفو لارو روان دی په دوی کښے څوک په ښغه لاره دی او څوک بے لارے دی. نو ته دَ دے خبری پروامهٔ کوه چه دا دَ عربو مشرکان او دَ مکے کافران تا ته بے لارے وائی او خپل جاهلیت ته حق او هدایت وائی. دوی که چرے په دے خپل باطل گمان کښے اوسیدل غواړی نو اوسی دِ. دَ دوی سره په بحث کولوکښے سرخوږولو ته او وخت ضائع کولو ته هیڅ ضرورت نشته.

[۲۹] دَ دے ځائے نه بیا هغه خبره شروع ده کومه چه دَ بره نه را روانه ده. یعنی چه په مینځ کښے جمله معترضه نهٔ وی نو عبارت داسے دے، "هغه په خپل حال باندِ پریږده چه الله بدعمله خلقوله دَ هغوی دَ عمل بدله ورکړی".

[۳۰] دَ تشریح دَ پاره اُوگوره تفهیم القرآن، اوّل جلد، النّساء، حاشیه ۵۳.

[۳۱] دَ تشریح دَ پاره اُوگوره تفهیم القرآن اوّل جلد، الانعام، حاشیه ۱۳۰. دوم جلد، النحل، حاشیه ۸۹.

[۳۲] اصل الفاظ دی إِلَّا اللَّمَمَ. په عربیٔ ژبه کښے لفظ لَمَم دَ یو څیز دَ لږ مقدار دَ پاره، یا دَ هغے دَ معمولی اثر دَ پاره، یا تش دَ هغے دَ نزدے والی دَ پاره، یا دَ هغے دَ لږ شان ناوخته والی دَ پاره استعمالیږی مثلاً وائی چه أَلَمَّ بِالْمَكَانِ، هغه په فلانی ځائے کښے لږ شان ودریدو، یا دَ لږ وخت دَ پاره هلته لاړو. أَلَمَّ بِالطَّعَامِ، هغه لږه شان ډوډیٔ اُوخوړه. بِهِ لَمَمٌ، دَ هغه دماغ لږ شان بے ځایه شوی دی، یا په هغه کښے دَ لیونتوب څه اثر دے. دا لفظ دَ دے معنیٰ دَ پاره استعمالیږی چه یو سړی یو کار کړے خو نهٔ دے لیکن دَ هغے کولو ته نزدے شوے دے. فَرّاء وائی چه ما دَ عربو نه دا قسم فقرے اوریدلی دی: ضربه ما لمم القتل

"فلانی هغه دومره اووهوچه بس مرګ ته نږدے دے - او اَلَمَّ یفعل، قریبه وه چه فلانی دا کارکړے وے - شاعروائی اَلَمَّت فحیّت ثم قامت فودّعت، " هغه بس لږه شان راغله، سلام ئے اُوکړو، پاسیده اورخصت شوه "۔

دَ دے استعمال په وجه څینی مفسّرین وائی چه دَ لَمَم نه مُراد واړه واړه ګناهونه دی - څینی وائی چه دَ دے مطلب داد ے چه یوسړے لوئے ګناه ته نږدے شی خو ئے نهٔ کړی - څینی وائی چه دَ څه وخته پورے ګناه اُوکړی خو بیا ترمنع شی - او څینی وائی چه دَ دے نه مُراد داد ے چه سړے دَ ګناه خیال یا خواهش یا اراده خواُوکړی لیکن عملاً هیڅ اُونهٔ کړی په دے سلسله کښے دَ صحابو اودَ تابعینو قولونه لاندِ لیکلے شوی دی؛

زید بن اسلم او ابن زید وائی، اودَ حضرت عبدالله بن عباسؓ هم یو قول دے چه دَ دے نه مُراد هغه ګناهونه دی چه دَ اسلام نه مخکښے به دَ جاهلیت په زمانه کښے خلقو کول، او بیا دَ اِسلام قبلولو نه روستوئے پریښودل -

دَ ابن عباسؓ دویم قول داد ے، او دا دَ حضرت ابوهریرهؓ؛ دَ حضرت عبدالله بن عمرو بن عاص، مجاهدؒ، حسن بصریؒ، او دَ ابوصالح قول هم دے چه دَ دے نه مُراد داد ے چه سړے یوه لویه ګناه یا دَ بے حیائئ یو کار دَ څه وخته پورے کوی یا تر په یو وخت کښے اُوشی او بیا ئے پریږدی -

حضرت عبدالله بن مسعودؓ او مسروق او شعبی فرمائی اودَ حضرت ابوهریرهؓ اودَ حضرت عبدالله بن عباس نه هم په معتبرو روایتونو کښے دا قول نقل کړے شوے دے چه دَ دے نه مُراد داد ے چه سړے لوئے ګناه ته نږدے اُورسی او دَ هغے په اولنو مرحلو کښے ورداخل شی خو آخری مرحلے ته چه وراُورسی نو بیا منع شی - مثلاً یو سړے غلا له روان شی، خو دَ غلا کولو نه ځان اُوساتی - یا دَ یوے نا آشنا ښځے سره یوځائے شی، خو زنا اُونهٔ کړی -

حضرت عبدالله بن زبیر، عِکرِمه، قَتَاده او ضحّاک وائی چه دَ دے نه مُراد هغه واړه واړه ګناهونه دی چه دَ هغے دَپاره په دُنیا کښے هم څه سزا نهٔ ده مقرر کړے شوی او په آخرت کښے هم په هغے باندِ دَ عذاب ورکولو څه یادګیرنه نهٔ ده شوی -

سعید بن المسیّب فرمائی چه دَ دے نهٔ مُراد داد ے چه دَ ګناه خیال په زړه کښے راشی خو عمل پرِ اُونهٔ کړی -

دا دَ صحابو او دَ تابعینو مختلف تفسیرونه دی چه په روایتونو کښے نقل کړے شوی دی - روستنی اکثر مفسّرین او اِمامان او فقهاء دَ دے خبرے قائل دی چه دا آیت او دَ سورة نساء یو دیرشم آیت ټول ګناهونه په دوو قِسمونو کښے تقسیموی، یو لوی ګناهونه او بل واړه ګناهونه - او دا دواړه آیتونه انسان له دا اُمید ورکوی چه که چرے هغه دَ لویو ګناهونو نه او دَ بے حیائئ دَ کارونو نه ځان اُوساتی نو الله تعالیٰ به ور ته واړه ګناهونه معاف کړی - اګرچه څینو لویو عالمانو دا خیال هم ظاهر کړے دے چه یوه نافرمانی هم وړه نهٔ ده، بلکه دَ خدائے نافرمانی بخپل ځائے لویه ګناه ده - لیکن لکه څنګه چه امام غزالیؒ فرمائیلی دی، دَ لوئے ګناه او دَ وړے ګناه په منځ کښے فرق ضرور شته، ځکه چه دَ شریعت دَ حکمونو علم دَ کومو ذریعو نه حاصلیږی په هغے ټولو کښے لویه ګناه او وړه ګناه په ګوته کړے شوی ده -

إِنَّ رَبَّكَ وَاسِعُ الْمَغْفِرَةِ ۚ هُوَ أَعْلَمُ بِكُمْ إِذْ أَنشَأَكُم مِّنَ الْأَرْضِ وَإِذْ أَنتُمْ أَجِنَّةٌ فِي بُطُونِ أُمَّهَاتِكُمْ ۖ فَلَا تُزَكُّوا أَنفُسَكُمْ ۖ هُوَ أَعْلَمُ بِمَنِ اتَّقَىٰ ﴿٣٢﴾ أَفَرَأَيْتَ الَّذِي تَوَلَّىٰ ﴿٣٣﴾ وَأَعْطَىٰ قَلِيلًا وَأَكْدَىٰ ﴿٣٤﴾ أَعِندَهُ عِلْمُ الْغَيْبِ فَهُوَ يَرَىٰ ﴿٣٥﴾ أَمْ لَمْ يُنَبَّأْ بِمَا فِي صُحُفِ مُوسَىٰ ﴿٣٦﴾ وَإِبْرَاهِيمَ الَّذِي وَفَّىٰ ﴿٣٧﴾



بے شکه ستا رب دَ فراښے بخښنانے مالک دے[۳۳]۔ هغه تاسو د هغه وخت نه ښه پيژنی کله چه هغه دَ زمکے نه تاسو پيدا کړئ او څه وخت چه تاسو لا دَ خپلو ميندو په خيټو کښے پراته وئ۔ نو دَ خپل ځان دَ پاکئ دعوے مه کوئ، هغه ښه پيژنی چه په حقيقت کښے متقی څوک دے۔ ع

اے نبیؐ، تا هغه سړے اوليدو چه هغه دَ خدائے دَ لارے نه واوړيدو او لږ شان (مال) ئے ورکړو او ومنع شو[۳۴]۔ آيا دَ هغه سره دَ غيبو علم دے چه هغه حقيقت وينی[۳۵]؟ آيا هغه ته هغه خبری نهٔ دی رسيدلی کومے چه دَ موسیٰ په صحيفو کښے او دَ هغه ابراهيم په صحيفو کښے بيان شوی دی چه هغه دَ وفا حق ادا کړو[۳۶]؟

اُوس پاتے شوه دا خبره چه په وړوکنا هونو او لويو ګنا هونو کښے څه فرق دے او کوم قسم ګنا هونه واړه دی او کوم قسم ګناهونه لوئ دی، نو په دے باره کښے چه په کومه خبره باندِ زمونږه اطمينان دے هغه دا دے چه "هر هغه کار لويه ګناه ده چه هغے ته په کتاب الله او سنّتِ رسولؐ کښے حرام ويلے شوی وی، يا دَ هغے دَ پاره الله او دَ هغه رسول په دُنيا کښے څه سزا مقرر کړی وی، يا په هغے باندِ په آخرت کښے دَ عذاب ورکولو حکم نازل شوے وی، يا دَ هغے په کوونکی لعنت ويلے شوے وی، يا دَ هغے په کوونکی باندِ دَ عذاب دَ نازليدو خبر ورکړے شوے وی"۔ دَ دے قسم ګناهونو نه سِوا نور څومره کارونو ته چه شريعت په ښه سترګه نهٔ کوری هغه ټول واړه ګناهونه دی۔ دغه شان دَ لوئے ګناه هسے خواهش يا اراده کول هم لويه ګناه نهٔ ده بلکه وړه ګناه ده۔ ان تر دے پورے چه دَ لوئے ګناه په اولنو مرحلو کښے داخليدل هم دَ هغه وخته پورے لويه ګناه نهٔ ده ترڅو چه سړی هغه کړی نهٔ وی۔ البته دَ وړے ګناه نه هم په هغه حالت کښے لويه ګناه جوړيږی کله چه هغه دَ دين دَ سپکاوی په جذبه سره او دَ الله تعالیٰ په مقابله کښے دَ لوئيئ کولو په جذبه سره اُوکړے شی، او دَ هغے کوونکے دَ هغه شريعت هيڅ پروا اُونهٔ لری په کوم کښے چه هغے ته بدی ويلے شوی ده۔

أَلَّا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِزْرَ أُخْرَىٰ ﴿٣٨﴾ وَأَن لَّيْسَ لِلْإِنسَانِ إِلَّا مَا سَعَىٰ ﴿٣٩﴾

"داچه یو بار اُوچتونکے به دَبل بار نهٔ اُوچتوی، [۳۷]
او داچه دَ انسان دَپاره بس هغه څه دی چه دَ کوم دَپاره هغه کوشش اُوکړو، [۳۸]

۳۳ یعنی دَ وړوګناهونو دَ معاف کولو دا مطلب نهٔ دے چه وړه ګناه ګنی څه ګناه نهٔ ده، بلکه دَ دے مطلب دادے چه الله تعالیٰ دَ خپلو بندګانو سره دَ لنډو خوئ معامله نهٔ کوی او په وړو وړو خبرو ئے نهٔ را نیسی ۔ بنده چه دَ نیکئ په لار روان شی او دَ لویو لویو ګناهونو او دَ بے حیائئ دَ کارونو نه ځان ساتی نو الله تعالیٰ به ئے په وړو وړو خبرو نهٔ را نیسی او دَ لوئ رحم په وجه به ئے هم دغه معاف کوی ۔

۳۴ دا اشاره ده ولید بن مُغیره ته چه دَ قریشو په سردارانو کښے یو لوئ سردار وُو ۔ دَ ابن جریر طبری روایت دے چه دا سړے اوّل دَ رسول الله صلی الله علیه وسلّم دعوت قبلولو ته تیار شوے وُو ۔ خو کله چه دَ هغه یو مشرک دوست ته پته اُولږیده چه هغه دَ مسلمانیدو اراده کړی ده نو هغه ورته اُوویُل چه دَ پلار دین مَه پریږده، که تهٔ دَ آخرت دَ عذاب نه یریږے نو ماله دومره پیسے راکړه، څه دَ دے خبرے ذمه اخلم چه هلته دِ ستا په بدله کښے ماله عذاب راکړی ۔ ولید دا خبره اُومنله او دَ خدائے لارے ته دَ راتلونه منع شو، خو دَ کومو پیسو ورکولو وعده چه هغه دَ خپل مشرک دوست سره کړی وه هغه ئے هم څه لږے شان ورکړے او باقی نورے ئے ورنهٔ کړے ۔ دِ دے واقعے ته دَ اشارے کولو مقصد دادے چه دَ مکے کافرانو ته دا اُوښائی چه کله هغوی دَ آخرت نه بے فکره شوا و دَ دین دَ حقیقت نه بےخبره شو نو په څه رنګ جهالت او بے وقوفتیا کښے اخته شو ۔

۳۵ یعنی آیا هغه ته دا معلومه ده چه دا عمل دَ هغه دَپاره فائده مند دے؟ آیا هغه ته دا پته ده چه دَ آخرت دَ عذاب نه خوک په دے طریقه هم بچ کیدے شی؟

۳۶ وړاندِ هغه تعلیمات په لنډو الفاظو کښے بیانیږی کوم چه دَ حضرت موسیٰؑ او دَ حضرت ابراهیمؑ په صحیفو کښے نازل شوی وُو ۔ دَ حضرت موسیٰؑ دَ صحیفو نه مراد تورات دے ۔ پاتے شوے دَ حضرت ابراهیمؑ صحیفے نو هغه نن په دُنیا کښے هیچرته نشته، او دَ یهودیانو او عیسایانو په مقدس کتابونو کښے هم دَ هغے څه ذکر نشته ۔ صرف قرآن هغه کتاب دے چه په هغے کښے په دوو ځایونو کښے دَ ابراهیمؑ دَ صحیفو دَ تعلیماتو ځینی حصے نقل کړے شوی دی، یو دا ځائے، او بل دَ سورة الاعلیٰ آخری آیتونه ۔

۳۷ دَ دے آیت نه درے غټ غټ اصول را اُوزی ۔ یو داچه هر سړے دَ خپل کار پخپله ذمه وار دے ۔ دویم داچه دَ یو سړی دَ کار ذمه واری په بل سړی نهٔ شی اچولے کیدے سوا دَ دے نه چه دَ هغه کار په کولو کښے دَ هغه سړی خپله څه حصه وی ۔ دریم دا که یو سړے غواړی هم خو دَ بل دَ کار ذمه واری په ځان نشی را وستلے، نهٔ اصلی مجرم په دِ دے وجه پریښودے شی چه دَ هغه په ځائے بل سړے دَ سزا دَپاره ځان پیش کړی ۔

۳۸ه دَ دے حکم نه هم درے اهم اُصول راوُزي - یو دا چه هرچاته به صرف دَ خپل عمل بدله مِلاویږي - دوَیم دا چه دَ یوسړي دَ عمل فائده به بل له نشي ورکړے کیدے سِوا دَ دے نه چه په هغه عمل کښے دَ هغه خپله څه حصّه وي - درَیم دا چه یوسړے دَ کوشش او دَ عمل نه بغیر هیڅ نشي موندلے -

څیني خلق دا درے واړه اُصول دَ دُنیا دَ معاملا تو سره په غلطه طریقه لګوي او دا نتیجه تږ را اُوباسي چه هیڅوک دَ خپل محنت دَ ګټے (Earned income) نه سِوا دَ یو څیز جائز مالک نشي جوړیدے - لیکن دا خبره دَ قرآن مجید دَ ډیرو حکمونو سره ټکر اوُخوري - مثلاً دَ وراثت قانون، چه دَ سړي په میراث کښے دَ ډیرو کسانو حصّه وي او هغوي دَ هغے جائز وارثان وي حالانکه دَ میراث مال دَ هغوي دَ خپل محنت ګټه نهٔ وي، بلکه دَ تي دَ بچي په حقله خو دا هډو ثابتیدے نشي چه دَ پلار په میراثي مال کښے دَ هغه دَ محنت هم څه حصّه وه - دغه شان دَ زکاة او صدقو حکمونه دي چه دَ یوسړي مال بل سړي ته صرف په شرعي او اخلاقي لحاظ سره مِلاویږي او هغه دَ هغے جائز مالک جوړیږي، حالانکه دَ هغه مال په پیدا کیدو کښے دَ هغه هیڅ حصّه نهٔ وي - نو دَ قرآن دَ یو آیت نه داسے نتیجے را اُوبَسکل چه هغه بخپله دَ قرآن دَ نورو تعلیماتو سره ټکراویږي، دَ قرآن دَ منشا نه بالکل خلاف خبره ده -

څیني نور خلق دا اصول دَ آخرت سره تړي او دا تپوس نه کوي چه آیا دَ دے اُصولو ترمخه دَ یوسړي عمل دَ بل سړي دَ پاره په څه شکل کښے فائده مند کیدے شي؟ او آیا یوسړے که دَ بل سړي دَ پاره څه عمل اُوکړي یا دَ هغه په بدله کښے څه عمل اُوکړي نو هغه دَ هغه دَ طرفنه قبلیدے شي؟ او آیا دا هم کیدے شي چه یوسړے دَ خپل عمل بدله بل له ورکړي؟ دَ دے تپوسونو جواب که چرے په "نهٔ" کښے وي نو "ثواب رسیدل" او دَ "بل په ځائے حج کول" وغیره ټول مسئلے ناجائزه کیږي، بلکه دَ بل په حق کښے دَ بخښنا ئے دُعا غوښتل هم بے مطلبه کیږي، ځکه چه دا دُعا هم دَ هغه سړي خپل عمل نهٔ دے دَ چا په حق کښے چه دُعا اُوغوښتلے شي - لیکن دا انتهائي فکر دَ معتزلو نه نه سِوا په مسلمانانو کښے بل هیچا نهٔ دے اختیار کړے - صرف هغوي دَ دے آیت نه دا مطلب اخلي چه دَ یو سړي کوشش دَ بل دَ پاره په هیڅ حال کښے فائده مند کیدے نهٔ شي - دَ دے برخلاف اَهلِ سُنّت په اِتِفاق سره دا خبره مني چه دَ یوسړي دَ پاره دَ بل دُعا فائده منده کیدے شي، ځکه چه دا دَ قرآن نه ثابته ده، البته په ثواب رسیدلو کښے او نیابةً دَ بل دَ طرفنه په نیک کارکولو کښے دَ هغوي په مینځ کښے اصولاً هیڅ اختلاف نهٔ دے بلکه صرف په تفصیلاتو کښے اختلاف دے-

(۱) ایصالِ ثواب (یعني ثواب رسیدل) دا دے چه یوسړے یو نیک کار اُوکړي او اوبیا دَ الله نه دُعا اُوغواړي چه اے الله دَ دے نیک کار ثواب فلاني له ورکړے -

په دے مسئله کښے امام مالکؒ او امام شافعيؒ فرمائي چه خالص بدني عبادتونه مثلاً لمونځ، روژه او دَ قرآن تلاوت وغیره، دَ دے ثواب بل ته نهٔ شي رسیدے، البته مالي عبادتونه مثلاً صدقه، یا مالي او بدني شریک عبادت مثلاً حج، نو دَ دے ثواب بل ته رسیدے شي، ځکه چه اصل مسئله دا ده چه دَ یوسړي عمل دَ بل دَ پاره فائده مند نهٔ وي، لیکن دَ صحیح احادیثو ترمخه دَ صدقے ثواب رسیدے شي او دَ بل دَ پاره حج هم کیدے شي، نو په دے وجه

موبنږه صرف دَ دې قِسم عبادتونه ایصالِ ثواب صحیح تسلیم کوُو او دَ نورِ قِسم عبادتونو ایصالِ ثواب نهٔ تسلیم کوُو ـ دَ دې برخلاف دَ حنفیانو مسلک دا دے چه انسان دَ خپل هر نیک عمل ثواب بل ته بخښلے شی، خواه که هغه مونځ وی که روژه وی، که دَ قرآن تلاوت وی، که ذِکر وی، که صدقه وی او که حج یا عُمره وی ـ دَ دے دلیل دا دے لکه چه څنګه یو سړے مزدوری اُوکړی او مالک ته دا اُوئیلے شی چه څما دَ دے کار اُجرت دِ فلانی له ورکړے شی، دغه شان انسان چه نیک عمل اُوکړی نو دَ الله تعالیٰ نه دا دُعا هم غوښتلے شی چه دَ دې ثواب دِ څما دَ طرفنه فلانی له ورکړے شی، او په دې کښې هر قِسم نیکی شامله ده ـ او دا خبره دَ ډیرو احادیثو نه هم ثابته ده؛

په بُخاری، مُسلم، مُسندِ احمد، ابن ماجه، طَبَرانی (فی الاوسط)، مستدرِک او په ابن ابی شیبه کښې دَ حضرت عائشےؓ، حضرت ابوهریرهؓ حضرت جابر بن عبدالله، حضرت ابو رافِع، حضرت ابوطَلحَه انصاری، او دَ حُذَیفه بن اُسید الغِفَاری متفقه روایت دے چه رسول الله صلی الله علیه وسلم یو ګډ دَ خپل طرفنه او دَ خپل کوروالو دَ طرفنه قربانی کړو او بل ئے دَ خپل اُمّت دَ طرفنه ـ

په مُسلم، بُخاری، مُسنَدِ احمد، ابوداوٗد، او نَسائی کښې دَ حضرت عائشے روایت دے چه یو سړی رسول الله صلی الله علیه وسلّم ته عرض اُوکړو چه څما مور ناسا په مَرَه شوی دَه ـ څما خیال دے که چرے هغے ته دَ خبرو کولو موقع مِلاؤ شوے وے نو هغے به ضرور دَ صدقے کولو وصیّت کړے وُو ـ اُوس که څه دَ هغے دَ طرفنه صدقه ورکړم نو آیا هغے ته ئے ثواب رسی؟ نبیؐ اُوفرمائیل چه هَوُ ـ

په مُسند احمد کښے دَ حضرت عبدالله بن عَمرُو بن العاص روایت دے چه دَ هغه نیکه عاص بن وائِل دَ جاهلیت په زمانه کښے دَ سلُو اُوښانو دَ ذبحه کولو نذر منلے وُو ـ دَ هغه تره هِشام ابن العاص دَ خپلے حصے پنځوس اُوښان ذبحه کړل حضرت عَمرو بن العاص دَ رسول الله صلی الله علیه وسلّم نه تپوس اوکړو چه څه څه اُوکړم ـ نبیؐ ورته اُوفرمائیل که چرے ستا پلار دَ توحید اقرار کړے وُو نو ته دَ هغه دَ طرفنه روژه اُونیسه یا صدقه ورکړه، دا به دَ هغه دَ پاره فائیده مند وی ـ

په مُسنَدِ احمد، ابوداوٗد، نَسائیؒ او ابن ماجه کښې دَ حضرت حسنِ بصری روایت دے چه حضرت سعدؓ بن عُبَاده دَ رسول الله علیه وسلم نه تپوس اُوکړو چه څما مور وفات شوی ده، آیا څه دَ هغے دَ طرفنه صدقه ورکړم؟ نبیؐ اوفرمائیل هَو ـ دا رنګے نورهم ډیر روایتونه دَ حضرت عائشےؓ، دَ حضرت ابوهریرهؓ او دَ حضرت ابن عباسؓ نه په بخاری، مُسلم، مُسنَدِ احمد، نَسائیؒ، ترمِذی، ابوداوٗد او ابن ماجه وغیره کښے موجود دی چه په هغے کښے رسول الله صلی الله دَ مړی دَ طرفنه دَ صدقے ورکولو اجازت کړے دے او فرمائیلی ئے دی چه دا مړی له فائیده ورکوی ـ

په دارقُطنی کښے دی چه یو سړی دَ نبیؐ نه تپوس اُوکړو چه څه خو دَ خپل مور او پلار خدمت دَ هغوی په ژوند کښے کوم، دَ هغوی دَ مرګ نه روستو ئے څنګه اوکړم؟ نبیؐ اوفرمائیل "دا هم دَ هغوی خدمت دے چه دَ هغوی دَ مرګ نه روستو ته دَ خپل مونځ سره دَ هغوی دَ پاره هم مونځ اُوکړے او دَ خپلو روژو سره دَ هغوی دَ پاره هم روژے اُونیسے" ـ په دارقُطنی کښے یو بل روایت دَ حضرت علیؓ نه روایت کړے شوے دے چه نبیؐ اُوفرمائیل څوک چه په مقبره ورغے او یوولس ځله ئے قُلْ هُوَ اللهُ اَحَد اُووے او دَ هغے ثواب ئے دَ مړو په حق کښے اُوبخښو

نو چه څومره مړی وی هغومره ثواب به دَهٔ له ورکړے شی ۔

داکثرو روایتونه چه دَ یو بل تائید کوی، دا دَ دے خبرې وضاحت کوی چه ایصال ثواب (یعنی ثواب رسیدل) نهٔ یوازے دا چه ممکن دے، بلکه دَ هر قِسم دَ عباداتونو او دَ نیکیانو ثوابونه بل ته رسیدے شی او په دِے کښے دَ خاصو عملونو تخصیص نشته ۔ لیکن په دے سلسله کښے څلور خبرې په ذِهن کښے کینول پکار دی:

یوه دا چه دَ هغه عمل ثواب بل ته رسیدے شی چه هغه خالص دَ الله دَ پاره وی او دَ شریعت دَ قاعدے مطابق شوے وی، گنې نو ظاهره خبره ده چه کوم کار دَ غیرُالله دَ پاره وی او دَ شریعت قاعدے نه خلاف اوُشی نو دَ هغے ثواب خو ځپله عمل کوُنکی ته نشی مِلاویدے، نو لا بل ته به څنګه وُرسی ۔

دوېمه خبره دا ده چه کوم خلق دَ نیکانو صالحانو په حیثیت سره دَ الله تعالیٰ میلمانه دی هغوی ته یقیناً چه دَ ثواب تحفه به رسی، خو کوم خلق چه هلته په حوالات کښے دَ مجُرم په حیثیت سره بند دی هغوئ دَ ثواب دَ رسیدو اُمید نشته ۔ دَ الله میلمنو ته خو تحفه رسیدے شی، لیکن اُمید نهٔ دے چه دَ الله مجُرم ته تحفه اوُرسیدے شی ۔ هغه ته که څوک دَ غلط فهمئ په وجه څېل ثواب بخښی نو دَ هغه ثواب به نهٔ ضائع کیږی بلکه مجُرم ته به نهٔ ځی دهٔ له به واپس راځئ ۔ لکه څنګه چه منی آرډر چا ته لیږلے شوے وی او هغه ته اوُنهٔ رَسی نو لیږونکی ته واپس راځی ۔

درېمه خبره دا ده چه ثواب رسیدل خو ممکن دی لیکن عذاب رسیدل ممکن نهٔ دی ۔ یعنی دا خو کیدے شی چه سړے نیکی اوُکړی او ثواب ئے بل ته اوُبخښی او هغه هغهٔ ته اوُرَسی، لیکن دا نهٔ شی کیدے چه سړے گناه اوُکړی او دَ هغے گناه بل ته اوُبخښی او هغه دِ هغهٔ ته اوُرسی ۔

او څلورمه خبره دا ده چه دَ نیک عمل دوه فایدے دی ۔ یو هغه اثرات دی کوم چه دَ عمل کوُنکی په څېل روح او اخلاقو باندِ کیږی او چه دَ هغے په وجه هغه دَ الله په دربار کښے دَ جزا مستحق گرزی ۔ دوېم هغه اجر چه الله تعالیٰ ئے دَ انعام په طور هغه له ورکوی ۔ دَ ایصالِ ثواب تعلق دَ اولنی څیز سره نهٔ دے بلکه صرف دَ دوېم څیز سره دے ۔ دَ دے مثال داسے دے لکه چه یو سړے ورزش کوی او په کشتئ کښے دَ ځان تکړه کولو کوشش کوی ۔ په دے سره چه کوم طاقت او مهارت په هغه کښے پیدا کیږی هغه بهرحال دَ هغه دَ ذات سره خاص دے، بل چا ته نشی منتقل کیدے ۔ دغه شان هغه که چرے په یو دربار کښے نوکر دے او دَ پهلوان په حیثیت سره دَ هغه دَ پاره یوه تنخواه مقرر ده نو هغه به هم هغه ته مِلاویږی، بل چا ته به نهٔ ورکړے کیږی ۔ البته چه دَ هغه مشر دَ هغه دَ کارنه خوشحاله شی او هغه له کوم انعامونه ورکوی نو دَ هغے په حقله هغه درخواست کولے شی چه دا دِ ځما اوُستاذ له، یا ځما مور او پلار له، یا نورو دوستانو له ځما دَ طرفنه ورکړے شی ۔ دا رنګے معامله دَ نیکو عملونو ده چه دَ دے روحانی فایدے منتقل کیدے نهٔ شی او دَ دے بدله هم چا ته منتقل کیدے نشی، لیکن دَ دے دَ اجر او دَ ثواب په حقله هغه الله تعالیٰ ته دُعا کولے شی چه هغه دِ یو نږدے خپلوان یا یو دوست ته ورکړے شی ۔ په دِے وجه دِے ته ایصالِ جزا نهٔ ویئلے کیږی بلکه ایصال ثواب ورته ویئلے کیږی ۔

(۲) دَ یو سړی کوشش دَ بل سړی دَ پاره دَ فایدے مند کیدو دوېم شکل دا دے چه سړے یا خو دَ بل په خواهش یا دَ بل په ویناباندِ دَ هغه دَ پاره نیک عمل اوُکړی، یا دَ هغه خواهش او دَ هغه دَ وینا نه بغیر یو داسے عمل اوُکړی چه هغه په اصل کښے واجب خو دَ هغه په ذمه وُو لیکن هغه ځپله نهٔ وُو کړے ۔ دَ دِے په باره کښے حنفی فقهاء وائی چه عباداتونه

په درے قِسمه دی - یو خالص بدنی عبادت لکه مونځ - دویم خالص مالی عبادت ، لکه زکوٰة - او دریم مالی او بدنی دواړه ، لکه حج ، په دے کښے اولنی قِسم عبادت دَ بل دَ طرفنه نشی کیدے ، مثلاً یو سړے دَ بل سړی دَ طرفنه مونځ نشی کولے - دویم قسم عبادت دَ بل دَ طرفنه کیدے شی ، مثلاً دَ یو شخص دَ مالو زکوٰة خاوند ورکولے شی - دریم قِسم عباد صرف په هغه حالت کښے دَ بل دَ طرفنه کیدے شی کله چه اصلی سړے مستقل طور دَ هغے دَ ادا کوله نه عاجزه وی ، مثلاً حج بدل دَ داسے سړی دَ طرفنه کیدے شی چه هغه په خپله حج ته دَ تللو طاقت نهٔ لری او نهٔ دا اُمید وی چه هغه به چرته دَ تللو قابل شی - مالکیه او شافعیه هم دَ دے قائل دی - البته امام مالک دَ حج بدل دَ پاره دا شرط لګوی چه که چرے پلار وصیت کړے وی چه دَ هغه ځوئے دِ دَ هغه نه روستو دَ هغه دَ طرفنه حج اُوکړی نو هغه حج بدل کولے شی کنهٔ نو نهٔ شی کولے - لیکن احادیث په دے معامله کښے بالکل صفا دی چه که پلار وصیت کړے وی او که نهٔ وی ، خو ځوئے دَ هغه دَ طرفنه حج بدل کولے شی ،

دَ ابن عباس رضی الله عنه روایت دے چه دَ خَثعَم قبیلے یوے ښځے رسول الله صلی الله علیه وسلم ته عرض اُوکړو چه ځما پلار ته دَ حج دَ فرض کیدو حکم په داسے حالت کښے رارسیدلے دے چه هغه ویر بوډا شوے دے ، دَ اُوښ په شا نشی کیناستے - نبیؐ اُوفرمائیل فَحُجِّی عَنْهُ ، " نو دَ هغه دَ طرفنه تهٔ حج اُوکړه " ( بخاری ، مسلم ، احمد ، ترمذی ، نسائیؒ ) - تقریباً هم دا رنګے یو روایت حضرت علیؓ هم بیان کړے دے ( احمد ، ترمذی ) -

حضرت عبدالله بن زُبَیر دَ قبیله خَثعَم دَ یو سړی ذکر کوی چه هغه هم دَ خپل بوډا پلار په حقله دا تپوس کړے وُو - نبیؐ تری تپوس اُوکړو آیا تهٔ دَ هغه دَ ټولونه مشر ځوئے ؟ هغه ورته اُووئیل چه هَو - نبیؐ اُوفرمائیل اَرَاَیْتَ لَوْکَانَ عَلٰی اَبِیْكَ دَیْنٌ فَقَضَیْتَه عَنْه اَکَانَ یَجْزِیْ ذٰلِكَ عَنْه ؟ " ستا څه خیال دے که ستا په پلار قرض وی او تهٔ هغه ورکړے نو هغه به دَ هغه دَ طرفنه ادا شی ؟ هغه اُووئیل چه هَو - نبیؐ اُوفرمائیل فَاَحْجُجْ عَنْه " بس دغه شان تهٔ دَ هغه دَ طرفنه حج هم اُوکړه " ( احمد ، نسائیؒ ) -

ابن عباسؓ وائی چه دَ جُهَینَه قبیلے یوه ښځه راغله او عرض ئے اُوکړو چه ځما مور دَ حج نذر منلے وُو خو هغه دَ هغے نه مخکښے مړه شوه ، اُوس څه دَ هغے دَ طرفنه حج کولے شم؟ رسول الله صلی الله علیه وسلم جواب ورکړو " که ستا په مور باندِ قرض وے نو آیا تا به هغه نهٔ ورکولے ؟ دغه شان تاسو دَ الله حق هم ادا کړئ ، او الله دَ دے زیات مستحق دے چه دَ هغه سره دِ شوی وعدے پورهٔ کړے شی " ( بخاری - نسائیؒ ) - په بخاری او مسندِ احمد کښے یو بل روایت دا دے چه یو سړے راغے او دَ خپلے خور په باره کښے هم هغه تپوس اُوکړو کوم چه بره ذکر شوے دے او نبیؐ ورله هم دا جواب ورکړو -

دَ دے روایتونو نه دا واضحه ثبوت مِلاویږی چه مالی او بدنی شریک عبادت مثلاً حج دَ بل دَ پاره کیدے شی - باقی شو خالص بدنی عبادتونه نو ځینی احادیث داسے شته چه دَ هغے نه دا ثابتیږی چه بدنی عبادتونه هم دَ بل دَ طرفنه کیدے شی - مثلاً دَ ابن عباس دا روایت چه دَ جُهَینه قبیلے یوے ښځے دَ نبیؐ نه تپوس اُوکړو " ځما مور څه روژے نذر منلے وے او هغه دَ نذر پوره کولو نه مخکښے مړه شوه ، آیا څه دَ هغے دَ طرفنه روژے نیولے شم " ؟

وَاَنَّ سَعْيَهٗ سَوْفَ يُرٰى ﴿۴۰﴾ ثُمَّ يُجْزٰىهُ الْجَزَآءَ الْاَوْفٰى ﴿۴۱﴾

اوداچه دَ هغه کوشش به ډير ز ر اُوليدے شي[۳۷] اودَ هغې پوره بدله به هغه له ورکړے شي،

نبیؐ اُوفرمائيل " دَ هغې دَ طرفنه روژے اُونيسه" ( بخاری، مُسلم، احمد، نسائی، ابوداوُد)۔ اودَ حضرت بُرَيدهؓ دا روايت چه يو ے ښځے دَ خپلے مور په حقله تپوس اُوکړو چه دَ هغې په ذمه دَ يو ے مياشتے ( يا دَ بل روايت مطابق دَ دوومياشتو) روژے وے، آيا څه دا روژے اُونيسم ؟ نبیؐ هغې ته هم دَ هغې اجازت ورکړو ( مُسلم، احمد، ترمذی، ابوداوُد) ـ اودَ حضرت عائشےؓ روايت چه نبیؐ اُوفرمائيل من مات وعليه صيام صام عنه وليّه، " څوک چه مړ شی اودَ هغه په ذمه روژے پاتے وی نودَ هغه دَ طرفنه دِ دَ هغه ولی هغه روژے اُونيسی" (بخاری، مُسلم، احمد۔ دَ بزّار په روايت کښے دَ نبیؐ الفاظ دا دی چه فليصم عنه وليه انشاء ـ يعنی دَ هغه ولی که غواړی نودَ هغه دَ طرفنه دِ دا روژے اُونيسی)۔ دَ دے دَ حديثونو په وجه اصحاب الحديث اوامام اوزاعی اوظاهِريّه دَ دے قائل دی چه بدنی عبادتونه هم دَ بل دَ طرفنه جائز دی ـ ليکن دَ امام ابوحنيفه، امام مالک، اوامام شافعی اوامام زيد بن علی فتویٰ داده چه دَ مړی دَ طرفنه روژه نهٔ شی نيولے کيدے، او امام احمد، امام لَيث اواسحٰق بن راهَويه وائی په هغه حالت کښے دا سے کيدے شی چه مړی دَ هغې نذر منلے وی او بيائے پوره کړے نهٔ وی ـ دَ نهٔ منونکو دَليل داد ے چه دَ کومو احاديثونه دَ دے دَ جواز ثبوت مِلاويږی دَ هغې راويانو ځنيله دَ دے خلاف فتوىٰ ورکړی ده ـ دَ ابن عباس فتویٰ نسائی په دے الفاظو کښے نقل کړی ده چه لا يصلّ عن احدٍ ولا يصم احد عن احدٍ، " څوک دِ نهٔ دَ چا دَ طرفنه مونځ کوی اونهٔ دِ روژے نيسی"۔ اودَ حضرتِ عائشےؓ فتویٰ دَ عبدالرزاق دَ روايت مطابق داده چه لا تصوموا عن موتٰکم واطعموا عنهم، " دَ خپلو مړو دَ طرفنه روژے مَه نيسئ ـ بلکه په خلقو دِ وړئ اُوخوروَئ "۔ دَ حضرت عبدالله بن عمرؓ نه هم عبدالرزاق دا خبره نقل کړی ده چه دَ مړی دَ طرفنه دِ روژه نهٔ نيولے کيږی ـ دَ دے نه معلوميږی چه اوّل په بدنی عباداتونو کښے دَ بل دَ طرفنه دَ کولو اجازت وُو، ليکن آخری حکم دا مقرر شو چه دا سے کول جائز نهٔ دی ـ کنهٔ نو دا څنګه کيد ے شوه چه چا دَ رسول الله صلی الله عليه وسلم نه دا احاديث نقل کړی دی هغوئ دِ ځنيله دَ هغې خلاف فتویٰ ورکړی ـ

په دے سلسله کښے ځان په دے خبره ښه پوهه کول پکار دی چه دَ بل دَ طرفنه فرض اداکول صرف دَ هغه خلقو په حق کښے فائده ورکولے شی چه هغوی ځنيله دَ فرض اداکولو خواهشمند وی اودَ عذر په وجه تړ پاتے شوی وی۔ ليکن که يو سړے دَ طاقت باوجود قصداً دَ حج نه ډډه کوی او په زړه کښے ئے دَ دے فرض اداکولو هيڅ خيال نهٔ وی، دَ هغه دَ پاره که هر څو مره حج بدل اُوکړے شی، هغه دَ هغهٔ په حق کښے هيڅ فائده نهٔ لری ـ دا دا سے ده لکه چه يو سړی دِ چا قرض قصداً اُوخوړو اودَ مرګه پورے ئے دَ قرض ورکولو اراده نهٔ وه ـ دَ هغې دَ مرګ نه روستو که دَ هغهٔ دَ طرفنه ټول قرض ادا کړے شی خو هغه به دَ الله تعالیٰ په نظر کښے قرض خوړونکے شماريږی دَ بل دَ طرفنه په اداکولو سره صرف دَ هغه سړی ذمه خلاصيږی چه هغه په خپل ژوند کښے دَ قرض ورکولو خواهش لرو خو دَ څه مجبوری په وجه ئے نشو اداکولے۔

وَاَنَّ اِلٰی رَبِّکَ الْمُنْتَهٰی ﴿۴۲﴾ وَاَنَّهٗ هُوَ اَضْحَکَ وَاَبْکٰی ﴿۴۳﴾
وَاَنَّهٗ هُوَ اَمَاتَ وَاَحْیَا ﴿۴۴﴾ وَاَنَّهٗ خَلَقَ الزَّوْجَیْنِ الذَّکَرَ
وَالْاُنْثٰی ﴿۴۵﴾ مِنْ نُّطْفَةٍ اِذَا تُمْنٰی ﴿۴۶﴾ وَاَنَّ عَلَیْهِ النَّشْاَةَ
الْاُخْرٰی ﴿۴۷﴾ وَاَنَّهٗ هُوَ اَغْنٰی وَاَقْنٰی ﴿۴۸﴾ وَاَنَّهٗ هُوَ رَبُّ الشِّعْرٰی ﴿۴۹﴾

اوداچه آخرنه آخرستا رب ته رسیدل دی،[۳۹]
اوداچه خاص هغه اُوخندول اوهغه اُوژړول[۴۰]،
اوداچه خاص هغه مرګ اوژوند ورکړو،
اوداچه خاص هغه دَ نراودَ ښځے جوړه پیداکړه دَ نطفے دَ یوڅاڅکی نه کله چه هغه (رِحم ته) واچولے شی[۴۱]،
اوداچه دوباره ژوند ورکول هم دَ هغه ذمه واری ده[۴۲]،
اوداچه خاص هغه (انسان) غنی کړو اوجائیداد ئے ورکړو[۴۳]،
اوداچه هغه دَ شِعرٰی رب[۴۴] دے،

[۳۹] یعنی په آخرت کښے به دَ خلقو دَ عملونو جاج اغستلے کیږی او دے ته به کتلے کیږی چه چا څه عمل کړے دے - دا خبره چونکه په اوله خبره پسے جوخته وئیلے شوی ده نو په دے وجه دَ دے نه ښکاره دا خبره څرګندیږی چه دَ اولنۍ خبرې تعلق خاص دَ آخرت دَ جزا او دَ سزا سره دے او دَ هغه خلقو خبره صحیح نهٔ ده چه دا دَ دے دُنیا دَ پاره دَ معاشی اُصولو په طور پیش کوی - دَ قرآن مجید دَ یو آیت نه دا سے مطلب اغیستل صحیح کیدے نشی چه هغه دَ وړاندِ روستو عبارت نه هم خلاف وی او دَ قرآن دَ نورو تشریحاتو سره هم ټکراؤخوری -

[۴۰] یعنی دَ خوشحالۍ او دَ غم اسباب دواړه دَ الله دَ طرفنه دی - ښه او بد قسمت دَ هغه په لاس کښے دے - چاته چه آرام او خوشحالی نصیب شوی ده - نو خاص دَ الله دَ طرفنه نصیب شوی ده - او چاته چه مُصیبتونه او تکلیفونه ور پیښ شوی دی نو خاص دَ هغه په اراده ور پیښ شوی دی - بل څوک په دِے کائنات کښے داسے نشته چه هغه کښی دَ چا په قسمتونو جوړولو او وړانولو کښے څه قِسم دخل لری -

[۴۱] دَ تشریح دَ پاره اُوګورهٔ تفهیم القرآن، دریم جلد، حاشیے ۲۷ تا ۳۰ - څلورم جلد، الشوریٰ، حاشیه ۷۷ -

[۴۲] دَ پاسنودوؤ آیتونو سره چه دا آیت یوځائے اُولوستلے شی نو معلومیږی چه دَ کلام دَ ترتیب نه ښکاره دَ مرګ نه روستو دَ ژوند دلیل هم رااُوځی - کوم خدائے چه دَ مړکولو او دَ ژوند

وَ اَنَّهٗۤ اَهْلَكَ عَادًا ۨالْاُوْلٰى ۝۵۰ وَ ثَمُوْدَاۡ فَمَاۤ اَبْقٰى ۝۵۱ وَ قَوْمَ نُوْحٍ مِّنْ قَبْلُ ؕ اِنَّهُمْ كَانُوْا هُمْ اَظْلَمَ وَ اَطْغٰى ۝۵۲ وَ الْمُؤْتَفِكَةَ

اودا چه خاص مم هغه اولنی عادیان[۴۵] هلاک کړل، او ثمودیان ئے دا سے ختم کړل چه په هغوی کښے ئے هیڅوک باقی پرے نښودو، او د هغوی نه مخکښے ئے د حضرت نوحؑ قوم تباه کړو ځکه چه هغوی سخت ظالمان او سرکښه خلق وُو، او پاسترشوی کلی ئے

---

ورکولو قدرت لری، او کوم خدائے چه د نطفے د یو معمولی شان څاڅکی نه د انسان غوندے مخلوق پیدا کوی، بلکه د تخلیق د یو قسم مادّے نه په یو شان طریقه دوه جُدا جُدا قسمونه یعنی نارینه او زنانه پیدا کوی، د هغه د پاره انسان دوباره پیدا کول هیڅ گرانه خبره نهٔ ده -

۴۳؎ په اصل کښے لفظ اَقْنٰی استعمال شوے دے چه لغت والو او مفسّرینو ئے مختلف معنے بیان کړی دی - قتاده وائی چه ابن عباس د دے معنیٰ اَرْضٰی (یعنی هغه ئے راضی کړو) کړی ده - عِکرِمه د ابن عباس نه د دے معنیٰ قَنَّعَ (یعنی مُطمئن ئے کړو) نقل کړی ده - امام رازی وائی چه سړی ته د هغه د حاجت نه زیات هرڅه ورکړے شی هغه اِقْنَاء ده - ابو عُبیده او نور ډیر اهلِ لُغت وائی چه اَقْنٰی د قُنْیَةٌ نه مُشتق دے چه معنیٰ ئے ده باقی محفوظ پاتے کیدونکے مال، لکه مکان، زمکه، باغونه، څاروی وغیره - د دے ټولونه یو جُدا مطلب ابن زید بیان کړے دے - هغه وائی چه اَقْنٰی دلته د اَفْقَرَ (یعنی فقیرے کړو) په معنیٰ کښے دے او د آیت مطلب دا دے چه هغه په خپله خوښه څوغنیان کړل او څوک ئے فقیران کړل -

۴۴؎ شِعْریٰ په آسمان کښے د ټولونه روښانه ستورے دے - دا د مِرْزم الجوزاء، الکلب الاکبر، الکلب الجبّار، الشِعْرىٰ العَبُور وغیره په نومونو سره یادیږی - په انګریزئ ژبه کښے دے ته (Sirius) (Dog Star) او (Canis Majuris) وائی - دا د نمر نه دریشت[۲۳] چنده زیات رُوښانه دے، لیکن د زمکے نه د دے فاصله د رڼا په رفتار سره د اته کاله رفتار نه هم زیاته ده په دے وجه دا د نمر نه ورکوټے او د کمے رڼا والا ښکاری - د مِصر خلقو به د دے عبادت کولو، ځکه چه د دے د راختلو په زمانه کښے به د دریائے نیل فائدے شروع کیدلے، نو هغوی به دا خیال کولو چه دا اِکښی د دے د راختلو فائدے دی - په جاهلیّت کښے د عربو د خلقو هم دا عقیده وه چه دا ستورے د خلقو په قِسمتونو اثر کوے شی - په دے وجه دا د عربو په خدایانو کښے شامل وُو، او خاص طور د قریشو گاونډی قبیله خُزَاعَة د دے په عبادت کښے مشهوره وه - د آیت مطلب دا دے چه ستاسو قِسمتونه شِعْریٰ ستورے نهٔ جوړوی بلکه د هغه رب ئے جوړوی -

۴۵؎ د اولنی عادیانو نه مُراد پخوانی عادیان دی چه حضرت هود علیه السّلام ورته د پیغمبر په حیثیت لیږلے شوے وُو - د دے قوم چه کله حضرت هُود دروغژن اوګڼړو او د هغے په سزا کښے چه پرکوم عذاب راغے نو د هغے نه صرف هغه خلق بچ شو کوم چه په هغه باندِ ایمان راوړے وُو - د دوی نسل ته په تاریخ کښے عاد اُخریٰ یا عادِ ثانیه (یعنی دویم عادیان) وائی -

أَهْوٰى ﴿۵۳﴾ فَغَشّٰىهَا مَا غَشّٰى ﴿۵۴﴾ فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكَ تَتَمَارٰى ﴿۵۵﴾ هٰذَا نَذِيرٌ مِّنَ النُّذُرِ الْأُولٰى ﴿۵۶﴾ أَزِفَتِ الْآزِفَةُ ﴿۵۷﴾ لَيْسَ لَهَا

اُوچت کړل اوغوزارے کړل، بیائے خورکړو په هغوئ باندِ هغه څه چه (تاسوئے بنه پیژنئ چه) څه ئے خورکړو[۴۶]۔

نو اے انسانه، ته به دَ خپل رب په کوموکومو نعمتونوکښے شک کوے[۴۷]؟[۴۸]

دا یو خبردارے دے دَ ړومبنو خبردارونه[۴۹]۔ راتلونکے ساعت نزدے راغلے دے[۵۰]، دَ الله نه

[۴۶] دَ پاسترشوُوکلونه مُراد دَلوطؑ دَ قوم کلِی ده۔ او "خوُرے کړو په هغوئ باندِ هغه څه چه خوُرے کړو" دَ دے نه مُراد غالباً چه دَ بحرِمُردار اُوبهٔ دی چه کله دَ لوطؑ دَ قوم کلِی په زمکه کښے ننوځ شو نو دَ بحرِمُردار اُوبهٔ پرِ راخورے شوِے او دَ نن ورځ پورے په هغه علاقه باندِ خورے دی۔

[۴۷] دَ ځینو مفسّرینو په نزد دا فقره هم دَ صُحُفِ ابراهیمِ اودَ صُحُفِ مُوسیٰ دعبارت یوحصّه دهٔ۔ او ځینی مفسّرین وائی چه هغه عبارت په فَغَشّٰىهَا مَا غَشّٰى باندِ ختم شو، دَ دے ځائے نه دویمه خبره شروع کیږی۔ دَ وړاندِ روستو عبارت سره اولنے قول زیات صحیح معلومیږی۔ ځکه چه روستنے دا عبارت چه "دا یو خبردارے دے دَ ړومبنوراغلوشوو خبردارونه" دِے خبری ته اشاره کوی چه دَدِے نه اولنے ټوَل عبارت هغه ړومبنئ خبرداریانے دی کومے چه دَ حضرت ابراهیمؑ اودَ حضرت مُوسیٰ په صحیفوکښے بیان شوی دِی۔

[۴۸] په اصل کښے لفظ تَتَمَارٰى استعمال شوے دے چه معنیٰ ئے "شک کول" هم ده او "جګړه کول" ئے هم۔ خبره هراوریدونکی ته ده۔ هرڅوک چه دا کلام اوری هغه ته فرمائیلے کیږی کومو خلقو دَ الله تعالیٰ نعمتونه دروغژن ګنړلی دی اودَ هغے په باره کښے ئے دَ پیغمبرانو سره جګړی کړی دی دَ هغوی چه دَ انسان په تاریخ کښے کوم انجام شوے دے آیا دَ هغے نه روستو به هم ته هغه بے وقوفتیا کوے؟ تیروشوُو قومونوخو هم دا شک کړے وُوچه دَکومونعمتونو نه مونږه په دِ دُنیا کښے فایده اخلو آیا دا دَ یو خدا ئے نعمتونه دی اوکه بل هم څوک په دے کښے شریک شته، یادا دَ چا دَ طرفنه دی اوکه هم دغسے په خپله راپیدا کیږی۔ دَ دے شک په بُنیاد باندِ هغوی دَ پیغمبرانو سره جګړی کړے وِے۔ پیغمبرانو به هغه ته وئیل چه دا ټول نعمتونه تاسوته خدا ئے او ... یو خدائے درکړی دی، په دے وجه تاسوله پکار دی چه اِکیّ یوازے دَ هغه شکراُوباسئ او دَ هغه بند ګی اُوکړئ۔ خوهغوئ به دا نهٔ منله او په دے خبره به ئے دَ پیغمبرانو سره جګړی کولے۔ آیا اُوس ته په تاریخ کښے دا نهٔ وِینے چه دَدِے شک اودَدِے جګړو په وجه دَ پخوانو قومونو څه انجام شوے وُو؟ آیا ته به هم هغه شک او هغه جګړی کوے چه دَ نوروخلقو دَ پاره دَ تباهئ سبب جوړ شوے دے؟

په دے سلسله کښے دا خبره هم په نظرکښے ساتل پکار دی چه عادیان او ثمودیان اودَ نوحؑ دَ قوم

مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ كَاشِفَةٌ ﴿٥٨﴾ اَفَمِنْ هٰذَا الْحَدِيْثِ تَعْجَبُوْنَ ﴿٥٩﴾
وَتَضْحَكُوْنَ وَلَا تَبْكُوْنَ ﴿٦٠﴾ وَاَنْتُمْ سٰمِدُوْنَ ﴿٦١﴾
فَاسْجُدُوْا لِلّٰهِ وَاعْبُدُوْا ﴿٦٢﴾ السجدة



بغیر بل څوک د هغې دفع کونکے نشته - آیا دا هغه خبرې دی چه تاسو پرې تعجّب کوئ ؟
خاندئ او ژاړئ نه ؟ او په سندرو تماشو دا شاته غور زوئ ؟ الله ته سجده
اُولکوئ او بند ګی اُوکړئ -

---

خلق د حضرت ابراهیمؑ نه مخکښې تیر شوی وُو او د لوطؑ په قوم باندې خو پخپله د حضرت ابراهیمؑ په زمانه کښې عذاب راغلے وُو، نو په دے کښې هیڅ شک نشته چه دا عبارت د حضرت ابراهیمؑ د صحیفې یوه حصّه ده -

۴۹ له اصل الفاظ دی هٰذَا نَذِيْرٌ مِّنَ النُّذُرِ الْاُوْلٰى - د دے آیت په تفسیر کښې د مفسّرینو درے قولونه دی - یو دا چه د نذیر نه مُراد محمد صلی الله علیه وسلّم دے - دوېم دا چه د دے نه مُراد قرآن دے - درېم دا چه د دے نه مُراد د پخوانو هلاک شوو قومونو انجام دے چه حال ئے په پاسنو آیتونو کښې بیان شوے دے - د کلام په مناسبت سره زمونږ په نزد هم دا درېم تفسیر قابل ترجیح دے -

۵۰ له یعنی دا خیال مه کوه چه د سوچ کولو د پاره لا اُوس هم وخت ډیر دے، زمونږ څه تادی ده چه فوراً په دے خبرو غور شروع کړو او د دے د منلو د رد تر زره فیصله اُوکړو - نه، په تاسو کښې دا هیچا ته نه ده معلومه چه د هغه څومره ژوند پاتې دے - هر وخت په تاسو کښې د هرچا مرګ هم راتلے شي او قیامت هم ناڅاپه راتلے شي - نو د فیصلے وخت لرے مه ګڼړه - د هرچا سره چه د خپل آخرت فکر وی هغه د زر تر زره خپل ځان صحیح کړی - ځکه چه د هرے ساه د اغستلو نه روستو دا امکان شته چه بل دویمه ساه د اغستو موقع ملاؤ نه شي -

۵۱ له یعنی د فیصلے وخت چه کله راشي نو بیا ئے نه تاسو دفع کولے شئ او نه ستاسو په معبودانو کښې د چا دا طاقت شته چه هغه دفع کړی - د یو الله نه بغیر بل څوک ئے نه شي دفع کولے او هغه د هغې دفع کونکے نه دے -

۵۲ له په اصل کښې لفظ هٰذَا الْحَدِيْثِ استعمال شوے دے چه مطلب ئے هغه ټول تعلیم دے کوم چه د رسول الله صلی الله علیه وسلّم په ذریعه په قرآن مجید کښې پیش کړے کیدو - او د تعجّب نه مُراد هغه حیرانتیا ده چه کله سړے یوه نا آشنا خبره واوری او حیران شي - د آیت مطلب دا دے چه محمد صلی الله علیه وسلم کوم څیز ته خلقو له دعوت ورکوی هغه خو هم دا څیز دے چه تاسو واوریدو - بنه نو کښې دا هغه خبرې دی چه ستاسو پرې غور ور نه بوخ شوا و د حیرانتیا نه مو څله دا سے وُرانه شوه لکه چه یوے نا آشنا خبرې مو اُوریدلے ؟

۵۳ یعنی په ځائے د دے چه تاسوله پخپله نا پوهتیا او په خپله ګمراهئ باندِ ژړا درغلے وے، نو تاسو الټا په د حقیقت پورے ټوقے کوئ کوم چه ستاسو په وړاندِ پیش کیږی۔

۵۴ په اصل کښے لفظ سَامِدُوْنَ استعمال شوے دے چه لغت والوٹے دوه معنے بیان کړی دی۔ ابن عباس، عِکرِمه اوابو عبیده نحوی وائی چه په یمنی ژبه کښے دَ سُمُود معنیٰ سندرے وئیل دی او دَ آیت اشاره دے طرفته ده چه دَ مکے کافرانو به دَ قرآن دَ آوازد باوهلو دَ پاره او دَ خلقو توجه بل طرفته کرن ولو دَ پاره په زوره زوره سندرے شروع کولے۔ ابن عباس او مجاهد دویمه معنیٰ دا بیان کړی ده چه السُّمُود البَرطمة وَهِیَ رفع الراس تکبرا، کانوا یمرّون علی النبی صلی الله علیه وسلّم غضابامبرطمین۔ یعنی دَ تکبر دَ وجے نه سر نیغ وُړلو ته سُمُود وائی، دَ مکے کافران چه به کله دَ رسول الله صلی الله علیه وسلّم په خوا کښے تیریدل نو سر به ئے نیغ کړے وُو او په غصّه غصّه به تیریدل۔ راغب اصفهانی په مفردات کښے هم دا معنیٰ کړی ده، او هم دَ دے معنے په لحاظ سره دَ سَامِدُون مطلب قَتاده غَافِلُوْن بیان کړے دے او سعید بن جُبیر مُعْرِضُوْن بیان کړے دے۔

۵۵ دَ امام ابوحنیفه، دَ امام شافعی او دَ اکثرو عالمانو په نز په دَ دے آیت باندِ سجده کول لازم دی۔ امام مالکؒ په اګرچه پخپله دَ دے ځائے په تلاوت سجده کوله (لکه څنګه چه قاضی ابوبکر بن العربی په احکام القرآن کښے لیکلی دی) لیکن دَ هغه مسلک داوُ چه دلته سجده کول لازم نهٔ دی۔ دَ هغه دا رائے دَ حضرت زید بن ثابت دَ یو روایت دَ وجے نه ده چه "ما دَ رسول الله صلی الله علیه وسلّم په مخکښے سورة نجم اُولوستو او نبیؐ سجده اُونهٔ کړه" (بخاری، مُسلم، احمد، ترمذی، ابوداوُد، نسائی)۔ لیکن دَ دے حدیث نه دا مطلب نهٔ راوُځی چه ګنی په دَ دے آیت باندِ سجده کول لازم نهٔ دی، ځکه چه کیدے شی چه نبیؐ دَ څه وجے نه په هغه وخت کښے سجده نهٔ وی کړی او بیا روستو ئے کړی وی۔ په نورو روایتونو کښے دا خبره څرګنده ده چه په دَ دے آیت باندِ لازمی طور سجده شوی ده۔ دَ حضرت عبدالله بن مسعودؓ، ابن عباسؓ او مُطّلبؓ بن ابی وَداعَه متفقه روایتونه دادی چه نبیؐ کله په اوّل ځل په حرم کښے دا سورة اُولوستو نو هغه سجده اُوکړه او دَ هغه سره مسلمانان او کافران ټول په سجده پریوتل۔ (بخاری، احمد، نسائی)۔ دَ ابن عمرؓ روایت دے چه نبیؐ په مانځه کښے سورة نجم اُولوستو او سجده ئے اُوکړه او دَ ویر ساعته پورے په سجده پروت وُو (بیهقی، ابنِ مَرْدُوْیه)۔ سَبْرَةُ الجُهَنِی وائی چه حضرت عُمرؓ دَ سحر په مانځه کښے سورة نجم اُولوستو او سجده ئے اُوکړه او بیا پاسیدو سورة زلزال ئے اُولوستو او رکوع ئے اُوکړه۔ (سعید بن منصور)۔ په خپله امام مالک هم دَ مؤطا په باب ماجاء فی سجود القرآن کښے دَ حضرت عُمرؓ دا فعل لیکلے دے۔

# القمر

**نوم** ۔ دَ دے سورة نوم دَ اولنۍ آيت دَ ټکی وَانْشَقَّ الْقَمَرُ نه اغستلے شوے دے۔ مطلب دا دے چه هغه سورة چه په هغې کښې لفظ "الْقَمَرُ" راغلے دے۔

**دَ نازليد زمانه** ۔ په دے کښې دَ شقّ القمر دَ واقعے ذکر راغلے دے چه دَ هغې نه دَ نازليدو زمانه مقرريدے شي ۔ محدّثينو او مفسّرينو په دے خبره اتفاق دے چه دا واقعه دَ هجرت نه تقريباً پنځه کاله مخکښې په مکّه معظمّه کښې دَ مِنٰی په مقام کښې شوې وه ۔

**موضوع او مضمون** ۔ په دے سورة کښې دَ مکے کافرانو ته په هغه ضد بانديِ خبردارے ورکړے شوے دے کوم چه هغوی دَ رسول الله صلی الله عليه وسلّم دَ دعوت په مقابله کښې شروع کړے وُو ۔ دَ شقّ القمر دا نا اشنا واقعه دَ دے خبرې صفا علامه وه چه دَ کوم قيامت دَ راتلو خبر رسول الله صلی الله عليه وسلّم خلقو ته ورکولو، هغه واقعی چه راتلے شي، او دَ هغې دَ راتلو وخت ډير نزدے راغلے دے ۔ لويه سپوږمۍ دَ هغوی په مخکښې دوه ټوکړې شوې وه ۔ دواړه ټوکړے دَ يوبل نه دومره لرے تلے وے چه کتونکو ته يوه ټوکړه دَ غر يو طرفته او بله ټوکړه بل طرفته په نظر راغلې وه ۔ بيا دَ سترګے په رپ کښې هغه دواړه ټوکړے بيا يوځائے شوې وے ۔ دا دَ دے خبرې ښکاره ثبوت وُو چه دَ جهان نظام هميشه او غيرِ فانی نهٔ دے دا ورانيدے شي ۔ لوئ لوئ ستورې دوه کيدے شي ۔ خوارهٔ واره کيدے شي ۔ دَ يو بل سره جنګيدے شي ۔ او هغه هرڅه کيدے شي کوم چه به دَ قيامت په ورځ دَ قرآن دَ وينا مطابق کيږي ۔ يوازے دا نهٔ، بلکه دَ دے نه دا خبره هم معلوميدله چه دَ جهان دَ نظام په ورانيدو شروع شوې ده او دَ قيامت دَ راتلو وخت نزدے دَے ۔ نبی صلی الله عليه وسلم په دے حيثيت سره دَ خلقو توجه دے واقعے ته راوګرزوله او وے فرمائيل، اوګورئ او ګواه شئ ۔ ليکن کافرانو دا جادو اوګڼړو او په خپل انکار باندِ ټينګ پاتے شو ۔ په دے ضد باندِ هغوئ په دے سورة کښے ملامته کړے شوې دی ۔

دَ کلام په شروع کښے اوفرمائيلے شو چه دا خلق نهٔ په پوهه کولو سره خبره منی نهٔ دَ تاريخ نه عبرت حاصلَوی ، او نهٔ دَ ځرګند ونښو په ليد لو سره ايمان راوړی ۔ اوس به دوی هله مَنی کله چه په حقيقت کښے قيامت راشی او دوی دَ قبرونونه را اوزی او الله تعالیٰ ته منړے وَهی ۔

دَ دے نه روستو هغوی ته دَ نوحؑ دَ قوم ، دَ عادیانو، دَ ثمودیانو، دَ لوطؑ دَ قوم او دَ آلِ فرعون حال په مختصرو الفاظو کښے بیان کړے شوے دے او ورته وئیلے شوی دی چه دِ دے قومونو دَ خدائے دَ رالیږلو شوو پیغمبرانو خبری دروغ اُوګڼلے نو کوم قِسم دردناک عذاب پرِ راغے ، او بیا دَ یو یو قوم قیصه بیان کړے شوه او په دِ دے خبره باربار زور ورکړے شو چه دا قرآن دَ نصیحت یوه آسانه ذریعه ده که دَ دِ دے نه یو قوم سَبَق زدَه کړو او په بیغه لار روان شو نو دَ هغه عذابونو نه بچ شی کوم چه په مے قومونو راغلی وُو ـ اُوس آخر دا څه بے وقوفتیا ده چه دَ دے آسانے طریقے په ذریعه څوک نصیحت نهٔ قبلَوی او خامخا په دِ دے خبره ټینګتیا کوی چه هغه دَعذاب لیدلو نه بغیر منلو ته نهٔ تیاریږی ـ

دغه شان دَ پخوانو قومونو دَ تاریخ نه عبرتناک مثالونه ورکړے شوی دی او دَ مکے کافرانو ته وئیلے شوی دی چه دَ کوم عمل په وجه نورو قومونو سزا موندلی ده هم هغے عمل که چرے تاسو اُوکړو نو آخر تاسو به وَلے سزا نهٔ مومئ؟ آخر ستاسو په سر کومه جنډه ولاړه ده چه دَ هغے په وجه تاسو له دَ نورو پشان سزا درنهٔ کړے شی ؟ یا تاسو ته څه خاص معافی شوی ده چه په کوم جُرم نور خلق رانیولے کیږی هغه که تاسو اُوکړو نو تاسو به پرِ نهٔ رانیولے کیږئ ؟ او که تاسو په خپله ډله غرهٔ یئ نو ډیر زر به ستاسو دا ډله ماتے اُوخوری او تیښته به اُوکړی، او دَ قیامت په ورځ به دَ دِ دے نه زیاته سخته معامله ستاسو سرهٔ وی ـ

په آخر کښے کافرانو ته وئیلے شوی دی چه دَ قیامت راوستلو دَ پاره الله تعالیٰ ته دَ څه لوئے تیاری حاجت نشته ـ دَ هغه په یو حکم سره به دَ سترګے په رپ کښے قیامت راشی ـ لیکن دَ هر څیز پشان دَ انسان او دَ کائناتو هم یو تقدیر لیکلے شوے دے ـ دَ دے تقدیر مطابق چه کوم وخت دَ دِ دے کار دَ پاره مقرر دے هغه به هم په هغه وخت کیږی ـ دا سے نشی کیدے چه څوک دَ قیامت نه انکار اُوکړی نو دَ هغه دَ قائل کولو دَ پاره دِ قیامت راوستلے شی ـ که قیامت دِ دراروان اُونه لیدوا او دَ سرکشئ په لار روان شوے نو دَ خپل عمل سزا به پخپله برداشت کوے ـ ستاسو صحیح صحیح حال دَ خدائے سره تیاریږی چه په هغے کښے ستاسو وړوکے یا لوئ عمل دَ لیکلو نه پاتے شوے نهٔ دے ـ

---

آیاتها ۵۵ سُورَةُ الْقَمَرِ مَكِّيَّةٌ رکوعاتها ۳

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

اِقْتَرَبَتِ السَّاعَةُ وَانْشَقَّ الْقَمَرُ ① وَاِنْ يَّرَوْا اٰيَةً

دَ قیامت وخت نزدے راغے او سپوږمۍ دوه ټوټے شوه۔[له] خو دِے خلقو حال دادے چه که هره نښه اُوِ وینی

[له] یعنی دَ سپوږمۍ دوه ټوټے کیدل دَ دے خبرے علامه ده چه دَ قیامت هغه وخت، چه دَ هغے دَ راتلو خبر تاسوله درکړے کیږی، رانزدے شوے دے، او دَ کائناتو دَ نظام په وړانیدو شروع شوی ده - دا رنګے دا واقعه چه لویه سپوږمۍ دوه ټوټے شوه، دَ دے خبرے ښکاره ثبوت دے چه کوم قیامت تاسوته یادولے کیږی هغه راتلے شی - ظاهره خبره ده چه سپوږمۍ دوه ټوټے کیدے شی نو زمکه هم شلیدے شی، دَ ستورو دَ تلولارے هم بدلیدے شی او دَ آسمان دا ټول نظام ګډوډ کیدے شی - په دے کښے هیڅ څیز هیشه اومستقل نهٔ دے چه ګنی قیامت نهٔ شی راتلے۔

څینو خلقو دِے آیت نه دامطلب اغستلے دے چه "سپوږمۍ به دوه ټوټے شی"۔ اګرچه دا مطلب به دَ عربئ ژبے په لحاظ سره اغستلے کیدے شی، لیکن دَ وړاندِ روستو عبارت سره دامطلب قطعاً نهٔ لږی - اوّل خو دَ دِے مطلب په اغستلو سره اولنۍ فِقره بے مطلبه کیږی - سپوږمۍ که چرے دَ دے کلام دَ نازلیدو په وخت کښے دوه ټوټے شوی نهٔ وه، بلکه په راتلونکی وخت کښے چرته دوه ټوټے کیدونکی وه نو دَ هغے په بُنیاد باندِ دا خبره کول بالکل بے مطلبه ده چه دَ قیامت وخت نزدے راغلے دے - آخر په راتلونکی وخت کښے دَ یوے واقعے راتلل دَ قیامت دَ نزدیکت دَ پاره یوه علامه څنګه کیدے شی چه هغه دَ شهادت په طور پیش کړے شی او هغه یرمناسب دلیل وی - دویم، دَ دِے مطلب دَ اغستلو نه روستو چه کله موږ وړاندِ عبارت لولُو نو دا سے معلومیږی چه هغه دَ دِے سره هیڅ مضمون نهٔ خوری - دَ وړاندینی عبارت نه صفا معلومیږی چه خلقو په هغه وخت کښے څه نښه لیدلی وه چه هغه دَ قیامت دَ راتلو څرګنده نښه وه خو هغوی اُووے چه دا جادو دے او دروغ ئے اُوګڼړله او په دے خبره ټینګ شو چه قیامت راتلل ممکن نهٔ دی - دَ دے عبارت سره دَ اِنْشَقَّ الْقَمَرُ الفاظ هله ټیک لږی چه دَ هغے مطلب "سپوږمۍ دوه ټوټے شوه" وی - که "دوه ټوټے به شی" مطلب تِرِ واغستلے شی نو روستنۍ ټوله خبره ورسره بے جوړه کیږی - دَ روان عبارت سره ئے اُووایه نو تاته به په ځپله معلومه شی چه دَ دے په وجه ټول عبارت بے مطلبه کیږی:

"دَ قیامت وخت نزدے راغے او سپوږمۍ به دوه ټوټے شی - دَ دے خلقو حال دادے چه که هره نښه اُووینی خو مخ اړوِی او وائی چه دا خو روان جادو دے - دوی دروغ اُوګڼړ او دَ خپل نفس په خواهشاتو پسے روان شو۔"

نو حقیقت دا دے چه د شق القمر واقعه د قرآن د الفاظونه صفا ثابته ده او د حدیث په روایتونو باندې د هغې هیڅ دارومدار نشته - البته د روایتونه د دے تفصیلات معلومیږي او په لړۍ چه دا کله شوې وه او څنګه شوې وه - دا روایتونه بخاري، مسلم، ترمذي، احمد، ابوعوانه، ابوداؤد طیالسي، عبدالرزاق، ابن جریر، بیهقي، طبراني، ابن مردویه، او ابونعیم اصفهاني د ډیرو سندونو سره د حضرت علیؓ، حضرت عبدالله بن مسعودؓ، حضرت عبدالله بن عباسؓ، حضرت عبدالله بن عمرؓ، حضرت حذیفهؓ، حضرت انسؓ بن مالکؓ، او د حضرت جُبَیر بن مطعم نه نقل کړي دي - په دوئ کښے درې بزرګان، یعنی حضرت عبدالله بن مسعودؓ، حضرت حُذیفه، او حضرت جُبَیر بن مُطعِم صفا وائي چه هغوئ د دے واقعے د سترګو لیدلي ګواهان دي - او دوه داسے بزرګان دي چه د هغې د سترګو لیدلي ګواهان نشي کیدے، ځکه چه دا په هغوی کښے د یو (یعنی د عبدالله بن عباسؓ) د پیدا کیدو نه مخکښې واقعه ده، او دویم (یعنی انس بن مالکؓ) په هغه وخت کښے بچے وُو - لیکن چونکه دا دواړه کسان صحابه دي نو په دے وجه دا ظاهره خبره ده چه هغوی به دا د داسے مشرانو صحابو نه اوریدلي وي چه هغوی به د دے واقعے نیغ په نیغه خبر وُو-

ټول روایتونه چه راجمع کړے شي نو د هغې نه چه څه واقعه جوړیږي هغه دا ده چه دا واقعه د هجرت نه تقریباً پنځه کاله مخکښے شوې ده - د سپوږمۍ د میاشتے څوارلسمه شپه وه - سپوږمۍ تازه تازه راختلې وه، ناڅاپه هغه دوه ټوټے شوه یوه ټوکړه ئے د مخامخ غرنه یو طرفته او بله ټوکړه ئے بل طرفته ښکاره شوه - دا حالت بس یو ساعت قدرله وُو او بیا دواړه ټوکړے یو ځائے شوے - نبی صلی الله علیه وسلّم په هغه وخت کښے په مِنیٰ کښے وُو - هغه خلقوته اُوفرمائیل چه اُوګورئ او ګواه شئ - کافرانو اُووئیل چه محمد (صلی الله علیه وسلّم) په مونږ باندې جادو کړے وُو نو په دے وجه زمونږه سترګے دوکه شوے - نورو خلقو اُووئیل چه محمدؐ په مونږ باندې جادو کولے شو، په ټولو خلقوئے نهٔ شو کولے - د بهر خلق به راشي د هغوئ نه به تپوس اُوکړو چه دا واقعه هغوئ لیدلې وه او که نهٔ وه - د بهر نه چه څه خلق راغلل نو هغوئ ګواهي اُوکړه چه هغوی هم دا حالت لیدلے دے -

د ځینو روایتونو نه، چه هغه د حضرت انسؓ نه روایت کړے شوې دي، دا غلط فهمي راپیدا کیږي چه د شق القمر واقعه یو ځل نهٔ، بلکه دوه ځله شوې وه - لیکن اوّل خو بل یو صحابي دا خبره نهٔ ده بیان کړې - دویم دا چه پخپله د حضرت انسؓ په ځینو روایتونو کښے مرّتین (دوه ځله) الفاظ دي او په ځینو کښے د فرقتین او شقتین (دوه ټوټے) الفاظ دي - دریم دا چه قرآن صرف د یو انشقاق ذکر کوي - په دے وجه صحیح خبره دا ده چه دا واقعه صرف یو ځل شوې وه - پاتے شوه هغه قیصے کوم چه په عوامو کښے مشهورے دي چه رسول الله صلی الله علیه وسلّم په ګوته سپوږمۍ ته اِشاره اُوکړه او هغه دوه ټوټے شوه او د سپوږمۍ یوه ټوکړه د نبیؐ په ګریوان کښے ورننوتله او په نستوڼي اُووتله، نو دا بالکل بے بُنیاده قیصے دي -

دلته دا تپوس کیدے شي چه د دے واقعے اصلی حقیقت څه وُو؟ آیا دا یوه مُعجزه وه چه د

مکّې کافرانو د رسول الله صلی الله علیه وسلّم نه غوښتلې وه او نبیؐ ورته د خپل رسالت په ثبوت کښې ښودلې وه؟ یا دا یوه حادثه وه چه د الله په قدرت په سپوږمۍ کښې اُوشوه. او رسول الله صلی الله علیه وسلّم د خلقو توجه یې ته صرف د دې غرض د پاره ور اُوګرزوله چه دا د قیامت د امکان او د قیامت د نزدې والي یوه نښه ده، د دعا لمانو لویه ډله دا د نبیؐ په معجزو کښې شماروي او د هغوي دا خیال دے چه د کافرانو په مطالبه باندې دا مُعجزه هغوي ته ښودلے شوې وه - لیکن د دې رائې بُنیاد صرف په هغو روایتونو باندې دے کوم چه د حضرت انسؓ نه روایت کړے شوې دي - د هغه نه سِوا بل یو صحابي هم دا خبره نه ده بیان کړې - په فتح الباري کښې ابن حجر وائي چه "دا قیصه په څومره طریقو سره نقل کړے شوې ده په هغې ټولو کښې په یو کښې هم د حضرت انسؓ د حدیث نه سِو دا خبره څما د نظر نه نه ده تیره شوې چه د شق القمر واقعه د مشرکانو په مطالبه باندې شوې وه" (باب اِنْشِقَاقِ الْقَمَر) - یو روایت ابونُعیم اصفهاني دلائل النبوّة کښې د حضرت عبدالله بن عباسؓ نه هم د دې په شان نقل کړے دے، لیکن د هغې سند ضعیف دے، او د قوي سندونو سره چه څومره روایتونه د حدیثو په کتابونو کښې د ابن عباسؓ نه نقل کړے شوې دي په هغې کښې په یو کښې هم د دې ذکر نشته - د دې نه علاوه حضرت انسؓ او حضرت عبدالله بن عباسؓ، دواړه د دې واقعې د زمانې نهٔ دي - د دې برخلاف چه کوم صحابه په هغه وخت کښې موجود وُو، یعنې حضرت عبدالله بن مسعودؓ، حضرت حُذیفهؓ، حضرت جُبَیر بن مُطعمؓ، حضرت عليؓ، حضرت عبدالله بن عمرؓ، په هغوي کښې یو هم دا نهٔ دي وئیلي چه د مکې مشرکانو کښې د نبیؐ نه د نبوت د پاره څه نښه غوښتلې وه او نبیؐ ورته د شق القمر مُعجزه اُوښودله د ټولو نه لویه خبره دا ده چه قرآن مجید پخپله هم دا واقعه د محمد د رسالت د پاره د نښې په طور نهٔ بلکه د قیامت د نزدیکت د پاره د نښې په طور پیش کوي - البته دا په دې لحاظ سره د نبیؐ د صداقت یوه څرګنده نښه ضرور وه چه نبیؐ د قیامت د راتلو کومې خبرې خلقو ته کړې وې، دے واقعې د هغې تصدیق کولو -

اعتراض کونکي په دې باندې دوه قسمه اعتراضونه کوي - اوّل خو د هغوي په نزد اهم ممکنه نهٔ ده چه سپوږمۍ دې دوه ټوټې شي او هغه ټوټې دې په سوګونو میله د یو بل نه لرې لاړې شي او بیا دې یو ځائې شي، دوېم، هغوي دا وائي چه که چرې داسې شوې وې نو دا واقعه به په ټوله دُنیا کښې مشهوره وې، په تاریخ کښې به د دې ذکر راغلے وے، او د علم نجوم په کتابونو کښې به د دې بیان شوے وې - لیکن په حقیقت کښې دا دواړه اعتراضونه هیڅ وزن نهٔ لري - تر څو چه د دې د امکان خبره ده، نو شاید چه په پخوا زمانه کښې دا اعتراض چلیدے هم شو، لیکن په موجوده دَور کښې چه د ستورو د جوړښت په حقله انسان ته کوم معلومات حاصل شوې دي د هغې په بُنیاد باندې دا خبره بالکل ممکن ده چه یوه کُرَه د خپلې اندروني آتش فشانۍ په وجه دوه ټوټې شي او د ډېر زُور د لاسه د هغې دوه ټوټې لرې لرې لاړې شي او بیا د خپل مرکز د مقناطیسي قوت په وجه د یو بل سره یو ځائې شي - پاتې شو دوېم اعتراض نو هغه په دے وجه وزن نهٔ لري چه دا واقعه ناساپه وه او بس د یو ساعت د پاره وه - ضروري نهٔ وه چه په هغه خاص وخت کښې د ټولې دُنیا د خلقو نظر په سپوږمۍ پریوتے وي - د هغې سره د کړس آواز نهٔ وُو چه د خلقو توجه ورته ور ګرزیدلې وې - د اوّل نه د هغې څه اطلاع نهٔ وه چه خلقو انتظار کولو

يُعْرِضُوا وَيَقُولُوا سِحْرٌ مُّسْتَمِرٌّ ﴿٢﴾ وَكَذَّبُوا وَاتَّبَعُوا أَهْوَاءَهُمْ وَكُلُّ أَمْرٍ مُّسْتَقِرٌّ ﴿٣﴾ وَلَقَدْ جَاءَهُم مِّنَ الْأَنبَاءِ مَا فِيهِ

خومخ اړَوی اووائی چه داخوروان جادو دے۔[۲] دوی (داهم) دروغ اوګڼړ و اود خپل نفس په خواهشاتو پسے لاړل[۳]۔ هره معامله به آخرنه آخر یوانجام ته رسی[۴]۔

دے خلقو ته (د پخوانو قومونو) هغه حالات مخے ته راغلی دی په کومو کښے چه د سرکشئ نه د ځان

او آسمان ته ئے کتلے۔ د زمکے په مخ په هرځائے کښے هغه لیدلے کیدے هم نه شوه، بلکه صرف په عربو کښے او د عربو د مشرق اړخ په ملکونو کښے په دغه وخت کښے سپوږمئ راختلی وه۔ د تاریخ لیکلو شوق او فن هم په هغه وخت کښے دومره ترقی نه وه کړی چه که په مشرقی ملکونو کښے کومو خلقو هغه لیدلے وے نو چه هغه ئے لیکلے وے او د یو تاریخدان سره دا شهادتونه راجمع شوی وے او هغه بیا د تاریخ په یو کتاب کښے لیکلے وے۔ بیا هم د مالابار په تاریخونو کښے دا ذکر راغلے دے چه په هغه شپه د هغه ځائے یو راجا دا حالت لیدلے وو۔ پاتے شو د علم نجوم کتابونه او جنتریانے، نو په هغې کښے د دے ذکر راتلل صرف په هغه حالت کښے ضروری وو چه کله د دے د وجے نه د سپوږمئ په رفتار کښے، او د دے د تلو په لار کښے، او د دے د راختو او پریوتو په وختونو کښے څه فرق راغلے وے۔ دا کار چونکه اونه شو نو په دے وجه د پخوانئ زمانے د نجوم د عالمانو توجه دے طرفته را اونه ګرزیدله۔ په هغه زمانه کښے رصدګاهونه دومره ترقی نه وه کړی چه په افلاک کښے د هرے کیدونکی واقعے نه خبرشی او هغه په ریکارډ محفوظ اوساتی۔

۲ اصل الفاظ دی سِحْرٌ مُّسْتَمِرٌّ۔ د دے ډیر مطلبونه کیدے شی۔ یو دا چه (معاذالله)، شپه او ورځ د جادو کړئ کومه سلسله محمد (صلی الله علیه وسلم) شروع کړی ده، دا هم د هغې جادو یوه کړئ ده۔ دویم دا چه دا پوخ جادو دے، ډیر په هنرسره بنرد لے شوے دے۔ دریم دا چه لکه څنګه د جادو نور اثرات تیرشوی دی دغه شان به د دے اثر هم تیرشی، د دے اثر د ډیر وخت د پاره پاتے کیدونکے نه دے۔

۳ یعنی دوی چه د قیامت د نه منلو کومه فیصله کړی ده، د دے بنے په لیدلو سره هم دوی په هغې ټینګ ولاړ دی۔ قیامت منل چونکه د دوی د نفس د خواهشاتو نه خلاف وُو نو په دے وجه د ښکاره بنے لیدلو نه روستو هم دوی د هغې منلو ته غاړه کینښوده۔

۴ مطلب دا دے چه دا سلسله د نامعلومه مودے پورے نشی چلیدے چه محمد صلی الله علیه وسلّم دِ تاسو حق ته رابلی او تاسو دِ په خپل باطل باندِ په ضد سره ټینګ یئ، او د هغوی حق والے او ستاسو باطل والے دِ هډو ثابت نشی۔ ټول معاملات به آخرنهٔ آخر یو انجام ته رَسی، دغه شان ستاسو او د محمد صلی الله علیه وسلّم ترمنځه د دے جګړے هم لازماً یو انجام دے چه هغې ته به دا ضرور رَسی۔ یو وخت به خامخا داسے راځی

مُزْدَجَرٌ ﴿۴﴾ حِكْمَةٌ بَالِغَةٌ فَمَا تُغْنِ النُّذُرُ ﴿۵﴾ فَتَوَلَّ عَنْهُمْ ۘ يَوْمَ يَدْعُ الدَّاعِ إِلَىٰ شَيْءٍ نُّكُرٍ ﴿۶﴾ خُشَّعًا أَبْصَارُهُمْ يَخْرُجُونَ مِنَ الْأَجْدَاثِ كَأَنَّهُمْ جَرَادٌ مُّنتَشِرٌ ﴿۷﴾ مُّهْطِعِينَ إِلَى الدَّاعِ ۖ يَقُولُ الْكَافِرُونَ هَٰذَا يَوْمٌ عَسِرٌ ﴿۸﴾

ساتلو دَ پاره دَ عبرت کافی سامان موجود دے اودا سے حکمت چه په انتهائی اعلیٰ درجے سره دَ نصیحت مقصد پوره کوی - خو بیَرَونه په دوئ اَثرنهٔ کوی - نو اے نبیؐ، دَ دوئ نه مخ واړوه[۵] - په کومه ورځ چه آوازکونکے یو سخت ناخوښه شیز ته رابلل کوی[۶]، خلق به دَ یَرید لوسترګو سره[۷] دَ خپلو قبرونونه دا سے راؤزی لکه خواره واره مولغان، دَ آوازکونکی طرفته به منډې وهی او کومو کافرانو چه په دُنیا کښے دَدِے نه اِنکار کـولو هغوئ به په هغه وخت کښے وائی چه دا خو ډیره سخته ورځ ده -

---

چه صفا به دا ثابته شی چه هغوی په حقه وُو او تاسو بالکل په باطل پسے روان وَئ - دغه شان حق پرست خلق به دَ خپلے حق پرستئ، او باطل پرست خلق به دَ خپلے باطل پرستئ انجام هم خامخا یوه ورځ وینی -

۵ یعنی دوئ په خپل حال پریږده - هرکله چه دوئ په ښه طریقه پوهه کړے شو، او دَ انسانی تاریخ نه مثالونه هم ورکړے شوا وورته اُووئیلے شو چه دَ آخرت نه دَ انکار کولو انجام څه دے او کومو قومونو چه دَ رسولانو خبره اُونهٔ منله هغوی دَ څنګه عبرتناک انجام سره مخ شوی دی، او بیا هم دوئ دَ خپل ضد نه نهٔ واپس کیږی، نو دوئ هم په دَ خپله بے وقوفتیا کښے پریږده - دوئ به هغه وخت اُومنی کله چه دَ مرګ نه روستو دَ قبرونونه راأُوځی او په خپلو سترګو اُووینی چه واقعی هغه قیامت شروع شو چه دَ هغے دَ راتلونه مخکښے به دوئ ته خبردارے ورکړے کیدو او دا مشوره به ورکړے کیده او دا مشوره به ورکړے کیده چه په نیغه لار روان شی-

۶ دویم مطلب ناآشنا څیز هم کیدے شی - یعنی دا سے څیز چه دَ هغوئ په ګـمان کښے هلو ونهٔ وُو، چه دَ هغے هیڅ فکر دَ هغوئ په ذهن کښے نهٔ وُو، چه دَ هغے هیڅ اندازه هغوئ نهٔ شوه لګولے چه دا سے هم لاچرته کیدے شی -

۷ اصل الفاظ دی خُشَّعًا أَبْصَارُهُمْ ، یعنی دَ هغوی سترګے به دَ خشـوع ( یعنی ډیرے ) په حالت کښے وی - دَ دے ډیر مطلبونه کیدے شی - یو دا چه په هغوئ به دَ ډیرے حالت راغلے وی - دویم دا چه هغوئ به ذلیله او پښیمانه وی ځکه چه هغوی کله دَ قبرونونه راأُوځی نو پته به ورته اُولږی چه دا خو هم هغه دویم ژوند دے چه موږ به تر انکار کـولو، چه موږ ورله هیڅ تیاری نهٔ ده کړی،

كَذَّبَتْ قَبْلَهُمْ قَوْمُ نُوحٍ فَكَذَّبُوا عَبْدَنَا وَقَالُوا مَجْنُونٌ وَّازْدُجِرَ ⑨ فَدَعَا رَبَّهُ أَنِّي مَغْلُوبٌ فَانْتَصِرْ ⑩ فَفَتَحْنَا أَبْوَابَ السَّمَاءِ بِمَاءٍ مُّنْهَمِرٍ ⑪ وَّفَجَّرْنَا الْأَرْضَ عُيُونًا فَالْتَقَى الْمَاءُ عَلَىٰ أَمْرٍ قَدْ قُدِرَ ⑫ وَحَمَلْنَاهُ عَلَىٰ ذَاتِ أَلْوَاحٍ وَّدُسُرٍ ⑬ تَجْرِي بِأَعْيُنِنَا جَزَاءً لِّمَنْ كَانَ كُفِرَ ⑭

دَ دوئ نه مخکښے دَ نوحؑ قوم (آخرت اونبوّت) دروغ گڼړلے دے[۱۰] - هغوئ زمونږه بنده دروغژن اوګڼړواو وے وئیل چه داليونے دے ، او هغه ته ډیرے پدے رَدِے اُووئیلے شوے[۱۱] - آخرداچه هغه رب ته آواز اُوکړو " ځه بے وسه شوم ، اُوس ته دَ دوئ نه بدله واخله ". پس دَ هغې مونږه دَ تیز باران سره دَ آسمان دروازے پرانستے ، زمکه مواُوشلوله اوهرځائے چینے چینے شو[۱۲] ، اودا ټولے اُوبۀ دَ هغه کار دَ پوره کولو دَ پاره رایوځائے شوے کوم چه اندازه کړے شوے وُو ، اونوحؑ مونږه دَ تختواوَ میخونو په کشتۍ کښے سُورکړوچه زمونږ په نګرانئ کښے به چلیدله - دا وه بدله دَ هغه سړی دَ پاره دَ چاچه بے قدری شوی وه[۱۳] -

چه مونږ به پکښے اُوس دَ مجُرم په حیثیت سره خپل خدائے ته حاضریږو - دریم داچه هغوئ به دَ قیامت منظرته په یَره یَره کوری ځریان دریان به هغې ته کوری بل خوابه نشی کتلے -

[۸] دَ قبرونونه مُراد هغه قبرونه نهٔ دی چه زمکه اُوکنستے شی او مړے پکښے ښخ کړے شی - بلکه په کوم ځائے کښے چه سړے مړ شوے وی ، یا په کوم ځائے کښے چه دَ سړی خاورِ پرته وی ، هم دَ هغه ځائے نه به دَ آواز کوُنکی په یو آواز باندِ راپاسی او محشرته به منډی وهی -

[۹] یعنی دا خبر ئے دروغ ګڼړلے دے چه آخرت به راځی او په هغې کښے به دَ انسان سره دَ خپلو عملونو حساب کتاب کیږی ، هغه نبی ئے دروغژن ګڼړلے دے چه خپل قوم به ئے دَ دِے حقیقت نه خبرَولو ، او دَ نبی هغه تعلیم ئے دروغ ګڼړلے دے چه دا حقیقت به ئے ښکارَولو چه دَ آخرت په سوال جواب کښے دَ کامیابیدو دَ پاره څنګه عقیده او څنګه عملی اختیارول پکار دی او دَ کوم څیزونه ځان ساتل پکار دی -

وَلَقَد تَّرَكْنٰهَآ اٰيَةً فَهَلْ مِنْ مُّدَّكِرٍ ﴿۱۵﴾ فَكَيْفَ كَانَ عَذَابِىْ وَنُذُرِ ﴿۱۶﴾ وَلَقَدْ يَسَّرْنَا الْقُرْاٰنَ لِلذِّكْرِ فَهَلْ مِنْ مُّدَّكِرٍ ﴿۱۷﴾

هغه کشتۍ مونږ نښې په طور پریښوده[۱۴]، نو آیا څوک نصیحت قبلوونکے شته؟ اُوګوره څنګه وُو زما عذاب او څنګه وِے زما یرَوِنے۔ مونږ دا قرآن دَ نصیحت دَ پاره یوه آسانه ذریعه جوړه کړی ده[۱۵]، نو آیا شته څوک نصیحت قبلوونکے؟

۱۰ه یعنی دے خلقو بوازے نبیؑ ته په دروغژن وئیلو اکتفا اُونهٔ کړه، بلکه اُلټا ئے هغه ته لیونے اُووے، هغه ته ئے د مکیانے ورکړے، دَ هغه خلاف ئے بد ے رَدے اُووئیلے، په زُور ظلم سره ئے دا کوشش اُوکړو چه هغه دَ صداقت دَ تبلیغ نه منع کړی او دَ هغه ژوند ئے تنګ کړو۔

۱۱ه یعنی دَ الله په حکم سره زمکه دا سے اُوشلیده او اُوبهٔ تر روانے شوے لکه چه هغه زمکه نهٔ وه بلکه تو لے چینے چینے وے۔

۱۲ه دَ دے نه مُراد ده هغه کشتۍ کومه چه دَ طوفان راتلو نه مخکښے حضرت نوحؑ دَ الله تعالیٰ دَ حکم مطابق جوړه کړی وه۔

۱۳ه اصل الفاظ دی جَزَآءً لِّمَنْ كَانَ كُفِرَ، یعنی" دا هر څه دَ هغه سړی دَ خاطره دَ بدلے اغستلو دَ پاره اُوشو چه دَ چا کفر شوے وُو"۔ کُفر که دَ انکار په معنیٰ کښے وی نو مطلب به ئے داوی " چه دَ چا دَ خبری منلو نه اِنکار شوے وُو"۔ او که هغه دَ نعمت دَ ناشکرئ په معنیٰ کښے واغستے شی نو مطلب به ئے داوی چه " دَ چا موجودګی یو نعمت وُو لیکن دَ هغه ناقدری اُوکړے شوه "۔

۱۴ه دا معنیٰ هم کیدے شی چه مونږ دا عذاب دَ عبرت یوه نښه اُوګرزوله۔ لیکن زمونږ په نزد به ترجمه داده چه هغه کشتۍ دَ عبرت نښه اُوګرزولے شوه۔ هغه په یو دنګ لوړ غر باندِ دَ سَوُونو زرګونو کالو پورے پرَته وه او خلق ئے دَ خدائے دَ غضب نه خبردارَول او هغوی ته ئے دا خبره وریادَوله چه په دے زمکه دَ خدائے په نافرمانه خلقو باندِ څنګه عذاب راغلے وُو او مومنانِ دَ هغے نه څنګه بچ کړے شوی وُو۔ امام بخاریؒ، ابن ابی حاتمؒ، عبدالرزاق او ابن جریر دَ قتاده نه دا روایتونه نقل کړی دی چه مسلمانانو کله عراق او الجزیره فتح کړل نو په هغه زمانه کښے دا کشتۍ په جُودی باندِ (او دَ یو روایت مطابق باقِرْدیٰ نومے کلِی ته نزدے) پرَته وه او دَ اولنی دَور مسلمانانو لیدلی وه۔ په موجوده زمانه کښے هم ځینو خلقو دَ هوائی جهازنه دَ دے علاقے په یو اُوچت غر باندِ دَ کشتۍ غوندِ یو څیز لیدلے دے چه په هغے دَ نوحؑ دَ کشتۍ ګمان راځیٔ، او هم په دے بُنیاد باندِ دَ هغے دَ لټون دَ پاره وخت په وخت ډلے لیږلے کیږی۔ (دَ زیاتے تشریح دَ پاره اُوګوره تفهیم القرآن، دویم جلد، الاعراف، حاشیه ۴۷۔ هودؑ، حاشیه ۴۶ – دریم جلد، العنکبوت، حاشیه ۲۵)۔

۱۵ه ځینو خلقو دَ يَسَّرْنَا الْقُرْاٰنَ نه دا غلط مطلب را ایستلے دے چه قرآن یو آسان کتاب دے،

كَذَّبَتْ عَادٌ فَكَيْفَ كَانَ عَذَابِىْ وَ نُذُرِ ﴿۱۸﴾ اِنَّاۤ اَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ رِيْحًا صَرْصَرًا فِىْ يَوْمِ نَحْسٍ مُّسْتَمِرٍّ ﴿۱۹﴾ تَنْزِعُ النَّاسَ

عاد یانو دروغژن اُوګڼړو، نو ګوره چه څنګه وُو زما عذاب او څنګه وے زما یرَوَنے - موږ په هغوئ باندې یوه سخته طوفانی هوا په داسے ورځ[۱۶] ور اُولیږله چه دَ هغې منحوستیا مُسلسل وه - هغې هوا به خلق داسے غورزول

په دے باندې د پوهیدو دپاره دَ علم ضرورت نشته، اَنْ ترَدے پورے چه که څوک دَ عربئ ژبے نه هم خبر نهٔ وی خو دَ دے تفسیر کولے شی او دَ دے دَ آیتونو نه چه کوم حکمونه را ایستل غواړی هغه ترَ دَ حدیث او دَ فقهے دَ پوهے نه بغیر را ایستلے شی - حالانکه چه په کوم عبارت کښے دننه دا الفاظ راغلی دی هغې ته چه سړے اُوګوری نو معلومیږی چه دَ دے آیت مقصد خلق په دے خبرَ پوهه کول دی چه دَ نصیحت یو ذریعه خو هغه عبرتناک عذابونه دی کوم چه په سرکشو قومونو باندې نازل شو، او دویمه ذریعه دا قرآن دے چه په دلیلونو او نصیحتونو سره تاسو ته نیغه لار ښائی - دَ هغه ذریعے په مقابله کښے دَ نصیحت دا ذریعه ډیره آسانه ده - نو تاسو وَلے دَ دے نه فائیده نهٔ اخلئ او ولے خامخا عذاب لیدل غواړئ؟ دا خو سراسر دَ الله تعالیٰ فضل دے چه دَ خپل نبی په ذریعه ئے دا کتاب را اُولیږو او تاسو له خبردار ئے درکوی چه په کومه لار باندې تاسو روان یئ هغه دَ تباهئ لار ده او ستاسو خیر په کومه لار کښے دے - دَ نصیحت دا طریقه خو دَ دے دَ پاره خپله کړے شوی ده چه دَ تباهئ کندے ته دَ غورزیدو نه مخکښے تاسو دَ هغې نه بچ کړے شئ - اُوس په دَ هغه چا نه زیات ناپوهه بل څوک وی چه دَ نصیحت خبره نهٔ منی او چه کندے ته پریوزی نو بیا اُومنی چه واقعی دا کنده وه -

[۱۶] یعنی یوه داسے ورځ چه دَ هغې منحوستیا دَ یو څو ورځو پورے مسلسله جاری وه - دَ سورۃ حٰمٓ السجدة په آیت ۱۶ کښے فِیْۤ اَیَّامٍ نَّحِسَاتٍ الفاظ استعمال شوی دی، او دَ سورة الحاقه په آیت ۷ کښے فرمائیلے شوی دی چه دَ هوا دا طوفان مُسلسل اوۀ شپے او اته ورځے جاری وُو - دا خبره مشهوره ده چه دا عذاب دَ شورو په ورځ شروع شوے وُو - دَ دے نه په خلقو کښے دا خیال راپیدا شو چه دَ شروع ورځ منحوسه ده، په دے ورځ څه کار شروع کول نهٔ دی پکار - ځینې ډیر کمزوری احادیث هم په دے سلسله کښے نقل کړے شوی دی چه دَ هغې دَ وجے نه دَ دے ورځے منحوستیا دَ خلقو په ذهن کښے ناسته ده - مثلاً دَ ابن مَرْدُوَیه او دَ خطیب بغدادی دا روایت چه آخر اربعاء فی الشهر یوم نحس مستمر (دَ میاشتے آخری دَ شورو ورځ منحوسه ده دَ دے منحوستیا مسلسل جاری وی) - ابن جوزی دے ته موضوع (یعنی دَ ځانه جوړه کړی خبره) وائی - ابن رجب وئیلی دی چه دا حدیث صحیح نهٔ دے - حافظ سخاوی وائی چه په څومره طریقو سره دا حدیث نقل کړے شوے دے هغه ټولے طریقے لَغْوَه یعنی کمزورے او ناقابلِ قبول دی - دغه شان دَ طَبَرانی دا روایت هم محدثینو کمزورے ګرزولے دے چه "یوم الاربعاء یومُ نحس مستمر (دَ شورو ورځ دَ مسلسلے منحوستیا ورځ ده) - په ځینو نورو روایتونو کښے دا خبری هم شته چه دَ شورو په ورځ سفر، لین دین، نوکونه پریکول، دَ مریض تپوس له تلل بنه نهٔ دی، او دَ جُذام او دَ برص مرض په دے ورځ شروع کیږی، خو دا ټول روایتونه کمزوری دی او په دے باندې عقیده لرل

كَأَنَّهُمْ أَعْجَازُ نَخْلٍ مُّنقَعِرٍ ﴿٢٠﴾ فَكَيْفَ كَانَ عَذَابِي وَنُذُرِ ﴿٢١﴾
وَلَقَدْ يَسَّرْنَا الْقُرْآنَ لِلذِّكْرِ فَهَلْ مِن مُّدَّكِرٍ ﴿٢٢﴾ كَذَّبَتْ
ثَمُودُ بِالنُّذُرِ ﴿٢٣﴾ فَقَالُوا أَبَشَرًا مِّنَّا وَاحِدًا نَّتَّبِعُهُ
إِنَّا إِذًا لَّفِي ضَلَالٍ وَسُعُرٍ ﴿٢٤﴾ أَأُلْقِيَ الذِّكْرُ عَلَيْهِ مِن بَيْنِنَا

لکه چه هغوی دَ ایستلو شوو کجورو تنے وی - نو اُوګورئ چه څنګه وُو زما عذاب او څنګه وے زما خبردار یانے - موږ دا قرآن دَ نصیحت دَ پاره یوه آسانه ذریعه جوړه کړی ده، نو آیا شته څوک نصیحت قبلو نکے ؟ ع

ثمود یانو خبردار یانے دروغ اُوګڼړلے او وے وئیل "آیا اُوس موږه دَ خپل قوم په اِکّی یو سړی پسے روان شو ؟ که دَ هغه مشری مو قبول کړه نو دَ به دا مطلب وی چه موږ بے لارے شوی یو او زموږه عقل خراب شوے دے - آیا په موږ کښے بس هم دا یو سړے وُو چه په هغه باندِ دَ خدائے ذکر نازل کړے شو ؟

بنه خبره نهٔ ده - تحقیق کوُنکے مُناوی وائی ، توقی الاربعاء علی جهة الطیرة وظن اعتقاد المنجمین حرام شدید التحریم، اذ الایام کلها لله تعالیٰ لا تنفع ولا تضر بذاتها ، " دَ بد فالئ په خیال سره دَ شُورو ورځ منحوسه ګڼړل او په دے باره کښے دَ نجومیانو پشان عقیده لرل حرام او سخت حرام دی، ځکه چه ټولے ورځے دَ الله تعالیٰ دی، ورځ نهٔ چا ته فائیده رَسَولے شی او نهٔ نقصان"۔ علامه الوسی وائی "ټولے ورځے یو شان دی دَ شُورو دَ ورځے خصوصیّت نشته - په شپه ورځ کښے یو ساعت داسے نشته چه هغه دَ چا دَ پاره بنه او دَ چا دَ پاره بد نهٔ وی - هر وخت الله تعالیٰ دَ چا دَ پاره بنه او دَ چا دَ پاره نا بنه حالات پیدا کوی"۔

[۱۸] یعنی دَ حضرت صالحؑ دَ پیروئ کولو نه دَ هغوئ دَ انکار کولو درے وجے وے - یوه وجه دا وه چه هغه بشر دے، دَ انسانیت نه بالا تر نهٔ دے چه موږه دَ هغهٔ لوئی اُومنو - دویمه دا چه هغه زموږ دَ خپل قوم یو سړے ؏ - هغه زموږ نه په هیڅ وجه غوره نهٔ دے - دریمه دا چه هغه یوازے دے، یو عام سړے دے، لوئ سردار نهٔ دے چه غټه ډله ورسره وی، نوکران او لښکرے ورسره وی چه موږ ئے دَ هغے په وجه لوئی اُومنو - هغوئ دا غوښتله چه نبی دِ دَ اِنسان نه پورته څه بله هستی وی یا که انسان هم وی نو هغه دِ زموږ په خپل قوم او په خپل ملک کښے نهٔ وی پیدا شوے، بلکه چرته دَ بره نه دِ راکوز شی یا دَ بهر نه را اُولیږلے شی، او که دا هم نهٔ وی نو کم از کم هغه دِ یو سردار وی چه دَ هغه دَ اعلیٰ شان و شوکت په وجه دا اُومنلے شی چه دَ رهنمائیٔ دَ پاره الله تعالیٰ دَ ے غوره کړے دے - دا هغه ګمانات وُو چه دَ مکے کافران پکښے

بَلْ هُوَ كَذَّابٌ اَشِرٌ ﴿۲۵﴾ سَيَعْلَمُوْنَ غَدًا مَّنِ الْكَذَّابُ الْاَشِرُ ﴿۲۶﴾ اِنَّا مُرْسِلُوا النَّاقَةِ فِتْنَةً لَّهُمْ فَارْتَقِبْهُمْ وَاصْطَبِرْ ﴿۲۷﴾ وَنَبِّئْهُمْ اَنَّ الْمَآءَ قِسْمَةٌۢ بَيْنَهُمْ ۚ كُلُّ شِرْبٍ مُّحْتَضَرٌ ﴿۲۸﴾ فَنَادَوْا صَاحِبَهُمْ فَتَعَاطٰى فَعَقَرَ ﴿۲۹﴾ فَكَيْفَ كَانَ عَذَابِيْ

نهٔ، بلکه دا غټ دروغژن او غلط انسان دے[۱۸]" (مونږه خپل پیغمبر ته اُووئیل) "صبا له به دوئ ته معلومه شي چه څوک غټ دروغژن او غلط انسان دے۔ مونږه اُوښه دَ دوئ دَ پاره دَ فتنے په طور درلیږو۔ اُوس لږ په صبر سره اِنتظار کوه چه دَ دوئ څه انجام کیږی۔ دوئ ته خبر ورکړه چه اُوبهٔ به دَ دوئ او دَ اُوښے په منځ کښے تقسیمیږی او هر یو به دَ خپلے وارے په ورځ اُوبو له راځي[۱۹]" آخر دا چه هغوی خپل ملګری ته آواز اُوکړو او هغه دَ دے کار ذمه واغستله او اُوښه ئے اُووژله[۲۰]۔ بیا اُوګورئ چه څنګه ؤو زما عذاب

اخته وُو۔ دَ محمد صلی الله علیه وسلم پیغمبری هم هغوئ په دِے بُنیاد نهٔ منله چه هغه بشر دے، دَ عامو خلقو پشان په بازارونو کښے ګرځی راګرځی، پرون زمونږ په مخکښے پیدا شوا ونن دا دعوی کوی چه څه خدائے پیغمبر کړے یم۔

۱۸ه په اصل کښے لفظ اَشِر استعمال شوے دے چه معنیٰ ئے ده دا سے خود غرضه او غلط اِنسان چه دَ هغه په دماغو کښے دَ خپلے لوئیٔ نه سِوا بل څه نهٔ وی او دَ هغے په وجه غټے غټے لاپے کوی۔

۱۹ه دا دَ دے خبری تشریح ده چه" مونږه اُوښه دَ دوئ دَ پاره دَ فتنے په طور درلیږو" هغه فتنه داوه چه یو دم یوه اُوښه دَ هغوئ مخے ته رَاوړولے شوه او ورته اُووئیلے شو چه یوه ورځ به دا یوازے اُوبهٔ څکی او بله ورځ به تاسو ټول خلق دَ خپل ځان دَ پاره او دَ څاروُو دَ پاره اُوبهٔ وړے شئ۔ دَ اُوښے دَ وارے په ورځ دِ په تاسو کښے څوک نهٔ دَ خپل ځان دَ پاره او نهٔ دَ خپلو څاروُو دَ پاره یوے چینے یا یو کوهی له ورځی۔ دا خبره دَ یو داسے سړی دَ طرفنه شوی وه چه دَ هغه په حقله به هغوئ پخپله وئیل چه دَ دے نهٔ څه لبنکرے لری او نهٔ ئے چرته یوه لویه ډله په شا باندِ ولاړه ده۔

۲۰ه دَ دِے الفاظو نه پخپله دا سے معلومیږی چه هغه اُوښه دَ یوے مودے پورے دَ هغوی په کلو کښے په آزادئ سره ګرزیدله۔ دَ هغے دَ وارے په ورځ به څوک اُوبو له نهٔ شو تللے۔ آخر دا چه هغوئ دَ خپل قوم یو خود اختیاره سردار ته آواز اُوکړو چه تهٔ ډیر بهادر او تورہ باز سړے ئے۔ په هره خبره مرګ ژوبلے ته تیار ئے،

وَنُذُرِ ﴿۳۰﴾ اِنَّآ اَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ صَيْحَةً وَّاحِدَةً فَكَانُوْا كَهَشِيْمِ الْمُحْتَظِرِ ﴿۳۱﴾ وَلَقَدْ يَسَّرْنَا الْقُرْاٰنَ لِلذِّكْرِ فَهَلْ مِنْ مُّدَّكِرٍ ﴿۳۲﴾ كَذَّبَتْ قَوْمُ لُوْطٍۭ بِالنُّذُرِ ﴿۳۳﴾ اِنَّآ اَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ حَاصِبًا اِلَّآ اٰلَ لُوْطٍ ؕ نَجَّيْنٰهُمْ بِسَحَرٍ ﴿۳۴﴾ نِّعْمَةً مِّنْ عِنْدِنَا ؕ كَذٰلِكَ نَجْزِىْ مَنْ شَكَرَ ﴿۳۵﴾ وَلَقَدْ اَنْذَرَهُمْ بَطْشَتَنَا فَتَمَارَوْا بِالنُّذُرِ ﴿۳۶﴾

اوګنګه وو زما خبرداریانے - مونږه په هغوئ بس اِکې یوګړز راوستو او دَ هغوئ نه دَ شپول لګونکی دَ چقید لی شپول پشان بُوس جوړ شول[21] - مونږه دا قرآن دَ نصیحت دَ پاره یوه آسانه ذریعه جوړه کړی ده، اُوس شته څوک نصیحت قبلوُنکے ؟

دَ لوطؑ قوم خبرداریانے دروغ اُوګنړلے او مونږه په هغوئ باندِ کاڼړی وروُنکی هوا ور اُولیږله - صرف دَ لوطؑ دَ کور خلق دَ هغے نه محفوظ پاتے شول - مونږه هغوئ په خپل فضل سره دَ شپے په آخری حصّه کښے بهر اُوویستل او بچ موکړل - دا بدله مونږه هر هغه سړی له ورکوُو چه هغه شکرګزار وی - لوطؑ دَ خپل قوم خلق زمونږ دَ نیوکے نه خبردارکړل خو هغوی دَ یرَو نے ټولے خبری شکمنے اُوګنړلے او په خندائے واړولے -

لږ شان همت اُوکړه او دَ دِے اُوښے قیصه هم ختمه کړه - دَ خلقو په واړو هغه وے کار ته سر اُوتړو او اُوښه ئے اُووژله - دَ دِے صفا مطلب دا دے چه هغوئ دَ دے اُوښے نه سخت په رُعب کښے وُو، دَ هغوئ سره دا فکر وُو چه دَ دے په شا یو غټ طاقت دے، په هغے باندِ دَ حملے کولو نه هغوی یَریدل، او په دے وجه دا اُوښه وژل دَ هغوئ دَ پاره یو غټ کار وُو، اګرچه دَ هغے دَ پیش کوُنکی پیغمبر سره هیڅ فوج نهٔ وُو چه ګنی هغوی تِرے یَریدل - ( دَ زیاتے تشریح دَ پاره اُوګوره تفهیم القرآن جلد دویم، الاعراف، حاشیه ۵۸ - الشعراء، حاشیه ۱۰۴ - ۱۰۵ ) -

[21] کوم خلق چه څاروی ساتی هغوئ دَ خپلو څاروُو دَ حفاظت دَ پاره دَ جاخو او دَ لرګو نه یو شپول جوړَوی - دَ هغے شپول جاخے رُو رُو وچیږی او دُوړیږی او دَ څاروُو دَ تلو راتلو سره دَ خپو لاندِ چقیږی او ریز مریز کیږی - دَ ثمود یانو دَ رِیزه شوو مړو مثال دَ دِے شپول دَ چقیدلو ډکو سره ورکړے شوے دے -

وَلَقَدْ رَاوَدُوْهُ عَنْ ضَيْفِهٖ فَطَمَسْنَآ اَعْيُنَهُمْ فَذُوْقُوْا عَذَابِيْ وَنُذُرِ ﴿۳۷﴾ وَلَقَدْ صَبَّحَهُمْ بُكْرَةً عَذَابٌ مُّسْتَقِرٌّ ﴿۳۸﴾ فَذُوْقُوْا عَذَابِيْ وَنُذُرِ ﴿۳۹﴾ وَلَقَدْ يَسَّرْنَا الْقُرْاٰنَ لِلذِّكْرِ فَهَلْ مِنْ مُّدَّكِرٍ ﴿۴۰﴾ وَلَقَدْ جَآءَ اٰلَ فِرْعَوْنَ النُّذُرُ ﴿۴۱﴾ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا كُلِّهَا فَاَخَذْنٰهُمْ اَخْذَ عَزِيْزٍ مُّقْتَدِرٍ ﴿۴۲﴾



بیا هغوی کوشش اُوکړو چه هغه دَ خپلو میلمنو دَ حفاظت نه منع کړی۔ آخر دا چه مونږ دَ هغوئ سترګے ړندے کړے چه اُوڅکئ څما دَ عذاب او څما دَ یرَونے مزه[22]۔ سحر وختی هغوئ یو مستقل عذاب راګیر کړل۔ اُوڅکئ مزه اُوس څما دَ عذاب او څما دَ یرَو نے۔ مونږ دا قرآن دَ نصیحت دَ پاره یوه آسانه ذریعه جوړه کړی ده، نو شته څوک نصیحت قبلونکے؟ ع

او آل فرعون ته هم خبرداریانے راغلے وے خو هغوی زمونږه ټو لے بښے دروغ اُوګڼلے۔ آخر دا چه مونږه هغوی دا سے راَ اُونیول لکه څنګه چه یو زبردست قدرت والا نیول کوی۔

[21] دَ دے قیصے تفصیلات دَ سورۃ هود په آیتونو ۷۷ تا ۸۳ کښے او دَ سورۃ حِجر په آیتونو ۶۱ تا ۷۴ کښے تیرشوی دی۔ خلاصه دَ هغے داده چه کله الله تعالیٰ په هغه قوم باندِ دَ عذاب لیږلو فیصله اُوکړه نو یو څو فرښتے ئے دَ ښکلی هلکانو په شکل کښے دَ حضرت لوطؑ کره دَ میلمنو په طور اُولیږلے۔ دَ هغه دَ قوم خلقو چه کله اُولیدل چه دَ لوطؑ کَره ښائسته میلمانه راغلی دی نو هغوی دَ هغه په کور ورغلل او دَ هغه نه ئے مطالبه اُوکړه چه دا ښکلی میلما نـه دَ بدکاریٔ دَ پاره هغوی ته حواله کړی۔ حضرت لوطؑ هغوی ته ډیر منت اُوکړو چه دَ دے ذلیله حرکت نه منع شی۔ خو هغوئ اُونهٔ منله او کور ته ئے ورننوتل او په زور ئے دَ میلمنو دَ را ایستلو کوشش اُوکړو۔ په دے آخری کارروائی باندِ یو دم دَ هغوئ سترګے ړندے شوے۔ بیا فرښتو حضرت لوطؑ ته اُوویل چه ته او ستا دَ کور خلق دِ دَ صبا کیدو نه مخکښے دَ دے کلی نه اُووځی، او دَ هغوئ دَ وتلو سره په دِے قوم باندِ یو خطرناک عذاب نازل شو۔ په بائیبل کښے هم دا واقعه په دے طریقه بیان کړے شوی ده۔ دَ هغے الفاظ دا دی، "پس دَ هغے هغوی په هغه سړی یعنی په لوطؑ باندِ ورغلل او ورنژدے شو دَ پاره دَ دے چه دروازه ماته کړی۔ لیکن هغه سړو (یعنی فرښتو) خپل لاس را اُوږده کړل او لوطؑ ئے دَ خپل ځان خواته کور ته را ښکودو او دروازه ئے بنده کړه۔ او کوم خلق چه دَ کور دروازے ته راغلی وُو

أَكُفَّارُكُمْ خَيْرٌ مِّنْ أُولَٰئِكُمْ أَمْ لَكُم بَرَاءَةٌ فِي الزُّبُرِ ﴿٤٣﴾ أَمْ يَقُولُونَ نَحْنُ جَمِيعٌ مُّنتَصِرٌ ﴿٤٤﴾ سَيُهْزَمُ الْجَمْعُ وَيُوَلُّونَ الدُّبُرَ ﴿٤٥﴾ بَلِ السَّاعَةُ مَوْعِدُهُمْ وَالسَّاعَةُ أَدْهَىٰ وَأَمَرُّ ﴿٤٦﴾ إِنَّ الْمُجْرِمِينَ فِي ضَلَالٍ وَسُعُرٍ ﴿٤٧﴾ يَوْمَ يُسْحَبُونَ فِي النَّارِ عَلَىٰ وُجُوهِهِمْ ذُوقُوا مَسَّ سَقَرَ ﴿٤٨﴾

وقف لازم

آیا ستاسو کافران دَ هغه خلقونه ځه بهتر دی؟[۲۳] یا په آسمانی کتابونو کښې ستاسو دَپاره څه معافی لیکلے شوی ده؟ یا دا خلق دا وائی چه مونږه یوه مضبوطه ډله یو، مونږ به خپل بچاؤ اُوکړو؟ ډیر زر به دا ډله شکست اُوخوری او دا ټول به په شا اُوتښتی[۲۴]۔ بلکه دَ دوی سره دَ فیصلے دَپاره دَ اصلی وعدے وخت خو قیامت دے او هغه لوئ آفت او ډیر تریخ ساعت دے۔ دا مجرمان خلق په حقیقت کښې په غلط فهمئ کښې پراته دی او دَ دوئ عقل خراب شوے دے۔ په کومه ورځ چه دوئ په وُور کښې پر مخے راښکود لے کیږی په هغه ورځ به دوئ ته اُوویلے شی چه اُوس اُوڅکئ دَ دوزخ دَ وُور مزه۔

واړه لوئ ټول، هغه ئے ړانده کړل، نو هغوئ دَ دروازے په لټون لټون ستړی شو"۔ (پیدائش، ۱۹: ۹-۱۱)۔

[۲۳] خبره قریشو ته ده۔ مطلب دا دے چه په تاسو کښې آخر څه خوبی ده، تاسو ته کوم لعلونه ځانګی، چه دَ کوم کفر او انکار او ضد په وجه نورو قومونو له سزا ورکړے شوی ده هغه که تاسو کوئ نو تاسو له دِ پرِ سزا نهٔ ورکړے کیږی؟۔

[۲۴] دا څرګنده پیشګوئ ده چه دَ هجرت نه پنځه کاله مخکښې شوی وه چه دَ قریشو ډله به ډیره زر دَ مسلمانانو دَ لاسه شکست خوری۔ په هغه وخت کښې دَ چا دا خیال نهٔ راتلو چه دومره زر به دا انقلاب څنګه راشی۔ دَ مسلمانانو دَ بے وسئ دا حال وُو چه دَ هغوئ یو ډلے ملک پریښودے وُو او په حبشو کښې ئے پناه اغستلی وه، او باقی پاتے مومنان په شعب ابی طالب کښې ګیر وُو چه دَ قریشو دَ بائیکاټ دَ لاسه دَ لوږے نه مړه کیدل۔ په دے حالت کښې دَ چا په خیال کښې دا خبره راتلله چه په

إِنَّا كُلَّ شَيْءٍ خَلَقْنَٰهُ بِقَدَرٍ ﴿٤٩﴾ وَمَآ أَمْرُنَآ إِلَّا وَٰحِدَةٌ كَلَمْحٍۭ بِٱلْبَصَرِ ﴿٥٠﴾ وَلَقَدْ أَهْلَكْنَآ أَشْيَاعَكُمْ فَهَلْ مِن مُّدَّكِرٍ ﴿٥١﴾ وَكُلُّ شَيْءٍ فَعَلُوهُ فِى ٱلزُّبُرِ ﴿٥٢﴾ وَكُلُّ صَغِيرٍ وَكَبِيرٍ مُّسْتَطَرٌ ﴿٥٣﴾

موږ هرڅيز د يو تقدير ( يعنې د يو خاصې اندازې ) سره پيدا کړې دے[۲۵]، او زموږ حکم بس يو حکم وي او د سترګې په رپ کښې هغه کيږي[۲۶]۔ ستاسو غوندې په سوونو خلق موږ هلاک کړي دي[۲۷]، آيا شته څوک نصيحت قبلونکے؟ څه چه دوئ کړي دي هغه ټول په کتابونو کښې درج دي او هره وړه لويه خبره ليکلې شوې پرته ده[۲۸]۔

اُوه کاله کښې د ننه نقشه بدليدونکې ده ۔ د حضرت عبدالله بن عباس د شاګرد عِکرمه روايت دے چه حضرت عُمر رضي الله عنه فرمائي، کله چه د سورة قمر دا آيت نازل شو نو څه حيران وُوم چه آخر داکومه ډله ده چه شکست به خوري؟ خو کله چه په جنګ بدر کښې کافرانو شکست اُوخوړو او اُوتښتيدل نو په هغه وخت کښې ما اُوليدو چه رسول الله صلى الله عليه وسلم زغره آغوستلې وه او وړاندې روان وُو او دا ئې وئيل چه سَيُهْزَمُ الْجَمْعُ وَيُوَلُّونَ الدُّبُرَ، پس د هغې څه پوهه شوم چه دا هغه شکست وُو د کوم په حقله چه خبر شوے وُو ( ابن جرير، ابن ابي حاتم )۔

[۲۵] يعنې د دُنيا يو څيز هم په ړندونه د ے پيدا کړے شوے ، بلکه د هر څيز يو تقدير د ے چه د هغې مطابق هغه په يو مقرر وخت باندې جوړيږي ، يو خاص شکل اختياروي ، د يو خاص حده پورے غټيږي ، د يوے خاصے مودے پورے باقي پاتے کيږي ، او په يو خاص وخت باندې ختميږي ۔ د دے قاعدے مطابق بچپله د دے دُنيا هم يو تقدير د ے ( يعنې يوه خاصه اندازه ده ) چه د هغې مطابق به دا د يو خاص وخته پورے چليږي او په يو خاص وخت به ختميږي۔ کوم وخت چه د دے د ختميدو د پاره مقرر کړے شوے دے نه به د هغې نه يو ساعت مخکښې ختميږي او نه به تر يو ساعت روستو پاتے کيږي۔ نه دا ازلي او ابدي ده چه هميشه به وي او نه دا د بچو لوبے دي چه کله تاسو اُوغواړئ نو په هغه وخت به ختميږي۔

[۲۶] يعنې د قيامت راوستلو د پاره به موږ څه لويه تياري نه کوُو او نه به پرې څه ډير وخت لږي ۔ زموږ د طرفنه بس يو حکم کولو ته خبره پاتے ده ۔ چه حکم اُوشي نو د سترګے په رپ کښې به قيامت را غلے وي۔

إِنَّ الْمُتَّقِينَ فِي جَنَّتٍ وَّنَهَرٍ ﴿۵۴﴾ فِي مَقْعَدِ صِدْقٍ عِنْدَ مَلِيكٍ مُّقْتَدِرٍ ﴿۵۵﴾ ع

پرهیزګاران به یقیناً په باغونواو نهرونوکښې وي، په رښتینې عزتمند ځائے کښې، دَ لوئيوقدرتونو دَ بادشاه خواته ـ ع

۲۷ه یعنې که ستاسو دا خیال وي چه دا دَ یوحکیم اوعادل خدائے خدائي نهٔ ده بلکه دَ ړندو بادشاهي ده چه سړے پکښې څه غواړي هغه دِ کوي، څوک دَ تپوس نشته، نوستاسو دَ سترګو غړیدو دَ پاره اِنساني تاریخ موجود دے چه په هغې کښې دَ دے خیال قومونه پر لَبسې ښودلے کیږي چه تباه شوي دي ـ

۲۸ه یعنې دا خلق دِ په دِے دوکه کښې نهٔ پریوزي چه دَ هغوئ عملونه کِیني چرته غیب شوي دي ـ نهٔ، دَ هر سړي، دَ هر ے ډلے اودَ هرقوم پوره پوره ریکارډ محفوظ دے او په خپل وخت به هغه مخے ته راځي ـ

# الرَّحمٰن

**نوم** اولنے لفظ دَدے نوم دے ۔ دَدے مطلب دادے چه دا هغه سورة دے چه دَ لفظ رحمٰن نه شروع شوے دے ۔ خو بیا هم دَدے نوم دَسورة دَمضمون سره ژور تعلق دے ، ځکه چه په دے کښے دَ اوّل نه دَ آخره پورے دَ الله تعالیٰ دَ رحمت دَصفت ذکر شوے دے ۔

**دَ نازلیدو زمانه** مفسّرین دے سورة ته عام طور مکّی سورة وائی ۔ اګرچه په ځینو روایتونو کښے دَ حضرت عبدالله بن عباس او دَ عِکرمه او قَتَادہ نه دا قول نقل کړے شوے دے چه دا سورة مدنی دے ، لیکن اوّل خو دَدے بزرګانو ځینی نور روایتونه دَدے خلاف هم نقل کړے شوی دی ، دویم داچه دَدے مضمون دَ مدنی سورتونو په نسبت دَ مکّی سورتونو سره زیات مشابه دے ، بلکه داسے معلومیږی لکه چه دَ مکے په اولنی دَور کښے نازل شوے وی ۔ او دَدے نه علاوه نور هم داسے معتبر روایتونه ملاویږی چه دَ هغے نه دَدے خبری ثبوت راوځی چه دا په مکّه کښے دَ هجرت نه یو ښوکاله مخکښے نازل شوے وُو ۔

په مُسنَدِ احمد کښے دَ حضرت اسماء بنت ابوبکر رضی الله عنهما روایت دے چه "ما رسول الله صلی الله علیه وسلّم اُولیدو چه په حرم کښے مونځ کوی او مخ ئے دَ خانه کعبے هغه کوټ ته دے په کوم کښے چه حجرِاسود لږیدلے دے ۔ دا دَ هغه زمانے خبره ده چه لا دَ فَاصۡدَعۡ بِمَا تُؤۡمَرُ (چه دَکوم څیز تا ته حکم کیږی هغه جَهراً په زوره زوره اُووایه) فرمان نه وُو نازل شوے ۔ مشرکانو په دے مانځه کښے دَ نبیّ دَ خلے نه دَ فَبِاَیِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ الفاظ اوریدل"۔ دَدے نه معلومه شوه چه دا سورة دَ سورة الحِجر نه مخکښے نازل شوے وُو ۔

البزّار ، ابن جریر ، ابن المُنذر ، دارقُطنی (فی الافراد) ، ابن مَردُویه ، او الخطیب (فی التاریخ) ، دَ حضرت عبدالله بن عُمر نه دا روایت نقل کړے دے چه یو ځلے رسول الله صلی الله علیه وسلّم سورة رحمٰن پخپله تلاوت کړو ، یا دَ هغه په مخکښے بل چا تلاوت کړو ۔ بیا هغه خلقو ته اُوفرمائیل چه "څه وجه ده چه څه ستاسو دَطرفنه هغسے ښه جَواب نهٔ اَورم لکه څنګه چه پیریانو خپل رب له ورکړے وُو"؟ خلقو عرض اُوکړو چه هغه څه جواب وُو؟ نبیّ اُوفرمائیل چه "کله ما دَ الله تعالی فرمان فَبِاَیِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ لوستلو نو پیریانو به دَدے په جواب کښے وئیل چه لَا بِشَیۡءٍ مِّنۡ نِعۡمَةِ رَبِّنَا نُكَذِّبُ ، " مونږه دَ خپل رب یو نعمت هم دروغ نهٔ ګڼړو"۔

هم دَ دے پشان مضمون ترمِذی ، حاکم او حافظ ابوبکر بزّار دَ حضرت جابر بن عبدالله نه نقل کړے دے ۔ دَ هغه په روایت کښے دا الفاظ دی چه کله خلقو سورة رحمٰن واورېدو او خاموش پاتے شونو نبیؐ اوفرمائيل لقد قرا تها علی الجن ليلة الجن فكانوا احسن مردودا منكم ، كنت كلما اتيت علیٰ قوله فبای اٰلاۤءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ قالوا لا بشیءٍ من نعمك ربنا نكذب فلك الحمد ۔ یعنی " ما دا سورة پیریانو ته په هغه شپه اَورَولے وُو په کومه شپه چه هغوئ دَ قرآن دَ اورېدو دَ پاره راجمع شوی وُو ، هغوی به دَ دے جواب ستاسو نه ښه ورکوُو ۔ کله چه به څه دَ الله تعالیٰ دے فرمان ته اُورسیدم چه اے پیریانو او انسانانو تاسو به دَ خپل رب کوم کوم نعمتونه دروغ گنړئ ، نو هغوئ به دَ دے په جواب کښے وئيل چه اے زموږ پروردګاره ، موږ ستا یو نعمت دروغ نهٔ ګنړو ، ثنا خاص ستا دَ پاره ده "۔

دَ دے روایت نه معلومه شوه چه په سورة احقاف ( آیتونو ۲۹ ـ ۳۲ ) کښے دَ رسول الله صلی الله علیه وسلّم دَ خُلے مُبارکے نه پیریانو کوم قرآن اَورېدلے وُو هغه سورة رحمٰن وُو چه نبیؐ په مانځه کښے لوستلو ۔ دا دَ نبوت دَ لسم کال واقعه ده کله چه هغه دَ طائف دَ سفر نه واپس راتلو او په نخله کښے څه موده ایسار شوے وُو ۔ اګرچه په څینو نورو روایتونو کښے دا بیان شوے دے چه په هغه موقع باندِ رسول الله علیه وسلّم ته دا معلومه نهٔ وه چه پیریان ګنی دَ هغه دَ خلے نه قرآن آوری بلکه روستو الله تعالیٰ هغه ته دا خبر ورکړو چه پیریانو ستا تلاوت آورېدو ، لیکن دا خبرهٔ دَ قیاس نه لرے نهٔ ده چه لکه څنګه الله تعالیٰ نبیؐ ته دَ پیریانو دَ قرآن اَورېدو خبر ورکړے وُو دغه شان به الله تعالیٰ نبیؐ ته دا خبر هم ورکړے وی چه دَ سورة رحمٰن دَ اورېدو په وخت کښے پیریانو دَ هغے څه جواب ورکولو۔

دَ دے روایتونو نه صرف دومره قدر له معلومیږی چه سورة رحمٰن دَ سورة جِنّ او دَ سورة اَحقاف نه مخکښے نازل شوے وُو ۔ دَ دے نه روستو یو بل روایت زموږ مخے ته راځی چه دَ هغے نه دا پته لګی چه دا دَ مکّے په اولنی دَور کښے نازل شوے دے ۔ ابن اسحاق دَ حضرت عُرُوه بن زُبَیر نه دا واقعه نقل کوی چه یوه ورځ صحابه کرامو په خپلو کښے اُوویئل چه قریشو هیڅکله په اُوچت آواز دَ چانه قرآن نهٔ دے اَورېدلے ، په موږ کښے څوک دے چه یو ځل دا پاک کلام هغوئ ته واورَوِی ؟ حضرت عبدالله بن مسعود اُوویئل چه څه دا کار کوم ۔ صحابه کرامو اُوویئل زموږ سره یَره ده چه هغوی به په تا باندِ زیاتے اُوکړی ۔ زموږ په خیال کښے دا سے سړی له دا کار په کار دے چه دَ هغه خاندان زبردست وی ، چه که چرے قریش په هغه حمله اُوکړی نو چه دَ هغه دَ خاندان خلق دَ هغه مرستے له راپاسی ۔ حضرت عبدالله اُوفرمائيل ماله اجازت راکړئ چه دا کار اُوکړم ، ځما محافظ الله دے ۔ بیا هغه په رڼا ورځ حرم ته لاړو ، هلته دَ قریشو دَ سردارانو مجلسونه لګېدلی وُو ۔ حضرت عبدالله چه مقامِ ابراهیم ته اُورسیدونو په زوره ئے دَ سورة رحمٰن تلاوت شروع کړو ۔ دَ قریشو خلقو اوّل دا سوچ کولو چه عبدالله څه وائی ، بیا چه کله هغوی ته دا پته اُولګیدله چه دا هغه کلام دے کوم چه محمد صلی الله علیه وسلم دَ خدائے

دَ کلام په حیثیت سره پیش کوی نو هغوئ به هغوئ باندې حمله اُوکړه او په مخ ئې سپیړې ورکړې - لیکن عبد الله هیڅ پروا اُونهٔ کړه - هغوئ به وَهُو او هغه به تلاوت کوو - ترڅو چه دَ هغه وَس کیدو ترهغې ئې هغوئ ته قرآن اورَولو - آخر دا چه کله هغه خپلو ملګرو له واپس لاړو او ملګرو ئې پرسیدلے مخ اُولیدو نو وې وئیل چه زمونږ سره دَ دې خبرې یَره وه - هغه ورته په جواب کښې او وئیل دا دَ خدائې دُشمنان نن ماته دېر سپک ښکاری، که تاسو وایئ نو چه صباله بیا هغوئ ته قرآن واورَوم - ټولو اُو وئیل، بس دومره کافی ده - ځه چه هغوئ اَوریدل نهٔ غوښتل هغه تا هغوی ته واورَول (سیرة ابن هشام، اوّل جلد، ص ۳۳۶) -

**موضوع او مضمون** دَ قرآن مجید صرف دا یو سورة دے چه په دے کښې انسانانو ته او ورسره دَ زمکې نورا ختیار مند مخلوق یعنی پیریانو ته هم نیغ په نیغه خطاب شوے دے او دَ دواړو فکر دَ الله دَ قدرت کمالاتو ته او دَ هغه بے حسابه احساناتو ته راګرزولے شوے دے، او دواړو ته وئیلے شوی دی چه تاسو دَ الله په مقابله کښې عاجزه او بے وسه یئ، الله به ستاسو نه ستاسو دَ عملونو تپوس کوی، دَ الله تعالیٰ دَ حکمونو نهٔ منلو انجام به خراب وی او دَ حکمونو منلو انجام به ښهٔ وی - اګرچه په قرآن مجید کښې په ډیرو ځایونو کښې داسے څرګندې خبرې موجود دی چه دَ هغې نه معلومیږی چه دَ انسانانو پشان پیریان هم یو اختیار مند او جواب ورکوونکے مخلوق دے، هغوئ ته هم دَ کفر او دَ ایمان، دَ منلو او دَ نهٔ منلو آزادی ورکړے شوې ده، په هغوئ کښې هم دَ انسانانو پشان کافران او مومنان او سرکشه او منونکی خلق موجود دی، او په هغوئ کښې هم داسے ډلے شته چه هغوئ په پیغمبرانو او په آسمانی کتابونو ایمان راوړے دے، لیکن دا سورة قطعی طور دَ دې خبرې څرګندونه کوی چه دَ رسول الله صلی الله علیه وسلّم او دَ قرآن مجید دعوت دَ پیریانو او دَ انسانانو دواړو دَ پاره دے او دَ نبیؐ پیغمبری یوازې دَ انسانانو دَ حده پورې محدود نهٔ ده -

دَ سورة په شروع کښې خو خطاب انسانانو ته دے، ځکه چه دَ زمکې خلافت هم دوئ ته ورکړے شوے دے، دَ خدائې رسول هم په دوئ کښې راغلے دے، او دَ خدائې کتابونه هم دَ دوئ په ژبو کښې نازل کړے شوی دی، لیکن بیا دَ دیارلسم آیت نه اخوا انسانانو او پیریانو دواړو ته یو شان خطاب دے او یو دعوت دواړو ته پیش کړے شوے دے -

دَ سورة مضمونو په په یو خاص ترتیب سره په وړو وړو فقرو کښې نازل کړے شوی دی:

دَ آیت ۱ نه دَ ۴ پورې دا خبره شوی ده چه دَ دے قرآن تعلیم دَ الله تعالیٰ دَ طرفنه دے او دا خاص دَ هغه دَ رحمت تقاضا ده چه هغهٔ دَ دے تعلیم په ذریعه انسانانو ته نیغه لار اُوښائې، ځکه چه خاص هم هغه انسان دَ یو عقلمند مخلوق په حیثیت سره پیدا کړے دے -

په پنځم شپږم آیت کښې وئیلے شوی دی چه دَ کائناتو ټول نظام دَ الله تعالیٰ په حکم چلیږی

او دَ زمکے او دَ آسمان هرڅیز دَ هغه دَ حکم تابع دے، دلته دَ بل چا خدائی نهٔ چلیږی۔

په آیت ۷ ـ ۹ کښے یو بل اهم حقیقت دا بیان کړے شوے دے چه الله تعالیٰ دَ کائناتو دا ټول نظام ټیک ټیک په توازن سره په عدل باندِ قایم کړے دے او دَ دے نظام فطرت دا غواړی چه په دے کښے اوسیدونکی مخلوق دِ هم په خپل حد کښے دَ ننه په عدل باندِ قایم وی او توازن دِ نهٔ خرابوی۔

دَ آیت ۱۰ نه دَ ۲۵ پورے دَ الله تعالیٰ دَ قدرت ښښے بیان کړے شوی دی او هغه نعمتونو ته اشارے شوی دی چه دَ هغے نه انسانان او پیریان دواړه فائدے اُوچتوی۔

دَ آیت ۲۶ نه دَ ۳۰ پورے انسانانو او پیریانو دواړو ته دا حقیقت وریاد کړے شوے دے چه په دے کائناتو کښے دَ یو الله نه سِوا بل هیڅوک غیر فانی او بے زواله نشته او هرڅیز دَ خپل وجود او دَ خپل ضرورت دَ پاره الله ته محتاج دے۔ دَ زمکے نه واخله دَ آسمانه پورے شپه ورځ چه څه کیږی دَ هغه په حکم سره کیږی۔

دَ آیت ۳۱ نه دَ ۳۶ پورے دِ دے دواړو ډلو ته خبردارے ورکړے شوے دے چه و یر زر هغه وخت را روان دے چه ستاسو نه به پکښے تپوس کیږی۔ دَ دے تپوس نه دَ بچکیدو دَ پاره تاسو هیچرته نهٔ شئ تلے۔ تاسو هرطرفته دَ خدائے په خدائی کښے کیر یئ۔ دَ هغه نه دَ تیښتے توان په تاسو کښے نشته۔ که چرے تاسو په دے غرور کښے مبتلا یئ چه ګنی دَ هغه نه تښتیدے شئ نو اُوتښتئ څه۔

په ۳۷ ـ ۳۸ آیتونو کښے ویلے شوی دی چه دا تپوس به دَ قیامت په ورځ کیږی۔

دَ آیت ۳۹ نه دَ ۴۵ پورے دَ هغه مجرمانو انسانانو او مجرمانو پیریانو انجام ښودلے شوے دے کوم چه په دُنیا کښے دَ الله تعالیٰ نافرمانی کوی۔

او دَ آیت ۴۶ نه دَ سورة دَ آخره پورے ښه په تفصیل سره هغه انعامونه بیان کړے شوی دی کوم چه به په آخرت کښے هغه نیکانو انسانانو او پیریانو ته ورکړے کیږی چه هغوئ په دُنیا کښے دَ خدائے نه په یره یره ژوند تیر کړے وی او هرکارئے دَ دے عقیدے لاندِ کړے وی چه مونږ به یوه ورځ خدائے ته حاضریږو او زمونږ نه به زمونږ دَ عملونو تپوس کیږی۔

دا ټول تقریر دَ خطابت په انداز کښے دے۔ یوه جوشناکه او اثرناکه خطبه ده چه په هغے کښے دَ الله تعالیٰ دَ قدرت یوه یوه ښښه، دَ هغه دَ نعمتونو نه یو یو نعمت، او دَ هغه دَ بادشاهئ او دَ هغه دَ غلبے یو یو کار، او دَ هغه دَ جزاء او دَ سزا یو یو اړخ بیان کړے شوے دے او بار بار دَ انسانانو او دَ پیریانو نه دا تپوس شوے دے چه فَبِاَیِّ اٰلَآءِ رَبِّکُمَا تُکَذِّبٰنِ۔ وړاندِ به مونږ دَ دے وضاحت اُوکړو چه آلاء لفظ یو فراخه مطلب لری او دا په دے خطبه کښے په مختلفو ځایونو کښے په مختلفو معنو کښے استعمال شوے دے او دَ پیریانو او دَ انسانانو نه دا تپوس په هرځائے کښے دَ موقع او دَ محل سره خپل خاص مطلب لری۔

## سُورَةُ الرَّحْمٰنِ مَدَنِيَّةٌ

اٰیَاتُهَا ۷۸ رُکُوْعَاتُهَا ۳

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ

اَلرَّحْمٰنُ ﴿۱﴾ عَلَّمَ الْقُرْاٰنَ ﴿۲﴾ خَلَقَ الْاِنْسَانَ ﴿۳﴾ عَلَّمَهُ الْبَیَانَ ﴿۴﴾

رحمٰن دَ دے قرآن تعلیم ښودلے دے[۱]۔ هغه انسان پیدا کړو[۲] او هغه ته ئے دَ خبرو کولو چل اُوښودلو[۳]۔

[۱] یعنی دَ دے قرآن تعلیم دَ انسان ایجاد نهٔ دے بلکه دَ دے مُعَلِّم پخپله رحمٰن خدائے دے۔ دلته دَ دے خبرې دَ کولو حاجت نهٔ وو چه الله دَ قرآن دا تعلیم چا ته ښودلے دے، ځکه چه خلقو قرآن محمد صلی الله علیه وسلّم دَ خلے نه اَوریدلو، په دے وجه دَ کلام دا مدّعا پخپله معلومیدله چه دا تعلیم محمد صلی الله علیه وسلّم ته ښودلے شوے دے۔

دَ دے فقرے نه دَ شروع کولو اولنے مقصد خو دا دے چه نبیؐ پخپله دَ دے مُصَنِّف نهٔ دے بلکه دَ دے تعلیم ښودونکے الله تعالیٰ دے۔ دَ دے دَ پاسه یو دویم مقصد بل هم دے چه هغے ته لفظ رحمان اشاره کوی۔ که صرف دومره خبره کول مقصد وے چه دا تعلیم دَ الله دَ طرفنه دے، دَ نبیؐ ایجاد نهٔ دے نو دَ الله دَ اسم ذات په ځائے دَ بل اسمِ صفت دَ استعمالولو حاجت نه وُو، او که اسمِ صفت استعمالول مقصد وے نو صرف دَ دے خبرې دَ بیانولو دَ پاره دَ الله تعالیٰ دَ نومونو نه نور نومونه هم استعمالیدے شو۔ لیکن هرکله چه دَ الله، یا دَ خالق، یا دَ رزّاق وئیلو په ځائے دا اُوفرمائیلے شو چه دَ دے قرآن تعلیم رحمٰن ښودلے دے، نو دَ دے نه پخپله دا مطلب راووتو چه دَ بندګانو دَ هدایت دَ پاره دَ قرآن مجید نازلول سراسر دَ الله رحمت دے۔ الله تعالیٰ چونکه په خپل مخلوق ډیر مهربانه دے نو په دے وجه دَ هغه دا خبره خوښه نهٔ شوه چه تاسو په تیارهٔ کښے پریږدی، بلکه هغه دَ خپل رحمت په وجه دا اُوغوښتله چه دا قرآن را اُولیږی او تاسو له هغه علم درکړی چه په هغے باندِ په دُنیا کښے صحیح ژوند او په آخرت کښے کامیابی نصیب کیږی۔

[۲] یعنی هرکله چه الله تعالیٰ دَ انسان خالق دے، او دَ خالق دا ذمه واری ده چه خپل مخلوق ته هغه صحیح لار اُوښائی چه هغوی پرِ دَ خپلو پیدا کیدو مقصد پوره کړے شی، نو په دے وجه دَ الله تعالیٰ دَ طرفنه دَ قرآن نازلیدل یواز ے دَ هغهٔ دَ رحمت تقاضا نهٔ ده، بلکه دَ هغه دَ خالق کیدو هم لازمی او فطری تقاضا ده۔ خالق چه خپل مخلوق ته لار ښودنه نهٔ کوی نو نور به ئے څوک کوی؟ او چه خالق ورته لار ښودنه اُونهٔ کړی نو نور ورته څوک کولے شی؟ او دَ خالق دَ پاره دَ دے نه بل غټ عیب څه کیدے شی چه کوم څیز هغه پیدا کړی او دَ هغه څیز دَ پیدا کیدو مقصد او دَ هغے مقصد دَ پوره کولو طریقه ورته اُونهٔ ښائی؟ نو په حقیقت کښے دَ الله دَ طرفنه دَ انسان دَ تعلیم انتظام کیدل څه عجیبه خبره نهٔ ده، بلکه که دا انتظام دَ هغه دَ طرفنه نهٔ کیدلے نو بیا عجیبه وه۔ په ټول کائنات کښے چه کوم څیز هغه جوړ کړے دے هغه ئے دَ پیدا کولو نه

روستو بس هم دغسے نهٔ دے پرېښودے، بلکه هغه له ئې داسے مناسب شکل ورکړے دے چه دَ هغې په ذریعه هغه دَ فطرت په نظام کښې دَ خپلے حصّے دَ کار کولو قابل شوے دے، او دَ هغه کار دَ کولو طریقه ئې ورته ښودلې ده۔ پخپله دَ انسان دَ بدن یو یو ویخته او یو یو ذرّے (خلیّه cell) ته خپل هغه کار معلوم دے کوم چه په هغه دَ انسان په بدن کښې کوی۔ بیا آخر انسان پخپله دَ خپل خالق دَ تعلیم او دَ رهنمائیٔ نه څنګه بے حاجته کیدے شی یا څنګه محرومه کیدے شی؟ په قرآن مجید کښې دا خبره په مختلفو ځایونو کښې په مختلفو طریقو سره ښوی ده۔ دَ سورۃ لیل په دولسم آیت کښې فرمائی اِنَّ عَلَیْنَا لَلْهُدٰی۔ "لار ښودنه زمونږ ذمه واری ده"۔ دَ سورۃ نحل په نهم آیت کښې فرمائی وَعَلَی اللّٰهِ قَصْدُ السَّبِیْلِ وَمِنْهَا جَآئِرٌ۔ " دا دَ الله ذمه ده چه نیغه لار اوُښائی او کږے لارے ډیرے دی"۔ دَ سورۃ طٰهٰ په آیتونو ۴۷ ـ ۵۰ کښې دی چه کله فرعون دَ حضرت موسیٰ دَ خلے نه دَ پیغمبرئ پیغام واورید و او په حیرانتیا سره ئې تر تپوس اوُکړو چه آخر ستا هغه رب څوک دے چه ماته رسول رالیږی، نو حضرت موسیٰ ورله جواب ورکړو چه رَبُّنَا الَّذِیْٓ اَعْطٰی کُلَّ شَیْءٍ خَلْقَهٗ ثُمَّ هَدٰی۔ " زمونږ رب هغه دے چه هر څیز له ئې خاص شکل ورکړو او بیائې ورته لار اوُښودله"، یعنی هغه طریقه ئې ورته اوُښودله چه دَ هغې په ذریعه هغه په کائناتو کښې دَ خپلے حصّے کار کولے شی۔ دا هغه دلیل دے چه په دے سره یو بے ضده انسان ته دَ دے خبرے اطمینان حاصلیږی چه دَ انسان دَ تعلیم دَ پاره دَ الله تعالیٰ دَ طرفنه دَ رسولانو او دَ کتابونو راتلل بالکل دَ فطرت تقاضا ده۔

۳ په اصل کښې لفظ "بیان" استعمال شوے دے۔ دَ دے یوه معنیٰ خو اظهار ما فی الضمیر ده، یعنی دَ خبرو په ذریعه خپل مطلب او مُدعا بیانول۔ او دویمه معنیٰ ده فرق پیژندل، دلته ترے مُراد دے خیر او شر او نیکی او بدی پیژندل۔ دَ دے دواړو معنو په لحاظ سره دا وړه شان فقره پاسنے دلیل پوره کوی۔ خبرے کول داسے صفت دے چه انسان دَ څناورو او دَ زمکے دَ نورو مخلوقاتو نه جُدا کوی۔ دا تشه وینا نهٔ ده، بلکه دَ دے شاته عقل، پوهه، اراده او نور داسے ذهنی طاقتونه کار کوی چه دَ هغې نه بغیر انسان خبرے نهٔ شی کولے۔ دا وجه ده چه خبرے کول په اصل کښې دَ انسان دَ عقلمندئ او دَ اختیارمندئ څرګندہ نښه ده۔ او دا صفت چه هر کله الله تعالیٰ انسان له ورکړے دے نو ظاهره خبره ده چه دَ هغه دَ پاره دَ تعلیم هغه طریقه نهٔ شی کیدے کومه چه دَ بے عقله او دَ بے اختیاره مخلوق دَ پاره مناسب ده۔ دغه شان دَ انسان دویم اهم صفت دا دے چه الله تعالیٰ په هغه کښې یو اخلاقی حِس (Moral Sense) پیدا کړے دے چه دَ هغې په وجه هغه فطری طور په نیکیٔ او بدیٔ کښې، او په حق او ناحق کښې، په ظلم او انصاف کښې، په صحیح او غلط کښې فرق کوی او دا احساس دَ ډیرے ګمراهیٔ او دَ جهالت په حالت کښې هم دَ انسانانه نهٔ اوُزی۔ دَ دے دواړو صفتونو لازمی تقاضا دا ده چه دَ انسان دَ عقلی او اختیاری ژوند دَ پاره دِ دَ تعلیم طریقه دَ هغه پیدائشی طریقے نه مختلفه وی چه دَ هغې تر مخه مچئ لا میوو ته او مارغان الوزی، او پخپله دَ انسان په بدن کښې سترګے ته پتهیدل غړیدل او لیدل، غوږ ته آوریدل او معدے ته خوراکونه هضم کول ښودلے شوی دی۔ انسان پخپله دَ خپل ژوند په دے څانګه کښې اُستاذ او کتاب او مدرسه او تبلیغ او نصیحت او لیکل او وئیل او بحث او دلیل وغیره دَ تعلیم ذریعه منی او پیدائشی علم او پوهه کافی نهٔ ګڼړی۔ نو بیا دا خبره دِ آخر

اَلشَّمْسُ وَالْقَمَرُ بِحُسْبَانٍ ﴿۵﴾ وَّالنَّجْمُ وَالشَّجَرُ يَسْجُدٰنِ ﴿۶﴾

نمر او سپوږمۍ د یو حساب پابند دی[۴] او ستوري[۵] او ونې ټول سجده کوونکي دي[۶] -

ولې عجیبه وي چه د انسان په خالق باندې د انسان د لار ښود نے کومه ذمه واري راځي د هغې د پوره کولو د پاره هغه رسول او کتاب د تعلیم ذریعه جوړه کړې ده ؟ چه څنګه مخلوق وي هغسې د هغوی تعلیم پکار دے ، دا یوه مناسبه خبره ده - " بیان " چه کوم مخلوق ته ښوولے شوے وي د هغوی د پاره صرف " قرآن " د تعلیم ذریعه کیدے شي نۀ بله داسې ذریعه چه هغه د هغۀ مخلوقاتو د پاره مناسب وي کوم ته چه " بیان " نۀ دے ښودلے شوے -

[۴] یعني یو زبردست قانون او مضبوطه قاعده ده چه د هغې په ذریعه دا لوئې لوئې ستوري تړلے شوي دي - انسان د وخت او د ورځو او د تاریخونو او د فصلونو او د موسمونو کومه حساب په دے وجه کوي چه د نمر د راختلو او پریوتلو د مختلفو منزلونو نه د هغه تیریدو قاعده مقرر کړے شوې ده په هغې کښې څه فرق نۀ راځي - په زمکه باندې بے حسابه مخلوق په دے وجه ژوندي دي چه نمر او سپوږمۍ ټیک ټیک په حساب سره د زمکے نه په یوه خاص فاصله لرے لګولے شوي دي او په دے فاصله کښې زیاتے د صحیح حساب سره په یو خاص ترتیب باندې کیږي - او که نۀ چرته د زمکے نه د هغوی فاصلو د څه حساب نه بغیر زیات یا کم شي نو بیا خو دلته هډو ژوندے پاتے کیدل ممکن نۀ دي - دغه شان د زمکے نه ګیرچاپیره چه نمر او سپوږمۍ په خپل منځ کښې کومے چکرې وهي د هغې ترمنځه داسې مکمل تناسب قائم کړے شوے دے چه سپوږمۍ د ټولے دُنیا د پاره یوه جنتري ده چه هره شپه په باقاعدګۍ سره ټولے دُنیا ته قمري تاریخ ښائي -

[۵] په اصل کښې لفظ النَّجْمُ استعمال شوے دے چه عامه او ظاهره معنیٰ ئے ده ستوري - لیکن د عربو په لغت کښې دا لفظ د داسې بوټو د پاره هم وئیلے کیږي چه د هغې تنه نۀ وي ، مثلاً ترکاریانے خربوزے تربوزے وغیره - د مفسرینو په خپل منځ کښې په دے خبره کښې اختلاف دے چه دلته دا لفظ په کومه معنیٰ کښې استعمال شوے دے - ابن عباس ، سعید بن جُبیر ، سُدّي او سفیان ثوري د دے معنیٰ کوي " بے تنے بوټي " ، ځکه چه د دے نه روستو لفظ الشَّجَرُ ( وَنه ) استعمال شوے دے او د هغې سره دا معنیٰ زیات سمون خوري - د دے برخلاف مجاهد ، قتاده او حسنِ بصري وائي چه د نجم نه مُراد دلته هم د زمکے بوټي نۀ دي بلکه د آسمان ستوري دي ، ځکه چه هدا د دے مشهوره معنیٰ ده ، د دے لفظ په اوریدو سره د ټولو نه اوّل د سړي په ذهن کښې هم دا معنیٰ راځي ، او د نمر او د سپوږمۍ نه روستو د ستورو ذکر بالکل مناسب معلومیږي - اکثرو مفسّرینو او ترجمه کوونکو اګرچه اولے معنیٰ له ترجیح ورکړې ده ، او هغې ته هم څوک غلط نشي وئیلے ، لیکن زمونږ په نز د حافظ ابن کثیر دا رائے صحیح ده چه د ژبے او د مضمون په لحاظ سره دویم مطلب زیات د ترجیح قابل ښکاري - په قرآن مجید کښې په بل ځائے کښې هم د نجوم او د شجر د سجدے کولو ذکر راغلے دے او هلته د نجوم د ستورو نه سوا په بله معنیٰ کښې نشي اغستلے کیدے - د آیت الفاظ دا دي ، اَلَمْ تَرَ اَنَّ اللّٰهَ يَسْجُدُ لَهٗ مَنْ فِي السَّمٰوٰتِ وَمَنْ فِي الْاَرْضِ وَالشَّمْسُ وَالْقَمَرُ وَالنُّجُوْمُ وَالْجِبَالُ وَالشَّجَرُ وَالدَّوَآبُّ وَكَثِيْرٌ مِّنَ النَّاسِ . . . . . . ( الحج - ۱۸ ) .

وَالسَّمَآءَ رَفَعَهَا وَوَضَعَ الْمِيْزَانَ ﴿۷﴾ اَلَّا تَطْغَوْا فِي الْمِيْزَانِ ﴿۸﴾
وَاَقِيْمُوا الْوَزْنَ بِالْقِسْطِ وَلَا تُخْسِرُوا الْمِيْزَانَ ﴿۹﴾

آسمان هغه اُوچت کړو او ميزان ئے قائم کړو[٦] ـ نو په کار دی چه تاسو په ميزان کښے خلل وانه چوئ، ټيک ټيک په انصاف تول کوئ او په تله کښے کمے مه کوئ[٨] ـ

دلته د نجوم ذکر د شمس او د قمر سره دے او د شجر ذکر د غرونو او د ځناورو سره دے، او فرمائيلے شوی دی چه دا ټول الله ته سجده کونکی دی ـ

[٦] يعني د آسمان ستوری او د زمکے وُنے، ټول د الله حکم منی او د هغه د قانون پابند دی، کوم قانون چه د هغوی د پاره جوړ کړے شوے دے د هغے نه د ويخته هومره اخوا ديخوا کيدے نهٔ شی ـ

د دے دواړو آيتونو مقصد دا دے چه د کائناتو ټول نظام الله تعالیٰ جوړ کړے دے او خاص هم د هغه په حکم چليږی ـ د زمکے نه واخله د آسمانونو پورے نهٔ څوک اختيارمند شته، نهٔ د بل چا خدائی په دے جهان کښے چليږی، نهٔ د خدائے په خدائيئ کښے د چا دخل شته، او نهٔ څوک داسے شته چه د هغه نه معبود جوړ کړے شی ـ ټول بندګان او غلامان دی، مالک اِلٰه يو ربّ قدير دے ـ نو په دے وجه صرف توحيد حق دے چه دا قرآن ئے ښودنه کوی ـ د دے په ځائے چه څوک کفر يا شرک کوی هغه په اصل کښے د کائنات د ټول نظام سره په جنګ دے ـ

[٧] تقريباً ټولو مفسرينو دلته د ميزان (يعني د تلے) نه مُراد عدل اغستلے دے، او د ميزان قائمولو مطلب ئے دا بيان کړے دے چه الله تعالیٰ د کائناتو دا ټول نظام په عدل قائم کړے دے ـ دا بے حده او بے حسابه ستوری چه په دے فضا کښے ګرزی، دا لوئ لوئ طاقتونه چه په دے جهان کښے کار ونه کوی، او دا بے شماره مخلوق او بے شماره څيزونه چه په دے جهان کښے دی، د دے ټولو په منځ کښے که په اعلیٰ درجے سره عدل او توازن نهٔ وے قائم کړے شوے نو د دے جهان نظام د يو ساعت د پاره هم نهٔ شو چليدے ـ
خپله په دے زمکه باندِ چه کوم هوا او اُوبهٔ او مخلوقات د کروړو کالو راسے موجود دی د دے ته اُوګورئ، د دوئ ژوند خو څکه برقرار دے چه د دوئ د ژوند په اسبابو کښے پوره پوره عدل او توازن دے، که په دے اسبابو کښے د ذرے هومره بے اعتدالی راشی نو بيا به دلته د ژوند نوم او نشان پاتے نهٔ شی ـ

[٨] يعني تاسو په يو داسے متوازن نظام کښے اُوسئ چه ټول نظام ئے په عدل باندِ قائم دے، نو په دے وجه تاسو له هم پکار دی چه په عدل باندِ قائم شئ ـ تاسو له چه کوم اختيارات درکړے شوی دی په هغے کښے که تاسو بے انصافی اُوکړه، او د کومو حقدارو حقونه چه تاسو له درکړے شوی دی. هغه که تاسو اداء نهٔ کړل نو دا به د کائناتو د فطرت نه ستاسو بغاوت وی ـ د دے کائناتو فطرت ظلم او بے انصافی او حق وهل نهٔ قبلوی دلته يو لوئ ظلم کول خو غټه خبره ده، که خرځونکے په تله کښے د ذرے هومره حق هم د چا وهی نو هغه د جهان په ميزان (يعني عدل) کښے خلل را پيدا کوی ـــــــ دا د قرآن د تعليم دويمه اهمه حصه

وَالْاَرْضَ وَضَعَهَا لِلْاَنَامِ ﴿۱۰﴾ فِیْهَا فَاكِهَةٌ وَّالنَّخْلُ ذَاتُ الْاَكْمَامِ ﴿۱۱﴾ وَالْحَبُّ ذُو الْعَصْفِ وَالرَّيْحَانُ ﴿۱۲﴾

زمکهٔ[۱۰] هغهٔ د ټولو مخلوقاتو دَ پاره جوړه کړه - په هغې کښې هر قسم ډیرې ډیرې خوندناکې میوې دی - دَ کجورو ونې دی چه میوې ئې په غلافونو کښې نغښتې شوی دی - قِسما قِسم غلې دی چه په هغې کښې بُوس هم وی اودانه هم[۱۱] -

چه په دې دریوارو آیتونو کښې بیان کړې شوې دې - اولنې تعلیم توحید دې - اودویم تعلم ده عدل دې - د عنه شان په یو څو مختصرو فقرو کښې خلقوته وئیلې شوی دی چه الله تعالیٰ دَ انسان دَ لارښودنې دَ پاره کوم قرآن رالیږلې دې هغه کوم تعلیم راوړې دې -

[۹] اُوس دَ دې نه ئے دَ پښتم آیته پورې دَ الله تعالیٰ دَ هغه نعمتونو اودَ هغهٔ دَ هغه احسانونو اودَ هغه دَ قدرت دَ هغه کارنامو ذکرکیږی چه انسان او پیریان دواړه ترې فائدې حاصلوی - اودَ دې نعمتونو فطری او اخلاقی تقاضا داده چه هغوئ په خپل اختیار لو په خپله مرضا سره دَ خپل رب بندګی اوکړی -

[۱۰] اصل الفاظ دی زمکه ئے دَ "انام" دَ پاره وَضع کړه - دَ وضع کولونه مراد دې راغونډول، جوړول، تیارَول، ساتل او "انام" په عربئ ژبه کښې دَ مخلوق دَ پاره استعمالیږی چه انسانان او نور ټول ژوندی مخلوقات پکښې شامل دی - ابن عباس وائی کل شیٔ فیه الرُّوح، په انام کښې هر هغه څیز شامل دې چه په هغې کښې رُوح وی - مجاهد دَ دې معنیٰ "خلائق" کوی - قتاده، ابن زید، او شعبی وائی چه ټول ژوندی سری "انام" دی - دَ دې نه معلومه شوه چه کوم خلق دَ دې آیت نه دا حکم رااُوباسی چه زمکه دَ ریاست ملکیت دې نو هغوی یوه فضول خبره کوی - دا په قرآن کښې دَ بهرَنو نظریاتو کیښودلو یو بې پیونده کوشش دې چه نهٔ دَ آیت دَ الفاظو سره سَمُون خوری او نهٔ دَ وړاندې روستو عبارت سره - انام یوازې انسانانوته نهٔ وائی بلکه دَ زمکې نور مخلوقات هم پکښې شامل دی - اوزمکه دَ "انام" دَ پاره دَ جوړَولو مطلب دانهٔ دې چه هغه به دَ ټولو مشترکه ملکیت وی - او دَ روان عبارت نه هم دانهٔ معلومیږی چه دلته کښې یوه معاشی ضابطه بیانَول مقصد دی - دلته په اصل کښې دامقصد ښودل دی چه الله تعالیٰ دا زمکه په دې طریقه جوړه کړه او تیار ئے کړه چه دا دَ هر قِسم ژوندی مخلوقاتو دَ پاره دَ اُوسید و او په هغې کښې دَ ژوند تیرولو قابله شوه - دا پخپله داسې نهٔ ده شوی - خالق داسې جوړه کړی ده - هغه په خپل حکمت سره دا په داسې ځائے کښې کیښوده اوداسې حالات ئے په دې کښې پیدا کړل چه دَ هغې په وجه دلته ژوندی مخلوقات اُوسیدې شی - (دَ تشریح دَ پاره اُوګوره تفهیم القرآن ؛ دریم جلد، النحل حاشیې ۳ے - ۴ - ۷ - څلورم جلد، یٰسٓ، حاشیې ۲۹ - ۳۲ - المومن، حاشیې ۹۰ - ۹۱ - حٰم السجده حاشیې ۱۱ تا ۱۳ - الزُّخرُف، حاشیې ۷ تا ۱۰ - الجاثیه، حاشیه ۷) -

فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ﴿۱۳﴾ خَلَقَ الْاِنْسَانَ مِنْ صَلْصَالٍ كَالْفَخَّارِ ﴿۱۴﴾ وَ خَلَقَ الْجَآنَّ مِنْ مَّارِجٍ مِّنْ

نو اے پیریانو او انسانانو، تاسو به دَ خپل رب کوم کوم نعمتونه[۱۲] دروغ گڼئ؟[۱۳]

هغه انسان دَ ټیکرې پشان دَ وچے بوئینا کے خټے نه جوړ کړو[۱۴] او پیریان ئے دَ وور دَ لمبے نه

[۱۱] یعنی دَ انسانانو دَ پاره دا نهٔ او دَ څارووُ دَ پاره کیا۔

[۱۲] په اصل کښے لفظ آلاء استعمال شوے دے چه په وړاندینو آیتونو کښے بار بار راغلے دے او مونږه په مختلفو ځایونو کښے په مختلفو الفاظو سره دَ هغے مطلب بیان کړے دے۔ نو دَ اول شروع نه ځان په دے پوهه کول پکار دی چه دَ دے لفظ معنیٰ څومره فراخه ده او په دے کښے څومره غټ مطلب پروت دے۔

لغت والو او مفسرینو دَ آلاء معنیٰ عام طور "نعمتونه" کړی ده۔ ټولو ترجمه کونکو هم دَ دے لفظ دا ترجمه کړی ده۔ او هم دا معنیٰ دَ ابن عباس، قتاده او حسنِ بصری نه نقل کړے شوی ده۔ دَ دے معنیٰ دَ صحیح والی دَ ټولو نه غټ دلیل دا دے چه په خپله نبی صلی اللہ علیه وسلّم دَ پیریانو هغه قول نقل کړے دے چه هغوی به دَ دے آیت په بار بار اوریدو سره لَا بِشَيْءٍ مِّنْ نِّعَمِكَ رَبَّنَا نُكَذِّبُ وئیل نو په دے وجه دَ زمانے دَ ځینو محققینو دے رائے سره زمونږ اتفاق نشته چه آلاء هډو دَ نعمتونو دَ پاره استعمالیږی نهٔ۔

دویمه معنیٰ دَ دے لفظ ده قدرت او دَ قدرت کمالات او کارنامے۔ ابن جریر طبَری دَ ابنِ زید قول نقل کړے دے چه دَ فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا معنیٰ ده فَبِاَيِّ قُدْرَةِ اللّٰهِ۔ ابن جریر په خپله هم دَ ۳۷۔ ۳۸ آیتونو په تفسیر کښے لفظ آلاء دَ قدرت په معنیٰ کښے اخستلے دے۔ امام رازی هم دَ ۱۴۔ ۱۵۔ ۱۶ آیتونو په تفسیر کښے لیکلی دی: "دا آیتونه دَ نعمت بیانولو دَ پاره نهٔ بلکه دَ قدرت بیانولو دَ پاره دی"۔ او دَ ۲۲۔ ۲۳ آیتونو په تفسیر کښے هغه فرمائی " دا دَ اللہ تعالیٰ دَ قدرت دَ کارنامو په بیان کښے دی نهٔ چه دَ نعمتونو په بیان کښے"۔

دَ دے دریمه معنیٰ ده خوبیانے، ښه صفتونه او کمالات او فضیلتونه۔ دا معنیٰ لغت والو او مفسرینو نهٔ ده بیان کړی، لیکن دَ عربو په شعرونو کښے دا لفظ ډیر زیات په دے معنیٰ کښے استعمال شوے دے۔ نابغه وائی،

هم الملوک و ابناء الملوک لهم     فضلٌ علی الناس فی الآلاء والنعم

هغوی بادشاهان او شهزادگان دی۔ هغوی ته     په خوبیانو او نعمتونو کښے په خلقو باندے فضیلت حاصل دے۔

مُهَلْهِل دَ خپل روُر کُلَیب په مرثیه کښے وائی،

الحزم والعزم کانا من طبائعه     ما کل آلائه یا قوم اُحصیها

هوښیارتیا او مضبوطه اراده دَ هغه صفتونه وُو، اے خلقو، زهٔ دَ هغه ټولے خوبیانے نهٔ بیانوم۔

فَضاله بن زیـد العَدوَانِي دَ غریبَیٔ بَد بَیَانَوی او وائی چه که غریب سړے بنه کارهم اُوکړی خوبَد تـرِ جوړیږی او :

وتـعـمد الاء البخـيل المـدرهم

دَ مالدار بخیل سړي دَکمالاتو تعریفونه کیږی۔

اَجْدَع همدانی دَ خپل کُمَیت نومے آس په تعـریف کښے وائی :

ورضيت الاء الكميت فمن يبع      فرساً فليس جوادنا بمباع

"ځما دَ کُمَیت ښه صفتونه خوښ دی - که څوک آس خرڅوی نو خرڅ دِےکړی ځما آس دَ خرڅولو نهٔ دے "۔

دَ حماسے یوشاعر دے ، چه نوم ئے ابو تمّام نهٔ دے اغستلے ، هغه دَ ولید بن اُدهم دَ اقتدار مرثیه وائی ،

اذا ما امرؤ اثنی بالاء میتٍ      فلا یبعد الله الولید بن ادهما

"کله هم چه یو سړے دَ یو مړی خوبیانے بیانوی نو خدائے دِ نکړی چه ولید بن اُدهم په دے موقع هیر کړی "۔

فما کان مفراحاً اذا الخیر مسّهٗ      ولا کان منّاناً اذا هو انعما

" په هغه چه به ښه حالات راغلل نو خوشحالیدو به نهٔ او چه په چا به ئے احسان کړو نو زباتو به ئے نهٔ "۔

طَرَفه دَ یو سړی تعـریف کوی ،

کامل یجمع الاء الفتیٰ      نَبَهٌ سیّد ساداتٍ خِضَمّ

" هغه کامل دے ، په هغه کښے دَ ځوانمردئ ټول صفتونه دی - هغه شریف دے ، دَ سردارانو سردار دے "۔

دَ دے تشریحاتو ترمخه موږ ه لفظ 'اَلآء' په فراښه معنیٰ کښے اغستلے دے او په هرځائے کښے چه راته دَ موقع په لحاظ سره دَ دے کومه معنیٰ مناسبه ښکاره شوی ده هم هغه مو په ترجمه کښے لیکلی ده - لیکن په ځینو ځایونو کښے دَ یو لفظ 'اَلآء' ډیر مطلبونه کیدے شی ، او دَ ترجمے دَ مجبورئ دَ وجے نه موږ ه صرف یوه معنیٰ کړی ده ، ځکه چه په اُردو ژبه کښے (یا په پښتو ژبه کښے) دومره جامع لفظ نشته چه په هغے کښے هغه ټول مطلبونه په یو وخت پراته وی - مثلاً په دے آیت کښے دَ زمکے دَ پیدا ئش او په هغے کښے مخلوقاتو ته دَ رُوزئ رسَولو دَ انتظاماتو دَ ذکر کولو نه روستو فرمائیلے شوی دی چه تاسو به دَ خپل رب کوم کوم " آلآء" دروغ گڼړئ - دلته دَ آلآء معنیٰ یوازے نعمتونه نهٔ دی ، بلکه دَ الله دَ قدرتونو کمالات او دَ هغه ستائیلے شوی صفتونه تر هم مُراد دی ، دا دَ هغه دَ قدرت کمال دے چه هغه دا زمکه په داسے عجیبه طریقه جوړه کـړه چه په دے کښے بے شماره ژوندی مخلوقات اُوسی او قِسما قِسم میوے او غلے پکښے پیدا کیږی ، او دا دَ هغه ستائیلے شوی صفتونه دی چه هغه دَ دے مخلوقاتو دَ پیدا کولو سره دلته دَ هغوئ دَ پالنے او دَ روزئ انتظام هم اُوکړو ، او انتظام هم

په دے شان سره چه دَ هغوی په خوراک کښے یوازے غذائیت نهٔ دے بلکه په هغې کښے دَخوند رنګ هم ډیر لحاظ ساتلے شوے دے ۔ په دے سلسله کښے دَ الله تعالیٰ دَ کاریګرئ صرف یو کمال ته دَ نمونے په طور اشاره شوی ده چه دَ کجورو په ونوکښے میوه څنګه په غلاف فونو کښے نغښتے پیدا کیږی ۔ دَ دے یو مثال سره لږ شان نور اُوګورئ چه کیلے ، انار ، سنګترے، کوپره او نورے میوے څومره په کمال سره په مختلفو پردوکښے بندے کړے شوی دی ، او دا قسما قسم غلے دانے ، چه مونږه ئے په بے فکرئ سره څکُو او خورو ، په دے کښے هره یوه دانه څنګه دَ پاکو پستو ویختو اولښو او وَرو په شکل کښے بنده کړے شوی ده او په نورو نورو پوستکو کښے را نغښتے شوی ده ۔

سالہ دَ دروغ ګنړلو نه مُراد هغه مختلف عملونه دی کوم چه دا خلق دَ الله تعالیٰ دَ نعمتونو او دَ هغه دَ قدرت دَ کارنامو او دَ هغه دَ ښکلی صفتونو په معامله کښے کوی ، مثلاً :

څینی خلق هډو دا منی نهٔ چه دَ دے ټولو څیزونو خالق الله تعالیٰ دے ۔ دَ هغوی دا خیال دے چه دا ټول څیزونه دَ مادے نه اتفاقی طور پیدا شوی دی په دے کښے دَ حکمت او دَ چا دَ کاریګرئ هیڅ د خل نشته ۔ دا صفا صفا دروغ ګنړل دی ۔

څینی نور خلق دا خو منی چه دَ دے څیزونو پیدا کونکے الله دے لیکن دَ هغه سره نُور مخلوق په خدائیئ کښے شریکوی ، دَ هغه دَ نعمتونو شکریه بل چا ته ادا کوی ، او رزق دَ هغه خوری او تعریفونه دَ بل چا کوی ۔ دا دَ دروغو ګنړلو یو بل شکل دے ۔ یو سړے چه دا اُومنی چه تا په هغه فلانی احسان کړے دے ، او بیا په هغه وخت کښے ستا په مخ کښے دَ یو دا سے سړی شکریه ادا کول شروع کړی چه هغه په حقیقت کښے په هغه باندِ احسان نهٔ دے کړے ، نو ته به پخپله اُووائے چه هغه ډیره غټه نمک حرامی کړی ده ، څکه دَ هغه دا کار دَ دِے خبری څرګند ثبوت دے چه هغه ستا احسان نهٔ مَنی بلکه دَ هغه سړی احسان مَنی چه دَ چا شکریه ادا کوی ۔

څینی نور خلق دی چه دَ ټولو څیزونو خالق الله تعالیٰ مَنی او دا هم منی چه نعمت ورکونکے هم الله تعالیٰ دے لیکن دا خبره نهٔ مَنی چه هغه له پکار دی چه دَ خپل خالق حکمونه اُومَنی او دَ هغه په هدایا تو عمل اُوکړی ۔ دا دَ احسان هیرَولو او دَ نعمت نه دَ انکار کولو یو بل شکل دے ، څکه چه څوک دا کار کوی هغه دَ نعمت منلو باوجود دَ نعمت ورکوُنکی حق دروغ ګنړی ۔

څینی خلق نهٔ په ژبه دَ نعمت نه انکار کوی او نهٔ دَ نعمت ورکوُنکی حق دروغ ګنړی ، لیکن دَ هغه په عملی ژوند کښے او دَ یو اِنکار کوُنکی او دروغ ګنړونکی په ژوند کښے څه خاص فرق نهٔ وی ۔ دا په خُله دروغ ګنړل نهٔ دی بلکه په عمل سره دروغ ګنړل دی ۔

سالہ دَ انسان دَ جوړښت کومے اولنئ مرحلے چه په قرآن مجید کښے بیان کړے شوی دی هغه چه دَ مختلفو ځایونو نه راجمع کړے شی نو دَ هغې سلسله وار ترتیب دا معلومیږی :

(۱) تُراب ، یعنی خاوره ۔ (۲) طین ، یعنی خټه چه په خاوره کښے دَ اُوبو اَچولو نه جوړیږی ۔ (۳) طینِ لازب ، یعنی سلیښنا که خټه ،

نَّارٍ ﴿۱۵﴾ فَبِاَیِّ اٰلَآءِ رَبِّکُمَا تُکَذِّبٰنِ ﴿۱۶﴾ رَبُّ الْمَشْرِقَیْنِ وَرَبُّ الْمَغْرِبَیْنِ ﴿۱۷﴾ فَبِاَیِّ اٰلَآءِ رَبِّکُمَا تُکَذِّبٰنِ ﴿۱۸﴾

پیدا کړل۔[15] نو اے پیریانو او انسانانو، تاسو به دَ خپل رب دَ قدرت کومے کومے کارنامے دروغ گڼئ؟[16]

دَ دواړو مشرقونو او دَ دواړو مغربونو مالک او پروردګار هم هغه دے،[17] نو اے پیریانو او انسانانو، تاسو به دَ خپل رب کوم کوم قدرتونه دروغ ګڼئ؟[18]

---

یعنی هغه خټه چه ډیره موده پرته وی او دَ هغے په وجه پکښے سلیخ پیدا شی۔ (۴) حَمَاٍ مَّسْنُوْنٍ، هغه خټه چه بُوئ پکښے پیدا شی۔ (۵) صَلْصَالٍ مِّنْ حَمَاٍ مَّسْنُوْنٍ کَالْفَخَّارِ، یعنی هغه بوئناکه خټه چه دَ وچیدونه روستو دَ یخ شوی خټے دَ ټیکری پشان شی۔ (۶) بَشَرَ، چه دَ خاورے دَ دے آخری شکل نه جوړ شو، چه په هغه کښے الله تعالیٰ خپل خاص روح ورپوکو، چه هغه ته په فرښتو سجده اُوکړے شوه، او چه دَ هغه دَ جنس نه دَ هغه جوړه پیدا کړے شوه۔ (۷) ثُمَّ جَعَلَ نَسْلَهٗ مِنْ سُلٰلَةٍ مِّنْ مَّآءٍ مَّهِیْنٍ۔ بیا وروستو دَ هغه نسل دَ اُوبو دَ یو معمولی څاڅکی دَ ست نه شروع کړے شو چه دَ هغے دَپاره په نورو ځایونو کښے لفظ نُطفه استعمال کړے شوے دے۔

دَ دے مرحلو دَپاره دَ قرآن مجید لاندینی آیتونه په ترتیب سره اُوګورئ، کَمَثَلِ اٰدَمَ خَلَقَهٗ مِنْ تُرَابٍ (آل عمران ۔۵۹)۔ بَدَاَ خَلْقَ الْاِنْسَانِ مِنْ طِیْنٍ (السجده ۔ ۷)۔ اِنَّا خَلَقْنٰهُمْ مِّنْ طِیْنٍ لَّازِبٍ (الصّٰفّٰت ۔۱۱)۔ څلورمه او پنځمه مرحله په دے آیت کښے بیان شوی ده۔ او دَ دے روستنئ مرحلے په دے آیتونو کښے بیان کړے شوی دی، اِنِّیْ خَالِقٌ بَشَرًا مِّنْ طِیْنٍ ۝ فَاِذَا سَوَّیْتُهٗ وَنَفَخْتُ فِیْهِ مِنْ رُّوْحِیْ فَقَعُوْا لَهٗ سٰجِدِیْنَ (ص ۷۱ ۔ ۷۲)۔ خَلَقَکُمْ مِّنْ نَّفْسٍ وَّاحِدَةٍ وَّخَلَقَ مِنْهَا زَوْجَهَا وَبَثَّ مِنْهُمَا رِجَالًا کَثِیْرًا وَّنِسَآءً (النساء ۔ ۱)۔ ثُمَّ جَعَلَ نَسْلَهٗ مِنْ سُلٰلَةٍ مِّنْ مَّآءٍ مَّهِیْنٍ (السجده ۔۸)۔ فَاِنَّا خَلَقْنٰکُمْ مِّنْ تُرَابٍ ثُمَّ مِنْ نُّطْفَةٍ (الحج ۔ ۵)۔

[15] اصل الفاظ دی مِنْ مَّارِجٍ مِّنْ نَّارٍ۔ دَ نار نه مُراد یو خاص قسم اُور دے، هغه عام اُور ترے مُرا د نهٔ دے کوم چه دَ لرګی یا دَ کوئلے دَ سوزولو نه پیدا کېږی۔ او دَ مارج معنیٰ خالصه شعله ده چه په هغے کښے لوګے نهٔ وی۔ دَ دے آیت مطلب دا دے لکه څنګه چه اولنے انسان دَ خاورے نه جوړ کړے شوا بیا دَ پیدا وښت دَ مختلفو مرحلو نه تیر شو او دَ خاورے دَ کالبوت نه دَ غوښے یو ژوندے بشر جوړ شو، او وروستو دَ هغه نسل دَ نطفے نه پیدا کیدل شروع شو، دغه شان اولنے پیرے خالص دَ اُور دَ شعلے نه، یا دَ اُور دَ لمبے نه پیدا کړے شو، او روستو دَ هغه دَ بچونه دَ پیریانو نسل پیدا شو۔ دَ هغه اولنی پیری حیثیت دَ نورو پیریانو په معامله کښے هم هغه دے کوم حیثیت چه دَ آدم علیه السّلام دَ نورو انسانانو په معامله کښے دے۔ کله چه آدم علیه السّلام ژوندے بشر جوړ شو نو دَ هغهٔ او دَ هغه دَ نسلٔ دَ

بد نونو هیڅ مناسبت دَ هغه خاورے سره پاتے نهٔ شو دَ کومے نه چه هغویٔ پیدا کړے شوی وُو ـ اګرچه اوُس هم زمونږه بدن ټول دَ زمکے دَ حصونه جوړ دے ، لیکن دے حصو دَ غوښے او دَ وینے شکل اختیار کړے دے او دَ روح راتلو نه روستو هغه دَ خاورے په نسبت بالکل یو مختلف څیز جوړ شوے دے ـ دارنګے معامله دَ پیریانو هم ده ـ دَ هغوی بدن هم په اصل کښے یو آتشین بدن دے ، لیکن څنګه چه مونږه خالص دَ خاورے کالبوت نهٔ یُو دغه شان هغوی هم خالص دَ وُور شغله نهٔ ده ـ

دَ دے آیت نه دوه خبرے معلومے شوے یوه دا چه پیریان صرف یوازے رُوح نهٔ دے بلکه یو خاص قِسم مادّی بدنونه لری ، لیکن چونکه هغویٔ خالص دَ وُور دَ اجزاؤ نه جوړ دی نو په دے وجه هغوی دَ خاکی اجزاؤنه جوړ و شوو انسانانو ته په نظر نهٔ راځی ـ دے خبری ته دا آیت اشاره کوی چه ، اِنَّهٗ یَرٰىكُمْ هُوَ وَ قَبِیْلُهٗ مِنْ حَیْثُ لَا تَرَوْنَهُمْ ـ " شیطان او دَ هغه قبیله تاسو ته دَ داسے ځائے نه ګوری چه هلته تاسو هغویٔ نهٔ شئ لیدلے ( الاعراف ـ ۲۷ ) ـ دغه شان پیریان چه تیز حرکت کولے شی ، او په آسانئ سره مختلف شکلونه اختیارولے شی ، او هغه ځایونو ته په غیرمحسوس طریقے سره تلے شی کوم ځایونو ته چه دَ خاکی اجزاؤ نه جوړ شوی څیزونه نهٔ شی تلے ، نو دا ټول کارونه په دے وجه ممکن دی چه هغویٔ آتشین مخلوق دے ـ

دویمه خبره دَ دے نه دا معلومه شوه چه پیریان نهٔ یوازے دا چه دَ انسانانو نه بالکل یو جدا قِسم مخلوق دے ، بلکه دَ هغوی تخلیقی مادّه دَ انسانانو، څناورو، بوټو او جماداتو نه قطعی مختلفه ده ، دا آیت په صفا الفاظو کښے دَ هغه خلقو دَ خیال غلطی ثابتوی چه هغوی پیریان دَ انسانانو یو قِسم ګڼړی ـ هغوی دَ دے معنیٰ دا کوی چه دَ خاورے نه دَ انسان دَ پیدا کولو او دَ وُور نه دَ پیری دَ پیدا کولو مطلب په اصل کښے دَ دوو قِسمو خلقو دَ مزاجی کیفیت فرق بیانول دی ، یو قِسم خلق عاجز مزاجه وی ، او هم هغویٔ په ربښتیا انسانان دی ، او بل قِسم خلق شعله مزاجه وی ، او هغوی ته دَ انسان په ځائے شیطان و یٔل زیات صحیح دی ـ لیکن دا دَ قرآن تفسیر نهٔ دے بلکه تحریف دے بَره په حاشیه نمبر ۱۴ کښے مونږه په تفصیل سره دا و یٔلی دی چه قرآن مجید دَ خاورے نه دَ انسان دَ پیدا کیدو مطلب څومره په وضاحت سره بخپله بیانوی ـ آیا دَ دے ټولو تفصیلاتو لوستلو نه روستو یو عقلمند سړے دا مطلب راایستے شی چه دَ دے ټولو خبرو مقصد صرف دَ ښه انسانانو دَ عاجزمزاجئ تعریف بیانول دی ؟ بیا آخر دا خبره دَ یو عقلمند سړی په ذهن کښے څنګه راتلے شی چه دَ انسان دَ خاورے نه دَ پیدا کیدو ، او دَ پیریانو دَ وُور نه دَ پیدا کیدو مطلب په اصل کښے دَ یو قِسم انسان دَ دوو مختلفو مزاجونو لرونکو لو دَ جُدا جُدا اخلاقی خصوصیاتو فرق دے ؟ ( دَ زیاتے تشریح دَ پاره اوګوره تفهیم القرآن ، پنځم جلد ، تفسیر دَ سورة ذاریات ، حاشیه ۵۳ ) ـ

۱۶ دلته دَ موقعے په مناسبت سره دَ آلاء معنیٰ " دَ قدرت کارنامے " زیاته موزون ده ، لیکن په دے کښے دَ نعمت اړخ هم موجود دے ـ دَ خاورے نه انسان پیدا کول ، او دَ وُور دَ شغلے نه پیریان پیدا کول لکه څنګه چه

دَ الله تعالیٰ دَ قدرت یوه عجیبه کارنامه ده ، دغه شان دَ دې دواړو مخلوقاتو دَ پاره دا خبره یو لوی نعمت هم دے چه الله تعالیٰ یوازے هغوی پیدانهٔ کړل بلکه دَ هر یو جوړښت ئے په داسے شان سره اُوکړو او په هر یو کښے ئے داسے قوتونه او صلاحیتونه کیښودل چه دَ هغے په وجه هغوی دَ لویو لویو کارونو کولو قابل شو۔ اگرچه دَ پیریانو په حقله زمونږ سره زیات معلومات نشته، لیکن انسان خو زمونږ مخے ته موجود دے۔ انسان له چه انسانی دماغ ورکړے شوے دے او بیا ورله بدن دَ مَهِی یا دَ هوا دَ مارغه یا دَ شادو ورکړے شوے وے ، نو آیا دَ هغه بدن سره هغه دَ دې دماغو دَ صلاحیتونو څه کار اخستلے شو؟ نو آیا دا دَ الله لوی نعمت نهٔ دے چه کوم قیمتونه هغه دَ انسان په دماغو کښے کیښودلی وُو دَ هغے نه دَ کار اخستلو دَ پاره ئے ورله مناسب بدن هم ورکړو، دا لاسونه ، دا پښے ، دا سترګے ، دا غوږونه ، دا ژبه او دا نیغ بدن یو طرفته، او دا عقل او پوهه ، دا فکر او دا خیال ، دا دَ څیزونو دَ جوړولو او دَ دلیل نیولو قوتونه او صلاحیتونه بل طرفته ، دا دواړه چه دَ یو بل سره مقابله کړے شی او اُوکتے شی نو پته لږی چه جوړونکی دا دواړه په خاص تناسب سره جوړکړی دی که دا دواړه په خاص تناسب سره نهٔ وے جوړ کړے شوے نو بیا دَ انسان وجود بے مطلبه پاتے کیدو۔ بیا هم دا څیزونه دَ الله تعالیٰ په ستائیلو شُوو صفتونو باندِ هم دلالت کوی۔ آخر دَ علم ، دَ حکمت ، دَ رحمت او دَ اعلیٰ قوتِ تخلیق نه بغیر دا ر نګے انسانان او پیریان څنګه پیدا کیدے شو؟ دا معجزے هسے اتفاقاً یا دَ فطرت دَ ړوند قانون لاندِ څنګه ښکاره کیدے شوے ؟

کله دَ دوو مشرقونو او دَ دوو مغربونو مُراد دَ ژمی دَ موسم دَ ورځو نه دَ ورے ورځ او دَ ګرمئ دَ موسم دَ لویو نه دَ لویے وُرځے مشرق او مغرب هم کیدے شی ، دَ زمکے ۔ دَ دوو سرونو مشرق او مغرب هم ۔ دَ ژمی په موسم کښے دَ ټولو نه په وړه ورځ کښے نمر دَ جنوب دَ غاړے نه په ټرَسْ راخیژی او په تَرَس پریوزی ، او دَ ګرمی په موسم کښے دَ ټولو نه په لویه ورځ کښے شمال غاړے نه نیغه په نیغه راخیژی او پریوزی ۔ دَ دے دواړو په مینځ کښے نمر هره ورځ مختلف ځائے راخیژی او پریوزی چه په قرآن مجید کښے دَ دے دَ پاره په یو بل ځائے کښے دَ رَبُّ الْمَشَارِقِ وَالْمَغَارِبِ (المعارج ۔ ۴۰) الفاظ استعمال کړے شوی دی ۔ دغه شان دَ زمکے په یوه حِصَّه چه په کوم وخت کښے نمر راخیژی هم په هغه وخت کښے دَ زمکے دَ بلے حِصّے نه پنا کیږی ۔ دغه شان دَ دے نه هم دَ زمکے دوه مشرقونه او دوه مغربونه جوړیږی ۔ دَ دے وینا چه الله تعالیٰ دَ دے دواړو مشرقونو او دَ مغربونو رب دے ، ډیرے معنے دی ۔ یوه دا چه هم دَ هغه په حکم سره دَ نمر دَ راختو او پریوتو دا نظام او په کال کښے دَ نمر دَ بدلیدو را بدلیدو دا نظام قایم دے ۔ دویمه دا چه دَ زمکے او دَ نمر مالک او حاکم هم هغه دے ، که دَ دے دواړو رب جُدا جُدا وے نو بیا په زمکه باندِ دَ نمر دَ راختو او پریوتو دا باقاعده نظام به څنګه قایم شوے وے او دَ همیشه دَ پاره به څنګه قایم پاتے وے ۔ دریمه دا چه دَ دے دواړو مشرقونو او مغربونو مالک او پروردګار هم هغه دے، دَ دے په مینځ کښے چه کوم مخلوق اُوسیږی دا ټول دَ هغه ملکیت دے ، هم هغه دا ټول پالی ، او دَ دے دَ پالنے دَ پاره هغه په زمکه باندِ دَ نمر دَ راختو او پریوتو دا حِکمتی نظام قایم کړے دے ۔

مَرَجَ الْبَحْرَيْنِ يَلْتَقِيٰنِ ﴿١٩﴾ بَيْنَهُمَا بَرْزَخٌ لَّا يَبْغِيٰنِ ﴿٢٠﴾ فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ﴿٢١﴾ يَخْرُجُ مِنْهُمَا اللُّؤْلُؤُ وَ الْمَرْجَانُ ﴿٢٢﴾ فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ﴿٢٣﴾

دوه سمندرونه هغه (آزاد) پریښودل چه دَ یوبل سره یوځائے شی، خو بیاهم دَ هغوئ په منځ کښے یوه پرده لګیدلی ده چه دَ هغے نه هغوئ په یوبل ورآوړی نهٔ[19]- نوا ے پیریانواو انسانانو، تاسوبه دَ خپل رب دَ قدرت کومے کومے کارنامے دروغ ګڼړئ ؟

دَ دے سمندرونونه ملغلرلے[20] اومرجان رااُوزی[21]- نوا ے پیریانواو انسانانو، تاسو به دَ خپل رب دَ قدرت کوم کوم کمالونه دروغ ګڼړئ[22] ؟

[18] دلته هم اګرچه دَ موقع او دَ محل په لحاظ سره دَ آلاء معنیٰ "قدرت" زیاته څرګنده ښکاری ، لیکن په دے کښے دَ "نعمت" او دَ "ستائیلے شوو صفتونو" اړخ هم موجود دے - دا غټ نعمت دے چه الله تعالیٰ دَ نمر دَ ختو او دَ ډوبیدو دا قاعده مقررکړه ، ځکه چه دَ دے په وجه داسے بدل بدل فصلونه او موسمونه راپیداکیږی چه دَ هغے سره دَ انسانانو او دَ څناورو او دَ بوټوبے شماره فائدے تړلے شوی دی - دغه شان دا خو دَ الله تعالیٰ رحمت او پالنه اوحکمت دے چه هغه په زمکه کوم مخلوقات پیداکړی وُو دَ هغوی دَ ضرورتونو مطابق ئے په خپل قدرت سره دا انتظامات اُوکړل -

[19] دَ تشریح دَ پاره اوګوره تفهیم القرآن ، دریم جلد ، سورة فرقان حاشیه ۶۸-

[20] په اصل کښے لفظ مَرْجَان استعمال شوے دے - ابن عباس ، قَتاده، ابن زید او ضحاک رحمهم الله وائی چه دَ دے نه مُراد وړے ملغلری دی - اوحضرت عبدالله بن مسعودؓ فرمائی چه دا لفظ په عربئ ژبه کښے دَ مرجان (یعنی دَ یو سمندری چینجی دَ کور) دَ پاره استعمالیږی-

[21] اصل الفاظ دی يَخْرُجُ مِنْهُمَا ، " دَ دے دواړو سمندرونونه رااُوزی " اعتراض کونکی په دے اعتراز کوی چه ملغلرے اومرجان خو صرف دَ تروُواُوبونه رااُوزی، نو بیا دا څنګه اُووئیلے شو چه دَ خوږو اوتروُواُوبو دواړونه دا څیزونه رااُوزی ؟ دَ دے جواب دادے چه په سمندرونو کښے خوږے اوتروے اُوبهٔ دواړه راجمع کیږی، نو په دے وجه که دا اُووئیلے شی چه دَ دواړو دَ مجموعے نه دا څیزونه رااُوزی ، او که دا اُووئیلے شی چه شته دَ دواړو اُوبونه رااُوزی، خبره هم هغه یوه ده - اوکیدے شی چه دَ زیات تحقیق نه دا خبره ثابته شی چه دا څیزونه په سمندر کښے په هغه ځایونو کښے پیداکیږی په کوم ځائے

وَلَهُ الْجَوَارِ الْمُنْشَئٰتُ فِي الْبَحْرِ كَالْاَعْلَامِ ﴿۲۴﴾ فَبِاَيِّ اٰلَاۤءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ﴿۲۵﴾ كُلُّ مَنْ عَلَيْهَا فَانٍ ﴿۲۶﴾ وَّيَبْقٰى وَجْهُ رَبِّكَ

النصف ع ۱۱

اودا جهازونه هم دَ هغه دی[۲۳] کوم چه په سمندر کښے دَ غرونو پشان اُوچت اُوچت ولاړ دی۔ نو اے پیریانو او انسانانو، تاسو به دَ خپل رب کوم کوم احسانونه دروغ[۲۴] گڼئ؟ع

په دے[۲۵] زمکه چه هر څیز دے هغه فنا کیدونکے دے صرف ستا دَ رب جلیل او کریم ذات

کښے چه دَ سمندر دَ تل نه دَ خوړو او اُوبو چینے را اُوزی، او دَ هغوئ په پیدا کیدو او غځیدو کښے دَ دواړو قسمو اُوبو دَ را یو ځائے کیدو وخت دَ خل وی۔ په بحرین کښے چه دَ خوږو زمانے راسے په کوم ځائے کښے ملغلرے را ایستلے کیږی، هلته خو دا خبره ثابته ده چه دَ سمندر په تل کښے دَ خوږو اُوبو چینے موجود دی۔

۲۲ه دلته هم اگر چه دَ "آلاء" په معنیٰ کښے دَ قدرت اړخ څرګند دے، لیکن دَ نعمت او دَ ستائیلے شوو صفتونو اړخ هم پکښے پټ نهٔ دے۔ دا دَ خدائے نعمت دے چه دَ سمندر نه دا قیمتی څیزونه را اُوزی، او دا دَ هغه دَ پالنے انتظام دے چه کوم مخلوق له هغه دَ ښائیست سره دَ مینے کولو شوق ورکړے وُو نو دَ هغه دَ مینے دَ تسکین دَ پاره ئے قسما قسم ښکلی ښکلی څیزونه په دے دُنیا کښے پیدا کړل۔

۲۳ه یعنی خاص دَ هغه په قدرت سره جوړ شوی دی۔ هغه انسان له دا پوهه ورکړه چه په سمندر باندِ دَ پوریوتو دَ پاره جهاز جوړ کړی۔ هغه په زمکه دا سے څیزونه جوړ کړل چه دَ هغے نه جهاز جوړ ید ے شی۔ او هغه اُوبهٔ دَ دے خبری پابند کړے چه په سر باندِ ئے دَ غرونو هومره غټ غټ جهازونه ګرزید ے شی۔

۲۴ه دلته دَ "آلاء" په معنیٰ کښے دَ نعمت او دَ احسان اړخ ښکاره دے، لیکن دَ پاسنئ تشریح نه دا خبره معلومیږی چه دَ قدرت او دَ ښه صفتونو اړخ هم په دے کښے موجود دے۔

۲۵ه دَ دے ځائے نه دَ آیت ۳۰ پورے پیریان او انسانان دَ دوو حقیقتونو نه خبردار کړے شوی دی؛

یو دا چه تهٔ هم فانی ئے او هغه څیزونه هم زوال لری دَ کومو نه چه تهٔ په دُنیا کښے فائدے حاصلوے لا فانی او لا زواله خو صرف دَ هغهٔ لوی خدائے ذات دے چه دَ هغه په لوئی والی دا ټول کائنات گواهی کوی او چه دَ هغه په فضل سره تاسو ته دا نعمتونه نصیب شوی دی۔ اُوس که چرے په تاسو کښے څوک په دے غرور کښے مبتلا وی چه ځما پشان بل څوک نشته نو دا دَ هغه نهٔ سرپټوب دے۔ یو بے وقوف سړی له چه لږ شان اختیار په لاس کښے ورشی نو هغه غټے غټے خبرے شروع کړی، یا یو څو کسان چه دَ هغه په قبضه کښے ورشی نو هغوی ته دَ ځان نه خدائے جوړ کړی، نو دَ دوکے دا چل چلکے دَ څومره وخته پورے پاتے کیدے شی۔ په دے فرا ښه کائنات کښے چه دَ زمکے حیثیت دَ مټر دَ یو دانے هومره هم نهٔ دے، دَ دے په یو کوټ کښے لس شل کاله یا پنځوس شپیته کاله دَ چا خدائی او لوئی چلیدل او بیا ختمیدل، آخر څه

ذُو الْجَلٰلِ وَالْاِكْرَامِ ﴿۲۷﴾ فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ﴿۲۸﴾
يَسْــَٔلُهٗ مَنْ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ؕ كُلَّ يَوْمٍ هُوَ فِيْ شَاْنٍ ﴿۲۹﴾ ج

باقی پاتے کیدونکے دے۔ نو اے پیریانو او انسانانو، تاسو به د خپل رب کوم کوم کمالات دروغ گنړئ؟[۲۶] په زمکه او په آسمانونو کښے چه څه دی هغه ټول د هغهٔ نه خپل حاجتونه غواړی۔ هر هغه وخت په یو نوی شان کښے دے۔[۲۷]

خدائی او لوئی ده چه سرے پرِ غره شی۔

پیریانو او انسانانو ته چه د کوم دویم حقیقت خبردارے ورکړے شوے دے هغه داد ے چه د الله تعالیٰ نه سِوا نور څوک تاسو معبودان او مشکل کشا او حاجت روا جوړ وئ، خواه که هغه فرښتے وی، که پیغمبران وی، اوکه اولیاء وی، که نمر وی اوکه سپوږمئ وی یا بل قِسم مخلوق وی، په هغوی کښے یو هم ستاسو حاجت پوره کولے نهٔ شی۔ هغوئ بے وَسه خوبخپله د خپلو حاجتونو او ضرورتونو پوره کولو د پاره الله ته محتاج دی۔ د هغوئ لاسونه خو بخپله هغه ته غوړید لی دی۔ هغوی خو بخپله خپله سختنه هم په خپل طاقت نشی لرے کولے نو ستاسو نه به څه سختنه لرے کړی۔ د زمکے نه د آسمانونو پورے په دِے بے پایاوه کائناتو کښے چه څه کیږی، هغه اِکّی د یو خدائے په حکم سره کیږی۔ د هغه سره په کار کښے هیڅوک شریک نهٔ دے چه گنی هغه به د یو بنده په قسمت آثر او غور زوی۔

[۲۶] دلته د موقع او د محل نه بخپله معلومیږی چه د الاء لفظ د کمالاتو په معنیٰ کښے استعمال شوے دے۔ د فانی مخلوق نه چه هر څوک ځان ته د لوئیئ گمان اوکړی او خپل فانی اِختیارات بے زواله اوگنړی او غرور شروع کړی نو هغه که په ژبه د الله تعالیٰ عظمت او لوئیئ ته دروغ نهٔ وائی نو په خپل عمل سره ئے ضرور دروغ گنړی۔ د هغه غرور کول بخپله د الله لوئی دروغ گنړل دی، هغه چه د کمال هره دعوی په خپله ژبه کوی یا د هغے دعوی په خپل زړه کښے لری، نو هغه د اصلی کمال والا د مقام او د منصب نه انکار دے۔

[۲۷] یعنی په دے جهان کښے هر وخت د هغه د کارونو یوه نهٔ ختمیدونکی سلسله جاری ده۔ څوک وژنی او څوک ژوندی کوی۔ څوک اوچتوی او څوک را غورزوی۔ چا له صحت ورکوی او څوک په رنځ کښے مبتلا کوی۔ ډوبید ونکے بچ کوی او لا مبوزن ډوبوی۔ بے شماره مخلوق له قِسما قِسم رزق ورکوی۔ بے حسابه څیزونه د نوی نوی شکلونو او د نوو نوو صفتونو سره پیدا کوی۔ د هغه دُنیا هیچرے په یو حال نهٔ وی۔ هره گړئ د دُنیا حالات بدلیږی او بدلیږی او د هغے خالق هر ځل هغے له یو داسے نوے شکل ورکوی چه هغه د مخکینو شکلونو نه مختلف وی۔

فَبِاَيِّ اٰلَاۤءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ﴿٣٠﴾ سَنَفْرُغُ لَكُمْ اَيُّهَ الثَّقَلٰنِ ﴿٣١﴾

نواے پیریانو او انسانانو، تاسو به دَ خپل رب کوم کوم صفتونه دروغ گنړئ؟[٢٨]
اے په زمکه بانديِ بارشوو پيټو، موږ ه[٢٩] ستاسو نه دَ تپوس کولو دَ پاره ډیر زر وزگار یږو،[٣٠]

[٢٨] دلته د آلاء معنیٰ صفتونه زیات موزون ښکاری ـ هرسړے چه څه قِسم شرک کوی نو هغوی په اصل کښے دَ الله تعالیٰ یو صفت خامخا دروغ گنړی ـ که څوک دا اُووائی چه فلانی ځما نه مرض لرے کړو نو دَ دے مطلب دا دے چه الله شفا ورکووالا نهٔ دے بلکه هغه فلانے شفاورکوُنکے دے ـ که څوک دا اُووائی چه دَ فلانی بزرگ په مهربانیٔ سره ماته روزگار مِلاؤشو نو دَ دے مطلب دا شو چه الله روزی ورکولووالا نهٔ دے بلکه هغه بزرگ رُوزی رَسان دے ـ که څوک دا اُووائی چه دَ فلانی دربار نه ځما مُراد پوره شو نو دَ دے مطلب دا شو چه په دُنیا کښے دَ الله حکم نهٔ چلیږی بلکه دَ هغه دربار حکم چلیږی ـ غرض دا چه دَ شرک هره یوه عقیده او دَ شرک هره یو خبره خامخا دَ الله یو صفت ته دَ دروغو نسبت کوی ـ دَ شرک معنیٰ هم دا ده چه سړے دَ الله نه بغیر بل چا ته هرڅه اورېدونکے او هرڅه لیدونکے او په غیبو پوهه، په خپل اختیار کارکوُنکے او په هرڅه قادِر روائی او دَ دے خبری نه انکار کوی چه الله یوازے دَ دے صفتونو مالک دے ـ

[٢٩] په اصل کښے لفظ ثَقَلَان استعمال شوے دے چه مادَه ئے ثقل ده ـ دَ ثقل معنیٰ ده بیټے، او ثِقل هغه بیټے ته وئیلے شی چه دَ څورلئ دَ پاسه اَچولے شوے وی ـ دَ ثقلین لفظی معنیٰ ده "دوه بارکړے شوی بیټے"ـ دلته دا لفظ دَ پیریانو او دَ انسانانو دَ پاره استعمال کړے شوے دے ځکه چه دا دواړه په زمکه باندِ بارکړے شوی دی، او چونکه دا خبره دَ بَرَه نه هغه انسانانو او پیریانو ته کیږی چه هغوی دَ خپل رب دَ بندگیٔ نه په شا شوی دی، او وړاندِ هم خبره دَ ٣٥ آیت پورے هغوی ته ده نو په دے وجه هغوی ته اَیُّهَ الثَّقَلٰنِ لفظ وئیلے شوے دے، یعنی خالق دَ خپل مخلوق دِے دواړو نالایقو ډلو ته فرمائی چه اے ځما په زمکه باندِ بارشوو بیټو، ډیر زر څه ستاسو دَ خبر اغستو دَ پاره وزگار یږم ـ

[٣٠] دَ دے مطلب دا نهٔ دے چه په دے وخت کښے کِنی الله تعالیٰ داسے مشغول دے چه هغه ته دَ دے نافرمانو خلقو نه دَ تپوس کولو وخت نهٔ مِلاویږی ـ بلکه دَ دے مطلب په اصل کښے دا دے چه الله تعالیٰ یو خاص وخت مقرر کړے دے چه دَ هغے مطابق به هغه اوّل په دے دُنیا کښے دَ پیریانو او دَ انسانانو نسلونه دَ یوے خاصے مودے پورے پیدا کوی او هغوی له به په دُنیا کښے دَ کارکولو موقعه ورکوی ـ بیا به په یو خاص وخت کښے دَ امتحان دا وخت یو دم ختم کړے شی او کوم پیریان او انسانان چه په هغه وخت موجود وی هغوی به ټول په یَو ځل مړه کړے شی ـ بیا یو بل وخت دَ انسانانو او دَ پیریانو نه دَ تپوس کولو دَ پاره دَ هغه سره مقرر دے، کله چه هغه وخت راشی نو اوّلین او آخرین به ټول دَ ټولی سره نه بیا راژوندی کړے شی او یو ځائے ته به راغونډ کړے کړے شی ـ دَ دے خاص مقرر وخت په لحاظ سره فرمائیلے شوی دی

فَبِاَیِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ﴿۳۲﴾ یٰمَعْشَرَ الْجِنِّ وَالْاِنْسِ اِنِ اسْتَطَعْتُمْ اَنْ تَنْفُذُوْا مِنْ اَقْطَارِ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ فَانْفُذُوْا ؕ لَا تَنْفُذُوْنَ اِلَّا بِسُلْطٰنٍ ﴿۳۳﴾ فَبِاَیِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا

(بیا به اُوګورو چه) تاسو دَ خپل رب کوم کوم احسانونه دروغ ګنړئ[31] - اے دَ پیریانو او دَ انسانانو ډلے، که تاسو دَ زمکے او دَ آسمانونو دَ حدونونه بهر وتلے شئ نو اُوزئ - نهٔ شئ وتلے - دَ دے دَ پاره ډیرزور پکار دے[32] - تاسو به دَ خپل رب کوم کوم قدرتونه

چه اُوس مونږه دَ اولنی دَور کارکوو او دَ دویم دَور وخت لا نهٔ دے راغلے، نو دَ دریم دَور کار به په دے وخت کښے څنګه شروع کړے شی - لیکن تاسو بے ږیږئ مهٔ ، ډیر زر هغه وخت را روان دے چه مونږه به ستاسو دَ خبر اغستو دَ پاره وزګار شو - دَ دِے ناوزګارتیا دا مطلب نهٔ دے چه الله تعالیٰ په کار کښے داسے مشغول دے چه بل کار ته نهٔ وزګاریږی - بلکه دَ دے مثال داسے دے لکه چه یو سړی دَ مختلفو کارونو دَ پاره خاص خاص وختونه مقرر کړی وی او دَ هغے مطابق چه دَ کوم کار وخت نهٔ وی راغلے دَ هغے په باره کښے هغه اُووائی چه څه اُوس دَ هغه کار دَ پاره وزګار نهٔ یم -

[31] دلته دَ آلاء معنیٰ قدرتونه هم کیدے شی - روان عبارت ته چه اُوکتے شی نو دا دواړه معنے په یو لحاظ سره مناسبے ښکاری - که یوه معنیٰ واغستے شی نو مطلب به دا وی چه نن تاسو زمونږ دَ نعمتونو ناشکری کوئ او کفر او دَ شرک او دَ دهریت او دَ نافرمانئ په مختلفو لارو روان یئ او قِسما قِسم نمک حرامی کوئ، خو صبا له چه کله دَ تپوس وخت راشی په هغه وخت به مونږ ګورو چه زمونږ دَ کوم کوم نعمت تاسو اتفاقی حادثه، یا دَ خپل قابلیت نتیجه یا دَ یو بزرګ دَ مهربانئ کارنامه ثابتوی - که دویمه معنیٰ واغستے شی نو نو مطلب به دا وی چه نن تاسو په قیامت پورے، او په حشر نشر او حساب کتاب پورے، او په جنت دوزخ پورے تو قے کوئ او دا مو ګمان دے چه داسے هډو کیدے نهٔ شی - لیکن کله چه مونږه دَ تپوس دَ پاره تاسو راګیر کړو او هغه هر څه ستاسو مخے ته راشی چه نن تاسو دَ هغے نه انکار کوئ نو په هغه وخت کښے به مونږه اُوګورو چه تاسو زمونږ کوم کوم نعمت دروغ ګنړئ -

[32] دَ زمکے او دَ آسمانونو نه مُراد دے کائنات، یا دَ خدائے خدائی - دَ آیت مطلب دا دے چه دَ خدائے دَ ګرفت نه بچ کیدل ستاسو په وَس کښے نهٔ دی - دَ کوم تپوس چه تاسو له خبر درکړے کیږی دَ هغے وخت چه راشی نو که تاسو په هر ځائے کښے یئ اُوبه نیولے شئ - دَ هغے نه دَ بچ کیدو دَ پاره دَ خدائے دَ خدائیئ نه بهر وتل ضروری دی او هغه ستاسو په وَس کښے نهٔ دهٔ -

تُكَذِّبٰنِ ﴿۳۴﴾ يُرْسَلُ عَلَيْكُمَا شُوَاظٌ مِّنْ نَّارٍ ۙ وَّ نُحَاسٌ فَلَا تَنْتَصِرٰنِ ﴿۳۵﴾ فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ﴿۳۶﴾ فَاِذَا انْشَقَّتِ السَّمَآءُ فَكَانَتْ وَرْدَةً كَالدِّهَانِ ﴿۳۷﴾ فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ﴿۳۸﴾ فَيَوْمَئِذٍ لَّا يُسْئَلُ عَنْ ذَنْۢبِهٖۤ اِنْسٌ وَّلَا جَآنٌّ ﴿۳۹﴾

دروغ گڼئ؟ (که د تیښتې کوشش کوئ نو) په تاسو به د وُور شغله او لوګے [۳۳] در پریښودے کیږی چه د هغې مقابله به تاسو نهٔ شئ کولے - اے پیریانو او انسانانو، تاسو به د خپل رب د کومو کومو قدرتونو نه اِنکار کوئ؟

نو (څه حالت به وی په هغه وخت کښے) کله چه آسمان اُوشلیږی او د شرے خرمنے پشان [۳۴] سُور شی؟ اے پیریانو او انسانانو (په هغه وخت کښے به) تاسو د خپل رب [۳۵] کوم کوم قدرتونه دروغ گڼئ؟

[۳۶] په هغه وُرځ به د انسان او د پیری نه د هغه د گناهونو په حقله د تپوس کولو ضرورت نهٔ وی،

که دا سے څه خیال مو په زړه کښے وی نو خپل زور اُولګوی او اُوګورئ -

۳۳ه په اصل کښے الفاظ شُوَاظٌ او نُحَاسٌ استعمال کړے شوی دی - شُواظ هغه خالصے شُغلے ته وائی چه د هغې سره لوګے نهٔ وی - او نُحاس هغه خالص لوګی ته وائی چه په هغې کښے شُغله نهٔ وی - دا دواړه څیزونه به په انسانانو او پیریانو باندې په هغه حالت کښے ورپریښودے کیږی کله چه هغوی د الله تعالیٰ د تپوس نه د تیښتے کوشش کوی -

۳۴ه دا د قیامت د ورځے ذکر دے - د آسمان د شلیدو نه مُراد دے د آسمانونو تړون پرانږس کیدل، نمر او ستوری سپوږمۍ خواره واره کیدل، د عالِم بالا نظام گډوډ کیدل - او دا چه فرمائیلے شوی دی چه آسمان به په هغه وخت کښے د سرے خرمنے پشان سُور وی، نو د دے مطلب دا دے چه د قیامت په ورځ څوک د زمکے نه آسمان ته اُوګوری نو هغه ته به دا سے معلومیږی لکه چه په ټول عالِم بالا باندې یو وُور لګیدلے وی -

۳۵ه یعنی نن تاسو قیامت ناممکن گڼئ چه د هغې مطلب دا دے چه ستاسو په نز الله تعالیٰ د هغې په را وستلو قادر نهٔ دے - خو چه کله قیامت را شی او تاسو په خپلو سترګو هغه ټول هرڅه اُووینئ کوم چه تاسو ته ویلے کیږی، نو په هغه وخت کښے به تاسو د خپل رب د کوم کوم قدرت نه اِنکار کوئ؟

۳۶ه د دے تشریح دا وړاند ینئ فقره کوی چه "مجرمان به هلته د خپلو مخونو نه پیژندے کیږی"- مطلب دا دے چه په دغه گڼړه کښے ،

فَبِاَیِّ اٰلَآءِ رَبِّکُمَا تُکَذِّبٰنِ ﴿۴۰﴾ یُعْرَفُ الْمُجْرِمُوْنَ بِسِیْمٰهُمْ فَیُؤْخَذُ بِالنَّوَاصِیْ وَالْاَقْدَامِ ﴿۴۱﴾ فَبِاَیِّ اٰلَآءِ رَبِّکُمَا تُکَذِّبٰنِ ﴿۴۲﴾ هٰذِهٖ جَهَنَّمُ الَّتِیْ یُکَذِّبُ بِهَا الْمُجْرِمُوْنَ ﴿۴۳﴾ یَطُوْفُوْنَ بَیْنَهَا وَبَیْنَ حَمِیْمٍ اٰنٍ ﴿۴۴﴾ فَبِاَیِّ اٰلَآءِ رَبِّکُمَا تُکَذِّبٰنِ ﴿۴۵﴾



بیا به (اُوکتے شی چه) تاسو دواړه د لے دَ خپل رب دَ کومو کومو احسانونو نه اِنکار کوئ۔[۳۶] مجرمان به هلته دَ خپلو مخونو نه پیژندے شی او هغوئ به دَ تندی دَ ویښتونه او دَ خپونه نیوے کیږی او را بنکلے کیږی به۔ په هغه وخت کښے به تاسو دَ خپل رب کوم کوم قدرتونه دروغ گنړئ؟ (په هغه وخت کښے به اُوویلے شی) دا هم هغه دوزخ دے چه مجرمانو به دروغ گنړلو۔ دَ دغه دوزخ او دَ یشیدلو اُوبو تر مینځه به هغوئ ځی راځی۔[۳۸] بیا به دَ خپل رب کوم کوم قدرتونه تاسو دروغ گنړئ؟[۳۹]

چه ټول اولین او آخرین به راجمع شوی وی، دَ دے تپوس کولو هیڅ ضرورت نهٔ وی چه څوک څوک پکښے مجرمان دی، نهٔ به دَ انسان نه یا دَ پیری نه دَ دے تپوس کولو ضرورت وی چه هغه مجرم دے او که نهٔ دے۔ دَ مجرمانو زنګید لی مخونه او دَ هغوی یرزیږے سترګے او یرزیږے شکلونه او دَ هغوی نه بهید ونکی خولے به پخپله دَ دے دَ پاره کافی وی چه هغوی مجرمان دی۔ دَ پولیسو په ګیره کښے چه ګنهګارا او بے ګناه خلق را ګیر شی، نو دَ بے ګناه خلقو دَ مخونو اطمینان او دَ مجرمانو دَ مخونو پریشانی پخپله حال وائی چه مجرم څوک دے او بے ګناه څوک دے۔ په دُنیا کښے دا خبره اکثر ځکه غلطه ثابتیږی چه دَ دُنیا په پولیسو باندے دَ خلقو دَ انصاف کولو بروسه نهٔ وی، بلکه اکثر خو دَ هغوی دَ لاسه دَ مجرمانو په نسبت شریفان خلق زیات پریشان وی، نو په دے وجه په دُنیا کښے دا امکان شته چه دَ پولیسو په ګیره کښے شریفان خلق دَ مجرمانو نه هم زیات یرزیږوی۔ لیکن په آخرت کښے چه دَ هر شریف انسان په الله تعالیٰ باندے دَ صحیح انصاف کولو کامله بروسه وی، هلته به ډیره صرف په هغه خلقو راځی چه هغوی به دَ مجرم په حیثیت سره دَ خپل ځان نه بنه خبر وی او میدانِ حشر ته دَ رسید و سره به دَ هغوی دا یقین راغلے وی چه اُوس دَ هغوی دَ هغه سزا وخت راغلے دے چه هغوی به په دُنیا کښے ناممکن یا شکمن ګنړلو او جرمونه به ئے کول۔

[۳۷] دَ قرآن په نظر کښے دَ جرم حقیقی بُنیاد دا دے چه بنده دَ خپل رب دَ کومو نعمتونو نه فائده حاصلوی دَ هغے په حقله دا ګمان اُوکړی چه دا نعمتونه ماله چا نهٔ دی راکړی بلکه ماته پخپله ملاوُ شوی دی، یا دا نعمتونه ماله خدائے نهٔ دی راکړی بلکه ځما خپل قابلیت دے او ځما خپله خوش نصیبی

وَلِمَنْ خَافَ مَقَامَ رَبِّهٖ جَنَّتٰنِ ﴿۴۶﴾ فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا

اوهرهغه څوک چه د خپل رب په دربار کښې د پیش کیدو نه یرېږي[۴۶] د هغه د پاره دوه باغونه دي[۴۷] - د خپل رب

ده، یا دا چه راګړي خو خدائے دی لیکن د هغه خدائے په خپل بنده باندې هیڅ حق نشته، یا دا چه الله تعالیٰ ځینې لږ دا مهربانیانے په مانهٔ دی کړي بلکه بل چا پرې په سفارش کړي دي - دا هغه غلط خیالات دي چه د دے په وجه سرې د خدائے نه بے پروا او د هغه د بندګۍ نه آزاد شي او په دُنیا کښې هغه کارونه کوي چه د کومونه خدائے منع کړے وي او هغه کارونه نهٔ کوي چه د کومو حکم هغه کړے دے - په دے لحاظ سره هرجُرم او هرګناه په حقیقت کښې د الله تعالیٰ احسانونه دروغ ګنړل دي خواه که څوک په ژبه د هغې اِنکار کوي او که اِقرار - خو څوک چه په حقیقت کښې د دروغ ګنړلو اراده نهٔ لري، بلکه د هغه په ذهن کښې تصدیق موجود وي، د هغه نه چه کله ناکله د بشري کمزورۍ په وجه څه قصور اوشي نو د هغې معافي د الله تعالیٰ نه غواړي او د هغې نه د بچکیدو کوشش کوي. په دے څیز سره هغوي په دروغ ګنړونکو خلقو کښې د شاملیدو نه بچ کیږي - د دے نه سوا باقي نور ټول مجرمان په حقیقت کښې د الله تعالیٰ نعمتونه دروغ ګنړونکي دي او د هغه د اِحسانونو نه اِنکار کوونکي دي - په دے وجه اُوفرمائیلے شو چه تاسو کله د مجرم په حیثیت سره اُونیولے شئ نو په هغه وخت کښې به مونږ کورو چه تاسو زمونږ د کوم کوم احسان نه اِنکار کوئ - په سورة تکاثر کښې هم دا خبره په دے طریقه شوي ده چه لَتُسْـَٔلُنَّ يَوْمَئِذٍ عَنِ النَّعِيْمِ، په هغه ورځ به ستاسو نه د هغه نعمتونو په باره کښې ضرور تپوس کیږي کوم چه تاسوله درکړے شوي وُو - یعنی دا تپوس به کیږي چه دا نعمتونه مونږه تاسوله درکړي وُو او که نه؟ او د دے نعمتونو د مِلاویدو نه روستو تاسو د خپل محسین سره څه سلوک اُوکړو؟ او د هغه نعمتونه مو څنګه استعمال کړو.

۳۸ یعنی په دوزخ کښې به د هغوي د تندے دلاسه بد حال وي، په منډه منډه به د اُوبو چینوله ورځي خو هلته به یشید لی اُوبهٔ مِلاویږي چه د هغې په څکلو سره به تنده نهٔ مړه کیږي - دغه شان د دوزخ او د دے چینو په مینځ کښې په منډو تړړوکښې د هغوي عمرونه تیریږي -

۳۹ یعنی آیا په هغه وخت کښې به هم تاسو د دے نه انکار کولے شئ چه خدا ئے قیامت راوستے شي، تاسوله د مرګ نه روستو بیا دُوباره ژوند درکولے شي، ستاسو نه تپوس هم کولے شي، او دا دوزخ هم جوړولے شي چه په کوم کښې تاسو ته نن سزا مِلاویږي؟

۴۰ یعنی چا چه په دُنیا کښې د خدائے نه په یره یره ژوند تیرکړے وي، چه همیشه ورسره دا فکر وي چه څه په دُنیا کښې د بے مهاره اُوښ پشان نهٔ یم، بلکه یوه ورځ به څه خپل رب ته حاضر کیږم او حساب به حساب کتاب کیږي - دا عقیده یعنه د چا وي هغه به خامخا د نفس د خواهشاتو د بندګۍ نه بچ وي - په ړندو به په هره لاره نهٔ ځي - په حق او په باطل کښې، په ظلم او په انصاف کښې، په پاک او په ناپاک کښې او په حلال او په حرام کښې به تمیز کوي - او قصداً به د خدائے د حکمونو نه مخ نهٔ اړوي - هم دا د

تُكَذِّبٰنِ ﴿۴۷﴾ ذَوَاتَاۤ اَفْنَانٍ ﴿۴۸﴾ فَبِاَيِّ اٰلَاۤءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ﴿۴۹﴾
فِيْهِمَا عَيْنٰنِ تَجْرِيٰنِ ﴿۵۰﴾ فَبِاَيِّ اٰلَاۤءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ﴿۵۱﴾

کوم کوم نعمتونه به تاسو دروغ گڼئ[۴۲] ؟ دَ شنو شنو څانګونه ډک - دَ خپل رب کوم کوم نعمتونه به تا سو دروغ ګڼئ ؟ په دواړو باغونو کښے دَ دوه رواڼے چینے - دَ خپل رب کوم کوم نعمتونه به تاسو دروغ ګڼئ ؟

هغه بدلے اصل سبب دے کوم چه وړاندې بیانیږی -

[۴۱] دَ جنت اصلی معنیٰ ده باغ - په قرآن مجید کښے څو ځله هغه ټول عالم ته جنت ویلے شوے دے په کوم ځائے کښے چه به نیکان خلق ږُ وسولے کیږی ، یعنی دا چه هغه پوره یو باغ دے - او ځله فرمائیلے شوی دی چه دَ هغوی دَپاره جنتونه دی چه لاندې به ترې نهرونه بهیږی - دَ دې مطلب دا دے چه په هغه لوئ باغ کښے به بے شماره باغونه وی - او دلته خاص طور ویلے شوی دی چه هر نیک سړی له به په هغه لوئ جنّت کښے دوه دوه باغونه ورکړے کیږی چه دَ هغه دَپاره به خاص کړے شوی وی ، چه په هغې کښے به دَ هغه ماڼړۍ وی ، چه په هغې کښے به هغه دَ خپلو ملګرو او خادمانو سره دَ شاهانه شان وشوکت سره اوسیږی ، چه په هغې کښے به دَ هغه دَپاره هغه څه وی کوم چه وړاندې بیانیږی -

[۴۲] دَ دے ځائے نه دَ آخره پورے دَ آلاء لفظ دَ نعمتونو په معنیٰ کښے هم استعمال شوے دے او دَ قدرتونو په معنیٰ کښے هم - او یوا ړخ په دے کښے دَ ښو صفتونو هم دے- که اوله معنیٰ واخستلے شی نو دلته به دَ دے فقرے دَ بار بار بیانولو دا مطلب وی که تاسوئے دروغ ګڼئ نو ګڼئ ئے ، خداترسه خلقو ته خو به دَ خپل رب دَ طرفنه دا نعمتونه ضرور ملاویږی - که دویمه معنیٰ واخستلے شی نو دَ دے مطلب به دا وی که ستاسو په نزد اخرت نا ممکنه وی چه الله جنت جوړولے شی او په هغې کښے دا نعمتونه خپلو نیکو بندګانو له ورکولے شی نو وی ، الله یقیناً دَ دے قدرت لری او هغه به خامخا دا کار کوی - دَ دریمے معنیٰ په لحاظ سره دَ دے مطلب دا دے چه تاسو الله تعالیٰ داسے ګڼئ چه هغه کښې دَ نیکئ او دَ بدئ تمیز نهٔ شی کولے - ستاسو په نزد خو هغه د ومره لویه دُنیا جوړه کړی ده لیکن که په هغې کښے څوک ظلم کوی او که انصاف کوی ، که دَ حق دَپاره کار کوی او که دَ باطل دَپاره ، که شر خوروی او که خیر ، دَ هغه سره دَ دے هیڅ پروا نشته - هغه به نهٔ ظالم له سزا ورکوی او نهٔ به دَ مظلوم فریاد آوری - نهٔ دَ خیر قدردان دے او نهٔ دَ شر نه نفرت کونکے - او هغه ستاسو په خیال کښے عاجز هم دے - زمکه او آسمانونه خو هغه جوړ کړی دی، لیکن دَ ظالمانو دَ سزا دَپاره دوزخ او دَ حق پرستو دَ بدلے دَپاره جنّت نهٔ شی جوړولے - نو که تاسو هر څومره دَ هغه صفتونه دروغ ګڼئ نو ګنړئ ئے - صباله چه کله هغه ظالمان دوزخ ته ورا وغورزوی او حق پرستو له په جنت کښے نعمتونه ورکړی ، نو آیا به هغه وخت کښے به هم تاسو دے صفتونو ته دروغ ویلے شئ ؟

فِيهِمَا مِن كُلِّ فَاكِهَةٍ زَوْجَانِ ﴿٥٢﴾ فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿٥٣﴾ مُتَّكِئِينَ عَلَىٰ فُرُشٍ بَطَائِنُهَا مِنْ إِسْتَبْرَقٍ ۚ وَجَنَى الْجَنَّتَيْنِ دَانٍ ﴿٥٤﴾ فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿٥٥﴾ فِيهِنَّ قَاصِرَاتُ الطَّرْفِ لَمْ يَطْمِثْهُنَّ إِنسٌ قَبْلَهُمْ وَلَا جَانٌّ ﴿٥٦﴾

په دواړو باغونوکښې دهرے میوے دوه قِسمونه[٤٣] - تاسوبه دَ خپل رب کوم کوم نعمتونه دروغ گڼړئ؟ جنتیانوخلقوبه په داسے فرشونوباندِ ډډے وهلی وی اوناست به وی چه دَ هغے استرونه به دَدبیز ریښمونه جوړ[٤٤] وی ، او دَ باغونوڅانگے به دَ میوو دَ لاسه ښکته زنگیږی - تاسودَ خپل رب کوم کوم نعمتونه دروغ گڼړئ؟ دَ دے نعمتونو په منځ کښے به شرمناکے ښځے[٤٥] وی چه دَ دے جنتیانونه ړومبے به ورله یو انسان یا یو پیری گوتے ور وړے نهٔ وی[٤٦] -

[٤٣] دَ دے یومطلب داکید ے شی چه دَ دواړو باغونو میوے به نااُشنا نااشناوی چه یوباغ ته لاړشی نو دَ هغے څانگے به دَ یوشان میوونه ډکے وی - چه بل باغ ته لاړشی نو دَ هغے میوے به بل شان وی - دویم مطلب داهم کیدے شی چه په هرباغ کښے به یو قسم میوے دَ دُنیا دَ میوو پشان وی ، اگرچه په خوند کښے به دَ دُنیا دَ میوونه ډیرے خوند ناکے وی ، اوبل قِسم میوے به داسے نااشناوی چه په دُنیا کښے به ئے چرته په خوب کښے هم نهٔ وی لیدلی -

[٤٤] یعنی چه اَستَرے ئے داسے وی نواندازه اُولگوه چه اَبرے به ئے څنگه وی۔

[٤٥] دادَ ښځے اصلی ښه والے دے چه هغه بے شرمه او بے باکه نهٔ وی بلکه په سترگوکښے حیالری - داوجه ده چه الله تعالیٰ دَ جنت په نعمتونوکښے دَ ښځو دَ ټولو صفتونونه ړومبے دَ هغوی دَ ښائست صفت اُونهٔ کړو بلکه دَ هغوئ دَ حیا اودَ پاک لمنئ صفت ئے اُوکړو- ښکلے ښځے خوپه کلبونواو فلمی نگارخانوکښے هم راجمع کیږی ، اودَ حُسن په مقابلوکښے خوښکلی ښځه مُنتخب کیږی ، لیکن په هغوئ کښے خوصرف بداخلاقه خلق دلچسپی اغستے شی - دَ یوشریف انسان هغه حُسن نهٔ خوښیږی کوم چه هر بد نظرته دَ سیل بلنه ورکوی او دَ هرے غیرے دَ ښکلا دَپاره تیاره وی -

[٤٦] دَ دے مطلب دا دے چه دَ دُنیا په ژوندکښے که یوه ښځه بے واده مړه شوی وی اوکه دَ چا ښځه پاتے شوی وی، که ځوانه مړه شوی وی اوکه بوډئ ، په آخرت کښے چه کله داټولے نیکانے ښځے جنت ته داخلیږی نوپیغلے جونه به ترجوړے کړے شی ، اوهلته چه کومه ښځه دَ نیک سړی سره جوړه کړے کیږی نو هغه به په جنت کښے دَ خپل خاوند نه مخکښے دَ هیچا په تصرف کښے نهٔ وی راغلی -

فَبِاَیِّ اٰلَآءِ رَبِّکُمَا تُکَذِّبٰنِ ﴿۵۷﴾ کَاَنَّهُنَّ الْیَاقُوْتُ وَالْمَرْجَانُ ﴿۵۸﴾ فَبِاَیِّ اٰلَآءِ رَبِّکُمَا تُکَذِّبٰنِ ﴿۵۹﴾ هَلْ جَزَآءُ الْاِحْسَانِ اِلَّا الْاِحْسَانُ ﴿۶۰﴾ فَبِاَیِّ اٰلَآءِ رَبِّکُمَا تُکَذِّبٰنِ ﴿۶۱﴾

تاسو به دَ خپل رب کوم کوم نعمتونه دروغ ګڼرئ؟ داسے ښایسته لکه یاقوت (هیره) او مرجان (ملغلرے) ـ تاسو به دَ خپل رب کوم کوم نعمتونه دروغ ګڼرئ؟

دَ نیکئ بدله دَ نیکئ نه سِوا بله څه کید ے شی ۴۸ نو اے پیریانو او انسانانو تاسو به دَ خپل رب دَ کومو کومو ښو صفتونو نه اِنکار کوئ؟

دَ دے آیت نه یوه خبره دا هم معلومه شوه چه جنّت ته به دَ نیکو انسانانو پشان نیکان پیریان هم داخلیږی، او هلته چه څنګه دَ انسانانو سره دَ پاره انسانانے ښځے وی دَ غسے به دَ پیریانو نارینو دَ پاره پیریانے زنانه هم وی ـ دَ دواړو دَ ملګرتیا دَ پاره به جُوړے هم دَ هغوئ دَ جنس نه وی ـ داسے به نهٔ وی چه دَ هغوی جوړئ به دَ بدل جنس نه وی چه فطرتونه به ئے دَ یو بل نه مخالف وی ـ دَ آیت دا الفاظ چه "دَ هغوی نهٔ ړومبے به ورله یو انسان یا یو پیری ګوتے نهٔ وی وروړی"، دا معنیٰ نهٔ لری چه هلته به ښځے صرف دَ انسانانو نه وی او هغوی له به دَ خپلو خاوندانو نه مخکښے یو انسان یا یو پیری ګوتے نهٔ وی وروړی، بلکه دَ دے اصل مطلب دا دے چه هلته به دَ پیریانو او دَ انسانانو، یعنیٰ دَ دواړو جنسونو ښځے وی، ټولے به حیادارے پیغلے وی، نهٔ به بناپیرئ ښځے ته دَ خپل جنّتی خاوند نه مخکے یو پیری سرې ګوتے وروړی وی او نهٔ به انسانے ښځے ته دَ هغ دَ جنّتی خاوند نه مخکښے یو انسان سرې ګوتے وروړی وی ـ

۴۷ یعنی آخر دا څنګه کید ے شی چه کومو خلقو دَ الله دَ پاره په دُنیا کښے ټول عُمر په خپل نفس باندِ پابندیانے لګولی وی، دَ حرامونه ئے ځان بچ کړے وی او په حلالو باندِ ئے صبر کړے وی، خپل فرائض ئے اداکړی وی، دَ هر حقدار حق ئے اداکړے وی، او دَ شر په مقابله کښے ئے دَ خیر دَ پاره هر قِسمه تکلیفونه او مصیبتونه برداشت کړی وی، دَ هغه دا ټولے قربانیانے دِ الله عبث کړی او هغه له دِ دَ دے اَجر نهٔ ورکوی؟

۴۸ ښکاره خبره ده چه څوک دَ جنّت نه او دَ هغ دَ اجر او دَ ثواب نه منکروی هغه په اصل کښے دَ الله تعالیٰ دَ ډیرو ښو ښو صفتونو نه انکار کوی ـ هغه که څهٔ خدائے مَنی هم نو دَ دے په حقله ډیره خرابه عقیده لری ـ دَ هغه په نز خدائے یو ړوند بادشاه دے چه په بادشاهئ کښے ئے نیکی کول هسے دریاب ته خپله نیکی غورزول دی ـ هغه خو یا الله تعالیٰ یو ړوند او کوڼر بادشاه ګڼری چه هیڅ دَ ښهٔ نه

وَمِنْ دُوْنِهِمَا جَنَّتٰنِ ﴿۶۲﴾ فَبِاَيِّ اٰلَاۤءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ﴿۶۳﴾ مُدْهَآمَّتٰنِ ﴿۶۴﴾ فَبِاَيِّ اٰلَاۤءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ﴿۶۵﴾ فِيْهِمَا عَيْنٰنِ

او د دغه دوؤ باغونو نه علاوه به دوه باغونه نور وی۔[۴۹] تاسو به د خپل رب کوم کوم نعمتونه دروغ گڼړئ۔ گڼړ شنه شنه او تازه تازه باغونه۔[۵۰] تاسو به د خپل رب کوم کوم نعمتونه دروغ گڼړئ۔ په دواړو باغونو کښې دوه چینې

خبرنه دے چه د هغه په خدائی کښې څوک د هغه د رضا د پاره خپل سر او مال قربانوی۔ یا د هغه په نز الله تعالیٰ په هیڅ نهٔ پوهیږی، د ښه او بد تمیز نهٔ شی کولے۔ یا د هغه په خیال کښې الله تعالیٰ عاجزه او بے وَسه دے۔ که د نیکئ ډیر قدر ورسره وی خو د هغې بدله ورکول ئے په وَس کښې نهٔ دی۔ په دے وجه ئے اوفرمائیل چه کله په آخرت کښې د نیکئ نیکه بدله ستاسو په مخکښې ورکړے کیږی، نو آیا په هغه وخت کښې به هم تاسو د خپل رب د ستائیلو شوو صفتونو نه انکار کولے شئ۔

[۴۹] اصل الفاظ دی مِنْ دُوْنِهِمَا جَنَّتٰنِ۔ دُون لفظ په عربئ ژبه کښې د دریو مختلفو معنو د پاره استعمالیږی۔ یو، د اوچت ځیز په مقابله کښې لاندې، دویم، د غوره ځیز په مقابله کښې د کښے درجے ځیز۔ دریم، د یو ځیز نه ماسوا یا علاوه بل ځیز۔ د دے مختلفو معنو په وجه په دے الفاظو کښې یو اندازه دا ده چه هر جنتی ته به د اولنو دوؤ باغونو نه علاوه دا دوه باغونه نور ورکړے کیږی۔ دویمه اندازه دا ده چه دا دواړه باغونه به د پاسنو دوؤ باغونو په نسبت په مقام یا په مرتبه کښې کم وی۔ یعنی اولنی دوه باغونه یا خو به په اوچت ځائے باندې وی او دا به د هغې نه لاندې وی، یا به اولنی دوه باغونه د ډیرے اعلیٰ درجے باغونه وی او دا به د هغې په مقابله کښې د کښے درجے وی۔ که اولنئ اندازه واغستے شی نو د دے معنی دا ده چه دا دوه زیاتی باغونه هم د هغه جنتیانو د پاره دی کوم چه بره ذکر کړے شوی دی، او چه دویمه اندازه واغستے شی نو مطلب به دا وی چه اولنی دوه باغونه د نزدیکانو د پاره دی او دا دوه باغونه د اصحاب الیمین یعنی د ښی اړخ د مومنانو د پاره دی۔ د دویمے اندازے ته چه په څه ځیز تقویت ملاویږی هغه دا دے چه په سورة واقعه کښې د نیکانو انسانانو دوه قِسمونه بیان کړے شوی دی۔ یو سابقین، چه مقربین ورته هم وئیلے شوی دی، دویم اصحابُ الیمین، چه اصحابُ المیمنه ورته هم وئیلے شوی دی۔ او د دے دواړو د پاره د دوو جنتونو صفتونه جُدا جُدا بیان کړے شوی دی۔ د دے د پاسه دے احتمال یعنی اندازے ته هغه حدیث هم تقویت رسوی کوم چه د حضرت ابوموسیٰ اشعری نه خپل ځوی ابوبکر روایت کړے دے۔ په هغې کښې هغه فرمائی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل، دوه جنتونه به د سابقینو، یا مقربینو د پاره وی چه لوښی او د ښائست هر ځیز به ئے د سرو زرو وی، او دوه جنتونه به د تابعینو، یا د اصحاب الیمین د پاره وی چه د هغې هر ځیز به د سپینو زرو وی، فتح الباری کتاب التفسیر تفسیر سورة رحمٰن)۔

[۵۰] د دے باغونو په تعریف کښې لفظ مُدْهَآمَّتٰنِ استعمال شوے دے۔ مُدْهَامَّه داسے گڼ شینوالی

نَضَّاخَتٰنِ ﴿۶۶﴾ فَبِاَیِّ اٰلَآءِ رَبِّکُمَا تُکَذِّبٰنِ ﴿۶۷﴾ فِیۡہِمَا فَاکِہَۃٌ وَّ نَخۡلٌ وَّ رُمَّانٌ ﴿۶۸﴾ فَبِاَیِّ اٰلَآءِ رَبِّکُمَا تُکَذِّبٰنِ ﴿۶۹﴾ فِیۡہِنَّ خَیۡرٰتٌ حِسَانٌ ﴿۷۰﴾ فَبِاَیِّ اٰلَآءِ رَبِّکُمَا تُکَذِّبٰنِ ﴿۷۱﴾ حُوۡرٌ مَّقۡصُوۡرٰتٌ فِی الۡخِیَامِ ﴿۷۲﴾ فَبِاَیِّ اٰلَآءِ رَبِّکُمَا تُکَذِّبٰنِ ﴿۷۳﴾

دَ فوارو پشان خوټکید ونکی ۔ تاسو به دَ خپل رب کوم کوم نعمتونه دروغ گڼړئ ؟ په دواړو کښے ډیرے ډیرے میوے او کجورے او انار ۔ تاسو به دَ خپل رب کوم کوم نعمتونه دروغ گڼړئ ؟ دَ دے نعمتونو په منځ کښے به نیک خویه او ښایسته بیبیانے وی ۔ تاسو به دَ خپل رب کوم کوم نعمتونه دروغ گڼړئ ؟ په خیمو کښے ساتلے شوی حُورے[اله] به وی ۔ تاسو به دَ خپل رب کوم کوم نعمتونه دروغ گڼړئ؟

ته وائی چه دَ ډیر شینوالی دَ وجے نه توروالی ته مائلے شوے وی ۔

اله دَ حُورو دَ تشریح دَ پاره اُوګوره تفهیم القرآن ۴ څلورم جلد، تفسیر دَ سورة صافات، حاشیه ۲۸ ۔ ۲۹ ۔ او تفسیر دَ سورة دُخان حاشیه ۴۲ ۔ دَ خیمو نه مُراد غالباً هغه قسم خیمے دی چه دَ امیرانو او سردارانو دَ پاره دَ سیل په ځایونو کښے لګولے کیږی ۔ غالب ګمان دا دے چه دَ جنتیانو بیبیانے به دَ هغوی سره دَ هغوی په ماڼرو کښے وی او دَ هغوی دَ سیل په ځایونو کښے به ځا په ځائے خیمے لګیدلی وی چه په هغے کښے به دَ هغوی دَ لطف او دَ آرام دَ پاره حُورے وی ۔ زمونږ دَ دے قیاس بُنیاد دا دے چه اول دَ نیک خویه او ښایسته بیبیانو ذکر شوے دے ۔ دَ هغے نه روستو اُوس دَ حورو ذکر کولو مطلب دا دے چه دا به دَ هغه بیبیانو نه جدا قسم ښځے وی ۔ دَ دے قیاس ته زیات تقویت دَ هغه حدیث نه حاصلیږی کوم چه دَ حضرت امّ سلّمے نه روایت کړے شوے دے ۔ هغه فرمائی چه "ما دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم نه تپوس اُوکړو چه اے دَ الله رسوله دَ دُنیا ښځے بهتر دی او که حُورے ؟ نبیؐ جواب ورکړو، چه دُنیا ښځے دَ حُورو نه هغسے غوره دے لکه څنګه چه اَبرے دَ استر نه غوره وی ۔ ما تپوس اُوکړو چه په کومه وجه ؟ نبیؐ اُوفرمائیل چه دَ دُنیا ښځو مونځونه کړی دی، روژے نیولی دی او عبادتونه ئے کړی دی" (طبرانی) ۔ دَ دے نه معلومه شوه چه دَ جنتیانو بیبیانے به هغه ښځے وی کومو چه په دُنیا کښے ایمان راوړے وی او نیک عملونه ئے کړی وی او هم په دے حالت کښے دَ دُنیا نه رخصت شوی وی ۔ دوئ به دَ خپل ایمان او دَ نیک عمل په وجه جنّت ته داخلیږی او پخپله به دَ جنّت دَ نعمتونو حقدارے وی ۔ دوئ به دَ خپلے مرضئ او دَ خپلے خوښے مطابق یا خو دَ خپلو مخکینو خاوندانو بیبیانے وی، په دے شرط چه هغوی هم جنتیان وی، یا به بیا الله تعالیٰ دوئ یو بل جنّتی ته ورواده کړی، خو هله چه هغوئ دواړه دَ یو بل ملګرتیا خوښه کړی ۔ پاتے شوے حُورے، نو هغوئ به دَ څه نیک عمل په وجه جنتیانے نه وی، بلکه الله تعالیٰ به دَ جنّت دَ نورو نعمتونو پشان

لَمْ يَطْمِثْهُنَّ إِنْسٌ قَبْلَهُمْ وَلَا جَانٌّ ﴿٧٤﴾ فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿٧٥﴾ مُتَّكِئِينَ عَلَىٰ رَفْرَفٍ خُضْرٍ وَعَبْقَرِيٍّ حِسَانٍ ﴿٧٦﴾ فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿٧٧﴾ تَبَارَكَ اسْمُ رَبِّكَ ذِي الْجَلَالِ وَالْإِكْرَامِ ﴿٧٨﴾

دَ دے جنتیانونه رومبے به ورله نهٔ یو انسان اونهٔ یو پیری گوتے وروړی وی۔ تاسو به دَ خپل رب کوم کوم نعمتونه دروغ گڼئ؟ هغه جنتیان به په شنو قالینونو او سوتره او نا اشنا فرشونو۵۲ باندِ ناست وی او ډِډے به ئے وهلی وی۔ تاسو به دَ خپل رب کوم کوم نعمتونه دروغ گڼئ؟

ډیر برکتناک دَے دَ جلیل او کریم رب نوم۔ ع

هغوئ هم دَ جنتیانو دَ پاره دَ یو نعمت په طور پیغلے او ښایسته کړی او جنتیانو له به ئے ورکړی دَ پاره دَ دے چه جنتیان دَ هغوئ په ملگرتیا سره خوشحاله وی۔ لیکن دا به دَ پیریانو او دَ ښاپیرو دَ قِسم نه نهٔ وی، ځکه چه انسان هیڅکله هم دَ بدل جنس دَ ملگرتیا سره اشنا کیدے نهٔ شی۔ په دَے وجه غالب گمان دا دے چه دا به هغه ماشومانے جینکئ وی چه دَ وړوکوالی په حالت کښے مړے شی او مُورا و پلار ئے دَ جنت مستحق نهٔ وی چه کِنی دَ هغوئ دَ اولاد په حیثیت سره دَ هغوئ سره جنت ته بوتلے شی۔

۵۲ہ په اصل کښے لفظ عَبْقَرِی استعمال شوے دَے۔ دَ جاهلیت په زمانه کښے دَ عربو په افسانو کښے دَ پیریانو دَ دارالسلطنت نوم عَبْقَر وو چه موږ ورته په اُردو ژبه کښے پرستان (او په پښتو ژبه کښے دَ ښاپیرو ښار) وایو۔ دَ هغے په نسبت سره دَ عربو خلق هر سوتره او نا اشنا څیز ته عَبْقَرِی وائی، یعنی هغه دَ ښاپیرو دَ ښار څیز دے چه مقابله ئے دَ دے دُنیا عام څیزونه نشی کولے۔ آن تر دے پورے چه دَ هغوی په ژبه کښے داسے سړی ته هم عَبْقَرِی وئیلے کیدے شی چه هغه دَ اُوچت قابلیت مالک وی، چه نا اشنا نا اشنا کارنامے کوی۔ په انگریزئ ژبه کښے (Genius) هم دَ دے معنیٰ دَ پاره استعمالیږی، او هغه هم دَ (Genii) نه را اغستے شوے دے چه دَ جِن په معنیٰ دے۔ په دے وجه دلته دَ عربو خلقو ته دَ جنت دَ څیزونو دَ صفائئ او دَ خوبئ دَ ښودلو دَ پاره عَبْقَرِی لفظ استعمال کړے شوے دے۔

# الواقِعَة

**نوم** | داولنی آیت لفظ الْوَاقِعَه ‌دَ دے سورة نوم کیښودلے شوے دے۔

**دَ نازلیدو زمانه** | حضرت عبدالله بن عباس رضؓ چه دَ سورتونو دَ نازلیدو کوم ترتیب بیان کړے دے په هغې کښے هغه فرمائی چه اول سورة طٰهٰ نازل شو، بیا الواقعه او دَ هغې نه روستو الشعراء (الاتقان للسیوطی)۔ دا ترتیب عِکرمه هم بیان کړے دے (بیهقی، دلائل النبوّة)۔

دَ دے تائید دَ هغه قیصّے نه هم کیږی کومه چه دَ حضرت عمر رضی الله عنه دَ ایمان راوړلو په باره کښے ابن هِشام دَ ابنِ اسحاق نه نقل کړی ده۔ په هغې کښے دادی چه کله حضرت عمر رضی الله عنه دَ خپلے خور کره ورننوتو نو سورة طٰهٰ لوستلے کیدو۔ دَ هغه دَ خپو کشا چه ئے واوریده نو هغوی دَ قرآن پاڼړے پټے کړے۔ حضرت عمرؓ خو اول په خپل اوښی باندِ ګوزار اوکړو او چه کله دَ هغه خور دَ خپل خاوند دَ بچ کولو دَ پاره راغله نو هغه ئے هم اُووهله اَو ترد ے چه سر ئے مات شو۔ دَ خور دَ سر وینے چه ئے اُولیدے نو حضرت عمرؓ سخت شرمنده شو او وے وئیل چه مانه هغه صحیفه اُوښایئ کومه چه تاسو پټه کړی ده۔ چه اُوخو ګورم چه په هغې کښے څه لیکلی دی۔ خور ورته اُووے، "ته دَ شرک په وجه پلیت ئے، وَاِنَّهٗ لَایَمَسُّهَا اِلَّا الطَّاهِر، "دِے صحیفے له صرف پاک سړے ګوتے وړو وړے شی"۔ نو حضرت عمرؓ راپاسیدو او غسل ئے اُوکړو او بیائے هغه صحیفه واخستله او ئے لوستله۔ دَ دے نه معلومه شوه چه په هغه وخت کښے سورة واقعه نازل شوے وُو، ځکه چه هم په دے کښے لَا يَمَسُّهٗۤ اِلَّا الْمُطَهَّرُوْنَ آیت نازل شوے دے۔ او دا خبره تاریخی طور ثابته ده چه حضرت عمرؓ دَ حبشے دَ هجرت نه روستو دَ نبوّت په پنځم کال کښے ایمان راوړے دے۔

**موضوع او مضمون** | دَ آخرت، دَ توحید او دَ قرآن په حقله چه دَ مکے دَ کافرانو کوم شکونه وُو دَ هغې لرے کول دَ دے سورة موضوع ده۔ دَ ټولو نه زیات چه په کوم څیز دَ هغوی یقین نهٔ وُو هغه دا وُو چه قیامت به راځی، دَ زمکے او دَ آسمان ټول نظام به ګډوډیږی او بیا به ټول مړه شوی انسانان دوباره راژوندی کیږی او دَ هغوی سره به حساب کتاب کیږی، نیکان خلق به دَ جنّت په باغونو کښے وی او ګنهګار خلق به دوزخ ته غورزولے کیږی۔ هغوی وئیل چه دا ټولے خیالی خبرے دی دَ دے کیدل ممکن نهٔ دی۔ دَ دے په جواب کښے فرمائی چه کله قیامت راشی نو په هغه وخت کښے به څوک دا دروغ نهٔ وائی چه دا قیامت نهٔ دے، نهٔ به دَ چا دا طاقت وی چه هغه منع کړی، یا دَ واقعے نه غیر واقعه جوړه کړی۔ په هغه وخت کښے به ټول انسانان لازماً په دریو طبقو کښے تقسیمیږی۔ یوه طبقه، سابقین۔ دویمه طبقه، عام صالحین۔ دریمه طبقه هغه خلق چه دَ آخرت نه منکر وی او دَ مرګه پورے په کفر او شرک او په لویه ګناه باندِ ټینګ وی۔ دَ دے دریوارو طبقو سره چه به کومه معامله کیږی هغه په تفصیل سره دَ آیت ۷ نه دَ آیت ۵۶ پورے بیان کړے شوی ده۔

دَ دے نه روستو دَ آیت ۵۷ نه دَ آیت ۷۴ پورے چه دَ مکے کافرانو دَ اسلام دَ کومو بُنیادی عقیدو، یعنی توحید او آخرت نه اِنکار کولو دَ هغې په صداقت باندِ پرلپسے دلیلونه ورکړے شوی دی۔

په دې دليلونو کښې د زمکې او د آسمان نور ټول څيزونه پرېښودې شوي دي او د انسان توجه ځنې له د هغه خپل وجود ته او هغه خوراکونو ته چه هغه يې خوري او هغه اوبو ته چه هغه يې څکي او هغه اُور ته چه هغه پرخپل خوراکونه پخوي، راګرزولې شوې ده، او هغه ته په دې خبره باندې د غور فکر کولو دعوت ورکړې شوې دې چه ته کوم خدائې پيدا کړې يې او د کوم خدائې په څيزونو ګذران کوې د هغه په مقابله کښې آخر تا ته څه حق حاصل دې چه خپل واکه شې، يا د هغه نه سِوا د بل چا بندګي شروع کړې؟ او د هغه په حقله تا دا ګمان څنګه اُوکړو چه ته ئې يو ځل پيدا کړې او ستا د يو ځل پيدا کولو نه روستو بيا داسې عاجزه شو چه که دوباره تا پيدا کول غواړي هم خونه يې شي پيدا کولې۔

بيا د آيت ۷۵ نه د آيت ۸۲ پورې د هغوئ د هغه شکرونو ترديد شوې دې کوم چه په هغوئ د قرآن په باره کښې کول او د هغوی فکر دې خبرې ته راګرزولې شوې دې چه بد نصيبو، دا لوئ نعمت تاسو ته راغلې دې او تاسو د دې نه د فائدې اغستلو په ځائې اُلټا د دې نه بې پروائي کوئ او دروغ يې ګڼړئ۔ د قرآن په صداقت باندې په دوه مختصرو فقرو کښې دا بې مثاله دليل پيش کړې شوې دې چه که څوک په دې غور اُوکړي نو په دې کښې به د ننه هغسې محکم نظام بيا مومي لکه څنګه چه د کائناتو د ستورو نظام محکم دې، او دا د دې خبرې دليل دې چه د دې مصنّف هم هغه دې چا چه د کائناتو دا نظام جوړ کړې دې۔ بيا کافرانو ته وئيلې شوي دي چه دا کتاب په داسې ځائې کښې ليکلې پروت دې چه هلته د مخلوق لاس نهٔ وُررسي۔ ستاسو دا خيال دې چه شيطانان دا قرآن محمّد صلی الله عليه وسلّم ته راوړي، حالانکه دا چه د لوحِ محفوظ نه د محمد صلی الله عليه وسلّم پورې په کومه ذريعه رارَسي په هغې کښې د پاکو او بزرګو فرښتو نه سوا بل د هيچا يوه ذرّه دخل نشته۔

په آخر کښې انسان ته وئيلې شوي دي چه که تهٔ هرڅومره اُوچتې اُوچتې خبرې اُوکړې او د خپل واکئ په غرُور کښې هرڅومره د حقيقت نه سترګې بندې کړې خو د مرګ وخت ستا د بيدارولو د پاره کافي دې۔ په هغه وخت کښې تهٔ بالکل بې وَسه يې۔ خپل مور او پلار نهٔ شې بچ کولې۔ خپل اولاد نشې بچ کولې۔ خپل مشران او خوارهٔ لېډرا نهٔ شې بچ کولې۔ ټول ستا په مخ کښې مري او تهٔ ور ته هسې ګورې۔ که چرې يو اُوچت طاقت ستا د پاسه د حاکم په حيثيت نشته او ستا دا ګمان صحيح دې چه په دُنيا کښې بس تهٔ هرڅه هرڅه يې، خدائې وغيره نشته، نو د يو مړکيدونکي وتونکي رُوح ولې نهٔ واپس کوې؟ لکه څنګه چه تهٔ په دې معامله کښې بې وَسه يې دغه شان د خدائې حساب کتاب او د هغه جزا او سزا منع کول هم ستا په اختيار کښې نهٔ دي۔ تهٔ يې که مَنې او که نهٔ، د مرګ نه روستو به هرسړې خپل انجام خامخا وِيني۔ که په نزديکانو کښې يې نو د نزديکانو انجام به وِيني۔ که په نيکانو صالحانو کښې يې نو د صالحانو انجام به وينې۔ او که په دروغ ګڼړونکو ګمراهانو کښې يې نو هغه انجام به وينې کوم چه د داسې مجرمانو د پاره مقرّر دې۔

## سُورَةُ الْوَاقِعَةِ مَكِّيَّةٌ

ایاتها ۹۶ — رکوعاتها ۳

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ

إِذَا وَقَعَتِ الْوَاقِعَةُ ﴿١﴾ لَيْسَ لِوَقْعَتِهَا كَاذِبَةٌ ﴿٢﴾ خَافِضَةٌ رَّافِعَةٌ ﴿٣﴾ إِذَا رُجَّتِ الْأَرْضُ رَجًّا ﴿٤﴾ وَّبُسَّتِ الْجِبَالُ

هرکله چه هغه کیدونکی واقعه راشی نودَ هغې راتلل به هیڅوک دروغ نهٔ گڼړی[1] - هغه به ښکته کوونکې پورته کوونکې آفت وی[2] - زمکه به په هغه وخت کښې ناساپه اوچړقولې شی[3] او غرونه به دا سې ریـزه ریـزه

[1] دَ دے فقرے نه دَ شروع کولو مطلب څرګند دا معلومیږی چه دا دَ هغه خبرو جواب دے کوم چه به په هغه وخت کښې دَ کافرانو په مجلسونو کښې دَ قیامت خلاف کیدلے - دا هغه زمانه وه چه دَ مکې خلقو به دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم دَ خُلے مبارکے نه دَ نوی اسلام دعوت اَوریدلو - په هغې کښې چه به کوم شیز هغوی ته دَ ټولونه زیات نا اشنا او دَ عقل نه لرے ښکاریدو هغه دا وُو چه یوه ورځ به دَ زمکې او دَ آسمان دا ټول نظام ګډ وډ شی او بیا به یو بل جهان جوړ شی چه په هغې کښې به وړاندې روستو مړه شوی خلق ټول دوباره راژوندی کړے شی - دَ دے خبرو په اوریدو سره به هغوئ اریان دریان پاتے شو - هغوئ به وئیل چه دا سے کیدل بالکل نا ممکن دی - آخر دا زمکه، دا غرونه، دا سمندرونه، دا سپوږمئ او دا نمر به کوم خواته ځی؟ په سوَونو کاله مخکښې مړه شوی خلق به څنګه راژوندی شی؟ دَ مرګ نه روستو دوباره ژوند، او بیا په هغې کښې دَ جنت باغونه او دَ دوزخ وُور، آخر دا خیالی خبری مونږ ه دَ عقل سره څنګه اُومنو؟ دا خبری به په هغه وخت کښې په مکه کښې په هرځائے کښې کیدلے - دَ دے خبرو په جواب کښې اُوفرمائیلے شو چه کله هغه کیدونکی واقعه راشی نو په هغه وخت کښې به ئے هیڅوک دروغ نهٔ گڼړی -

په دے آیت کښې دَ قیامت دَ پاره لفظ "واقعه" استعمال کړے شوے دے چه معنیٰ ئے تقریباً هم هغه ده کومه چه زمونږ په ژبه کښې وئیلے کیږی چه دا کار خامخا کیدونکے دے - بیا دَ دے کیدو ته "وَقَعَة" وئیلے شوے دے چه په عربئ ژبه کښې دَ هغه لوئ کار دَ پاره استعمالیږی کوم چه ناساپه اُوشی - دَ لَيْسَ لِوَقْعَتِهَا كَاذِبَةٌ دوه معنے کیدے شی - یوه دا چه دَ هغې نهٔ کیدل او په راتلو راتلو کښې دَ هغې ختمیدل او دَ هغې مخه بل طرفته اړول به ممکن نهٔ وی، یعنی یو طاقت به بیا دَ هغې مقابله نشی کولے - دویمه دا چه په هغه وخت کښې به هیڅوک دا دروغ نهٔ وائی چه هغه واقعه نهٔ ده راغلی -

[2] اصل الفاظ دی خَافِضَةٌ رَّافِعَةٌ، "راغورزوونکے او اُوچتوونکے". دَ دے یو مطلب دا کیدے شی چه هغه به هرڅه پاسترکړی - لاندې څیزونه به بره شی او بره څیزونه به

بَسًّا ۝۵ فَكَانَتْ هَبَآءً مُّنۢبَثًّا ۝۶ وَّكُنْتُمْ اَزْوَاجًا ثَلٰثَةً ۝۷ فَاَصْحٰبُ الْمَيْمَنَةِ ۙ۬ مَآ اَصْحٰبُ الْمَيْمَنَةِ ۝۸ وَاَصْحٰبُ الْمَشْـَٔمَةِ ۙ۬ مَآ اَصْحٰبُ الْمَشْـَٔمَةِ ۝۹ وَالسّٰبِقُوْنَ السّٰبِقُوْنَ ۝۱۰ اُولٰٓئِكَ الْمُقَرَّبُوْنَ ۝۱۱ فِيْ جَنّٰتِ النَّعِيْمِ ۝۱۲

کړے شی چه خوره وره دوړه به ترجوړه شی۔
تاسو به په هغه وخت کښے په دریو ډلو کښے تقسیم شئ [۳]:
ښی لاس والا [۵]، نو د ښی لاس د خلقو (د خوش نصیبئ) به څه وائے۔
او گس لاس والا [۶]، نو د گس لاس د خلقو (د بد نصیبئ) به څه ځائے وی۔
او وړاندې خلق خو وړاندې دی [۷]۔ هغوی خو خاص نزدیکان خلق دی۔ د نعمتونو نه په ډکو جنتونو کښے به اوسی۔

لاندې شی۔ دویم مطلب دا هم کیدے شی چه هغه به غورزیدلی شوی خلق اوچتوی او اوچت شوی خلق به راغورزوی، یعنی د هغے په راتلوسره به د انسانانو په منځ کښے د د عزت او د ذلت فیصله په یوبل بنیاد باندې وی۔ چاچه په دنیا کښے ځان غټ گڼړو هغه به ذلیله شی او څوک چه ذلیله گڼړلے کیدل هغوی به عزتمند شی۔

[۳] یعنی هغه زلزله به په یوه خاصه علاقه باندې نهٔ وی، بلکه ټوله زمکه به په یو وخت اوجړ ولے شی۔ هغه به ناساپه یوزبردست جړق اووهی چه د هغے سره به په خوزیدو شی۔

[۴] خبره اگرچه په ظاهره هغه خلقوته چاته چه دا کلام اورولے کیدو، یائے چه اوس څوک اولولی یائے واوری، لیکن په اصل کښے دا خبره ټولو انسانانوته ده، کوم انسانان چه د اوّل نه د قیامته پورے پیدا شوی دی هغوی ټول به په دریو ډلو کښے تقسیم شی۔

[۵] په اصل کښے لفظ اَصْحَابُ الْمَيْمَنَه استعمال شوے دے۔ مَيْمَنَه د عربی قاعدے مطابق د یَمِین نه هم کیدے شی چه معنیٰ ئے ښیٔ لاس ده، او د یُمْن نه هم کیدے شی چه معنیٰ ئے "ښه فال" ده۔ که چرے دا د یَمِین نه اوگڼړلے شی نو د اَصْحَابُ الْمَيْمَنَه معنیٰ به وی "ښی لاس والا"۔ لیکن د دے نه لغوی معنیٰ مرادنهٔ دے بلکه د دے مطلب دے د اوچتے مرتبے خلق۔ د عربو خلقو به ښیٔ لاس د طاقت او د اوچتے مرتبے او د عزت نښه گڼړله۔ چه د چا عزت به ئے کولو نو هغه به ئے په مجلس کښے ښی طرفته کینول۔ د چا په حقله چه به ئے دا وئیل چه ځما په زړه کښے د هغهٔ ډیر عزت دے

ثُلَّةٌ مِّنَ الْاَوَّلِيْنَ ﴿۱۳﴾ وَ قَلِيْلٌ مِّنَ الْاٰخِرِيْنَ ﴿۱۴﴾ عَلٰى سُرُرٍ مَّوْضُوْنَةٍ ﴿۱۵﴾ مُّتَّكِـِٔيْنَ عَلَيْهَا مُتَقٰبِلِيْنَ ﴿۱۶﴾ يَطُوْفُ

په مخکینو کښې به ډیروی او په روستنو کښې به کم وی۔ په داسې تختونو به ئې یوبل ته مخامخ ډډې وهلې وی چه هغه په ملغلرو باندې بنړلې شوی وی۔ ډ هغوی په مجلسونو کښې به

---

نوؤیل به ئې چه فلانٌ مِنىِّ بالیمین، "هغه ځما د ښی لاس سړے دے"۔ په اُردو ژبه کښې هم چه چاته د یولوئ سړی د ست راست وئیلے کیږی نو د هغې مطلب داوی چه هغه د هغه خاص سړے دے۔ او که د یُمن نه وا غستلے شی نو د اصحاب المیمنه معنیٰ به وی ښه نصیبی او نیک بختہ خلق۔

لے په اصل کښې لفظ اَصْحٰبُ الْمَشْئَمَةِ استعمال شوے دے۔ مشئمه د شؤم نه دے چه معنیٰ ئې ده بد بختی، منحوستیا او بد فالی۔ او په عربیٔ ژبه کښې کس لاس ته هم شومیٰ وئیلے کیږی۔ په اُردو ژبه کښې شومئ قسمت د د ے لفظ نه اغستے شوے دے۔ عربیانو به شمال (کس لاس) او شؤم (بد فال) په یوه معنیٰ کښې کنړل۔ د هغوی په نز کس لاس د کمزورئ او د ذلت نښه وه۔ چه په سفر به تلل او مارغه به کس طرفته والوتو نو دا به ئې بد فال گنړو۔ چه څوک به ئې کس طرفته کینوؤنو مطلب به داؤچه دا د کمے درجے سړے دے۔ د چا په حقله چه به ئې داوئیل چه ځما سره د هغه هیڅ عزت نشته نو وئیل به ئې چه فلانٌ منیّ بالشمال، "چه فلانے ځما د کس لاس سړے دے"۔ په اُردو ژبه کښې هم چه څوک یوکار ډیر سپک او آسان گنړی نو وائی چه دا خو ځما د کس لاس کار دے۔ نو د اصحاب المشئمه نه مُراد دے بد بختہ خلق، یا هغه خلق چه د الله په دربار کښې به ذلیله کیږی او کس طرفته به ودرولے کیږی۔

کے د سابقین (یعنی د وړاندې خلقو) نه مُراد هغه خلق دی چه هغوئ په نیکئ کښې او په حق پرستئ کښې د ټولونه وړاندې وی، چه د خیر په هر کار کښې د ټولونه وړاندې وی، چه د خدائے او د رسول حکم د ټولونه مخکښې منونکی وی، که جهاد وی او که د الله په لار کښې خرچ کول وی، که د مخلوق خدمت کول وی او که د خیر دعوت وی او یا د حق تبلیغ وی، غرض دا چه په دُنیا کښې د نیکئ د خورولو او د بدئ د ختمولو د پاره د قربانئ او د محنت څه موقع مخے ته راشی هغوئ په هغې کښې د ټولونه مخکښې وی۔ په دے وجه به په آخرت کښې هم هغوئ د ټولونه وړاندې وی۔ یعنی د الله په دربار کښې به نقشه داسې وی چه ښی طرفته به صالحین، کس طرفته به فاسقین او د ټولونه وړاندې به د خدائے دربار ته نزدے سابقین خلق وی۔ په حدیث کښې د حضرت عائشہؓ روایت دے چه رسول الله صلی الله علیه وسلم د خلقونه تپوس اوکړو "معلومه ده درته چه د قیامت په ورځ به کوم خلق د الله سوری ته د ټولونه مخکښې رسی"۔ خلقو عرض اوکړو چه الله او د هغه رسول ښه پوهیږی۔ نبیؐ اوفرمائیل الذین اذا اعطوا الحق قبلوہ، و اذا سُئِلُوْہُ بذلوہ، وحکموا الناس لحکمھم لِانفسھم، "هغوی به هغه خلق وی چه کله هغوئ ته

عَلَيْهِمْ وِلْدَانٌ مُّخَلَّدُوْنَ ﴿۱۷﴾ بِاَكْوَابٍ وَّاَبَارِيْقَ ۙ وَكَاْسٍ مِّنْ مَّعِيْنٍ ﴿۱۸﴾ لَّا يُصَدَّعُوْنَ عَنْهَا وَلَا يُنْزِفُوْنَ ﴿۱۹﴾ وَفَاكِهَةٍ

اَبَدي ھلکان دَروانے چینے دَ شرابونه ډکے پیالئ اوډ شیشے لوښی اوکنډولونه په منډه منډه ګرزوی چه دَ هغې په څښلو سره نه په هغوئ سرګرداني راځی او نهٔ به ئے عقل خرا بیږی۔ او هغوئ به دَ هغوی مخے ته

حق پیش کړے شو نو هغوی قبول، چه حق تړِ اُوغوښتے شو نو هغوی ورکړو، اودَ بل چا په معامله کښے دَ هغوی فیصله هم هغه وه کومه چه دَ هغوئ په خپله دَ خپل ذات په معامله کښے وه۔" (مُسندِ احمد)۔

۸ دَ مفسّرینو په دَے خبره کښے اختلاف دے چه دَ اولینو او آخرینو یعنی دَ ړومبنو او روستنو نه مُراد څوک دی۔ دَ یوے ډلے خیال دَے چه دَ آدم علیه السّلام دَ وخت نه دَ نبی صلی الله علیه وسلّم دَ نبوّت پورے چه څومره اُمتونه تیر شوی دی هغه اوّلین دی او دَ نبی صلی الله علیه وسلّم دَ نبوّت نه روستو دَ قیامته پورے خلق آخرین دی۔ په دے لحاظ سره به دَ آیت مطلب داوی چه دَ محمد دَ نبوّت نه مخکښے په زرګونو کلونو کښے څومره انسانان تیر شوی دی دَ هغوی دَ سابقینو تعداد به زیات وی، اودَ نبیؐ دَ نبوّت نه روستودَ قیامته پورے چه څومره انسانان راځی په هغوی کښے به دَ سابقینو تعداد کم وی۔ دویمه ډله وائی چه دلته دَ اوّلین او آخرین نه مُراد دَ نبی صلی الله علیه وسلّم دَ اُمت اولین او آخرین دی۔ یعنی دَ نبیؐ په اُمت کښے دَ اولنی دورخلق اولین دی چه سابقین به پکښے زیات وی، اوروستنی خلق به آخرین وی۔ چه سابقین به پکښے کم وی۔ دریمه ډله وائی چه دَ دے نه مُراد دَ هر نبی دَ اُمت اوّلین او آخرین دی، یعنی دَ هر نبی دَ اولنی دَور په خلقو کښے به سابقین ډیر وی او په روستنو خلقو کښے به کم وی۔ دَ آیت په الفاظو کښے دا دریواړه مطلبونه شامل دی او کیدے شی چه دا دریواړه صحیح وی، ځکه چه په حقیقت کښے په دے کښے هیڅ تضاد نشته۔ دَ دے نه علاوه یو بل مطلب هم دَ دے الفاظونه را اوزی او هغه هم صحیح دَے چه په هر اولنی دَور کښے به په انسانانو کښے سابقین زیات وی او په روستنی دَور کښے به کم وی۔ وجه داده چه انسانی آبادی په کوم رفتار سره زیاتیږی، په هغه رفتار سره په نیکو کښے وړاندِ کیدونکی خلق نهٔ زیاتیږی۔ دَ شمار په اعتبار سره که دا خلق دَ اولنی دَور دَ سابقینو نه په تعداد کښے زیات هم وی، لیکن په مجموعی حیثیت سره دَ دُنیا دَ آبادئ په مقابله کښے دَ هغوی تناسب په مخه کمیږی۔

۹ دَ دے نه مُراد دا نه دے هلکان دی چه هغوی به همیشه هلکان وی، دَ هغوی عمر به همیشه په یو حالت باندِ وی۔ حضرت علیؓ او حضرت حسنؓ فرمائی چه دا دَ انسانانو هغه بچی دی چه هغوی دَ بلوغ نه مخکښے مړه شی، په دے وجه نهٔ به دَ هغوی نیکی وی چه دَ هغې بدله ورکړے شی اونهٔ به ئے بدی وی چه دَ هغې سزا ورکړے شی۔ لیکن ښکاره خبره ده چه دَ دے نه مُراد هغه کسان کیدے شی چه هغوئ ته جنّت نهٔ وی نصیب شوے۔ یا تے شو مومنان صالحان خلق، نو دَ هغوی بچی الله تعالیٰ په خپله په قرآن کښے دا ضمانت ورکړے دَے چه دَ هغوی بچی به هغوی له جنّت ته بوتلے شی (الطّور۔ آیت ۲۱)۔ دَ دے

مِمَّا يَتَخَيَّرُونَ ﴿۲۰﴾ وَلَحْمِ طَيْرٍ مِّمَّا يَشْتَهُونَ ﴿۲۱﴾ وَحُورٌ عِينٌ ﴿۲۲﴾ كَأَمْثَالِ اللُّؤْلُؤِ الْمَكْنُونِ ﴿۲۳﴾ جَزَاءً بِمَا كَانُوا يَعْمَلُونَ ﴿۲۴﴾ لَا يَسْمَعُونَ فِيهَا لَغْوًا وَلَا تَأْثِيمًا ﴿۲۵﴾ إِلَّا قِيلًا سَلَامًا سَلَامًا ﴿۲۶﴾

قِسما قِسم خوند ناکے میوې به ورته وړاندې کیږي چه کومې ئې خوښې وی هغه به را اخلی، او د مرغو غوښې به ورته وړاندې کیږي چه د کومې مرغۍ غوښه ئې خوښه وی هغه به استعمالوی.[۱۰] او د هغوئ د پاره به ښایسته سترګو والا حورې وی، داسې ښایسته لکه چه پټې ساتلې شوې ملغلرې[۱۱] - دا ټول هر څه به ورته د هغو عملونو د بدلې په طور مِلاویږی کوم چه به هغوئ په دُنیا کښې کول - هلته به هغوئ هیڅ بیهوده خبرې یا د ګناه خبرې نهٔ اوری.[۱۳] چه کومه خبره وی هغه به ټیک ټیک وی.[۱۴]

تائید د هغه حدیث نه کیږی کوم چه ابوداؤد طَیالِسی، طَبرانی، او بـزّار د حضرت اَنَسؓ او د حضرت سَمُرَۃؓ بن جُندب نه نقـل کـړې د ے ـ په هغې کښې نبیؐ فرمائی چه د مشرکانو بچی به د جنتیانو خادمان وی ـ ( د زیاتې تشریح د پاره اُوګوره تفهیم القـرآن، څلورم جـلد، تفسیر د سورۃ صافات، حاشیه ۲۶ ـ پنځم جلد، الطّور، حاشیه ۱۹)ـ

[۱۰] د تشریح د پاره اُوګوره تفهیم القـرآن، څلورم جُلد، تفسیر د سورۃ صافات، حاشیه ۲۷ ـ پنځم جُلد، سورۃ محـمّد، حاشیه ۲۲ ـ الطّور، حاشیه ۱۸ ـ

[۱۱] د تشریح د پاره اُوګوره تفهیم القـرآن، پنځم جلد، تفسیر د سورۃ طور، حاشیه ۱۷ ـ

[۱۲] د تشریح د پاره اُوګوره تفهیم القرآن، څلورم جلد، تفسیر د سورۃ صافات، حاشیه ۲۸ ـ ۲۹ ـ الدّخان، حاشیه ۴۲ ـ پنځم جلد، الرّحمٰن، حاشیه ۵۱ ـ

[۱۳] دا د جنت په لویو نعمتونو کښې یو لوئ نعمت د ے، چه قـرآن مجید په ډیرو ځایونو کښې بیان کړې د ے، چه د انسان غوږونه به هلته د بیهوده او فضول خبرونه، د دروغو او د غیبت نه، د چغلۍ او د بهتان نه، د کنځلو او د بد ورد ونه، د لافو او ټوقو مسخرونه، او د پیغورونو د خبرو اوریدو نه محفوظ وی ـ هغه به د بد ژبو او بد تمیزو خلقو ځائے نهٔ وی چه خلق به پکښې په یو بل پورې پشاړې کوی ـ هغه به د شریفانو او د ښو خلقو ځائے وی چه په هغې کښې به دا لغو خبرې نهٔ وی ـ یو سړی له چه الله تعالیٰ څه لږ شان پوهه ورکړې وی نو هغه د د ے خبرې نه انداز ه لګولې شی چه دا د دُنیا څومره لوئ عذاب د ے چه انسان له دا اُمید ورکړې شوې د ے چه په جنت کښې به دا نهٔ وی ـ

[۱۴] اصل الفاظ دی اِلَّا قِیلاً سَلٰماً سَلٰماً ـ ځینو مفسرینو او مترجمینو د ے نه دا مطلب

وَاَصۡحٰبُ الۡيَمِيۡنِ ۙ مَاۤ اَصۡحٰبُ الۡيَمِيۡنِ ﴿۲۷﴾ فِىۡ سِدۡرٍ مَّخۡضُوۡدٍ ﴿۲۸﴾ وَّطَلۡحٍ مَّنۡضُوۡدٍ ﴿۲۹﴾ وَّظِلٍّ مَّمۡدُوۡدٍ ﴿۳۰﴾ وَّمَآءٍ مَّسۡكُوۡبٍ ﴿۳۱﴾ وَّفَاكِهَةٍ كَثِيۡرَةٍ ﴿۳۲﴾ لَّا مَقۡطُوۡعَةٍ وَّلَا مَمۡنُوۡعَةٍ ﴿۳۳﴾ وَّفُرُشٍ مَّرۡفُوۡعَةٍ ﴿۳۴﴾ اِنَّاۤ اَنۡشَاۡنٰهُنَّ اِنۡشَآءً ﴿۳۵﴾ فَجَعَلۡنٰهُنَّ اَبۡكَارًا ﴿۳۶﴾

اودَ ښي لاس والا، دَ ښي لاس دَ خلقو دَ خوش نصيبئ به څه وائے ـ هغوئ به په بے ازغو بيرو کښے[۱۵]، او قط په قط کيلو کښے، او په اُوږدو اوږدو سورو کښے، او هر وخت په روانو اُوبو کښے، او په نهٔ ختميدونکو او په آسانه مِلاويدونکو ميوو کښے[۱۶]، او په اُوچتو اُوچتو ځايونو کښے وی ـ مونږ به دَ هغوئ بيبيانے خاص طور دَ نوی سرنه بيا پيدا کړو او پيغلے جونه به ترے جوړے کړو[۱۷]

اغستے دے چه هلته به دَ هر طرفنه دَ سلام سلام آوازونه اوری ـ ليکن صحيح خبره داده چه دَدے نه مُراد ده ښه خبره، يعنی داسے خبری اتری چه دَ عيب نه پاکے وی، چه په هغے کښے هغه خرابی نهٔ وی کومه چه په مخکښنو فقرو کښے بيان کړے شوی ده ـ دلته دَ سلام لفظ تقريباً تقريباً دَ انگريزئ ژبے دَ لفظ (Sahe) په معنیٰ کښے استعمال کړے شوے دے ـ

[۱۵] يعنی داسے بيرے چه دَ هغے په وُنو کښے به اَزغی نهٔ وی ـ يوسړے دَ حيرانتيا سره داخبره کولے شی چه بيره کومه داسے ښه ميوه ده چه په جنّت کښے به وی او مونږ ته دَ هغے زيرے اوروَلے کيږی ـ ليکن حقيقت دادے چه دَ جنّت بيرے خو پريږده، پخپله دَدے دُنيا په ځينو علاقو کښے دا ميوه دومره خوند ناکه خوشبويه او خوږه وی چه يو ځل ئے سړے خوراک شروع کړی نو بيا پرے مړيږی نهٔ ـ او بيرے چه څومره دَ اعلیٰ درجے وی هغومره دَ هغے په وُنو کښے ازغی کم وی ـ په دے وجه دَ جنّت دَ بيرو دا تعريف بيان کړے شوے دے ـ چه دَ هغے په ونو کښے به بالکل ازغی نهٔ وی، يعنی داسے دَ اعلیٰ درجے به وی چه هغه په دُنيا کښے نشته ـ

[۱۶] اصل الفاظ دی لَّا مَقۡطُوۡعَةٍ وَّلَا مَمۡنُوۡعَةٍ ـ دَ لَا مَقۡطُوۡعَةٍ نه مُراد دادے چه دا ميوے به نهٔ موسمی وی چه کِنی دَ موسم تيريدو نه روستو به نشی مِلاويدے، نهٔ به ئے پيدا کيدل بنديږی چه که چرے دَ باغ نه ټولے ميوے اُوشوکولے شی نو دَ څه وخته پورے به پکښے ميوے نهٔ وی، بلکه هره ميوه به هلته په هر موسم کښے مِلاويږی او که هر څومره ډيرے اُوخوړے شی خو مسلسل به را پيدا کيږی ـ اودَ لَا مَمۡنُوۡعَةٍ مطلب دادے چه دَ دُنيا دَ باغونو پشان به هلته څه منع نهٔ وی، نهٔ به دَ ميوو په را شوکولو کښے او نهٔ به دَ هغے په خوړلو کښے څه تکليف پيښيږی يعنی نهٔ به په وُنو کښے ازغی وی او نهٔ به زياتے اُوچتے وی ـ

[۱۷] دَدے نه مُراد دَ دُنيا هغه نيکانے ښځے دی چه هغوی به دَ خپل ايمان اودَ نيک عمل په وجه جنّت ته ځی ـ الله تعالیٰ به هلته دَ هغوئ نه پيغلے جونه جوړے کړی، خواه که هغوی هر څومره دَ بوډا اوالی په عمر کښے

عُرُبًا اَتْرَابًا ﴿۳۷﴾ لِّاَصْحٰبِ الْيَمِيْنِ ﴿۳۸﴾ ثُلَّةٌ مِّنَ الْاَوَّلِيْنَ ﴿۳۹﴾ وَ ثُلَّةٌ مِّنَ الْاٰخِرِيْنَ ﴿۴۰﴾ وَاَصْحٰبُ الشِّمَالِ ۙ۬ مَآ اَصْحٰبُ الشِّمَالِ ﴿۴۱﴾ فِيْ سَمُوْمٍ وَّحَمِيْمٍ ﴿۴۲﴾ وَّظِلٍّ مِّنْ يَّحْمُوْمٍ ﴿۴۳﴾ لَّا بَارِدٍ وَّلَا كَرِيْمٍ ﴿۴۴﴾

په خپلو خاوندانو به عاشقې وي[۱۸] او په عُمر کښې به همزولې وي[۱۹]۔ دا هرڅه د ښي لاس د خلقو دَپاره دي[۲۰]۔ هغوی به په مخکینو کښې ډیروی او په روستنو کښې به هم ډیروی۔

او د گس لاس والا، د گس لاس د خلقو د بدنصیبئ به څه تپوس کوے۔ هغوئ به په گرمو بادونو او یشیدلو اُوبو او د تورو لوګو په سورو کښې وي چه نهٔ به یخ وي او نهٔ به آرام ورکوُنکے وي۔

مړے شوي وي۔ ډیر ښایئست به ورله ورکړي، خواه که په دُنیا کښې هغوئ ښایئسته وي او که نهٔ۔ ناوادهٔ شوې پیغلے به ترجوړے کړے، خواه که په دُنیا کښې هغوی بے واده مړے شوي وي او که د بال بچ والا۔ دَ هغوئ خاوندان هم که دَ هغوئ سره جنّت ته لاړل نو هغوئ به ورسره یوځائے کړے شي، او که نهٔ نو الله تعالیٰ به ئے بل جنتي ته واده کړي۔ دَ دے آیت هم دا تشریح په ډیرو حدیثونو کښې دَ رسول الله صلی الله علیه وسلّم نه نقل کړے شوې ده۔ په شمائل ترمذی کښې روایت دے چه یو بوډئ نبیؐ ته عرض اُوکړو چه څما په حق کښې دَ جنّت دُعا اُوکړه۔ نبیؐ اُوفرمائیل چه جنّت ته به بوډئ کانے نهٔ ځی۔ هغه په ژړا واپس لاړه نو نبیؐ خلقو ته اُوفرمائیل چه "هغې ته اُووایئ، هغه به دَ بوډاوالی په حالت کښې جنّت ته نهٔ ورننوځی، الله تعالیٰ فرمائی چه مونږ به بوډئ کانے خاص دَ نوي سر نه پیدا کړو او پیغلے به ئے کړو"۔ ابن ابی حاتم دَ حضرت سَلَمَه بن یزید دا روایت نقل کړے دے چه ما دَ رسول الله نه دَ دے آیت دا تشریح اُورید لی ده،" دَ دے نه مُراد دَ دُنیا ښځې دي، که هغه بے واده پیغلے مړے شوې وي او که واده شوې"۔ په طَبَرانی کښې دَ حضرت اُمِّ سَلَمَه یو اُوږد روایت دے چه په هغې کښې هغه دَ جنّت دَ ښځو په حقله دَ قرآن مجید دَ مختلفو ځایونو مطلب دَ نبیؐ نه تپوسی۔ په دے سلسله کښې نبیؐ دَ دے آیت دا تشریح کوی چه: هن اللواتی قبضن فی دارالدنیا عجائز رمصاً شمطاً خلقهن الله بعد الکبر فجعلهن عذاریٰ ۔ "دا هغه ښځې دي چه په دُنیا کښې مړے شوې وې په دا حال کښې چه ډیرے بوډئ کانے وے، سترګے ئے چوچنے وے، دَ سرو ویښته ئے تک سپین وُو۔ دَ دے بوډاوالی نه به روستو الله تعالیٰ دَ هغوئ نه بیا پیغلے جوړے کړي"۔ حضرت اُمِّ سلمه تپوس کوی که دَ یوے ښځے په دُنیا کښې ډیر خاوندان تیر شوي وي او هغه پورې جنّت ته لاړه شي نو هغه به په هغوی کښې چا ته مِلاو یږي؟ نبیؐ ورته فرمائی: انها تخیّر فتختار احسنهم خلقا فتقول یارب ان هذا کان احسن خلقا معی فزوجنیها یا اُمِّ سلمه، ذهب حسن الخلق بخیر الدنیا والآخرة۔ "هغې له به اِختیار ورکړے شي چه پخپله خوښه دَ چا سره کیدل غواړي دَ هغه سره دِ شی۔ او هغه به هغهٔ سړے خوښوی کوم چه په هغوئ کښې دَ ټولو نه زیات دَ ښو اخلاقو مالک وُو۔ هغه به الله تعالیٰ ته عرض اُوکړي چه اے ربه دَ ده سلوک څما سره ډیر ښه وُو نو ما دَ دهٔ ښځه کړه۔ اے اُمِّ سلمے، ښو اخلاقو

إِنَّهُمْ كَانُوا قَبْلَ ذَٰلِكَ مُتْرَفِينَ ﴿٤٥﴾ وَكَانُوا يُصِرُّونَ عَلَى الْحِنثِ الْعَظِيمِ ﴿٤٦﴾ وَكَانُوا يَقُولُونَ أَئِذَا مِتْنَا وَكُنَّا تُرَابًا وَعِظَامًا أَإِنَّا لَمَبْعُوثُونَ ﴿٤٧﴾ أَوَآبَاؤُنَا الْأَوَّلُونَ ﴿٤٨﴾ قُلْ إِنَّ الْأَوَّلِينَ وَالْآخِرِينَ ﴿٤٩﴾ لَمَجْمُوعُونَ إِلَىٰ مِيقَاتِ يَوْمٍ

دا به هغه خلق وی چه د دے انجام ته د رسیدو نه مخکښے هغوی خوشحاله وُو او په لویه گناه باندِ به ئے ټینگتیا کوله[۲۰] - او وئیل به ئے چه " کله مونږه مړه شوا و خاورے شو او تشه د هډوکو یوه پنجره پاتے شو نو آیا بیا به راژوندی کیږو؟ او آیا زمونږه هغه پلرُونه نیکونه به هم راژوندی کیږی کوم چه مخکښے تیر شوی دی"۔ اے نبی دے خلقوته اُووایه ، یقیناً چه وړاندِ روستو ټول خلق به یوه ورځ خامخا راجمع کړے کیږی چه د هغے وخت مقرّر

د دنیا او د آخرت ټولے نیکئ ویوړے"۔(د زیاتے تشریح د پاره اُوگوره تفهیم القرآن پنځم جلد، تفسیر د سورة رحمٰن ، حاشیة ۵۱)۔

۱۸ په اصل کښے لفظ عُرُباً استعمال شوے دے۔ دا لفظ په عربئ ژبه کښے د ښځے د ښه زنانوالا خویونو د پاره وئیلے کیږی۔ د دے نه مُراد داسے ښځه ده چه ډولناکه، ښهٔ سلوک والا، خوږ ژبانه، زنانوالا جذبات لرونکی، د زړه نه په خپل خاوند مینه وی او د هغے خاوند هم د هغے عاشق وی۔

۱۹ د دے دوه مطلبونه کیدے شی۔ یو دا چه هغوی به په عمر کښے د خپلو خاوندانو همزولے وی، دویم دا چه هغوی به په خپل منځ کښے همزولے وی، یعنی جنّتی ښځے به ټولے د یو عمر وی او همیشه به هم په دغه یو عمر کښے وی۔ کیدے شی چه دا دواړه خبرے په یو وخت صحیح وی، یعنی چه دا ښځے په خپل منځ کښے هم همزولے وی او د هغوی خاوندان هم د هغوی همزولے وی۔ په یو حدیث کښے راځی چه یدخل اهل الجنة الجنة جردا مردا بیضا جعادا مکحلین ابناء ثلاث وثلاثین۔" جنّتیان چه کله جنّت ته ورداخلیږی نو د هغوی بد نونه به د وېښتونه صفا وی۔ بریت به ئے شنه شوی وی خو گیره به ئے لا نهٔ وی راختلے۔ سپین بناسته به وی۔ ډک ډک بد نونه به ئے وی۔ سترگے به ئے تورِ رنگے وی۔ د ټولو عُمرونه به درے دیرش کاله وی"۔ (مُسند احمد، مروّیاتِ ابوهریرهؓ)۔ تقریباً هم دا مضمون په ترمذی کتاب کښے د حضرت معاذ بن جَبَل او د حضرت ابو سعید خُدری نه هم روایت کړے شوے دے۔

۲۰ یعنی خوشحالئ په هغوی اُولټا اثر کړے وُو۔ د الله تعالیٰ د شکرگزاره کیدو په ځائے هغوی اُلټا نعمت ناشکره شوی وُو۔ د خپل نفس په خوندونو کښے ډوب شوی وُو او خدائے ئے هیر کړے وُو۔ او په لویه گناه کښے اخته وُو۔ د "لوئے گناه" په لفظ کښے ډیر مطلبونه شامل دی۔ د دے نه مراد کفر او شرک او دهریت هم دے او د اخلاقو او د عملونو هره لویه گناه هم۔

مَّعْلُوْمٍ ﴿۵۰﴾ ثُمَّ اِنَّكُمْ اَيُّهَا الضَّآلُّوْنَ الْمُكَذِّبُوْنَ ﴿۵۱﴾ لَاٰكِلُوْنَ مِنْ شَجَرٍ مِّنْ زَقُّوْمٍ ﴿۵۲﴾ فَمَالِـُٔوْنَ مِنْهَا الْبُطُوْنَ ﴿۵۳﴾ فَشٰرِبُوْنَ عَلَيْهِ مِنَ الْحَمِيْمِ ﴿۵۴﴾ فَشٰرِبُوْنَ شُرْبَ الْهِيْمِ ﴿۵۵﴾ هٰذَا نُزُلُهُمْ يَوْمَ الدِّيْنِ ﴿۵۶﴾ نَحْنُ خَلَقْنٰكُمْ فَلَوْلَا تُصَدِّقُوْنَ ﴿۵۷﴾ اَفَرَءَيْتُمْ مَّا تُمْنُوْنَ ﴿۵۸﴾ ءَاَنْتُمْ تَخْلُقُوْنَهٗ اَمْ نَحْنُ الْخٰلِقُوْنَ ﴿۵۹﴾ نَحْنُ

کړے شوے دے - بیا به تاسو اے ګمراهانو او دروغ ګڼړونکو خلقو، دَ زقّوم[۲۱] دَ وَنے خوراکونه خورئ - هم دَ هغے نه به خپلے خیټے ډکوئ او دَ پاسه به پرې يشيد لے اوبۀ دَ هغه اوښ پشان څکئ چه هغه سختے تندې اغستے وی (او تنده ئے مړه کیږی نۀ) - دا دَ کس طرف دَ خلقو میلمستیا ده دَ جزا په ورځ -

موږ ه تاسو پیدا کړی یئ بیا ولے تصدیق نۀ کوئ؟[۲۲] تاسو چرته (دَ خبرې ته) فکر کړے دے، چا دا کومه نُطفه تاسو (دَ زنانو بچه دان ته) ور اچوئ، نو آیا دَ دے نه بچے تاسو جوړوئ او که دَ هغے جوړونکی موږ یو؟[۲۳] موږ ه

[۲۱] دَ زقّوم دَ تشریح دَ پاره اُوګوره تفهیم القرآن، څلورم جلد، تفسیر دَ سورة صافات، حاشیه ۳۴ -

[۲۲] دَ دے ځائے نه دَ آیت ۷۴ پورے چه کوم دلیلونه پیش کړے شوی دی هغه دَ آخرت او دَ توحید په حقله دی - دَ مکے خلقو به چونکه دَ نبی صلی الله علیه وسلم دَ تعلیم په دے دواړو خبرو باندِ اعتراض کوونو په دے وجه دلته دلیلونه په داسے انداز سره پیش کړے شوی دی چه دَ هغے نه دَ آخرت ثبوت هم ملاویږی او دَ توحید دَ صداقت هم -

[۲۳] یعنی دَ دے خبرې تصدیق چه خاص هم څه ستاسو رب او معبود یم، او څه تاسو دوباره هم پیدا کولے شم -

[۲۴] په دے مختصره فقره کښے یوه لویه اهمه خبره دَ انسان مخے ته کیښودلے شوی ده - دَ دُنیا نور ټول څیزونه چه انسان پرې پرې دی او صرف په دے یوه خبره غور اُوکړی چه هغه پخپله څنګه پیدا شوے دے نو قرآن چه دَ توحید او دَ آخرت په حقله کوم تعلیم پیش کوی په هغے کښے ئے هیڅ شک نشی پاتے کیدے - انسان خو هم آخر په دے طریقه پیدا کیږی چه سړے خپله نُطفه دَ ښځے بچه دان ته ور رسوی - لیکن آیا دَ دے نُطفے نه بچے، او خاص طور دَ انسان بچے پخپله را پیدا کیږی؟ یا ئے تر انسان پخپله را پیدا کوی؟ یا دَ خدائے نه علاوه ئے بل څوک را پیدا کوی؟ او آیا دا دَ سړی، یا دَ ښځے، یا دَ دُنیا دَ بل یو طاقت په اختیار کښے شته چه دا نُطفه په بچه دان کښے راټینګه کړی؟ بیا دَ بچی دَ پیدا کیدو پورے چه دَ مور په خیټه کښے بچے په کومه طریقه غټیږی، او دَ هر بچی چه کوم جُدا جُدا شکل جوړیږی،

قَدَّرْنَا بَيْنَكُمُ الْمَوْتَ وَمَا نَحْنُ بِمَسْبُوقِينَ ﴿۶۰﴾ عَلَىٰٓ أَنْ نُّبَدِّلَ أَمْثَالَكُمْ وَنُنْشِئَكُمْ فِي مَا لَا تَعْلَمُونَ ﴿۶۱﴾ وَلَقَدْ عَلِمْتُمُ النَّشْأَةَ الْأُولَىٰ فَلَوْلَا تَذَكَّرُونَ ﴿۶۲﴾

ستاسو په منځ کښې مرګ تقسیم کړے دے [۲۵]، او مونږ دَ دې نه عاجزه نهٔ یو چه ستاسو شکلونه بدل کړو او په داسے شکل کښې مو را پیدا کړو چه هغه هم تاسو ته معلوم نهٔ وی [۲۶]۔ خپل اولنے پیدائښ خو تاسو ته معلوم دے، نو بیا وَلے سبق نهٔ اخلئ؟ [۲۷]

او په هر ځی کښې چه کوم مختلف ذهنی او بدنی قوتونه په یو خاص تناسب سره موجود وی چه دَ هغې په وجه هغه یو خاص صفتی انسان وی، آیا دا ټول هر څه دَ یو خدائے نه سوا دَ بل چا کار دے؟ آیا په دې کښې دَ بل چا دَ ذرّے هومره هم څه دخل شته؟ آیا دا کارمور او پلار پخپله کوی؟ یائے یو والګی کوی؟ یائے هغه اولیاء او پیغمبران کوی چه هغوی پخپله په دے طریقه پیدا شوی دی؟ یائے نمر، ستوری او سپوږمۍ کوی چه پخپله دَ یو خاص قانون پابند دی؟ یائے هغه فطرت (Nature) کوی چه پخپله څه علم، څه حکمت، څه اراده، او څه اختیار نهٔ لری؟ آیا بیا دا فیصله هم دَ خدائے نه سوا دَ بل چا په اختیار کښې ده چه بچے به جینۍ وی او که هلک؟ ښائسته به وی او که بد شکله؟ طاقتور به وی او که کمزورے؟ ړوند، کوڼ، ګوډ شل به وی او که صحیح سالم؟ ذهین به وی او که غبی؟ آیا بیا دَ خدائے نه سوا بل څوک دا فیصله کوی چه دَ قومونو په تاریخ کښې په کوم وخت کښې په کوم قوم کښې دَ کومو ښو یا بدو صفتونو سړے پیدا کړی چه قوم دَ ترقۍ طرفته بوځی یائے دَ زوال کندے ته ورا وغورزوی؟ که څوک په ضد کښې مبتلا نهٔ وی نو هغه ته به پخپله پته اولږی چه دَ شرک یا دَ دهریت په بنیاد باندِ دَ دې تپوسونو څه مناسب جواب نهٔ شی ورکړے کیدے۔ دَ دے مناسب جواب اِلّی یو دے او هغه دا دے چه انسان پوره په پوره الله تعالیٰ جوړ کړے دے۔ او هر کله چه حقیقت دا دے نو دَ خدائے دِ جوړ کړی انسان ته څه حق حاصل دے چه دَ خپل خالق په مقابله کښې دَ آزادۍ او دَ خپلواکۍ دعویٰ اوکړی؟ یا دَ هغه نه سوا دَ بل چا بندګی اوکړی؟

دَ توحید پشان دا خبره دَ آخرت په معامله کښې هم فیصله کن خبره ده۔ دَ انسان پیدائښ دَ یو داسے چینجی نه کیږی چه هغه دَ یو طاقتور خوردبین نه بغیر څوک نشی لیدلے۔ دا چینجے دَ ښځې په بدن کښې په څه وخت کښې دَ هغه ښوالی اګۍ سره یو ځائے شی چه هغه هم دَ خوردبین نه بغیر نهٔ لیدے کیږی۔ بیا دَ دے دواړو دَ یو ځائے کیدو نه یوه وړه شان ژوندۍ حصه (Cell) جوړه شی، یعنی دَ انسان دَ ژوند شروع اوشی او دَ ژوند دا شروع دَ دومره وړے حصے (Cell) نه اوشی چه هغه هم دَ خوردبین نه بغیر په نظر نشی راتلے۔ څه ورځے دَ پاسه په نهو میاشتو کښې الله تعالیٰ دغه وړه حصه غټه کړی او یو ژوندے انسان ترے جوړ شی۔ او چه کله ښه مکمل انسان شی نو دَ مور بدن ئے پخپله دُنیا ته دَ

شور شغب دَ پاره را بهرکړي ـ ټول انسانان په دې طريقه دُنياته راغلي دي او دَ خپل ځان پشان دَ انسانانو دَ پيدا کيدو حالت شپه او ورځ وينې راوينې ـ دَ دے نه روستو صرف يو بے عقله انسان دا وئيلے شي چه کوم خدائے نن په دې طريقه انسانان پيدا کوي هغه صباله په څه وخت کښے دا خپل پيدا کړي انسانان دوباره په بله طريقه نشي پيدا کولے ـ

۲۵ه يعنى ستاسو دَ پيدائش پشان ستاسو مرګ هم زمونږ په اختيار کښے دے ـ مونږه دا فيصله کوو چه څوک به دَ مور په خيټه کښے مري ، او څوک به دَ پيدا کيدو سره مري ، او څوک به څه عمر ته رسي ـ مونږه چه دَ چا دَ مرګ دپاره څه وخت مقرر کړے دے دَ هغې نه مخکښے دَ دُنيا يو طاقت هم هغه نشي وژلے او دَ هغې نه روستو ئے يو ساعت هم ژوندے نشي ساتلے ـ په لويو لويو هسپتالونو کښے دَ لويو لويو ډاکټرانو په مخکښے کسان مري ، بلکه ډاکټر پخپله هم په خپل وخت باندِ مري ، ليکن نهٔ دَ مرګ وخت چا ته معلوم شوے دے ، نهٔ چا دَ مرګ مخه بنده کړې ده ، نهٔ چا دا معلومه کړې ده چه مرګ به په کوم ځائے کښے راځي او په څه طريقه به راځي ـ

۲۶ه يعنى لکه څنګه چه مونږه دَ دے خبرې نه عاجزه نهٔ وُو چه تاسو په موجوده شکل کښے پيدا کړو ، دغه شان مونږه دَ دې خبرې نه هم عاجزه نهٔ يو چه ستاسو دَ پيدائش طريقه بدله کړو او په بل شکل کښے مو دَ نورو صفتونو سره پيدا کړو ـ نن مونږه تاسو په دې طريقه پيدا کوُو چه ستاسو نُطفه دَ ښځو بچه دان ته اُورسي او تاسو دَ مور په خيټه کښے رُو رُو غټ شئ او دَ بچي په شکل کښے دُنيا ته راشئ ـ دَ پيدا کيدو دا طريقه هم مونږه مقرر کړې ده ـ ليکن زمونږ سره بس هم دا يوه طريقه نهٔ ده چه دَ دې نه سوا کِني په بله طريقه نهٔ پوهيږو ، يا په بله طريقه پيدا کول نشو کولے ـ دَ قيامت په ورځ مونږه تاسو دَ هغه عُمر په شکل کښے پيدا کولے شو په کوم عُمر کښے چه تاسو مړه شوي وئ ـ نن مونږ ستاسو دَ اوريدو او دَ ليدو او دَ معلوماتو دَ نورو ذريعو پيمانه څه پــه بل ډول جوړه کړې ده ـ ليکن زمونږ سره دَ انسان دَ پاره بس هم دا يوه پيمانه نهٔ ده چه کِني مونږه ئے نهٔ شو بدلولے ـ دَ قيامت په ورځ به مونږه دا پيمانه څه په بل ډول کړو او اَنُ تردې پورې چه تهٔ به هغه څه اُورېنے او هغه څه به واورے چه هغه دلته نهٔ ليدے شے او نهٔ اوريدے شے ـ نن ستاسو په څرمن کښے او ستاسو په لاس او خپو کښے او ستاسو په سترګو کښے دَ وينا طاقت نشته ـ او ژبے ته دَ وينا طاقت خو هم مونږه ورکړے دے ـ مونږه دَ دې نه عاجزه نهٔ يو چه دَ قيامت په ورځ به ستاسو هر اندام او ستاسو دَ بدن دَ څرمنے هره ټوکره زمونږ په حکم سره وينا شروع کړي ـ نن تاسو دَ يو خاص عُمر پورے ژوندي يئ او بيا مړه کيږئ ـ دا ستاسو ژوند او مرګ هم زمونږ دَ مقرر کړے شوي قانون مطابق کيږي ـ صباله مونږه يو بل قانون ستاسو دَ ژوند دَ پاره جوړ وَلے شو چه په هغې کښے تاسو له مرګ هډو راځي نهٔ ـ نن تاسو دَ يو خاص حده پورې عذاب برداشت کولے شئ ، که دَ هغې نه سوا عذاب تاسو له درکړے شي نو تاسو ژوندي نهٔ شئ پاتے کيدے ـ دا قانون هم مونږه جوړ کړے دے ـ صباله مونږه ستاسو دَ پاره يو بل قانون جوړ وَلے شو چه په هغې کښے به تاسو دا سے اُوږد عذاب برداشت کولے شئ چه هغه ستاسو په خيال کښے هم نهٔ شي راتلے او په ډير سخت عذاب سره به درله هم مرګ نهٔ راځي ـ نن تاسو دا سوچ نهٔ شئ کولے چه يو بوډا به ځوان شي ، ناجوړ کيږي به نهٔ ، بوډا والے به پرِ هيڅکله نهٔ راځي او دَ هميشه دَ پاره به هغه دَ يو عُمر ځوان وي ـ ليکن دلته په ځوانئ پسے بوډا والے هم زمونږ دَ جوړ شوي قانون مطابق راځي ـ صباله مونږه ستاسو دَ ژوند دَ پاره بل قانون

أَفَرَءَيْتُم مَّا تُحْرُثُونَ ﴿٦٣﴾ ءَأَنتُمْ تَزْرَعُونَهُۥٓ أَمْ نَحْنُ ٱلزَّٰرِعُونَ ﴿٦٤﴾

تاسو چرته په دې خبره سوچ کړې دے چه دا کوم تخم تاسو کرئ دَ دے نه فصلونه تاسو وازرغونوی او که دَ دے را زرغونونکي مونږه یو؟[۲۸]

---

هم جوړولے شو چه دَ هغې مطابق به هر جنتي بوډا ځوان شی او دَ هغه ځوانی او صحت به همیشه وی.

۲۷ یعنی تاسو ته خو دا معلومه ده چه اوّل تاسو څنګه پیدا کړے شوی وئ - په څه طریقه دَ پلار دَ ملا دَ تیرنه هغه نطفه را اوُوتله چه دَ هغې نه تاسو پیدا شوئ - په څه طریقه دَ مور دَ خیټے په تیارو کښے تاسو غټ کړے شوئ او ژوند ے انسان درنه جوړ کړے شو - په څه طریقه یوه معمولی ذرّه غټه کړے شوه او په هغې کښے زړه او دماغ ، سترګے او غوږونه او لاس او خپے پیدا کړے شول، عقل، علم او حکمت ، دَ څیزونو جوړولو طاقت ، او سوچ او فکر ورکړے شو - آیا دا مُعجزه دَ مړو دَ دوباره ژوندی کولو نه څه کمه دَ حیرانتیا ده ؟ دا عجیبه مُعجزه چه کله تاسو پخپلو سترګو وینئ او دَ دے دَ شهادت په طور پخپله په دُنیا کښے موجود یئ نو دَ دے نه دا سبق وَلے نهٔ اخلئ چه دَ کوم خدائے په قدرت سره دا مُعجزه شپه او ورځ کیږی هم دَ هغه په قدرت سره دَ مرګ نه روستو ژوند او حشر او نشر او جنّت او دوزخ راتلے شی ؟

۲۸ پاسنئ خبری دَ خلقو توجه دے حقیقت ته را اړَوله چه تاسو الله تعالیٰ پیدا کړی یئ او هم دَ هغه په پیدا کولو سره وجود ته راغلی یئ - اوس دَ دے دویمے خبری سره دَ هغوئ توجه دے دویم حقیقت ته را اړَولے کیږی چه په کوم رزق تاسو غټیږئ هغه هم الله تعالیٰ ستا سو دَ پاره پیدا کړے دے - لکه څنګه چه ستاسو په پیدا کید و کښے دَ انسان کوشش دَ دے نه زیات نور هیڅ نهٔ دے چه ستاسو پلار ستاسو په میندو کښے نُطفه ورواچوی ، دغه شان ستاسو دَ رزق په پیدا کید و کښے هم دَ انسان کوشش دَ دے نه سوا نور هیڅ نهٔ دے چه تخم په پټی کښے واچوی - په کومه زمکه چه تاسو کروندہ کوئ دا تاسو نهٔ ده جوړه کړی - دے زمکے ته دَ زرغونے طاقت تاسو نهٔ دے ورکړے - دَ کومو څیزونو نه چه ستاسو خوراکونه جوړیږی هغه څیزونه په دے زمکه کښے تاسو نهٔ دی پیدا کړی - په زمکه کښے چه تاسو کوم تخم اچوی دَ هغې زرغونه تاسو نهٔ کوئ - دَ هر تخم نه هغه بوټے را پیدا کول چه دَ کوم بوټی هغه تخم دے ، ستاسو کار نهٔ دے - دَ کروندے نه چه کوم شنه شنه فصلونه را پیدا کیږی دَ دے دَ پاره چه په زمکه کښے دَ ننه کوم عمل کیږی او دَ زمکے نه بهر چه دَ کومے هوا ، اوُبو او ګرمئ یخنئ ضرورت دے ، په دے کښے یو څیز هم ستاسو دَ تدبیر په وجه نهٔ دے - دا ټول هر څه دَ الله دَ قدرت او دَ هغه دَ پالنے کارنامه ده - نو هر کله چه تاسو خاص هغه پیدا کړی یئ او خاص هم دَ هغه په رزق غټیږئ ، نو بیا آخر تاسو ته دَ هغه په مقابله کښے دَ خپل واکئ حق ، یا دَ هغه نه سِوا دَ بل چا دَ بندګئ کولو حق څنګه حاصلیږی ؟

دَ دے آیت ظاهری دَلیل خو دَ توحید په حق کښے دے ، لیکن په دے کښے چه کومه خبره بیان کړے شوی ده په هغې چه سړے لږ زیات غور اوکړی نو په هغې کښے دَ آخرت دلیل هم مِلاویږی - کوم تخم چه په زمکه کښے کرَلے کیږی هغه مړوی لیکن کروندګر ئے چه کله دَ زمکے په قبر کښے ور ښخ کړی نو الله تعالیٰ پکښے دا سے ژوند را پیدا کړی چه تیغ تر

لَوۡ نَشَآءُ لَجَعَلۡنٰهُ حُطٰمًا فَظَلۡتُمۡ تَفَكَّهُوۡنَ ﴿۶۵﴾ اِنَّا لَمُغۡرَمُوۡنَ ﴿۶۶﴾ بَلۡ نَحۡنُ مَحۡرُوۡمُوۡنَ ﴿۶۷﴾ اَفَرَءَيۡتُمُ الۡمَآءَ الَّذِىۡ تَشۡرَبُوۡنَ ﴿۶۸﴾ ءَاَنۡتُمۡ اَنۡزَلۡتُمُوۡهُ مِنَ الۡمُزۡنِ اَمۡ نَحۡنُ الۡمُنۡزِلُوۡنَ ﴿۶۹﴾ لَوۡ نَشَآءُ جَعَلۡنٰهُ اُجَاجًا فَلَوۡلَا تَشۡكُرُوۡنَ ﴿۷۰﴾

که مونږه اُوغواړُو نو دَ دے فصلونونه به بُوس جوړکړو بيا به تاسو قِسما قِسم خبرې جوړَوئ چه په مونږه خو اُولټا تاوان راغے، بلکه زمونږه خو نصيب خراب شو دے۔ تاسو چرته په غوړيدلو سترګو کتلی دی چه دا کومے اُوبهٔ تاسو څکئ، آيا دا تاسو دَ ورېځونه راورَولی دی او که دَ دے راورَوُنکی مونږه يُو؟[29] که مونږه اُوغواړُو نو دَ دے نه به سخت ترُوِے اُوبهٔ جوړے کړُو، نو تاسو شُکر وَلے نهٔ اُوباسئ؟[30][31]

راأُوزی او په پټو کښے شنه شنه فصلونه مُوجونه وهی۔ دا بے شماره مړی زمونږ په مخکښے هره ورځ دَ قبرونونه ژوندی راأُوزی۔ دا مُعجزه وَلے دَ حيرانتيا مُعجزه نهٔ ده څه چه سړے لاهغه دويمه مُعجزه ناممکنه اُوګڼړی کومه چه په قرآن کښے مونږ ته بيان شوی ده، يعنی دَ مرګ نه روستو دوباره ژوند۔

[29] يعنی يواز ے ستاسو دَ لوږے ختمولو دَ پاره نهٔ، بلکه ستاسو تندے دَ ختمولو دَ پاره انتظام هم مونږ کړے دے۔ دا اُوبه، چه ستاسو دَ ژوند دَ پاره دَ ډوډۍ نه هم زياتے ضروری دی، تاسو را جمع کړی نهٔ دی بلکه دا مونږه را جمع کوُو۔ په زمکه کښے دا سمندرونه مونږ راپيدا کړی دی۔ زمونږ دَ نمر په ګرمئ سره دَ سمندر دَ اُوبونه بړاس اُوچتيږی۔ مونږ په دے اُوبو کښے دا خاصيت پيدا کړے دے چه دَ ډيرې ګرمولو سره تړ بړاس جوړيږی۔ زمونږه هوا ګانے دا دَ ځان سره وړی۔ زمونږ په قدرت او حکمت سره هغه بړاس را جمع شی او ورېځے ترِ جوړے شی۔ زمونږ په حکم سره دا ورېځے په خاص تناسب سره تقسيم شی او دَ زمکے په مختلفو حصّو باندِ خورے شی دَ پاره دَ دے چه دَ زمکے دَ کومے حصّے دَ پاره دَ اُوبو کومه حصّه مقرر ده چه هغه ور اُورسی۔ او مونږه پاس په هوا کښے هغه يخوالے پيدا کړو چه دَ هغې په ذريعه دا بړاس په اُوبو کښے بدل شی۔ مونږه تاسو يوازے پيدا کړی نهٔ يئ، بلکه ستاسو دَ پالنے دا ټول انتظام هم مونږ کړو چه دَ دے نه بغير تاسو ژوندی نشئ پاتے کيدے۔ نو چه مونږ پيدا کړئ او زمونږه رزق خورئ او زمونږه اُوبهٔ څکئ نو دا حق درته څنګه حاصل شو چه زمونږ په مقابله کښے خپلواکه شئ، يا زمونږ نه بغير دَ بل چا بندګی شروع کړئ؟

[30] په دے آيت کښے دَ الله دَ قدرت او دَ حکمت يو اهم کارنامه په ګوته کړے شوی ده۔ په اُوبو کښے چه الله تعالیٰ کوم بے شماره خاصيتونه کيښودلی دی په هغې کښے يو خاصيت دا هم دے چه که په دے کښے هر څو مره څيزونه حل شی، خو چه کله دَ ګرموالی په وجه په بړاس کښے بدليږی

أَفَرَءَيْتُمُ النَّارَ الَّتِي تُورُونَ ﴿۷۱﴾ ءَأَنتُمْ أَنشَأْتُمْ شَجَرَتَهَا أَمْ نَحْنُ الْمُنشِئُونَ ﴿۷۲﴾ نَحْنُ جَعَلْنَاهَا تَذْكِرَةً وَمَتَاعًا لِّلْمُقْوِينَ ﴿۷۳﴾

تاسوچرته خيال کړے دے، داوُورچه تاسوبَلَوئ، آيادَدے وُنه تاسوپيدا کړی ده، اوکه دَدے پيداکوُنکی موږه يو؟[۳۲] موږه هغه دَ وږيادَولوذريعه[۳۳] اودَ حاجتمندووَپاره[۳۴] دَ ژوند تيرَولوسامان جوړکړے دَے۔

---

نوټول حل شوی څيزونه لاندِ پريږدی اوصرف دَ خپلواصلی اجزاوُوسره په هواکښے والوَزی۔ دا خاصيت که په اُوبوکښے نهٔ وے نودَ بړاس جوړيدو په وخت کښے به هغه ټول حل شوی څيزونه هم په هواکښے شامليدل اوبيابه پکښے دَ سمندرمالګه هم شامله وه اوچه باران کيدونوټوله زمکه به مالګينه کيدله۔ نهٔ به انسان هغه اُوبه څکلے شوے اونهٔ به پربوټی رازرغونيدے شو۔ اوس چه څوک لږ شان عقل په سرکښے لری آياهغه دادعوئ کولے شی چه په اُوبوکښے دا دَحکمت نه ډک خاصيت پخپله راپيداشوے دَے؟ دَ کوم خاصيت په وجه چه دَ تروُواوبودَ سمندرونونه صفاخوږے اُوبهٔ اُوچتے شی اودَ باران په شکل کښے راوريږی اوبيادَ دريابونو، نهرونو، چينواوکويانوپه شکل کښے هرځائے ته رسی اودَانسان خدمت کوی، داپه دے خبره ښکاره ګواهی کوی چه اللّٰه تعالیٰ په اُوبوکښے داخاصيت بنه په سوچ فکراواراده سره دَدے مقصد دَپاره کيښودلے دَے چه دا اُوبهٔ دَاللّٰه دَ مخلوق دَپالنے ذريعه جوړه شی۔کوم مخلوق چه په تروُواُوبوکښے دَ ننه ژوند تيروی هغه په سمندرکښے پيداکړل اوهلته هغوئ بنه دَمزے ژوند تيروی۔ ليکن کوم مخلوق چه هغه په وچه اوپه هواکښے پيداکړی وُودَ هغوئ دَپالنے دَ پاره دَ خوږواُوبوضرورت وُو اودَ خوږواوبودَراجمع کولودَپاره دَ باران دَ انتظام کولونه مخکښے هغه په اُوبوکښے داخاصيت کيښودوچه دَ بړاس جوړيدوپه وخت کښے هغه يوحل شوے څيزدَځان سره وَ نهٔ نسی۔

[۳۲] يعنی دَ نعمت ناشکری وَلے کوئ چه په تاسوکښے څوک داباران دَ ديوتاګانوکارنامه ګنړی، اوڅوک داخيال کوی چه دَ سمندرنه ورځے اُوچتيدل اوبيادَ اُوبوپه شکل کښے دَ آسمان نه راوريدل يوفطری چکردَے چه پخپله کيږی، اوکه څوک ئے دَ خدائے رحمت ګنړی هم خودَ خدائے داحق په ځان لازمی نهٔ مَنی چه هغه ته دَ مننے سربښکته کړی؟ دَ خدائے دَ دومره لوئ نعمت نه فائده اخلئ اوبياپه جواب کښے کفر اوشرک اونافرمانی کوی؟

[۳۳] دَ وُنے نه مُراد ياخوهغه ټولے وُنے دی چه دَ هغے دَ لرګونه وُوربَلَولے کيږی، ياتر مُراد مَرْخ او عَفَار نومے هغه دوه وُنے دی چه پخواپه زمانه کښے به دَ عربوخلقو دَ هغے شنے څانګے په يوبل اُووهلے اووُوربه ئے تربل کړو۔

[۳۴] داوُوردَ وريادَولوذريعه ده، دَدے مطلب دادَے چه داوُورهغه څيزدَے چه څه وخت بلَ شی نوانسان ته دَهغه هيرشوے سبق وريادَوی۔ که وُورنهٔ وے نودَ انسان ژوند به دَ ځناورو دَ

فَسَبِّحْ بِاسْمِ رَبِّكَ الْعَظِيمِ ﴿۷۴﴾ فَلَآ أُقْسِمُ بِمَوَاقِعِ النُّجُومِ ﴿۷۵﴾ وَإِنَّهُ لَقَسَمٌ لَّوْ تَعْلَمُونَ عَظِيمٌ ﴿۷۶﴾ إِنَّهُ لَقُرْآنٌ كَرِيمٌ ﴿۷۷﴾ فِي كِتَابٍ مَّكْنُونٍ ﴿۷۸﴾ لَّا يَمَسُّهُ إِلَّا الْمُطَهَّرُونَ ﴿۷۹﴾

نوا ے نبیؐ، دَ خپل لوئ رب دَ نوم تسبیح[۳۵] لوَله ع

پس نهٔ،[۳۶] څه قَسم خورم دَ ستورو په ځایونو باندِ، اوکه تاسو پوهیږئ نو دا ډیر غټ قَسم دے، چه دا دَ اُوچتے مرتبے قرآن[۳۷] دے، په یو محفوظ کتاب کښے لیکلے شوے دے،[۳۸] چه دَ پاکانو نه سوا ورته هیڅوک گوتے نشی[۳۹] وړوړلے۔

ژوند نه مختلف نهٔ وے۔ دَ وُور په ذریعه انسانانو خپل خوراکونه پخَول شروع کړل او بیا دَ دے دَ پاره دَ کاریگرئ اودَ څیزونو جوړولو نوے نوے لارے معلومے شوے۔ ښکاره خبره ده که الله تعالیٰ هغه ذریعے پیدا کړی نهٔ وے دَ کومونه چه وُور بلیږی، اوهغه څیزونه ئے پیدا کړی نهٔ وَے کوم چه په وُور سره بلیږی، نودَ انسان دَ څیزونو جوړولو صلاحیت به بند پاتے شوے وَے۔ لیکن انسان دا خبره هیره کړی ده چه دَ هغه خالق یو حکیم پالونکے دے چه یو طرفته ئے انسان دَ یو رقابلیتونو سره پیدا کړو او بل طرفته ئے په زمکه کښے هغه څیزونه هم پیدا کړل چه په هغے سره دَ انسان دا قابلیتونه په عمل کښے راشی۔ انسان که په غفلت کښے بے هوشه نهٔ وی نو بیا زے یو وُور هغه ته دَ دے خبری دَ وریادولو دَ پاره کافی دے چه دا دَ چا احسانونه اودَ چا نعمتونه دی چه هغه تر په دُنیا کښے فایده اخلی۔

[۳۴] په اصل کښے لفظ مُقوِینَ استعمال کړے شوے دے۔ لُغت والو دَ دے مختلفے معنے بیان کړی دی۔ څینی وائی چه دَ دے معنیٰ ده په صحرا کښے کرځیدونکی مسافران۔ څینی وائی چه معنیٰ ئے ده وږے سړے۔ او څینی وائی چه دَ دے نه مُراد هغه ټول خلق دی څوک چه دَ وُورنه فایده اخلی، خواه که هغه دَ خوراک پخولو فایده وی، که دَ رنړاکولو فایده وی، اوکه دَ ځان گرمولو فایده وی۔

[۳۵] یعنی دَ هغه مبارک نوم واخله او دا اعلان اوکړه چه هغه دَ هغه ټولو عیبونو، نقصانونو او کمزورونه پاک دے کوم چه کافران او مشرکان په هغه پورے تړی او کوم چه دَ کفر اودَ شرک په هره عقیده کښے اودَ آخرت نه دَ انکار کولو په هر دلیل کښے دَ ننه پټ پراته دی۔

[۳۶] یعنی خبره هغه نهٔ ده کومه چه تاسو وائی۔ دلته په دے خبره قَسم خوړلے شوے دے چه قرآنِ پاک دَ الله د طرفنه دے، لیکن دَ قَسم خوړلو نه مخکښے لفظ "لا" استعمال شوے دے. دَ دے "لا" دَ مخکښے استعمالولونه دا خبره پخپله معلومیږی چه خلقو دَ دے پاک کتاب په حقله څه خبرے کولے چه دَ هغے دَ تردید دَ پاره دا قَسم خوړلے شوے دے۔

[۳۷] دَ ستورو دَ ځایونو نه مُراد دَ هغوی خپل مستقل ځایونه، دَ هغوی منزلونه اودَ هغوی دَ تللو لارے دی۔ او په دوئ باندِ چه کوم قَسم دَ دے خبری دَ ثبوت دَ پاره خوړلے شوے دے چه قرآن دَ اُوچتے مرتبے کتاب دے نو دَ دے مطلب دا دے چه لکه څنګه په عالِم بالا کښے دَ ستورو اودَ سیارون مئ نظام

یو مُحکَم او مضبوط نظام دے دغه شان مُحکَم او مضبوط دا کلام هم دے۔ کوم خدائے چه هغه نظام جوړ کړے دے هغه خدائے دا کلام هم نازل کړے دے۔ د کائنات په بے شماره کهکشانونو (Galaxies) کښے او په هغه کهکشانونو کښے د ننه چه کوم بے شماره ستوری (Stars) او سیارے (Planets) دی په هغے کښے چه کوم د کمال درجے ربط او نظم قائم دے، حالانکه هغه په ظاهره بالکل خوارۀ وارۀ ښکاری، دغه شان دا کتاب هم د ژوند تیرولو د پاره د کمال درجے یو مربوط او منظم نظام پیش کوی چه په هغے کښے د عقیدے په بُنیاد باندې د اخلاقو، د عباداتونو، د تهذیب، د ژوند تیرولو، د قانون او د عدالت، د صلحے او د جنګ، غرض دا چه د انسان د ژوند په ټولو اړخونو باندې تفصیلی حکمونه ورکړے شوی دی، او په هغے کښے یو څیز هم د بل څیز نه جُدا نۀ دے حالانکه په جُدا جُدا آیتونو کښے او په مختلفو ځایونو کښے چه کومے خطبے ویلے شوی دی په هغے کښے د فکر دا نظام بیان شوے دے۔ بیا لکه څنګه چه خدائے د عالَم بالا کوم نظم مقرر کړے دے هغه نۀ بدلیدونکے دے او د ذرّے هومره فرق پکښے نۀ راځی، دغه شان په دے کتاب کښے چه کوم حقیقتونه بیان کړے شوی دی او کوم حکمونه پکښے شوی دی هغه نۀ بدلیدونکی دی، په هغے کښے د ذرّے هومره څه څیز څوک د خپل ځائے نه نشی بے ځایه کولے۔

**۳۸ے** د دے نه مُراد دے لوح محفوظ دے۔ د هغه د پاره لفظ "کتاب مکنون" استعمال شوے دے چه معنیٰ ئے ده یو داسے لیک چه هغه پټ ساتلے شوے دے، یعنی چه هغے ته هیڅوک نشی رسیدے۔ په دغه محفوظ کتاب کښے د قرآن د لیکلو مطلب دا دے چه په نبی صلی الله علیه وسلّم باندې د نازلولو نه مخکښے هغه د الله تعالیٰ سره په داسے ځائے کښے لیکلے شوے پروت دے چه په هغے کښے د بدلون هیڅ امکان نشته، ځکه چه هغے ته یو مخلوق هم نشی رسیدے۔

**۳۹ے** دا تردید دے د کافرانو د هغه الزامونو کوم چه به هغوی په قرآن باندې لګول۔ هغوی به رسول الله صلی الله علیه وسلّم ته کاهن (یعنی غیب وئیونکی) وئیلو او وئیل به ئے چه دا کلام هغه ته پیریان او شیطانان ښائی۔ د دے جواب په قرآن کښے په ډیرو ځایونو کښے ورکړے شوے دے۔ مثلاً په سورۃ شُعَراء کښے فرمائی: "وَمَا تَنَزَّلَتْ بِهِ الشَّيٰطِيْنُ، وَمَا يَنْۢبَغِيْ لَهُمْ وَمَا يَسْتَطِيْعُوْنَ، اِنَّهُمْ عَنِ السَّمْعِ لَمَعْزُوْلُوْنَ۔" "دا شیطانانو نۀ دے نازل کړے، نۀ دا کلام د هغوی سره ښائی او نۀ هغوی داسے کولے شی۔ هغوی خو د دے د اوریدو نه هم لرے ساتلے شوی دے" (آیتونه ۲۱۰ تا ۲۱۲)۔ هم دا خبره دلته په دے الفاظو کښے بیان کړے شوی ده چه "دے له د پاکانو نه سِوا بل هیڅوک لاس نشی وروړے" یعنی لا دا خبره چه شیطانان ئے راوړی، یا د دے د نازلیدو په وخت کښے څه مداخلت اوکړی، دا خو بیخی لرے خبره ده، په کوم وخت کښے چه دا په نبی باندې نازلولے کیږی په هغه وخت کښے د مُطَهَّرِینو یعنی د پاکو فرښتو نه سِوا بل څوک نزدے هم نشی ورتلے۔ د فرښتو د پاره مُطَهَّرِین لفظ په دے معنیٰ کښے استعمال کړے شوے دے چه الله تعالیٰ هغوی د هر قِسم ناپاکو جذباتو او خواهشاتو نه پاکے ساتلے دی۔

د دے آیت دا تفسیر اَنَس رضی الله عنه بن مالک، ابنِ عباس رضی الله عنه، سعید بن جُبَیر رحمه الله، عِکرِمه، مُجاهد، قَتادہ، ابوالعالیه، سُدِّی، ضحاک او ابن زید بیان کړے دے، او د کلام د نظم سره هم دا تفسیر مناسبت لری، ځکه چه د روان عبارت نه دا پخپله معلومیږی چه د توحید او د آخرت په حقله د مکے د کافرانو د غلطو خیالاتو تردید اوشو او اوس د قرآن مجید په باره کښے چه د هغوی کوم د دروغو ګمانونه دی

دَ هغې تردید کیږی او دَ ستورو په ځایونو باندې په قسم خوړلو سره دا خبره کړی شوې ده چه دا قرآن دَ الله تعالیٰ کلام دے او په یو محفوظ مقام کښې ثبت دے او دَ الله تعالیٰ سره په داسې محفوظ ځائے کښې لیکلې شوې پروت دے چه هلته دَ مخلوق دَ ورتلو هیڅ امکان نشته ، او په نبی باندې په داسې طریقه نازلیږی چه دَ پاکو فرښتو نه سیوا هغې له بل هیڅوک گوتے نشی وروړې ۔

ځینو مفسرینو په دے آیت کښې " لا " دَ نهی په معنیٰ کښې اغستے دے او دَ آیت ئے دا مطلب بیان کړے دے ، " داسې سړے دِ دے له گوتے نهٔ وروړی چه هغه پاک نهٔ وی " یا " ناپاک سړی له نهٔ دی پکار چه دے له گوتے ورووړی ". او ځینی نور مفسرین اگرچه " لا " دَ نفی په معنیٰ کښې اخلی او دَ آیت مطلب دا بیانوی چه " دے کتاب له دَ پاکانو نه سیوا بل څوک گوتے نهٔ وروړی " ، لیکن هغوی وائی چه دا نفی دَ نهی په معنیٰ کښې ده لکه څنگه چه دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم دا حدیث دے چه " المسلم اخو المسلم لا یظلمه " ( یو مسلمان دَ بل مسلمان رُور دے ، هغه په هغه ظلم نهٔ کوی ) ۔ په دے کښې اگرچه دا خبره شوی ده چه مسلمان په مسلمان ظلم نهٔ کوی ، لیکن په اصل کښې دَ دے نه دا حکم راوُزی چه مسلمان دِ په مسلمان ظلم نهٔ کوی . دغه شان په دے آیت کښې اگرچه دا فرما یلے شوی دی چه دَ پاکانو نه خلقو نه سیوا بل څوک قرآن له گوتے نهٔ وروړی ، لیکن دَ دے نه دا حکم راوُزی چه ترڅو یو سړے پاک نهٔ وی نو هغه دِ دے له گوتے نهٔ ورووړی ۔

لیکن حقیقت دا دے چه دا تفسیر دَ آیت دَ وړاندِ روستو عبارت سره سمون نهٔ خوری ، چه دَ وړاندِ روستو عبارت نه جُدا کړے شی نو بیا دَ دے الفاظو نه دا مطلب راوتے شی ، لیکن په کوم روان عبارت کښې چه دا آیت راغلے دے په هغې کښې چه ورته سړے اُوگوری نو دَ دے خبری هډو څه موقع په نظر نهٔ راځی چه " دے کتاب له دِ دَ پاکانو خلقو نه سیوا بل څوک گوتے نهٔ وروړی " . ځکه چه دلته خو خبره کافرانو ته ده او هغوی ته وئیلے کیږی چه دا دَ الله رب العالمین کتاب دے ، دَ دے په باره کښې ستاسو دا گمان بالکل غلط دے چه دا کینې شیطانان نبی ته ښائی . دلته دَ دے شرعی حکم بیانولو آخر څه موقع کیدے شی چه څوک پاک نهٔ وی نو هغه دِ دے له گوتے نهٔ وروړی ؟ چه ډیره زیاته شی نو دا خبره کیدے شی چه اگرچه آیت دَ دے حکم دَ پاره نازل شوے نهٔ دے لیکن دَ کلام دَ اندازے نه دا معلومیږی چه لکه څنگه دَ الله تعالیٰ سره دے کتاب ته صرف پاک مخلوق گوتے وروړے شی ، دغه شان په دے دُنیا کښې دِ هم هغه خلق چه کم از کم په دے کتاب باندې دَ کلام الله په حیثیت ایمان لری ، هغوی دِ ورله دَ ناپاکی په حالت کښې گوتے نهٔ وروړی ۔

په دے مسئله کښې لاندینی روایتونه مِلاویږی :

( ۱ ) امام مالکؒ په مُؤطا کښې دَ عبد الله بن ابوبکر بن عَمرو بن حَزم دا روایت نقل کړے دے چه رسول الله صلی الله علیه وسلم کوم لیکلی حکمونه دَ عمرو بن حَزم په لاس دَ یمن سردارانو ته لیږلی وُو په هغې کښې یو حکم دا هم وُو چه لا یَمَسّ القرآن الا طاهر ( هیڅوک دِ قرآن له گوتے نهٔ وروړی سیوا دَ پاک سړی نه ) . هم دا خبره ابو داؤد په مراسیل کښې دَ امام زهری نه نقل کړی ده چه هغه دَ محمد بن عمرو بن حَزم سره دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم کوم لیک لیدلے وُو په هغې کښې دا حکم هم وُو ۔

( ۲ ) دَ حضرت علیؓ روایت چه په هغې کښې فرمائی ، ان رسول الله صلی الله علیه وسلم لم یکن یحجزه عن القرآن شیء لیس الجنابة - " رسول الله صلی الله علیه وسلم په هیڅ څیز دَ قرآن دَ تلاوت نه نهٔ منع کوُو سِوا دَ جنابت نه " ( ابوداؤد ، نسائی ، ترمذی ) ۔

( ۳ ) دَ ابن عمرؓ روایت ، چه په هغې کښې هغه فرمائی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائی لا تقرأ

الحائض والجنب شیئامن القرآن۔" حائضه ښځه او جنبی انسان دِ دَ قرآن هیڅ حصه نهٔ لولی "۔
(ابوداؤد ۔ ترمذی)۔

(۴) دَ بخاری روایت، چه پکښې دا بیان دے چه رسول الله صلی الله علیه وسلّم دَ روم قیصر هرقل ته کوم خط لیږلے وُو په هغې کښې دَ قرآن مجید دا آیت هم لیکلے شوے وُو چه یَا اَهْلَ الْكِتٰبِ تَعَالَوْا اِلٰى كَلِمَةٍ سَوَآءٍۭ بَيْنَنَا وَ بَيْنَكُمْ .....

په دے مسئله کښې چه دَ صحابو اوَ تابعینو کوم عمل نقل کړے شوے دے هغه دا دے:

حضرت سلمان فارسیؓ به دَ اودس نه بغیر په قرآن لوستلو کښې باک نهٔ گڼړو، لیکن دَ هغه په نزد بے اودسه قرآن ته گوتے وروړل جائز نهٔ وُو۔ دا عمل دَ حضرت سعد بن ابی وقاصؓ او دَ حضرت عبدالله بن عمرؓ هم وُو۔ حضرت حسن بصریؒ او ابراهیم نخعی هم دَ اودس نه بغیر قرآن له گوتے وروړل مکروهه گڼړل۔ (احکام القرآن للجصّاص)۔ دَ عطاء اوَ طاؤس اوَ شعبی اوَ قاسم بن محمد نه هم دا خبره نقل کړے شوی ده (المغنی لابن قدامه)۔ البته چه څوک دَ قرآن نه تلاوت کوی او لاس نهٔ ورو وړی، یا ئے په یاد و لولی، نو دا دَ ټولو په نزد بے اودسه هم جائز دی۔

دَ جنابت اوَ حیض اوَ نفاس په حالت کښې قرآن لوستل دَ حضرت عمرؓ، دَ حضرت علیؓ، دَ حضرت حسن بصریؒ، دَ حضرت ابراهیم نخعی اوَ دَ امام زهری په نزد مکروه وُو۔ لیکن دَ ابن عباسؓ رائے دا وه او په هغې دَ هغه عمل هم وُو چه دَ قرآن کومه حصه لوستل دَ سړی عادت وی هغه په یاد و لوستلے شی۔ دَ حضرت سعید بن المسیّب اوَ حضرت سعید بن جُبیر نه په دے مسئله کښې تپوس اُوشو نو هغوی اُوفرمائیل چه وَلے قرآن دَ هغه په حافظه کښې محفوظ نهٔ دے؟ نو په لوستلو کښې ئے څه گناه ده؟ (المغنی ـ او المحلّیٰ لابن حَزم)۔

په دے مسئله کښې دَ فقهاؤ مسلکونه لاندینی دی:

دَ حنفی مسلک تشریح امام علاء الدین الکاشانی په بدائع الصّنائع نومے کتاب کښې داسے کړی ده،
"څنگه چه مونځ کول بے اودسه جائزه نهٔ دے دغه شان قرآن مجید له لاس وروړل هم جائز نهٔ دی۔ البته که په غلاف کښې دَ ننه وُونو بیا خیر دے۔ څینی فقهاء وائی چه دَ غلاف نه مُراد دَ قرآن پاسنئ کته ده او څینی وائی چه دَ دے نه مُراد هغه کپړه یا کسوړئ یا دِ بے دے چه په هغې کښې خلق قرآن ږدی او دَ هغې نه ئے راخلی۔ دغه شان دَ تفسیر کتابونو ته هم بے اودسه گوتے نهٔ وروړل پکار دی، نهٔ یو داسے څیز ته چه په هغې کښې دَ قرآن آیت لیکلے شوے وی۔ البته دَ فقهے کتابونو ته سړے بے اودسه لاس وروړے شی اگرچه مستحب خبره دا ده چه هغې له دِ هم بے اودسه گوتے نهٔ وروړی، ځکه چه په هغې کښې هم دَ قرآن آیتونه لیکلے شوی وی۔ څینی حنفی فقهاء دَ دے خبرے قائل دی چه دَ قرآن صرف هغه حصے له گوتے وروړل صحیح نهٔ دی په کومه کښې چه دَ قرآن عبارت لیکلے شوے وی، پاتے شوے حاشیے یعنی غاړے نو که هغه ساده وی او که څه تشریح پکښې لیکلے شوے وی، هغې له په گوتو وروړلو کښې څه باک نشته۔ لیکن صحیح خبره دا ده چه حاشیے هم دَ قرآن یوه حصه ده او هغې له گوتے وروړل قرآن له گوتے وروړل دی، پاتے شو قرآن لوستل، نو دا بے اودسه هم جائز دے"۔ په فتاوی عالمگیری کښې بچے په دے حکم کښې نهٔ راځی۔ بچی دَ تعلیم دَ پاره قرآن مجید په لاس کښې راغستے شی، خواه که دَ هغوئ اودس وی او که نهٔ۔

تَنْزِيْلٌ مِّنْ رَّبِّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿۸۰﴾ اَفَبِهٰذَا الْحَدِيْثِ اَنْتُمْ مُّدْهِنُوْنَ ﴿۸۱﴾ وَ تَجْعَلُوْنَ رِزْقَكُمْ اَنَّكُمْ تُكَذِّبُوْنَ ﴿۸۲﴾

دا دَ ربُّ العالمین دَ طرفنه نازل شوے دے ۔ نوآیا تاسو دَ دے کلام سره بے پروا ئی کوئ، او په دِے نعمت کښے موخپله حصّه دا مقررکړی ده چه دا دروغ گنړئ؟

شافعیؒ مسلک امام نووی په المنهاج کښے په دے طریقه بیان کړے دے: " دَ مونځ او دَ طواف پشان قرآن له لاس وروړل او دَ قرآن دَ پاڼے سره گوتے لگول هم دَ اودس نه بغیر حرام دی ۔ دغه شان دَ قرآن پاسنۍ کپړے له گوتے وروړل هم منع دی ۔ اوکه قرآن په څه کپړه کښے یا په وړوکی صندق کښے وی، یا دَ درس دَ پاره په یوه تختۍ لیکلے شوے وی نو هغے له هم گوتے وروړل جائز نهٔ دی ۔ البته که قرآن په سامان کښے وی، یا دَ تفسیر په کتابونو کښے لیکلے شوے وی، یا په سکه کښے دَ هغے څه حصّه لیکلے شوے وی نو هغے له لاس وروړل حلال دی ۔ ماشوم هم قرآن له بے اودسه لاس وروړے شی ۔ او بے اودسه سړے که قرآن لولی نو په لرګی یا په بل څیز دَ هغے پاڼے اړولے شی ۔

مالکی مسلک چه کوم په " الفقه علی المذاهب الاربعه " کښے نقل شوے دے هغه دا دے چه دَ جمهور فقهاؤ سره هغهٔ په دے خبره کښے متفق دے چه قرآن له دَ لاس وروړلو دَ پاره اودس شرط دے ۔ لیکن دَ قرآن دَ تعلیم دَ پاره هغه استاذ او شاگرد دواړه دَ دے حکم نه جُدا کوی ۔ بلکه هغه وائی چه دَ حائضے ښځے دَ پاره هم دَ تعلیم په غرض قرآن له گوتے وروړل جائز دی ۔ ابن قدامه په المغنی کښے دَ امام مالکؒ دا قول هم نقل کړے دے چه دَ جنابت په حالت کښے خو قرآن لوستل منع دی، لیکن دَ حیض په حالت کښے ښځے ته دَ قرآن لوستلو اجازت دے، ځکه که چرے ویره موده مونږه هغه دَ قرآن لوستلو نه منع کړو نو دَ هغے نه به قرآن هیر شی ۔

دَ حنبلی مذهب حکم نه چه کوم ابن قدامه نقل کړی دی هغه دا دی چه " دَ جنابت په حالت کښے، او دَ حیض او دَ نفاس په حالت کښے قرآن یا دَ قرآن پوره آیت لوستل جائز نهٔ دی، البته بسم الله، الحمد لله وئیل جائز دی، اگرچه دا هم دَ آیت څه حصّه ده، لیکن دَ دے نه دَ قرآن تلاوت مقصود نهٔ وی ۔ پاتے شو قرآن له لاس وروړل، نو هغه په هیڅ حال کښے دَ اودس نه بغیر جائز نهٔ دی، البته که دَ قرآن یو آیت په خط کښے یا دَ فقهے په کتاب کښے یا په بل لیک کښے درج وی نو هغے له گوتے وروړل منع نهٔ دی ۔ دغه شان که قرآن په څه څیز کښے کینبود لے شوے وی نو هغه بغیر دَ اودس نه را اوچتول جائز دی ۔ دَ تفسیر کتابونو ته دَ لاس وروړلو دَ پاره هم اودس شرط نهٔ دے ۔ دا رنګے که یو بے اودسه سړے دَ ضرورت تر مخه قرآن له گوتے وروړی نو هغه تیمم کولے شی " په الفقه علی المذاهب الاربعه کښے دَ حنبلی مسلک دا مسئله هم درج ده چه که ماشومان دَ تعلیم په غرض هم بے اودسه قرآن له گوتے وروړی نو دا صحیح نهٔ ده او دا خبره دَ هغوی په مشرانو فرض ده چه دَ قرآن را غستو نه مخکښے په هغوی اودس اوکړی ۔

فَلَوْلَآ اِذَا بَلَغَتِ الْحُلْقُوْمَ ﴿۸۳﴾ وَاَنْتُمْ حِيْنَئِذٍ تَنْظُرُوْنَ ﴿۸۴﴾ وَنَحْنُ اَقْرَبُ اِلَيْهِ مِنْكُمْ وَلٰكِنْ لَّا تُبْصِرُوْنَ ﴿۸۵﴾ فَلَوْلَآ اِنْ كُنْتُمْ غَيْرَ مَدِيْنِيْنَ ﴿۸۶﴾ تَرْجِعُوْنَهَآ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ﴿۸۷﴾ فَاَمَّآ اِنْ كَانَ مِنَ الْمُقَرَّبِيْنَ ﴿۸۸﴾ فَرَوْحٌ وَّرَيْحَانٌ ۙ وَّجَنَّتُ نَعِيْمٍ ﴿۸۹﴾ وَاَمَّآ اِنْ كَانَ مِنْ اَصْحٰبِ الْيَمِيْنِ ﴿۹۰﴾ فَسَلٰمٌ لَّكَ مِنْ اَصْحٰبِ الْيَمِيْنِ ﴿۹۱﴾ وَاَمَّآ اِنْ كَانَ مِنَ الْمُكَذِّبِيْنَ الضَّآلِّيْنَ ﴿۹۲﴾

اوس که چرے تاسو دَ چا دَ حکم لاندِ نهٔ یئ اوپه دے خپل خیال کښے رِښتینی یئ، نوځه وخت چه دَ مړکیدونکی سړی رُوح مَرئ ته رارسیدلے وی اوتاسوګورئ چه هغه مړکیږی، نوپه دغه وخت کښے دَ هغه وتونکے رُوح وَلے نهٔ واپس کوئ؟ په دغه وخت کښے موږ هغه ته ستاسونه زیات نږدے یو خوتاسو وینئ نهٔ۔ بیاکه چرے هغه مړے د مقرّبینونه وی نودَ هغه دَپاره راحت، ښه رزق اودَ نعمت نه ډک جنت دے۔ اوکه دَ ښی اړخ دَ خلقونه وی نودَ هغه هرکلے به داسے کیږی چه سلام دے په تا، تهٔ دَ ښی اړخ په خلقوکښے یئے۔ اوکه چرے هغه په دروغ ګڼړونکوګمراهانوکښے وی

---

دَ ظاهریّه مسلک دادے چه قرآن لوستل اوقرآن له لاس وروړل په هرحالت کښے جائزدی، خوا که سړے بے اودسه وی، اوکه دَجنابت په حالت کښے وی، اوکه ښځه دَ حیض په حالت کښے وی۔ ابنِ حَزم په المحلیٰ کښے (اوّل جلد، صفحه ۷۷ تا ۸۴)۔ په دے مسئله باندِ تفصیلی بحث کړے دے چه په هغے هغه دَدے مسلک دَصحیحوالی دلیلونه پیش کړی دی اودا ئے وئیلی دی چه فقهاؤدَ قرآن لوستلو دَپاره اوقرآن له دَلاس وروړلودَپاره کوم شرطونه بیان کړی دی په هغے کښے یوهم دَ قرآن اودَ سنت نه ثابت نهٔ دے۔

۴۰ اصل الفاظ دی اَنْتُمْ مُّدْهِنُوْن ۔ دَ اِدْهَان معنیٰ ده دَیوخیز سره سُستی کول۔ هغے له اهمیت نهٔ ورکول۔ هغه دَ غورکولو قابل نهٔ ګڼړل۔ په انګریزئ ژبه کښے (To take lightly) الفاظ دِے مفهوم ته ډیرنږدے دی۔

۴۱ امام رازی دَ تَجْعَلُوْنَ رِزْقَكُمْ په تفسیر کښے یوامکان داهم ظاهرکړے دے چه کیدے شی دلته لفظ رزق دَ روزګار په معنیٰ کښے وی۔ چونکه قریشی کافرانوبه داګنړله چه دَ قرآن دعوت زمونږ دَ روزګاردَپاره نقصانی دے اوکه چرے دادعوت کامیاب شونوزمونږ؟ په رزق کښے به کمے راشی،

فَنُزُلٌ مِّنْ حَمِيمٍ ﴿٩٣﴾ وَّتَصْلِيَةُ جَحِيمٍ ﴿٩٤﴾ إِنَّ هٰذَا لَهُوَ حَقُّ الْيَقِينِ ﴿٩٥﴾ فَسَبِّحْ بِاسْمِ رَبِّكَ الْعَظِيمِ ﴿٩٦﴾

نو دَ هغه دَ ميلمستيا دَ پاره يشيدلې اُوبهٔ دي او دوزخ ته ورننوتل دي - دا ټول هرڅه يقيني حق دي، نو اے نبيّ، دَ خپل لوئ رب دَ نوم تسبيح لوله [۴۲] ع

نو په دے وجه دَ دے آيت دا مطلب هم کيدے شي چه تاسو دَ دے قرآن نه دَ خپلے خيټے مسئله جوړه کړې ده - ستاسو په نزد دَ حق او دَ باطل خبره هيڅ اهميت نهٔ لري، ستاسو په نظر کښې اصل اهميت دَ ډوډۍ دے او دَ هغے دَ پاره تاسو دَ حق مخالفت او دَ باطل ملګرتيا ډير په آسانه کوئ -

[۴۲] دَ حضرت عُقبَه بن عامر جُهَني روايت دے چه کله دا آيت نازل شو نو رسول الله صلی الله عليه وسلّم حکم اُوکړو چه تاسو دا په رکوع کښې وايئ، يعنې په رکوع کښې سُبْحَانَ رَبِّيَ الْعَظِيْمِ وايئ - (مُسْنَد احمد، ابوداؤد، ابن ماجه، ابن حبّان، حاکم) - دَ دے نه معلوميږي چه رسول الله صلی الله عليه وسلّم دَ مونځ کومه طريقه مقرر کړې ده دَ هغے وړه وړه حصّه هم دَ قرآن پاک دَ اشارونه راغستلے شوې ده -

# الحَدِیْد

**نوم** | دَ پنځیشتم آیت دَ فقرے وَاَنْزَلْنَا الْحَدِیْدَ نه اغستلے شوے دے۔

**دَ نازلیدو زمانه** | دا په اتفاق سره مدنی سورة دَے او دَ دے دَ مضمونونو نه معلومیږی چه غالباً دا به دَ جنګ اُحد او دَ صلح حُدَیْبِیے په مېنځ کښے په څه زمانه کښے نازل شوے وی۔ هم دا هغه زمانه وه چه دَ مدینے وړوکے شان اسلامی ریاست کافرانو دَ هر طرفنه راګیر کړے ؤو او یَو موټی مومنانو په تش لاس دَ ټول عرب مقابله کوله۔ په دِے حالت کښے اسلام ته یوازے دَ مسلمانانو دَ سر قربانئو ضرورت نۀ ؤو بلکه دَ مالی قربانئ ضرورت هم ؤو، او په دِے سورة کښے دَدِے قربانئ دَپاره سنه کلک اپیل شوے دے۔ دا قیاس په لسم آیت سره نور هم مضبوطیږی چه په هغے کښے الله تعالیٰ مومنانو ته فرمائی چه دَ فتحے نه روستو کوم خلق خپل مالونه خرچ کوی او دَ خدائے په لار کښے جنګ کوی هغوی هیڅکله هم دَ هغه خلقو سره نشی برابریدے چه هغوی دَ فتحے نه مخکښے خپل سر و مال قربانی کړی۔ او دَ دے تائید دَ حضرت انس رضی الله عنه هغه روایت کوی کوم چه ابنِ مَرْدُوْیَه نقل کړے دے۔ هغه دَ آیت: اَلَمْ یَاْنِ لِلَّذِیْنَ اٰمَنُوْٓا اَنْ تَخْشَعَ قُلُوْبُهُمْ لِذِكْرِ اللّٰهِ په حقله فرمائی چه دَ قرآن دَ نازلیدو دَ وخت نه اولس کاله روستو دَ مومنانو دَ رابیدارولو دَپاره دا آیت نازل شو۔ په دِے حساب سره دَدِے دَ نازلیدو زمانه دَ څلورم او دَ پنځم هجری په مېنځ کښے جوړیږی۔

**موضوع او مضمون** | دَ دے موضوع دا انفاق فی سبیل الله نصیحت دَے۔ دَ اسلام دَ تاریخ په هغه سخت نازک دَور کښے چه دَ عربو دَ جاهلیت سره دَ اسلام آخری جنګ شروع ؤو، دا سورة دَدے غرض دَپاره نازل کړے شوے ؤو چه مسلمانان خاص طور دَ مالی قربانئ دَپاره تیار کړے شی او دا خبره ورته په ذهن کښے واچولے شی چه ایمان تش دَ ژبے اقرار او دَ یو څو ظاهری عملونو نوم نۀ دَے بلکه دَ ایمان اصلی رُوح او حقیقت دا دَے چه سړے دَ الله او دَ هغه دَ دین دَپاره مُخلص شی۔ څوک چه دَدے رُوح نه خالی وی او دَ خدائے او دَ هغه دَ دین په مقابله کښے خپل سر او مال غوره ګڼړی نو دَ هغه دَ ایمان اقرار دَ بڼنه نه وَږ دے چه دَ الله سره ئے هیڅ قدر او قیمت نشته۔

دَ دے مقصد دَپاره دَ ټولو نه اوّل دَ الله تعالیٰ صفتونه بیان کړے شوی دی چه اوریدونکو ته بنه معلومه شی چه دَ څنګه لوئے هستئ دَ طرفنه هغوی ته خبره کیږی۔ دَدِے نه روستو لاندینی

مضمونونه پر لیتے بیان شوی دی،

____ دَ ایمان سره دا خبره لازمی ده چه سړے دِ دَ خدائے په لار کښے دَ مال خرچ کولونه نه یره نهٔ کوی - دا سے کول یوازے دَ ایمان دَ بنشوالی نښه نهٔ ده بلکه دَ حقیقت په اعتبار سره هم غلطه ده - ځکه چه دا مال په اصل کښے دَ خدائے مال دے او تاله پردَیو خلیفه په حیثیت سره اختیارات ورکړے شوی دی - پرون دا مال دَ بل چا سره ؤو، نن ستا سره دے اوصبا له به بیا بل چالاس له لاړ شی - آخر به دا خدائے ته پاتے کیږی چه هغه دَ کائناتو دَ هر څیز وارث دے - دَ دے مال که څه حصه ستا په کار راتلے شی نو هغه صرف هغه حصه ده چه تهٔ ئے په خپل دَور کښے دَ خدائے په لار کښے اُولګوے -

____ دَ خدائے په لار کښے سر او مال قربانی کول اګرچه په هر حال کښے یو قدر رمن کار دے، لیکن دَ دے قربانیانو قدر او قیمت په خاصو خاصو موقعو کښے جُدا جُدا وی - یوه موقعه هغه وی چه کله دَ کفر طاقت سخت په زور کښے وی او هر وخت دا خطره وی چه اسلام چرته دَ کفر په مقابله کښے لاندِ نهٔ شی - بله موقعه هغه وی چه کله دَ کفر او دَ اسلام په جنګ کښے دَ اسلام طاقت زیات شی او مومنانو دَ حق دَ دُشمنانو په مقابله کښے فتح نصیب کیږی - دا دواړه حالتونه یو شان نهٔ دی - نو په دے وجه چه کومے قربانیانے په دے مختلفو حالتونو کښے اُوشی هغه هم په خپل قیمت کښے برابر نهٔ دی - کوم خلق چه دَ اسلام په کمزوری حالت کښے دَ اسلام دَ اُوچتولو دَ پاره اُوجنګیږی او خپل مالونه خرچ کړی دَ هغوی درجے ته هغه خلق نهٔ شی رسیدے کوم چه دَ اسلام دَ غلبے په حالت کښے دَ اسلام دَ خورَولو دَ پاره خپل سر او مال قربانی کړی -

____ دَ خدائے په لار کښے چه کوم مال خرچ کړے شی هغه دَ الله په ذمه قرض دے، او هغه به الله تعالیٰ نهٔ یوازے دا چه په څو څو چنده زیات واپس کوی بلکه دَ خپل طرفنه به زیات اَجر هم ورکوی -

____ په آخرت کښے به نور هغه مومنانو ته نصیب کیږی چا چه دَ خدائے په لار کښے خپل مال خرچ کړے وی - پاتے شو هغه منافقان خلق چه په دُنیا کښے خاص خپلو فائدو ته ګوری او دَ دے خبری ورسره هیڅ پروا نهٔ وی چه حق غالب کیږی او که باطل، هغوی اګرچه دَ دُنیا په دے ژوند کښے دَ مومنانو سره شریک اُوسیدلی وی، لیکن په آخرت کښے به هغوی دَ مومنانو نه جُدا کړے شی، هغوی به دَ نُور نه محرومه وی او دَ هغوی انجام به دَ کافرانو سره وی -

____ مسلمانانو له دَ هغه اهل کتابو پشان کیدل نهٔ دی پکار چه ټول عُمر ئے په دُنیا پرستئ کښے تیر شوے دے او زړونه ئے دَ ډیرے زمانے دَ غفلتونو دَ وجے نه دَ کاڼړو پشان شوی دی - هغه به څه مومن وی چه زړه ئے دَ خدائے په ذکر سره ویلی نه شی او دَ هغه نازل کړے شوی حق ته غاړه کینږدی -

____ دَ الله په نز صدّیق او شهید صرف هغه مومنان دی چه هغوی خپل مال دَ ریا نه بغیر دَ زړه په صدق سره دَ الله په لار کښے خرچ کوی -

____ دَ دُنیا ژوند صرف دَ یو څو ورځو سپر لے او دَ دوکے سامان دے، دَ دے خا لوبے، دَ دے خا

مینے، دَدے ځائے بنایُست او ښکلا، دَدے ځائے په لوئ والی باندِ فخر، او دَدے ځائے مال او دولت، چه خلق پکښے دَیو بل نه دَ زیاتید و کوشش کوی، دا ټول هرڅه فنا کید ونکی دی، دَدے مثال دَ هغه فصل پشان دے چه اوّل شین شی، بیا زیړ شی او په آخر کښے تش بُوس پاتے شی۔ نه ختمید ونکے ژوند په اصل کښے دَ آخرت ژوند دے چه هلته به لوئے نتیجے څرګند یږی۔ تاسو که دَ یو بل نه دَ وړاندِ والی کوشش کوئ نو دا کوشش جنّت ته په منډه کولو کښے اُوکړی۔

—— په دُنیا کښے چه کومه خوشحالی او مصیبت راځی هغه دَ الله تعالیٰ دَ مخکښے لیکلے شوی فیصلے مطابق راځی۔ مومن له پکار دی چه دَ مصیبت په راتلو سره حوصله نهٔ بائیلی، او په خوشحالی کښے غرُور اُونهٔ کړی۔ دا خو دَ منافق او دَ کافر سړی کار دے چه الله ورله یو نعمت ورکړی نو ځان ته غره شی او فخر شروع کړی او دَ خدائے په کار کښے ځپله هم خرچ نهٔ کوی او نورو ته هم دَ خرچ نهٔ کولو مشوره ورکوی۔

—— الله تعالیٰ خپل رسولان دَ څرګندو نښو سره او دَ کتاب او دَ انصاف دَ میزان سره رالیږلی دی چه خلق په انصاف باندِ قایم وی، او دَدے سره ئے وُسپنه هم نازله کړه چه دَ حق دَ قایمولو او دَ باطل دَ ښکته کولو دَ پاره طاقت استعمال کړے شی۔ په دے طریقه الله تعالیٰ دا معلومَول غواړی چه په انسانانو کښے څوک داسے دی چه دَ هغه دَ دین دَ مرستے او دَ امداد دَ پاره راپاسی او دَ هغه دَ پاره اُوجنګیږی۔ دا موقعے الله تعالیٰ ستاسو دَ خپلے ترقئ دَ پاره پیدا کړی دی، ګنیٔ نو الله تعالیٰ دَ خپل کار دَ پاره چاته محتاج نهٔ دے۔

—— دَ الله تعالیٰ دَ طرفنه اوّل پیغمبران راتلل چه دَ هغوی په دعوت سره څه خلق نیغ لارے ته راغلل او ډیر خلق فاسقان پاتے شو۔ بیا عیسیٰ علیه السّلام راغے چه دَ هغه دَ تعلیم سره په خلقو کښے ډیرے اخلاقی خوبیانے پیدا شوے، لیکن دَ هغه اُمّت دَ رهبانیّت بدعت شروع کړو۔ اُوس الله تعالیٰ محمد صلی الله علیه وسلّم رالیږلے دے۔ په هغه چه کوم خلق ایمان راوړی او دَ خدائے دَ یرے ژوند شروع کړی، الله تعالیٰ به هغوی له دَ خپل رحمت دوه چنده حصّه ورکوی او هغوی له به هغه نُور ورکړی چه په هغے سره به هغوی دَ دُنیا په ژوند کښے په هرقدم باندِ دَ کږو لارو په منځ کښے نیغه لار لیدے شی۔ اهلِ کتاب که هرڅومره خپل ځان دَ الله دَ فضل ټیکه داران ګنړی، خو دَ الله فضل دَ هغه ځپل لاس کښے دے، دَ هغه اختیار دے چه چاله خپل فضل ورکول غواړی هغه له ئے ورکوی۔

دا دَ هغه مضمونونو خلاصه ده کوم چه په دے سورة کښے په یو ترتیب سره مُسلسل بیان شوی دی۔

---

## سُوْرَةُ الْحَدِيْدِ مَدَنِيَّةٌ

آیاتها ۲۹ — رکوعاتها ۴

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

سَبَّحَ لِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۚ وَهُوَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ﴿۱﴾

دَالله تسبیح وئیلی ده هر هغه څیز چه په زمکه او په آسمانونو کښې[۱] دی، او خاص هم هغه طاقتور دے او دَ حکمت خاوند دے.[۲]

---

[۱] یعنی همیشه دَ کائیناتو هر څیز دَ دے حقیقت اظهار او اعلان کړے دے چه دَ هغه خالق او پروردګار دَ هر عیب، دَ هر نقصان، دَ هرے کمزورئ، دَ هرے خطا او دَ هرے بدئ نه پاک دے. دَ هغه ذات پاک دے، دَ هغه صفتونه پاک دی، دَ هغه کارونه پاک دی، او دَ هغه حکمونه هم، خواه که هغه تکوینی حکمونه دی او که شرعی، ټول سراسر پاک دی. دلته سَبَّحَ دَ ماضی صیغه استعمال کړے شوی ده، او په ځینو نورو ځایونو کښې یُسَبِّحُ دَ مضارع صیغه استعمال شوی ده چه پکښې حال او مستقبل دواړه شامل دی. دَ دے معنیٰ دا شوه چه دَ کائیناتو هره ذره همیشه دَ خپل خالق او دَ خپل رب پاکی بیانوی، نن هم بیانوی او همیشه به ئے بیانوی.

[۲] اصل الفاظ دی هُوَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ. لفظ هُوَ چه ړومبے راشی نو مطلب په خپله خاص شی، یعنی خبره صرف دومره نهٔ ده چه هغه عزیز او حکیم دے، بلکه حقیقت دا دے چه خاص هم هغه داسے هستی ده چه هغه عزیز هم دے او حکیم هم. دَ عزیز معنیٰ ده داسے زبردست او طاقتور چه هغه یو ځل فیصله اوکړی نو یو طاقت ئے منع کولے نشی، دَ هغه مقابله کول دَ چا په وَس کښې نهٔ دی. دَ هغه حکم به هر یو منی خواه که څوک ئے غواړی او که نهٔ، څوک چه دَ هغه نافرمانی اوکړی هغه دَ هغهٔ دَ ګرفت نه په هیڅ طریقه نشی بچ کیدے. او دَ حکیم معنیٰ دا ده چه هغه هر څه کوی هغه دَ حکمت او دَ پوهے سره کوی. دَ هغه پیدا اوښت، دَ هغه تدبیر، دَ هغه بادشاهی، دَ هغه حکمونه، دَ هغه هدایات، ټول دَ حکمت نه ډک دی. دَ هغه په یو کار کښې دَ ناپوهتیا بُوئ قدر له هم نشته.

دلته یوه باریکه نکته بله هم ده چه په هغځان بنه پوهه کول پکار دی. په قرآن مجید کښې ډیر کم ځایونه داسے دی چه هلته دَ الله تعالیٰ دَ عزیز صفت سره قَوِیٌ، مُقْتَدِر، جَبَّار او ذُوانتقام غوندې الفاظ استعمال شوی دی چه دَ هغے نه صرف دَ هغه دَ مطلق اقتدار اظهار کیږی، او دا صرف په هغه ځایونو کښې استعمال شوی دی چرته چه دا ضروری وه چه ظالمان او نافرمانه خلق دَ الله دَ ګرفت نه اویرولے شی. دَ دغه شان دَ یو څو ځایونو نه علاوه باقی چه په کوم ځائے کښې دَ الله تعالیٰ دَ پاره لفظ عزیز استعمال کړے شوے دے هلته دَ هغے سره حکیم، علیم، رحیم، غفور، وهّاب او حمید لفظ ضرور راوړلے شوے دے. دَ دے وجه دا ده چه که چرے څوک داسے وی چه هغه ته بے پناه طاقت حاصل وی لیکن دَ هغے سره ناپوهه وی، جاهل وی، بے رحمه وی، معاف کول نهٔ پیژنی، شوم وی، او بدعمله وی نو دَ هغه اقتدار دَ ظلم نه سِوا بل هیڅ نهٔ وی. په دُنیا کښې چه په کوم ځائے کښې ظُلم کیږی دَ هغے بُنیادی وجه هم دا ده چه کوم سړی ته په بل باندې اقتدار حاصل دے نو هغه خو یا خپل طاقت په ناپوهتیا او په جهالت سره استعمالوی، یا هغه

لَهٗ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۚ يُحْيٖ وَيُمِيْتُ ۚ وَهُوَ عَلٰى كُلِّ

دَ زمکے اودَ آسمانونودَ باد شاهئ مالک هم هغه دے، ژوند اومرګ راولی، اوپه هرڅیزباندِ

بے رحمه دے اوزړه ئے دَ کانړی پشان سخت دے، یا شوم اوکنجوس دے، یا بدخُویه اوبدعمله دے۔ دَ طاقت سره چه دا خراب صفتونه په کوم ځائے کښے ملګری وی هلته دَ خیر اُمید نشی کیدے۔ داوجه ده چه په قرآن مجید کښے دَ الله تعالیٰ دَ صفت "عزیز" سره دَ هغه نور صفتونه یعنی حکیم، علیم، رحیم اوغفور، حمید اووهّاب لازماً راغلی دی دَپاره دَدے چه انسان ته معلومه شی چه کوم خدائے په دے کائناتو باد شاهی کوی هغه یوطرفته خو داسے کامل اقتدار لری چه دَ زمکے نه واخله دَ آسمانونو پورے هیڅوک دَ هغه دَ فیصلو مخے له نشی راتلے، لیکن بل طرفته هغه حکیم هم دے، دَ هغه هره فیصله دَ حکمت نه ډکه وی۔ علیم هم دے، چه کومه فیصله کوی هغه ټیک ټیک دَ علم مطابق کوی۔ رحیم هم دے، خپل بے پناه اقتدار په بے رحمئ سره نۀ استعمالوی۔ غفور هم دے، دَ خپلو ماتحتو سره دَ نکته چینئ نۀ بلکه دَ چشم پوشئ معامله کوی۔ وهّاب هم دے، دَ خپل رعیّت سره دَ شومتیانۀ بلکه دَ ډیر سخاوت سلوک کوی۔ اوحمید هم دے، دَ ستاینے ټول صفتونه او کمالونه دَ هغه په ذات کښے جمع دی۔

دَ قرآن دَ دے بیان په پوره اهمیت باندِ هغه خلق زیات ښه پوهیدے شی څوک چه دَ حاکمیّت (Sovereignty) په مسئله باندِ دَ سیاست دَ فلسفے اودَ قانون دَ فلسفے دَ بحثونونه واقف دی۔ حاکمیّت والئ دِ ے ته چه دَ حاکمیّت دَ مالک سره لامحدوده اِقتدار وی، دَ هغه حکم اوفیصله هیڅ یو داخلی اوخارجی طاقت نۀ سندولے شی، نۀ ئے بدلولے شی، اونۀ پر څوک غورکولے شی، اودَ هغے دَ منلو نه بغیر بله هیڅ چاره نۀ وی۔ دَ دے لامحدوده اقتدار دَپاره دَانسان عقل لازماً دا مطالبه کوی چه داسے اقتدار چاته حاصل وی نو هغه دِ بے عیبه وی او هغه دِ په علم او حکمت کښے کامل وی۔ ځکه چه که چرے دا اِقتدار دَ ناپوهه، دَ جاهل، دَ بے رحمه اودَ بدخویه هستئ سره وی نو دَ هغه حاکمیّت به سراسر ظلم اوفساد وی۔ داوجه ده چه کومو فلسفیانو بوانسان له، یادَ انسانانو یو ادارے یا یوے ډلے له دَ حاکمیت واک ورکړے دے نو هغوی دا فرض کړی ده چه هغوی به دَ غلطئ نه پاک وی۔ لیکن ظاهره خبره ده چه نۀ خو په واقعه کښے لامحدوده حاکمیّت انسانی اقتدار ته حاصلیدے شی، اونۀ دا ممکنه ده چه یو باد شاه، یا پارلیمنټ، یا قوم، یا پارټۍ ته په محدوده دائره کښے کوم حاکمیّت حاصل وی هغه دِ هغوی په صفا اوپه صحیح طریقه استعمال کړے شی۔ ځکه چه داسے حکمت چه په هغے کښے دَ ناپوهتیا بوئ قدر له هم نۀ وی اوداسے علم چه هغه په ټولو حقیقتونو خور وی، دَ سړله هډونو مے انسان ته حاصل نۀ دے نوځه به دَ انسانانو یوے ډلے یا یو قوم ته نصیب شی۔ اودغه شان انسان چه ترڅو انسان دے نو دا هم ممکنه نۀ ده چه دِ دَ خود غرضئ، دَ نفسانیّت، دَ یرے، دَ لالچ، دَ خواهشاتو، دَ تعصّب، دَ غصے اودَ مینے او دَ نفرت نه بالکل پاک اواُوچت وی۔ دا حقیقت چه دَ سړی په نظر کښے وی اوغور اُوکړی نو هغه ته به معلومه شی چه قرآن په حقیقت کښے دَ حاکمیّت بالکل صحیح اومکمل تصوّر پیش کوی۔ قرآن وائی چه "عزیز" یعنی مطلق اِقتدار والا په دے کائنات کښے دَ الله تعالیٰ نه سِوا بل هیڅوک نشته، اودَ دے لامحدوده اقتدار سره

شَیۡءٍ قَدِیۡرٌ ۝۲ هُوَ الۡاَوَّلُ وَ الۡاٰخِرُ وَ الظَّاهِرُ وَ الۡبَاطِنُ ۚ وَ هُوَ بِكُلِّ شَیۡءٍ عَلِیۡمٌ ۝۳ هُوَ الَّذِیۡ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَ الۡاَرۡضَ فِیۡ سِتَّةِ اَیَّامٍ ثُمَّ اسۡتَوٰی عَلَی الۡعَرۡشِ ؕ یَعۡلَمُ مَا یَلِجُ

قدرت لری۔ هغه اوّل هم دے او آخر هم، او ښکاره هم دے او پټ هم[۳] دے، او هغه د هر څيز علم لری۔ خاص هغه دے چه آسمانونه او زمکه ئے په شپږ ورځو کښے پيدا کړل او بيا په عرش باندِ د نُور سره راغے۔[۴] د هغه په علم کښے دی هغه څه

هم هغه يوه ذات داسے دے چه بے عيبه دے، حکيم او عليم دے، رحيم او غفور دے او حميد او وهّاب دے۔

[۳] يعنی چه هيڅ نهٔ وُو نو هغه وُو او چه هيڅ پاتے نهٔ شی نو هغه به وی۔ هغه د ټولو ښکاره څيزونو نه زيات ښکاره دے، ځکه چه په دُنيا کښے څه ظاهر دی دا هم د هغه د صفتونو او هم د هغه د کاريګرئ او هم د هغه د نُور ظهور دے۔ او هغه د ټولو پټو څيزونو نه زيات پټ دے، ځکه چه په حواسو سره د هغه ذات معلومول خو څه چه خبره ده، عقل او فکر د هغه اصل او حقيقت ته نشی رسيدے۔ د دے بهترين تفسير د نبی صلی الله عليه وسلّم د يوے دُعا دا الفاظ دی چه هغه امام احمد، مُسلم، تِرمِذی او بيهقی د حضرت ابوهريرة نه او حافظ ابو يعلیٰ موصلی په خپل مُسند کښے د حضرت عائشے نه نقل کړی دی،

| | |
|---|---|
| انت الاول فليس قبلك شیء | تهٔ اول ئے، هيڅوک ستانه اول نشته |
| و انت الاخر فليس بعدك شیء | تهٔ آخر ئے، هيڅوک ستانه روستو نشته |
| وانت الظاهر فليس فوقك شیء | تهٔ ظاهر ئے، هيڅوک ستانه بره نشته |
| وانت الباطن فليس دونك شیء | تهٔ پټ ئے، هيڅوک ستانه زيات پټ نشته |

دلته دا اعتراض پيدا کيږی چه په قرآن مجيد کښے د جنتيانو او د دوزخيانو د پاره د هميشه ژوند کوم ذکر شوے دے د هغے سره دا خبره څنګه سمون خوری چه الله تعالیٰ آخر هم دے، يعنی هر کله چه هيڅ نهٔ وی نو هغه به وی؟ د دے جواب پخپله په قرآن کښے موجود دے چه كُلُّ شَیۡءٍ هَالِكٌ اِلَّا وَجۡهَهٗ (القصص - ۸۸)۔ يعنی، "هر څيز فانی دے سِوا د الله د ذات نه"۔ يعنی د مخلوق ذات له بقا نشته۔ که يو څيز باقی دے يا باقی پاتے شی نو هغه الله باقی ساتی ځکه باقی دے او د هغه په باقی ساتلو سره باقی پاتے کيدے شی، کنی نو د هغه نه سِوا نور ټول هر څه فانی دے۔ په جنّت او په دوزخ کښے به چاته هميشوالے په دے وجه نهٔ مِلاويږی چه هغه کنی پخپله غير فانی دے، بلکه په دے وجه به مِلاويږی چه الله به هغه ته هميشه ژوند ورکوی۔ دا معامله د فرښتو هم ده چه هغه بذاتِ خود غير فانی نهٔ دی۔ هر کله چه الله اوغوښتل نو هغوی په وجود کښے راغلے، او چه تر څو هغه غواړی تر هغے هغوی موجود پاتے کيدے شی۔

[۴] يعنی د کائناتو خالق هم هغه دے او بادشاه هم هغه دے (د زياتے تشريح د پاره اُوګوره تفهيم القرآن

فِي الْأَرْضِ وَمَا يَخْرُجُ مِنْهَا وَمَا يَنْزِلُ مِنَ السَّمَاءِ وَمَا يَعْرُجُ فِيهَا ۖ وَهُوَ مَعَكُمْ أَيْنَ مَا كُنْتُمْ ۚ وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ ﴿٤﴾ لَهُ مُلْكُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ ۚ وَإِلَى اللَّهِ تُرْجَعُ الْأُمُورُ ﴿٥﴾ يُولِجُ اللَّيْلَ فِي النَّهَارِ وَيُولِجُ النَّهَارَ فِي اللَّيْلِ ۚ وَهُوَ عَلِيمٌ بِذَاتِ الصُّدُورِ ﴿٦﴾

چه زمکے ته ځی او هغه څه چه دَ زمکے نه راوُزی او هغه څه دَ آسمان نه راکوزیږی او هغه څه چه آسمان ته ^۵ خیژی - هغه ستاسو سره دے هرچرته چه تاسو ^۶ یئ - کوم کار چه تاسو کوئ هغه هغهٔ وینی - هم هغه دَ زمکے او دَ آسمانونو دَ بادشاهئ مالک دے او خاص هم هغه ته دَ ټولو معاملاتو فیصلے واپس کړے کیږی - هغه شپه په وُرځ کښے او وُرځ په شپه کښے ننباسی ، او هغه دَ زړونو په پټو رازونو هم پوهیږی -

دویم جلد ، الاعراف ، حاشیے ۴۱ - ۴۲ - یونس ، حاشیه ۴ - الرعد ، حاشیے ۲ تا ۵ - څلورم جلد ، حٰمٓ السجده ، حاشیے ۱۱ تا ۱۵ -

**۵** یعنی هغه یوازے دَ غټو غټو خبرو عالم نهٔ دے بلکه دَ وړو وړو خبرو علم هم لری - کومه دانه چه په زمکه کښے دَ خاورو لاندے کیږی ، کوم تیغ او پانړه چه دَ زمکے نه راوُزی ، دَ باران کوم یو یو څاڅکے چه دَ آسمان نه راپریوزی ، دَ بړاس کوم مقدار چه دَ سمندرونو او تالابونو نه اُوچتیږی او آسمان ته خیژی ، دا ټول هرڅه دَ هغه په نظر کښے دی - هغه ته معلوم دی چه دانه په زمکه کښے په کوم ځائے کښے پرته ده ، څکه خو هغه چوی او دَ هغے نه تیغے را اُوباسی او دَ هغے پالنه کوی او لوئی بوټے ترِ جوړوی - هغه ته معلوم دی چه دَ بړاس څومره مقدار دَ کوم کوم ځائے نه اُوچت شوے دے او کوم ځائے ته رسیدلے دے ، څکه خو هغه ټول بړاس راجمع کوی او وریځ ترِ جوړوی او دَ زمکے په مختلفو حصو ئے تقسیموی او په هر ځائے کښے په یو خاص حساب سره باران وَروی - دَ غه رنګے نور ټول هغه څیزونه په دے قیاس کیدے شی کوم چه زمکے ته ځی او دَ زمکے نه راوُزی او آسمان ته خیژی او دَ آسمان نه نازلیږی - دا ټول هرڅه که دَ الله په علم کښے نهٔ وے نو دَ هرڅیز جُدا جُدا تدبیر او په پرحکمت سره دَ هرڅیز انتظام به څنګه ممکن وے -

**۶** یعنی په یو ځائے کښے هم تاسو دَ هغه دَ علم ، دَ هغه دَ قدرت ، دَ هغه دَ بادشاهئ او دَ هغه دَ تدبیر او انتظام نه بهر نهٔ یئ - په زمکه کښے ، په هوا کښے ، په اُوبو کښے ، یا په یو یوازے ځائے کښے ، هرچرته چه تاسو یئ ، الله ته معلومه ده چه تاسو کوم ځائے یئ - هلته چه ته ژوند ئے نو دا دَ دے خبری علامه ده چه الله تعالیٰ په هغه ځائے کښے ستا دَ ژوند انتظام کوی - ستا زړه که دَرزیږی ، ستا پړپوس که ساه اخلی

اٰمِنُوْا بِاللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ وَاَنْفِقُوْا مِمَّا جَعَلَكُمْ مُّسْتَخْلَفِيْنَ فِيْهِ ؕ

ايمان راوړئ په الله اود هغه په رسول بانديٰ[ك] او خرچ اوکړئ د هغه څيزونو نه چه په کوم هغه تاسو خليفګان[ن] [ي][ه]

ستا غوږونه او سترګے که کارکوى نو دا ټول هرڅه په دے وجه دى چه د الله په انتظام سره ستا د بدن ټول پُرزے چليږى - او په هرڅائے کښے چه تاله مرګ راځى نو په دے وجه راځى چه د الله تعالىٰ د طرفنه ستا د ژوند انتظام ختم شى او ستا د واپس غوښتلو فيصله اوشى -

ک دا حکم کافرانو ته نهٔ دے بلکه د روستنى ټول تقرير نه دا معلوميږى چه حکم هغه ټولو مسلمانانو ته دے کوم چه د اسلام د کلمے اقرار کړے وُو او د مومنانو په ډله کښے شامل شوى وُو، ليکن د ايمان د کارونو کولو نه او د مومن پشان د ژوند تيرولو نه به ئے ډډ کوله - ښکاره خبره ده چه غيرمسلمه خلقو ته د ايمان د دعوت ورکولو سره فوراً دا وينا نهٔ شوه کيدے چه په جهاد فى سبيل الله کښے د زړه د اخلاصه خپله حصّه خرچ کړئ، او نهٔ دا وينا کيدے شوه چه په تاسو کښے که چا د فتحے نه مخکښے د الله په لار کښے جهاد او خرچ اوکړو نو د هغه درجه به د هغه خلقو نه اوچته وى چا چه د فتحے نه روستو دا کارونه اوکړل - غيرمسلمه ته د ايمان د دعوت ورکولو نه روستو خو اوّل هغه ته د ايمان اولنى کارونه وړاندې کړے کيږى نهٔ چه آخرى کارونه - په دے وجه د کلام د شان په لحاظ سره دلته د اٰمِنُوْا بِاللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ ويئيلو مطلب دا دے چه اے هغه خلقو چه د ايمان دعوىٰ لرئ او د مسلمانانو په ډله کښے شامل شوى يئ، الله او د هغه رسول د زړه په صدق سره اومنئ او هغه کارونه شروع کړئ کوم چه په اخلاص سره مومنانو له کول پکار دى -

ل دلته د خرچ کولو نه مُراد د عام ښيګړے په کارونو کښے خرچ کول نهٔ دى، بلکه د لسم نمبر آيت الفاظ صفا وائى چه دلته د دے نه مُراد په هغه کوششونو کښے حصّه اغستل دى کوم چه په هغه وخت کښے د کفر په مقابله کښے د اسلام د اوچتولو د پاره د رسول الله صلى الله عليه وسلم په مشرئ کښے شروع وُو - په هغه وخت کښے خاص طور دوه ضرورتونه دا سے وُو چه د هغے د پاره اسلامى حکومت ته د مالى امداد ډير سخت حاجت پيښ شوے وُو - يو، جنګى ضرورتونه - دويم، د هغه مظلومانو مسلمانانو سره امداد کول چه هغوى د کافرانو د ظلم زياتى نه تنګ شوى وُو او د عربو د هر حصّے نه ئے هجرت کړے وُو او مدينے ته راغلى وُو او نور هم راتلل - مخلصانو مومنانو به د دے خرچونو پوره کولو د پاره په خپل ځان باندې دومره پيټے برداشت کولو چه هغه به د هغوى د وَس نه ډير زيات وُو، او د هغوى د دے کار تعريف وړاندې په آيت ۱۰ - ۱۲ - ۱۸ - او ۱۹ کښے شوے دے - ليکن د مسلمانانو په ډله کښے ډير دا سے مالدار خلق موجود وُو چه د کفر او د اسلام دے جنګ ته به ئے تش د تماشګير په نظر کتل او د دے خبرې ورسره هيڅ فکر نهٔ وُو چه هغوى په کوم څيز باندې د ايمان راوړلو دعوىٰ کوى د هغے غوښتنه هم د هغوى په جان او مال باندې راځى - دا حکم د دے دويم قِسم خلقو ته دے - هغوى ته ويئيلے کيږى چه رښتينى مومنان شئ او د الله په لار کښے مال خرچ کړئ -

فَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مِنْكُمْ وَاَنْفَقُوْا لَهُمْ اَجْرٌ كَبِيْرٌ۝ وَمَا لَكُمْ

جوړکړی ئې۔ کوم خلق چه په تاسو کښې ایمان راوړو او مال ئې خرچ کړو۔ د هغوی د پاره لوئ اجر دے۔ په تاسو څه شوی دی

ﷺ۹ د دے دوه مطلبونه دی او دواړه دلته صحیح دی۔ یو مطلب دا دے چه کوم مال ستاسو سره دے دا په اصل کښې ستاسو ذاتی مال نهٔ دے بلکه الله درکړے دے۔ تاسو بذاتِ خود دَ دِے مالکان نهٔ یئ، الله تعالیٰ دَ خپل خلیفه په حیثیت سره په دے مال تاسوله اختیار درکړے دے۔ نو دَ مال دَ اصلی مالک دَ پاره دَ هغه دَ مال دَ خرچ کولو نه اِنکار مهٔ کوئ۔ دَ نائب دا کار نهٔ دے چه دَ مالک مال دَ مالک په کار کښې دَ خرچ کولو نه ډډه اُوکړی۔ دویم مطلب دا دے چه دا مال نهٔ همیشه ستاسو سره وُو نهٔ به همیشه ستاسو سره وی۔ پرون دا دَ بل چا سره وُو بیا الله دَ هغه په ځائے تاته حواله کړو، بیا به یو وخت داسے راشی چه دا به ستا سره نهٔ وی او نورو خلقو ته به حواله کړے شی۔ په دے لږه شان عارضی موده کښې، چه ترڅو دا مال ستا په قبضه او اختیار کښې دے، دا دَ الله په کار کښې خرچ کړه، چه په آخرت کښې دَ هغې همیشه او مستقل اجر تاته میلاوُشی۔ هم دا خبره نبی صلی الله علیه وسلم په یو حدیث کښې بیان کړی ده۔ دَ ترمذی روایت دے چه یو ځل دَ هغه کره یوه بیزه ذبحه کړے شوه او دَ هغې غوښه تقسیم شوه۔ نبیؐ چه کورته راغے نو تپوس ئے اُوکړو چه په بیزه کښې څه پاتے شو؟ حضرت عائشےؓ عرض اُوکړو مَا بَقِيَ اِلَّا كَتِفُهَا " دَ یو ولی نه سِوا نور هیڅ نهٔ دی پاتے شوی"۔ نبیؐ اوفرمائیل چه بَقِيَ كُلُّهَا غير كتفها " دَ یو ولی نه سِوا نوره ټوله بیزه پاتے شوی ده"۔ یعنی څه چه دَ الله په لار کښې خرچ شو هغه په اصل کښې باقی پاتے شو۔ په یو بل حدیث کښې دی چه یو سړی تپوس اُوکړو اے دَ الله رسوله دَ کومے صدقے ثواب دَ ټولو نه زیات دے؟ نبیؐ اُوفرمائیل ان تصدق وانت صحيح شحيح تخشى الفقر وتأمل الغنى، ولا تمهل حتى اذا بلغت الحلقوم قلت لفلان كذا ولفلان كذا وقد كان لفلان۔" چه ته په داسے حال کښې صدقه ورکړے چه ته روغ رمټ ئے، دَ مال دَ کمی په وجه دَ مال دَ بچ کولو ضرورت گنړے (یعنی دَ غریبی نهٔ یَرېږے)، او په هغې سره دَ زیات مال کټلو اُمید لرے۔ دَ هغه وخت انتظار مهٔ کوه چه کله روُح په وَتو شی نو بیا وائے چه دا فلانی له ورکړئ او دا فلانی له۔ بیا خو هسے هم دَ فلانی دے"۔ (بخاری او مُسلم)۔ په یو بل حدیث کښې دی چه نبیؐ فرمائی يقول ابن آدم مالى مالى، وهل لك من مالك الا ما اكلت فافنيت، اولبست فابليت، اوتصدقت فامضيت؟ وماسوى ذلك فذاهب وتاركه للناس۔" انسان وائی چه زما مال، زما مال۔ حالانکه ستا په مال کښې ستا حصه دَ دے نه سِوا څه ده چه کومه تا اُوخوړه او ختم دِ کړه، چه کومه تا واغوسته او زَړه دِ کړه، یا دِ صدقه کړه او مخکښې دِ اُولیږله؟ دَ هغې نه سِوا چه څه دی هغه ستا دلاس نه تلونکی دی او ته به هغه بل ته پرېږدے" (مُسلم)۔

ﷺ۱۰ دلته بیا په جهاد کښې مال خرچ کول دَ ایمان سره لازمی دی او په دے سره په ایمان کښې اخلاص معلومېږی۔ یعنی لکه چه فرمان په دے طریقه شوے دے چه حقیقی او مخلص مومن هغه دے څوک چه په داسے موقع دَ مال خرچ کولو نه ډډه اُونهٔ کړی۔

لَا تُؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ ۚ وَالرَّسُوْلُ يَدْعُوْكُمْ لِتُؤْمِنُوْا بِرَبِّكُمْ وَقَدْ اَخَذَ مِيْثَاقَكُمْ اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ۝ هُوَ الَّذِيْ يُنَزِّلُ عَلٰى عَبْدِهٖٓ اٰيٰتٍۢ بَيِّنٰتٍ لِّيُخْرِجَكُمْ مِّنَ الظُّلُمٰتِ اِلَى النُّوْرِ ۭ وَاِنَّ اللّٰهَ بِكُمْ لَرَءُوْفٌ رَّحِيْمٌ ۝ وَمَا لَكُمْ اَلَّا تُنْفِقُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ

چه تاسو په الله باندې ایمان نه راوړئ حالانکه رسول تاسو ته خبرې ته رابلي چه تاسو په خپل رب ایمان راوړئ[۱۱] او هغه ستاسو نه وعده اغستلې ده[۱۲] که تاسو واقعي منونکي یئ. هغه خو هم الله دے چه په خپل بنده باندې صفا صفا آیتونه نازلوي چه تاسو د تیرونه رڼا ته را اوباسي، او حقیقت دا دے چه الله په تاسو ډیر مهربانه او رحم کونکے دے. آخر څه وجه ده چه تاسو د الله په لار کښې خرچ نه کوئ حالانکه

[۱۱] یعنی تاسو د بے ایمانئ دا کار په دے حالت کښې کوئ چه د الله رسول پخپله ستاسو په منځ کښې موجود دے او د ایمان دعوت نیغ په نیغه د الله رسول په مبارکه ژبه درروسیږي.

[۱۲] ځینو مفسرینو د دے وعدے نه د الله تعالیٰ د بندګئ هغه وعده مراد اغستلې ده کله چه په ازل کښې د آدم علیه السّلام د شانه د هغه ټول اولاد راوویستلے شو او د بندګئ وعده ترې واغستلې شوه. او ځینو مفسرینو د دے نه هغه وعده مراد اغستلې ده کومه چه د هر انسان په فطرت کښې او د انسان په فطري عقل کښې د الله د بندګئ د پاره موجود ده. لیکن صحیح خبره داده چه د دے نه مراد د الله او د هغه د رسول د بندګئ کولو هغه وعده ده کومه چه په ایمان راوړلو سره هر مسلمان د خپل رب سره کوي. په قرآن مجید کښې په بل ځائے کښې د دے وعدے ذکر په دے الفاظو کښې شوے دے.

وَاذْكُرُوْا نِعْمَةَ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ وَمِيْثَاقَهُ الَّذِيْ وَاثَقَكُمْ بِهٖٓ ۙ اِذْ قُلْتُمْ سَمِعْنَا وَاَطَعْنَا ۡ وَاتَّقُوا اللّٰهَ ۭ اِنَّ اللّٰهَ عَلِيْمٌۢ بِذَاتِ الصُّدُوْرِ ۝ (المائده - ۷)

یادساتئ هغه نعمت کوم چه الله تاسو له درکړے دے او هغه وعده کومه چه الله ستاسو نه اغستلې ده، هر کله چه تاسو اُووئیل "مونږه واوریدل او اطاعت مو قبول کړو". او د الله نه یریږئ، الله د زړونو په حال پوهیږي.

په حدیث کښې د حضرت عباده بن صامت روایت دے چه؛

بایعنا رسول الله صلی الله علیه وسلم علی السمع والطاعة فی النشاط والکسل وعلی النفقة فی العسر

رسول الله صلی الله علیه وسلم زمونږ نه په دے خبره بیعت اغستے وُو چه مونږه به د راستئ او د ناراستئ په هر حال کښې منونکي یو، د خوشحالئ او د غم په دواړو حالتونو کښې

وَلِلّٰهِ مِيْرَاثُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ؕ لَا يَسْتَوِيْ مِنْكُمْ مَّنْ اَنْفَقَ مِنْ قَبْلِ الْفَتْحِ وَقٰتَلَ ؕ اُولٰٓئِكَ اَعْظَمُ دَرَجَةً مِّنَ الَّذِيْنَ اَنْفَقُوْا مِنْۢ بَعْدُ وَقٰتَلُوْا ؕ وَكُلًّا وَّعَدَ اللّٰهُ الْحُسْنٰى ؕ وَاللّٰهُ بِمَا

دَ زمکے اودَ آسمانونو میراث خاص اللہ لرہ دَے۔ پہ تاسوکښے چہ کومو خلقودَ فتحے نہ روستو خرچ اوجهاد اُوکړو هغوی هیڅکله دَ هغه خلقو برابر کیدے نشی کومو چہ دَ فتحے نہ مخکښے خرچ اوجهاد کړے دے۔ دَ هغوی درجه دَ روستو خرچ کوُنکو اوجهاد کوُنکو نہ زیاته ده اګرچہ اللہ دَ دواړو سره ښے وعدے کړی دی۔ څه چه

به دَ اللہ پہ لار کښے خرچ کوُو، دَ نیکیٔ به حکم کوُو او دَ بدیٔ نه به منع کول کوُو، دَ اللہ دَ پاره به حق خبره کوو او پہ دے معامله کښے به دَ ملامت کوُنکی دَ ملامتیا نه نۀ پریږدو۔

اليسر وعلى الاثرۃ بالمعروف و النهي عن المنكر وعلى ان نقول في الله تعالىٰ ولا نخاف لومة لائم۔ (مسند احمد)

۱۳ۃ دَ دے دوه مطلبونه دی۔ یو دا چه دا مال ستا سره همیشه پاتے کیدُو نکے نۀ دے، یوه ورځ به خامخا دا پریږدے او ځے به او اللہ به دَ دے وارث کیږی، بیا وَ لے دا په خپل ژوند کښے په خپل لاس دَ اللہ په لار کښے نۀ خرچ کوے چه دَ اللہ سره دَ دے بدله ستا دَ پاره ثابته شی۔ که خرچ نۀ کوے نو هم به دا اللہ ته خامخا واپس ځی، البته فرق به دا وی چه په دے باندِ به تهٔ دَ بدلے مستحق نۀ ئے۔ دَوَیم مطلب دا دے چه کله تهٔ دَ اللہ په لار کښے مال خرچ کوے نو دا فکر مهٔ کوه چه غریب به شے او لاس به دِ تنګ شی، ځکه چه دَ کوم خدائے دَ پاره تهٔ دا خرچ کوے هغه دَ زمکے او دَ آسمان دَ ټولو خزانو مالک دے، دَ هغه سره بس دغه هومره څه نۀ وُو کوم چه هغه نن تاله درکړی دی، صباله هغه تاله دَ دے نه زیات څه درکولے شی۔ هم دا خبره په یو بل ځائے کښے په دے طریقه شوی ده:

ﺍے نبیؐ، دوی ته اُووایه چه ځما رب په خپلو بندګانو کښے چاله غواړی نو هغه له رزق فراښه کوی او چه چاله غواړی هغه له رزق تنګوی، او څه چه تاسو خرچ کوئ دَ هغے په ځائے درله نور زیات رزق درکوی او هغه بهترین رزق ورکو نکے دے۔

قُلْ اِنَّ رَبِّيْ يَبْسُطُ الرِّزْقَ لِمَنْ يَّشَآءُ مِنْ عِبَادِهٖ وَيَقْدِرُ لَهٗ ؕ وَمَآ اَنْفَقْتُمْ مِّنْ شَيْءٍ فَهُوَ يُخْلِفُهٗ ۚ وَهُوَ خَيْرُ الرّٰزِقِيْنَ ۔ (سبا۔ ۳۹)

۱۴ۃ یعنی دَ اجر مستحق خو دواړه دی، لیکن دَ یو ے ډلے مرتبه دَ بلے ډلے نه لازماً چه ډیره اُوچته ده، ځکه چه یوے ډلے په زیاتو سختو حالاتو کښے دَ اللہ دَ پاره هغه خطرے تهٔ غاړه کیښوده کومه خطره چه دَ بلے ډلے مخے ته نۀ وه۔ اَولے ډلے په داسے حالت کښے مال خرچ کړو چه دَ ډیرلرے پورے

تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرٌ ﴿١٠﴾ مَنْ ذَا الَّذِيْ يُقْرِضُ اللّٰهَ قَرْضًا حَسَنًا فَيُضٰعِفَهٗ لَهٗ وَلَهٗٓ اَجْرٌ كَرِيْمٌ ﴿١١﴾ يَوْمَ تَرَى الْمُؤْمِنِيْنَ وَالْمُؤْمِنٰتِ يَسْعٰى

تاسو کوئ الله دَ هغې نه خبر دے ـ ع

څوک دے چه الله له قرض ورکړی؟ ښه قرض، چه الله ئے ورله په څوڅو چنده زیات واپس ورکړی، او دَ هغه دَ پاره بهترین اجر دے [۱۶] په هغه ورځ چه کله تاسو مومنان سړی او مومنانے ښځے اُووینئ چه دَ هغوی نور به

چرته دا امکان په نظرنه راتلو چه کُنې په فتوحاتو سره به دَ دے خرچ کمے پوره شی، او په دا سے نازک وخت کښے ئے دَ کافرانو سره جنگ اُوکړو چه هر وخت دا خطره وه چه که دُشمن غالب شو نو مسلمانان به ریزه ریزه کړی ـ په مفسرینو کښے مجاهد، قتاده او زید بن اسلم وائی چه په دے آیت کښے دَ کوم څیز دَ پاره لفظ "فتح" استعمال کړے شوے دے دَ هغې نه مُراد دَ مکے فتحه ده، او عامر شعبیؒ وائی چه دَ دے نه مُراد دَ حُدَیبیے صُلح ده ـ اولنے قول زیاتر مفسرینو اختیار کړے دے، او دَ دویم قول په تائید کښے دَ حضرت ابو سعید خُدری دا روایت پیش کړے کیږی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم دَ حُدَیبیے دَ صُلحے په زمانه کښے اُوفرمائیل "ډیر زر به داسے خلق راشی چه دَ هغوئ عملونو ته تاسو اُوګورئ نو خپل عملونه به درته سپک ښکاره شی، لیکن لو کان لاحدهم جبل من ذهب فانفقه ما ادرك مُدّ احدكم ولا نصيفه ـ" که په هغوئ کښے دَ چا سره دَ غرهومره سره زر وی او هغه ټول دَ خدائے په لار کښے خرچ کړی نو هغه به ستا دَ دَ یو رَطل بلکه دَ یو رَطل خرچ کولو هومره ثواب ته اُونشی رسیدے ـ" (ابن جریر، ابن ابی حاتم، ابن مردویه، ابو نعیم اصفهانی) ـ دا رنګے دَ دے تائید دَ هغه حدیث نه هم کیږی چه امام احمدؒ دَ حضرت انسؓ نه نقل کړے دے ـ هغه فرمائی چه یو ځلے دَ حضرت خالدؓ بن ولید او دَ حضرت عبدالرحمٰنؓ بن عوف په مینځ کښے جګړه اُوشوه ـ دَ جګړے په دوران کښے حضرت خالدؓ حضرت عبدالرحمٰن ته اُووئیل "تاسو دَ خپلو مخکینو خدمتونو په وجه په مونږه ځان برګنړئ ـ" دا خبره چه کله نبی صلی الله علیه وسلم ته اُورسیدله نو هغه اُوفرمائیل "په هغه خدائے مِ دِ قسم وی چه ځاروح دَ هغه په قبضه کښے دے، که تاسو دَ احد دَ غرهومره، یا دَ غرونو هومره سره زر خرچ کړئ نو هم دَ هغوی عملونو ته به اُونشی رسیدے ـ" دَ دے نه دا دلیل را ایستلے کیږی چه په دے آیت کښے دَ فتحے نه مُراد دَ حدیبیے صُلح ده، ځکه چه حضرت خالدؓ دَ دے صلحے نه روستو ایمان راوړے وُو او دَ مکے په فتح کښے شریک وُو ـ لیکن په دے خاص موقع باندِ دَ فتحے نه مُراد که دَ حدیبیے صُلح واغستے شی او که دَ مکے فتح، بهرحال دَ دے آیت مطلب دا نه دے چه دَ مرتبو دا فرق بس هم په دغه یوه فتح باندِ ختم شوے دے ـ بلکه اصولاً دَ دے نه دا خبره معلومیږی چه کله په اسلام باندِ داسے یو وخت راشی چه په هغې کښے دَ کفر او دَ کافرانو زور ډیر زیات وی او په ظاهره دَ اسلام دَ غلبے اثرات لرے لرے چرته په نظر نهٔ راځی، په هغه وخت کښے چه کوم خلق دَ اسلام دَ پاره اُوجنګیږی او مالونه خرچ کړی دَ هغوئ مرتبے ته هغه خلق نشی رسیدے چه هغوی دَ اسلام دَ غلبے نه روستو قربانیانے ورکړی ـ

[۱۵] یعنی الله چه چاله کومه بدله او کومه مرتبه ورکوی نو مله ورکوی چه هغه اُوګوری چه چا په کوم حالاتو کښے

نُورُهُم بَيْنَ أَيْدِيهِمْ وَبِأَيْمَانِهِم بُشْرَاكُمُ الْيَوْمَ جَنَّاتٌ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا ۚ ذَٰلِكَ هُوَ الْفَوْزُ الْعَظِيمُ ﴿۱۲﴾

دَ هغوی نه مخکښې مخکښې او دَ هغوی ښیٔ طرفته منډې وهي۔ (هغوی ته به اُووئیلے شی چه) " نن دَ خوشحالیٔ زیرے دَے ستاسو دَ پاره ۔ جنّتونه به وی چه لاندِ به ترِې نهرونه بهیږی، په هغې کښې به هغوی همیشه اُوسی ۔ هم دا لویه کامیابی ده۔

په کومې جذبې سره یوکارکړے دے ۔ دَ هغه تقسیم دَ پند وتقسیم نهٔ دَے۔ هغه هر یوله دَ هغه مرتبه او دَ هغه دَ عمل بدله بنه پوره دَ پوهې سره مقرر روی ۔

^کله^ دا دَ الله دَ بخښش شان دَے چه کوم مال هغه انسان له ورکړے دَے او انسان هم دَغه دَ هغه مال دَ هغه په لار کښې خرچ کړی نو هغه ئے ځان ته په قرض حسابوی، خو هله چه هغه قرض حَسن (یعنی بنه قرض) وی، یعنی بے دَ څه ذاتی غرض نه په خالص نیت سره ورکړے شی، دَ څه قِسم ریاکاری او شهرت پکښې شامل نهٔ وی، دَ هغې په ورکولو سره په چا احسان نهٔ زباتی، ورکوُنکے ئے صرف دَ الله دَ رضا دَ پاره ورکړی او دَ هغه نه سِوائے دَ بل چا په اجر او دَ بل چا په رضا نظر نهٔ وی۔ دَ دَے قرض په حقله دَ الله دوه وعدې دی۔ یوه دا چه هغه به ورله دا په څوڅو چنده زیات واپس ورکړی، دویمه دا چه هغه به په دَے باندِ دَ خپل طرفنه بهترین اجر هم ورکړی۔

په حدیث کښې دَ حضرت عبدالله بن مسعودؓ روایت دَے چه کله دا آیت نازل شو او دَ نبیؐ دَ خُلے مبارکے نه خلقو واورید و نو حضرت ابوالدّحداح انصاری عرض اُوکړو چه اے دَ الله رسوله، آیا الله تعالیٰ زمونږ نه قرض غواړی؟ نبیؐ اُوفرمائیل چه هَو، اے ابوالدّحداح۔ هغه اُووئیل، خپل لاس دِ لږ ماته را ښکاره کړه۔ نبیؐ خپل لاس دَ هغه طرفته وړاندِ کړو، هغه دَ نبیؐ لاس په لاس کښې واغستو او وِے وئیل " ما خپل رب له خپل باغ قرض ورکړو"۔ حضرت عبدالله بن مسعود فرمائی چه په هغه باغ کښې دَ کجور و شپږ سوه وُنے وے، په هغې کښې دَ هغه کور وُو، او هم هلته دَ هغه بال بچ اُوسیدو۔ دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم سره چه ئے دا خبره اُوکړه نو سیده خپل کور ته لاړو او خپلے ښځے ته ئے آواز اُوکړو" اے دَ دحداح مور، را اُوزه، ما دا باغ خپل رب له قرض ورکړے دے "۔ هغې ورته په جواب کښې اُووئیل "اے دَ دَحداح پلاره، تا دَ نفع سودا اُوکړه"۔ او په هغه وخت ئے خپل سامان او خپل بال بچ دَ کور نه را اُوویستل (ابن ابی حاتم)۔ دَ دَے واقعې نه معلومیږی چه دَ مخلص مومنانو عمل په هغه وخت کښې څه وُو، او دَ دَے نه دا خبره هم په ذهن کښې راځی چه هغه څنګه قرضِ حسن دَے چه دَ هغې الله تعالیٰ وعده کړې ده چه په څوڅو چنده به ئے زیات واپس ورکوی او دَ پاسه به پرې اجرِ کریم هم ورکوی۔

^کله^ دَ دَے آیت نه او دَ روستنی آیت نه معلومیږی چه په میدان حشر کښې به نُور صرف دَ صالحانو مومنانو دَ پاره مخصوص وی، پاتے شو کافران او منافقان او نافرمانه او ګنهګار خلق، نو هغوی به هلته هم همغسې په تیاره کښې ږغرے خوری لکه څنګه چه به ئے په دُنیا کښې تیندکونه خوړل۔ هلته به رڼا صرف دَ ښکے عقیدے او دَ نیک عمل وی۔ صادق ایمان او پاک عمل به په نُور کښې بدلیږی او دَ هغې په وجه به نیکان خلق پړقا کوی۔

يَوْمَ يَقُوْلُ الْمُنٰفِقُوْنَ وَالْمُنٰفِقٰتُ لِلَّذِيْنَ اٰمَنُوا انْظُرُوْنَا نَقْتَبِسْ مِنْ نُّوْرِكُمْ ۚ قِيْلَ ارْجِعُوْا وَرَآءَكُمْ فَالْتَمِسُوْا نُوْرًا ؕ فَضُرِبَ بَيْنَهُمْ بِسُوْرٍ لَّهٗ بَابٌ ؕ بَاطِنُهٗ فِيْهِ الرَّحْمَةُ وَظَاهِرُهٗ مِنْ

په دغه ورځ به دَ منافقانو سړو او دَ منافقانو ښځو حال دا وی چه هغوی به مومنانوته وائی زمونږ طرفته لږ اُوګورئ چه مونږ ه ستاسو دَ نُور نه څه فائده واخلو، خو هغوئ ته به اُوویئلے شی چه روستو شئ، خپل نُور چرته بل ځائے اُوګورئ ـ بیا به دَ هغوی په منځ کښے یو دیوال وُدَرَولے شی چه په هغے کښے به یو دروازه وی ـ دَ هغے دروازے نه دننه به رحمت وی او

چه دَ چا عمل څومره روښانه وی دَ هغه دَ بدن رنړا به هغومره تیزه وی او هغه چه کله دَ میدان حشر نه جنّت ته ځی نو دَ هغه نُور به دَ هغه نه مخکښے مخکښے منډی وهی ـ دَ قتَادهؒ مُرسل روایت دَ دے بهترین تشریح ده په دے روایت کښے هغه وائی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم اُوفرمائیل "دَ چا نور به دومره تیزوی چه دَ مدینے نه دَ عدن پورے څو مره فاصله ده هغومره فاصلے ته به رسیږی، او دَ چا نُور به دَ مدینے نه دَ صَنعَاء پورے، او دَ چا به دَ دے نه کم وی، اَن تر دے پورے چه یو مومن به داسے هم وی چه دَ هغه نور به د هغه دَ قد مونو وړاندِ نه ځی" (ابنِ جریر) ـ یعنی دَ چا دَ ذات نه چه په دُنیا کښے څومره نیکیانے خورے شوی وی دَ هغه نُور به هغومره تیز وی، او په دُنیا کښے چه کوم کوم ځائے ته دَ هغه نیکئ رسیدلی وی په میدانِ حشر کښے به هغومره لرے دَ هغه دَ نُور رنړا ګانے منډی وهی ـ

دلته یوه خبره دَ سړی په ذهن کښے را تلے شی ـ هغه دا چه دَ نُور مخکښے مخکښے منډی وهل خو په عقل کښے را ځی، لیکن دَ نُور صرف ښی طرفته منډے وهل څه معنی لری؟ آیا دَ هغوئ کَس طرفته به تیاره وی؟ دَ دے جواب دا دے چه دَ یو سړی په ښی لاس کښے رنړا وی او روان وی نو په هغے سره خو به کَس طرف هم روښانه وی لیکن حقیقت دا دے چه رنړا دَ هغه په ښی لاس کښے ده ـ دَ دے خبری وضاحت دَ نبی صلی الله علیه وسلّم هغه حدیث کوی چه هغه ابوذر او ابودرداء روایت کړے دے چه نبیؐ فرمائی " اعرفهم بنورهم الذی یسعیٰ بین ایدیهم وعن ایمانهم وعن شمایلهم ـ " څه به دَ خپل اُمت نیکان خلق دَ هغوی دَ هغه نُور نه پیژنم چه دَ هغوئ وړاندِ، دَ هغوی ښیٔ او کَس طرفته به منډے وهی". (حاکم، ابن ابی حاتم، ابنِ مَرْدُوَیه) ـ

۱۸ مطلب دا دے چه مومنان کله جنّت ته ځی نو رنړا به دَ هغوی نه وړاندِ وی او روستو به منافقان په تیَر وکښے تیند کُونه خوری ـ په هغه وخت کښے به هغوی هغه مومنانوته چه په دُنیا کښے دَ هغوئ سره یو ځائے اُوسیدل، چغے وهی چه لږ زمونږ طرفته اُوګورئ چه مونږ ته هم څه رنړا مِلاوُ شی ـ

قِبَلِهِ الْعَذَابُ ﴿١٣﴾ يُنَادُونَهُمْ أَلَمْ نَكُن مَّعَكُمْ ۖ قَالُوا بَلَىٰ وَلَٰكِنَّكُمْ فَتَنتُمْ أَنفُسَكُمْ وَتَرَبَّصْتُمْ وَارْتَبْتُمْ وَغَرَّتْكُمُ

بهر به عذاب وی[19]۔ هغوی به مومنانو ته په چغو چغو وائی چې موږ ستاسو سره نهٔ وُو؟[20] مومنان به جواب ورکوی، هَو، خو تاسو خپل ځان پخپله په فتنه کښې واچوؤ،[21] موقع ته مو کتل،[22] په شک کښې پراته[23] وئ، او د

[19] دَ دے مطلب دا دے چه جنتیان به په دغه دروازه جنّت ته ورننوزی او دروازه به بنده کړے شی۔ دَ دروازے یو طرفته به دَ جنّت نعمتونه وی او بل طرفته به دَ دوزخ عذاب وی۔ منافقان به دَ هغه دیوال نه نشی وراوړیدے کوم چه دَ هغوی او دَ جنتیانو په مینځ کښې ودرولے شوے وی۔

[20] یعنی وَلے موږ ستاسو سره یو ځائے په مسلمانانو کښې شامل نهٔ وُو؟ وَلے موږ کلمه نهٔ وئیله؟ وَلے ستاسو پشان موږ مونځونه نهٔ کول؟ روژے مونهٔ نیولے؟ حج او زکوٰة مو نهٔ ورکوُو؟ وَلے ستاسو په مجلسونو کښې به موږ نهٔ شریکیدو؟ ستاسو سره زموږ بنا دیانے او رشته داریانے نهٔ وے؟ نو دا ننن زموږ او ستاسو په مینځ کښې دا جُدائی څنګه راغله؟

[21] یعنی مسلمانان وئ، خو مخلص مسلمانان نهٔ وئ، دَ ایمان او دَ کفر په مینځ کښے اویزان وئ، دَ کفر سره او دَ کافرانو سره ستاسو مینه هیڅکله ختمه نهٔ شوه، او هیچرے مو خپل ځان دَ اسلام سره پوره اُونهٔ تړلو۔

[22] اصل الفاظ دی تَرَبَّصْتُمْ۔ تَرَبُّص په عربئ ژبه کښې انتظار کولو ته او دَ موقعے په تکل کښې ایسار یدلو ته وائی۔ هر کله چه یو سړے په دوُو لارو کښې په یوه باندِ دَ تلو قطعی فیصله اُونهٔ کړی، بلکه په دے فکر کښې ولاړ وی چه کوم خوا فایده وی هغه طرفته به روان شی، نو وائی چه هغه په تَرَبُّص کښے مبتلا دے۔ منافقانو دَ کفر او دَ اسلام دَ کشمکش په دغه نازک دَور کښے دا طریقه خپله کړی وه۔ هغوئ به نهٔ صفا دَ کفر سره ملګر تیا کوله، او نهٔ به ئے خپل طاقت په اطمینان سره دَ اِسلام په مرسته کښے لګولو۔ بس په خپل ځائے ناست وُو او دا تماشا ئے کوله چه په دے کشمکش کښې به آخر څوک زُور ورکیږی، که اِسلام کامیاب شو نو چه مسلمانانو سره شامل شی او دَ کلیمے وئیلو تعلق په کار راولی، او که کفر غالب شو نو چه دَ هغوئ طرفته واوړی او په جنګ کښے دَ حصّے نهٔ اغستلو بهانه وړاندِ کړی۔

[23] دَ دے نه مراد مختلف قِسم شکُونه دی چه هغه دَ یو منافق زړه له راځی، او هم دغه شکُونه دَ هغه دَ منافقت اصلی سبب وی۔ دَ هغهٔ دَ خدائے په وُجود کښے شک وی۔ دَ رسول په رسالت کښے ئے شک وی۔ دَ قرآن په حقله ئے شک وی چه دَ الله کتاب دے او که نهٔ دے۔ دَ آخرت په حقله ئے شک وی، دَ سوال جواب او دَ جزا سزا په حقله ئے شک وی او په دے خبره کښے ئے شک وی چه دَ حق او دَ باطل دا جګړه واقعی څه حقیقت هم لری او که دا تولے هسے تشے پکوسے دی او اصل څیز بس دا دے چه مزے چرچے کوه ژوند هم دا دے۔

الْاَمَانِیُّ حَتّٰی جَآءَ اَمْرُ اللّٰهِ وَغَرَّكُمْ بِاللّٰهِ الْغَرُوْرُ ﴿۱۴﴾ فَالْيَوْمَ لَا يُؤْخَذُ مِنْكُمْ فِدْيَةٌ وَّلَا مِنَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا ۭ مَاْوٰىكُمُ النَّارُ ۭ هِيَ مَوْلٰىكُمْ ۭ وَبِئْسَ الْمَصِيْرُ ﴿۱۵﴾ اَلَمْ يَاْنِ لِلَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اَنْ تَخْشَعَ قُلُوْبُهُمْ لِذِكْرِ اللّٰهِ وَمَا نَزَلَ مِنَ الْحَقِّ ۙ وَلَا يَكُوْنُوْا كَالَّذِيْنَ

دروغوامیدونو تاسوله دوکه درکوله، اَنْ تردے پورے چه دَ الله فیصله راغله[۲۴]، او دَ آخر وخته پورے هغه لوئ دوکه باز[۲۵] تاسوله دَ الله په معامله کښے دوکه دَرکوله - نونن به نهٔ ستاسونه څه فدیه قبلولے شی او نهٔ دَ هغه خلقونه چه هغوی صفا صفا کُفر کړے[۲۶] وُو - ستاسو ځائے دوزخ دے، هم هغه به ستاسو خبرا[۲۷] خلی او دا ډیر بد انجام دے -

آیا دَ مومنانو دَ پاره لا هغه وخت نهٔ دے راغلے چه د هغوئ زړونه دَ الله په ذکر سره نرم شی او هغه چه کوم حق نازل کړے دے هغے ته غاړه کیږدی او دَ هغه خلقو[۲۸] پشان نشی چه هغوئ ته

یوسرے چه ترخو په دے شکونو کښے اخته نهٔ وی هغه هیڅکله منافق نشی کیدے -

[۲۴] دَ دے دوه معنے کیدے شی - یوه دا چه تاسوله مرګ راغے او دَ مرګ دَ وخته پورے تاسو دَ دے دوکے نه اونهٔ وتئ - دویمه دا چه اسلام ته غلبه نصیب شوه او تاسو تماشګیر پاتے شوئ -

[۲۵] مُراد دے شیطان -

[۲۶] دلته دَ دے خبرے صفائ شوی ده چه په آخرت کښے به دَ منافقانو هغه انجام وی کوم چه به دَ کافرانو وی -

[۲۷] اصل الفاظ دی هِيَ مَوْلٰىكُمْ، " دوزخ ستاسو مَولیٰ دے". دَ دے دوه مطلبونه کیدے شی - یو دا چه هم هغه ستاسو دَ پاره موزون ځائے دے - دویم دا چه الله ته خو تاسو خپل مولیٰ ویئلے نهٔ وُو چه هغه ستاسو خبر واخلی، اوس خو دوزخ ستاسو مولیٰ دے - هم هغه به ستاسو خبر اخلی -

[۲۸] دلته بیا " مومنان " ټکے عام دے لیکن دَ دے نه مُراد ټول مسلمانان نهٔ دی بلکه دَ مسلمانانو هغه خاصه ډله ده چه دَ ایمان اِقرار ئے کړے وُو او دَ رسول الله صلی الله علیه وسلّم په منونکو کښے شامل شوی وُو خو بیا ئے هم په زړونو کښے دَ اسلام سره مینه نهٔ وه - په سترګو به ئے کتل چه دَ کفر ټول طاقتونه دَ اِسلام دَ ختمولو دَ پاره زور لګوی - دَ څلور و واړو طرفونو نه ئے مومنان راګیر کړی دی، په عربو کښے ځائے په ځائے په مسلمانانو ظلمونه کیږی، دَ ملک دَ کوټ کوټ نه مظلومان مسلمانان تش تور دَ پناه اخستلو دَ پاره مدینے ته راروان دی،

أُوتُوا الْكِتٰبَ مِنْ قَبْلُ فَطَالَ عَلَيْهِمُ الْأَمَدُ فَقَسَتْ قُلُوبُهُمْ ۖ وَكَثِيرٌ مِّنْهُمْ فٰسِقُونَ ﴿١٦﴾ اِعْلَمُوا أَنَّ اللّٰهَ يُحْيِ الْأَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا ۚ قَدْ بَيَّنَّا لَكُمُ الْاٰيٰتِ لَعَلَّكُمْ تَعْقِلُوْنَ ﴿١٧﴾

مخکښې کتاب ورکړې شوې ؤو، بیا په هغوی ډیره موده واوړیده نو زړونه ئې سخت شو او ننن په هغوئ کښې اکثر خلق فاسقان جوړ شوی دی؟[۲۹] ښه پوه شئ چه الله زمکه ژوندئ کوی روستو د مرګ د هغې نه، موبن ښنې تاسو ته صفا صفا ښودلی دی، شاید چه تاسو د عقل نه کار واخلئ۔[۳۰]

---

دَ دې مظلومانو سره په مدد کولو کولو د مخلصو مسلمانانو ملا ماتیږی او دَ دشمنانو سره هم دا مخلص مسلمانان مقابله کوی، لیکن دَ ایمان دِ ے دعوئ کیرو خلقو به دا هرڅه لیدل او دَ ځائے نه به نهٔ خوزیدل۔ په دے باندِ هغوی له شرم ورکولے کیږی چه تاسو څنګه ایمان دار یئ؟ دَ اِسلام دَپاره حالات دِ نازک حد ته رسیدلی دی، آیا اُوس هم هغه وخت نهٔ دے راغلے چه دَ الله په ذکر سره ستاسو زړونه نرم شی او دَ هغه دَ دین دَپاره ستاسو په زړونو کښې دَ قربانئ جذبه پیدا شی؟ آیا ایمان دار خلق داسے وی چه دَ الله په دین باندِ خراب وخت راشی او دَ هغې لږ شان تکلیف هم په زړونو کښې محسوس نهٔ کړئ؟ دَ الله په نوم ورته آواز اُوشی او هغوی دَ خپل ځائے نه اُوهم نهٔ خوزی؟ الله په خپل نازل کړی کتاب کښې خپله دَ چندے اپیل اُوکړی او هغه په خپله ذمه قرض کړی، او صفا صفا دا هم اُووائی چه که په دے حالاتو کښې چا خپل مال ځما دَ دین نه غوره اُوګڼړو هغه به مومن نهٔ وی بلکه منافق به وی، خو بیا هم دَ هغوی زړونه دَ خدائے دَ یرے نه اُونهٔ رپیږی او نهٔ دَ هغه حکم ته غاړه کیږدی؟

[۲۹] یعنی یهودیان او عیسایان خود دَ خپلو پیغمبرانو نه په سوونو کلونو روستو نن تاسو ته بے روحه او بد اخلاقه په نظر راځی۔ آیا تاسو دومره بے غیرته او بے حیا یئ چه رسول لا په تاسو کښې موجود دے، دَ خدائے کتاب نازلیږی، ستاسو دَ ایمان راوړلو ډیره موده هم نهٔ ده شوی، او دَ اُوس نه ستاسو هغه حال دے کوم چه دَ سوونو کالو پورے دَ خدائے دَ دین او دَ آیتونو سره دَ لوبو کولو نه روسته اُوس دَ یهودیانو او دَ عیسایانو شوے دے؟

[۳۰] دلته چه دا خبره په کوم مناسبت سره شوی ده په هغې ښه ځان پوهه کول پکار دی۔ په قرآن مجید کښې په ډیرو ځایونو کښې دَ نبوّت او دَ کتاب نازلیدو ته دَ باران دَ برکتونو سره تشبیهه ورکړے شوی ده ځکه چه په انسانیت باندِ دَ دے هغه اثرات کیږی کوم چه په زمکه باندِ دَ باران وی۔ لکه څنګه چه مړه زمکه دَ رحمت دَ باران دَ څاڅکو سره تکه شنه را اُوټوکیږی، دغه شان چه په کوم ملک کښې دَ الله په رحمت سره یو نبی راشی او دَ وحی او دَ کتاب نازلیدل شروع شی نو هلته

إِنَّ الْمُصَّدِّقِيْنَ وَالْمُصَّدِّقٰتِ وَاَقْرَضُوا اللّٰهَ قَرْضًا حَسَنًا يُّضٰعَفُ لَهُمْ وَلَهُمْ اَجْرٌ كَرِيْمٌ ﴿۱۸﴾ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا بِاللّٰهِ وَرُسُلِهٖٓ اُولٰٓئِكَ هُمُ الصِّدِّيْقُوْنَ ۖ وَالشُّهَدَآءُ عِنْدَ رَبِّهِمْ ۗ لَهُمْ اَجْرُهُمْ

کوم نارینه او زنانه چه صدقے[31] ورکونکی دی او الله له ئے قرض حسن ورکړے دے، یقیناً چه هغوی له به په څوڅو چنده زیات ورکولے کیږی او د هغوی د پاره بهترین اجر دے۔ او کوم خلقو چه په الله او د هغه په رسولانو باندِ ایمان راوړے دے[32] هم هغوی د خپل رب په نزد صدیقان[33] او شهیدان[34] دی، د هغوی د پاره د هغوی اجر

انسانیت یو دم را اُوچتو کیږی۔ د هغوی هغه خوبیانے ښکاره شی کومے چه د مودو مودو راسے د جاهلیت د لاسه د خاورو لاندِ پټے وے۔ د هغوی نه د ښو اخلاقو چینے روانے شی او د خیر ښیگړے چمن په غوړ زنګونو شی۔ دے حقیقت ته چه د کوم غرض د پاره دلته اشاره شوی ده هغه دا دے چه د کمزوری ایمان والا مسلمانانو سترگے اُوغړیږی او هغوی په خپل حالت باندِ غور اُوکړی۔ د نبوّت او د وحی د باران د وجے نه چه انسانیت په کوم شان سره د نوی سرنه راژوندے کیدو او په کوم شان سره د انسانیت لمن د برکتونو نه ډکیدله هغه د هغوی د پاره څه زړه قیصه نه وه۔ هغوی په خپلو سترگو د صحابه کرامؓ پاکیزه ژوند لیدلو۔ شپه وُرځ ئے د هغے جاج اغستلو۔ جاهلیت هم د خپلو کړو کارنامو سره د هغوئ مخے نه موجود وُو، او د اِسلام د پاکو عملونو سپرلے هم سمُسُور وُو۔ په دے وجه هغوی ته په تفصیل سره د دے خبرو په کوته کولو هیڅ حاجت نه وُو۔ بس دا اِشاره کافی وه چه بنجر زمکے ته الله تعالیٰ د خپل رحمت په باران سره څه رنگے ژوند ورکوی، د دے ښیے تاسو ته صفا صفا ښودلے شوی دی، اُوس تاسو بخپله ذ عقد نه کار واخلئ او په خپل حالت باندِ غور اُوکړئ چه د دے نعمت نه تاسو څه فایده ، چتوئ۔

[31] صدقه د اسلام په اصطلاح هغه "ورکړه" ته وائی چه هغه د زړه په صدق او په خالص نیت سره خاص د الله د رضا حاصلولو د پاره ورکړے شی، چه ریا کاری پکښے نه وی، په چا احسان اُونه ز باتلے شی، ورکونکے ئے صرف د دے د پاره ورکړی چه هغه د خپل رب د بندگئ رښتینی جذبه لری۔ دا لفظ د صدق نه اغستلے شوے دے په دے وجه صداقت خامخا د دے په حقیقت کښے شامل دے۔ هغه مال او هغه ورکړه ترهغے پورے صدقه نشی کیدے ترڅو چه په هغے کښے د اِنفاق فی سبیل الله خالصه جذبه موجود نه وی۔

[32] دلته د ایمان راوړونکو نه مُراد هغه رښتینی ایماندار خلق دی چه د هغوی عمل د دروغژنو مومنانو او د کمزورو مومنانو نه بالکل مختلف وُو۔ چه په هغه وخت کښے ئے د یو بل نه زیات مالونه ورکول او د الله د دین د پاره ئے جنگونه کول۔

۳۳ه دا دَ صدق مبالغه ده ـ صادق رښتينې او صِدّیق انتهائی رښتينې ـ لیکن په دے خبره ځان بنه پوهه کول پکار دی چه صدق یوازے رښتیا او دَ حقیقت مطابق وینا ته نهٔ وائی بلکه دا خاص هغه وینا ته وائی کوم چه پخپله هم رښتیا وی او چه دَ هغے وینکی هم دَ زړه په صِدق سره هغه حقیقت منی کوم چه هغه په ژبه وائی ـ مثلاً یو سړے که دا اُووائی چه محمد صلی الله علیه وسلّم دَ الله رسول دے، نو دا خبره پخپل ځائے بالکل دَ حقیقت مطابق ده، ځکه چه هغه واقعی دَ الله رسول دے، لیکن هغه سړے په دے خپله وینا کښے هله صادق گڼړلے شی چه دَ هغه خپله عقیده هم دا وی چه محمد دَ الله رسول دے ـ نو دَ صِدق دَ پاره ضروری ده چه وینا دِ دَ حقیقت سره هم مطابق وی او دَ ویونکی دَ زړه سره هم ـ د غه شان دَ صِدق په معنیٰ کښے وفا او خلوص او رښتینې عمل هم شامل دے ـ صادق الوعد (یعنی دَ وعدے رښتينې) به هغه سړی ته ویلے کیږی چه هغه عملاً خپله وعده پوره کوی او هیڅکله دَ هغے خلاف ورزی نهٔ کوی ـ صِدیق (رښتينې دوست) هغه چا ته ویلے کیږی چه هغه دَ ازمینت په وخت کښے دَ دوستئ حق ادا کړے وی او چرته ئے دَ چا سره بے وفائی نهٔ وی کړی ـ په جنګ کښے صادق فی القتال (یعنی رښتينې سپاهی) صرف هغه سړی ته ویلے کیږی چه دَ زړه دَ اخلاصه جنګیدلے وی او په خپل عمل ئے خپله بهادری ثابته کړی وی ـ نو دَ صدق په حقیقت کښے دا خبره هم شامله ده چه دَ ویونکی عمل دِ دَ هغه دَ وینا سره مطابقت لری ـ دَ خپلے وینا خلاف چه څوک عمل کوی هغه ته صادق نشی ویلے کیدے ـ په دے وجه خو تا سو هغه سړی ته دروغژن نصیحت کوونکے وایئ چه هغه وائی یو څه او کوی بل څه ـ اُوس غور پکار دے چه هر کله دا تعریف دَ صِدق او دَ صادِق دے نو دَ مبالغ په صیغه کښے چا ته صِدّیق ویل به څه مطلب لری ـ دَ دے نه مراد لازماً دا سے رښتينې سړے دے چه هغه خالص وی، دَ حق نه هیڅکله په شا شوے نهٔ وی، چه دَ هغه نه دا توقع هډو کیدے نشی چه هغه به چرته دَ خپل ضمیر نه خلاف خبره اُوکړی، چه هغه کومه خبره منلی وی نو بنه پوره په اخلاص سره ئے منلی وی، دَ هغے دَ وفادارئ حق ئے ادا کړے وی، او دَ خپل عمل نه ئے ثابته کړی وی چه هغه واقعی هغسے منونکے دے لکه څنګه چه یو منونکی له کیدل پکار دی (دَ زیاتے تشریح دَ پاره اُوګورئ تفهیم القرآن، اوّل جلد، النساء، حاشیه ۹۹) ـ

۳۴ه دَ دے آیت په تفسیر کښے دَ لویو لویو مفسرینو په منځ کښے اختلاف دے ـ ابن عباسؓ، مسروق، ضحاک، مُقاتِل بن حیّان وغیره وائی چه اُولٰٓىِٕكَ هُمُ الصِّدِّیۡقُوۡنَ باندے یوه جمله ختمه شوه ـ دَ هغے نه روستو وَالشُّهَدَآءُ عِنۡدَ رَبِّهِمۡ لَهُمۡ اَجۡرُهُمۡ وَنُوۡرُهُمۡ جُدا یوه مستقله جمله ده ـ دَ دے تفسیر په لحاظ سره به دَ آیت ترجمه دا وی چه "کومو خلقو په الله او دَ هغه په رسولانو باندِ ایمان راوړے دے هم هغوی صِدّیقان دی ـ او دَ شهداء دَ پاره دَ هغوی دَ رب سره دَ هغوی اَجر او دَ هغوی نُور دے" دَ دے برخلاف مجاهد او نورو ډیرو مفسرین دِ دے ټول عبارت ته یوه جمله وائی او دَ هغوی دَ تفسیر په لحاظ سره به ترجمه هغه وی کومه چه بره مونږه په متن کښے کړی ده ـ په دواړو تفسیرونو کښے دَ اختلاف وجه دا ده چه اوّلے ډلے شهید دَ مقتول فی سبیل الله په معنیٰ کښے اغستلے دے، او دَ دے ته ئے کتلی دی چه هر مومن خو په دے معنیٰ کښے شهید نهٔ وی وَالشُّهَدَآءُ عِنۡدَ رَبِّهِمۡ ئے یوه جُدا جُمله کړی ده ـ لیکن دوېمه ډله شهید دَ مقتول فی سبیل الله په معنیٰ کښے نهٔ بلکه دَ حق ګواهی ورکوونکی په معنیٰ کښے اغستلے دے او په دے لحاظ سره هر مومن شهید دے ـ زمونږ په نز دا دوېم تفسیر قابل ترجیح دے او دَ قرآن او دَ حدیث نه دَ دے تائید کیږی ـ په قرآن کښے فرمائی :

وَ نُوْرُهُمْ ؕ وَ الَّذِیْنَ كَفَرُوْا وَ كَذَّبُوْا بِاٰیٰتِنَاۤ اُولٰٓىٕكَ اَصْحٰبُ الْجَحِیْمِ ﴿۱۹﴾ اِعْلَمُوْۤا اَنَّمَا الْحَیٰوةُ الدُّنْیَا لَعِبٌ وَّ لَهْوٌ وَّ زِیْنَةٌ وَّ تَفَاخُرٌۢ بَیْنَكُمْ وَ تَكَاثُرٌ فِی الْاَمْوَالِ وَ الْاَوْلَادِ ؕ كَمَثَلِ غَیْثٍ اَعْجَبَ الْكُفَّارَ نَبَاتُهٗ ثُمَّ یَهِیْجُ فَتَرٰىهُ مُصْفَرًّا ثُمَّ یَكُوْنُ حُطَامًا ؕ وَ فِی الْاٰخِرَةِ عَذَابٌ شَدِیْدٌ ۙ وَّ مَغْفِرَةٌ مِّنَ اللّٰهِ وَ

اودَ هغوی نُورد ے[۳۵] ۔ اوکومو خلقو چه کفر کړے دے اوزمونږ ه آیتونه ئے دروغ گنړلی دی هغوی دوزخیان دی ۔ ع

بنه پوهه شئ چه دَ دُنیا ژوند بس لوبے ټوقے دی او ظاهری ړول دے او ستاسو په خپل منځ کښے په یو بل فخر کول دی، او په مال او په اولاد کښے دَ یو بل نه دَ زیاتیدو کوشش کول دی ۔ دَ دے مثال داسے دے لکه چه یو باران اُوشوا و دَ هغے په ذریعـه را زرغون شوو بُوټو ته چه زمیدار اوکتل نو خوشحاله شو ۔ بیا هغه فصل پخیږی او تاسو وینئ چه هغه زیړ شو ۔ بیا دَ هغے نه بُوس جوړ شی ۔ دَ دے برعکس آخرت هغه ځائے دے چه هلته سخت عذاب دے اودَ الله سبحانه او

| | |
|---|---|
| وَكَذٰلِكَ جَعَلْنٰكُمْ اُمَّةً وَّسَطًا لِّتَكُوْنُوْا شُهَدَآءَ عَلَى النَّاسِ وَيَكُوْنَ الرَّسُوْلُ عَلَيْكُمْ شَهِيْدًا ۔ (البقرہ ـ ۱۴۳) | او دغه شان مونږه ستاسو یو میانځی اُمت جوړ کړے دے دَ پاره دَ دے چه تاسو په خلقو گواه شئ او رسول په تاسو گواه شی ۔ |
| هُوَ سَمّٰىكُمُ الْمُسْلِمِيْنَ مِنْ قَبْلُ وَفِيْ هٰذَا لِيَكُوْنَ الرَّسُوْلُ شَهِيْدًا عَلَيْكُمْ وَتَكُوْنُوْا شُهَدَآءَ عَلَى النَّاسِ (الحج ـ ۷۸) | الله مخکښے هم ستاسو نوم مسلمان کیښودلے وُو او په دے قرآن کښے هم (ستاسو دا نوم دے) چه رسول په تاسو گواه شی او تاسو په خلقو گواه شئ ۔ |

په حدیث کښے دَ حضرت بَراءِ بن عازِب روایت دے چه هغه دَ رسول الله صلی الله علیه وسلّم نه دا اوریدلی دی مُؤمنوا اُمَّتِیْ شُهَدَآء، "ځما دَ امت مومنان شهیدان دی"، بیا نبیؐ دَ سورة حدیده دا آیت تلاوت کړو (ابن جریر) ـ ابن مَرْدُوَیه په دے معنیٰ کښے دَ حضرت ابوالدّرداءؓ نه دا روایت نقل کړے دے چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی من فرّبدینه من ارضٍ مخافة الفتنة علیٰ نفسه و دینه کتب عندالله صِدّیقا فاذا مات قبضه الله شهیدًا ثم تلا هذه الایة ـ "څوک چه خپل ځان او خپل دین دَ فتنے نه دَ بچ کولو دَ پاره دَ یو زمکے نه

رِضْوَانٌ ؕ وَمَا الْحَيٰوةُ الدُّنْيَآ اِلَّا مَتَاعُ الْغُرُوْرِ ﴿۲۰﴾ سَابِقُوْٓا اِلٰى
مَغْفِرَةٍ مِّنْ رَّبِّكُمْ وَجَنَّةٍ عَرْضُهَا كَعَرْضِ السَّمَآءِ وَالْاَرْضِ

دَ هغه رضا ده ـ دَ دُنیا ژوند نور هیڅ نهٔ دے بس دَ دوکے سامان[۳۶] دے ـ
منډه کړئ او دَ یو بل نه دَ مخکښے کیدو کوشش[۳۷] اُوکړئ دَ خپل رب بخښنے ته
اوهغه جنت ته چه دَ هغے فراښوالے دَ آسمان و دَ زمکے

اُوباسی هغه دَ الله سره صدیق لیکلے کیږی اوچه کله هغه مړکیږی نو الله دَ هغه نه شهید په حیثیت سره رُوح قبض کوی" بیا دَ دے نه روښانه دا آیت اولوستو۔ (دَ شهداء دَ تشریح دَ پاره اُوګوره تفهیم القرآن، اوّل جلد، البقرة، حاشیه ۱۴۴ ـ النساء ، حاشیه ۹۹ ـ څلورم جلد، الاحزاب ، حاشیه ۸۲ )۔

۳۵ یعنی په هغوی کښے چه هر یو دَ کومے مرتبے دَ اجر او دَ کومے درجے دَ نُور مستحق وی هغه به هغه ته ملاویږی ـ هغوی به خپل خپل اجر او خپل خپل نُور حاصلوی ـ دَ هغوی دَ پاره دَ هغوی حصه دَ نن نه محفوظ ده ـ

۳۶ په دے خبره باندِ دَ ځان پوهه کولو دَ پاره دَ قرآن مجید لاندینی ځایونه په نظر کښے ساتل پکاردی ۔ سورة آل عمران ، آیتونه ۱۴ ـ ۱۵ ـ یونس ، ۲۴ ـ ۲۵ ـ ابراهیم ، ۱۸ ـ الکهف ، ۴۵ ـ ۴۶ ـ النُور ، ۳۹ ـ په دے ټولو ځایونو کښے چه اِنسان ته کومه خبره په ذهن کښے کیولے کیږی هغه داده چه دَ دُنیا دا ژوند په اصل کښے عارضی ژوند دے ـ دَ دے ځائے سپرلے هم عارضی دے او خزان ئے هم عارضی دے ـ دَ زړه خوشحالولو سامان دلته ډیر څه دی ، لیکن په حقیقت کښے هغه ډیر معمولی او واړه څیزونه دی چه انسان ئے دَ خپلے ناپوهئ په وجه غټ څیز ګنړی او په دے دوکه کښے پریوزی چه دَ دے حاصلول دا سے دی لکه چه سړے دَ کامیابئ آخری حد ته اُورسی ـ حالانکه چه کومے لوئے لوئے فایدے او دَ خوندونو سامانونه دلته سړے حاصلولے هم شی نو هغه ډیر معمولی دی او صرف دَ یو څو کلونو دَ عارضی ژوند پورے محدود دی ، او دَ هغے حال هم داد ے چه پخپله په دے دُنیا کښے دَ دے ټولو سامانونو دَ ختمولو دَ پاره دَ تقدیر یو جُړ رلک کافی دے ـ دَ دے برعکس دَ آخرت ژوند یو عظیم او همیشه ژوند دے ـ دَ هغه ځائے فایدے هم عظیمے او مستقل دی او نقصان هم عظیم او مستقل دے ـ چاته چه هلته دَ الله بخښنه او دَ الله رضا حاصله شوه نو هغه ته دَ همیشه همیشه دَ پاره هغه نعمت نصیب شو چه دَ هغے په مقابله کښے دَ ټولے دُنیا دولت او حکومت هیڅ هم نهٔ دے ـ او څوک چه هلته دَ خدائے په عذاب کښے ګرفتار شو نو که هغه ته په دُنیا کښے هغه هرڅه حاصل شوی وی کوم چه هغه په خپل نزکښے غټ څیزونه ګنړل خو هغه ته به معلومه شی چه هغه ډیره دَ خسارے سودا کړی ده ـ

۳۷ په اصل کښے لفظ سَابِقُوْا استعمال شوے دے چه دَ هغے مطلب تش په "منډه کړئ" سره نهٔ ادا کیږی ـ دَ مسابقت معنیٰ په مقابله کښے دَ یو بل نه دَ مخکښے کیدو کوشش کول دی ـ مطلب دا دے چه تاسو دَ دُنیا دَ دولت او دَ فائدو په حاصلولو کښے دَ یو بل نه دَ مخکښے کیدو کوشش کوئ هغه پریږدئ او دے څیز ته مخه کړئ او دِے طرفته په منډه کښے دَ یو بل نه دَ مخکښے کیدو کوشش اُوکړئ ـ

أُعِدَّتْ لِلَّذِينَ آمَنُوا بِاللَّهِ وَرُسُلِهِ ۚ ذَٰلِكَ فَضْلُ اللَّهِ يُؤْتِيهِ مَن يَشَاءُ ۚ وَاللَّهُ ذُو الْفَضْلِ الْعَظِيمِ ﴿٢١﴾ مَا أَصَابَ مِن مُّصِيبَةٍ فِي الْأَرْضِ وَلَا فِي أَنفُسِكُمْ إِلَّا فِي كِتَابٍ مِّن قَبْلِ أَن نَّبْرَأَهَا ۚ إِنَّ ذَٰلِكَ عَلَى اللَّهِ يَسِيرٌ ﴿٢٢﴾ لِّكَيْلَا تَأْسَوْا عَلَىٰ مَا فَاتَكُمْ وَلَا تَفْرَحُوا

---

هومره دے[۳۸]، چه د هغه خلقو د پاره تیار کړے شو ے دے چه هغوی په الله او د هغه په رسولانو باندې ایمان راوړے وی۔ دا د الله فضل دے، چه چا له ئے خوښه وی هغه له ئے ورکوی، او الله د لوی فضل خاوند دے۔

یو مصیبت داسے نشته چه هغه په زمکه باندې یا ستاسو په خپل نفس باندې نازلیږی او مونږ هغه د پیدا کیدو نه مخکښے په یو کتاب کښے لیکلے نه وی[۳۹]۔ دا کار د الله د پاره ډیر آسان دے[۴۰]۔ (دا ټول هرڅه د د ے د پاره دی) چه څه نقصان ستاسو اُوشی نو چه په هغے غمژن نه شئ او چه څه الله درکړی

---

[۳۸] اصل الفاظ دی عَرْضُهَا كَعَرْضِ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ۔ ځینو مفسرو عرض د پلنوالی په معنیٰ کښے اغستلے دے۔ لیکن په اصل کښے دلته دا لفظ د فراخئ په معنیٰ کښے استعمال شوے دے۔ په عربئ ژبه کښے لفظ عرض صرف د پلنوالی د پاره نه وئیلے کیږی، بلکه دا صرف د فراخئ د پاره هم استعمالیږی، لکه چه په یو بل ځائے کښے په قرآن کښے فرمائی: فَذُو دُعَاءٍ عَرِيضٍ، "انسان بیا اُوږد اُوږد دُعاګانے شروع کړی" (حٰمٓ السجدة۔ ۵۱)۔ د د ے سره په د ے خبره هم ځان پوهه کول پکار دی چه دلته د جنت رقبه ښودل مقصد نه دے بلکه د جنت فراخوالے په فکر کښے راوستل دی۔ دلته د جنت فراخوالے د آسمان او د زمکے هومره ښودلے شوے دے، او په سورة آل عمران کښے دی سَارِعُوا إِلَىٰ مَغْفِرَةٍ مِّن رَّبِّكُمْ وَجَنَّةٍ عَرْضُهَا السَّمَاوَاتُ وَالْأَرْضُ أُعِدَّتْ لِلْمُتَّقِينَ (آیت ۱۳۳)۔ "منډه کړئ د خپل رب بخښنے ته او هغه جنت ته چه فراخنیا ئے ټول کائنات دے، چه تیار کړے شوے دے د متقیانو خلقو د پاره"۔ د د ے دواړو وایتونو د لوستلو نه چه کومه خبره په ذهن کښے کینی هغه دا ده چه په جنت کښے به انسان ته کوم باغونه او محلات ملاویږی هغه خو به صرف د هغه د اُوسیدو د پاره وی، لیکن په حقیقت کښے ټول کائنات به د هغه د سیل ځائے وی۔ په یو ځائے کښے به هغه بند نه وی۔ هلته به د هغه حال د د ے دُنیا په شان نه وی چه سپوږمئ غوندې نژد ے سیارے ته د رسید و د پاره هم انسان په کلونو کلونو کوششونه اُوکړل او د د ے لږ شان سفر د مشکلاتو په لرے کولو کښے ئے بے پناه وسائل خرچ کړل۔ هلته به ټول کائنات د هغه د پاره آزاد وی چه څه غواړی هغه به په خپل ځائے کښے په ناسته ناسته وینی او چه کوم خوا ته ئے غواړی هلته به په آسانئ سره تلے شی۔

بِمَآ اٰتٰىكُمْ ؕ وَاللّٰهُ لَا يُحِبُّ كُلَّ مُخْتَالٍ فَخُوْرِۙ ﴿۲۳﴾ الَّذِيْنَ يَبْخَلُوْنَ وَيَاْمُرُوْنَ النَّاسَ بِالْبُخْلِ ؕ وَمَنْ يَّتَوَلَّ فَاِنَّ اللّٰهَ هُوَ

چه په هغې خاوره نهٔ شئ[۴۳] ـ الله دا سے خلق نهٔ خوښوی چه خپل ځان غټ ګڼړی او فخر کوی، چه په خپله شومتیا کوی او نورو خلقو ته د شومتیا سبق ورکوی[۴۴] ـ اُوس که څوک مخ اړوی نو الله

[۳۹] "هغه" دا اشاره مصيبت ته هم کيدے شی، زمکے ته هم، نفس ته هم او د کلام د انداز ے په لحاظ سره مخلوقاتو ته هم ـ

[۴۰] د کتاب نه مُراد د تقدير ليکٔ د ے ـ

[۴۱] يعنى د خپل ير يو مخلوق تقديرد مخکښے نه ليکل د الله د پاره څه ګران کار نهٔ د ے ـ

[۴۲] دلته چه دا خبره د کوم غرض د پاره شوی ده په هغے باندِ د ځان پوهه کولو د پاره هغه حالات په نظر کښے ساتل پکار دی کوم چه د د ے سورة د نازليدو په وخت کښے مومنانو ته پيښ وُو ـ هر وخت د د شمنانو د حملے خطره، مُسلسل جنګونه، هميشه د قلا بند کيدو غوندِ حالت، د کافرانو د روزګار قطع کولو په وجه سخت بد حالی، د عربو په کوټ کوټ کښے په مومنانو باندِ د کافرانو ظلمونه، دا هغه حالات وُو چه په هغه وخت کښے په مسلمانانو باندِ تيريدل ـ د د ے حالاتو په وجه به کافرانو وئيل چه دا د مسلمانانو د ذلالت او سپکاوی دليل د ے ـ منافقانو به د خپلو شکونو په تائيد کښے دا حالات پيش کول ـ او مُخلصو مومنانو اګرچه ډير په بهادرئ سره د د ے حالاتو مقابله کوله، خو په ځينو وختونو کښے به ډير ګرد مصيبتونه د هغوئ د پاره هم ګران شو ـ په د ے باندِ مسلمانانو له تسلّی ورکړے کيږی چه په تاسو باندِ يو مصيبت هم دا سے نهٔ د ے نازل شوے چه د هغے نه مخکښے الله نا خبره د ے ـ څه چه کيږی، دا ټول د الله تعالىٰ د منصوبے مطابق دی چه د مخکښے نه د هغه په دفتر کښے ليکلے شوی موجود دی ـ او دا حالات خاص ستاسو د تربيت د پاره په تاسو راوستلے شوی دی ـ کوم لوئ کار چه الله تعالىٰ ستاسو نه اخستل غواړی د هغے د پاره دا تربيت ضروری د ے ـ د د ے تربيت نه بغير که تاسو د کاميابئ منزل ته اُورسولے شئ نو ستاسو په عملونو کښے به هغه کمے پاتے شی چه د هغے په وجه به نهٔ د اقتدار د رُون خوراک هضم کړے شئ او نهٔ به د باطل د طوفانی چپو سپيړے برداشت کړے شئ ـ

[۴۳] دا اشاره ده هغه عمل ته کوم چه پخپله مسلمانانو په هغه وخت کښے په منافقانو کښے ليدو ـ د ايمان د ظاهری اقرار په لحاظ سره په هغوئ کښے او په مخلصو مسلمانانو کښے څه فرق نهٔ وُو ـ ليکن د اخلاص د نشوالی په وجه هغوی په هغه تربيت کښے شامل شوی نهٔ وُو کوم چه مخلصو مسلمانانو له ورکړے کيدو، په د ے وجه د هغوئ دا حال وُو چه کومه لږه شان خوشحالی او سرداری هغوی ته د عربو په يو معمولی شان کلی کښے په لاس ورغلی وه په هغے هغوی ځان ته ډير غاوره وُو او د غرور نه ټق چاودل، او شومتيا خوئے د د ے حده پورے وه چه په کوم خدائے باندِ د ايمان راوړلو او د کوم رسول د پيروئ کولو او د کوم دين د منلو دعوی

الْغَنِيُّ الْحَمِيْدُ ﴿۲۴﴾ لَقَدْ اَرْسَلْنَا رُسُلَنَا بِالْبَيِّنٰتِ وَاَنْزَلْنَا مَعَهُمُ الْكِتٰبَ وَالْمِيْزَانَ لِيَقُوْمَ النَّاسُ بِالْقِسْطِ ۚ وَاَنْزَلْنَا الْحَدِيْدَ فِيْهِ بَاْسٌ شَدِيْدٌ وَّمَنَافِعُ لِلنَّاسِ وَلِيَعْلَمَ اللّٰهُ

بے نیازه او ستائیلے شوے دے[۴۴]۔

مونږ خپل رسولان د صفا صفا نښو او هدایاتو سره اُولیږل، او د هغوی سره مو کتاب او میزان نازل کړو چه خلق په انصاف باندې قایم وی[۴۵]، او وسپنه مو نازله کړه چه په هغې کښې ډیر زور دے او د خلقو د پاره پکښې ډیر فایدے دی[۴۶]۔ دا د دې د پاره شوی دی چه الله ته معلومه شی چه

به ئې کوله د هغې د پاره پخپله یوه پیسه ورکول خوښه خبره ده، چه بل چا به څه ورکول نو وئیل به ئې ورته چه ولے خپلے پیسے هسے برباد وے۔ ښکاره خبره ده چه که چرے د مصیبتونو بټئ کرمه کړے شوے نۀ وے، نو دا کوټه مال، چه د الله د هیڅ کارنۀ وُو، د خالصو زړونه جُدا کیدے نۀ شو، او د هغې د جُدا کیدو نه بغیر د کچه او د پخو مسلمانانو یو شریک کښې ته د دُنیا د امامت هغه لوئ منصب نۀ شو حواله کیدے چه د هغې د برکتونو نندارہ آخر د دُنیا خلقو د خلافتِ راشده په دور کښې اُوکړه۔

[۴۴] یعنی د دے نصیحت د اوریدو نه روستو هم که څوک د الله او د هغه د دین د پاره د خلوص او د فرمان بردارئ او د قربانئ لارنۀ اختیاروی او په خپل هغه کوږ رفتار باندې ټینګ اُوسیدل غواړی کوم چه د الله ډیر بد دی شی، نو د الله په دے هیڅ پروا نشته۔ هغه غنی دے، د هغه هیڅ حاجت د دے خلقو ته نشته۔ او هغه ستائیلے شوے دے، د هغه په دربار کښې صرف د ښو صفتونو خلق مقبول کیدے شی، بد عمله خلق د هغه د توجه مستحق کیدے نۀ شی۔

[۴۵] په دے وړه شان فقره کښې د پیغمبرانو د کارپوره مطلب بیان کړے شوے دے چه ځان پرِ بنه پوهه کول پکار دی۔ په دے کښې وئیلے شوی دی چه د الله تعالیٰ د طرفنه دُنیا ته څومره پیغمبران راغلی دی هغوی ټولو درے څیزونه د ځان سره راوړی وُو،

(۱) بیّنات، یعنی صفا صفا نښے چه دا به ترِ معلومیدله چه واقعی دا د الله رسولان دی، د چا جوړ شوی خلق نۀ دی۔ رُوښانه دلیلونه، چه د دے خبری د ثابتولو د پاره بالکل کافی وُو چه کوم څیز ته هغوی حق وائی هغه واقعی حق دے او چه کوم څیز ته هغوی باطل وائی هغه واقعی باطل دے۔ واضحه هدایات، چه په هغې کښې بے شکه بے شبهے صفا صفا دا وئیلے شوی وُو چه په عقیدو کښې، په اخلاقو کښې، په عباداتو کښې، او په معاملاتو کښې نیغه لاره کومه ده چه په هغې خلق روان شی او غلطے لارے کومے دے چه د هغې نه خلق ځان اُوساتی۔

مَنْ يَّنْصُرُهٗ وَرُسُلَهٗ بِالْغَيْبِ ۭ اِنَّ اللّٰهَ قَوِيٌّ عَزِيْزٌ ﴿۲۵﴾ ع

څوک بے ليدو دَ هغه او دَ هغه دَ رسولانو مدد کوی۔ يقيناً چه الله ډير طاقتور او زبردست دے۔ ع

(۲) کتاب، چه په هغې کښے هغه ټولے خبرے ليکلے شوے وے کومے چه دَ انسان دَ هدايت دَ پاره ضروری وے چه خلق دَ خپلے لار سيده کولو دَ پاره هغې ته رجوع اُوکړی۔

(۳) ميزان، يعنی دَ حق او دَ باطل هغه معيار چه ټيک ټيک دَ تلے په شان دا اُوښائی چه دَ کنړو فکرونو او اخلاقو او معاملاتو په منځ کښے دَ انصاف خبره څه ده۔

دَ دے دريو څيزونو سره چه پيغمبران دَ کوم مقصد دَ پاره رااُوليږلے شو هغه دا وُو چه دُنيا کښے دَ انسان عمل او دَ انسان دَ ژوند نظام، فرداً هم او اجتماعی طور هم، په انصاف باندِ قايم وی۔ يو طرفته چه هر انسان دَ خپل خدائے حقونه، دَ خپل نفس حقونه، او دَ خدائے دَ ټولو متعلقه بندګانو حقونه ټيک ټيک اُوپيژنی او پوره په انصاف سره هغه ادا کړی۔ او بل طرفته چه دَ اجتماعی ژوند نظام په داسے اصولو باندِ جوړ شی چه دَ هغې په وجه په خلقو کښے هيڅ قِسم ظلم پاتے نۀ شی، دَ ژوند هر اړخ دَ کمی زياتی نه محفوظ شی، دَ شريک ژوند په ټولو څانګو کښے صحيح صحيح توازن قايم شی، او ټولو خلقو ته په انصاف سره خپل حقونه مِلاؤ شی او خپل فرائض ادا کړی۔ يعنی دَ پيغمبرانو دَ رااليږلو مقصد انفرادی عدل هم وُو او اجتماعی عدل هم وُو۔ هغوی دَ يو يو تن په ذاتی ژوند کښے هم عدل قايمول غوښتل چه دَ هغه ذهن، دَ هغه خوئ خصلت، دَ هغه عمل او دَ هغه په سلوک کښے توازن را پيدا شی۔ او پوره انسانی نظام ئے هم په عدل قايمول غوښتل چه فرد او جماعت دواړه دَ يو بل په رُوحانی اخلاقی او مادی ترقی کښے دَ يو بل مددګاران وی۔

۴۶ۛ دَ وُسپنے دَ رااليږلو مطلب په زمکه کښے وُسپنه پيدا کول دی، لکه څنګه چه په يو بل ځائے کښے په قرآن کښے فرمائی وَ اَنْزَلَ لَكُمْ مِّنَ الْاَنْعَامِ ثَمٰنِيَةَ اَزْوَاجٍ (الزمر، ۶)۔ " هغه ستاسو دَ پاره دَ څاروُو اَته قِسمه نر او ښځه رااُوليږل "۔ دا په زمکه کښے چه څه دی دا دَ الله په حکم سره راغلی دی، ځکه نۀ دی جوړ شوی، نو په دے وجه دَ هغوئ پيدا کولو ته په قرآن مجيد کښے نازِلول يا رااليږل ويئلے شوی دی۔

دَ پيغمبرانو دَ کار بيانولو نه فوراً روستو دا فرمائيل چه " موږ وُسپنه نازله کړه چه په هغې کښے ډير زُور دے او دَ خلقو دَ پاره پکښے ډيرے فائدے دی "، ځکه دِ دے خبرے ته اشاره کوی چه دلته دَ وُسپنے نه مُراد سياسی او جنګی طاقت دے، او دَ کلام مدّعا دا ده چه الله تعالیٰ خپل رسولان تش دَ عدل قايمولو دَ يو سکيم پيش کولو دَ پاره رااليږلی نۀ وُو بلکه دا خبره هم دَ هغوئ په پيغمبری کار کښے شامله وه چه عملاً دِ دَ عدل قايمولو کوشش اُوکړے شی او هغه قوّت دِ راپيدا کړے شی چه په هغې سره واقعی عدل قايم شی، او څوک چه دَ عدل دَ بربادولو کوشش کوی چه هغوی له سزا ورکړے شی او زُور ئے ختم کړے شی۔

وَلَقَدْ اَرْسَلْنَا نُوْحًا وَّاِبْرٰهِيْمَ وَجَعَلْنَا فِيْ ذُرِّيَّتِهِمَا النُّبُوَّةَ وَالْكِتٰبَ فَمِنْهُمْ مُّهْتَدٍ ۚ وَكَثِيْرٌ مِّنْهُمْ فٰسِقُوْنَ ﴿۲۶﴾ ثُمَّ قَفَّيْنَا

مونږ نوحؑ اوابراهيمؑ رااُولیږل[۴۸] اودَ هغوی دواړو په نسل کښې مونبوّت اوکتاب کیښودو[۴۹]۔ بیا دَ هغویُ په اولادکښې چادَهدایت لارخپله کړه اوډیرېکښې فاسقان شو[۵۰]۔ دَ هغوی نه روستومونږ پرلپسے

۴۷ یعنی اللّٰه ته دَ دے امداد ضرورت څه په دے وجه نهٔ دے چه هغه گنی کمزورے دے، په خپل طاقت دا کار نشي کولے۔ بلکه دا طریقه هغه دَ انسانانو دَ آزمیښت دَپاره اختیار کړې ده او په دے آزمیښت کښې دَ کامیابیدو نه روستو انسان دَ خپلې ترقۍ او دَ خپلې کامیابۍ په لاره تګ کولے شي۔ اللّٰه خو هر وخت دا قدرت لري چه کله اُوغواړي نو په یوه اشاره ټولو کافرانو له شکست ورکولے شي او خپلو رسولانو له په هغوی باندې غلبه ورکولے شي۔ لیکن په دے کښې به بیا په رسولانو باندې دَ ایمان راوړونکو خلقو څه کمال وي چه هغویٔ به دَ انعام مستحق شي؟ په دے وجه الله تعالیٰ دَ دے کار دَپاره خپل غالب قدرت استعمال نهٔ کړو او دا طریقه ئے اختیار کړه چه خپل رسولان ئے دَ بیّنات، او دَ کتاب او دَ میزان سره انسانانو ته رااُولیږل۔ هغویٔ ته ئے دَ دے خبرې حکم اُوکړو چه خلقو ته دَ عدل لاره ځکښې کړي او دَ ظلم او دَ بے انصافۍ نه دَ منع کیدو دعوت ورکړي۔ انسانانو له ئے دَ دے خبرې پوره اختیار ورکړو چه څوک غواړي هغوی دې دَ رسولانو دعوت قبول کړي او چه څوک نهٔ غواړي نو نهٔ دې ئے قبلوي۔ قبلونکو ته ئے آواز اُوکړو چه را شئ، دَ عدل دَ دے نظام په قایمولو کښې ځما او ځما دَ رسولانو ملګرتیا اُوکړئ او دَ هغه خلقو په مقابله کښې سخت کوشش اُوکړئ چا چه دَ ظلم دَ برقرار ساتلو دَپاره ملا تړلې ده۔ په دے طریقه الله تعالیٰ دا کتل غواړي چه په انسانانو کښې څوک دَ انصاف خبره نهٔ قبلوي او دَ بے انصافۍ دَپاره جنګیږي، او څوک دَ انصاف خبره قبلوي خو بیا دَ هغې دَپاره دَ کوشش کولو نه ډډه کوي، او څوک بے لیدو دَ خدائے دَپاره په دُنیا کښې دَ دے حق غالب کولو دَپاره خپل مال او سر قربانوي۔ په دے امتحان کښې چه څوک کامیاب شو دَ هغویُ دَپاره به دَ ترقۍ دروازے پرانستے پرتے وي۔

۴۸ اُوس دا ښودلے کیږي چه دَ محمد صلی الله علیه وسلّم نه مخکښې کومو رسولانو بیّنات او کتاب او میزان راوړے وُو دَ هغوی په منونکو کښې څه خرابتیا را پیدا شوه۔

۴۹ یعنی کومو رسولانو چه دَ اللّٰه کتاب راوړے دے هغوی ټول دَ نوحؑ، او دَ هغه نه روستو دَ حضرت ابراهیمؑ دَ نسل نه وُو۔

۵۰ یعنی نافرمانه شو، دَ اللّٰه دَ بندګۍ نه ئے ځان آزاد کړو۔

عَلٰٓى اٰثَارِهِمْ بِرُسُلِنَا وَقَفَّيْنَا بِعِيْسَى ابْنِ مَرْيَمَ وَاٰتَيْنٰهُ الْاِنْجِيْلَ ۙ وَجَعَلْنَا فِيْ قُلُوْبِ الَّذِيْنَ اتَّبَعُوْهُ رَاْفَةً وَّرَحْمَةً ۭ وَرَهْبَانِيَّةَۨ ابْتَدَعُوْهَا مَا كَتَبْنٰهَا عَلَيْهِمْ اِلَّا ابْتِغَاۗءَ رِضْوَانِ اللّٰهِ

خپل رسولان اُولیږل، او دَ هغوی تړلونه روستو مو عیسیٰ دَ مریم ځوئے اُولیږو او هغه له مو انجیل ورکړو، او کومو خلقو چه دَ هغه پیروی اختیار کړه دَ هغوی په زړونو کښې مونږ ترس او رحم[51] واچوُو۔ او رهبانیت[52] هغوی پخپله جوړ کړو، مونږ پرِ فرض کړے نهٔ وُو۔ خو هغوی دَ الله دَ رضا په تلاش کښې دَ ځانه دا بدعت جوړ کړو[53]

[51] اصل الفاظ دی رافةً و رحمةً۔ دَ دے دواړو تقریباً یوه معنیٰ ده خوچه کله په یو ویئلے کیږی نو دَ رافة نه مُراد دَ زړه هغه نرموالے دے چه دَ سړی په زړهٔ کښې په هغه وخت کښې راپیدا کیږی کله چه هغه څوک په تکلیف او مُصیبت کښې اُوو ینی۔ او دَ رحمة نه مُراد هغه جذبه ده چه دَ مخ په وجه هغه دَ هغه دَ امداد کوشش کوی۔ حضرت عیسیٰ علیه السّلام چونکه ډیر نرم دله انسان وُو او دَ خدائے په مخلوق بانډِ ډیر مهربانه وُو نو په دے وجه دا اَثر دَ هغه په پیروکارانو کښې هم وُو، هغوی به هم دَ الله په بندګانو ترس کولو او دَ زړهٔ په مینه به ئے دَ هغوی خدمت کولو۔

[52] دا ټکے رَهْبانیّت هم ویئلے شی او رُهبانیّت هم۔ دَ دے مادّه رهب ده چه معنیٰ ئے ده یَره۔ دَ رَهبانیّت مطلب دے دَ یَرے لار، او دَ رُهبانیّت معنیٰ ده دَ یریدونکو خلقو لار۔ اصطلاحاً دَ دے نه مُراد هغه سړے دے چه هغه دَ یَرے دَ وجے نه (خواه که هغه یَره دَ یو ظالم نه وی، یا دَ دُنیا دَ فتنو نه وی، یا دَ خپل نفس دَ کمزورئ نه وی) تارک الدُنیا شی او دَ دُنیا دَ ژوند نه اُوتښتی او چرته په ځنګلونو او غرونو کښې پناه واخلی یا چرته دَ تنهایئ په ځائے کښې ځان له کینی۔

[53] اصل الفاظ دی اِلَّا ابْتِغَاۗءَ رِضْوَانِ اللّٰهِ۔ دَ دے دوه مطلبونه کیدے شی۔ یو دا چه مونږ په هغوئ بانډِ دا رهبانیّت فرض کړے نهٔ وُو بلکه کوم څیز چه په هغوئ فرض وُو هغه دا وُو چه هغوئ دَ الله دَ رضا حاصلولو کوشش اُوکړی۔ او دویم مطلب دا دے چه دا رهبانیّت مونږ فرض کړے نه وُو بلکه دَ الله دَ رضا په تلاش کښې هغوی په خپله په ځان بانډِ فرض کړے وُو۔ دَ دواړو مطلبونو نه دا خبره څرګندیږی چه رهبانیّت یو غیر اسلامی څیز دے او دا هیڅکله په حق دین کښې شامل پاتے شوے نهٔ دے۔ هم دا خبره نبی صلی الله علیه وسلّم فرمائیلی ده چه لا رهبانية فی الاسلام" "په اسلام کښې رهبانیت نشته" (مُسنَدِ احمد)۔ په یو بل حدیث کښے نبیؐ فرمائی رهبانية هٰذه الامّة الجهاد فی سبیل الله، "جهاد فی سبیل الله دَ دے امّت رهبانیّت دے" (مُسندِ احمد۔ مسند ابی یعلیٰ)۔ یعنی دَ دے امّت دَ پاره دَ رُوحانی ترقئ لار دُنیا پریښودل نهٔ دی بلکه دَ الله په لار کښې جهاد کول دی، او دا امّت دَ فتنو دَ یَرے دَ وجے نه ځنګلونو او غرونو ته نهٔ تښتی بلکه دَ خدائے په لار کښې دَ جهاد په ذریعه دَ هغوی مقابله کوی۔

فَمَا رَعَوْهَا حَقَّ رِعَايَتِهَا ۚ فَاٰتَيْنَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مِنْهُمْ اَجْرَهُمْ ۚ وَكَثِيْرٌ مِّنْهُمْ فٰسِقُوْنَ ﴿۲۷﴾

او بیا چه دَ دے دَ پابندئ کولو کوم حق ؤو هغه ئے ادا نهٔ کړو۔ په هغوی کښے چه کوم خلق ایمان راوړے ؤو دَ هغوی اجر مونږ هغوی له ورکړو، خو په هغوئ کښے اکثر خلق فاسقان دی۔

دَ بخاری او دَ مُسلم متفق علیه روایت دے چه په صحابو کښے یو صاحب اُووئیل څهٔ به همیشه ټوله شپه مونځ کوم، بل اُووئیل څهٔ به همیشه روژه نیسم ناغه به پکښے نهٔ کوم، دریم اُووئیل څهٔ به هیڅکله واده نهٔ کوم او دَ ښځے سره به هیڅ واسطه نهٔ لرم۔ رسول الله صلی الله علیه وسلّم دَ هغوی دا خبرې واورید لے نو وے فرمائیل:

اما والله انی لاخشاکم لِلّٰه و اتقاکم لَهٗ لکنی اصوم و اُفطر و اُصلّی و ارقُد واتزوج النساء فمن رغب عن سنّتی فلیس منّی۔" په خدائے مِ دِ قسم وی څهٔ ستا سو نه زیات دَ الله نه یَرېږم او تقوی کوم۔ لیکن زما طریقه داده چه روژه هم نیسم او بوږه کوم هم، دَ شپے مونځ هم کوم او ؤده کیږم هم، او دَ ښځو سره نکاح هم کوم۔ دَچا چه زما طریقه خوښه نهٔ وی دَ هغه زما سره هیڅ واسطه نشته۔" حضرت انسؓ وائی چه رسول الله صلی الله علیه وسلّم به فرمائیل: لاتشدّدوا علیٰ انفسکم فیشدد الله علیکم فان قوماً شددوا فشدد الله علیهم فتلک بقایاهُم فی الصّوامع والدیار۔" په خپل ځان سختئ مهٔ کوئ کنی نو الله به در باندِ سختی اُوکړی۔ یو ے ډلے دَ سختئ لارخپله کړې وه نو الله هم بیا سخت را اُونیول۔ گورئ، دغه دَ هغوی نه پاتے خلق په راهب خانو او گرجو کښے موجود دی۔" (ابوداؤد)۔

۴۷؎ یعنی هغوی په دوؤ غلطو کښے اخته شو۔ یوه غلطی دا چه هغوئ په خپل ځان هغه پابندیانے اُولگولے چه الله ورته دَ هغے حکم نهٔ ؤو کړے۔ او دویمه غلطی دا چه کومے پابندیا هغوی په خپل سر کښے دَ الله دَ رضا دَ لټولو دَ پاره په خپل ځان لگولے وے نو دَ هغے حق ئے ادا نهٔ کړو او هغه کارونه ئے اُوکړل چه دَ الله دَ رضا په ځائے پر الټا دَ الله غضب راغے۔

دلته دَ ځان سره پوهه کولو دَ پاره دَ مسیحی رهبانیّت په تاریخ باندِ یو نظر اچول ضروری دی۔

دَ حضرت عیسیٰ علیه السّلام نه روستو دَ دوو سوو کالو پورے عیسائی گرجا دَ رهبانیّت نه ناپلَده وه۔ لیکن دَ رهبانیّت جراثیم په مسیحت کښے دَ اول نه موجود وو او دَ خلقو په خیالونو کښے دا سے خبرې پرتے وے چه رهبانیّت ته پیداکید ے شو۔ یو ازمے بےواده ژوند ته اخلا قی کمال وئیل او دَ کاروباری ژوند په مقابله کښے دَ درویشئ ژوند اعلیٰ او غوره گنړل په اصل کښے دَ رهبانیّت بنیاد دے، او دا دواړه څیزونه په مسیحت کښے دَ اوّل نه موجود وو۔ دَ لوَندئ ژوند ته خاص طور دَ تقدّس درجه ورکړے شوی وه، او دا وجه وه چه کومو خلقو به په کلیسا کښے مذهبی خدمتونه کول دَ هغوی په حقله به خلقو دا خبره بنه نهٔ گنړله چه هغوی دِ واده اُوکړی، بال بچه دار دِ شی او دَ کور په کارونو کښے دِ اخته شی۔ دا څیز چه دریمے صدئ ته رسیدو نو دَ فتنے شکل ئے اختیار کړو او رهبانیّت دَ وبا دَ مرض په شان په مسیحت کښے خور شو۔

تاریخی طور دَ دے غټ غټ درے سببونه وُو :

یو دا چه دَ شرک په ښځوانی ژوند کښے شهوانیت، بدکرداری اودَ دُنیا پرستی ډیر په زور سره خوره شوی وه، دَ دے زور دَ ختمولو دَ پاره عیسائی عالمانو دَ اعتدال لار خپله نهٔ کړه بلکه دَ سختئ لار ئے خپله کړه ۔ هغوئ پاکیزه ژوند له دومره زور ورکړو چه دَ ښځے او دَ سړی تعلق دَ خلقو په نظر کښے یو پلیت څیز ښکاره شو، خواه که هغه تعلق په جائزه نکاح سره وی ۔ هغوی دَ دُنیا پرستئ خلاف دومره په سختئ سره مقابله اُوکړه چه دَ یو دینداره سړی دَ پاره څه قِسم جائیداد ساتل ګناه شوه او دَ اُوچتو اخلاقو معیار دا مقرر شو چه سړے دِ بالکل مُفلس یعنی مِسکین وی او په هر لحاظ سره دِ دَ دُنیا سره تعلق نهٔ لری ۔ دغه شان دَ شرک دَ خوند ور ژوند په جواب کښے هغوی دِ دے انتها ته اُورسیدل چه خوند ونه پریښودل، خپل نفس وژل او خواهشاتِ دَ بیخ نه ختمول اعلیٰ اخلاقی مقام جوړ شو، او په قِسما قِسم طریقو سره بدن ته تکلیف رسَول دَ سړی دَ رُوحانیّت کمال او ثبوت اُوګرزیدو ۔

دویم دا چه مسیحت کله دَ خپلے کامیابئ په دَور کښے په عوامو کښے په خوریدو شو نو کلیسا دَ خپل مذهب دَ خورَولو په شوق کښے هر هغه بدئ له دَ خپل مذهب دَ لمنے لاندے ځائے ورکړو کومه چه په عامو خلقو کښے مقبوله وه ۔ اَولیاء پرستئ دَ ښځوانو معبودانو په ځائے وُدریده ۔ دَ هورس (Horus) او دَ آئسس (Isis) بتانو په ځائے دَ مسیح او دَ مریم دَ بتانو عبادت شروع شو ۔ دَ سیټرنیلیا (Saturnalia) په ځائے دَ کرسمس میله لګیدل شروع شو ۔ دَ ښځوا زمانے تعویذونه بندونه، فالونه، دَ غیبو خبرئ کول، پیریان پاسَول وغیره ټول کارونه عیسائی درویشانو شروع کړل ۔ دغه شان چه کوم سړے به ګنده او لغړ وُو او په یو غار کښے به اُوسیدو نو هغه به دَ خلقو په نزخدائے ته رسیدلے بزرګ انسان وُو او په دے وجه په عیسائی کلیسا کښے دَ ولایت (یعنی دَ بزرګئ) هم دا نقشه مقبوله شوه او دَ دغسے خلقو دَ کراماتو دَ قیصونه دَ عیسایانو کتابونه ډک شول ۔

دریم دا چه دَ عیسایانو سره دَ دین دَ حدونو مقررولو دَ پاره څه تفصیلی شریعت او یو وا صحیح سنت موجود نهٔ وو ۔ دَ موسیٰؑ شریعت هغوی پریښودے وُو، او یواز ے په انجیل کښے مکمل هدایات نهٔ موندے کیدل ۔ په دے وجه مسیحی عالمانو څه خودَ بهرنو فلسفو دَ اثرُ په وجه او څه دَ خپلو میلانانو په وجه، په خپل دین کښے قِسما قِسم بدعتونه ور داخل کړل ۔ رهبانیت هم په دِ دے بدعتونو کښے یو بدعت وُو ۔ دَ مسیحی مذهب عالمانو او اِمامانو دَ رهبانیت فلسفه او طریقه دَ بدهٔ مذهب دَ خیرات مارو ملنګانو نه، دَ هندوانو دَ جادوګرو او دُنیا پریښودرویشانو نه، دَ ښځوانو مصری فقیرانو (Anchorites) نه، دَ ایران دَ نقشبندو هوښیارانو نه او دَ افلاطون او دَ فلاتینوس دَ شاګردانو اشراقی حاکمانو نه واغستله او دَ هغے نه ئے دَ نفس دَ پاکوالی، دَ رُوح دَ ترقئ او الله ته دَ نزدیکت ذریعه جوړه کړه ۔ دا غلطی څه معمولی خلقو نهٔ کوله ۔ دَ دریمے صدئ نه واخله دَ اُوومے عیسوی صدئ پورے (یعنی دَ قرآن دَ نازلیدو دَ زمانے پورے) چه په مشرق او مغرب کښے دَ مسیحت کوم لوئ لوئ عالمان، بزرګان او اماماان ګنړلے کیږی، یعنی سینټ (بزرګ) اَتهاناسیوس، سینټ باسل، سینټ ګریګوری نازیانزین، سینټ کرائی سوستم، سینټ اَیمبروُر، سینټ جیرُوم، سینټ اَګستائن، سینټ بینیډکټ، ګریګوری اعظم، دا ټول راهبان وُو او دَ رهبانیّت زبردست مشران وُو ۔ دَ دوی په کوششونو سره رهبانیّت ته په کلیسا کښے رِیواج ورکړے شو ۔

دَ تاریخ نه معلومیږی چه په عیسایانو کښې دَ رهبانیّت شروع دَ مصر نه اُوشوه۔ دَ دې جوړونکے سینټ انتھنی (St Anthuny) وُو چه په ۲۵۰ سنه کښې پیدا شوے وُو او په ۳۵۰ سنه کښې دَ دُنیا نه رخصت شو۔ دهٔ ته اولنے مسیحی راهب وئیلے کیږی۔ دهٔ دَ فیّوّم په علاقه کښې په یَسْپِیر نومے ځائے کښې (چه اُوس ورته دَیرُالمیمون وائی) اولنئ خانقاه (یعنی دَ درویشانو دَ اُوسیدو ځائے) جوړ کړو۔ دَ دې نه روستو ئے دویمه خانقا دَ بحرِ احمر په غاړه باندې جوړه کړه چه اُوس دَیر مارْ اَنطُونیُوس وائی۔ په عیسایانو کښې دَ رهبانیّت بُنیادی قاعدے دَ هغه دَ کتابونو او دَ هغه دَ هدایاتو نه اغستے شوی دی۔ دَ دې نه روستو دا سلسله بیا په مصر کښې دَ سیلاب پشان خوره شوه او ځائے په ځائے دَ راهبانو سړو او ښځو دَ پاره خانقاگانے جوړے شوے چه په ځینو کښې به په یو وخت درے درے زره راهبان اُوسیدل۔ په ۳۲۵ سنه کښې په مصر کښې یو بل مسیحی بزرګ پاخومیُوس را پیدا شو او دَ راهبانو سړو ښځو دَ پاره ئے لس لوئے لوئے خانقاگانے جوړے کړے۔ دَ دې نه روستو دا سلسله دَ شام او دَ فلسطین او دَ افریقے او دَ یورپ په مختلفو ملکونو کښې خوره شوه۔ کلیسائی نظام ته اوّل اوّل دَ دې رهبانیّت په معامله کښې ډیر سخت مشکلات پیښ شو، ځکه چه هغوی دُنیا پرېښودل او وادهٔ نهٔ کول او غریبی مُفلسی دَ رُوحانی ژوند دَ پاره یو کمال خوګڼړلو، لیکن دَ راهبانو پشان ئے وادهٔ کولو ته او بچو راوړلو ته او جائیداد ساتلو ته ګناه هم نهٔ شوه وئیله۔ آخر دا چه دَ سینټ (یعنی بزرګ) اتهانا سیُوس (چه په ۳۷۳ سنه کښې وفات شوے دے)، او دَ سینټ باسِل (چه په ۳۷۹ سنه کښې وفات شوے دے)، او دَ سینټ آګستائن (چه په ۴۳۰ سنه کښې وفات شوے دے)، او دَ ګریګوری اعظم (چه په ۶۰۴ سنه کښې وفات شوے دے)، غوندې خلقو دَ اثر دَ وجے نه دَ رهبانیت ډیرے قاعدے دَ چرچ په نظام کښې باقاعده داخلے شوے۔

دَ دې راهبانه بدعت یو څو خاصیتونه وُو چه هغه مونږ دلته مختصر طور بیانوو:

(۱) په سختو سختو او نَوو نَوو طریقو سره خپل بدن له تکلیفونه ورکول، په دے معامله کښې به هر راهب دَ بل نه دَ مخکښے کید وکوشش کولو۔ دَ عیسائی اولیاء په کتابونو کښې چه دَ دې خلقو کوم کمالات بیان کړے شوی دی هغه څه دا قِسم دی: دَ اسکندریه بزرګ مَکارِیُوس به هر وخت په خپل بدن باندې اتیا (۸۰) پونډه بوج کیښودلے وُو۔ شپږ میاشتے به هغه په یوه جَبه کښې اُودهٔ کیدو او زهریلی مچانو به دَ هغه لغړ بدن چیچلو۔ دَ هغه مرید بزرګ یُوسیبیُوس دَ خپل پیر نه هم زیاته سختنه برداشت کړه۔ هغه به ۱۵۰ پونډه بوج دَ ځان دَ پاسه ګرځولو او درے کاله په یو وچ شاړ کوهی کښې پروت وُو۔ سینټ سابِیُوس به صرف هغه مَکیان خوړل چه هغه به ټوله میاشت په اُوبو کښې پراته وُو او بد بُوئی به ئے کولو۔ سینټ بَیسارِیُون څلویښت ورځے په ازغنو جاړو کښې پروت وُو او څلویښت کاله ئے په زمکه شانهٔ وه لګولی۔ سینټ پاخومیرس پنځلس کاله، او دَ یو روایت مطابق پنځوس کاله زمکے ته شانهٔ وه لګولے۔ یو وَلی سینټ جان درے کاله په عبادت کښې ولاړ وُو۔ په دې ټوله موده کښې نهٔ هغه ناست وُو او نهٔ ملاست وُو۔ دَ آرام دَ پاره به ئے بس یو ښخت ته ډډه وهله او دَ اتوار په ورځ چه به ورته کوم تبرّکی خوراک راوړے شو په هغې به ئے ګذاره کوله۔ سینټ سیمُون استیا ئلائیټ (۳۹۰ء-۴۴۹ء سنه) چه دَ عیسایانو غټ وَلی ګڼړلے شی، دهٔ به دَ هر ایسټر نه مخکښے پوره څلویښت ورځے ولږه تیروله۔ آخر دا چه هغه دَ شمالی شام دَ سیمان قلا حوا ته شپیته فوټه اُوچته یوه ستن (په مزدورانو) جوړه کړه چه دَ هغې پاسنے سر صرف درے فوټه پلن وُو او دَ پاسه پرجنګله جوړ کړے شوی وه۔ دَ دغه ستن دَ پاسه هغه پوره دیرش کاله تیر کړل۔ غارمه۔ باران، یخنی، ګرمی ټول هر څه

به پرتيريدل او هغه به د سټنې نه نه راکوزيدو۔ د هغه مُريدانو به په اندرپايه هغه ته خوراک خيژولو او د هغه گندگی به ئې صفا کوله۔ بيا هغه په يوه رسئ باندې خپل ځان د دغه سټنې سره اوتړو او ان تر دې چه هغه رسئ د هغه د غوښې سره جوخته اولګيدله، غوښه ئې سخا شوه او چينجي پکښې پيدا شو۔ کله چه به يو چينجي د هغه د زخم نه پريوتو نو هغه به ئې واپس په زخم کښې واچولو او وئيل به ئې "خوره هغه څه چه خدائ تا له درکړې دی"۔ مسيحي خلق به د لرې لرې نه د هغه د زيارت د پاره راتلل۔ کله چه هغه مړ شو نو د مسيحي عوامو دا فيصله وه چه هغه د عيسائ ولی بهترين مثال وو۔

د دې دور د عيسائ اوليا وو چه کومې خوبيانې بيان کړې شوې دی هغه ټول هم دغسې مثالونه دی۔ يو ولی وو چه د ديرشو کالو پورې هغه خاموش وو او هيچرې چا په خبرو کولو ليدلے نه وو۔ چا خپل ځان د يو خټې سره تړلے وو۔ څوک به په ځنګلو کښې ګرزيدو او د ګيا په خوراک به ئې ګذاره کوله۔ چا به هر وخت غټې پيټې په ځان تړلې وو۔ چا به په زنځيرونو خپل اندامونه تړلی وو۔ څوک به د ځناورو په غارونو، يا په شاړو کوپانو يا په زړو قبرونو کښې اوسيدل۔ او ځينی بزرګان به هر وخت لغړ اوسيدل او خپل ستر به ئې په خپلو اوږدو ويښتو باندې پټولو او په زمکه به په خوږيدو خوږيدو ګرزيدل۔ د داسې اولياو د کراماتو شهرت هر طرف ته خور وو او چه کله به مړه شو نو هډوکی به ئې په خانقاهونو کښې محفوظ ساتلے کيدل۔ د سينا د غر په لمن کښې چه د سينټ کيتهرائن کومه خانقاده ده په هغې کښې د هډوکو يوه داسې لائبريری ليدلی ده چه په هغې کښې په يو ځائ کښې د اوليا وو کوپړئ په ترتيب سره کيښودلے شوی وې، په بل ځائ کښې د خپو هډوکی او په بل ځائ کښې د لاسونو هډوکی۔ او د يو ولی خو ټوله ډانچه د شيشې په يوه الماري کښې کيښودلے شوی وه۔

(۲) د هغوی دويم خصوصيت دا وو چه هغوی به هر وخت ګنده وو او د صفائئ نه به ئې سخت پرهيز کولو۔ لامبل يا بدن له اوبه ور وړل د هغوی په نزد د خداپرستئ نه خلاف وو۔ د بدن صفائ هغوی د روح ګندګی ګڼله۔ سينټ اتهاناسيوس ډير په عقيدت سره د سينټ اينتهنی دا خوبی بيانوی چه هغه د مرګه پورې خپلې خپې نه وې اينځلې۔ سينټ ابراهام چه کله په مسيحيت کښې داخل شو، نو پوره پنځوس کاله ئې نه مخ اينځلے وو او نه خپې۔ يو مشهور لوندوے راهبې سلويا ټول عمر د خپلو ګوتو نه سيوا د بدن بل ځائ له اوبه نه وې وروړلے۔ د يو عيسائ خانقاه د شپږ نيم شلو راهبو ښځو په تعريف کښې ليکی چه هغوی هډو خپلې خپې اينځلې نه وې، او د غسل نوم خو چه به ئې واوريدو نو رپيدل به پرې راغلل۔

(۳) د دې رهبانيت سره کورنے ژوند بالکل حرام شو او د نکاح ټولے رشتې په بے دردئ سره ختمې شوې۔ د څلورمې او د پنځمې صدئ ټول مذهبی کتابونه د دې خيال نه ډک دی چه يوازې ژوند تيرول د ټولو نه اوچت اخلاق دی، او د پاکئ معنیٰ دا ده چه سړے دِ خپل نفس بالکل مړ کړی او په هغې کښې دِ د جسمانی لذت هيڅ خواهش پورې نۀ دی۔ د دوئ په نز خپل خواهش مړ کول په دې وجه ضروری وو چه د هغې نه حيوانيت ته طاقت رسی۔ د هغوی په نز خوند اغستل ګناه وه، آن تر دې پورې چه خوشحالی هم د هغوی په نظر کښې د خدائ د هيرولو ذريعه وه۔ سينټ باسل خندا او موسکا دواړه منع کوی۔ د دې خيالاتو په وجه د ښځې او د سړی په منځ کښې د واده تعلق د هغوئ په نز بالکل پليت کار وو۔ د راهب د پاره

داضروری وه چه واده کول خوغټه خبره وه ، دَ ښځې شکل ته به هم نهٔ کوری ، اوکه واده ئے کړے وُونو ښځه به پرېښې دی ۔ دَ نارینـو پښان دَ زنانـو په زړه کښے هم دا خبره کینولے شوی وُ چه هغوی که چرې په آسمانی بادشاهت کښے داخلیدل غواړی نو همیشه دِ واده نهٔ کوی ، او که واده شوی وی نو دَ خاوند نه دِ جُدا شی ۔ سینټ جیرُوم غوندِ غټ مسیحی عالم وائی چه کومه ښځه دَ مسیح دَ خاطره راهبه شوه او تول عُمر لونړه پاتے شوه نو هغه دَ مسیح ناوے ده او دَ هغې مور دَ خدائے ، یعنی دَ مسیح خواښے (Mother in Law of God) ده ۔ په بل ځائے کښے سینټ جیرُوم وائی چه " دَ پاکئ په تبرِ دَ کورنی تعلقاتو لرګی پر یکول دَ سـالک اولنے کار دے"۔ دَ دے تعلقاتو په وجه به مذهبی جذبه راپیدا شوه او په مسیحی سړی یا په مسیحی ښځه باندِ به دَ هغې اولنے اثر دَا اُوشو چه دَ هغوی بنا ئیسته کورنے ژوند به دَ همیشه دَ پاره ختم شو ۔ او چونکه په مسیحیت کښے طلاق بند وُو ، نو په دے وجه به دَ نکاح باوُجود ښځه خاوند دَ یو بل نه جُدا اُوُو ۔ سینټ نائیلَس (St Nilus) دَ دوؤ بچو پلار وُو ۔ هغه چه کله په رهبانیت کښے داخل شو نو دَ هغه ښځې ژړل او هغه تِرِ جُدا شو ۔ سینټ اَموّن (St Ammon) دَ وادهٔ په اوله شپه خپلے ناوے ته دَ یو ځائے کیدو دَ پلیتئ وعظ اُوکړو او دواړو په اتفاق سره فیصله اُوکړه چه په ژوند به دَ یو بل نه جُدا وُسُو ۔ سینټ ابراهام دَ وادهٔ په اوله شپه خپله ښځه پریښوده او تختیدو ۔ هم دا کار سینټ ایلیکیس اُوکړو ۔ دَ دا سے قِسم واقعاتو نه دَ عیسائی اَولیاؤ تذکرے ډکے پرتے دی ۔

دَ کلیسا نظام دَ دریو سوؤ کالو پورے په خپل حد کښے دَ ننه دَ دے انتها پسندانه خیالاتو په څه نه څه طریقه مخ نیوے کولو ۔ په هغه زمانه کښے دَ پادری دَ پاره بے واده کیدل لازمی نهٔ وُو ۔ که چرے هغه دَ پادری په منصب باندِ دَ مقرر کیدو نه مخکښے واده کړے وی خو خیر دے دَ ښځے سره یو ځائے اُوسیدے شی ، البته دَ پادری کیدو نه روستو وادهٔ کول دَ هغه دَ پاره منع وُو ۔ علاوه دے یو دا سے سړے به پادری نهٔ شو مقرر ید دے چه هغه به دَ یوے کونډے یا طلاقے شوی ښځے سره وادهٔ کړے وُو یا به ئے دوه ښځے وے او یا به ئے کور کښے وینځه وه ۔ رُورُو په څلورمه صدئ کښے دا خیال بنه پوخ شو چه کوم سړے په کلیسا کښے مذهبی خدمت کوی دَ هغه دَ پاره وادهٔ کول ډیره بده خبره ده ۔ په ۳۶۲ سنه کښے دَ ګنګرا کونسل (Council of Gengra) آخری مجلس وُو چه په هغې کښے دا قِسم خیالات دَ مذهب نه خلاف اُوګرزولے شول ۔ لیکن دَ دے نه لږه موده روستو دَ ۳۸۶ سنه رومن سیناډ (Synod) تولو پادریانو له مشوره ورکړه چه هغوی دِ دَ کورنی تعلقاتو نه ډډه اُوکړی ، او بل کال له پوپ سائریکیَس (Siricius) حکم اُوکړو چه کوم پادری واده اُوکړی ، یا دَ وادهٔ نه روستو خپلے ښځے سره تعلق اُولری نو هغه دِ دَ منصب نه لرے کړے شی ۔ سینټ جیرُوم او سینټ ایمبروز او سینټ آګستائن غوندِ لویو لویو عالمانو ډیر په زُور سره دَ دے فیصلے حمایت اُوکړو او دَ لږے مقابلے کولو نه روستو په مغربی کلیسا کښے دا فیصله جاری شوه ۔ په دِے دَور کښے ډیرے دا سے غوندے اُوشوے چه په هغې کښے په دے شکایتونو غونډ اُوشو چه کوم خلق دَ اول نه دَ کور والا وُو هغوی دَ پادری کیدو نه روستو هم دَ خپلو بیبیانو سره " ناجائزه " تعلقات لری ۔ آخر دا چه دَ هغوی دَ اصلاح دَ پاره دا قاعدے جوړے شوے چه هغوی دِ په کرلاؤ ځائے کښے اوده کیږی ، یوازے دِ دَ خپلو بیبیانو سره نهٔ ملاویږی ، او دَ هغوی دَ ملاقات په وخت کښے دِ کم نه کم دوه سړی موجود وی ۔ سینټ ګریګوری دَ یو پادری په تعریف کښے لیکی چه څلویښت

کاله هغه دَ خپلے ښځے نه جُدا اُوُو۔ آن تردے پورے چه دَ مرګ په وخت کښے ورله کله ښځه نزدے راغله نو هغه ورته اُووئیل چه ښځے، لرے شه!

(۴) دَ ټولونه دردناک حالت په دے رهبانیت کښے دا دے چه دِ دَ مور او پلار، دَ خور او رُور او دَ اولاد سره دَ سړی رشته ختم کړه۔ دَ مسیحی اولیاؤ په نظر کښے دَ خُوی دَ پاره دَ مور او پلار محبت، دَ رُور دَ پاره دَ رُور او خور محبت، او دَ پلار دَ پاره دَ اولاد محبت هم یوه ګناه وه۔ دَ هغوی په نیز دَ روحانی ترقیٔ دَ پاره دا ضروری وه چه سړے دِ دا ټول تعلقات ختم کړی۔ دَ مسیحی اولیاؤ په تذکرو کښے دَ دے دا سے عجیبه واقعے ملاویږی چه انسان ئے اَوریدو ته ځان نهٔ شی ټینګولے۔ یو راهب ایواګریس (Evagrius) ډیره موده په صحرا کښے سختے تیرَولے یوه ورځ ناساپه هغه ته دَ خپلے مور او پلار دَ طرفنه خطونه اُورسیدل چه دَ کلونو راسے دَ هغه په جُدائیٔ کښے ناقلاره وُو۔ دَ هغه سره فکر شو چه هسے نهٔ دَ دے خطونو په کتلو سره دَ هغه په زړه کښے دَ انسانی محبت جذبے راښیدارے شی نو هغه خطونه ئے کولاؤ نهٔ کړل او فوراً ئے وُورته غورزار کړل۔ دَ سینټ تهیوډورَس مُور او خور دَ ډیر و پادریانو نه سفارشی خطونه رااغستل او هغه خانقاه ته اُورسیدلے چه په کوم کښے هغه اُوسیدو او دَ هغه دَ یو نظر لیدو دَ پاره ئے هغه ته درخواست اُوکړو خو هغه ورسره دَ ملاقات نه اِنکار اُوکړو۔ دَ سینټ مارکس (St. Marcus) مُور دَ ملاقات دَ پاره دَ هغه خانقاه ته لاړه او دَ خانقاه دَ شیخ (Abbot) خوشامندګری ئے اُوکړه او هغه ئے راضی کړو چه خُویٔ ته دَ مُور سره دَ ملاقات کولو حکم اُوکړی لیکن خُوی په هیڅ طریقه دَ مُور سره مِلاویدل نهٔ غوښتل۔ آخر دا چه هغه دَ شیخ حکم په دا سے طریقه اُومنو چه شکل ئے بدل کړو او سترګے ئے بندے کړے او دَ مُور مخے له لاړو۔ نهٔ مُور خپل خُوئے اُوپیژندو او نهٔ خُوی دَ مُور شکل اُولیدو۔ یو بل وَلی سینټ پوئمن (St. Poemen) او دَ هغه شپږ رونړه دَ مصر په یوه صحرائی خانقاه کښے اُوسیدل۔ ډیر کلونه پس دَ هغوی بوډۍ مُور ته دَ هغوی پته اُولږیدله او دَ هغوی سره دَ ملاقات دَ پاره ئے هلته ځان اُورسَوُو۔ چه ځامنو خپله مور اُولیدله نو په منډه منډه خپلے کمرے ته لاړل او دروازه ئے بنده کړه۔ مور ئے بهر کینا سته او په ژړا شوه او وے وئیل چه ځه په دے بوډا والی کښے دَ دومره لرے نه صرف ستاسو دَ لیدو دَ پاره راغلے یم، ستاسو به څه نقصان اُوشی که څه ستاسو شکلونه اُووینم، وَلے څه ستاسو مور نهٔ یم؟ لیکن هغه بزرګانو دروازه بیرته نهٔ کړه او مور ته ئے اُووئیل چه موږ به ستا سره دَ خدائے په دربار کښے ملاویږو۔ دَ دے نه هم زیاته دردناکه قیصه دَ سینټ سیمیُون اِسټائلائټس (St. Simeon Stylites) ده چه مور او پلار ئے پریښودل او اوویشت کاله غیب وُو۔ پلار دَ هغه په غم کښے مړ شو۔ مُور ژوندئ وه۔ دَ خُویٔ دَ بزرګئ خبرے چه دَ لرے لرے پورے خورے شوے نو هغے ته دَ هغه ځائے پته اُولږیده۔ هغه غریبه دَ هغه دَ ملاقات دَ پاره دَ هغه خانقاه ته اُورسیدله۔ خو هلته ښځے ته دَ ننوتو اجازت نهٔ وُو۔ هغے ډیر منت اُوکړو چه یا دِ خُوئے ما دَ ننه اُوغواړی یا دِ هغه بهر را اُوځی او خپل شکل دِ ما ته اُوښائی۔ لیکن هغه "ولی الله" صفا انکار اُوکړو۔ درے شپے وُرځے هغه دَ خانقاه په دروازه کښے پرته وه او آخر دا چه هلته په ملاسته مړه شوه۔ پس دَ هغے ولی صاحب راأووتو۔ دَ مُور دَ پاسه ئے اُوژړل او دَ هغے دَ پاره ئے دَ بخښنے دُعا اُوغوښتله۔

دغه شان بے دردی دَ دے اولیاؤ دَ خویند وا او دَ اولاد سره کړی ده۔ یو سړے دَ میوتهیس (Muthis) قیصه لیکی چه هغه خوشحاله سړے وُو۔ یو دم پرِ مذهبی جذبه راغله او دَ اتو کالو یو ځوئے ئے دَ ځان سره خانقاه ته

بوتلو۔ هلته دَ رُوحانی ترقئ دَپاره داخبره ضروری وه چه دَ ځوئ مینه دَ زړه نه اُوباسی ۔ نو اول ترځوئ ئے جُدا کړے شو۔ بیا دَ ویړے موډے پورے به دَ هغه په مخکښے دَ هغه په ماشوم بچی قِسما قِسم سختیانے کیدلے او هغه به ورته کتل ۔ بیا دَ خانقاه شیخ هغه ته حکم اُوکړو چه دَ ے په خپل لاس دریاب ته اُوغورزَوه ۔ هرکله چه هغه دَ ے حکم منلو ته هم تیار شو نو په دغه وخت کښے ترِ راهبانو بچے بچ کړو۔ دَ هغے نه روستو دا اُومنلے شوه چه هغه واقعی دَ ولایت مرتبے ته رسیدلے دے ۔

په دَ ے معاملاتو کښے دَ مسیحی رهبانیت دا خیال وُو چه کوم سړے دَ خدائے محبت غواړی نو هغه له پکار دی چه دَ انسانی محبت هغه ټول زنځیرونه اوشلوی کوم چه په دُنیا کښے هغه دَ مور او پلار، دَ خویند ورُونړو او دَ بال بچ سره تړی۔ سینټ جیرُوم وائی چه "اگرچه ستا وراره ستا په غاړه کښے لاسونه واچوی او په تا پورے اُونخلی، اگرچه ستا مور دَ خپلو پیو په واسطه تا منع کړی، اگرچه ستا پلار ستا دَ منع کولو دَ پاره ستا مخے ته سملی، بیا هم ته هرڅه پریږده او دَ پلار په بدن خپے کیږده خو چه یوه اُوښکه هِ دَ سترګو نه لاړه نه شی او دَ صلیب جنډے ته منډه کړه ۔ په دَ ے معامله کښے بے رحمی تقویٰ ده "۔ سینټ گریگوری لیکی چه "یو ځوان راهب دَ مور او پلار مینه دَ زړه نه اُونه شکلے شوه او یوه شپه په پټه را اُوتښتید و او دَ پلار سره مِلا وُشو۔ خدائے هغه له دَ دَ ے قصور دا سزا ورکړه چه خانقاه ته دَ واپس رسید و سره هغه مړ شو۔ هغه په زمکه کښے خخ کړے شو نو زمکے قبول نه کړو۔ بار بار به په قبر کښے کیښودے کید و او زمکے به راغورزَوُو۔ آخر دا چه سینټ بینیڈِ کټ دَ هغه په سینه باندِ دَ تبرّک لاس کیښود و نو پس دَ هغے قبر قبول کړو"۔ دَ یو ے راهبے بیبئے په باره کښے لیکی چه هغه دَ مرګ نه روستو دَ ے ورځے په عذاب کښے په دَ ے وجه مبتلا وه چه هغے دَ خپلے مور محبت دَ زړه نه نه وُو ایستلے ۔ دَ یو وَلی په تعریف کښے لیکی چه هغه دَ خپلو رشته دارانو نه سِوا دَ نورو هیچا سره بے دردی نه ده کړی ۔

(۵) دَ خپلو نږدے رشته دارانو سره دَ بے رحمئ او دَ سنګدلئ کوم کار چه دِ ے خلقو کولو دَ هغے په وجه به دَ هغوئ انسانی جذبات مړه کیدل ۔ او هم دا وجه وه چه دَ کومو خلقو سره به دَ هغوی مذهبی اختلافات راغلل نو دَ هغوی په مقابله کښے به ئے بے انتها ظلم کولو۔ مسیحیت چه څلورمے صدئ ته رسیدو نو ۸۰ ـ ۹۰ فرقے پکښے پیدا شوی وُے۔ سینټ آگسټائن په خپله زمانه کښے ۸۸ فرقے شمار کړی دی ۔ دَ ے فرقو به دَ یو بل نه سخت نفرت کولو ـ دا نفرت به راهبانو را پیدا کولو او دَ دَ ے په سر به جنګونه هم راهبانو کول ـ اسکندریه دَ دَ ے فرقه وارانه جنګونو یو لوئ میدان وُو۔ هلته اول دَ ایرین (Arian) فرقے بشپ دَ اتهاناسیوس په ډله حمله اُوکړه ، دَ هغه دَ خانقا کانونه ئے لونډے راهبے بیبئے په زورو را اُوویستلے ، هغوئ ئے لغړے کړلے او په ازغنو کو تکونو ئے اُووهلے په بدن ئے ورله داغونه اُولګول چه دَ خپلے عقیدے نه توبه اُوباسی۔ بیا چه کله په مصر کښے کیتھولک ډلے ته غلبه حاصله شوه نو هغوی دَ ایرین فرقے سره دا هرڅه اُوکړل ، آن ترد ے پورے چه غالب خیال دا د ے چه په خپله ایریس (Arius) هم په زهر ورکولو مړکړے شو۔ په دَ ے سکندریه کښے یو ځل دَ سینټ سائرل (St. Cyril) راهبانو مُریدانو لویه هنګامه جوړه کړه ، آن تر دَ ے پورے چه دَ مخالفے ډلے یوه راهبه بیبئے ئے خپل کلیسا ته را وستله ، هغه ئے اُووژله ، بوټی بوټی ئے کړه او بیا ئے وُور ته غورزانه کړه۔ دَ روم حال هم دَ دَ ے نه څه مختلف نه وُو۔ په سنه ۳۶۶ع کښے دَ پوپ لیبریس (Liberius) په وفات باندِ دَ وَو ډلو دَ پاپائیت دَ پاره خپل خپل امیدواران وُدرَول ـ

دَ دواړو په منځ کښے سخت خونړے جنګ اُوشو۔ تر دے چه په یوه وُرځ کښے دَ یو چرچ نه دریے کم اووه شلے مړی را اُوو یستلے شو۔[۱۳۷]

(۶) دَ لوَنډئ اودرویشئ دَدے ژوند سره دَ دولت په جمع کولو کښے هم څه کمے نهٔ دے پاتے شوے۔ دَ پنځمے صدئ په شروع کښے دا حالت وُوچه دَ رُوم بشپ به دَ بادشاهانو پشان په خپل محل کښے اُوسیدوا ودَ هغه سورلی چه به کله دَ بنار نه را اُووتله نو شان وشوکت به ئے دَ قیصر دَ سورلئ نه کم نهٔ وُو۔ سینټ جیرُوم (دَ څلورمے صدئ په آخر کښے) شکایت کوی چه دَ ډیرو بشپانو دعوتونه په پشان وشوکت کښے دَ ګورنرانو دعوتونه شرموی۔ په اُوومه صدئ (یعنی دَ قرآن دَ نازلیدو په زمانه) کښے دَ دُنیا دولت خانقاهونواو کلیسا ګانو ته دَ اُوبودَ سیلاب پشان را بهیدلو۔ دا خبره چه دَ خلقو په ذهن کښے دا خبره کینولے شوی وه چه دَ چانه لویه ګناه اُوشی نو هغه هله بخښلے کیږی چه دَ یو ولی دربارته نذرانه ویسی، یا خانقاه یا چرچ له قربانی ورکړی۔ دَدے نه روستو به هم هغه دُنیا راهبانوله را تلله دَ کومے نه چه هغوی تیښته کړی وه۔ خاص طور چه کوم څیز دَدے دَ تنزل سبب اُوګرزیدو هغه دا اُوچه کله دَ راهبانو دَ کمالاتو دَوجے نه په عوامو کښے دَ هغوئ سره بے ګچه عقیدت پیدا شو نو ډیرو دُنیا پرستو خلقو دَ درویشئ جامه واغوستله او دَ راهبانو په ډله کښے داخل شول او هغه دُنیائے اُوګټله چه غټو دُنیا دارو خلقو چرے نهٔ وه ګټلی۔

(۷) دَ پاکئ په معامله کښے هم رهبانیّت دَ فطرت سره جنګ کړے دے او ډیر خراب شکست ئے خوړلے دے۔ په خانقاهونو کښے به دَ نفس دَ مړکولو دَ پاره څه کارونه داسے هم کیدل چه په هغے کښے به راهب سړے او راهبه ښځه په یو ځائے کښے اُوسیدل او دَ زیات امتحان دَ پاره به ئے اکثر په یوه بستره کښے شپه تیرَوله۔ مشهور راهب سینټ ایواګریَس (St. Evagrius) ډیر په تعریف سره دَ فلسطین دَ راهبانو دَ ضبطِ نفس ذکر کوی چه "هغوی په خپلو جذباتو باندِ دومره قابو موندلی وه چه دَ ښځوسره به ئے یو ځائے غسل کولو، هغوئ به ئے لیدلے، هغوئ له به ئے ګوتے وروړلے، اَنْ تر دے پورے چه غیږ په غیږ به شور ورسره خو بیا به هم پرِ فطرت غلبه نهٔ موندله"۔ غسل اګرچه په رهبانیت کښے سخت بد ګڼړلے شو لیکن دَ نفس دَ مړکولو پکار کښے به دَ غسے غسلونه هم کیدل۔ آخر دا چه دَ دے فلسطین په حقله دَ نیسا (Nyssa) سینټ ګریګوری (متوفی ۳۹۶ئ) لیکی چه دَ هغے نه دَ بدکارئ اډه جوړه شوی ده۔ انسانی فطرت خامخا دَ هغه خلقونه بدله اخلی څوک چه دَ هغه سره جنګ کوی۔ رهبانیت دَ فطرت سره اُوجنګیدواو آخر دَ بداخلاقئ هغه کنده ته پریوتو چه هغه دَ اتمے صدئ نه دَ یوولسمے صدئ عیسوی پورے دَ هغوی دَ مذهبی تاریخ دَ ټولونه زیات بدنما داغ دے۔ دَ لسمے عیسوی یو اطالوی بشپ لیکی چه "که چرے په چرچ کښے دَ مذهبی خادمانو خلاف دَ زنا سزا ګانے عملاً جاری کړے شی نو دَ ورو هلکانونه سِوا به نور هیڅوک دَ سزانه بچ پاتے نشی، او که دا قاعده جاری شی چه حرامیان بچی دِ هم دَ مذهبی خدمت نه جُدا کړے شی نو شاید چه دَ چرچ په خادمانو کښے به یو هلک پاتے نهٔ شی"۔ دَ منځنی پیړئ دَ لیکوالانو کتابونه دَ دے شکایتونو نه ډک دی چه دَ راهبانو ښځو خانقاګانے دَ بداخلاقئ چکلے دی، دَ خانقاګانو دَ ننه دَ ورو ماشومانو قتل عام کیږی، په پادریانو او دَ چرچ په مذهبی خادمانو کښے دَ محرماتو سره (هغه ښځے چه نکاح ورسره نهٔ کیږی) ناجائزه تعلقات عام دی او په خانقاهونو کښے دَ فطرت نه خلاف جُرمونه خوارهٔ شوی دی، او په کلیسا ګانو کښے

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اتَّقُوا اللّٰهَ وَاٰمِنُوْا بِرَسُوْلِهٖ يُؤْتِكُمْ كِفْلَيْنِ مِنْ رَّحْمَتِهٖ وَيَجْعَلْ لَّكُمْ نُوْرًا تَمْشُوْنَ بِهٖ

اے هغه خلقو چه ایمان مو راوړے دے، د الله نه اُویرېږئ او د هغه په رسول (محمّد صلی الله علیه وسلم) باندې ایمان[55] راوړئ، الله به تاسوله د خپل رحمت دوه برخې درکړي او هغه نُور به درکړي چه د هغې په رڼا کښې به تاسو منزل[56] کوئ،

---

د ګناهونو د اقرار کولو (Confession) رسم د پد کارئ ذریعه شوی ده -

د دے تفصیلا تو نه صحیح اندازه لګید ے شي چه قرآن مجید دلته د رهبانیت د شروع کولو او بیا د هغې د حق نه ادا کولو کوم ذکر اوکړو نو چه په دے سره هغه د مسیحت کومے خرابیانه اشاره کوی۔

[55] د دے آیت په تفسیر کښې د مفسّرینو په منځ کښې اختلاف دے۔ یوه ډله وائی چه دلته د يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا خطاب هغه خلقو ته دے چه هغوی په حضرت عیسیٰ باندې ایمان راوړے وُو۔ هغوی ته فرمائیلے کیږی چه اوس په محمد صلی الله علیه وسلم باندې ایمان راوړئ تاسو ته به په دے دوچند اجر ملاؤ شی، یو اجر به حضرت عیسیٰ باندې د ایمان په وجه او بل اجر به محمد باندې د ایمان په وجه۔ دویمه ډله وائی چه دا خطاب په محمد صلی الله علیه وسلّم باندې ایمان راوړونکوته دے۔ هغوی ته حکم کیږی چه تش په ژبه د هغه د نبوّت اقرار مه کوئ، بلکه د زړه په صدق سره ایمان راوړئ او د ایمان راوړ لو حق ادا کړی۔ په دے به تاسو ته دوچند اجر ملاؤ شی۔ یو اجر به د کفر نه اسلام ته د راتلو وی او دویم اجر به په اسلام کښې د اخلاص پیدا کولو او په اسلام باندې د مضبوط ودرید لو وی۔ د اولنی تفسیر تائید د سورۃ قصص آیتونه ۵۲ تا ۵۴ کوی او تائید ئے د حضرت ابوموسیٰ اشعری دا روایت هم کوی چه نبی صلی الله علیه وسلّم فرمائی، درے سړی دی چه د هغوی د پاره دوچند اجر دے۔ په هغوی کښې یو دے رجل من اهل الکتاب اٰمن بنبیّه وَاٰمن بمحمّدٍ، "په اهل کتابو کښې هغه سړے چه په خپل نبی ئے ایمان دُوو او بیا ئے په محمد (صلی الله علیه وسلّم) باندې ایمان راوړو"۔ (بخاری او مسلم)۔

د دویم تفسیر تائید د سورۃ سبا آیت ۳۷ کوی چه په هغې کښې فرمائیلے شوی دی چه د مومنانو صالحانو د پاره دوچند اجر دے۔ د دلیل په اعتبار سره د دواړو تفسیرونو وزن یو شان دے۔ لیکن چه په وړاندېنی مضمون غور اُوکړے شی نو دویم تفسیر دلته زیات مناسبت لری۔ بلکه په حقیقت کښې د دے سورۃ ټول مضمون د اوّل نه د آخره پورے د دے تفسیر تائید کوی۔ د شروع نه د دے سورۃ مخاطب هغه خلق دی کوم چه د رسول الله صلی الله علیه وسلّم د رسالت اقرار کړے دے او په اسلام کښې داخل شوی دی، او په ټول سورۃ کښې هغوئ ته دا دعوت ورکړے شوے دے چه تش د خلے مومنان مه جوړیږئ بلکه په اخلاص سره او د زړه په صدق سره ایمان راوړئ۔

[56] یعنی په دُنیا کښې به د علم او د پوهے هغه نُور درکړی چه د هغې په رڼا کښې به تاسو په هر قدم صفا صفا وینئ چه د ژوند په مختلفو معاملاتو کښې د جاهلیت د کږو لارو ترمینځه د اسلام نیغه لاره کومه یوه ده۔ او په آخرت کښې به هغه نور درکړی چه د هغې ذکر په دولسم آیت کښې تیر شوے دے۔

وَيَغْفِرْ لَكُمْ ۗ وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿۲۸﴾ لِّئَلَّا يَعْلَمَ اَهْلُ الْكِتٰبِ اَلَّا يَقْدِرُوْنَ عَلٰى شَيْءٍ مِّنْ فَضْلِ اللّٰهِ وَاَنَّ الْفَضْلَ بِيَدِ اللّٰهِ يُؤْتِيْهِ مَنْ يَّشَآءُ ۗ وَاللّٰهُ ذُو الْفَضْلِ الْعَظِيْمِ ﴿۲۹﴾

---

او ستاسو ګناهونه به معاف کړي، الله ډیر معاف کوونکے او مهربانه دے۔ (تاسوله دا لار اختیارول پکار دي) چه اهل کتاب وته معلومه شي چه دَ الله په فضل باندې دَ هغوی څه اجاره نهٔ ده، دَ الله فضل دَ هغه په خپل لاس کښې دے، چه چاله ئے ورکول غواړي هغه له ئے ورکوي، او هغه ډیر فضل کوونکے دے۔ ع

---

۵۷ یعنی ستاسو دَ مخلصانه کوششونو باوجود چه دَ بشري کمزورۍ په وجه ستاسو نه کوم ګناهونه شوي دي هغه به درته معاف کړي، او هغه ګناهونه به هم درته معاف کړي کوم چه دَ ایمان راوړلو نه مخکښې دَ جاهلیت په حالت کښې ستاسو نه شوي وُو۔

---

# اَلمُجَادَلَة

**نوم** دَ دے سورۃ نوم المجادَلہ هم دے او المجادِلہ هم ـ دا نوم دَ اولنی آیت دلفظ تُجَادِ لُکَ نه اغستے شوے دے ـ چونکه دَ سورۃ شروع دَ هغه ښځې دَ ذکر نه شویده چه هغې دَخپل خاوند دَ ظهار مسئله رسول الله صلی الله علیه وسلّم ته پیش کړې وه او بار بار ئے تر دَ دے خبرې ټپوس کړے وُو چه هغې ته څه داسے شکل اُوښائی چه په هغې سره دَ هغې او دَ هغې دَ بال بچ ژوند دَ تباه کیدو نه بچ شی، او الله تعالیٰ دَ هغې دغه بار بار ویناته لفظ مجادله ویلے دے، او په دے وجه هم دا دَ دے سورۃ نوم کیښودے شو ـ که مجادله اُولوستلے شی نو دَ دے معنیٰ به وی " بحث او تکرار " او که مجادله اولوستلے شی نو معنیٰ به وی " بحث وتکرارکونکی ښځه "

**دَ نازلیدو زمانه** په هیڅ یو روایت کښے دَ دے خبرې څرګندونه نهٔ ده شوې چه دَ مجادلے دا واقعه کله شوې وه ـ لیکن یوه علامه دَ دے سورۃ په مضمون کښے شته چه دَ هغې په وجه داخبره سرے په کلکه ویلے شی چه دَ دے زمانه دَ غزوه احزاب ( شوال ۵ھ ) نه روستهٔ ده ـ په سورۃ احزاب کښے الله تعالیٰ داخبره اُوکړه چه تش په خـله بللے خوئے حقیقی خوئے نهٔ وی او بیائے صرف دا اُوفرمائیل چه : وَمَا جَعَلَ اَزْوَاجَکُمُ الّٰئِیْ تُظٰهِرُوْنَ مِنْهُنَّ اُمَّهٰتِکُمْ ـ " او الله ستاسو هغه ښځې چه تاسو ورسره ظِهار کوئ ستاسو میندے کړی نهٔ دی " لیکن په دے کښے دا نهٔ وُو ویلے شوی چه ظهار کول څه ګناه یا جُرم دے، او نهٔ دا ویلے شوی وُو چه دَ دے کار شرعی حکم څه دے ـ دَ دے برخلاف په دے سورۃ کښے دَ ظِهار ټول قانون بیان کړے شوے دے ـ دَ دے نه معلومیږی چه دا مفصّل حکمونه دَ هغه مجمل هدایاتو نه روستو نازل شوی دی ـ

**موضوع او مضمون** په دے سورۃ کښے مسلمانانو ته دَ هغه مختلفو مسئلو په حقله هدایات ورکړے شوی دی کوم چه په هغه وخت کښے مخے ته وُو ـ

دَ سورۃ دَ شروع نه دَ شپږم آیته پورے دَ ظِهار شرعی حکمونه بیان کړے شوی دی، او دَ دے سره مسلمانانو ته بنه په سختئ خبردارے ورکړے شوے دے چه دَ اِسلام نه روستو هم دَ جاهلیت په طریقو باندِ ټینګ اوسیدل او دَ الله مقرر کړے شوی حدونه ماتول، یا دَ هغې دَ پابندئ نه اِنکار کول، یا دَ هغې په مقابله کښے پخپله مرضئ سره څه نور ے قاعدے او قانون جوړول، بالکل دَ ایمان نه برخلاف کار دے، چه سزائے په دُنیا کښے ذلّت او رسوائی ده او په آخرت کښے به هم دَ هغې سخت ټپوس کیږی ـ

په آیتونو ۷ تا ۱۰ کښے دَ منافقانو په دے کار باندِ ګرفت شوے دے چه هغوی به په خپلو کښے پټے پټے دَ غوږ خبرې کولے او دَ شرارتونو قِسما قِسم منصوبے به ئے جوړولے،

او دَ هغوی په زړونوکښې چه کوم بُغضُ پټ پروت وُو دَ هغې په وجه به ئې رسول الله صلی الله علیه وسلّم ته دَ یهودیانو پشان په دا سې طریقه سلامونه کول چه دَ هغې نه به دَ دُعا په ځائې دَ بد دُعائیځ بوئ ختلو۔ په دے سلسله کښې مسلمانانوله تسلّی ورکړې شوې ده چه دَ منافقانودا پټے خبرې ستاسوهیڅ نشی خرابولے، تاسوخالص دَالله په بروسه بانډِ خپل کارکوئ ۔ اودَ دے سره هغوی ته دا اخلاقی تعلیم هم ورکړے شوے دے چه ګناه اوظلم زیاتے اودَ رسول دَ نافرمانۍ دَپاره پټے پټے خبرې کول دَ رِیښتینی مومنانو کارنهٔ دے ، هغوی که چرے په خپلو کښې په ځان له ځائے کښې کیني او څه خبرې کوی نو پکار دی چه هغه دَ نیکۍ اودَ تقوی خبرې وی ۔

دَ آیت ۱۱ نه دَ ۱۳ پورے مسلمانانو ته دَ مجلس څه آداب ښودلے شوی دی او دَ هغه عیبونو دَ لرے کولو دَپاره ورته هدایات ورکړے شوی دی چه هغه اوّل هم په خلقوکښې موجود وُو او نن هم موجود دی ۔ په یومجلس کښې چه ویر خلق ناست وی او دَ بهرنه څه خلق راشی نوکوم خلق چه دَ مخکښې نه ناست وی هغوی دومره تکلیف نهٔ کوی چه لږ لږ ورغونډ شی او نوروته ځائے پریږدی ۔ نتیجهٔ ئے داوی چه روستوکوم خلق راشی هغوی ولاړ وی، یامجبوره شی او په درشل کښې کیني ، یا واپس لاړ شی ، یا اُوګوري چه په مجلس کښې مخکښې ځائے شته نودَ خلقو دَپاسه ورواوړی۔ دا کار به اکثر دَ نبی صلی الله علیه وسلّم په مجلسونوکښې کیدو۔ په دے وجه الله تعالیٰ خلقوته دا هدایت اُوکړو چه په خپلومجلسونوکښې خود غرضی مهٔ کوئ اوزړه مهٔ تنګوئ بلکه چه څوک روستوراشی هغوئ له ښه په خوشحالۍ سره ځائے ورکوئ ۔

دغه شان یوعیب په خلقوکښې داهم وُوچه دَ چا ځائے ته ( اوخاص طوردَ یو اهم سړی ځائے ته ) به لاړل نوهلته به مضبوط کیناستل او دَ دے خبرې هیڅ خیال به ئے نهٔ کوُو چه دَ ضرورت نه زیات وخت اغستل به دَهغه دَپاره دَ تکلیف باعث وی ۔که هغه ورته وائی چه جناب اُوس ځئ نوبدګنړی۔ چه هغوی پریږدی او لاړ شی تړ نو بیا وائی چه بد اخلاقی ئے اُوکړه ۔که په اِشاره اِشاره ورته اُووائی چه ماته دَ نورو ضروری کارونو دَپاره وخت پکار دے نو په غوږ ئے نهٔ لږی ۔ خلقو به دا کار اکثر دَ نبی صلی الله علیه وسلّم په مجلس کښې کولو، اودَ هغه دَمجلس نه دَ فایدے اغستلو په شوق کښې به ئے دَ دے خبرې لحاظ نهٔ کوو چه هغه ګنی دَ نبیؐ زیات قیمتی وخت خرابوی۔ آخر دا چه الله تعالیٰ دَ دے عادت دَ ختمولو دَپاره حکم اُوکړو چه کله دَ مجلس ختمولو دَپاره وینا اُوشی نو بیا پاسئ اودَ مجلس نه ځئ ۔

یو بل عیب په خلقوکښې داهم وُو چه یویو تن به خامخا دَ نبیؐ سره دَ ځان له ځان له خبرو کولو خواهش لرلو یا به ئے په عام مجلس کښې دا غوښتله چه هغه ته نزدے ورشی او ځان له دَ هغه سره خبره اُوکړی ۔ دا کار دَ نبیؐ دَپاره هم ګران وُو او په مجلس کښې چه به نور څوک وُو دَ هغوی به هم خوښ نهٔ وُو۔ په دے وجه الله تعالیٰ دا پابندی اُولګوله چه څوک دَ هغه سره ځان له خبره کول غواړی

نو هغه دِ اول صدقه ورکړي ـ مقصد صرف دا ؤ چه خلق دَ دَ خراب عادت نه خبردار کړے شي او پورے ئے بند دي ـ چنانچه دا پابندي بس دَ لږ وخت پورے اوساتلے شوه او چه کله خلقو خپل عمل صحیح کړو نو بیا منسوخ کړے شوه ـ

دَ آیت ۱۴ نه دَ سورة دَ آخره پورے ټولو مسلمانانو ته چه پکښے مخلص مومنان، او منافقان او مذبذبین خلق ټـول شامل ؤو، صفا دا وئیلے شوي دي چه په دین کښے دَ سړي دَ اخلاص معیار څه دے ـ یو قِسم مسلمانان هغه دي چه هغوي دَ اِسلام دَ دُشمنانو سره دوستي کوي، او دَ خپلے فائدے دَ خاطره هغه دَ هغه دین سره په غداري کولو کښے ناراستي نهٔ کوي چه په کوم باندِ هغه دَ ایمان لرلو دعوي لري، او دَ اِسلام خلاف قِسما قِسم شک شُبهے او وسوسے خوروي او دَ الله بندګان دَ الله لارے ته دَ راتللو نه منع کوي، خو چونکه هغوي دَ مسلمانانو په ډله کښے شامل دي، نو په دے وجه دَ هغوي دَ ایمان دَ دروغو اِقرار دَ هغوي دَ پاره دَ ډال کار ورکوي ـ دویم قِسم مسلمانان هغه دي چه دَ الله دَ دین په معامله کښے دَ بل چا لحاظ خو ځه خبره ده، پخپله دَ خپل پلار، دَ خپل زُور او دَ خپل خاندان هم پروانهٔ لري ـ دَ هغوي حال داد ے چه څوک دَ خدا ئے او دَ رسول او دَ هغه دَ دین دُشمنان دي نو دَ هغوي دَ پاره ئے په زړه کښے هیڅ مینه نشته ـ الله تعالیٰ په دے آیتونو کښے صفا فرمائیلي دي چه دَ اوّل قِسم خلق که دَ خپل اِسلام دَ پاره هرڅومره قسمونه اُوخوري خو په حقیقت کښے هغوي دَ شیطان دَ ګوند خلق دے ـ او دویم قِسم مسلمانان دَ الله دَ ګوند خلق دي ـ هم دا رښتیني مومنان دي ـ هم دَ دوئ نه الله راضي دے ـ هم دوي فلاح موندونکي دي ـ

---

سُورَةُ المُجَادلَةِ مَدَنِيَّةٌ
اٰیاتها ۲۲ رکوعاتها ۳

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

الجزء ۲۸

قَدْ سَمِعَ اللّٰهُ قَوْلَ الَّتِىْ تُجَادِلُكَ فِىْ زَوْجِهَا وَ تَشْتَكِىْٓ اِلَى اللّٰهِ ۖ وَاللّٰهُ يَسْمَعُ تَحَاوُرَكُمَا ؕ اِنَّ اللّٰهَ سَمِيْعٌۢ بَصِيْرٌ ۝۱ اَلَّذِيْنَ يُظٰهِرُوْنَ مِنْكُمْ مِّنْ نِّسَآئِهِمْ مَّا هُنَّ اُمَّهٰتِهِمْ ؕ

اللّٰه واوریدٔه[1] دَ هغه ښځې خبره چه هغه دَ خپل خاوند په معامله کښې ستا سره تکرار کوی او اللّٰه ته فریاد کوی۔ اللّٰه ستاسو دَ دواړو خبرې اَورې[2]، هغه هرڅه اَوریدونکے او هرڅه لیدونکے دے۔

په تاسو کښې چه کوم خلق دَ خپلو ښځو سره ظِهار کوی[3] دَ هغوی ښځے دَ هغوی میندې نهٔ دی،

---

[1] دلته دَ اَوریدو نه مُراد تش اَوریدل نهٔ دی بلکه فیصله کول او قبلول دی، لکه څنګه چه مونږ وایو چه اللّٰه دُعا واوریده، یعنی قبوله ئے کړه۔

[2] دلته عام طور ترجمه کونکو ترجمه کړې ده چه بحث او تکرار ئے کوو، فریاد ئے کوو، او اللّٰه هغه اَوریدو، دَ دے نه دَ لوستونکی په ذهن کښې دا مطلب راځی چه هغه ښځې به خپل شکایت اَورَولے وی او تللې به وی، او روستو به بیا په څه وخت کښې په رسول اللّٰه صلی اللّٰه علیه وسلّم باندې وحی راغلی وی، ځکه خو اللّٰه تعالیٰ اُوفرمائیل چه دَ دے ښځې خبره مونږ واوریده چه تا سره ئے تکرار کولو او مونږ ته ئے فریاد کولو او مونږ په هغه وخت کښې ستاسو دَ دواړو خبرې اَوریدلې۔ لیکن دَ دے واقعے په حقله چه کوم روایتونه په احادیثو کښې راغلی دی په هغې کښې په اکثرو کښې دا وئیلے شوی دی چه څه وخت هغه ښځې دَ خپل خاوند دَ ظِهار قیصه نبیؐ ته اَورَوله او بار بار ئے نبیؐ ته عرض کولو چه که چرے زمونږ دَ دواړو جُدائی اُوشوه نو څه به په مصیبت کښې پریوزم او ځاېچې به تباه شی، عین په دغه حالت کښې په رسول اللّٰه صلی اللّٰه علیه وسلّم باندې دَ وحی دَ نازلیدو حالت راغے او دا آیتونه نازل شو۔ په دے وجه مونږ دے له ترجیح ورکړې ده چه ترجمه دِ دَ حال په صیغو کښې اُوشی۔

دَ کومې ښځې په معامله کښې چه دا آیتونه نازل شوی دی هغه دَ خَزْرَج قبیلے وه او نوم ئے خَوْلَه بنت ثَعْلَبه وُو، او دَ هغې خاوند اَوْس بن صامت انصاری، دَ اَوْس قبیلے دَ سردار حضرت عُبَاده بن صامت رُور وُو۔ دَ دوئ دَ ظِهار قیصه به مونږ وړاندې په تفصیل سره بیان کړو۔ دلته قابل ذکر خبره داده چه هرکله دَ دے صحابیے فریاد دَ اللّٰه په دربار کښې واوریدے شو او فوراً دَ هغه ځائے

نه دَ هغې دَ فریاد قبلولو دَپاره دَ الله تعالیٰ فرمان نازل شو نو دا یوه داسې واقعه وه چه دَ دې په وجه هغې ته په صحابه کرامو کښې لوئ قدر حاصل شوے وُو۔ ابن ابی حاتم او بَیهقی دا روایت نقل کړے دے چه یو ځل حضرت عمرؓ دَ یو څو صحابو سره چرته روان وُو۔ په لاره کښې ورله یوه ښځه مخے له ورغله۔ هغې ورته اُووے چه وَدریږه۔ هغه فوراً ودریدو۔ سر ئے ښکته کړو او دَ ډیر وخته پورې ئے دَ هغې خبرے اوریدلے او چه ترڅو دَ هغې خبرے ختمے شوی نهٔ وے نو تر هغې ولاړ وُو۔ په ملګرو کښې یو ملګری اُووے چه امیرالمؤمنینه، تا دَ قریشو سرداران دَ دې بوډۍ دَپاره دومره ډیر وخت ودرَول۔ هغه اُوفرمائیل پیژنئ دا څوک ده؟ دا خوله بنتِ ثعلبه ده۔ دا هغه ښځه ده چه دَ دې فریاد په اُوو آسمانونو کښې واوریدے شو۔ په خدا ئے م دَ قسم وی، که چرے دے ځه دَ شپے پورے وَدرَولے نو ولاړ به وُوم، بس صرف دَ مونځونو په وختونو کښې به م ورته عُذر پیش کولے۔ ابنِ عبد البرّ په استیعاب کښې دَ قتاده روایت نقل کړے دے چه دا ښځه په لاره کښې دَ حضرت عمرؓ سره مِلاوُ شوه نو هغه ورته سلام اُوکړو۔ هغې ورله دَ سلام جواب ورکړو او بیا ورته لګیا شوه، "اوهو، اے عمرؓ، یو وخت وُو چه ما ته دَ عُکاظ په بازار کښې لیدلے وے۔ په هغه وخت کښې به خلقو تا ته عُمَیر وئیلو۔ کُوتک به دِ په لاس کښې وُو او بیزے به دِ څَروَلے۔ بیا ډیره موده نهٔ وه تیره شوی چه خلقو درته عمر وئیل شروع کړل۔ بیا یو وخت راغے چه خلقو درته امیرالمؤمنین وینا شروع کړه۔ لږ شان دَ رعیت په معامله کښې دَ خدا ئے نه یَره کوه، او یاد ساته چه څوک دَ الله دَعذاب نه یریږی دَ هغه دَپاره لرے سړے هم دَ نزدے رشته دار پشان وی، او چه څوک دَ مرګ نه یَریږی کیدے شی چه هغهٔ هغه څیز ضائع کړی کوم چه هغه ئې کول غواړی"۔ جارود عَبدِی، چه دَ حضرت عمرؓ سره ملګرے وُو، هغې ته اُووئیل چه اے ښځے، تهٔ دَ امیرالمؤمنین سره په خبرو کښې ډیره لرے لاړے۔ حضرت عمرؓ اُوفرمائیل، دا پریږده چه وائی۔ پیژنے دا څوک ده؟ دَ دې خبره خو په اُوو آسمانونو کښې اَوریدلے شوی ده۔ عمرؓ له خو دَ دې اوریدل پکار دی۔ امام بخاریؒ هم په خپل تاریخ کښې دغسے قیصه مختصر شان بیان کړی ده۔

سله په عربو کښې به اکثر داسے کیدله چه دَ ښځے او دَ خاوند په منځ کښې به جنګ شو نو خاوند به په غصّه کښې اُووئیل اَنْتِ عَلَیَّ کَظَهْرِ اُمِّیْ۔ دَ دې لغوی معنیٰ خو ده "تهٔ ما ته داسے ئے لکه څما دَ مور شا"۔ لیکن دَ دې اصلی مطلب دا دے چه "ستا سره کور والے کول څما دَپاره داسے دی لکه چه دَ خپلے مور سره وی"۔ په دې زمانه کښې هم ډیر بے وقوفان داسے دی چه دَ ښځے سره جنګ اُوکړی نو وائی چه تهٔ ما ته دَ مور، خور، یا لُور پشان ئے، دَ دے مطلب دا وی چه اُوس سړے هغې ته دَ ښځے په سترګه نهٔ ګوری بلکه دَ هغه زنانو پشان ورته ګوری کومے چه دَ هغه دَپاره حرامے دی۔ دَ دې کار ته ظِهار وائی۔ ظهر په عربئ ژبه کښې دَ سورلئ دَپاره دَ مثال په طور وئیلے کیږی۔ مثلاً دَ سورلئ څناور ته ظهر وائی، ځکه چه دَ هغې په شا باندِ سړے سوریږی۔ هغوی چه به ښځه په خپل ځان حرامولَه نو وئیل به ئے چه ستا نه ظهر جوړول ما له داسے حرام دی لکه دَ خپلے مور نه ظهر جوړول۔ دا وجه وه چه دِے وینا ته به هغوی په خپل اصطلاح کښې "ظِهار" وئیلو۔ دَ جاهلیت په زمانه کښې به دا وینا دَ طلاق نه سخته ګنړلے شوه، ځکه چه دَ هغوی په نزد دَ دې مطلب دا وُو چه خاوند دَ ښځے سره یواز ے کورنی تعلّقات نهٔ ختموی بلکه هغه دَ مُور پشان په ځان باندِ حراموی۔ دا وجه وه چه دَ عربو په نز دَ طلاق نه روستو رجوع کیدے شوه لیکن دَ ظِهر نه روستو رجوع هدو ممکن نهٔ وه۔

إِنْ أُمَّهَٰتُهُمْ إِلَّا ٱلَّٰٓـِٔى وَلَدْنَهُمْ ۚ وَإِنَّهُمْ لَيَقُولُونَ مُنكَرًا مِّنَ ٱلْقَوْلِ وَزُورًا ۚ وَإِنَّ ٱللَّهَ لَعَفُوٌّ غَفُورٌ ﴿٢﴾

دَ هغوی میندےؐ خو هغه دی چه دوی ئے زیږولی دیؐ. دا خلق یوه سخته نامناسبه او دروغ خبره کویؐ، او حقیقت دا دے چه الله ډیر معاف کونکے او بخښونکے دے.

۴ؐ دا دَ ظِهار په حقله دَ الله تعالیٰ اولنئ فیصله ده. دَ دے مطلب دا دے چه که چرے یو سړے بے شرمه شی او خپلے ښځے ته مور او وائی نو په دا سے وینا ښځه مور کیدے نهٔ شی او نه ښځه هغسے حرامیږی لکه څنګه چه مور حرامیږی. مور خو مور ده ځکه چه سړے تر پیدا وی، او په دے وجه هغې ته همیشه حرمت حاصل دے. اُوس آخر هغه ښځه چه دَ هغې نه هغه نهٔ دے پیدا شوے تش دَ خُلے په وینا څنګه مور کیدے شی، او دَ هغې په باره کښے به دَ عقل، دَ اخلاقو، او دَ قانون په اعتبار سره هغه حرمت څنګه ثابت شی کوم چه دَ حقیقی مور دَ پاره دے. په دے طریقه الله تعالیٰ په دے خبره دَ جاهلیت هغه قانون منسوخ کړ چه دَ هغې تر مخه به دَ ظِهار په الفاظو ویلو سره دَ ښځے نکاح ماتیده او هغه به دَ خاوند دَ پاره دَ مور په شان قطعی حرامه ګنړلے شوه.

۵ؐ یعنی ښځے له دَ مور سره تشبیه ورکول اول خو ډیره بے مناسبه او شرمناکه خبره ده. یو شریف سړی له دا په خیال کښے راوستل نهٔ دی پکار لا په ژبه ویئیل خو غټه خبره ده. بله دا چه دا خبره دروغ هم ده. ځکه چه څوک دا وائی چه ځما ښځه ځما دَ پاره اُوس مور ده نو هغه دروغ وائی. او که هغه چرے خپله دا فیصله خلقو ته اوروی چه دَ نن نه ما خپلے ښځے ته دَ مور په شان حرمت ورکړے دے نو هم دَ هغه دا دعوی دروغ ده، ځکه چه خدائے هغه له دا اختیارات نهٔ دی ورکړی چه کله غواړی نو ښځے ته دِ ښځه وائی او چه کله غواړی نو مور دِ ورته وائی. شارع (یعنی شریعت جوړونکے) هغه نهٔ دے بلکه الله تعالیٰ دے او الله تعالیٰ دَ سړی دَ خپلے مور سره دَ مور په حکم کښے دَ پلار مور، دَ مور مور، خواښے، رضاعی مور، او دَ نبیؐ بیبیانے شاملے کړی دی. چناته دا حق نهٔ دے حاصل چه په دے حکم کښے دِ خپل طرفنه بله ښځه ورداخله کړی لا بیا هغه ښځه چه دَ سړی خپله ښځه وی ـــــ دَ دے آیت نه دا دوېم قانونی حکم راؤوتو چه ظِهار کول یوه غټه ګناه ده او حرام کار دے، او چه چا اوکړو هغه دَ سزا مستحق دے.

۶ؐ یعنی دا کار خو دا سے دے چه په دے باندِ سړی ته سخته سزا ملاو یدل پکار دی، لیکن دا دَ الله تعالیٰ مهربانی ده چه هغه اوّل خو دَ ظِهار په معامله کښے دَ جاهلیت قانون منسوخ کړو او دَ انسان کور ئے ژوند ئے دَ تباهئ نه بچ کړو، دویمه دا چه دَ ظِهار کوُنکی دَ پاره ئے هغه سزا مقرر کړه کومه چه دَ دِے جُرم دَ ټولو نه سپکه سزا کیدے شوه، او دَ ټولو نه غټه مهربانی دا ده چه سزا دَ وهلو یا دَ قید په شکل کښے نهٔ ده بلکه دَ داسے عبادتونو او نیکئ په شکل کښے ده چه هغه دَ انسان دَ نفس اصلاح کوی او په خلقو کښے نیکی خورَوِی. په دے سلسله کښے ځان په دے پوهه کول پکار دی چه په اسلام کښے چه په کوم جُرم مونږ او ګناهونو

وَالَّذِيْنَ يُظٰهِرُوْنَ مِنْ نِّسَآئِهِمْ ثُمَّ يَعُوْدُوْنَ لِمَا قَالُوْا

کوم خلق[۵] چه دَ خپلو ښځو سره ظِهار اُوکړی او بیا دَ خپلے کړی خبری نه واپس شی[۶]،

باندِ څه عبادتونه دَ کفّارے په طور مقرر کړے شوی دی هغه نهٔ تشه سزا ده چه دَ عبادت دَ رُوح نه دِ خالی وی او نهٔ تش عبادت دے چه دَ سزا اړخ دِ پکښے نهٔ وی، بلکه په هغے کښے دا دواړه اړخونه را جمع کړے شوی دی، دَ پاره دَ دے چه سړی ته تکلیف هم وی او ور سره ورسره دَ یو ے نیکئ او عبادت کولو په ذریعه دَ خپلے گناه کمے هم پوره کړی۔

[۵] دَ دے ځائے نه دَ ظِهار قانونی حکم شروع کیږی۔ په دے باندِ دَ ځان پوهه کولو دَ پاره ضروری ده چه دَ ظِهار هغه واقعات دَ سړی په نظر کښے وی کوم چه دَ نبی صلی الله علیه وسلّم په زمانه کښے پیښ شوی وُو، ځکه چه په اسلام کښے دَ ظِهار تفصیلی قانون هم دَ دے ایتونو او دَ هغه فیصلو نه اغستے شوے دے کوم چه دَ دے آیتونو دَ نازلیدو نه روستو نبیؐ په پیښو واقعو کښے کړے وِے۔

دَ حضرت عبدالله بن عباس دَ بیان مطابق په اسلام کښے دَ ظِهار اولنئ واقعه دَ اَوس بن صامت انصاری ده چه دَ هغه دَ ښځے خَولے په فریاد باندِ الله تعالیٰ دا آیتونه نازل کړل۔ محدّثینو چه دَ دے واقعے کوم تفصیلات دَ ګڼو راویانو نه نقل کړی دی، په هغے کښے فروعی اختلافات خو ډیر دی، لیکن کوم حصّے چه قانونی اهمیت لری هغه تقریباً متفق علیه دی۔ دَ هغه روایتونو خلاصه دا ده چه حضرت اَوس بن صامت په بوډا والی کښے لږ شان سخت مزاجه شوے هم وُو، او دَ ځینو روایتونو تر مخه په هغه کښے څه لیونتوب غوندِ پیدا شوے وُو چه دَ هغے دَ پاره راویانو کَانَ بِهٖ لَمَمٌ الفاظ استعمال کړی دی۔ لَمَمٌ په عربئ ژبه کښے لیونتوب ته نهٔ وائی بلکه دَ لیونتوب غوندِ حالت ته وائی، لکه چه مونږه چه وایو چه "هغه دَ غصّے نه پاګل شوے دے"۔ په دے حالت کښے هغه مخکښے هم درے ځلے دَ خپلے ښځے سره ظِهار کړے وُو، لیکن په اسلام کښے دا اولنئ واقعه وه چه دَ ښځے سره په جنګ کښے دَ هغه نه بیا دا حرکت اُوشو۔ په دے باندِ دَ هغه ښځه دَ رسول الله صلی الله علیه وسلّم په خدمت کښے حاضره شوه او ټوله قیصه ئے هغه ته بیان کړه او عرض ئے اُوکړو چه اے دَ الله رسوله، څما او څما دَ بچو ژوند دَ تباهئ نه دَ بچ کولو دَ پاره څه لار وَتے شی؟ نبیؐ چه کوم جواب ورکړو هغه مختلفو راویانو په مختلفو الفاظو کښے بیان کړے دے۔ په ځینو روایتونو کښے الفاظ دا دی چه "دَ اَوسه پورے په دے مسئله کښے ما ته څه حکم نهٔ دے راغلے"۔ او په ځینو کښے دا الفاظ دی چه "څما خیال دا دے چه ته په هغه باندِ حرامه شوی ئے"۔ او په ځینو کښے دا دی چه نبیؐ اُوفرمائیل "ته په هغه باندِ حرامه شوی ئے"۔ دَ دے جواب په اوریدو سره هغے فریاد شروع کړو بار بار ئے نبیؐ ته اُووئیل چه هغه خو دَ طلاق الفاظ نهٔ دی وئیلی، ته را ته څه دا سے لار اُوښایه چه په هغے کښے ځما او ځما دَ بچو او ځما دَ بوډا خاوند ژوند دَ تباهئ نه بچ شی۔ خو هر ځل به نبیؐ هغے له دغه جواب ورکوو۔ په دے کښے په نبیؐ باندِ دَ وحی دَ نازلیدو حالت راغے او دا آیتونه نازل شو۔ دَ هغے نه روستو نبیؐ هغے ته اُوفرمائیل (او دَ ځینو روایتونو مطابق ئے دَ هغے خاوندِ را اُوغوښتو او ورته ئے اُوفرمائیل) چه یو غلام به آزاد وے۔ هغه دَ دے نه عُذر اُوکړو، نو نبیؐ اُوفرمائیل دوه میاشتے مسلسل روژے به نیسے۔ هغه عرض

اُوکړو چه دَ اَوس خو دا حال دے چه په ورځ کښے د درے ځله خوراک څکاک اُونهٔ کړی نو بیا ئے نظر نهٔ لږی۔ نبیؐ اُوفرمائیل بیا به شپیتو مسکینانو ته خوراک ورکوے۔ هغه عرض اُوکړو چه دومره وَس م نشته، هُن که تا امداد اُوکړو نو ټیک ده۔ پس دَ هغے نبیؐ هغه له په دومره مقدار کښے دَ خوراک سامان ورکړو چه هغه دَ شپیتو کسانو دَ دُوَو وختو دَ خوراک دَ پاره کافی ؤو۔ دَ دے مقدار په مختلفو روایتونو کښے مختلف بیان کړے شوے دے، او په ځینو روایتونو کښے دی چه څومره مقدار نبیؐ ورکړو هغومره حضرت خَولے خپل خاوند له ورکړو چه کفّاره ادا کړی (ابن جریر، مُسنَدِ احمد، ابوداؤد، ابنِ ابی حاتم)۔

دَ ظِهار دویمه واقعه دَ سَلَمه بن صَخر بَیاضی ده۔ په دهٔ باندِ دَ شهوت غلبه دَحد نه لږه زیاته وه۔ چه دَ رمضان میاشت راغله نو هغه دَ دے یرے دَ وجے نه چه چرته دَ روژے په حالت کښے بے صبره نهٔ شم، دَ خپلے ښځے سره دَ روژے دَ ختمید و پورے ظِهار اُوکړو۔ خو په یِوے شپه خبره تېینګ پاتے نهٔ شوه او یوه شپه ښځے له ورَغے۔ بیا شرمنده شو او رسول الله صلی الله علیه وسلم ته ئے پوره قیصه واورَوله۔ نبیؐ ورته اُوفرمائیل چه یو غلام آزاد کړه۔ هغه عرض اُوکړو چه ځما سره خو دَ خپلے ښځے نه سِوا نور هیڅ نشته چه آزاد ئے کړم۔ نبیؐ اُوفرمائیل مُسلسل دوه میاشتے روژے اُونیسه۔ هغه عرض اُوکړو په روژو کښے خو دَ صبر نهٔ کولو په وجه په دِے مصیبت کښے ښختے یم۔ نبیؐ اُوفرمائیل نو بیا شپیتو مسکینانو ته خوراک ورکړه۔ هغه اُووئیل چه څه خو دومره غریب یم چه بیګا م ډوډئ نهٔ ده خوړلے۔ په دے باندِ نبیؐ هغه له دَ بنی زُرَیق دَ زکوٰة دَ سامان نه دومره خوراک ورکړو چه په شپیتو کسانو ئے تقسیم کړو او څه ئے دَ خپل بال بچ دَ ضرورت دَ پاره هم کیښودو (مُسنَدِ احمد، ابوداؤد، ترمِذی)۔

دریمه واقعه بے نومه دا بیان کړے شوی ده چه یو سړی دَ خپلے ښځے سره ظِهار اُوکړو او بیا ئے دَ کفّارے اداکولو نه مخکښے دَ هغے سره کورواله اُوکړو۔ روستو ئے دَ نبیؐ نه دَ مسئلے تپوس اُوکړو نو هغه حکم اُوکړو چه دَ هغے نه جُدا شه ترڅو چه دِ کفّاره نهٔ وی اداکړی (ابوداؤد، ترمِذی، نَسائی، ابنِ ماجه)۔

څلورمه واقعه دا ده چه رسول الله صلی الله علیه وسلم واوریدل چه یو سړی خپلے ښځے ته په خورسره آواز اُوکړو۔ نبیؐ ورته په غصّه کښے اُوفرمائیل، "دا ستا خورده څه" خو نبیؐ دِے ته ظِهار اُونهٔ وے (ابوداؤد)۔

دا څلور معتبرے واقعے دی چه په مستندو ذریعو سره په احادیثو کښے مِلاویږی او هم دَ دِے په مدد سره دَ قرآن په هغه حکم سړے ښه پوهیدے شی کوم چه په وړاندینو آیتونو کښے بیان شوے دے۔

۸ه اصل الفاظ دی یَعُوۡدُوۡنَ لِمَا قَالُوۡا۔ لفظی ترجمه به دا وی چه " هغوی واپس شی هغه خبری ته کومه چه هغوئ اُوکړه"۔ لیکن دَ عربئ ژبے دَ عام استعمال په لحاظ سره دَ دے الفاظو په معنیٰ کښے ډیر اختلاف دے۔

یو مطلب ئے دا کیدے شی چه یو ځل دَ ظِهار دَ الفاظو دَ وئیلو نه روستو هغه بیا دوباره اُووائی۔ ظاهریه او بُکَیر بن الاشجّ، او یحییٰ بن زیاد الفَرّاء دَ دے قائیل دی، او دَ عطاء بن ابی رَباح نه هم یو قول دَ دِے په تائید کښے نقل کړے شوے دے۔ دَ دوئ په نیز یو ځل ظِهار خو معاف دے، البته چه سړے په دویم ځل اُووائی نو پس دَ هغے کفّاره لازمیږی۔ لیکن دا تفسیر په دُوَو وجو سره صریحاً غلط دے۔ یو دا چه الله تعالیٰ ظِهار ته بے مناسبه او دروغ خبره وئیلی ده او دَ دِے دَ پاره ئے سزا مقرر کړی ده۔ لُوس دا څوک وئیلے شی چه دا دروغ او

فَتَحۡرِيۡرُ رَقَبَةٍ مِّنۡ قَبۡلِ اَنۡ يَّتَمَآسَّا ؕ ذٰلِكُمۡ تُوۡعَظُوۡنَ بِهٖ ؕ وَاللّٰهُ بِمَا تَعۡمَلُوۡنَ خَبِيۡرٌ ۝۳ فَمَنۡ لَّمۡ يَجِدۡ فَصِيَامُ شَهۡرَيۡنِ مُتَتَابِعَيۡنِ

نو بیا له دٙ لاس وروړلو نه مخکښې به یو غلام آزادوی. په دې سره تاسو ته نصیحت کیږي، او څه چه تاسو کوئ الله دٙ هغې نه خبر دے[۱۱]. او څوک چه غلام بیانهٔ مومی نو هغه به دوه میاشتې مسلسل روژې اونیسی

بے هوده خبره وئیل یو ځل معاف ده او چه په دویم ځل چا اُووئیله نو بیا دٙ سزا مستحق ده؟ دویمه دا به دے وجه غلطه ده چه رسول الله صلی الله علیه وسلّم دٙ ظهار کونکی یو سړی نه هم دا تپوس اُونهٔ کړو چه تا یو ځل ظهار کړے دے او که دوه ځل.

دریم مطلب دٙ دے دا دے چه دٙ جاهلیت په زمانه کښې کوم خلق دٙ دے وینا عادت وُو هغوی که چرے په اسلام کښې دا حرکت دوباره اُوکړو نو دٙ هغې دا سزا ده. دٙ دې په دا مطلب چه په ظهار کولو سره سزا واجبیږی او هر څوک چه خپلې ښځې ته دٙ ظِهار الفاظ دٙ خُلې نه اُوباسی نو په هغه کفّاره لازمیږی، خواه که هغه دٙ هغې نه روستو ښځې له طلاق ورکړی، یا ئے ښځه مړه شی، یا دٙ خپلې ښځې سا تلو څه اراده نهٔ لری. په فقهاؤ کښې دٙ طاؤس، مجاهد شَعۡبی، زهری، سُفیان ثوری او قتاده هم دا مسلک دے. هغوی وائی چه دٙ ظِهار نه روستو که ښځه مړه شی نو خاوند دٙ هغه وخته پورے دٙ هغې میراث نهٔ شی اخستے چه تر څو ئے کفّاره نهٔ وی ورکړی.

دریم مطلب دا دے چه دٙ ظِهار دٙ الفاظو وئیلو نه روستو سړے دٙ خپلې خبرې نه واپس شی او بیا دٙ هغې کیږې پورے کول غواړی. یعنی دٙ عَادَ لِمَا قَالَ معنی ده چه سړی دٙ خپلې خبرې نه رجوع اُوکړو.

څلورم مطلب دا دے چه کوم شے سړی دٙ ظِهار په ذریعه دٙ ځان دپاره حرام کړے وُو دٙ هغې نه واپس شو او بیا ئے دٙ ځان دپاره حلال لوی یعنی دٙ عَادَ لِمَا قَالَ معنی ده چه سړی دٙ حرام والی کومه خبره کړی وه دٙ هغې نه اوس حلالوالی ته واپس راغے.

اکثرو فقهاؤ دٙ دے دواړو مطلبونو نه یوله ترجیح ورکړی ده.

[۱۱] یعنی دا حکم تاسو ته دٙ ادب ښودلو دپاره دے چه مسلمانان به دٙ جاهلیت دا خراب عادت پریږدی او په تاسو کښې دې څوک دا خراب حرکت اُونهٔ کړی. دٙ ښځې سره که جنګ کوئ نو دٙ شریفانو خلقو په شان جنګ کوئ. که طلاق ورکوئ نو په صحیح الفاظو سره طلاق ورکوئ. دا آخر څه شرافت دے چه سړے کله دٙ ښځې سره جنګ کوی نو مور او ترجوړ کړی او پسے ئے پریږدی.

[۱۲] یعنی که سړے په کور کښې په پټه دٙ ښځې سره ظهار اُوکړی او بیا کفّاره ادا نهٔ کړی او هم دغسې دٙ کوروالئ ژوند تیروی، نو که په دُنیا کښې تر هیڅوک هم خبر نهٔ وی، نو بهرحال الله خو تر خبر دے. او دٙ الله دٙ گرفت نه بچ کیدل په هیڅ طریقه ممکن نهٔ دی.

مِنْ قَبْلِ اَنْ يَّتَمَآسَّا ۚ فَمَنْ لَّمْ يَسْتَطِعْ فَاِطْعَامُ سِتِّيْنَ مِسْكِيْنًا ؕ

یو بل له د کوتوور ورڅو نه مخکښے - او د چا چه د دے هم وس نهٔ کیږی نو هغه دِ شپیتو مسکینانو ته خوراک ورکړی[۱۱] -

[۱۱] دا دے د ظهار په باره کښے د الله تعالیٰ حکم - د اسلام فقهاؤ چه د دے آیت د الفاظونه او د رسول الله صلی الله علیه وسلّم د فیصلونه او د اسلام د عامو اُصولونه په دے مسئله کښے کوم قانون جوړ کړے دے هغه په تفصیل سره لاندے بیان کړے شوے دے؛

(۱) د ظهار دا قانون د عربو د جاهلی دور هغه رِواج منسوخ کړی د کوم تر مخه چه به په دے عمل سره نکاح ختمیدله او ښځه به د خاوند د پاره همیشه حرامیدله - د غه شان دا قانون هغه ټولے قاعدے او رِواجونه هم ختموی په کوم کښے چه ظهار هډو هیڅ اثر نهٔ لری او سړی ته د دے خبری اجازت ورکوی چه هغه دِ خپلے ښځے له د مُور یا د محرّماتو سره تشبیه ورکوی او بیا دِ هم ور سره د کور والیٔ تعلق جاری ساتی، ځکه چه د اسلام په نظر کښے د مُور او د نورو محرّماتو عزّت څه داسے معمولی څیز نهٔ دے چه انسان دِ د هغوی او د ښځے په منځ کښے د مشابهت خیال قدر له هم په ذهن کښے راولی لا په ژبه وئیل خو غټه خبره ده - د دے دواړو تر منځه چه اسلامی قانون په دے معامله کښے کومه لاره خپلوی د هغے درے بنیادونه دی؛ یو دا چه په ظهار سره نکاح نهٔ ماتیږی بلکه ښځه با قاعده د خپل خاوند ښځه وی - دویم دا چه په ظهار سره ښځه د خاوند د پاره وختی طور حرامیږی - دریم دا چه دا حرامولے د هغه وخته پورے وی تر څو چه خاوند کفّاره ادا نهٔ کړی، او دا چه صرف کفّاره دا حرامولے ختمولے شی -

(۲) د ظهار کوُنکی سړی په باره کښے په دے خبره اتفاق دے چه د هغه خاوند ظهار معتبر دے چه هغه عاقل او بالغ وی او بنه په هوش کښے ئے د ظهار الفاظ وئیلی وی - د بچی او د لیونی ظهار معتبر نهٔ دے - دا رنګے د داسے سړی ظهار هم معتبر نهٔ دے چه هغه د ظهار د الفاظــو وئیلو په وخت کښے په هوش کښے نهٔ وی، مثلاً په اُوده کښے څه بړبړ اوکړی، یا پر څه قِسم بے هوشی وی - د دے نه روستو په لاندینو مسئلو کښے د فقهاؤ اختلاف دے؛

(الف) د نشے په حقله د ځلورو امامانو سره نورو ګڼ شمیر فقهاؤ دا وئیلی دی چه که چرے یو سړی د نشے څیز قصداً استعمال کړے وی نو د طلاق غوندے به د هغه ظهار په قانون کښے صحیح منلے کیږی ځکه چه د نشے حالت هغه په خپله په ځان راوستلے دے - البته که چرے د مرض په وجه هغه څه دوائی څکلی وی او د هغے سره پرِ نشه راغلی وی، یا د ویرے تندے د لاسه هغه د ځان بچ کولو د پاره په شرابو څکلو مجبور شوے وی نو د نشے په داسے حالت کښے د هغه د غلی ظهار او طلاق صحیح نهٔ دی - د حنفیانو او د شافعیانو او د حنبلیانو رائے هم داده او د صحابو عام مسلک هم دا ؤو - د دے برخلاف د حضرت عثمان رضی قول دا دے چه د نشے په حالت کښے طلاق او ظهار معتبر نهٔ دے - په احنافو کښے امام طحاویؒ او کرخیؒ د دے قول له ترجیح ورکوی او د امام شافعیؒ یو قول هم د دے په تائید کښے دے - د مالکیانو په نیز به د داسے نشے په حالت کښے ظهار معتبر وی چه په هغے کښے سړے بالکل بے هوشه شوے نهٔ وی، بلکه هغه صحیح خبری کوی، او چه څه وائی په هغے پوهیږی چه دا وایم -

(ب) دَ امام ابوحنیفهؒ او امام مالکؒ په نیز ظِهار صرف دَ مسلمان خاوند معتبر دے۔ ذمیان دَ دے حکمونو پابند نهٔ دی، ځکه چه په قرآن مجید کښے اَلَّذِیْنَ یُظٰهِرُوْنَ مِنْكُمْ الفاظ وئیلے شوی دی چه مراد ترِ مسلمانان دی، او په قرآن کښے دَ دریو قسمو کفّارونه یوه کفّاره روژه هم ده، او ښکاره خبره ده چه روژه دَ ذمیانو دَ پاره نهٔ شی کیدے۔ دَ امام شافعیؒ او دَ امام احمد په نیز به دَ ذمی په ظِهار او دَ مسلمان په ظِهار، دواړو باندِ دا حکمونه جاری کیږی، البته دَ ذمی دَ پاره روژه نشته، هغه به یا غلام آزادوی یا به شپیتو مسکینانو له ډوډئ ورکوی۔

(ج) آیا دَ سړی پشان ښځه هم ظِهار کولے شی؟ مثلاً که هغه سړی ته اُووائی چه ته ځما دَ پاره ځما دَ پلار پشان ئے، یا ځهٔ ستا سو دَ پاره ستا سو دَ مور پشان یم، نو آیا دا به هم ظِهار وی؟ څلور واړه امامان وائی چه دا ظِهار نهٔ دے، او دا دَ ظِهار دَ قانونی حکمونو لاندِ هډو راځی نه۔ ځکه چه قرآن مجید په څرګند والفاظو کښے دا حکمونه صرف دَ هغه موقع دَ پاره بیان کړی دی چه په هغے کښے خاوند دَ ښځے سره ظِهار اُوکړی اَلَّذِیْنَ یُظٰهِرُوْنَ مِنْ نِّسَآئِهِمْ۔ او دَ ظِهار کولو اختیار هغه چاته حاصلیدے شی چاته چه دَ طلاق ورکولو اختیار دے۔ ښځے له چه شریعت څنګه دا اختیار نهٔ دے ورکړے چه سړی له طلاق ورکړی دغه شان هغے له ئے دا اختیار هم نهٔ دے ورکړے چه خپل ځان دَ خاوند دَ پاره حرام کړی۔ هم دا رائے دَ سُفیان ثوری، اسحٰق بن راهَوَیه، ابوثوَر او دَ لیث بن سعد ده چه دَ ښځے دا قِسم خبره بالکل بے معنیٰ او بے اثره ده۔ امام ابویوسف وائی چه دا ظِهار خو نهٔ دے، لیکن په دِ ے سره به په ښځه باندِ دَ قسم کفّاره لازمیږی، ځکه چه دَ ښځے دَ دِ ے وینا مطلب داد ے چه هغے دَ خپل خاوند سره دَ تعلق نهٔ ساتلو قسم خوړلے دے۔ ابن قدامه هم دَ امام احمد بن حنبل دا مسلک نقل کړے دے۔ امام اوزاعی وائی که چرے ښځے دَ وادهٔ نه مخکښے دا خبره کړی وی چه که چرے ما دَ فلانی سړی سره وادهٔ اُوکړو نو هغه ځما دَ پاره داسے دے لکه ځما پلار، نو دا به ظِهار وی، او که دَ وادهٔ نه روستو اُووائی نو دا به قسم وی او په دے سره به پرِ دَ قسم کفّاره لازمیږی۔ دَ دے برخلاف حسن بصری، زُهری، ابراهیم نخعی او حسن بن زیاد لؤلؤی وائی چه دا ظِهار دے او په داسے وینا به په ښځه باندِ دَ ظِهار کفّاره لازمیږی، البته ښځے ته به دا حق نهٔ وی چه دَ کفّارے ورکولو نه مخکښے خاوند دَ ځان نه منع کړی۔ ابراهیم نخعی دَ دے په تائید کښے دا واقعه بیانوی چه دَ حضرت ابوطلحه لور عائشے ته دَ حضرت زبیر ځوئ مُصعَب دَ نکاح پیغام اولیږلو۔ نو هغے ورته په جواب کښے دا الفاظ اُووئیل چه که چرے ما دَ هغه سره نکاح اُوکړه نو هُوَ عَلَیَّ کَظَهْرِ اَبِیْ۔ (هغه ځما دَ پاره داسے دے لکه ځما دَ پلار شا)۔ څه موده پس هغه دَ هغه سره په وادهٔ کولو راضی شوه۔ دَ مدینے دَ علماؤ نه دَ دے په حقله فتویٰ اُوغوښتلے شوه نو ډیرو فقهاؤ، چه په کښے ډیر صحابه هم شامل وُو، دا فتویٰ ورکړه چه په عائشه باندِ دَ ظِهار کفّاره لازم ده۔ دَ دے واقعے دَ بیانولو نه روستو ابراهیم نخعی خپله دا رائے بیانوی چه که چرے عائشے دا خبره دَ وادهٔ نه روستو وئیلے وے نو کفّاره به پرِ نهٔ وه لازم شوے، لیکن هغے دَ وادهٔ نه مخکښے دا خبره کړی وه، چه هغے ته دَ نکاح کولو او نهٔ کولو اختیار حاصل وُو نو په دے وجه په هغے باندِ کفّاره واجب شوه۔

(۳)۔ کوم عاقل او بالغ سړے چه دَ ظِهار څرګند الفاظ بنه دَ هوش په حالت کښے اُووائی نو بیا دَ هغه دا عُذر نشی قبلیدے چه ما په غصّه کښے، یا په ټوقه ټوقه کښے، یا دَ مینے نه داسے وئیلی وُو، یا دا چه ځما نیت دَ ظِهار نهٔ وُو۔ البته چه کوم الفاظ په دے معامله کښے څرګند نهٔ دی، او چه په هغے کښے دَ مختلفو معنو احتمال دے، نو دَ هغے حکم دَ الفاظو

مطابق دے۔ ورانډِ به موږ دا اُووایو چه دَ ظِهار څرګند الفاظ کوم دی او غیر څرګند کوم دی؛

(۴) په دے خبره دَ ټولو عالمانو اتفاق دے چه ظِهار دَ هغه ښځے سره کیدے شی چه هغه دَ سړی په نکاح کښے وی۔ البته په دے خبره کښے اختلاف دے چه د خپلے ښځے نه علاوه دَ بلے ښځی سره هم ظِهار کیدے شی۔ په دے معامله کښے فقهاء مختلف دی؛

حنفیان وائی چه غیر ښځے ته سړے دا اُووائی چه "که ما ستا سره نکاح اوکړه نو ته په ما دا سے ئے لکه خپله مور شا" نو بیا چه هغه هرکله دَ هغې سره نکاح کوی نو ځکښے به کفّاره ادا کوی او پس دَ هغې به لاس وروړی۔ هم دا فتویٰ دَ حضرت عُمرؓ ده۔ دَ هغه په زمانه کښے یو سړی یوے ښځے ته دا خبره اوکړه او روستو ئے ورسره نکاح اوکړه۔ حضرت عمرؓ اُوفرمائیل دا سړے به دَ ظِهار کفّاره ادا کوی۔

مالکیان او حنبلیان هم دا خبره کوی او دا ورسره زیاته وائی چه که چرے سړی خاص ښځه نهٔ وی یاده کړی او دا سے وئیلی وی چه ټولے ښځے په ما باندِ دا سے دی، نو چه دَ کومے سره نکاح کوی ځکښے به کفّاره ادا کوی او بیا به لاس وروړی۔ هم دا رائے دَ سعید بن المُسَیّبؒ، دَ عُروه بن زُبیر، دَ عطاء بن ابی رَباح، دَ حسن بصری او دَ اسحاق بن راهویه ده۔

شافعیان وائی چه دَ نکاح نه ځکښے ظِهار بالکل بے مطلبه دے۔ دا رائے دَ ابن عباس او قتادهؒ هم ده۔

(۵)۔ آیا ظِهار دَ یو خاص وخته پورے کیدے شی؟ حنفیان او شافعیان وائی چه که چرے یو سړی دَ یو خاص وخته پورے ظِهار کړے وی نو چه ترڅو هغه وخت باقی وی تر هغې به ښځے ته په لاس وروړلو سره کفّاره لازمیږی، او چه هغه وخت تیر شی نو ظهار به بے اثره وی۔ دَ دے دلیل دَ سَلَمه بن صَخر بیاضی واقعه ده چه په هغې کښے هغه دَ خپلے ښځے سره دَ رمضان دَ پاره ظهار کړے وُو او نبی صلی الله علیه وسلم هغهٔ ته دا نهٔ وُو فرمائیلی چه وخت مقرر ول بے مطلبه دی۔ دَ دے برخلاف امام مالکؒ او ابن ابی لیلیٰ وائی چه ظِهار هرکله وی هغه به دَ همیشه دَ پاره وی او وخت مقرر ول پکښے هیڅ اثر نهٔ لری، ځکه چه کوم حُرمت واقع شوے دے هغه په وخت تیریدو سره پخپله نشی ختمیدے۔

(۶)۔ دَ ظِهار سره چه شرط لګولے شوے وی نو څه وخت چه دَ هغه شرط خلاف ورزی اُوشی نو کفّاره به لازمیږی۔ مثلاً چه یو سړے ښځے ته دا اُووائی چه "که چرے څه کورته راغلم نو ته په ما باندِ دا سے ئے لکه خپله مور شا" په دے صورت کښے چه کله هغه کور ته ورننوزی، نو دَ کفّارے ادا کولو نه بغیر به ښځے له لاس نهٔ وروړی۔

(۷)۔ یو ښځے ته چه څو ځله دَ ظِهار الفاظ وئیلی شوی وی نو حنفیان او شافعیان وائی چه که په یو مجلس کښے وئیلے شوی وی او که په ډیرو کښے، خو بهرحال چه څو ځله الفاظ وئیلے شوی وُو هم هغومره ځله به کفّاره لازمیږی، هن دومره خبره ده که چرے یو نکی یو ځل وینا اُوکړه او بیا ئے دَ خپلے وینا په تاکید کښے هغه خبره بار بار ذکر کړه نو بیا یوه کفّاره لازمیږی۔ دَ دے برخلاف امام مالکؒ او امام احمد بن حنبل وائی چه که هرڅومره ځله دَ ظِهار الفاظ بار بار وئیلی شوی وُو، خواه که دَ تکرار په نیت وُو او که دَ تاکید، خو کفّاره به یو ځل لازمیږی۔ هم دا قول دَ شعْبی، طاؤس، عطاء بن ابی رباح، حسن بصری او اوزاعی رحمهم الله علیهم دے۔ دَ حضرت علی فتویٰ دا ده چه که چرے بار بار وینا په یو مجلس کښے شوی وه نو یوه کفّاره به وی او که په ډیرو مجلسونو کښے وه نو چه په څومره مجلسونو کښے وه هغومره ځله به کفّاره ادا کوی۔ دَ قتاده او دَ عَمرو بن دینار رائے هم دا ده۔

(۸)۔ دو ویاړیاتو ښځو ته چه په یو وخت او په یو لفظ سره دَ ظِهار الفاظ اُووئیلے شی، مثلاً خاوند

مغوی ته اُورو ائي چه تاسو په ما باندې داسې یئ لکه څنګه د مور شا، نو حنفیان او شافعیان وائي چه د هرې یوې د حلالولو د پاره به جُدا جُدا کفّاره ورکوی۔ دا رائے د حضرت عمرؓ، حضرت علیؓ، عروه بن زبیرؒ، طاوس، عطاء، حسن بصری، ابراهیم نخعی، سُفیان ثوری او د ابن شهاب زُهری ده۔ امام مالکؒ او امام احمدؒ وائي چه د ټولو د پاره به یو کفّاره لازمیږی۔ د ربیعه، اوزاعی، اسحاق بن راهویه او د ابو ثورؒ هم دا رائے ده۔

(۹) که یو سړی د ظِهار کفّاره ورکړه او بیا ئے ظِهار اُوکړو نو په دې د ټولو فقهاوُ اتفاق دے چه بیا به کفّاره ورکوی نو هله به ښځه حلالیږی۔

(۱۰)۔ د کفّارې ورکولو نه مخکښې که سړی د ښځې سره د کورو والی تعلقات قایم کړل د ټولو والو امامانو په نزد اګرچه دا ګناه ده، او سړی له پکار دی چه په دې باندې توبه استغفار شی او بیا د غسے کار اُو نه کړی، خو کفّاره به یوه ورکوی۔ د رسول الله صلی الله علیه وسلّم په زمانه کښې چه کومو خلقو داسے کړی وُو مغوی ته خو نبیؐ دا فرمائیلی وُو چه استغفار وائي او چه ترڅو مو کفّاره نهٔ ری ادا کړی تر هغې د خپلو ښځو نه جُدا اُوسئ، لیکن نبیؐ دا حکم نهٔ وُوکړے چه د ظِهار د کفّارې نه علاوه کښی په مغوی باندې بله کفّاره هم شته۔ حضرت عمرو بن عاص، قبیصه بن ذُؤیب، سعید بن جُبیر، زُهری او قتاده وائي چه په هغه به دوه کفّارے لازم وی۔ او د حسن بصری او ابراهیم نخعی رائے دا ده چه درے کفّارے به ورکوی۔ غالباً چه د دے حضراتو ته به هغه احادیث نهٔ وی رسیدلی په کومو کښې چه په دې مسئله باندې د نبیؐ فیصله بیان شوی ده۔

(۱۱)۔ ښځې له چه د چا سره تشبیه ورکړے شی نو هغه ظِهار دے؟ په دې مسئله کښې د فقهاوُ اختلاف دے،

عامر شعبی وائي چه صرف د مور سره تشبیه ظِهار دے۔ او ظاهریه وائي چه صرف د مور د شا سره تشبیه ظِهار دے، په بله یوه خبره باندې هم دا حکم نهٔ لږی۔ لیکن د اُمت په فقهاوُ کښې یو تن هم د مغوی سره په دې معامله کښې اتفاق نهٔ دے کړے، ځکه چه قرآن د مور سره تشبیه ورکولو ته ګناه وئیلی ده او د هغې ئے دا وجه بیان کړی ده چه دا ډیره بیهوده او دروغ خبره ده۔ اُوس دا ښکاره خبره ده چه د کومو ښځو حرمت د مېند ریشان دے د مغوئ سره خپلو ښځو له تشبیه ورکول هم هغسے بیهوده او دروغ خبره ده، په دې وجه د هغې حکم هم هغه دے کوم چه د مور سره د تشبیه حکم دے۔

حنفیان وائي چه په دې حکم کښې هغه ټولے ښځې داخلے دی کومے چه د نسب یا د رضاعت یا د واده د رشتې په وجه په سړی باندې د همیشه د پاره حرامے دی۔ لیکن کومے ښځے چه وختی طور حرامے وی او په څه وخت کښې حلالیدے شی نو هغه په دې کښې داخلې نهٔ دی۔ لکه د ښځې خور یعنی خینی، د ښځې د مور خور، د ښځې د پلار خور، یا بله ښځه چه د سړی په نکاح کښې نهٔ وی۔ کومے ښځے چه همیشه په سړی باندې حرامے دی په مغوی کښې چه د هرې یوې ښځې د یو داسے اندام سره تشبیه ورکړی چه هغې ته نظر کول د سړی د پاره حلال نهٔ وی، نو دا به ظِهار وی۔ البته د ښځې لاس، خپه، سر، ویښته یا غاښ وغیره له د همیشه حرامے ښځې د شا سره تشبیه ورکول، یا ښځې له د هغې د سر، لاس، خپه، وغیره سره تشبیه ورکول ظِهار نهٔ دے، ځکه چه د مور، خور وغیره اندامونو ته کتل حرام نهٔ دی۔ د غه شان دا وینا کول چه ستا لاس څنګه د مور د لاس پشان دی یا ستا خپه څنګه د مور د خپې په شان دی، نو دا ظِهار نهٔ دے۔

شافعیان وائي چه په دې حکم کښې صرف هغه ښځې داخلې دی چه هغه همیشه حرامے دی او حرامے به وی

يعنې مُور، خور، لُور وغيره ليکن هغه ښځې په دې کښې داخلې نهٔ دي کومې چه په يو وخت کښې دَ سړي دَ پاره حلالې وې، لکه رضاعي مُور، رضاعي خور، خواښې او اېنګور، يا په څه وخت کښې دَ سړي دَ پاره حلالېدې شي لکه خينې - دَ دې عارضي او وختي حرامو ښځو نه علاوه چه کومې ښځې هميشه حرامې وي دَ هغوی دَ يو داسې اندام سره ښځې له تشبيه ورکول چه هغه عام طور دَ عزّت دَ پاره څوک نهٔ يادَوي، ظِهار دې - يا تې شو هغه اندام چه عام طور ئې خلق دَ عزّت دَ پاره يادَوي نو دَ هغې سره تشبيه به هله ظِهار وي چه خبره دَ ظِهار په نيت اوکړې شي - مثلاً ښځې ته داوئيل چه تهٔ ما ته څما دَ مُور دَ سترګې پشان ئې، يا دَ مُور دَ لاس، دَ خپې، يا دَ شا پشان ئې، يا دَ مُور دَ خيټې يا دَ سينې سره دَ ښځې خيټې يا دَ سينې له تشبيه ورکول، يا دَ ښځې سر، شا يا لاس دَ خپل ځان دَ پاره دَ مُور دَ شا پشان ګڼل، يا ښځې ته داوئيل چه تهٔ څما دَ پاره څما دَ مُور پشان ئې، نو داکه دَ ظِهار په نيت سره وي نو ظهار دې اوکه دَ عزّت په نيت وي نو عزّت دے -

مالکيان وائي چه کومه ښځه دَ سړي دَ پاره حرام وي دَ هغې سره خپلې ښځې له تشبيه ورکول ظِهار دے، اَنْ تر دې پورې چه ښځې ته داوئيل کول هم ظِهار دې چه تهٔ په ما باندې دَ فلانۍ غير ښځې دَ شا پشان ئې - دارنګې مالکيان وائي چه دَ مُور يا دَ هميشه حرامو ښځو دَ اندام سره ښځې له يا دَ ښځې يو اندام له تشبيه ورکول ظِهار دې، او په دې کښې دا شرط نشته چه هغه اندامونه دِ داسې وي چه هغې ته کتل حلال نهٔ وي، ځکه چه دَ مُور هر اندام ته په داسې نظر کتل لکه څنګه چه ښځې ته سړے ګوري حلال نهٔ دي-

حنبليان وائي چه په دې حکم کښې هغه ټولې ښځې داخلې دي کومې چه هميشه حرامې وي، خواه که هغه مخکښې په څه وخت کښې حلالې وې لکه خواښې يا رضاعي مُور - اوکومې ښځې چه روستو په څه وخت کښې حلالېدې شي (لکه خينې) نو دَ هغوی په حقله دَ امام احمد يو قول دا دے چه دَ هغوی سره تشبيه هم ظِهار دې او دويم قول دا دے چه دَ هغوئ سره تشبيه ظِهار نهٔ دې- دارنګې دَ حنبليانو په نيز دَ ښځې اندام له دَ محرمانو دَ اندام سره تشبيه ورکول ظِهار دے - البته وېښته، نوک، غاښ غوندې غير مستقل اندامونه په دے حکم کښې نهٔ راځي -

(۱۲) - په دې خبره دَ ټولو فقهاؤ اتفاق دې چه ښځې ته داوينا کول چه "تهٔ په ما باندې څما دَ مُور دَ شا پشان ئې" څرګند ظِهار دے ځکه چه په عربو کښې دَ ظِهار هم دا طريقه وه او دَ قرآن مجيد حکم هم په دے باره کښې نازل شوے دے- البته په دې خبره کښې دَ فقهاؤ اختلاف دې چه نور کوم داسې لفظونه دي چه هغه څرګند ظِهار دے او کوم داسې الفاظ دي چه دَ هغې فيصله به دَ ويونکي په نيت باندې کيږي-

دَ حنفيانو په نيز دَ ظِهار څرګند الفاظ هغه دي چه په هغې کښې صفا خپلې حلالې ښځې له په حرامو ښځو کښې دَ يوې ښځې سره تشبيه ورکړے شوې وي، يا دَ داسې اندام سره ورکړے شوې وي چه هغې ته کتل حلال نهٔ وي، لکه داوينا کول چه تهٔ په ما باندې څما دَ مُور يا فلانۍ حرامې ښځې دَ شا يا دَ رُون (پټون) پشان ئې - دَ دې نه علاوه په نورو الفاظو کښې اختلاف کېدے شي که اُووائي چه "تهٔ په ما باندې داسې حرامه ئې لکه څما دَ مُور شا" نو دَ امام ابو حنيفه په نيز دا څرګند ظِهار دے - ليکن دَ امام ابو يوسف او دَ امام محمد په نيز که دَ ظِهار نيت ؤو نو ظِهار دے او که دَ طلاق نيت ؤو نو طلاق دې - که اُووائي چه "تهٔ څما دَ مور غوندې ئې يا څما دَ مُور پشان ئې" نو دَ حنفيانو عامه فتوی دا ده چه دا دَ ظِهار په نيت سره ظِهار دے، دَ طلاق په نيت سره طلاق بائن دي اوکه هيڅ نيت ئې نهٔ وي نو بے مطلبه دي - ليکن دَ امام محمد په نيز دا قطعي ظِهار دې - که سړے خپلې ښځې ته مُور يا خور يا لُور اُووائي نو دا داسې سخته بے هوده خبره ده چه رسول الله صلى الله عليه وسلم

پر دَ غصّے اظهار کړے وُ، خود دَ ظِهار حکم ئے پرِنهٔ وُو لګولے۔ که سړے اُووائی چه "ته په ما باندِ دَ مُور پشان حرامه ئے" نو دا دَ ظِهار په نیت سره ظِهار دے، دَ طلاق په نیت سره طلاق دی، او که هیڅ نیت نهٔ وی نو ظِهار دے۔ که سړے اُووائی چه "تهٔ څما دَ پاره دَ مُور پشان یا دَ مُور غوندِ ئے"، نو نیت به بیا تپوسلے کیږی۔ که دَ عزت په نیت سره ئے وئیلی وُو نو عزت دے۔ که دَ ظِهار په نیت سره ئے وئیلی وُو نو ظِهار دے، که دَ طلاق په نیت سره ئے وئیلی وُو نو طلاق دے۔ او که هیڅ نیت ئے نهٔ وُو او همے ئے دا خبره کړې وه نو دَ امام ابوحنیفه په نزد بے مطلبه دی، دَ امام ابویوسف په نزد ظِهار خو پرِ نهٔ راځی لیکن دَ قسم کفاره پرِ لازمیږی۔ او دَ امام محمد په نِزد دا ظِهار دے۔

دَ شافعیانو په نِزد دَ ظِهار څرګند الفاظ دا دی چه یو سړے خپلے ښځے ته اُووائی چه "تهٔ څما په نِزد، یا څما سره، یا څما دَ پاره داسے ئے لکه څما دَ مور شا۔ یا تهٔ څما دَ مُور دَ شا پشان ئے، یا ستا جسم یا ستا بدن، یا ستا نفس څما دَ پاره څما دَ مُور دَ جسم یا بدن یا نفس په شان دے۔ دَ دے نه علاوه به په نورو ټولو الفاظو کښے دَ ویونکی په نیت باندِ فیصله کیږی۔

دَ حنبلیانو په نِزد هرهغه لفظ چه په هغے سره یو سړی خپلے ښځے له یا دَ هغے په مستقل اندامُونو کښے یو اندام له دَ یو بے داسے ښځے سره چه دَ هغه دَ پاره حرامه وی، یا دَ هغے په مستقل اندامُونو کښے دَ یو اندام سره تشبیه ورکړی، نو هغه به دَ ظِهار په معامله کښے څرګند الفاظ وی۔

دَ مالکیانو مسلک هم تقریباً دا دے، البته په تفصیلاتو کښے دَ هغوی فتوے جُدا جُدا دی۔ مثلاً چه یو سړے خپلے ښځے ته دا اُووائی چه "تهٔ څما دَ پاره څما دَ مور غوندِ ئے یا څما دَ مور پشان ئے" نو دَ مالکیانو په نزد که دا دَ ظِهار په نیت سره وی نو ظِهار دے، که دَ طلاق په نیت وی نو طلاق دی او هیڅ نیت ئے نهٔ وی نو ظِهار دے۔ دَ حنبلیانو په نزد دا د نیت په شرط سره صرف ظِهار دے۔ که څوک خپلے ښځے ته اُووائی چه "تهٔ څما مور ئے" نو مالکیان وائی چه دا ظِهار دے او حنبلیان وائی چه که دا خبره دَ جګړے او دَ غصے په حالت کښے وئیلی شوی وی نو ظِهار دے او که دَ مینے په خبرو اترو کښے وئیلی شوی وی نو اګرچه دا ډیره خرابه خبره ده لیکن ظِهار نهٔ دے۔ که څوک اُووائی چه "تهٔ طلاقه ئے تهٔ څما دَ مُور پشان ئے" نو دَ حنبلیانو په نزد دا طلاق دی نهٔ چه ظِهار، او که اُووائی چه "تهٔ څما دَ مُور پشان ئے تهٔ طلاقه ئے"، نو ظِهار او طلاق دواړه به واقع کیږی۔ دا وینا چه "تهٔ په ما باندِ داسے حرامه ئے لکه څما دَ مُور شا"، دَ مالکیانو او حنبلیانو دواړو په نیز ظِهار دے، خواه که دَ طلاق په نیت سره ئے دا الفاظ وئیلی وی یا ئے هیڅ نیت هم نهٔ وی۔

دَ ظِهار دَ الفاظو په دے بحث کښے ځان په دے خبره بنه پوهه کول پکار دی چه فقهاؤ په دے حقله څومره بحثونه کړی دی هغه ټول دَ عربئ ژبے دَ الفاظو سره تعلق لری، او ښکاره خبره ده چه په دُنیا کښے څوک نورے ژبے وائی هغوئ به نهٔ په عربئ ژبه کښے ظِهار کوی او نهٔ به دَ ظِهار کولو په وخت کښے دَ عربئ الفاظو ټیک ټرجمه ادا کوی۔ نو غیر عربی الفاظو ته به دِ دے لحاظ سره کتل نهٔ دی پکار چه هغه دَ فقهاؤ دَ کومو الفاظو صحیح ترجمه ده، بلکه هغے ته به دے لحاظ سره کتل پکار دی چه آیا ویونکی خپلے ښځے له دَ جنسی تعلق په لحاظ سره په محرّماتو کښے دَ چا سره صفا صفا تشبیه ورکړې ده، او که دَ هغه دَ الفاظونه نوُر مطلبونه هم را ایستلے کیدے شی؟ دَ هغے دَ ټولو نه څرګند مثال ځنبله هغه فقره ده چه دَ کومے په حقله دَ ټولو فقهاؤ او مفسّرینو اتفاق دے چه هغه به په عربو کښے دَ ظِهار دَ پاره استعمالیدله او دَ قرآن مجید حکم هم دَ هغے په باره کښے نازل شوے دے

یعنی، اَنْتِ عَلَیَّ کَظَهْرِ اُمِّیْ "ته په ما باندې څو د مور د شا پشان یې". غالباً چه د دُنیا په بله هره ژبه کښې اوکم ازکم زمونږ په ژبه کښې خو داسې الفاظ نه استعمالیږی چه هغه د عربیٔ د دې فقرې لفظی ترجمه وی. البته ظهارکوُنکے په خپله ژبه کښې داسې الفاظ ضرور استعمالولے شی چه د هغې مطلب ټیک هم هغه وی د کوم د پاره چه به یوعربی هغه الفاظ استعمال کول. د هغې مطلب داوُو چه "ستا سره کورروالے څما د پاره داسې دے لکه چه د خپلې مور سره کورروالے وی"، یالکه څنګه چه څینی جاهلان خلق خپلې ښځې ته وائی چه "تاله ورتلل خو خپلې مورله ورتلل دی".

(۱۳) په قرآن مجید کښې چه کوم څیز د کفارې د لازمیدو سبب ګرزولے شوې دے هغه تش ظهار نهٔ دے بلکه د ظهار نه روستو "عَود یعنی واپس کیدل" دی. یعنی که سړے صرف ظهار اوکړی او د هغې نه واپس نهٔ شی نو په هغه کفاره نهٔ لازمیږی. اوس خبره داده چه هغه "عَود" یعنی واپسی څه څیز دے چه کفاره پرې لازمیږی؟ په دې باره کښې د فقهاؤ مسلکونه دا دی؛

حنفیان وائی چه د "عَود" نه مُراد د "کورروالی" اراده ده. لیکن د دې مطلب دانهٔ دے چه تش په اراده او خواهش باندې کفاره لازمه شی اګرکه سړے عملاً کورروالے اُونهٔ کړی. بلکه د دې اصلی مطلب دادے چه څوک هغه حراموالے ختمول غواړی کوم چه هغه د ظهار په ذریعه د خپلې ښځې سره د کورروالی په معامله کښې په خپل ځان لګولے دے نو هغه دِ اول کفاره ورکړی، ځکه چه د دغه حراموالے بغیر د کفارې اداکولو نه ختمیدے نهٔ شی.

د امام مالک په دې معامله کښې درې قولونه دی، لیکن د مالکیانو په نز د قولونو مشهور او د قولونو صحیح قول د هغه مسلک مطابق دے کوم چه برة د حنفیانو بیان شوے دے. هغوی وائی چه د ظهار په ذریعه هغه کوم څیز په ځان باندې حرام کړے وُو هغه د خپلې ښځې د "کورروالی" تعلق وُو. د هغې نه روستو "عَود" دادے چه هغه د خپلې ښځې سره هم دغه تعلـق واپس قایم کـړی.

د امام احمد بن حنبلؒ مسلک هم ابن قدامه تقریباً هغه بیان کړے دے کوم چه برة د دواړو اِمامانو دے. هغه وائی چه د ظهار نه روستو د مباشرت یعنی "د کورروالی" حلالولو د پاره کفاره ورکول شرط ده. کوم ظهارکوُنکے سړے چه کورروالے حلالول غواړی نو هغه لکه چه د کورروالی د حراموالی نه واپس کیدل غواړی. په دې وجه هغه ته حکم ورکړے شو چه د کورروالی د حلالولو نه مخکښې کفاره ورکړه، بالکل هغه شان لکه څنګه چه یو سړے د یوې بې نکاح ښځې سره کورروالے حلالول غواړی نو هغه ته وئیلے کیږی چه اول نکاح اُوکړه.

د امام شافعیؒ مسلک د دې دریواړو نه مختلف دے. هغه وائی چه د ظهارکولو نه روستو څوک خپله ښځه د مخکینی پشان د ښځې په حیثیت سره ساتل غواړی نو دا "عَود" دے ځکه چه د ظهارکولو د وخت نه هغه دا خبره د ځان د پاره حرامه کړه چه هغه د ښځې په حیثیت اُوساتی. نو که چرې هغه د ظهارکولو سره فوراً هغې له طلاق ورنهٔ کړل او د دومره وخته پورې یې د ځان سره اُوساتله چه په هغې کښې هغه د طلاق الفاظ وئیلے شو نو هغه عَود اُوکړو او په هغه باندې کفاره واجب شوه. د دې مطلب دادے چه په یوه ساکښې د ظهارکولو نه روستو که سړے په دویمه ساکښې طلاق ورنهٔ کړی نو کفاره به پرې لازمیږی، اګرکه روستو هغه دا فیصله اُوکړی چه څه دغه ښځه هم د ښځې په حیثیت نهٔ ساتم. اَن ترد دې پورې چه هغه یو څو منټه غور اُوکړی او ښځې له طلاق

هم ورکړی خو دَ امام شافعیؒ په مسلک کښے به کفّاره په هغه لازمیږی ـ

(۱۴) دَ قرآن حکم دا دے چه ظِهار کونکے دِ کفّاره ورکړی مخکښے دَ دے نه چه یو بل له گوتی ورو وړی ـ دَ څلورو واړو اماما نو په دے خبره اتفاق دے چه په دے آیت کښے دَ "مَس" نه مُراد گوتے وروړل دی، نو په دے وجه دَ کفّارے ورکولو نه مخکښے یوازے کورو الے حرام نهٔ دے بلکه خاوند خپلے ښځے له په هیځ طریقه گوتے نهٔ شی وروړلے ـ شافعیان وائی چه په شهوت سره گوتے وروړل حرام دی، حنبلیان وائی چه هر قِسم خوند اغستل حرام دی، او مالکیان وائی چه دَ خوند په غرض دَ ښځے بدن ته کتل هم ناجائز دی، دَ هغوی په نزصرف مخ او لاسونو ته کتل په دے حکم کښے نهٔ راځی ـ

(۱۵) دَ ظِهار نه روستو که سړی ښځے له طلاق ورکړل نو که هغه طلاقِ رجعی وُو او رجوع ئے کوله نو بیا هم دَ کفّارے ادا کولو نه بغیر هغه ښځے له لاس نشی وروړلے ـ او که بائن طلاق وُو او نکاح ئے دوباره اُوتړله نو بیا به هم دَ لاس وروړلو نه مخکښے کفّاره ورکوی ـ ان تر دے پورے که دے طلاق ئے ورکړل، او ښځے دَ بل سړی سره نکاح اُوکړه او بیا کونډه شوه یا ورله هغه بل سړی هم طلاق ورکړل، او دَ هغے نه روستو ورسره ظِهار کونکی خاوند بیا دوباره دَ نوی سرنه نکاح اُوکړه نو بیا هم هغه ښځه دَ هغه دَپاره دَ کفّارے ورکولو نه مخکښے حلاله نهٔ ده ـ ځکه هغه هغے له یو ځل دَ مُور یا دَ محرّماتو سره تشبیه ورکړی ده او په ځان ئے حرامه کړی ده، او دا حرام والے دَ کفّارے نه بغیر نهٔ ختمیږی ـ په دے باندِ دَ څلورو واړو اِماما نو اتفاق دے ـ

(۱۶) دَ ښځے دَپاره لازم دی چه کوم خاوند دَ هغے سره ظِهار کړے دے چه دَ هغه لاس ځان ته پرے نږدی تر څو چه هغه کفّاره ادا نهٔ کړی ـ او چونکه کورو الے دَ ښځے حق دے چه هغه خاوند په ظِهار سره حرام کړے دے نو خاوند که چرے کفّاره ادا نهٔ کړی نو ښځه عدالت ته رجوع کولے شی ـ عدالت به دَ هغے خاوند مجبوره کوی چه کفّاره ورکړی او کوم حرام والے چه هغه په ځان لگولے دے هغه ختم کړی ـ او که هغه نهٔ منی نو عدالت هغه وهلے یا قید وَلے یا دواړه سزا گانے ورکولے شی ـ دا خبره هم دَ فقهے په څلورو واړو مذهبونو کښے متفق علیه ده ـ البته فرق دا دے چه په حنفی مذهب کښے دَ ښځے دَپاره صرف هم دا یوه لار ده، دَ دے نه علاوه که په ظِهار هر څومره موده تیره شی، خو چه عدالت ښځه دَ دے سختے نه نهٔ خلاصوی نو هغه به تمام عُمر آویزانه وی، ځکه چه په ظِهار سره نکاح نهٔ ختمیږی ـ صرف دَ خاوند دَ کورو الی حق ختمیږی ـ په مالکی مذهب کښے که خاوند دَ ښځے دَ تنگولو دَپاره ظِهار اُوکړی او دغسے آویزانه ئے پریږدی نو په هغه باندِ دَ ایلاء حکمونه جاری کیږی، یعنی هغه دَ څلورو میاشتو نه زیاته ښځه نهٔ شی ایسارولے (دَ ایلاء دَ حکمونو دَپاره اُوگوره تفهیم القرآن، اوّل جلد، البقره، حاشیے ۲۴۵ تا ۲۴۷) ـ دَ شافعیانو په نز اگرچه په ظِهار کښے دَ ایلاء حکمونه خو صرف په هغه وخت کښے جاری کیدے شی چه خاوند دَ یوے خاصے مودے دَپاره ظِهار کړے وی او هغه موده دَ څلورو میاشتو نه زیاته وی، لیکن په شافعی مذهب کښے چونکه په خاوند باندِ په هغه وخت کفّاره واجبیږی کله چه هغه ښځه دَ ښځے په حیثیت سره اُوساتی، په دے وجه دا هډو ممکن نهٔ ده چه هغه ښځه دَ ډیرے مودے پورے آویزانه اُوساتی ـ

(۱۷) په قرآن او په سنت کښے صفا وئیلے شوی دی چه دَ ظِهار اولنۍ کفّاره غلام آزادول دی ـ څوک چه دَ دے نه عاجزه وی نو بیا به دوه میاشتے روژے نیسی ـ او چه دَ دے نه هم عاجزه وی نو شپیتو مسکینانو ته به خوراک ورکوی ـ لیکن

که څوک دَدې دریوارو کفارونه عاجزه وی نو چونکه په شریعت کښې دَکفّارې څه بل شکل نشته نو په دې وجه هغه به دَ هغه وخته پورې انتظار کوی ترڅو چه هغه په دې دریو کفارو کښې په یوه کفّاره باندې قدرت بیانهٔ مومی ـ البته دَ سنتونه دا خبره ثابته ده چه دَ داسې سړی سره امداد کول پکاردی چه هغه دریمه کفاره اداکړې شی ـ نبی صلی الله علیه وسلّم دَ بیت المال نه دَ داسې خلقو امداد کړے دے چه هغوئ دَ خپلې غلطئ په وجه په داسې سختهٔ کښې نښتی ؤ او دَ دریوارو کفّارونه عاجزه ؤو ـ

(۱۸) قرآن مجید په کفّاره کښې دَ رَقَبَهَ (یعنی دَ څټ) دَ آزادولو حکم کوی چه په هغې کښې وینځه او غلام دواړه راځیٔ او په هغې کښې دَ عُمر هیڅ قید نشته ـ دَ ډې ماشوم هم که دَ غلامئ په حالت کښې وی نو دَ هغه آزادول دَ کفّارې دَ پاره کافی دی ـ البته په دې خبره کښې دَ فقهاؤ اختلاف دے چه آیا مومن او کافر، دواړه قِسمه غلامان آزادیدے شی، یا صرف مومن غلام به آزادَوی ـ حنفیان او ظاهریه والئ چه غلام که مومن وی او که کافر وی، دَ هغه آزادَول دَ ظِهار دَکفّارې دَ پاره کافی دی، ځکه چه په قرآن کښې دَ مُطلق رَقَبَهَ ذکر دے، دا نهٔ دی وئیلی شوی چه غلام دِ مؤمن وی ـ دَ دې برخلاف شافعیان، مالکیان او حنبلیان دَ دې دَ پاره دَ مومن شرط لګوی، او هغوی دا حکم په هغه نورو کفارو باندِ قیاس کړے دے چه په هغې کښې دَ رَقَبَهَ سره په قرآن مجید کښې دَ مومن قید لګولے شوے دے (یعنی چه غلام به خامخا مومن وی) ـ

(۱۹) چه غلام بیانهٔ مومی نو دَ قرآن دا حکم دے چه ظِهار کوُنکے به ښځے له دَ لاس وروړلو نه مخکښې دوه میاشتے مُسلسل رُوژے نیسی ـ دَ الله په دے حکم باندِ چه دَ عمل کولو کوم تفصیلات دَ فقهے په مختلفو مذهبونو کښې دی هغه لاندِ لیکلے شوی دی:

(الف) ـ په دے خبره باندِ اتفاق دے چه دَ میاشتونه مُراد دَ سپوږمئ میاشتے دی ـ که دَ میاشتے دَ ختوسره ئے روژے شروع کړے نو دوه میاشتے به پوره کوی ـ او که په منځ کښې ئے دَ یو تاریخ نه شروع اُوکړه نو حنفیان او حنبلیان والئ چه شپیته روژے نیول پکاردی ـ او شافعیان والئ چه په اوّله او دریمه میاشت کښې دِ ټولے دیرش روژے اُونیسی او په منځ کښې چه کومه میاشت دَ یوکم دیرشو یا دَ دیرشو وی، نو دَ هغې روژے نیول کافی دی ـ

(ب) حنفیان او شافعیان والئ چه دَ کفّارے روژے په داسې وخت کښې شروع کول پکاردی چه نهٔ پکښې دَ رمضان میاشت په منځ کښې راشی، نه اختر ونه، نهٔ یوم النحر او نهٔ ایام تشریق، ځکه چه په منځ کښې د دے دَ راتلو په وجه دَ دوو میاشتو تسلسل ختمیږی او بیا به دَ نوی سر نه روژے نیسی ـ حنبلیان والئ چه په منځ کښې دَ رمضان دَ روژو نیولوسره او دَ حرامو ورځو دَ روژونه نیولوسره تسلسل نهٔ ختمیږی ـ

(ج) دَ دوو میاشتو په دوران کښې که دَ سړی نه په عذر سره روژے پاتے شی او که بغیر دَ عُذرنه، په دواړو حالتونو کښې به دَ حنفیانو او دَ شافعیانو په نز تسلسل ماتیږی او دَ نوی سرنه به روژے نیسی ـ هم دا رائے دَ امام محمد باقِر، ابراهیم نخعی، سعید بن جُبَیر او دَ سُفیان ثوری ده ـ دَ امام مالک او امام احمد په نز دَ مرض یا دَ سفر په عذر سره په منځ کښې روژے پریښودے شی او په دے سره تسلسل نهٔ ماتیږی البته په بے عذر ره پریښودو سره ماتیږی ـ دَ هغوئ دلیل دا دے چه دَکفّارے روژے دَ رمضان دَ فرض روژونه زیاتے غوریږے نهٔ دی، نو هرکله چه هغه په عُذر سره پریښودے شی نو دا په څه وجه نهٔ شی پریښودے ـ دا قول دَ حضرت عبد الله بن عباس، حسن بصری، عطاء بن ابی رَباح، سعید بن المُسیّب، عمرو بن دینا، شَعبی، طاؤس، مجاهد، اسحاق بن راهَوَیه، ابو عُبَید او دَ ابو ثور دے ـ

(د) دَ دوو میاشتو په دوران کښې که سړے دَ هغه ښځے سره کور والے اُوکړی چه دَ کوم سره هغه ظِهار

کړے وی نو دَ ټولو اِمامانو په نزبه دَ دے سره تسلسل ختمیږی او دَ نوی سرنه به روژے نیسی ځکه چه دَ لاس لګولو نه مخکښے دَ دوَو میاشتو مسلسلو روژ نیولو حکم شوے دے۔

(۲۰) دَ قرآن او دَ سنتو ترمخه دریمه کفّاره (یعنی شپیتو مسکینانوله ډوډئ ورکول) به هغه سړے ورکوی څوک چه دَ دویمے کفّارے (یعنی دَ دوَو میاشتو مسلسلو روژو نیولو) طاقت نهٔ لری۔ دَ دے تفصیلی حکمونه لاندینی دی؛

(الف)۔ دَ څلورو وارو اِمامانو په نز په روژو باندِ دَ قدرت نهٔ لرلو مطلب دا دے چه سړے یا خودَ بوډا والی په وجه قدرت نهٔ لری، یا دَ مرض په وجه، یا په دے وجه چه هغه مسلسل دوَو میاشتو پورے دَ کوروالی نه پرهیز نهٔ شی کولے او دَ هغه سره دا یَرہ وی چه هسے نهٔ په دے دوران کښے بے صبری اُونهٔ کړی۔ دا درے وارہ عذرونه صحیح دی دَ هغه احادیثونه ثابت دی کوم چه دَ اَوّس بن صَامِت اَنصاری او دَ سَلَمہ بن صَخر بیاضی په معامله کښے راغلی دی۔ البته دَ مرض په معامله کښے دَ فقهاؤ په مینځ کښے څه لږشان ختلاف دے۔ حنفیان وائی چه دَ مرض عُذر به هله صحیح وی چه یا خودَ مرض دَ ختمیدو اُمید نهٔ وی، یا په روژو نیولو سره دَ مرض دَ زیاتید ویرہ وی۔ شافعیان وائی چه که چرے دَ روژو نیولو نه څه داسے سخت حالت په سړی راځی چه دَ هغے نه دا خطرہ راپیدا کیږی چه هسے نهٔ دَ دو میاشتو په دوران کښے چرته تسلسل ختم نهٔ شی، نو دا عُذر هم صحیح کیدے شی۔ مالکیان وائی چه که چرے دَ سړی غالب ګمان دا وی چه هغه به په راتلونکی وخت کښے دَ روژو نیولو قابل شی نو انتظار دِ اُوکړی، او که چرے غالب ګمان داسے نهٔ وی نو مسکینانوته دِ خوراک ورکړی۔ حنبلیان وائی چه په روژو نیولو سره دَ مرض دَ زیاتید ویرہ بالکل کافی عُذر دے۔

ب۔ خوراک به صرف هغه مسکینانوله ورکړے کیدے شی چه دَ هغوی نفقه په سړی واجب نهٔ وی۔

ج۔ حنفیان وائی چه خوراک مسلمان او ذمّی، دواړه قسمه مسکینانوله ورکړے کیدے شی، البته حربی او مستامن کافرانوته نهٔ شی ورکړے کیدے۔ دَ مالکیانو شافعیانو او حنبلیانو رائے دا ده چه مسلمانانو مسکینانوته ورکړے کیدے شی۔

د۔ په دے خبرہ اتفاق دے چه دَ خوراک ورکولو نه مُراد دوه وخته خوراک په مړہ خیټه ورکول دی۔ البته دَ خوراک ورکولو په مفهوم کښے اختلاف دے۔ حنفیان وائی چه دوه وخته پرسړے مړیږی هغومرہ غلّه ورکول، یا هغه غلّه دوه وخته ورکول، دواړہ یوشان صحیح دی۔ ځکه چه په قرآن کښے دَ اِطعام لفظ استعمال شوے دے چه دَ هغے مطلب خوراک ورکول هم دے او خوړول هم دے، لیکن مالکیان، شافعیان او حنبلیان دَ پخے غلّے خوړولوته صحیح نهٔ وائی بلکه غلّه ورکول ضروری ګنړی۔ په غلّه ورکولو کښے په دے خبرہ اتفاق دے چه هغه غلّه ورکول پکار دی چه هغه دَ هغه علاقے دَ عامو خلقو خوراک وی۔ او ټولو مسکینانوته برابر برابر ورکول پکار دی۔

ھ۔ دَ حنفیانو په نز که یو مسکین له شپیته وَرځے خوراک ورکړے شی نو دا هم صحیح ده، البته دا صحیح نهٔ ده چه په یوه ورځ هغه ته دَ شپیتو ورځو خوراک ورکړے شی۔ لیکن باقی درے واړه مذهبونه یو مسکین له ورکول صحیح نهٔ ګنړی۔ دَ هغوی په نز شپیتو مسکینانوله ورکول ضروری دی۔ او دا خبرہ په څلور واړو مذهبونو کښے جائز نهٔ ده چه شپیتو کسانوله د یو وخت او نورو شپیتو کسانوله دَ بل وخت خوراک ورکړے شی۔

و۔ دا خبرہ په څلور واړو مذهبونو کښے په یو مذهب کښے هم جائز نهٔ ده چه سړے دیرش

ذٰلِكَ لِتُؤْمِنُوْا بِاللّٰهِ وَ رَسُوْلِهٖ ؕ وَ تِلْكَ حُدُوْدُ اللّٰهِ ؕ وَ لِلْكٰفِرِیْنَ عَذَابٌ اَلِیْمٌ ۝۴ اِنَّ الَّذِیْنَ یُحَآدُّوْنَ اللّٰهَ وَ رَسُوْلَهٗ كُبِتُوْا كَمَا

دا حکم ځکه کیږي چه تاسو په الله اود هغه په رسول باندې ایمان راوړئ.[۱۲] دا د الله مقرر کړے شوی حدونه دی. او د کافرانو د پاره دردناکه سزا ده.[۱۳] کوم خلق چه د الله او د هغه د رسول مخالفت کوي هغوی به هغسے خوار

---

وُرځې روژے اُونیسی او دیرشو مسکینانو له خوراک ورکړي. دوه کفارے نهٔ شي جمع کیدے. که روژے نیسی نو پوره دوه میاشتې مسلسل روژے نیول پکار دی. او که خوراک ورکول وي نو شپیتو مسکینانو له دِ خوراک ورکړے شي.

ز. اګرچه په قرآن مجید د طعام د کفارے په حقله دا الفاظ نهٔ دی استعمال کړے شوی چه دا کفاره هم د لاس وروړلو نه مخکښې اداکول پکار دی، لیکن د مخکینی کلام نه دا اندازه معلومیږي چه د دے دریمے کفارے سره به هم دا شرط خامخا وي. دا وجه ده چه څلور واړو اِمامانو دے خبرې ته جائز نهٔ دی ویلې چه د طعام د کفارے په دوران کښې دِ سړے ښځې له ورشي. البته فرق دا دے چه که څوک دا سے اُوکړي نو د هغه په حقله د حنبلیانو دا حکم دے چه هغه به بیا د نوی سرنه خوراک ورکوي. او حنفیان په دے معامله کښې رعایت کوي، ځکه چه د دے دریمے کفارے په معامله کښې د مِنْ قَبْلِ اَنْ یَّتَمَآسَّا الفاظ نشته او په دے وجه په دے کښې د رعایت ګنجایش شته دے.

دا حکمونه د فقهې د لاندینو کتابونو نه راغستے شوی دی: حنفي فقه: هدایه. فتح القدیر. بدائع الصنائع. احکام القرآن للجصّاص. فقه شافعي: المنهاج للنّووي مع شرح مُغنی المحتاج. تفسیر کبیر. فقه مالکي: حاشیه الدّسوقی علی الشرح الکبیر. بدایة المجتهد. احکام القرآن ابن عربي. فقه حنبلي: المُغنی لابن قدامه. فقه ظاهري: المُحَلیٰ لابن حزم.

[۱۲] دلته د "ایمان راوړلو" نه مُراد رښتینی او مخلص مومن پشان عمل کول دی. ښکاره خبره ده چه په آیت کښې خبره کافرانو او مُشرکانو ته نهٔ ده، بلکه مسلمانانو ته ده چه د مخکښې نه ئے ایمان راوړے وُو. هغوی ته د شریعت د یو حکم اورولو نه روستو دا فرمائیل چه "دا حکم تاسو ته ځکه کیږي چه تاسو په الله اود هغه په رسول باندې ایمان راوړئ"، صفا دا معنیٰ لري چه کوم سړے د دے حکم د اوریدلو نه روستو هم د جاهلیت په رِیواجي قانون پسے روان وي نو د هغه دا عمل به د ایمان خلاف وي. د یو مومن دا کار نهٔ دے چه هرکله الله او د هغه رسول د ژوند په یوه معامله کښې د هغه د پارهٔ یو قانون مقرر کړي نو هغه دِ هغه پریږدي او د دُنیا په بل قانون پسے دِ روان شي، یا دِ د خپل نفس په خواهشاتو باندې عمل کوي.

[۱۳] دلته د کافرانو نه مُراد هغه انسان نهٔ دے چه هغه د خدائے او د رسالت نه مُنکر وي، بلکه هغه انسان ترِ مُراد دے چه هغه خدائے او رسول مني خو عمل ئے د کافر پشان وي. یعني د دے حکم دا مطلب دے چه په اصل کښې دا د کافرانو کار دے چه د الله او د هغه د رسُول د حکم اوریدو نه روستو هم خپله مرضا کوي، یا د جاهلیت په طریقو باندې روان وي. کنې نو چا چه د زړهٔ په صدق سره ایمان راوړے وي هغه هیڅکله دا سے نشي کولے. هم دا خبره په سورۃ آلِ عمران کښې

كُبِتَ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ وَقَدْ اَنْزَلْنَآ اٰيٰتٍۢ بَيِّنٰتٍ ؕ وَلِلْكٰفِرِيْنَ عَذَابٌ مُّهِيْنٌ ۝۵ يَوْمَ يَبْعَثُهُمُ اللّٰهُ جَمِيْعًا فَيُنَبِّئُهُمْ بِمَا عَمِلُوْا ؕ اَحْصٰىهُ اللّٰهُ وَنَسُوْهُ ؕ وَاللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ شَهِيْدٌ ۝۶ ع

او ذلیله کړے شی لکه څنګه چه دَ هغوی نه مخکینی خلق خوار او ذلیله کړے شوی دی.[۱۵] مونږ صفا صفا آیتونه نازل کړی دی، او دَ کافرانو دَ پاره دَ ذلّت عذاب دے.[۱۶] په هغه ورځ (به دا ذلّت عذاب وی) کله چه الله هغوی ټول راژوندی کړی او هغه هرڅه ورته اوښائی کوم چه هغوی کړی دی. دَ هغوی نه هیر شوی دی خو الله دَ هغوی ټول عملونه په شمار شمار سنبال ساتلی دی[۱۷] او الله په یو یو څیز باندِ نظر لرونکے دے. ع

دَ حج دَ فرضیت دَ حکم نه روستو فرمائیلے شوی دہ چه وَمَنْ كَفَرَ فَاِنَّ اللّٰهَ غَنِيٌّ عَنِ الْعٰلَمِيْنَ، "او چه څوک کفر اوکړی (یعنی په دے حکم عمل اونهٔ کړی) نو الله دَ دُنیا دَ خلقونه بے نیازه دے." په دے دواړو ځایونو کښے دَ کفر معنیٰ دا نهٔ ده چه کوم سړے دَ ظِهار کولو نه روستو کفاره ادا نهٔ کړی او دَ ښځے سره تعلق قایم اوساتی، یا دا خیال اوکړی چه دَ ظِهار سره ښځه طلاقه شوی ده، یا ئے طاقت کیږی او حج اونهٔ کړی، نو هغه ته دِ دَ شرعے قاضی کافر او مرتد اووائی او ټول مسلمانان دِ هغه دَ اسلام نه خارج اوګڼړی، بلکه دَ دے معنیٰ دا ده چه دَ الله تعالیٰ سره دا سے خلق په مومنانو کښے شمار نهٔ دی چه هغوی دَ الله حکم په قول یا په عمل سره رد کړی او دَ دے خبری هیڅ پروا اونهٔ لری چه دَ هغه پروردګار دَ هغه دَ پاره کوم حدُونه مقرر کړی دی، کوم څیزونه فرض کړی دی، کوم څیزونه حلال کړی دی او کوم څیزونه حرام کړی دی.

[۱۶] دَ مخالفت کولو نه مُراد دَ الله مقرر کړے شوی حدُونه نهٔ منل او دَ هغے په ځائے څه نور حدُونه مقرر وَل دی. ابن جریر طَبَری دَ دے ایت دا تفسیر کوی، اَیْ يُخَالِفُوْنَ فِيْ حُدُوْدِهٖ وَفَرَائِضِهٖ فَيَجْعَلُوْنَ حُدُوْدًا غَيْرَ حُدُوْدِهٖ. "یعنی هغه خلق چه هغوی دَ الله دَ حدُونو او دَ هغه دَ فرائضو په معامله کښے دَ هغه مخالفت کوی او دَ هغه دَ مقرر کړے شوو حدونو په ځائے نور حدُونه مقرروِی." بیضاوی دَ دے تفسیر دا کړے دے، ای یعادونهما و یشاقونهما او یضعون او یختارون حدودا غیر حدودهما. "یعنی دَ الله او دَ هغه دَ رسُول سره دُشمنی او جګړه کوی، یا دَ هغه دَ مقرر کړے شوو حدُونو نه سوا نور حدونه څخپله جوړوِی، یا دَ بل چا جوړ کړے شوی حدُونه اختیاروِی." آلوسی په رُوح المعانی کښے دَ بیضاوی دَ دے تفسیر سره اتفاق کړے دے او دَ شیخ الاسلام سعدالله چلپی دا قول ئے نقل کړے دے چه "په دے آیت کښے دَ هغه بادشاهانو او حاکمانو دَ پاره سخت وعید دے چه هغوی دَ شریعت دَ مقرر کړے شوو حدُونو خلاف ډیر حکمونه دَ ځان نه جوړ کړی دی او هغے له ئے دَ قانون مرتبه ورکړی ده." دلته علامه آلوسی دَ شرعی قانون

## اَلَمْ تَرَ اَنَّ اللّٰهَ يَعْلَمُ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ ۭ مَا يَكُوْنُ

آیا نهٔ خبر نهٔ یې چه دَ زمکے او آسمانونو دَ هر څیز علم الله ته دے[۱۹] هیڅکله داسے نهٔ وی چه

په مقابله کښے دَ جوړکړے شوی قانون په آئینی (یعنی دَ اسلام په نظر سره په آئینی) حیثیت باندِ بنه په تفصیل سره بحث کړے دے او لیکی:

«دَ هغه سړی په کفر کښے خو هیڅ شک نشته چه دِ ے قانون (یعنی دَ ځان نه جوړ کړے شوی قانون) ته بنه او دَ شریعت په مقابله کښے غوره وائی، او وائی چه دا دیرۀ حکمت نه ډک دے او دَ قوم دَ پاره زیات مناسب او موزون دے، او هر کله چه په یوه معامله کښے هغه ته اُوویلے شی چه دَ شریعت حکم په دے باره کښے داد ے نو په هغے باندِ غصّه شی، لکه څنګه چه موږ ه ځینی هغه کسان لیدلی دی څوک چه دَ الله په لعنت کښے پراته دی.»

۱۵ په اصل کښے لفظ کُبِتُ استعمال شوے دے چه معنیٰ یې دهٔ رسوا کول، هَلاکول، لعنت لیږل، دَ دربار نه شړل، په دیکو دیکو بهرا یستل، خوار او ذلیله کول. دَ آیت مُدّعا دا ده چه دَ الله او دَ هغه دَ رسول دَ مخالفت کولو او دَ هغه دَ حکمونو نه دَ بغاوت کولو چه کوم انجام دَ مخکینو پیغمبرانو اُمّتونو لیدلے دے دَ هغے نه به هغه مسلمانان هرګز بچ نشی چا چه دَ هغوی پشان لار خپله کړه. هغوی چه کله دَ خدائے دَ شریعت نه خلاف بخپله قانون جوړ کړو، یا یې دَ بل چا جوړ کړے قانون خوښ کړو نو پس دَ هغے هغوی دَ الله دَ فضل او مهربانئ نه محرومه شو، او دَ هغے نتیجه دا شوه چه دَ هغوی په ژوند کښے داسے ګمراهی، بد عملی او بد اخلاقی شروع شوه چه آخر هغوی یې هم په دے دُنیا کښے خوار او ذلیله پاتے کړل. اُوس که چرے هم دا غلطی دَ محمد اُمّتیانو اُوکړه نو دا کید ے نشی چه دوئ به دَ خدائے په دربار کښے مقبول وی او خدائے به یې دَ ذلّت کندِ ے ته دَ غورزیدو نه ساتی. دَ الله تعالیٰ نهٔ دَ مخکینو رسولانو دَ اُمّتیانو سره څه دُشمنی وه او نهٔ یې دَ دے رسول دَ اُمّتیانو سره څه خاصه رشته ده.

۱۶ په وړاندِ روستو عبارت باندِ چه سړے غور اُوکړی نو دا خبره ترِ معلومیږی چه د لته دَ دے عمل دَ دوؤ سزاګانو ذکر دے. یو کُبِت، یعنی هغه خواری او رسوائی چه په دے دُنیا کښے اُوشوه او وِی به. دوریم عذابِ مُهین، یعنی دَ ذلّت هغه عذاب چه په آخرت کښے به وی.

۱۷ یعنی دَ هغوی په هیرولو سره معامله ختمه شوی نهٔ ده. دَ هغوی دَ پاره دَ خدائے نافرمانی او دَ خدائے دَ حکمونو خلاف ورزی یو داسے معمولی څیز کیدے شی چه یاد قدر له یې هم اُونهٔ ساتی، بلکه هدو ګناه یې هم اُونهٔ ګنړی چه کښی څه پروا یې اُولری. لیکن دَ خدائے په نز دا څه معمولی څیز نهٔ دے. دَ هغه سره دَ هغوئ هر عمل لیکلے شوے دے. کوم سړی چه کله او په کوم ځائے کښے، یو کار اُوکړو، دَ هغه کار نه روستو دَ هغه خپل رَدّ عمل څه وُو او دَ هغه دَ عمل نتیجے په کوم کوم ځائے کښے او په کوم شکل کښے را اُووتے، دا ټول هر څه دَ الله په دفتر کښے لیکلے شوی دی.

۱۸ دَ دے ځائے نه دَ لسم آیت پورے مُسلسل دَ منافقانو په هغه عمل بحث شوے دے کوم چه هغوی په هغه وخت کښے

مِنْ نَّجْوٰى ثَلٰثَةٍ اِلَّا هُوَ رَابِعُهُمْ وَلَا خَمْسَةٍ اِلَّا هُوَ سَادِسُهُمْ وَلَآ اَدْنٰى مِنْ ذٰلِكَ وَلَآ اَكْثَرَ اِلَّا هُوَ مَعَهُمْ اَيْنَ مَا كَانُوْا ۚ ثُمَّ يُنَبِّئُهُمْ بِمَا عَمِلُوْا يَوْمَ الْقِيٰمَةِ ۗ اِنَّ اللّٰهَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمٌ ۝ اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِيْنَ نُهُوْا عَنِ النَّجْوٰى ثُمَّ يَعُوْدُوْنَ لِمَا نُهُوْا

دَ دريو کسانو ترمنځه دَ غوږ خبرې وي او الله ورسره څلورم نهٔ وي، يا دَ پنځو کسانو ترمنځه دَ غوږ خبرې وي او الله ورسره شپږم نهٔ وي[۱۹] ـ څوک چه پټې خبرې کوي خواه که هغه دَ دې نه کم وي او که زيات، او په هرځائے کښے چه وي، الله دَ هغوي سره وي[۲۰] ـ بيا به دَ قيامت په ورځ الله هغوئ ته اُوښائي چه هغوئ څه عملونه کړي دي ـ الله دَ هر څيز علم لري ـ آيا تا اُونهٔ ليدل هغه خلق چه هغوي دَ غوږ دَ خبرونه منع کړے شوي وُو بيا هم هغوي هغه کار کوي چه دَ کوم نه

په مسلمانانو کښے شروع کړے وُو ـ هغوئ په ظاهره دَ مسلمانانو په ډله کښے شامل وُو، خود ننه دننه ئے دَ مومنانو نه جُدا يوه ډله جوړه کړې وه ـ مسلمانانو به هر وخت هغوي ليدل چه يو بل ته به ئے سرونه نژدے کړي وُو او دَ غوږ خبرې به ئے کولے ـ په دے خبرو کښے به هغوئ په مسلمانانو کښے دَ بے اتفاقئ پيدا کولو او دَ فتنے راپورته کولو او دَ يرے خورَولو قِسما قِسم منصوبے جوړولے او نوي نوي افواګانے به ئے خورَولے ـ

[۱۹] دا خبره په زړه کښے راځي چه دلته ئے دَ دوو او دَ دريو په ځائے دَ دريو او پنځو په څه وجه ويلي دي ؟ اولني دوه او بيا څلورم ئے ولے پريښودي دي؟ مفسرينو دَ دے ډير جوابونه کړي دي، ليکن زمونږ په نزد صحيح خبره داده چه دا قِسم بيان په اصل کښے دَ قرآن مجيد دَ عبارت دَ ادبي حُسن دَ برقرار ساتلو دَ پاره اختيار کړے شوے دے ـ که چرے دا سے طرز نهٔ وے اختيار کړے شوے نو عبارت به داسے وے : مَا يَكُوْنُ مِنْ نَّجْوٰى اثْنَيْنِ اِلَّا هُوَ ثَالِثُهُمْ وَلَا ثَلٰثَةٍ اِلَّا هُوَ رَابِعُهُمْ په دے کښے به نَجْوٰى اثْنَيْنِ هم څه بنايسته ترکيب نهٔ وے او ثَالِثُ او ثَلٰثَةٍ به هم په يو بل پسے بے مزے وے ـ هم دا بدرنګي به دَ اِلَّا هُوَ رَابِعُهُمْ نه روستو په وَلَا اَرْبَعَةٍ ويناکښے هم وے ـ په دے وجه دَ دريو او دَ پنځو کسانو ذکر کولو نه روستو په دويمه فقره کښے دا کمے په دے وينا سره پوره کړے شو چه وَلَآ اَدْنٰى مِنْ ذٰلِكَ وَلَآ اَكْثَرَ اِلَّا هُوَ مَعَهُمْ ، کوم کسان چه پټے خبرې کوي هغوئ که دَ دريو نه کم وي يا دَ پنځو نه زيات، په هرحال کښے الله دَ هغوئ سره موجود وي ـ

[۲۰] دا ملګرتيا په حقيقت کښے دَ الله تعالیٰ دَ عليم او خبير، دَ سميع او بصير او دَ قادر مطلق په حيثيت سره ده، نهٔ چه معاذالله په دے معنیٰ کښے ده چه الله کښی يو کس دے چه دَ پنځو کسانو په منځ کښے دَ شپږم کس په حيثيت سره چرته پټ ناست وي ـ په اصل کښے دَ دے وينا مقصد دا دے چه دَ خلقو سره دا فکر پيدا شي چه که هغوئ هرڅو مره په محفوظ ځايونو کښے پټے خبرې کوي، دَ هغوي خبرې دَ هغوئ دَ نيږ نه

عَنْهُ وَيَتَنٰجَوْنَ بِالْاِثْمِ وَالْعُدْوَانِ وَمَعْصِيَتِ الرَّسُوْلِ ۫ وَاِذَا جَآءُوْكَ حَيَّوْكَ بِمَا لَمْ يُحَيِّكَ بِهِ اللّٰهُ ۙ وَيَقُوْلُوْنَ فِيْٓ اَنْفُسِهِمْ لَوْلَا يُعَذِّبُنَا اللّٰهُ بِمَا نَقُوْلُ ؕ حَسْبُهُمْ جَهَنَّمُ ۚ يَصْلَوْنَهَا ۚ فَبِئْسَ الْمَصِيْرُ ۝۸

هغوی منع کړے شوی وُو؟[21] دا خلق په خپل منځ کښے پټے پټے دَ ګناه او دَ زیاتی او دَ رسول دَ نا فرمانئ خبرې کوی، او چه کله ستا خواله راځی نو تا ته په هغه طریقه سلام کوی چه په کومه طریقه الله په تا باندِ سلام نهٔ دے کړے[22] او په خپلو زړونو کښے وائی چه زمونږه په دے خبرو باندِ الله مونږ له عذاب وَلے نهٔ راکوی[23] - دَ هغوی دَ پاره دوزخ کافی دے - هم دَ هغے خشاک به وی - ډیر خراب انجام دے دَ هغوی

پټید ے شی خو دَ الله نه نشی پټید ے، او هغوئ دَ دُنیا دَ هر طاقت نه بچ کید ے شی خو دَ الله دَ ګرفت نه نشی بچ کید ے -

[21] دَ دے نه معلومیږی چه دَ دے آیت دَ نازلیدو نه مخکښے نبی صلی الله علیه وسلّم هغوی دَ دے قِسم کار نه منع کړی وُو، په دے باندِ هم چه کله هغوی منع نهٔ شو نو پس دَ هغے پرِ نیغ په نیغه دَ الله دَ طرفنه دا دَ قهر فرمان نازل شو -

[22] دا دَ یهودیانو او دَ منافقانو شریکه طریقه وه - په ګڼو روایتونو کښے دا خبره راغلی ده چه څهٔ یهودیان دَ نبی صلی الله علیه وسلّم په خدمت کښے حاضر شو او هغوی اُوویئیل چه السام علیك یا ابا القاسم - یعنی السلام علیك ئے په داسے انداز اُووے چه اَوریدونکے وائی چه سلام ئے اُووے، حو په اصل کښے هغوی سام ویئیلے وُو چه معنیٰ ئے ده مرګ - په جواب کښے نبیؐ اُوفرمائیل علیکم - حضرت عائشهؓ پینګه نهٔ شوه او ورته ئے اُوویئیل چه مرګ دِ تاسو له راشی او په تاسو دِ دَ الله لعنت وی - نبیؐ حضرت عائشےؓ ته اُوفرمائیل، بَده خُله خو زَړل دَ الله خوښه نهٔ ده - حضرت عائشےؓ عرض اُوکړو چه اے دَ الله رسوله، تا وا نَوریدل چه هغوی څه اُوویئیل؟ نبیؐ اُوفرمائیل او تا وا نَوریدل چه ما ورله څه جواب ورکړو؟ ما هغوئ ته اُوویئیل " او په تاسو دِ هم وی" (بخاری، مسلم، ابن جریر، ابن ابی حاتم) - دَ حضرت عبدالله بن عباس بیان دے چه منافقانو او یهودیانو دواړو دَ سلام دا طریقه اختیار کړی وه (ابن جریر) -

[23] یعنی هغوی په خپل نز دا خبره دَ دے دَ پاره دَ لیل ګڼړلو چه محمّد رسول نهٔ دے - دَ هغوی دا خیال وُو چه که چرے دے رسول وے نو څه وخت چه مونږه هغه ته په داسے طریقه سلام کړے وے نو په هغه وخت به په مونږه عذاب راغلے وے - اُوس چونکه عذاب نهٔ راځی، او مونږه شپه ورځ دغسے کوُو، نو معلومه شوه چه دا رسول نهٔ دے -

يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ إِذَا تَنَٰجَيْتُمْ فَلَا تَتَنَٰجَوْاْ بِٱلْإِثْمِ وَٱلْعُدْوَٰنِ وَمَعْصِيَتِ ٱلرَّسُولِ وَتَنَٰجَوْاْ بِٱلْبِرِّ وَٱلتَّقْوَىٰ ۖ وَٱتَّقُواْ ٱللَّهَ ٱلَّذِىٓ إِلَيْهِ تُحْشَرُونَ ﴿٩﴾ إِنَّمَا ٱلنَّجْوَىٰ مِنَ ٱلشَّيْطَٰنِ لِيَحْزُنَ ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ وَلَيْسَ بِضَآرِّهِمْ شَيْـًٔا إِلَّا بِإِذْنِ ٱللَّهِ ۚ وَعَلَى ٱللَّهِ فَلْيَتَوَكَّلِ

اے هغو خلقو چه ایمان مو راوړے دے، کله چه تاسو په خپل منځ کښے پټے پټے خبرې کوئ نو دَ گناه او دَ زیاتی او دَ رسول دَ نافرمانئ خبرې مه کوئ بلکه دَ نیکئ او دَ تقوی خبرې کوئ او دَ هغه خدائے نه یره کوئ چه هغه ته به تاسو په حشر کښے پیش کیږئ[۲۴]۔ دَ غوږ خبرې خو یو شیطانی کار دے، او دا دَ دے دَ پاره کیږی چه مومنان خلق پرے غمژن شی حالانکه بغیر دَ خدائے دَ اجازت نه هغه هغوی ته هیڅ نقصان هم نشی رسولے او مومنانو له په الله باندې بروسه ساتل

[۲۴] دَ دے نه معلومه شوه چه نجوی (یعنی په خپل منځ کښے دَ راز خبرې کول) څه منع نهٔ دی، بلکه دَ دے دَ جائز کیدو یا ناجائز کیدو دارومدار دَ هغه خلقو په عمل باندے دے څوک چه دا سے خبرې اوکړی، او په هغه حالاتو باندے دے چه په کومو حالاتو کښے دا سے خبرې اوشی، او دَ هغه خبرو په نوعیت باندے دے کومے چه په دے طریقه اوشی۔ دَ کومو خلقو اخلاص او صداقت او پاک عمل چه خلقو ته معلوم وی، هغوی چه په یو ځائے کښے سرونه یو ځائے کړی وی او خبرې کوی نو دَ هیچا دا شک نهٔ پیدا کیږی چه هغوی گنی څه دَ شرارت منصوبه جوړوی۔ دَ دے برخلاف دَ کومو کسانو شر او بد عملی چه خلقو ته معلومه وی، هغوی چه دَ غوږ خبرې کوی نو دَ هر سړی په زړه کښے دا شک راپیدا کیږی چه ضرور دَ څه نوے فتنے تیاری شروع ده۔ دَ غه شان چه چرته اتفاقی طور دوه څلور کسان په خپلو کښے په څه معامله باندے په پټ انداز کښے خبرې اوکړی نو دا قابل اعتراض خبره نهٔ ده۔ لیکن که څه کسانو ځان له خپله یوه ډله جوړه کړی وی او دَ هغوی مستقل کردار وی چه همیشه دَ مسلمانانو نه جُدا په خپل منځ کښے پټے پټے خبرې کوی نو دا لازماً دَ خرابئ بنیاد دے۔ که نور هیڅ نهٔ وی نو کم نه کم نقصان ئے دا دے چه په دے سره په مسلمانانو کښے دَ پارټی بازئ بیماری خوریږی۔ دَ دے ټولو نه زیات چه کوم څیز دَ نجوی دَ جائز کیدو او ناجائز کیدو فیصله کوی هغه دَ هغه خبرو نوعیت دے کومے چه دَ نجوی کښے اوکړے شی۔ دوه کسان که دَ دے دَ پاره په خپل منځ کښے پټے خبرې کوی چه دَ یو جګړه فیصله اوکړی، یا چاله حق ورکړی، یا په یو نیک کار کښے حصه واخلی، نو دا څه بد کار نهٔ دے بلکه دَ ثواب کار دے۔ دَ دے برعکس که دوه کسان دَ دے غرض دَ پاره پټے خبرې کوی چه څه فساد راپورته کړی، یا دَ چا حق اووهی، یا دَ گناه څه کار اوکړی، نو ښکاره خبره ده چه دا یو بد کار دے او دَ دے دَ پاره نجوی کول دَ بد و دَ پاسه بد کار دے۔

نبی صلی الله علیه وسلم چه په دے سلسله کښے دَ مجلس کوم آداب ښودلی دی هغه دا دی چه اذا کنتم ثلاثة فلا یتناجی اثنان دون صاحبهما فان ذالك یحزنه۔ "چه درے کسان ناست وی نو دوه کسان دِ په خپلو کښے

الْمُؤْمِنُونَ ⑩ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِذَا قِيْلَ لَكُمْ تَفَسَّحُوْا فِى الْمَجٰلِسِ فَافْسَحُوْا يَفْسَحِ اللّٰهُ لَكُمْ ۚ وَاِذَا قِيْلَ انْشُزُوْا فَانْشُزُوْا

پکاردی[25]۔

اے مومنانو، کله چه تاسوته اُووئیلے شی چه په خپلو مجلسونوکښے فراخی پیداکړئ نو ځائے فراخه کوئ، الله به تاسوته فراخی نصیب کړی[26]۔ اوکله چه تاسوته اووئیلے شی چه پاسئ نو پاسئ[27]

پټے پټے خبری نهٔ کوی، ځکه چه دا به دَ دریم کس دَ خمږن کیدو سبب وی" (بخاری۔ مُسلم۔ مُسند احمد ۔ ترمذی ۔ ابوداوُد)۔ په دویم حدیث کښے دَ نبیؐ الفاظ دادی فلا یتنا جی اثنان دون الثالث الا باذنه فان ذالك يحزنه۔" دوه کسان دِ دَ دریم دَ اجازت نه بغیر په خپلو کښے پټے پټے خبری نهٔ کوی، ځکه چه دا به دَ هغه دَ غمږن کیدو دَ پاره سبب شی" (مسلم)۔ دِ ے ته هم ناجائزه نجوٰی وئیلے شی چه دوه کسان دَ دریم سړی په موجودگۍ کښے په داسے ژبه کښے خبری شروع کړی چه هغه پرنهٔ پوهیږی۔ اودَ دے نه هم زیاته ناجائزه خبره داده چه هغوی دَ غوږن دَ خبرو په دوران کښے ځانته په داسے طریقه اُوګوری یا داسے اشارے اوکړی چه دَ هغے نه دا معلومه شی چه دَ هغوی په منځ کښے بحث هم دَ هغه کیږی۔

[25] داخبره دَ دے دَپاره شوی ده چه که چرے یو مسلمانانه دَچا دَ غوږن دَ خبرو نه دا شک هم راپیدا شی چه هغه دَ هغه خلاف کیږی خو بیا هم هغه له دومره غمږن کیدل نهٔ دی پکار چه تش په شک باندِ جوابی کارروائی فکر شروع کړی، یا په خپل زړه کښے په هغے باندِ دَ غم یا دَ کینے یا دَ لوئے پریشانئ بُنیاد کیږدی۔ هغه له په دِ ے خبره یقین پکار دے چه دَ الله دَ اجازت نه بغیر هیڅوک دَ هغهٔ هیڅ نشی کولے۔ دا یقین به دَ هغه په زړه کښے داسے طاقت راپیدا کړی چه دَ ډیرو فضولو فکرونو او خیالی خطرونه به هغه خلاص شی اودَ شریرانو خلقو به هیڅ پروانهٔ لری اوبه په اطمینان او آرام سره به خپل کار کوی کوم مومن چه په الله باندِ بروسه لری هغه نه تلوار کونکے وی چه په هرِ خبرِ پریشانه کیږی، او نهٔ کچه انسان وی چه دَ غلطو خلقو په مقابله کښے په غصّه شی او په خپله هم دَ بے انصافۍ کارونه شروع کړی۔

[26] دَ دے تشریح دَ سورة په دیباچه کښے شوی ده۔ ځینو مفسّرینو دا حکم صرف دَ نبی صلی الله علیه وسلّم دَ مجلس پورے محدود ګنړلے دے۔ لیکن لکه ځنګه چه امام مالکؒ فرمائیلی دی، صحیح خبره داده چه دَ مسلمانانو دَ ټولو مجلسونو دَپاره دا یو عام هدایت دے۔ الله اودَ هغه رسول چه مسلمانانو ته کوم آداب ښودلی دی په هغے کښے یوه خبره دا هم ده چه هر کله په یو مجلس کښے دَ اوّل نه څوک ناست وی او زوستو څوک نور خلق راشی نو اولنو خلقو له پکار دی چه هغوی پخپله غونډه راغونډه شی او نوُو راتلونکو خلقو ته ځائے پریږدی، او روستو راتلونکو خلقو له هم پکار دی چه هغوی دَ بل دَ پاسولو اودَ هغه په ځائے دَ کیناستو کوشش نهٔ کوی۔ په حدیث کښے دَ عبدالله بن عمرؓ اودَ حضرت ابوهریرهؓ روایت دے چه نبی صلی الله علیه وسلّم فرمائی لا یقیم الرجل الرجل من مجلسه

يَرْفَعِ اللّٰهُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مِنْكُمْ ۙ وَالَّذِيْنَ اُوْتُوا الْعِلْمَ دَرَجٰتٍ ؕ وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرٌ ﴿۱۱﴾ يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْۤا اِذَا نَاجَيْتُمُ الرَّسُوْلَ فَقَدِّمُوْا بَيْنَ يَدَيْ نَجْوٰىكُمْ صَدَقَةً ؕ ذٰلِكَ

په تاسوکښې چه کوم خلق ایماندار دی او علم ورکړے شوے دے ، الله به هغوی له اُوچتے مرتبے ورکړی ،[۲۸] او څه چه تاسو کوئ الله د هغې نه خبر دے ۔

اے هغه خلقو چه ایمان مو راوړے دے ، تاسو چه کله د رسول سره پټے خبرې کوئ نو د خبرو کولو نه مخکښې څه صدقه ورکوئ[۲۹] ۔ دا کار

فیجلس فیه ولکن تفسحوا وتوسعوا۔" هیڅوک دِ بل د خپل ځائے نه نۀ پاسَوی بلکه تاسو څپله د بل د پاره ځائے فراښه کوئ ." ( مُسندِ احمد ۔ بخاری ۔ مُسلم) ۔ اود حضرت عبدالله بن عمرو بن عاص روایت دے چه نبیؐ فرمائی : لا یحل لرجل ان یفرق بین اثنین الا باذ نهما۔ "د هیچا د پاره دا حلال نۀ دی چه د دوو کسانو په منځ کښے د هغوی د اجازت نه بغیر ورننوزی ." ( مُسندِ احمد ، ابوداؤد ۔ ترمذی ) ۔

[۲۷] د عبدالرحمٰن بن زید بن اسلم بیان دے چه خلق به د نبی صلی الله علیه وسلّم په مجلس کښے د ډیر وخته پورے ناست وُو او د هغوی به دا کوشش وُو چه د آخر وخته پورے کینی ۔ د دے نه به اکثر نبیؐ ته تکلیف وُو ، د هغه په آرام کښے به هم خلل راتلو او په کارونو کښے به هم ۔ په دے بانذِ دا حکم نازل شو چه کله تاسو ته اُوویلے شی چه پاسئ نو بیا پاسئ (ابن جریر و ابن کثیر) ۔

[۲۸] یعنی دا مه گنړئ چه که چرے تاسو د رسول الله صلی الله علیه وسلّم په مجلس کښے بل چا له د ځائے د ورکولو د خاطره د نبیؐ نه لرے لرے کیناستئ نو کښې ستاسو مرتبه کمه کړے شوه ، یا که د مجلس د ختمیدو نه روستو تاسو ته د پاسیدو د پاره اُوویلے شو نو کښې ستاسو ذِلّت اُوشو ۔ د مرتبے د اُوچتیدو اصل ذریعه ایمان او علم دے نۀ دا چه چا ته په مجلس کښے د رسول الله صلی الله علیه وسلم خوا ته د نزدے کیناستو موقع مِلاؤ شوه ، یا څوک د ډیر وخته پورے د هغه په مجلس کښے کیناستو نو کښې د هغه مرتبه اُوچته شوه ۔ اُوچته مرتبه به د هغه چاوی چانه چه د ایمان او د علم دولت زیات ملاؤ شوه ۔ د غه شان څوک چه د زیات وخت پورے کیناستو او د الله رسول له ئے تکلیف ورکړو نو هغه اُلټا د جهالت کار اُوکړو ۔ د هغه په مرتبه کښے به تش په دے خبره زیاتے نۀ راځی چه هغه ته د ډیر وخته پورے د نبیؐ سره د کیناستو موقع مِلاؤ شوه ۔ د دے نه زیاته اُوچته مرتبه د الله سره د هغه چا ده چه د نبیؐ د مجلس نه د ایمان او د علم سرمایه حاصله کړه او هغه اخلاق ئے زده کړل کوم چه یو مومن له پکار دی ۔

[۲۹] حضرت عبدالله د دے حکم دا وجه بیانوی چه مسلمانانو د رسول الله صلی الله علیه وسلّم نه ډیرے زیاتے خبرے ( یعنی د پټو خبرو ) تپوسل شروع کړی وُو تر دے پورے چه رسولؐ ئے تنگ کړو ۔ آخر دا چه الله تعالی دا اُوغوښتل چه د خپل نبی نه دا بوج سپک کړی ( ابن جریر ) زید بن اسلم

خَيْرٌ لَّكُمْ وَاَطْهَرُ ۚ فَاِنْ لَّمْ تَجِدُوْا فَاِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿۱۲﴾ ءَاَشْفَقْتُمْ اَنْ تُقَدِّمُوْا بَيْنَ يَدَيْ نَجْوٰىكُمْ صَدَقٰتٍ ۚ فَاِذْ لَمْ تَفْعَلُوْا وَتَابَ اللّٰهُ عَلَيْكُمْ فَاَقِيْمُوا الصَّلٰوةَ وَاٰتُوا الزَّكٰوةَ وَاَطِيْعُوا اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ ۚ وَاللّٰهُ خَبِيْرٌۢ بِمَا تَعْمَلُوْنَ ﴿۱۳﴾ ع



ستاسو دَ پاره بهتر دے او زیات پاکیزه دے۔ البته که چرے تاسو دَ صدقے ورکولو دَ پاره څه بیا نهٔ مومئ نو الله بخښونکے مهربانه دے۔

آیا تاسو دَ دے خبری نه اُویریدئ چه دَ غوږ دَ خبرو کولو نه مخکښے به تاسو صدقے ورکوئ؟ بنهٔ نو که تاسو داسے نهٔ کوئ ———— او الله تاسو دَ نه معاف کړئ ———— نو مونځ قائموئ، زکوٰة ورکوئ او دَ الله او دَ هغه دَ رسول اِطاعت کوئ۔ تاسو چه څه کوئ الله دَ هغے نه خبر دے[۳۰]۔ ع

وائی چه نبی صلی الله علیه وسلّم ته به چا درخواست اُوکړو چه څما سره ځان له خبری اُوکړه نو هغه به ئے نهٔ رَدّ کوُو۔ چه چا به غوښتله هغه به را تلو او عرض به ئے کولو چه څه درسره لږ شان ځان له خبری کول غواړم، او هغه به موقع ورکوله، اَن تر دے پورے چه ډیرو خلقو به هغه دَ داسے خبرو دَ پاره هم دَ خلقو نه جُدا کولو چه په هغے کښے به دَ جُدا کولو هیڅ حاجت نهٔ وُو۔ دا هغه زمانه وه چه ټول عرب دَ مدینے خلاف جنګید لو په څینو ورختونو کښے چه به دا قِسم دَ غوږ خبری اُوشوے نو شیطان به دَ خلقو په غوږونو کښے دا خبره واچوله چه دهٔ دَ فلانئ قبیلے دَ طرفنه دَ حملے کولو خبر راوړے وُو او په دے سره به په مدینه کښے دا نوا کانو بازار ګرم شو۔ بل طرفته به دَ خلقو دَ دے حرکت دَ وجے نه منافقانو ته دَ دے وینا موقع مِلاویدله چه محمد صلی الله علیه وسلم خو په غوږونو کچه دے دَ هر چا خبره اَوری۔ په دے وجه الله تعالیٰ دا پابندی اُولګوله چه څوک ستا سره پټ دَ غوږ خبری کول غواړی نو هغوی دِ اوّل صدقه ورکړی (احکام القرآن لابن العربی)۔ قتاده وائی چه څینو خلقو به په بل باندِ دَ ځان غټ حسابولو دَ پاره هم دَ نبیؐ سره ځان له جُدا خبری کولے۔

حضرت علیؓ فرمائی چه کله دا حکم راغے نو نبیؐ څما نه تپوس اُوکړو چه څومره صدقه مقرر کړے شی؟ یو دینار؟ ما عرض اُوکړو چه دا خلق نهٔ شی ورکولے۔ نبیؐ اُوفرمائیل چه نیم دینار؟ ما عرض اُوکړو چه خلق دا هم نشی ورکولے۔ بیا ئے اُوفرمائیل چه څومره؟ ما عرض اُوکړو بس دَ یوے وربشے هومره سره زر۔ وے فرمائیل اِنّكَ لزهید، یعنی تا خو ډیر کم مقدار مشوره راکړه۔ (ابن جریر، ترمذی، مُسند ابو یَعلیٰ) په یو بل روایت کښے حضرت علیؓ فرمائی چه دا دَ قرآن یو داسے آیت دے چه په دے باندِ څما نه سِوا بل چا عمل نهٔ

اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِيْنَ تَوَلَّوْا قَوْمًا غَضِبَ اللّٰهُ عَلَيْهِمْ ؕ مَا هُمْ مِّنْكُمْ وَلَا مِنْهُمْ ۙ وَيَحْلِفُوْنَ عَلَى الْكَذِبِ وَهُمْ يَعْلَمُوْنَ ﴿۱۴﴾ اَعَدَّ اللّٰهُ لَهُمْ عَذَابًا شَدِيْدًا ؕ اِنَّهُمْ سَآءَ مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿۱۵﴾ اِتَّخَذُوْۤا اَيْمَانَهُمْ جُنَّةً فَصَدُّوْا عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ فَلَهُمْ عَذَابٌ مُّهِيْنٌ ﴿۱۶﴾ لَنْ تُغْنِيَ عَنْهُمْ اَمْوَالُهُمْ وَلَاۤ اَوْلَادُهُمْ مِّنَ اللّٰهِ

---

آیا تا او نهٔ لیدل هغه خلق چه دا کسان ئے دوستان جوړ کړی دی چه په هغوی دَ الله غضب شوے دے؟[۳۱] هغوی نهٔ ستاسو دی او نهٔ دَ هغوی،[۳۲] او هغوی قصداً په دروغه قسمونه خوری.[۳۳] الله دَ هغوئ دَ پاره سخت عذاب تیار ساتلے دے، ډیر خراب کارونه دی هغه چه هغوئ ئے کوی. هغوی دَ خپلو قسمونونه ډال جوړ کړے دے چه دَ هغې په پناه کښے دَ الله دَ لارے نه خلق منع کوی،[۳۴] په دے باندې دَ هغوئ دَ پاره دَ ذلت عذاب دے. دَ الله نه دَ بچ کولو دَ پاره به نهٔ دَ هغوئ مالونه څه پکار راشی او نهٔ دَ هغوی اَولاد

---

دے کړے. دَ دے حکم دَ راتلو سره ما صدقه پیش کړه او دَ نبیؐ نه مے دَ یو مسئلے تپوس اُوکړو (ابن جریر، حاکم، ابن المُنذِر، عبد بن حُمَید).

[۳۰] دا دویم حکم دَ پاسنی حکم نه لږ موده پس نازل شو او په دے سره دَ صدقے ورکولو حکم منسوخ شو. په دے خبره کښے اختلاف دے چه دَ صدقے دا حکم څومره موده وُو. قتاده وائی چه دَ یوے ورځے نه هم دَ کم وخته پورے وُو بیا منسوخ کړے شو. مقاتل بن حیّان وائی چه دَ لسو ورځو پورے وُو. دا دَ زیاتو نه زیاته موده ده چه دَ دے حکم دَ باقی پاتے کیدو په حقله په دے روایت کښے بیان شوی ده.

[۳۱] اِشاره ده دَ مدینے یهودیانو ته چه منافقانو ځان له دوستان جوړ کړی وُو.

[۳۲] یعنی دَ اخلاص تعلق نهٔ دَ هغوی دَ مومنانو سره شته او نهٔ دَ یهودیانو سره. دَ دواړو سره هغوئ تش دَ خپلو غرضونو دَ پاره تعلقات جوړ کړی دی.

[۳۳] یعنی په دے خبره باندې چه هغوی ایمان راوړے دے او محمد صلی الله علیه وسلّم ئے خپل مشر منلے دے او دَ اسلام او دَ مسلمانانو وفادار دی.

[۳۴] مطلب دا دے چه یو طرفته خو هغوی دَ خپل ایمان او دَ خپلے وفادارئ قسمونه خوری او

شَیْـًٔا ؕ اُولٰٓئِکَ اَصْحٰبُ النَّارِ ؕ ہُمْ فِیْہَا خٰلِدُوْنَ ﴿۱۷﴾ یَوْمَ یَبْعَثُہُمُ اللّٰہُ جَمِیْعًا فَیَحْلِفُوْنَ لَہٗ کَمَا یَحْلِفُوْنَ لَکُمْ وَ یَحْسَبُوْنَ اَنَّہُمْ عَلٰی شَیْءٍ ؕ اَلَاۤ اِنَّہُمْ ہُمُ الْکٰذِبُوْنَ ﴿۱۸﴾ اِسْتَحْوَذَ عَلَیْہِمُ الشَّیْطٰنُ فَاَنْسٰہُمْ ذِکْرَ اللّٰہِ ؕ اُولٰٓئِکَ حِزْبُ الشَّیْطٰنِ ؕ اَلَاۤ اِنَّ حِزْبَ الشَّیْطٰنِ ہُمُ الْخٰسِرُوْنَ ﴿۱۹﴾ اِنَّ الَّذِیْنَ یُحَآدُّوْنَ اللّٰہَ وَ رَسُوْلَہٗۤ اُولٰٓئِکَ فِی الْاَذَلِّیْنَ ﴿۲۰﴾ کَتَبَ اللّٰہُ لَاَغْلِبَنَّ اَنَا وَ رُسُلِیْ ؕ اِنَّ اللّٰہَ

---

هغوی دَ دوزخ ملګری دی، او هم په هغې کښې به همیشه اوسی۔ په کومه ورځ چه الله هغوی ټول را ژوندی کړی، نو دَ هغه په مخکښې به هم هغسې قسمونه خوری لکه څنګه چه ستاسو په مخکښې قسمونه خوری او په خپل نزکښې به دا ګمان کوی چه په دې سره به دَ هغوئ څه کار جوړ شی۔ خبردار، هغوی غټ دروغژن دی۔ شیطان په هغوی باندِ مُسلط شوې دې او دَ خدائې یاد ئې دَ هغوی دَ زړونو نه هیر کړې دې۔ هغوی دَ شیطان دَ ډلې خلق دی۔ خبردار شه، دَ شیطان دَ ډلې خلق به په خساره کښې پاتې وی۔ یقیناً چه دَ ټولو نه ذلیله مخلوق هغه خلق دی چه هغوی دَ الله او دَ هغه دَ رسول مقابله کوی۔ الله لیکلی دی چه زۀ او زما رسول به خامخا غالب کیږو۔ بې شکه چه الله

---

دَ مسلمانانو دَ ګرفت نه ځان بچ ساتی، او بل طرفته دَ اسلام او دَ مُسلمانانو او دَ پیغمبر خلاف هر قِسم شک شُبهې او وسوسې دَ خلقو په زړونو کښې را پیدا کوی چه خلق دَ اِسلام قبلولو نه په دې خیال منع شی چه هرکله دَ مسلمانانو دَ "خپلې ډلې خلق" دا خبرې کوی نو ضرور به په منځ کښې څه غلط وی۔

۳۵ یعنی دوئ یوازې په دُنیا کښې او صرف دَ مسلمانانو په مخ کښې دروغ قسمونه نۀ خوری بلکه په آخرت کښې به دَ الله په مخکښې هم دوئ دروغ قسمونه خوری۔ دروغ او درکه په دوئ کښې دومره ننوتې ده چه دَ مرګ سره به تر هم لرې نۀ شی۔

۳۶ دَ تشریح دَ پاره اُوګوره تفهیم القرآن څلورم جلد، الصّٰفّٰت، حاشیه ۹۳۔

قَوِيٌّ عَزِيزٌ ﴿٢١﴾ لَا تَجِدُ قَوْمًا يُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ يُوَادُّونَ مَنْ حَادَّ اللَّهَ وَرَسُولَهُ وَلَوْ كَانُوا آبَاءَهُمْ أَوْ أَبْنَاءَهُمْ أَوْ إِخْوَانَهُمْ أَوْ عَشِيرَتَهُمْ ۚ أُولَٰئِكَ كَتَبَ فِي قُلُوبِهِمُ

---

زبردست او زورور دے۔

تهٔ به هیچرے دا خبره بیا نهٔ مومے چه کوم خلق په الله او په آخرت باندې ایمان لري چه هغوی دَ هغه خلقو سره محبت کوي چا چه دَ الله او دَ هغه دَ رسول مخالفت کړے دے، خواه که هغه دَ هغوی پلاران وي، که دَ هغوی ځامن وي، که دَ هغوی ورونړه وي، که دَ هغوی دَ خاندان خلق وي۔[۳۷] دا هغه کسان دی چه خدائے دَ هغوی په زړونو کښے ایمان لیکلے دے

---

[۳۷] په دے آیت کښے دوه خبرې شوې دی۔ یوه خبره اُصولی ده، او بله دَ حقیقت بیان دے۔ اُصولی خبره دا ده چه په حق دین باندې ایمان لرل او دَ دین دَ دُشمنانو سره مینه کول، دوه مخالف څیزونه دی چه په یو ځائے کښے په هیڅ حال جمع کیدے نهٔ شی۔ دا خبره بالکل ناممکنه ده چه په یو زړه کښے دِ ایمان هم وي او دَ خدائے او دَ رسول دَ دُشمنانو سره مینه هم، لکه څنګه چه دَ یو سړي په زړه کښے دَ خپل ځان سره مینه او دَ خپل دشمن سره مینه په یو وخت جمع کیدے نشی۔ نو که تهٔ یو سړے اُوینے چه هغه دَ ایمان دعوٰی هم کوي او ورسره ورسره هغه دَ داسے خلقو سره دَ مینے تعلق هم جوړ کړے دے چه هغوی دَ اسلام مخالف دی نو په دے هرګز مهٔ دوکه کیږه چه دَ دے کاروبار باوجود هم هغه دَ ایمان په دعوٰی کښے رښتینے دے۔ دغه شان چه خلقو دَ اسلام سره او دَ اسلام دَ مخالفینو سره په یو وخت تعلق ساتلے دے هغوی دِ پخپله هم په خپل ځان په بنه طریقه غور اُوکړي چه هغوی په حقیقت کښے څه دی، مومنان دی او که منافقان؟ او په واقعه کښے مومنان جوړ یدل غواړي او که منافقان؟ که چرے په هغوی کښے څه لږ شان هم صداقت موجود وي او څه لږ شان هم دا فکر لري چه په اخلاقي حیثیت سره منافقت دَ انسان دَ پاره دَ ټولو نه زیات ذلیله عمل دے، نو هغوی له پکار دي چه په یو وخت په دَوَړو کیشتو کښے دَ سوریدلو کوشش پریږدي۔ ایمان خو دَ هغوی نه صفا واضحه فیصله غواړي که هغوی مومنان اُوسیدل غواړي نو هر هغه تعلق دِ قربان کړي کوم چه دَ اسلام مخالف وي۔ که هغوی ته دَ اسلام نه بل څه غوریز بنکاري نو بهتره خبره داده چه دَ ایمان دروغژنه وعده دِ پریږدي۔

دا خوده اُصولی خبره۔ لیکن الله تعالیٰ دلته صرف په اصولو بیانولو باندې اکتفا نهٔ ده کړې بلکه دا حقیقت ئے هم دَ ایمان دَ دعوٰی کیرو په مخکښے دَ نمونے په طور پیش کړے دے چه کوم خلق رښتینے مومنان وُو هغوی واقعی هغه ټول تعلقات ختم کړل کوم چه دَ الله دَ دین خلاف وُو۔ دا یو داسے حقیقت وُو چه دَ بدر او دَ اُحُد په جنګونو کښے دَ ټول عرب خلقو لیدلے وُو۔ دَ مکے نه چه کوم صحابه کرام په هجرت راغلی وُو هغوی صرف دَ خدائے او دَ هغه دَ دین دَ خاطره دَ خپلے قبیلے او دَ خپلو رشته دارانو سره جنګیدلی وُو۔

الْإِيمَانَ وَأَيَّدَهُمْ بِرُوحٍ مِّنْهُ ۖ وَيُدْخِلُهُمْ جَنَّٰتٍ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الْأَنْهَٰرُ خَٰلِدِينَ فِيهَا ۚ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ وَرَضُوا عَنْهُ ۚ أُولَٰئِكَ حِزْبُ اللَّهِ ۚ أَلَا إِنَّ حِزْبَ اللَّهِ هُمُ الْمُفْلِحُونَ ﴿۲۲﴾

او دَ خپل طرفنه ئے هغوی له په یو رُوح سره طاقت ورکړے دے۔ هغه به هغوی داسے جنتونو ته ور ننباسی چه لاندې به ترې نهرونه بهیږی۔ په هغې کښې به هغوی هیشه وُسی۔ الله دَ هغوئ نه راضی شوا و هغوئ دَ الله نه راضی شول۔ هغوی دَ الله دَ ډلے خلق دی۔ خبردار شئ چه دَ الله دَ ډلے خلق فلاح موندونکی دی۔ ع

حضرت ابوعبیده خپل پلار عبدالله بن جرّاح قتل کړو۔ حضرت مُصْعَب بن عُمَیر خپل رُور عبید بن عُمَیر قتل کړو۔ حضرت عُمَرؓ خپل ماما عاص بن هِشام بن مُغِیرہ قتل کړو۔ حضرت ابوبکر دَ خپل حُوئے عبدالرحمٰن سره جنګ کولو ته تیار شو۔ حضرت علی، حضرت حمزه، او حضرت عبید بن الحارث خپل نژدے رشته داران عُتبه، شَیبه او ولید بن عُتبه قتل کړل۔ حضرت عُمر دَ جنګ بدر دَ قید یانو په معامله کښې رسول الله صلی الله علیه وسلّم ته عرض اُوکړو چه دا ټول دِ قتل کړے شی او مونږه هر یو دِ خپل خپل رشته دار قتل کړو۔ هم په دے جنګ بدر کښې یو انصاری دَ حضرت مُصعَب بن عُمَیر سکه رُور ابوعَزیز بن عُمَیر اُونیوُو او بیا ئے تړلو۔ حضرت مُصعَب چه هغه اُولیدو نو آواز ئے ورته اُوکړو "بنه کلک ئے اُوتړه، دَ دهٔ مُور ډیره مالداره ده، هغه به درله دَ ده په بدله کښې ډیره فدیه درکړی"۔ ابو عزیز اُوویئیل "تهٔ م رُور ئے او دا خبرې کوے"؟ حضرت مُصعَب ورته په جواب کښے اُوویئیل "په دے وخت کښے تهٔ ځما رُور نهٔ ئے بلکه دا انصاری ځما رُور دے چه تهٔ ئے نیولے ئے"۔ هم په دے جنګ بدر کښې ځپله دَ نبی صلی الله علیه وسلّم ځوم ابوالعاص اُونیوے شوا و دَ هغه سره دَ نبیؐ دَ ځوموالئ په وجه دَ نورو قیدیانو نه هیڅ بدل سلوک اونهٔ کړے شو۔ دغه شان په حقیقت کښے دُنیا ته دا ښودلے شوی وه چه مخلص مسلمانان څنګه وی او دَ الله او دَ هغه دَ دین سره دَ هغوی تعلق څنګه وی۔

وَیلَمی دَ حضرتِ معاذ دَ روایت نه دَ رسول الله صلی الله علیه وسلّم دا دُعا نقل کړی ده چه اللّٰهم لا تجعل لفاجر (وفی روایةٍ لفاسق) علیَّ یداً ولا نعمة فیودّه قلبی فانی وجدت فیما اوحیتَ الیّ لا تجدُ قوماً یؤمنون بالله والیوم الآخر یوآدون من حادّ الله ورسولهٗ۔ "اے خدایه، دَ یو فاجر (او په یو روایت کښې دَ یو فاسق) په ما باندِ څه احسان مهٔ را اړوے چه ځما په زړهٔ کښې دَ هغه دَ پاره څه محبت پیدا شی۔ ځکه چه تا کومه وحی په ما نازله کړی ده په هغې کښې دا خبره هم ده چه کوم خلق په الله او په ورځ دَ آخرت ایمان لری تهٔ به هغوئ داسے اُو نهٔ وینے چه دَ الله او دَ رسول دَ مخالفو خلقو سره به محبّت اُوکړی"۔

# الحَشْر

**نوم** | دَ دویم آیت دَ فقرے اَخْرَجَ الَّذِیْنَ كَفَرُوْا مِنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ مِنْ دِیَارِهِمْ لِاَوَّلِ الْحَشْرِ نه دَ دے سورة نوم اغستلے شوے دے۔ مطلب دا دے چه دا هغه سورة دے چه لفظ حشر پکښے راغلے دے۔

**دَ نازلیدو زمانه** | په بُخاری او مُسلم کښے دَ حضرتِ سعید بن جُبیر روایت دے چه ما دَ حضرت عبدالله بن عباسؓ نه دَ سورة حشر په حقله تپوس اُوکړو نو هغه اُووئیل چه دا دَ غزوهٔ بنی نضیر په باره کښے نازل شوے وُو لکه څنګه چه سورة انفال دَ غزوه بدر په باره کښے نازل شو۔ دَ حضرت سعید بن جُبیر په دویم روایت کښے دَ ابن عباس رضی الله عنه الفاظ دا دی چه قُلْ سُوْرَةُ النَّضِیْرِ یعنی دا سے اُووایه چه دا سورة نضیر دے۔ هم دا خبره دَ مُجاهد، قَتَاده، زُهری، ابن زید، یزید بن رُومان او دَ محمد بن اسحاق نه هم روایت کړے شوی ده۔ دَ دے ټولو بیان دا دے چه په دے کښے دَ کوم اهل کتابو دَ ایستلو ذکر دے دَ هغوی نه مُراد بنی نضیر دی۔ دَ یزید بن رُومان، مُجاهد او دَ محمد بن اسحاق قول دا دے چه دَ اوّل نه دَ آخره پورے دا ټول سورة هم دَ دے غزا په باره کښے نازل شوے دے۔

اوس پاتے شوه دا خبره چه دا غزا کله شوی وه؟ امام زُهری په دے حقله دَ عُروه بن زُبیر په حواله سره وئیلی دی چه دا واقعه دَ جنګ بدر نه شپږ میاشتے روستو شوی ده۔ لیکن ابن سعد، ابن هشام او بلاذُرِی وائی چه دا واقعه دَ څلورمے هجری په ربیع الاوّل میاشت کښے شوی ده، او هم دا صحیح ده۔ ځکه چه ټول روایتونه په دے خبره متفق دی چه دا غزا دَ بئرِ معُونه دَ واقعے نه روستو شوی وه، او دا خبره هم تاریخی طور ثابته ده چه دَ بئرِ مَعُونه واقعه دَ جنګ اُحُد نه روستو هم شوی ده نه چه مخکښے۔

**تاریخی حالات** | دَ دے سورة په مطلب باندِ دَ ځان پوهه کولو دَ پاره ضروری ده چه دَ مدینے او دَ حجاز په تاریخ باندِ یو نظر واچولے شی، ځکه چه دَ دے نه بغیر سړے نه ټیک ټیک دا نشی معلومولے چه رسول الله صلی الله علیه وسلّم په آخر کښے دَ مخالفو قبائیلو سره کومه معامله اُوکړه چه دَ هغے حقیقی اسباب څه وُو۔

دَ عربو دَ یهودیانو څه مستند تاریخ په دُنیا کښے موجود نشته۔ هغوی پخپله خپل تاریخ دَ یو کتاب یا دَ یو کتیے په شکل کښے لیکلے شوے نه دے پریښودے چه دَ هغوی تیر شوے حالات تر معلوم شی۔ او کوم یهودی تاریخدانان او لیکوالان چه دَ عربو نه بهر وُو هغوی دَ عربی یهودیانو هیڅ ذکر نه دے کړے او دَ دے وجه دا بیانیږی چه هغوی کله عربو ته راغلل نو دَ خپل قوم نه جُدا شول، او دَ دُنیا نورو یهودیانو هغوی دَ خپل ځان نه نهٔ شمارل، ځکه چه هغوی عبرانی ژوند، عبرانی ژبه او عبرانی نوم پریښودے وُو او پوره عربیت ئے اختیار کړے وُو۔ دَ حجاز په آثارِ قدیمه کښے چه کوم کتبے مِلاؤ شوی دی په هغے کښے دَ اولے عیسوی صَدئ نه مخکښے دَ یهودیانو هیڅ نښه نهٔ مِلاویږی، او په هغے کښے هم صرف یو څو یهودی نومونه مِلاویږی۔ دا وجه ده چه دَ عربی یهودیانو دَ تاریخ زیات دار و مدار په هغه زبانی روایتونو باندِ دے کوم چه په عربو کښے مشهور وُو، او په هغے کښے زیاته حصه خپله یهودیانو خوره کړی وُه۔

دَ حجاز دَ یهودیانو دا دعوی وه چه دَ ټولو نه اول هغوی دَ حضرت موسیٰ علیه السّلام په آخری زمانه کښے

دلته راغلي وُو او آباد شوي وُو۔ دَدې قيصه هغوی دا بيانوي چه حضرت موسیٰؑ د يثرب د علاقې نه د عمالِقه قوم د ايستلو دَپاره يو لښکر ليږلے وُو او حکم ئې ورته کړے وُو چه دَدې قوم يو سړے ژوندے پرې نږدی۔ د بنی اسرائيلو دا لښکر دلته راغے او دَ نبی فرمان ئې اُومنو، ليکن دَ عمالِقه دَ بادشاه يو ځوئے ډير ښکلے ځوان وُو، هغه ژوندے پريښودلو او دَ ځان سره ئې فلسطين ته بوتلو۔ په هغه وخت کښې حضرت موسیٰؑ وفات شوې وُو۔ دَ هغه خليفه گانو په دې خبره سخت اعتراض اُوکړو چه يو عمالِيقی سړے ژوندے پريښودل دَ نبی دَ فرمان او دَ موسوی شريعت څرگنده خلاف ورزی ده۔ په دے وجه هغوئ دا لښکر دَ خپلے ولے نه اُوويستو، او دغه لښکر مجبوراً يثرب ته واپس راغے او هم دغلته آباد شو (کتاب الاَغانِی، ج ۱۹، ص ۹۴)۔ په دې طريقه يهوديانو گويا دَ دے خبرې دعوی کيروُ چه هغوی دَ مسيح نه دولس سوه[12] کاله مخکښې دلته آباد شوی دی۔ ليکن په حقيقت کښې دَ دې هيڅ تاريخی ثبوت نشته، او غالب گمان دا دے چه يهوديانو دا قيصه په دې وجه جوړه کړی وه چه دَ عربو په خلقو باندې دَ خپل پخوانی اَصل او دَ اُوچت نسب دباؤ واچوی۔

دويم يهودی هجرت، دَ يهوديانو دَ خپل روايت مطابق دَ مسيح نه ۵۸۷ ق م کاله مخکښې اُوشو چه کله دَ بابل بادشاه بخت نصر بيت المقدس تباه کړو او يهوديان ئې په ټوله دُنيا کښې خواره واره کړل۔ دعربو يهوديانو به ويئيل چه په هغه زمانه کښې زمونږه ډير قبائيل وادی القراء، تيماء او يَثرِب ته راغلي وُو او آباد شوی وُو۔ (فتوح البُلدَان ـ البلاذُرِی)۔ ليکن دَ دې هم څه تاريخی ثبوت نشته ـ کيدے شي چه دَ دې نه هم هغوی خپل زوړ اصل ثابتول غواړی۔

په حقيقت کښې چه کومه خبره ثابته ده هغه دا ده چه کله په ۷۰ء عيسوی کښې روميانو په فلسطين کښې عام يهوديان قتل کړل، او بيا ئې په ۱۳۲ء کښې هغوی دَ دې زمکے نه بالکل بهر اُوويستل، په هغه دَور کښې ډير يهودی قبائيل تښتيدلي وُو او په حجاز کښې ئې پناه اغستلې وه، ځکه چه دا علاقه دَ فلسطين جنوب ته جوښته پرته وه۔ دلته چه هغوی په کوم کوم ځائے کښې چينے او شينکے اُوليدو هم هلته ديره شو او بيا ئې رُوړُو دَ خپلو تعلقاتو او دَ سود په ذريعه په هغې قبضه ټينگه کړه۔ په اَيلَه، مَقنَا، تبوک، تَيماء، وادی القریٰ، فدک او خيبر باندې دَ هغوی قبضه هم په دغه دَور کښې قائمه شوه۔ او بنی قُرَيظه، بنی نضِير، بنی بَهدل او بنی قَينُقَاع هم په دغه دَور کښې راغلل او په يَثرِب ئې قبضه اُوکړه۔

په يثرب کښې چه کوم قبائل آباد شوی وُو په هغوی کښې بنی نضير او بنی قُريظه زيات ښکاره وُو، ځکه چه هغوی دَ کاهنانو (Cohens) يا دَ پادريانو (Priests) دَ طبقے نه وُو، هغوی به په يهوديانو کښې اُوچت نسَب گڼړلے شو او هغوی ته په خپل ملت کښې مذهبی حکومت حاصل وُو۔ دا خلق چه کله مدينے ته راغلل او آباد شونو په هغه وخت کښې څه نور عرب قبائل دلته اُوسيدل چه هغه هغوی دباؤ کړل او په خپله دَ دے آباده زمکے مالکان جوړ شو۔ دَ دې نه تقريباً درې سوه کاله وروستو په ۴۵۰ء يا ۴۵۱ء کښې دَ يَمَن دَ هغه لوئ سيلاب واقعه اُوشوه چه ذِکر ئې دَ سورة سبا په دويمه رکوع کښې تير شوے دے۔ دَ دے سيلاب دَ وجے نه دَ سبا دَ قوم مختلف قبيلے دَ يمن نه را اُووتلے او مجبوراً په عربو کښې خورے وَرے شوے۔ غَسَّانی په شام کښې، لَخمِی په حِيره (يعنی عراق) کښې، بنی خزاعه دَ جدّے او دَ مکے په منځ کښې، او اَوس او خَزرَج په يَـثرِب کښې آباد شو۔ په يثرِب باندې چونکه يهوديان خواره شوی وُو، په دے وجه هغوی اوّل اوّل

اَوْس او خَزْرج په ځائے پرے ننوتل او دا او دواړه عرب قبیلے چاروناچار په بنجره زمکه کښے آباد ے شوے چه هلته ورته په مُشکله خوراک مِلا ویدو۔ آخر دا چه دَ هغوئ دَ سردارانو نه یوسړے دَ خپلو غسّانی رُوڼړو نه دَ مدد غوښتلو دَپاره شام ته لاړو او دَ هغه ځائے نه ئے یو لښکر دَ ځان سره راوستو او دَ یهود یانو زور ئے ختم کړو۔ په دے طریقه اَوْس او خَزْرج ته په یثرب باندِ پوره غلبه حاصله شوه۔ دَ یهودیانو دوه لوئے قبیلے، بنی نَضِیر او بنی قُرَیظه مجبوراً دَ ښار نه بَهر آباد ے شوے۔ دَ دریمے قبیلے بنی قَینقاع چونکه دَ دے دواړو یهودی قبیلو سره ناچاقی وه نو په دے وجه هغوی دَ خَزْرج قبیلے په پناه کښے په ښار کښے دَننه پاتے شو۔ او دَ هغے په مقابله کښے بنی نضیر او بنی قُرَیظه قبیلو دَ اُوْس پناه واغستله چه دَ یثرب په خوا کښے په امن سره وخت تیر کړی۔ دَ لاندینئ نقشے نه به پته اُولږی چه دَ دے نوی انتظام لاندِ په یثرب کښے او دَ یثرب په خواوُشا کښے یهودی کلی په کوم کوم ځائے کښے اباد وُو۔



دَ رسول الله صلی الله علیه وسلّم دَ راتلونه مخکښې، دَ هجرت په وخت کښې په حجاز کښې عام طور او په یثرب کښې خاص طور دَ یهودیانو ښکاره حالات دا وُو؛

—— هغوئ دَ ژبې، دَ جامې او دَ ناستې پاستې په لحاظ سره پوره دَ عربو رنګ اختیار کړې وُو، اَن تر دې پورې چه دَ هغوئ دَ ډیرو کسانو نومونه هم دَ عربئ شوی وُو. کومې دولس یهودی قبیلې چه په حجاز کښې آباد ے شوې وې په هغې کښې دَ بنی زعوراء نه سوا دَ بلې یوې قبیلې نوم په عبرانئ ژبه کښې نهٔ وُو. دَ هغوی دَ یو څو عالمانو نه سوا بل هیڅ عبرانی ژبه پیژندله هم نهٔ. دَ جاهلیت دَ زمانې دَ یهودی شاعرانو کوم کلام چه مونږ ته مِلاویږی هغه دَ عربی شاعرانو دَ کلام سره په هر لحاظ سره یو شان دے. دَ هغوئ او دَ عربیانو په مینځ کښې دَ واده کوئیدن تعلقات هم قائم شوی وُو. په حقیقت کښې په هغوئ کښې او په عامو عربیانو کښې دَ دین نه سوا بل هیڅ فرق نهٔ وُو پاتې شوے. لیکن دَ دې خبرو باوجود هغوئ په عربو کښې بالکل جذب شوی نهٔ وُو، او ډیر په سختئ سره ئې خپل یهودی نوم برقرار ساتلے وُو. دَ عربو دا ظاهری رنګ هغوی صرف په دې وجه اختیار کړے وُو چه دَ دې نه بغیر هغوی په عربو کښې اوسیدے نهٔ شو.

—— دَ دوی دَ دې عربیت په وجه دَ مشرقی ژبو مغربی ماهرین په دې دوکه شوی دی چه شاید دا بنی اسراءیل نهٔ وُو بلکه عربیان وُو چه یهودی مذهب ئې قبول کړے وُو، یاکم از کم دَ دوئ اکثریت عربی یهودیان وُو. لیکن دَ دې خبرې هیڅ تاریخی ثبوت نشته چه یهودیانو چرته په حجاز کښې څه تبلیغی کار کړے وُو، یا دَ هغوئ عالمانو چرته دَ نصرانی پادریانو او تبلیغیانو پشان دَ عربو خلق یهودی دین ته را بللی وُو. دَ دې برعکس مونږ دا وینو چه په هغوئ کښې دَ اسرائیلیت سخت ننګ او نسلی فخر او غرور موجود وُو دَ عربو خلقو ته به هغوی اُمّی (Gentiles) ویئلو، چه معنیٰ ئې یوازې غیر لوستونکے نهٔ وُه بلکه دَ وحشی او جاهل هم وه. دَ هغوئ دا عقیده وه چه دې اُمیانو ته هغه انسانی حقونه حاصل نهٔ دی کوم چه دَ اسراء یلیانو دَ پاره دی او دَ هغوی مال په هره جائزه او نا جائزه طریقه سره خوړل دَ اسراء یلیانو دَ پاره حلال. دَ عربو دَ سردارانو نه سوا، عام عربیان خلق هغوئ دَ دې خبرې قابل نهٔ ګنړل چه په یهودی دین کښې ئې داخل کړی او دَ ځان سره برابر درجه ورکړی. تاریخی طور دَ دې خبرې هیڅ ثبوت نهٔ ملاویږی، او نهٔ دَ عربو په روایتونو کښې څه داسې شهادت شته چه یوې عربی قبیلې یا یو لوئ خاندان یهودیت قبول کړے وی. البته دَ څینو کسانو ذکر شته چه هغوئ یهودیان شوی وُو. هسې هم دَ یهودیانو دَ دین دَ تبلیغ په ځائے صرف دَ خپل کاروبار سره دلچسپی وه. دا وجه ده چه په حجاز کښې یهودیت دَ یو دین په حیثیت سره خور نهٔ شو بلکه تش دَ یو څو اسراء یلی قبیلو دَ فخر ذریعه جوړه شوه. البته یهودی عالمانو دَ تعویذ ونو او فالونو او دَ جادوګرئ کاروبار ښه روان کړے وُو چه دَ هغې په وجه په عربو باندې دَ هغوئ دَ "علم" او دَ "عمل" دباوْ ناست وُو.

—— دَ روزګار په حیثیت سره دَ هغوئ حالت دَ عرب قبائیلو په نسبت زیات مضبوط وُو. هغوئ چونکه دَ فلسطین او دَ شام دَ مُهذّبو علاقونه راغلی وُو، په دې وجه هغوئ ته ډیر داسې هنرونه معلوم وُو چه هغه دَ عربو خلقو نهٔ پیژندل. او دَ بهر خلقو سره دَ هغوئ

کاروباری تعلقات هم وو۔ په دې وجه یثرب ته او د حجاز پاسنو علاقو ته د غلې را تلل او د دې ځائے نه د چوار و بهر ته تلل د هغوئ په لاس کښے ور غلی وو۔ د چرګانو په ساتلو او د میانو په نیولو باندې زیاته قبضه د هغوئ وه۔ د جولاګیرئ کار به هم هغوئ کولو۔ ځائے په ځائے شراب خانے هم هغوئ قایم کړے وے چه هلته به د شام نه شراب را تلل او خرڅیدل به۔ بنی قینقاع به زیات تر د زرګرئ او د لوهارئ او د لوښو سازولو کار کوؤ۔ په دے ټولو تجارتی کاروبار کښے به دے یهودیانو بے دریغه ګټه کوله۔ لیکن د هغوئ د ټولو نه غټ کاروبار د سود وو۔ د سود په کاروبار کښے هغوئ د خواوشا ټول عربیان اخته کړی وو، او خاص طور د عرب قبائیل او شیخان او سرداران چه د خپل شان و شوکت او د بد بے بکاره کولو د پاره به ئے د یهود یانو نه قرض اغستلو، د سود په جال کښے کلک نختلی وو۔ یهودیانو به ورله په ډیر سود قرض ورکولو او بیا به ئے د سود د پاسه سود خیژولو، او چه یو ځل به څوک د سود په دے چکر کښے راغے نو بیا به مشکله به تې وتلو۔ په دے طریقه هغوئ د عربو خلق په معاشی حیثیت سره تباه کړی وو، لیکن بل طرفته د دے فطری نتیجه دا هم وه چه په عربو کښے عام طور د هغوی خلاف غټ نفرت پروت وو۔

— د هغوی د تجارتی او مالی فائدو تر مخه پکار داوه چه په عربو کښے د چا سره دوستانه قائمه کړی او د چا سره تعلقات خراب نه کړی، او نه د هغوئ په جګړو کښے څه حصه واخلی۔ لیکن بل طرفته د هغوئ د مفاد و تقاضا دا هم وه چه د عربو خلق متحد کید و ته پرې نږدی، او په مخه ئے د یو بل سره جنګوی را جنګوی، ځکه چه هغوئ په دې خبره پوهیدل چه کله هم د عربو قبیلے د یو بل سره متحد شولے، نو هغوئ چه کوم لوئ لوئ جائیدادونه او باغونه او زرخیزه زمکے د خپلے نفعے او سود خورئ په ذریعه پیدا کړے وے، د هغے نه به ئے بے دخله کړی۔ د دے د پاسه هغوئ ته د دے خبرے هم ډیره ضرورت وو چه د خپل حفاظت د پاره د هغوئ هره یوه قبیله د عربو د یوے طاقتورے قبیلے سره دوستانه تعلقات قایم کړی چه د بلے طاقتورے قبیلے د حملے نه محفوظ شی۔ دا وجه وه چه هغوئ به اکثر د قبائیلی عربو په کورنی جنګونو کښے حصه اغستله، بلکه اکثر خو به داسے اوشوه چه یوه یهودی قبیله به د خپل حلیف عربی قبیلے سره ملګرې شوه او د بلے داسے یهودی قبیلے خلاف به جنګیدله چه هغوئ به د عربو د مخالفے ډلے حلیفان وو۔ په یثرب کښے بنی قریظه او بنی نضیر د اوس قبیلے حلیف وو او بنی قینقاع د خزرج قبیلے د هجرت نه لږه موده مخکښے چه کوم خونړے جنګ د اوس او د خزرج په منځ کښے د بعاث په مقام شوے وو په هغې کښے دا یهودیان د خپلو خپلو حلیفانو سره ملګرې شوی وو او د یو بل خلاف جنګیدلی وو۔

دا حالات وو چه مدینے ته اسلام را اورسیدو او کله چه رسول الله صلی الله علیه وسلم مدینے ته راغے نو هلته یو اسلامی ریاست جوړ شو۔ د ریاست جوړولو سره چه کوم اولنی کارونه نبیؐ اوکړل په هغې کښے یو داوو چه اوس او خزرج او مهاجرین ئے را یو ځائے کړل او د هغوئ په منځ کښے ئے رورولی قایمه کړه، او دویم دا وو چه د مسلمانانو او د یهودیانو په منځ کښے ئے یوه معاهده اوکړه چه په هغې کښے د دې خبرې ضمانت ورکړے شوے وو چه هیڅوک به د بل حق نه وهی او د بهرنو دشمنانو په مقابله کښے به ټول په اتفاق سره جنګیږی۔ د دے معاهدے یو څو اهمے نقرے دا دی چه صفا ترې معلومیږی چه یهودیانو او مسلمانانو د

یو بل سره په تعلقاتو کښې دَ کومو خبرو پابندی قبوله کړی وه:

ان علی الیهود نفقتهم وعلی المسلمین نفقتهم، وان بینهم النصر علی من حارب اهل هٰذه الصحیفة، وان بینهم النصح والنصیحة والبرّ دون الاثم، وانه لم یاثم امروٌ بحلیفه، وان النصر للمظلوم، وان الیهود ینفقون مع المؤمنین ماداموا محاربین، وان یثرب حرام جوفها لاهل هٰذه الصحیفة...... ...... وانه ما کان بین اهل هٰذه الصحیفة من حدث او اشتجار یخاف فساده فان مردّه الی الله عزوجل والی محمد رسول الله ....... وانه لا تجار قریش ولا من نصرها، وان بینهم النصر علی من دهم یثرب علی کل اناث حصتهم من جانبهم الذی قبلهم۔
(ابن هشام، ج۲، ص۱۴۷ تا ۱۵۰)

"دا چه یهودیان به خپل خرچ برداشت کوی او مسلمانان به خپل، او دا چه دَ دې معاهدې شریکان به دَ حمله کونکی دُشمن په مقابله کښې دَ یو بل امداد کوی، او دا چه هغوئ به په خلوص سره دَ یو بل دَ ښیګڼې کارکوی او دَ هغوئ په منځ کښې به دَ نیکئ او یو بل ته دَ حق رسولو تعلق وی نه چه دَ ګناه او دَ زیاتی تعلق، او دا چه هیڅوک به دَ خپل حلیف سره زیاتے نهٔ کوی، او دا چه دَ مظلوم سره به مرسته کیږی، او دا چه تر څو پورې جنګ وی تر هغې به یهودیان دَ مسلمانانو سره په شریکه دَ هغې جنګ خرچ برداشت کوی، او دا چه په دې معاهده کښې څوک شریک دی په هغوئ باندې په یثرب کښې هر قسم فتنه او فساد کول حرام دی، او دا چه که چرې دَ دې معاهدې دَ شریکانو په منځ کښې څه داسې کار یا اختلاف راشی چه دَ هغې نه دَ فساد خطره وی نو دَ هغې فیصله به محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم دَ الله دَ قانون مطابق کوی"..... "او دا چه قریشو ته او دَ هغوئ مرستیالو ته به پنا نشی ورکړې کیدے، او دا چه په یثرب باندې که هر څوک حمله اُوکړی دَ هغهٔ سره په مقابله کولو کښې به دَ معاهدې شریکان دَ یو بل مدد کوی..... هره ډله به دَ خپل طرف دَ علاقې دَ حفاظت ذمه واروی۔"

دا یوه قطعی او واضحه معاهده وه چه شرطونه ئې یهودیانو پخپله قبول کړی وُو۔ لیکن ډیر زر هغوی دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم او دَ اسلام او دَ مسلمانانو خلاف دَ دُشمنئ عمل شروع کړو او دَ هغوی دُشمنی ورځ په ورځ زیاته تخیده له۔ دَ دې غټې وجې درې وې:

یوه دا چه هغوئ رسول الله صلی الله علیه وسلم ته صرف دَ یو قوم دَ سردار په حیثیت سره کتل غوښتل چه دَ هغوی سره بس یوه تشه سیاسی معاهده اُوکړی او صرف دَ خپلې ډلې دَ دُنیاوی فایدې غم اُوکړی۔ لیکن هغوئ اُوکتل چه هغه خو خلقو له دعوت ورکوی چه په الله او په آنحضرت او په رسالت او په کتاب باندې ایمان راوړی (په دې دعوت کښې دَ هغوئ په خپلو رسولانو او کتابونو باندې ایمان راوړل هم شامل وُو) او خلقو ته وائی چه دَ ګناه کارونه پرېږدی او دَ الله حکمونه اُومنئ او دَ هغه اخلاقو پابندی اُوکړئ کوم چه به ستاسو پیغمبرانو دَ دُنیا خلقو ته ښودل۔ په دې کار هغوئ له سخته غصه ورتلله۔ دَ هغوئ سره خطره پیداشوه چه که چرې

دا عالمګیر اُصولی تحریک شروع شوی دی ځکه ته به د هغوی ورځ کلک مذهب او د هغوی
نسلی قومیت ټینګ نهٔ شی -

دویمه داچه هغوی کله اُولیدل چه اَوس او خزرج او مهاجرین رُونړه رُونړه شو
او د خواږ شا په عرب قبائیلو کښې چه څوک د اِسلام دا دعوت قبلوی هغوی ټول د
مدینې په دې اِسلامی رُورولۍ کښې شامليږی او یو لویٔ ملت تې جوړیږی ، نو
د هغوی سره دا خطره پیدا شوه چه د سَوُونو کالو راسې هغوی د خپلې سلا متیا او د
خپلې ګټې د پاره په عرب قبیلو کښې کومه بې اتفاقی پیدا کړې وه او کومه خپل مطلبه
پالیسی ئې اختیار کړې وه هغه به اوس په دې نوی نظام کښې اُونهٔ چليدې شی
بلکه اُوس به هغوی د عربو د یو متحده طاقت سره مخ کيږی چه د هغې په وجه به
د هغوی یو کار هم کامیاب نشی -

دریمه داچه رسول الله علیه وسلّم د خلقو کومه اصلاح کوله په هغې کښې د روزګار
د ټولو نا جائزو طریقو مخ نیوې شامل وُو ، او د ټولو نه غټه خبره دا وه چه نبیؐ
سُود ته هم حرام وئیلو چه د هغې نه هغوی ته دا خطره وه چه که چرې په عربو
باندې د نبیؐ حکومت راغې نو هغه به سُود قانوناً منع کوی او دا د هغوی د پاره د مرګ
خبره وه -

دا وجوهات وُو چه هغوی د نبیؐ مخالفت ته قومی نصب العین اُوګڼلو - نبیؐ ته
د تکلیف رسَولو د پاره هغوی هر کار جائز ګڼلو - هغوی به د هغه خلاف هر قِسم
دروغ وئیل چه خلق تې بدګمانه شی - کومو خلقو چه به اسلام قبول کړو د هغوی
په زړونو کښې به ئې هر قِسم شکونه او وَسوسې اچولې چه د دې دین نه واپس شی -
په خپله به ئې په دروغه اِسلام راوړو او بیا به مرتد شو چه په خلقو کښې د اِسلام
او د رسول الله صلی الله علیه وسلم خلاف د زیا تو نه زیا تې بدګمانیانې خورې شی -
د فتنې راپورته کولو د پاره به ئې د منافقانو سره ساز باز کولو - د هر اسلام دُشمنه
سړی او ډلې قبیلې سره به ئې تعلق پیدا کولو - د مسلمانانو په مینځ کښې د بې اتفاقۍ د
پیدا کولو د پاره او هغوی په خپل مینځ کښې د جنګولو د پاره به ئې ښه زور لګولو - د اَوس
او د خزرج خلقو ته به ئې خاص توجه ورکوله - د جنګ بُعاث خبرې به ئې چيړلې او
هغوی ته به ئې زړې دُشمنیانې وریادولې چه د هغوی په مینځ کښې یو ځل بیا
تورې راواُچتې شی او د رُورولۍ هغه رشته تار تار شی کومه چه
اسلام تړلې وه - په مالی حیثیت سره د مسلمانانو د تنګولو د پاره به هغوی
هر قِسم ناجائزه کار کولو - د کومو خلقو سره چه د هغوی د اول نه
لین دین وُو په هغوی کښې چه به چا اِسلام قبول کړو هغوی ته
به ئې د نقصان ورکولو کوشش کولو - که څهٔ به ئې ترغوښتل
نو په غوښتلو غوښتلو به ئې ډیر زیات تنګول ، او که د هغوی به
ورته څه قرض وُو نو نهٔ به ئې ورکولو او ښکاره به ئې وئیل چه کله مونږ
ستا سره معامله کړې وه په هغه وخت کښې ستا دین څه بل وُو ،
او اُوس چونکه تا دین بدل کړې دې نو ستا په مونږ باندې

هیڅ حق نشته ـ دَ دے ډیر مثالونه په تفسیر طَبَری، تفسیر نیسابُوری، تفسیر طَبُرسی او په تفسیر رُوح المعانی کښے دَ سورة آلِ عِمران دَ آیت ۵۷ په تشریح کښے نقل کړے شوی دی ـ

دَ معاهدے خلاف دا څرګنده دُشمنی خو هغوئ دَ جنګ بدر نه مخکښے مخکښے شروع کړی وه ـ لیکن کله چه په بدر کښے رسول الله صلی الله علیه وسلّم ته او مسلمانانو ته په قریشو باندِ فتح مُبین حاصله شوه نو په هغوی باندِ دَ غصّے نه وُور بل شو او بُغض ئے نور هم زیات شو ـ دَ دے جنګ سره هغوئ دا اُمید تړلے وُو چه مسلمانان به دَ قریشو دَ طاقت سره اُوجنګیږی او ختم به شی ـ دا وجه وه چه دَ اسلام دَ فتحے دَ خبر رسید و نه مخکښے هغوئ په مدینه کښے دا افسوا ګانے شروع کړے چه رسول الله صلی الله علیه وسلم شهید شو، او مسلمانانو شکست اُوخوړ، اَو اوُس دَ ابوجهل په مشرۍ کښے دَ قریشو لښکر مدینے طرفته را روان دے ـ لیکن کله چه کار دَ هغوئ دَ اُمیدونو نه خلاف اُوشو نو دَ ډیر غم او غصّے دَ لاسه اُوچاودل ـ دَ بنی نضیر سردار کعب بن اشرف چغے کړے چه " په خدائے مِ دِ قسم وی که چرے محمدؐ دَ عربو دا شریفان خلق قتل کړل نو دَ زمکے خېټه زمونږ دَ پاره دَ زمکے دَ شانه زیاته بهتره ده " بیا هغه مکے ته اُورسید واو په بدر کښے چه دَ قریشو کوم سرداران وژلے شوی وُو هغوئ ئے دَ غم په نظمونو کښے یاد کړل او دَ مکے خلق ئے بَدلے اغستلو ته تیار کړل ـ بیا مدینے ته واپس راغے او دَ خپل زړه دَ بړاس ایستلو دَ پاره ئے دا سے غزلے وئیلِ شروع کړل چه په هغے کښے دَ مسلمانانو دَ ښځو اولونړو سره دَ عشق څرګندونه شوی وه ـ آخر دا چه رسول الله صلی الله علیه وسلم دَ هغه دَ شرارتونو نه تنګ شو او په ربیع الاول ۳ھ کښے ئے محمد بن مَسْلَمه انصاری اُولیږ و او هغه ئے قتل کړو (ابن سعد، ابن هِشام، تاریخ طَبَری) ـ

بن قَینُقَاع، دَ یهودیانو اولنئ قبیله وه چه دَ جنګ بدر نه روستو ئے خپله معاهده په واکه ماته کړی وه ـ دا خلق ځپله دَ مدینے په ښار کښے دَ ننه په یوه محلّه کښے اُوسیدل او چونکه دوئ زرګران، لوهاران او لوښی ساز و نکی خلق وُو نو په دے وجه به دَ دوئ بازار ته دَ مدینے خلق ډیر تلل راتلل ـ دوئ به په خپله بهادرئ او زړورتیا ډیر ناز کولو ـ دَ وَسپینے دَ کار کولو په وجه به دَ هغوئ دَ هر بچی سره وسله وه ـ اُووه سوه جنګی ځوانان دَ هغوئ سره موجود وُو ـ دَ هغوئ په زړهٔ کښے دا خبره هم وه چه دَ خَزرَج قبیلے سره دَ هغوی زاړه دوستانه تعلقات وُو او دَ خَزرَج سردار عبدالله بن اُبَی دَ هغوئ مرستیال وُو ـ دَ بَدر دَ جنګ سره دوئ له دومره غصّه ورغله چه کوم مسلمان به دَ دوئ بازار ته تلل را تلل دَ هغوئ تنګول ئے شروع کړل او خاص طور دَ هغوئ دَ ښځو سره ئے چیړ چاړ شروع کړو ـ رُو رُو خبره دِے ته اُورسیده چه یوه ورځ دَ هغوئ په بازار کښے یوه مسلمانه ښځه په واکه لغړه کړے شوه ـ په دے باندِ سخته جګړه اوشوه، په جګړه کښے یو مسلمان او یو یهودی قتل شو ـ هرکله چه حالات دِے حد ته اُورسیدل نو رسول الله صلی الله علیه وسلم دَ هغوئ محلّے ته لاړو، هغوی ئے راجمع کړل او نصیحت ئے ورته اُوکړو چه ښیغے لارے ته راشئ ـ لیکن هغوئ ورته په جواب کښے اُووئیل " اے محمدؐ، شاید چه ستا په مونږ باندِ دَ قریشو خیال راغے؟ هغوئ په جنګ نهٔ پوهیدل ځکه تاسو مره کړل ـ که زمونږ سره مو جنګ شروع کړو نو پته به در ته

اولړی چه سړی څلکه وی" دا لکه چه صفا صفا د جنګ اعلان وُو ـ آخر دا چه رسول الله صلی الله علیه وسلّم د دویمے هجرئ د شوال (او په یو روایت کښې د ذی القعدے) په آخر کښې د هغوئ د محلّے نه ګېره واچوله ـ صرف پنځلس ورځے دا ګېره وه او بیا هغوئ وسله اُوغورزَوَله اوکوم کسان چه په هغوئ کښې د جنګ کولو قابل وُو هغوئ ټول اُوتړلے شو ـ اُوس عبدالله بن اُبَی د هغوئ د مرستے دپاره را پاسیدو او نبی ته ئے په سختئه اُووئیل چه دوئ دِ معاف کړے شی ـ نو نبی د هغه درخواست قبول کړو او دا فیصله ئے اُوکړه چه بنی قَینُقاع دِ خپل ټول مال، وَسله او د کاریګرئ سامان پرېږدی او د مدینے نه دِ اُوزی (ابن سعد، ابن هشام، تاریخ طبری) ـ

دَ دے دوُو کارونو (یعنی د بنی قَینُقاع د ایستلو او د کعب بن اشرف د قتل) دَوجے نه د ویرے موده پورے یهودیان دومره اُویَریدل چه د نور زیاتی شرارت کولو همت ئے اُونهٔ شو ـ لیکن دَ دے نه روستو په شوال ۳ھ کښې د جنګ بدر د بدلے اغستلو دپاره د قریشو خلقو ډیر په زور سره په مدینه حمله اُوکړه، او دے یهودیانو اُولیدل چه د قریشو د درے زره فوج په مقابله کښې د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره صرف یو زر کسان د جنګ دپاره راوتلی دی، او په هغې کښې هم درے سوه منافقان واپس شوی دی، نو هغوئ د معاهدے اولنئ اوخرګنده خلاف ورزی په دے طریقه اُوکړه چه د مدینے په دفاع کښې د نبی سره ملګری نهٔ شو، حالانکه هغوئ دَ دے پابند وُو ـ بیا چه کله د اُحُد په جنګ کښې مسلمانانو ته لوئ نقصان اُورسیدو نو د هغوئ حوصلے نورے هم اُوچتے شوے، اَن تر دے پورے چه بنی نضیر د رسول الله صلی الله علیه وسلم د قتل کولو دپاره باقاعده یو سازش جوړ کړو چه هغه خاص په وخت باندِ ناکام شو ـ دَ دے واقعے تفصیل دا دے چه د بئرِ معونه د جنګ (صفر ۴ھ) نه روستو عَمرو بن اُمیّه ضَمرِی د بدلے اغستلو په طور په غلطئ سره د بنی عامر دوه کسان قتل کړل چه هغوئ په اصل کښې د یو داسے قبیلے سره تعلق لرلو چه د هغوئ سره مُعاهده شوی وه لیکن عَمرو په هغوئ باندِ دا ګمان کړے وُو چه کِنی د دُشمن قبیلے کسان دی ـ دَ دے غلطئ په وجه د هغوئ دَوینے تاوان په مسلمانانو باندِ واجب شوے وُو، او څرنګه چه د بنی عامر سره په معاهده کښې بنی نَضیر هم شریک وُو، نو په دے وجه رسول الله صلی الله علیه وسلم د یو څو صحابو سره پخپله د هغوئ کلی ته لاړو چه د تاوان په ورکولو کښې هغوئ ته هم د شریکیدو دعوت ورکړی ـ هلته هغوئ رسول الله په خوږو خبرو کښې مشغول کړو او دَ ننه دَ ننه ئے دا سازش اُوکړو چه د کوم مکان د دیوال سورې ته نبی ناست وُو چه د هغې مکان د چت نه په هغه باندِ یو ډبره کانړے ورغورزار کړی ـ لیکن د دے کار کولو نه مخکښې الله تعالیٰ هغه ته خبر ورکړو، او هغه فوراً پاسیدو او مدینے ته واپس راغے ـ

اُوس د هغوی سره د رعایت کولو هیڅ ګنجائش پاتے نهٔ شو ـ نبی هغوئ ته په هغه ساعت دا خبر دارے اُولیږلو چه تاسو د کومے دوکے اراده کړی وه د هغې نه څه خبر شوے یم ـ په لس ورځو کښې دَ ننه دَ ننه د مدینے نه اُوزئ، دَ دے نه روستو که څوک ستاسو په کلی کښې

اُومونده شو. تعقه شپږ په تُوره وهلے کیږی - بل طرفته عبدالله بن اُبَیّ هغوئ ته پیغام اُولیږو چه څه به تاسوته دوه زره کسان دَ اِمداد دَ پاره درکوم، او بنی قُرَیظه او بنی غَطَفان به ستاسو اِمداد له راځی، تاسو ټینګ شئ اوهرګز دَ خپل ځائے نه مهٔ خوزئ - دَ دروغو په دے بروسه باندې هغوی دَ نبیؐ دَ خبرداری داجواب ورکړو چه مونږ دَ دے ځائے نه نهٔ اُوځو، ستاسو چه څه کیدے شی هغه اُوکړه په دے باندې په ربیع الاوّل سنہ ۴ھ کښے رسول الله صلی الله علیه وسلّم دَ هغوئ ته ګیره واچوله اوصرف دَ یوڅو ورځو دَ ګیرے نه روستو (چه موده ئې په څینو روایتونو کښے شپږ ورځے او په څینو کښے پنځلس ورځے بنودلے شوی ده) هغوئ په دے شرط مدینې پریښودلوته تیار شو چه دَ وَسلې نه بغیر نور هرڅه چه هغوئ په خپلو اُوښانو باندې وړے شی هغه به وُړی - دغه شان دَ یهودیانو دَ دے دریمے شریرے قبیلے نه دَ مدینې زمکه خالی کړے شوه - په هغوئ کښے صرف دوه کسان مسلمانان شو او هلته پاتے شو. باقی تول شام او خیبر اړخ ته اُووتل -

په دے سورة کښے هم دَ دے واقع بحث شوے دے -

**موضوع او مضمونونه** دَ سورة موضوع، لکه څنګه چه بره اُوویلے شو، دَ بنی نَضِیر په جنګ باندې تبصره ده - په دے کښے مجموعی طور څلور مضمونونه بیان شوی دی -

۱ - په اوّلنو څلورو آیتونو کښے دَ دُنیا خلقو ته ویلے شوی دی چه دَ هغه انجام نه عبرت واخلئ کوم چه لږ مخکښے بنی نَضِیر قبیلے لیدلے وُو - یوه لویه قبیله چه په هغه وخت کښے دَ هغوئ تعداد دَ مسلمانانو دَ تعداد نه څه کم نهٔ وُو، چه په مال او دولت کښے دَ مسلمانانو نه ډیر زیات وُو، چه دَ جنګی سامان ورسره هیڅ کمے نهٔ وُو، چه قلا ګانے ئې هم مضبوطے مضبوطے وے، هغوئ صرف دَ یوڅو ورځو ګیرے ته هم ټینګ نهٔ شو او بے دَ یو تن دَ قتل کیدونه هغوئ دَ سَوونو کالو دَ استوګنے ځلے پریښودو - الله تعالیٰ ویلی دی چه دا دَ مسلمانانو دَ طاقت کارنامه نهٔ وه بلکه دا دَ دے خبرے انجام وُو چه هغوئ دَ الله او دَ هغه دَ رسول سره په جنګ شوی وُو او کوم خلق چه دَ الله دَ طاقت سره دَ جنګیدو خیال اُوکړی هغوئ هم دَ دغسے انجام سره مخ کیږی -

۲ - په آیت ۵ کښے دَ جنګ دَ قانون دا قاعده بیان شوی ده چه دَ جنګی ضرورتونو دَ پاره دَ دُشمن په علاقه کښے کوم تړانے اُوکړے شی هغے ته فساد فی الارض نشی ویلے -

۳ - دَ شپږم آیت نه دَ لسم آیته پورے دا ویلے شوی دی چه کوم مُلکونه دَ جنګ یا دَ صلحے په نتیجه کښے دَ اسلامی حکومت لاندې راغلی دی دَ هغے دَ زمکو او دَ هغے دَ جایئدادونو بندوبست په څه طریقه اُوکړے شی. چونکه دا اولنی موقع وه چه دَ مسلمانانو په قبضه کښے یوه علاقه راغله نو په دے وجه دلته دَ دے قانون بیان کړے شو -

۴ - دَ یوولسم آیت نه دَ اُولسم آیته پورے دَ منافقانو په هغه عمل باندې تبصره شوی ده

کوم چه هغوئ دَ بنی نضیر دَ جنګ په موقع اختیار کړے وُو او هغه سببُونه په ګوته کړے شو کوم چه په حقیقت کښې دَ هغوئ دَ دے عمل ذریعه ګرځید لی وه ـ

۵ ـ آخری رکوع ټوله یو نصیحت دے چه په هغې کښې خطاب هغه ټولو خلقو ته دے چه کوم دَ ایمان دَعوٰی کړی ده او دَ مسلمانانو په ډله کښې شامل شوی دی، لیکن دَ ایمان دَ اصل رُوح نه خالی دی ـ په دِے کښې هغوئ ته وئیلے شوی دی چه دَ ایمان اصل تقاضا څه ده ( یعنی ایمان په اصل کښې دَ انسان نه څنګه عمل غواړی ) ، په تقوٰی او په فسق کښې حقیقی فرق څه دے، دَ کوم قرآن دَ منلو دعوٰی چه هغوئ کوی دَ هغې اهمیت څه دے، او په کوم خدائے باندِ چه دَ ایمان راوړلو اقرار هغوئ کوی دَ هغه کوم صفتونه دی ـ

---

آیاتها ۲۴ سُوْرَةُ الْحَشْرِ مَدَنِيَّةٌ رکوعاتها ۳

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

سَبَّحَ لِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ ۚ وَهُوَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ۝١ هُوَ الَّذِيْٓ اَخْرَجَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ مِنْ دِيَارِهِمْ لِاَوَّلِ الْحَشْرِ ۣؔ مَا ظَنَنْتُمْ اَنْ يَّخْرُجُوْا وَظَنُّوْٓا اَنَّهُمْ مَّانِعَتُهُمْ

خاص دَ الله تسبیح ویلی ده هرهغه څیزکوم چه په آسمانونو او په زمکه کښې دے، او هم هغه غالب او حکیم[1] دے۔

هم هغه دے چه اهل کتاب کافران ئے په اوله حمله[2] کښې دَ هغوی دَ کورونو نه بهر اُوویستل۔[3] ستاسو هرګز دا ګمان نهٔ وو چه هغوی به اُوزی، او هغوی هم دا ګمان کړے وو چه دَ هغوی قلا ګانے

[1] دَ تشریح دَ پاره اُګوره تفهیم القرآن، پنځم جلد، تفسیر دَ سورة الحدید، حاشیه [1] او [2]۔ دَ بنی نضیر په ایستلو باندِ دَ تبصرے شروع کولو نه مخکښې دَ دے فقرے دَ ویلو مقصد دا دے چه په ذهن کښې دا حقیقت کینی چه دَ دے طاقتورے یهودی قبیلے سره کومه معامله اُوشوه هغه دَ مسلمانانو دَ طاقت کارنامه نهٔ وه بلکه دَ الله دَ قدرت کارنامه وه۔

[2] اصل الفاظ دی لِاَوَّلِ الْحَشْرِ دَ حشر معنیٰ دَ خوارهٔ واره خلق را جمع کول، یا خوارهٔ وارهٔ خلق را جمع کول او بهر ته ایستل۔ او دَ لِاَوَّلِ الْحَشْرِ معنیٰ ده دَ اولنی حشر سره یا دَ اولنی حشر په موقع. اُوس پاتے شوه دا خبره چه دلته دَ اوّل حشر نه مُراد څه دے، نو په دے کښې دَ مفسرینو په منځ کښې اختلاف دے۔ دَ یوے ډلے په نیز دَ دے نه مُراد دَ بنی نضیر قبیله ده کله چه هغوی دَ مدینے نه اُوویستلے شو، او دِ دے ته دَ هغوی اولنے حشر په دے معنیٰ کښې ویلے شوے دے چه دَ هغوی دویم حشر دَ حضرت عمرؓ په زمانه کښې په هغه وخت کښې اُوشو کله چه یهود او نصاری دَ عربو دَ جزیرے نه اُوویستلے شو، او آخری حشر به دَ قیامت په ورځ وی۔ دَ دویمے ډلے په نیز دَ دے نه مُراد دَ مسلمانانو دَ فوج هغه اجتماع ده کومه چه دَ بنی نضیر سره دَ جنګ کولو دَ پاره راغونډ شوی وُو، او دَ لِاَوَّلِ الْحَشْرِ معنیٰ دا ده چه مسلمانان دَ هغوی سره دَ جنګ کولو دَ پاره راجمع شوی وُو او جنګ لا شروع شوے نهٔ وُو چه دَ الله په قدرت سره هغوی وطن پرېښودو ته تیار شو۔ یعنی دلته دا الفاظ دَ اولے حملے په معنیٰ کښې استعمال شوی دی۔ شاه ولی الله صاحب دَ دے ترجمه کړې ده "دراوّل جمع کردن لشکر"۔ او دَ شاه عبدالقادر صاحب ترجمه ده "پہلے ہی بھیڑ ہوتے"۔ زمونږ په نیز دا دویم مفهوم دَ دے الفاظو څرګند مفهوم دے۔

حُصُونُهُم مِّنَ اللَّهِ فَأَتَاهُمُ اللَّهُ مِنْ حَيْثُ لَمْ يَحْتَسِبُوا ۖ وَقَذَفَ

به هغوئ د الله نه بچ کړي. لیکن الله د دا آړخ نه په هغوی راغے چه هغې ارخ ته د هغوخیال هم نهٔ وُو شوی تلے هغه

سے دلته په شروع کښے دا خبره په ذهن کښے کینول پکار دی چه د بنی نضیر د ایستلو په معامله کښے څه ذهنی پریشانی پیدا نهٔ شی - د نبی صلی الله علیه وسلم سره د بنی نضیر باقاعده لیکلی شوی معاهده وه - دا معاهده هغوئ رد کړې نهٔ وه چه معاهده ختمه شوی ګڼلے شی - لیکن په کومه وجه چه په هغوی باندِ حمله اُوشوه هغه داوه چه هغوئ د ډیر وخلاف ورزۍ کولو نه روستو په آخر کښے یو دا سے حرکت کارکړے وُو چه د هغې مطلب وعده ماتېدل وُو. هغه دا وُو چه هغوی د خپل معاهد ډلے ، یعنی د مدینے د اِسلامی ریاست د صدر د قتلولو سازش کړے وُو او هغه سازش څه په د ے طریقه ډاګے ته شوے وُو چه کله په هغوی د وعدے د ماتولو الزام اُولګولے شو نو هغوئ ترِ انکار اُونه کړے شو. د هغې نه روستو رسول الله صلی الله علیه وسلم هغوی ته د لسو ورځو مهلت ورکړو چه په دې موده کښے د مدینے نه بهر اُوزئ ، کنۀ نو بیا به ستاسو خلاف جنګ کیږی - دا مهلت ټیک د قرآن مجید د دے حکم مطابق وُو چه "که چرے تاته د یو قوم د طرفنه د خیانت کولو (یعنی د وعدے ماتولو) یره وی نو د هغه معاهده په ډاګه د هغه مخے ته اُوغورزوه" - (الانفال - ۵۸) - په د ے وجه د هغوئ ایستلو ته الله تعالیٰ خپل فعل وئیلے د ے ، ځکه چه دا ټیک د الله د قانون مطابق وُو. یعنی هغوی رسول الله صلی الله علیه وسلم او مسلمانانو نهٔ بلکه الله اُوویستل - او د هغوئ ایستلو ته د الله تعالیٰ د خپل فعل وئیلو دویمه وجه په وړاندِ آیتونو کښے بیان شوی ده -

سے دلته د ځان پوهه کولو د پاره دا خبره په نظر کښے ساتل پکار دی چه بنی نضیر د سوُونو کالو راسے دلته پاخه ډیره شوی وُو - د مدینے نه بهر د هغوی ټوله آبادی په یو ځائے غونډه پرته وه چه په هغې کښے د هغوئ د خپلے قبیلے نه سِوا بل څوک موجود نهٔ وُو - هغوئ د ټول کلی نه قلا تاؤ کړی وه ، او د هغوئ کورونه هم د قلاګانو په شکل کښے جوړ شوی وُو لکه څنګه چه عام طور په قبائیلی علاقو کښے جوړیږی - بیا د هغوئ تعداد هم د هغه وخت د مسلمانانو نه څه کم نهٔ وُو - او په خپله په مدینه کښے د ننه ډیر منافقان د هغوی په شا باندِ ولاړ وُو - دا وجه وه چه د مسلمانانو هرګز دا توقع نهٔ وه چه دوئ به ګنی د جنګ کولو نه بغیر صرف په ګیر ے اچولو سره بے حوصلے شی او خپل ځائے به بے کړاوه پریږدی - د غه شان په خپله د بنی نضیر هم دا خبره په وهم او ګمان کښے نهٔ وه چه څوک به په شپږ و ورځو کښے د ننه دا ځائے د هغوئ نه واخلی - اګرچه بنی قینقاع د هغوئ نه مخکښے ایستلے شوی وُو او د هغوئ د خپلے بهادرۍ ټول خیال په ځائے بند پاتے شوے وُو ، لیکن هغوئ د مدینے په یوه محله کښے آباد وُو او د هغوئ خپل جُدا قلعه بند کلے نهٔ وُو ، په د ے وجه به بنی نضیر دا ګمان کولو چه د مسلمانانو په مقابله کښے د هغوئ نهٔ ټینګیدل څه نامناسب نهٔ وُو - د د ے برخلاف چه هغوئ به خپل محفوظ کلی ته او خپلو مضبوطو قلاګانو ته کتل نو دا خیال به ئے هم نهٔ شو کولے چه څوک به ګنی هغوئ د دے ځائے نه اُوباسی - دا وجه وه چه کله رسول الله صلی الله علیه وسلم هغوئ له د مدینے د وتلو د پاره لس ورځے مهلت ورکړو نو هغوئ ډیر په غرور سره جواب ورکړو چه مونږ نهٔ اُوځو او ستاسو چه څه کیدے شی هغه اُوکړئ -

دلته دا خبره په ذهن کښې را پیدا کیږي چه الله تعالیٰ دا په کومه وجه اُوفرمائیل چه "هغوئ هم دا ګمان کړے وُو چه دَ هغوئ قلاګانے به هغوي دَ الله نه بچ کړي"؟ آیا واقعي بني نضیر ته دا معلومه وه چه دَ هغوئ مقابله دَ محمد بن عبدالله (صلی الله علیه وسلم) سره نهٔ ده بلکه دَ الله سره ده؟ او آیا دَ دے معلوماتو باوجود هم دَ هغوئ دا خیال وُو چه دَ هغوئ قلاګانے به هغوي دَ الله نه بچ کړي؟ دا یوه دا سے خبره ده چه دَ هغه سړي ذهن به پریشانه کړي څوک چه دَ یهودي قوم دَ نفسیاتو نه او دَ هغوئ دَ سرګونو کالو دَ عمل نه نا خبره وي. دَ عام انسانانو په حقله څوک دا ګمان نهٔ شي کولے چه هغوئ ته به دا معلومه وي چه مقابله دَ الله سره ده او بیا به هم دَ هغوئ دا خیال وي چه دَ هغوئ قلاګانے او وَسلے به هغوئ دَ الله نه بچ کړي. دا وجه ده چه یو نا واقفه سړے به دلته دَ الله تعالیٰ دَ کلام دا معنیٰ کوي چه بني نضیر قبیلے په ظاهره دَ خپلو قلاګانو مضبوطیا ته کتلی وُو او په دے دوکه کښے پراته وُو چه هغوئ به دَ رسول الله صلی الله علیه وسلّم دَ حملے نه بچ شي، لیکن حقیقت دا وُو چه دَ هغوئ مقابله دَ الله سره وه او دَ هغه نه دَ هغوئ قلاګانو هغوئ نهٔ شو بچ کولے. لیکن واقعه دا ده چه یهودیان په دے دُنیا کښے یو دا سے عجیبه قوم دے چه قصداً دَ الله تعالیٰ مقابله کوي، دَ الله رسولان ئے ښه پیژندل چه دا دَ الله رسولان دي او بیا ئے هم قتل کړي دي او بیر په فخر سره ئے سینه ټپولی ده او وئیلی ئے دي چه مونږ دَ الله رسول قتل کړو. دَ دے قوم روایات دا دي چه دَ هغوئ دَ مشر وار حضرت یعقوبؑ سره ټوله شپه دَ الله تعالیٰ کبډی وه او دَ سحر پورے الله تعالیٰ هغه را اُونهٔ پرزوَو. چه سحر شو او الله تعالیٰ هغه ته اُووئیل چه ما پریږده چه لا ړشم نو هغه ورته اُووئیل چه څه تا تر هغے نهٔ پریږدم ترڅو چه تا ماله برکت نهٔ وي راکړے. الله تعالیٰ دَ هغه نه تپوس اُوکړو چه ستا نوم څه دے؟ هغه اُووئیل چه یعقوب. الله تعالیٰ اُوفرمائیل چه آئینده به ستا نوم یعقوب نهٔ وي بلکه اسراءیل به وي "ځکه چه تا دَ خدائے او دَ سړو سره پرزوَونه اُوکړه او غالب شوے"۔ اُوګوره دَ یهودیانو دَ مقدّسو کتابونو نوے ترجمه (The Holy Seriptures) چه جوش پبلکیشن سوسائټي آف امریکه په ۱۹۵۴ء کښے شائع کړې ده. کتاب پیدائش، باب ۳۲. آیتونه ۲۵ تا ۲۹. دَ عیسائیانو دَ بائیبل په ترجمه کښے هم دا مضمون په دے طریقه بیان شوے دے. دَ یهودي ترجمے په حاشیه دَ "اسرائیل" معنیٰ لیکلے شوې ده: (He who striveth with God) یعنی "هغه څوک چه دَ خدائے سره زور آزمائي اُوکړي"۔ او په سائیکلوپیډیا آف ببلیکل لټریچر کښے عیسائي عالمانو دَ اسراءیل دَ معنیٰ تشریح دا کړې ده: (Wrestler with God)، "دَ خدائے سره کُشتي کوُنکے"۔ بیا دَ بائیبل په هوسیع کتاب کښے دَ حضرت یعقوب تعریف دا بیان کړے شوے دے چه "هغه دَ خپل طاقت په زمانه کښے دَ خدائے سره کُشتي اُوکړه. هغه دَ فرښتو سره کُشتي اُوکړه او غالب شوئ (باب ۱۲. آیت ۴)۔ اُوس ظاهره خبره ده چه بني اسرائیل آخر هم دَ هغه اسراءیل یا نو ځامن خو دي چا چه دَ هغوئ دَ عقیدے مطابق دَ خدائے سره زور آزمائي کړې وه او دَ هغوئ سره ئے کُشتي کړې وه. دَ هغوئ دَ پاره آخر دا څه ګرانه خبره ده چه ښه ورته معلومه وي چه دَ خدائے سره مقابله ده او بیا هم مقابلے ته ټینګ ولاړ وي. دا وجه وه چه هغوئ دَ خپل اِقرار مطابق دَ خدائے پیغمبران قتل کړل او هم په دے وجه هغوئ حضرت عیسیٰؑ په خپل ګمان کښے په سولئ اُوخیژوُو او جهراً ئے دعوي اُوکړه چه اِنَّا قَتَلْنَا الْمَسِیْحَ عِیْسَی ابْنَ مَرْیَمَ رَسُوْلَ اللّٰهِ "مونږه مسیح عیسیٰ ابن مریم دَ الله رسول قتل کړو"۔ لهذا دا خبره دَ هغوئ دَ روایاتو نه خلاف نهٔ وه چه هغوي محمّد صلی الله علیه وسلّم پیژندو چه دَ الله رسول دے او بیا هم دَ هغه خلاف جنګ کوُو. که دَ هغوئ عوامو نهٔ پیژند و نو دَ هغوئ ربّي او احبار و خو ښه پیژندو چه محمّد دَ الله رسول دے.

فِیْ قُلُوْبِهِمُ الرُّعْبَ یُخْرِبُوْنَ بُیُوْتَهُمْ بِاَیْدِیْهِمْ وَاَیْدِی الْمُؤْمِنِیْنَ ۚ فَاعْتَبِرُوْا یٰۤاُولِی الْاَبْصَارِ ۝۲ وَلَوْلَاۤ اَنْ كَتَبَ اللّٰهُ عَلَیْهِمُ الْجَلَآءَ لَعَذَّبَهُمْ فِی الدُّنْیَا ؕ وَلَهُمْ فِی الْاٰخِرَةِ عَذَابُ النَّارِ ۝۳ ذٰلِكَ

دَ هغوئ په زړونو کښې رُعب ورواچولو۔ نتیجه دا شوه چه هغوئ پخپله په خپلو لاسونو هم خپل کورونه برباد ول اود مومنانو په لاسونو هم برباد ول۔ نو عبرت حاصل کړئ اے دَ سترګو خاوندانو!
که چرے الله دَ هغوئ په حق کښې بے وطنه کیدل نهٔ وے لیکلی نو هم په دُنیا کښې به ئے ورله عذاب ورکړو شو هم او په آخرت کښې خو دَ هغوئ دَ پاره دَ دوزخ عذاب هسے هم دے۔ دا ټول هرڅه په دے وجه اُوشو چه

دَ دے ډیر مثالونه پخپله په قرآن کښې موجود دی۔ (دَ تفصیل دَ پاره اُوګورئ تفهیم القرآن، اول جلد، البقره، حاشیه ۷۹-۹۵۔ النساء، حاشیه ۱۹۰-۱۹۱۔ څلورم جلد، الصافات، حاشیه ۷۰-۷۳)۔

ھ۵ په هغوئ باندې دَ الله تعالیٰ دَ راتللو دا مطلب نهٔ دے چه الله په بل ځائے کښې وُو او بیائے دَ هغه ځائے نه په هغوئ حمله اُوکړه۔ بلکه دا مجازی خبره ده۔ اصل مدعا دِ دے خبری ته پام راګرزول دی چه دَ الله سره په مقابله کولو کښې دَ هغوئ دا خیال وُو چه الله تعالیٰ په هغوئ باندې صرف په دے یو شکل کښې مُصیبت راوستلے شی چه یو لښکر په هغوئ راولی، او هغوئ په دے ګمان کښې پراته وُو چه دَ دے مُصیبت نه خو به موږ دَ خپلو مضبوطو قلا ګانو په ذریعه بچ شو۔ لیکن هغه دَ دا سے لارے نه په هغوئ حمله اُوکړه چه دَ هغے اړخ نه هغوی دَ څه مُصیبت راتللو توقع نهٔ لرله۔ او هغه لاره دا وه چه هغه دَ ننه نه دَ هغوئ حوصلے کمزورے کړے چه بیائے نهٔ وسلے څه کار کولے شو او نهٔ مضبوطو قلا ګانو۔

لله یعنی تباهی په دوه قسمه اُوشوه۔ دَ بهر نه مسلمانانو کیره واچوله او دَ هغوئ دَ قلا ګانو دیوالونه ماتول ئے شروع کړل۔ او دَ ننه نه پخپله اول خو دَ مسلمانانو دَ مخ نیوی دَ پاره خپل کورونه اُونړول او دَ هغے کانړی او لرګی ئے دَ هغوئ په لاره کښې واچول۔ بیا چه کله دَ هغوئ یقین راغے چه هغوئ به دَ دے ځائے نه خامخا اُوزی، نو هغوئ خپل هغه کورونه چه ډیر په شوق سره ئے جوړ کړی او ښائیسته کړی وُو، هغه ئے په خپلو لاسونو اُونړول چه دَ مسلمانانو په کار رانشی۔ دَ دے نه روستو چه کله هغوئ دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم سره په دے شرط صلح اُوکړه چه موږ دَ مرګ نه معاف کړے شو او اجازت دِ راکړے شی چه دَ وسلے نه سِوا نور څه دَ ځان سره دَ دے ځائے نه وړے شو هغه ویسونو په تلو تلو کښې ئے خپلے دروازے او کړکیانے او ستنے وغیره اُوویستلے، او څینو خلقو خو دَ لرګو چهتونه او بښونه په اُوښانو بار کړل او ورسره ئے وړل۔

ـ۵ په دے واقعه کښے دَ عبرت ډيراړخونه دی چه هغې ته په دے وړه شان فقره کښے اشاره شوی ده - دا يهوديان آخرَ دَ تيروشو پيغمبرانو امتيان خو وُو - خدائے ئے منلو- کتابونه ئے منل - مخکينی پيغمبران ئے منل - آخـرت ئے منو- په دے لحاظ سره په اصل کښے هغوئ پخوانی مسلمانان وُو- ليکن کله چه هغوئ دين او اخلاق شاته اُوغورزول او صرف دَ خپل نفس دَ خواهشاتو او دَ دُنيا دَ فائيدو دَ پاره ئے دَ حق سره دُشمنی شروع کړه او پخپله دَ خپلو وعدو ئے هم څه لحاظ اُونهٔ کړو نو دَ الله تعالیٰ دَ مهربانئ نظر دَ هغوئ نه واوړيدو- کنئ نو ظاهره خبره ده چه دَ الله تعالیٰ دَ هغوی سره څه ذاتی دُشمنی نهٔ وه - په دے وجه دَ ټولو نه اوّل خو پخپله مسلمانانو ته وئيلے شوی دی چه دَ هغوئ دَ انجام نه عبرت واخلی چه مسے نهٔ هغوئ هم خپل ځان دَ يهوديانو پشان دَ خدائے نيازبين اولاد او ګڼړی او دا ئے خيال راشی چه کښی بس صرف دَ خدائے دَ آخـری نبیؐ په اُمّت کښے شامليدل دَ هغوئ دَ پاره کافی دی او دَ هغے نه روستو دَ دين او دَ اخلاقو څه پابندی دَ هغوی دَ پاره څه ضروری نهٔ ده - دَ دے سره دَ دُنيا هغه ټولو خلقو ته هم دَ دے واقعے نه عبرت ورکړے شوے دے چه هغوئ قصداً عمداً دَ حق مخالفت کوی او بيا په خپل دولت او طاقت او په خپلو وسائلو باندِ دا بروسه کوی چه دا څيزونه به کښی هغوئ دَ خدائے دَ عذاب نه بچ کړی -دَ مدينے يهوديان دَ دے خبری نه څه ناواقفه نهٔ وُو چه نبی صلی الله عليه وسلّم دَ يو قوم يا دَ يو ے قبيلے دَ اُوچتولو دَ پاره نهٔ دے راپاسيدلے بلکه هغه يو اُصولی دعوت پيش کوی چه دَ دُنيا ټولو انسانانو ته غږ کوی او هر انسان، خواه که هغه دَ هر نسل او دَ هر وطن سره تعلق لری، دَ دے دعوت په قبلولو سره دَ هغه په اُمّت کښے شامليدے شی - هغوئ ليدل چه په اُمّت مُسلمه کښے دَ حبشو بلالؓ، دَ رُوم صُهيبؓ او دَ فارس سلمانؓ تـه هغه حيثيت حاصل وُو کوم چه پخپله دَ رسول الله صلی عليه وسلم خپل خاندان ته حاصل وُو- په دے وجه دَ هغوئ په مخکښے دا څه خطره نهٔ وه چه قريش او اَوس او خَزرج به په هغوئ باندِ مُسلّط شی- هغوئ دَ دے نه هم ناواقفه نهٔ وُو چه نبیؐ کوم اُصولی دعوت پيش کوی هغه بالکل هم هغه دعوت دے کوم چه په پخپله دَ هغوئ پيغمبرانو پيش کولو- نبیؐ دا دعوٰی نهٔ وه کړی چه ما يو داسے نوے دين راوړے دے چه هغه مخکښے چا نهٔ وُو راوړے او تاسو خپل دين پريږدئ او ځما دا دين قبول کړئ - بلکه دَ نبیؐ دعوٰی دا وه چه دا هم هغه دين دے چه دَ اوّل سرنه دَ خدائے ټولو پيغمبرانو راوړے دے، او دَ خپل تورات نه هغوئ پخپله هم دَ دے خبری تصديق کولے شو چه واقعی دا هم هغه دين دے، دَ دے په اُصولو کښے دَ پيغمبرانو دَ دين دَ اُصولو سره هيڅ فرق نشته - په دے وجه خو په قرآن مجيد کښے هغوئ ته وئيلے شوی وُو چه وَاٰمِنُوْا بِمَآ اَنْزَلْتُ مُصَدِّقًا لِّمَا مَعَكُمْ وَلَا تَكُوْنُوْٓا اَوَّلَ كَافِرٍۢ بِهٖ "ايمان راوړئ ځما په نازل کړے شوی هغه تعليم باندِ چه دَ هغه تعليم تصديق کوی کوم چه ستاسو سره دَ مخکښے نه موجود دے، او دَ ټولو نه اول پرتاسو کافران مهٔ جوړيږئ"۔ بيا هغوئ دا هم ليدل چه محـمّد صلی الله عليه وسلّم دَ څنګه اخلاقو انسان دے ، او دَ هغه دَ دعوت په قبلولو سره دَ خلقو په ژوند کښے څومره لوئ انقلاب راغلے دے - انصار خو دَ ډيرے مودے راسے دَ هغوئ نزدے ګاونډيان وُو- دَ اِسلام راوړلو نه مخکښے چه دَ هغوئ کوم حالت وُو هغه هم دِ دے خلقو ليدلے وُو او دَ اِسلام راوړو نه روستو چه دَ هغوئ کوم حالت شو هغه هم دَ دوئ مخے ته وُو- نو دعوت او بلونکے يعنی داعی او دَ دعوت قبلولو اثرات ، هرڅه هغوئ ته په ډاګه وُو- ليکن دَ دے هرڅه ليدلو او پيژندلو باوجود هغوئ تش دَ خپل نسلی ننګ دَ پاره او دَ خپلو دُنيوی فائيدو دَ خاطره دَ هغه څيز خلاف خپل ټول زور اولګوُو

بِاَنَّهُمۡ شَآقُّوا اللّٰهَ وَ رَسُوۡلَهٗ ۚ وَ مَنۡ يُّشَآقِّ اللّٰهَ فَاِنَّ اللّٰهَ شَدِيۡدُ الۡعِقَابِ ﴿۴﴾ مَا قَطَعۡتُمۡ مِّنۡ لِّيۡنَةٍ اَوۡ تَرَكۡتُمُوۡهَا قَآئِمَةً عَلٰٓى اُصُوۡلِهَا فَبِاِذۡنِ اللّٰهِ وَلِيُخۡزِىَ الۡفٰسِقِيۡنَ ﴿۵﴾

---

هغوئ دَ الله اودهغه دَ رسول مقابله اُوکړه، اوڅوک چه دَ الله مقابله کوی الله هغه له په سزا په سزا ورکولوکښے ډیر سخت دے۔

تاسوچه دَ کجورو کومے ونے پرے کړے یا موپه خپلو جرړو باندِ ولاړے پریښودلے، دا هرڅه خاص دَ الله په اجازت سره وو۔ او(اوالله دا اجازت ځکه ورکړو) چه فاسقان خلق خوار او ذلیله کړی۔

---

چه دَ هغې په حق والی کښے کم نه کم دَ هغوئ دَ پاره دَ شک ګنجائش نهٔ وو۔ د حق سره دَ قصداً دُشمنئ کولو نه روستو هغوئ دا اُمید لرلو چه دَ هغوئ قلاګانے به هغوئ دَ خدائے دَ عذاب نه بچ کړی۔ حالانکه ټول انسانی تاریخ په دے خبره ګواه دے چه دَ خدائے طاقت دَ چا په مقابله کښے راشی نو هغه بیا په وَسله نشی بچ کیدے۔

۸ دَ دُنیا دَ عذاب نه مُراد دے دَ هغوی نوم نښان ختمول۔ که چرے هغوئ دَ صلحے کولو په ځائے دَ خپل ځان دَ بچ کولو دَ پاره جنګ له راوتلی وے نو نوم نښان به ئے بالکل ختم شوے وے۔ دَ هغوئ سری به وژلے شوی وے اودَ هغوئ ښځے اوبچی به وینځے غلامان جوړ شوی وے۔ چه دَ فدیئے په ذریعه به ئے څوک خلاصوُنکے هم نهٔ وے۔

۹ دا اِشاره دے طرفته چه مسلمانانو کله ګیره شروع کړه نو دَ بنی نضیر دَ کلی په خواؤ شا کښے چه دَ کجورو کوم باغونه وُو دَ هغے ډیرے وُنے هغوئ پرے کړلے یا اُوسوزولے چه ګیره په آسانئ سره واچولے شی، اوکومو وُنو چه دَ فوجیانو مخه نهٔ بندَوله هغه ئے ولاړے پریښودلے۔ په دے باندِ دَ مدینے منافقانو او بنی قریظه او خپله بنی نضیر شور جوړ کړو چه محمد صلی الله علیه وسلم خو په زمکه کښے دَ فساد کولو نه خلق منع کوی، خو اوګورئ چه دا ښنے ښنے میوه دارے وُنے وهلے کیږی، دا په زمکه کښے فساد نهٔ دے نو اَخر څه دی۔ په دے باندِ الله تعالیٰ دا حکم نازل کړو چه تاسو کومے وُنے پرے کړے او کومے مو ولاړے پریښودے، په دے کښے یو کار هم ناجائزه نهٔ دے بلکه دواړه دَ الله په اجازت شوی دی۔ دَ دے نه دا شرعی مسئله را اوزی چه دَ جنګی ضرورتونو دَ پاره کوم تخریبی کار ضروری وی هغه ته په زمکه کښے فساد نشی ویلے، بلکه په زمکه کښے فساد دا دے چه یو فوج دَ جنګ په نشه کښے راشی او هغه دَ دُشمن وطن ته ورننوزی او چه مخے له پټی، څاروی، باغونه او آبادی هرڅه ورزی هغه تباه کوی۔ په دے معامله کښے عام حکم خو هغه دے کوم چه حضرت ابوبکر صدیق شام ته دَ لیږلو په وخت کښے فوجیانو ته کړے وُو چه میوه دارے وُنے مهٔ پرے کوئ، فصلونه مه خرابوئ، او کلی مهٔ ورانوئ۔ دا دَ قرآن مجید دَ هغه تعلیم مطابق دے

چه په کوم کښے په فسادیانو باندے بَد وئیلے شوی دی او هغه ته زورنه وَرکړے شوی ده چه "کله هغوئ ته اقتدار په لاس ورشی نو فصلونه او نسلونه تباه کوی" (البقره - ۲۰۵). لیکن دَ جنګی ضرورتونو دَپارَه خاص حکم داد ے چه کله چرے دَ دُشمن خلاف دَ جنګ کولو دَپاره څه قِسم تخریبی کار ضروری وی نو هغه کیدے شی. حضرت عبد الله بن مسعود دَد ے آیت په تشریح کښے دا وضاحت کړے دے چه قطعوا منها ما کان موضعاً للقتال، "مسلمانانو دَ بنی نضیر دَ ونو نه صرف هغه وُنے پرے کړے وے کومے چه دَ جنګ په ځائے کښے ولاړے وے" (تفسیر نیسابوری). دَ اسلام په فقهاؤ کښے ځینو فقهاؤ دَ معاملے دا اړخ پریښودے دے او دا رائے ئے ظاهره کړی ده چه صرف خاص په دے واقعه کښے دَ بنی نضیر وُنے پرے کول جائز وُو، دَ دے نه دَ جواز عامه مسئله نهٔ را اُوزی چه کښی هرکله جنګی ضرورت وی نو دَ دُشمن وُنے پرے کړے کیدے او سوزَولے کیدے شی. امام اَوزاعی، لَیث او ابوثور دے طرفته تلی دی. لیکن دَ جمهور فقهاؤ مسلک داد ے چه دَ اهم جنګی ضرورتونو دَپاره دا سے کول جائز دی، البته دَ تخریب او دَ لوټ مار دَپاره دا کار جائز نهٔ دے.

یو سړے دا تپوس کولے شی چه دَ قرآن مجید دا آیت خو مسلمانان مطمئن کولے شی، لیکن کوم خلق چه قرآن دَ کلام الله په حیثیت سره نهٔ منی هغوئ دَ خپل اعتراض په جواب کښے په دے څنګه مطمئن کیدے شو چه دا دواړه کارونه دَ الله دَ اجازت په وجه جائز دی؟ دَ دے جواب داد ے چه دَ قرآن دا آیت خاص دَ مسلمانانو دَ مطمئن کولو دَپاره نازل شوے دے، دَ کافرانو مطمئن کول هډو دَ دے مقصد نهٔ دے، دا خو دَ یهودیانو او دَ منافقانو دَ اعتراض دَ وجے نه، یا په خپله دَ مسلمانانو په زړونو کښے دا فکر را پیدا شوے وُو چه هسے نه مونږه په زمکه کښے فساد کړے وی، په دے وجه الله تعالیٰ هغوئ له اطمینان ورکړو چه دَ کیرے اچولو دَ ضرورت دَپاره څه وُنے پرے کول، او چه کومے وُنے دَ کیرے نه بندَ وی هغه پریښودل دا دواړه کارونه دَ الله تعالیٰ دَ قانون مطابق صحیح وُو.

محدّثینو چه کوم روایتونه نقل کړی دی په هغے کښے په دے خبره باندے اختلاف دے چه آیا دَ دے ونو پریکولو او سوزَولو حکم په خپله رسول الله صلی الله علیه وسلم کړے وُو، یا مسلمانانو په خپله دا کار اُوکړو او روستو ئے بیا دَد ے شرعی مسئله دَ نبیؐ نه اُوتپوسله. دَ حضرت عبد الله بن عمرؓ روایت داد ے چه نبیؐ په خپله دَد ے حکم کړے وُو (بخاری، مُسلم، مسندِ احمد، ابن جریر). هم دا روایت دَ یزید بن رُومان هم دے (ابن جریر). دَ دے برخلاف دَ مُجاهد او دَ قتاده روایت داد ے چه مسلمانانو په خپله دا وُنے پرے کړے وے، بیا په هغوئ کښے په دے خبره اختلاف راغے چه دا کار کول پکار دی او که نهٔ. ځینو کسانو وئیل چه دا کار جائز دے او ځینو وئیل چه نهٔ دے جائز. آخر دا چه الله تعالیٰ دا آیت نازل کړو او دَ دواړو ډلو کارونو ته ئے صحیح اُووئیل (ابن جریر). دَ دے تائید دَ حضرت عبد الله بن عباس دا روایت کوی چه دَ مسلمانانو په زړونو کښے په دے خبره فکر را پیدا شو چه په مونږه کښے ځینو کسانو وُنے پرے کړی دی او ځینو نهٔ دی پریکړی، اوس دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم نه تپوس کول پکار دی چه په مونږ کښے دَ چا کار دَ اجر مستحق دے او دَ چا په کار به گرفت وی. (نسائی). په فقهاؤ کښے چه کومو خلقو اولنی روایت له ترجیح ورکړی ده هغوئ دَ دے نه دا دلیل پیش کوی چه دا دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم اجتهاد وُو چه روستو الله تعالیٰ په وحی جلی (یعنی په قرآن) سره محکم کړو او دا دَ دے خبرے ثبوت دے چه په کومو معاملاتو کښے به دَ الله تعالیٰ حکم موجود نهٔ وُو په هغے کښے به نبیؐ په اِجتهاد باندے عمل کولو.

وَمَآ اَفَآءَ اللّٰهُ عَلٰى رَسُوْلِهٖ مِنْهُمْ فَمَآ اَوْجَفْتُمْ عَلَيْهِ مِنْ خَيْلٍ وَّلَا رِكَابٍ وَّلٰكِنَّ اللّٰهَ يُسَلِّطُ رُسُلَهٗ عَلٰى مَنْ يَّشَآءُ ط

اوکوم مال چه الله تعالیٰ دَ هغوئ دَ قبضے نه را اُوویستوا وخپل رسول ته ئے واپس ورکړو په هغے باندِ تاسو خپل آسونه او خپل اُوښان نهٔ دی زغلولی ، بلکه الله چه په چا اُوغواړی په هغوئ باندِ خپل رسولان غالب راولِی ،

بل طرفته چه کوموفقهاؤدوېم روایت له ترجیح ورکړی ده هغوئ دَ دے نه دا دلیل پیش کوی چه دَ مسلمانانوڼ وَوړلو په خپل خپل اجتهاد سره دوه مختلفے رائے اختیارکړے وے او الله تعالیٰ دواړه جائز اُوګرځولے ، نوکه چرے په نیک نیتئ سره اجتهاد اُوکړے شی او عالمان مختلفے رائے قائمے کړی نو اګرکه دَ هغوئ رائے دَ یو بل نه مختلفے وی ، لیکن دَ الله په شریعت کښے به هغوئ ټول په حق باندِ وی۔

سله یعنی دَ الله اراده داوه چه په وُنو پریکولو سره هم دَ هغوئ رسوائی اُوشی او په نهٔ پریکولو سره هم۔ په وَنو پریکولو سره دَ هغوئ دَ خوارو ذلیله کیدو اړخ داؤ چه کوم باغونه هغوئ په خپلو لاسونو لګولی وُو او دَ ډیرے مودے راسے دَ هغے مالکان وُو ، هم دَ هغه باغونو وُنے دَ هغوئ په مخکښے پریکړے کیدلے او هغوئ تر څوک منع کولے نهٔ شو۔ یو معمولی کروندګر او باغوان هم په خپل پټی یا باغ کښے دَ بل چا واک اختیار برداشت کولے نهٔ شی ۔که څوک دَ هغه پټے یا باغ دَ هغه په مخ کښے برباد وی نو هغه پرِځان مړ کوی۔ اوکه هغه په خپل جائیداد کښے دَ بل چا لاس نهٔ شی منع کولے نو دا به دَ هغه دَپاره ډیرہ دَ ذلت او دَ کمزورئ نښه وی۔ لیکن دلته یوه پوره قبیله چه دَ سَوُونو کالو راسے په دِ دے ځائے کښے آباده وه ، ډیر په بے وَسئ سره ګوری چه دَ هغوئ ګاونډیان دَ هغوئ په باغونو ورغلی دی او دَ هغے وُنے بربا دَوی ،لیکن هغوئ ورته هیڅ نهٔ شی وئیلے ۔ دَدے نه روستو که هغوئ په مدینه کښے وُسیدلے هم خو هیڅ عزت به ئے پاتے نهٔ وُو۔ پاتے شو دَ وَنو په نهٔ پریکولو کښے دَ ذلت اړخ ، نو هغه داؤ چه کله هغوئ دَ مدینے نه اُووتل نو هغوئ کتل چه دَ پرونه پورے کوم شنه باغونه دَ هغوئ په قبضه کښے وُو هغه نن دَ مسلمانانو په قبضه کښے دی ۔که دَ هغوئ وَس کیدے نو ټول باغونه به ئے وهلی وے او یوه وُنه به ئے هم مسلمانانو ته نهٔ وے پریښودے۔ لیکن دَ بے وَسئ په وجه هغوئ هرڅه په ځائے پریښودل او دَ افسوس دَ سَړو سَړو اسویلو سره لاړل۔

سله اُوس دَ هغه جائیدادونو ذکرکیږی کوم چه مخکښے دَ بنی نَضِیر په ملکیت کښے وُو او دَ هغوئ دَ بے وطنه کیدو نه روستو دَ اسلامی حکومت په قبضه کښے راغلل۔ دَ هغے په حقله دَ دے ځائے نه دَ لسم آیته پورے الله تعالیٰ دَ هغے دَ انتظام کولو طریقه ښودلی ده ۔ چونکه دا اوله موقع وه چه یو علاقه فتحه شوه او دَ اسلامی حکومت په قبضه کښے راغله ، او وړاندِ ډیرے علاقے فتح کیدونکے وے ، نو په دے وجه دَ فتوحاتو په شروع کښے دَ فتحه کړے شوو زمکو قانون بیان کړے شو۔ دلته دَ غور کولو قابله خبره داده چه الله تعالیٰ مَآ اَفَآءَ اللّٰهُ عَلٰى رَسُوْلِهٖ مِنْهُمْ " دَ هغوئ نه چه الله څه واپس کړل خپل رسول ته" الفاظ

وَاللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَیْءٍ قَدِیْرٌ ﴿۶﴾ مَاۤ اَفَآءَ اللّٰهُ عَلٰى رَسُوْلِهٖ مِنْ اَهْلِ الْقُرٰى فَلِلّٰهِ وَلِلرَّسُوْلِ وَلِذِی الْقُرْبٰى وَالْیَتٰمٰى وَالْمَسٰكِیْنِ وَابْنِ السَّبِیْلِ كَیْ لَا یَكُوْنَ دُوْلَةًۢ بَیْنَ الْاَغْنِیَآءِ مِنْكُمْ

او الله په هر څیز باندِ قادر دے[۱۲]۔ کوم مال چه الله دَ دے کلو دَ خلقونه واپس خپل رسول ته ورکړی هغه دَ الله او دَ رسول او دَ رشته دارانو او دَ یتیمانو او دَ مسکینانو او دَ مسافرانو دَ پاره دے[۱۳] خاص دَ دے غرض دَ پاره چه هغه صرف ستاسو دَ مالدارو خلقو په منځ کښے تاویږی را تاویږی نهٔ[۱۴]۔

استعمال کړی دی ۔ دَ دے الفاظونه پخپله دا مطلب را اوُزی چه دا زمکه او دَ زمکے په سر ټول څیزونه په اصل کښے دَ هغه خلقو حق نهٔ دے کوم چه دَ الله جل شانه باغیان دی ۔ دَ هغوئ که څۀ په دوئ باندِ قبضه ده نو دا په حقیقت کښے داسے قبضه ده لکه چه یو خیانت گر نوکر دَ خپل مالک مال اوُوهی ۔ دَ دے ټولو مالونو اصل حق داد ے چه دادِ دَ هغے دَ حقیقی مالک، الله رَبّ العالمین په اطاعت کښے دَ هغهٔ دَ مرضئ مطابق استعمال کړے شی، او دَ هغے دا استعمال صرف مومنان صالحان کولے شی ۔ دا وجه ده چه کوم مالونه دَ یو جائز او برحق جنگ په نتیجه کښے دَ کافرانو دَ قبضے نه را اوُزی او دَ مومنانو په قبضه کښے راشی نو دَ هغے حقیقی حیثیت داد ے چه دَ هغے مالک هغه دَ خپل خیانت گر نوکرانو دَ قبضے نه را اوُویستو او خپل فرمانبردار نوکرانو له ئے واپس ورکړو ۔ په دے وجه دِے مالونو ته دَ اسلامی قانون په ژبه کښے فَے (یعنی واپس کړے شوی مالونه) وئیلے شوی دی ۔

[۱۳] یعنی دا مالونه داسے نهٔ دی چه کوم فوج په میدانِ جنگ کښے دَ دُشمن سره جنگیدلے دے هغوئ کنی په جنگ کولو سره دا مالونه گټلی دی او په دے وجه دا دَ هغوئ حق دے چه دا مالونه دِ په هغوئ تقسیم کړے شی، بلکه دا داسے مالونه دی چه په دِے باندِ الله تعالیٰ په خپل فضل سره خپلو رسولانو ته، او هغه نظام ته چه دا رسول ئے چلوی، غلبه ورکړی ده ۔ یعنی دا مالونه دَ مسلمانانو قبضے ته نیغ په نیغه دَ جنگی فوج په زور سره نهٔ دی راغلی، بلکه دا دَ هغه مجموعی طاقت په وجه راغلی دی کوم چه الله تعالیٰ خپل رسول ته او دَ هغه اُمّت ته او دَ هغه قائم کړے شوی نظام ته ورکړے دے۔ دا وجه ده چه دا مالونه دَ غنیمت دَ مالونونه بالکل مختلف حیثیت لری او دَ جنگی فوج دا حق نهٔ دے چه دَ غنیمت دَ مال پشان دِ دا مالونه هم په هغوئ کښے تقسیم کړے شی ۔

په دِے طریقه په شریعت کښے دَ غنیمت او دَ فَے حکم جُدا جُدا کړے شوے دے۔ دَ غنیمت حکم په سورۃ انفال آیت ۴۱ کښے بیان شوے دے، او هغه داد ے چه دَ غنیمت پنځه حصے ۵ جوړے کړے شی، څلور حصے دِ په جنگیدونکی فوج باندِ تقسیم کړے شی، او یوه حصه دِ په بیت المال کښے داخله کړے شی او په هغه ځایونو کښے دِ خرچ کړے شی کوم چه په هغه آیتونو کښے بیان کړے شوی دی ۔ او دَ فَے حکم داد ے چه دادِ په فوج کښے نهٔ تقسیمیږی، بلکه ټول دِ دَ هغه ځایونو کښے خاص کړے شی کوم چه په وړاندینو آیتونو کښے بیانیږی ۔

په دې دواړو قسمو مالونو کښې فرق فَمَآ اَوۡجَفۡتُمۡ عَلَيۡهِ مِنۡ خَيۡلٍ وَّلَا رِكَابٍ " تاسو په دې باندې خپل اَسونه او اوښان نهٔ دی زغلولی " په الفاظو سره ظاهر کړې شوې دے - دَ اَسونو او اوښانو زغلولو نه مُراد دې جنګی کارروائی نو کوم مال چه ښغ په ښغه په دې ذریعه لاس له راغلی وی هغه غنیمت دې - او کوم مالونه چه په دې ذریعه نهٔ وی حاصل شوی هغه ټول فَےَ دی -

دا کوم مجمل فرق چه دَ غنیمت او دَ فَے په منځ کښې په دې آیت کښې بیان کړې شوې دے، دَ اِسلام فقهاؤ دَ دې لږه زیاته تشریح کړې ده او په دې طریقه ئے بیان کړې دې چه غنیمت صرف هغه منقوله مالونه دی کوم چه دَ جنګی کارروایئ په دوران کښې دَ دُشمن دَ لښکرونه حاصل شوی وی - دَ هغې نه ماسِوا دَ دُشمن دَ مُلک زمکے، مکانونه او نور منقوله او غیر منقوله مالونه غنیمت نهٔ دے - دَ دے تشریح بُنیاد دَ حضرت عمر رضی الله عنه هغه خط دے کوم چه هغه حضرت سعد بن ابی وَقاص ته دَ عراق دَ فتحے نه روستو لیکلے وُو - په دے کښے هغه فرمائی چه فانظر ما اجلبوا به علیك فی العسکر من کراع او مالٍ فاقسمه بین من حضر من المسلمین واترك الارضین والانهار لعمّالها لیکون ذٰلك فی اعطیات المسلمین - " کوم مال سامان چه دَ فوج خلقو ستا په لښکر کښے راوړے دے هغه په هغه مسلمانانو کښے تقسیم کړه کوم چه په جنګ کښے شریک وُو او زمکے او نهرونه دَ هغه خلقو سره پریږده کوم چه په هغے باندِ کارکوی دَ پاره دَ دے چه دَ هغے آمدن دَ مسلمانانو په تنخواګانو کښے پکار راشی "۔ (کتاب الخراج لابی یوسف صفحه ۲۴ - کتاب الاموال لابی عبید صفحه ۵۹ - کتاب الخراج لیحیٰی بن آدم، صفحات ۲۷ - ۲۸ - ۴۸)۔ په دے بُنیاد باندِ حضرت حسن بصری وائی " کوم څه چه دَ دُشمن دَ کیمپ نه په لاس را شی هغه دَ هغه خلقو حق دے کوم چه په هغوئ باندِ فتحه حاصله کړې ده او زمکه دَ مسلمانانو دَ پاره ده "۔ (یحیٰی بن آدم، صفحه ۲۷) - او امام ابو یوسف فرمائی چه " څه دَ دُشمن دَ لښکرونه دَ مسلمانانو لاس ته راشی او کوم سامان او وَسله او څاروی چه هغوئ خپل کیمپ ته راوَلی هغه غنیمت دے او دَ دے نه به پنځمه حصّه ایستلے کیږی او باقی څلور حصّے به په فوج کښے تقسیموَلے کیږی " (کتاب الخراج، صفحه ۱۸) - هم دا رائے دَ یحیٰی بن آدم ده چه هغه په خپل کتاب الخراج کښے بیان کړې ده (صفحه ۲۷) - دَ دے نه هم زیات وضاحت چه کوم څیز دَ غنیمت او دَ فَے په منځ کښے کوی هغه دا دے چه دَ نَهاوَند دَ جنګ نه روستو کله دَ غنیمت مال تقسیم شوے وُو او فتحه شوی علاقه په اسلامی حکومت کښے داخله شوی وه، یو صاحب سائب بن اَقرَع ته په قلعه کښے دَ ملغلرو ډوره تیلئ مِلاؤ شوه - دَ هغه سره دا فکر راپیدا شو چه آیا دا دَ غنیمت مال دے چه په فوج دِ تقسیم کړے شی، او که دا په فَے کښے شمارېږی چه په بیت المال کښے ئے داخلول پکار دی؟ آخر دا چه هغه مدینے ته لاړو او معامله ئے دَ حضرت عمرؓ مخے ته پیش کړه او هغه فیصله اُوکړه چه دا دِ خرڅ کړے شی او دَ دے قیمت دِ په بیت المال کښے کیښودے شی - دَ دے نه معلومه شوه چه غنیمت صرف هغه منقوله مالونه دی کوم چه دَ جنګ په دوران کښے دَ فوج لاس ته راشی - دَ جنګ دَ ختمیدو نه روستو دَ غیر منقوله مالونو پشان منقوله مالونه هم دَ فَے په حکم کښے راځی - امام ابو عُبید دَ دے واقعے په نقل کولو کښے لیکی، ما نیل من اهل الشرك عنوةً قسرًا والحرب قائمة فهو الغنيمة، وما نيل منهم بعد ما تضع الحرب اوزارها و تصیر الدار الاسلام فهو فیءٌ یکون للناس عامًا ولا خمس فیه "۔ کوم مال چه دَ دُشمن نه په زور واغستلے شی او لا جنګ جاری وی، نو هغه غنیمت دے،

اودَ جنګ دَ ختمیدونه روستوچه کله دَ ملک نه دارالاسلام جوړ شوے وی، نو په هغه وخت کښے چه کوم مال لاس له راشی هغه فے ده چه هغه دَ دارالاسلام دَ عامو اوسیدونکو دَپاره وقف کول پکار دی. په هغې کښے خمس یعنی پنځمه نشته" (کتاب الاموال، صفحه ۲۵۴).

دَ غنیمت دَپاره دَ حد مقررَولونه روستو باقی چه کوم مالونه او سامانونه او زمکے دَ کافرانو نه مسلمانانوته منتقل شی هغه په دوو لویو قِسمونو کښے تقسیم کړے شوی دی. یو هغه چه په جنګ سره فتح کړے شی هغې ته داسلامی فقهے په ژبه کښے عَنْوَةً فتحه شوی مُلکونه ویلے شی. دویم هغه چه دَ صُلح په نتیجه کښے دَ مسلمانانو لاس ته راشی. خواه که هغه صُلح دَ مسلمانانو دَ فوجی طاقت دَ دباؤ یا دَ رُعب اودَ هیبت په وجه شوی وی. او په دے قِسم کښے هغه ټول مالونه هم راځی کوم چه عَنْوَةً دَ فتح کیدونه بِسوا په بل شکل سره دَ مسلمانانو په قبضه کښے راشی. دَ اِسلام دَ فقهاؤ په مینځ کښے چه کوم بحثونه پیدا شوی دی هغه صرف دَ اوّل قِسم دَ مالونو په باره کښے پیدا شوی دی چه دَ هغې ټیک ټیک شرعی حیثیت څه دے ځکه چه هغه دَ فَمَا اَوْجَفْتُمْ عَلَیْهِ مِنْ خَیْلٍ وَّلَا رِکَابٍ په تعریف کښے نهٔ راځی. پاتے شو دویم قِسم مالونه نو دَ هغې په باره کښے په دے خبره اتفاق دے چه هغه فے ده، ځکه چه دَ هغې حکم صفا صفا په قرآن مجید کښے بیان کړے شوے دے. وړاندِ به موږ ه دَ اول قِسم دَ مالونو په شرعی حیثیت باندِ تفصیلی بحث کوؤ.

۱۳ له په تیر شوی آیت کښے صرف دومره خبره شوی وه چه دا مالونه په څه وجه په جنګی فوجونو باندِ دَ غنیمت پشان نهٔ تقسیمیږی، او دَ دے شرعی حکم دَ غنیمت نه وَلے جُدا دے. اُوس په دے آیت کښے داویلے شوی دی چه دَ دے مالونو حقدار څوک دی.

په دے کښے دَ ټولونه اوّل حصّه دَ الله او دَ رسول ده. په دے حکم باندِ چه رسول الله صلی الله علیه وسلّم څنګه عمل کړے دے دَ هغې تفصیل مالک بن اَوس بن الحدَثان دَ حضرت عمر رضی الله عنه دَ روایت نه دارا نقل کړے دے چه نبیؐ به دَ دے حصّے نه دَ خپل ځان او دَ خپل اهل و عیال نفقه اغستله او باقی آمدنی به ئے دَ جهاد دَپاره په وَسلے او سورلئ اغستلو باندِ خرچ کوله (بخاری، مُسلم، مُسندِ احمد، ابوداوُد، ترمِذی، نسائی وغیره). دَ نبیؐ نه روستو دا حصّه دَ مسلمانانو بیت المال ته منتقل شوه چه دَ هغه مقصد دَپاره خرچ شی کوم چه الله خپل رسول ته حواله کړے وُو. دَ امام شافعیؒ نه دا رائے نقل کړے شوی ده چه دَ رسول الله صلی الله علیه وسلّم دَ خاص ذات دَپاره کومه حصّه وه هغه دَ هغهٔ نه روستو دَ هغه دَ خلیفه دَپاره ده، ځکه چه نبیؐ دَ امامت دَ مَنصَب په وجه دَ دے مستحق وُو نهٔ چه دَ رسالت دَ مَنصَب په وجه. لیکن دَ اکثرو شافعی فقهاؤ قول په دے معامله کښے هغه دے کوم چه دَ جمهور قول دے، چه دا حصّه اُوس دَ مسلمانانو دَ دِینی او اجتماعی کارونو دَپاره ده دَ یو خاص سړی دَپاره نهٔ ده.

دویمه حصّه دَ رشته دارانو ده، او دَ دے نه مُراد دَ رسول الله صلی الله علیه وسلّم رشته داران دی، یعنی بنی هاشم او بنی المُطّلِب. دا حصّه دَ دے دَپاره مقرر کړے شوی وه چه رسول الله صلی الله علیه وسلّم دَ خپل ذات او دَ خپل بال بچ دَ حقونو دَ ادا کولو سره سره دَ خپلو هغو رشته دارانو حقونه هم ادا کړے شی چه هغوئ دَ هغه دَ مدد محتاج وی، یا چه هغه دَ چا دَ امداد کولو ضرورت اُوګڼړی. دَ نبیؐ دَ وفات نه روستو دا حصّه هم دَ یوے جُدا او مستقلے حقے په حیثیت سره باقی پاتے نهٔ شوه، بلکه

# وَمَآ اٰتٰىكُمُ الرَّسُوْلُ فَخُذُوْهُ ۚ وَمَا نَهٰىكُمْ عَنْهُ فَانْتَهُوْا ۚ

اوځه چه رسول تاسوله درکړي هغه واخلئ اوچه دکوم څيزنه تاسوهغه منع کړي دَ هغې نه منع شئ۔

دَ مسلمانانو دَ نورو مسکينانواو يتيمانواو مسافرانو سره دَ بنى هاشم او دَ بنى المُطَّلب چه کوم محتاجه خلق وُو دَ هغوئ حقونه هم دَ بيت المال په ذمّه باندِ شول ، البته دَ هغوئ حق په نورو باندِ په دے وجه بَر اوګڼلے شوچه په زکوٰة کښے دَ هغوئ حصّه نشته ۔ دَ حضرت عبد الله بن عباس روايت دے چه دَ حضرت ابوبکرؓ ، حضرت عمرؓ اوحضرت عثمانؓ په زمانه کښے اَوَلنئ دوه حصّے ختمے کړے شوے اوصرف باقى درے حصّے ( يتيمان ، مسکينان اومسافران ) دَ فَے په حقدارانو کښے شامل پاتے کړے شوے ، بياهم په دے باندِ حضرت على کرم الله وجهه په خپله زمانه کښے عمل اُوکړو۔ محمّد بن اسحاق دَ امام محمّد باقرقول نقل کړے دے چه اګرچه دَ حضرت علىؓ خپله ذاتى رائے هم هغه وه کومه چه دَ هغه دَ اهلِ بيتؓ رائے وه ( چه دا حصّه دَ نبىؐ رشته دارانو ته مِلاويدل پکاردى ) ليکن هغه دَ ابوبکراودَ عمرؓ دَ رائے نه خلاف کول خوښ نهٔ ګڼل ۔ حَسَن بن محمد بن حَنَفِيَّه وائى چه دَ نبىؐ نه روستودَ دے دواړو حصّو (يعنى دَ رسول الله صلى الله عليه وسلّم دَ حصّے اودَ ذوى القربٰى دَ حصّے ) په حقله په رائے کښے اختلاف پيدا شوے وُو۔ دَ ځينوخلقو رائے وه چه اوّله حصّه دَ نبىؐ خليفه ته مِلاويدل پکاردى ۔ دَ څه خلقو رائے وه چه دويمه حصّه دَ نبىؐ رشته دارانو ته مِلاويدل پکاردى۔ دَ ځينو نوروخلقو خيال وُوچه دويمه حصّه دَ خليفه رشته دارانو ته ورکول پکار دى ۔ آخر دا چه په دے خبره اجماع اُوشوه چه دا دواړه حصّے دِ دَجهاد په ضرورتونو باندِ خرچ کړے شى ۔ عطاء بن سائب وائى چه حضرت عمربن عبدالعزيز په خپله زمانه کښے دَ نبىؐ حصّه اودَ رشته دارانو حصّه بنى هاشم ته ليږل شروع کړى وُو۔ دَ امام ابوحنيفه اودَ اکثروحنفى فقهاؤو رائے داده چه په دِ ے معامله کښے هغه عمل صحيح دے کوم چه دَ خليفه ګانو په زمانه کښے جارى وُو ( کتاب الخراج لابى يوسف صفحه ۱۹ تا ۲۱ ) ۔ دَامام شافعى رائے داده چه دَ کومو خلقو په حقله دا ثابته وى چه هغوى هاشميان مُطلّبيان دى يا عام طور خلقو ته معلوم وى نو دَ هغوى غنى اوفقير دواړو ته دَ فَے نه مال ورکړے کيدے شى ۔(مغنى المحتاج)۔ حنفيان وائى چه صرف په هغوى کښے دَ محتاجو خلقوامداد دَ دے مال نه کيدے شى ، البته دَ هغوئ حق په نورو باندِ دَ پاسه دے (رُوح المعانى)۔ دَامام مالک په نزيه دے معامله کښے په حکومت باندِ څه پابندى نشته ، چه په کوم مَد کښے څه رنګے مناسب ګڼړى هم هغسے دِ خرچ کړى ، ليکن بهتره خبره داده چه آلِ رسول صلى الله عليه وسلم مخکښے کړى ( حاشيه الدُّوسُوقى على الشرح الکبير ) ۔

دَ باقى دريوحصّوپه باره کښے دَ فقهاؤ په منځ کښے څه بحث نشته ۔ البته دَامام شافعى اودائمه ثلاثه په منځ کښے اختلاف داد ے چه دَ امام شافعىؒ په نزدَ فَے ټول مالونه په پنځو برابر برابر حصّو کښے تقسيم کړے شى په هغے کښے يوه حصّه په پاسنوذکرشوو خايونو باندِ په دے طريقه خرچ کول پکاردى چه دَ هغے ۱/۵ يعنى پنځمه حصّه دِ دَ مسلمانانو پکارباندِ ، ۱/۵ يعنى پنځمه حصّه په بنى هاشم او بنى المُطّلب باندِ ۱/۵ په يتيمانو باندِ ، ۱/۵ په مسکينانو باندِ او ۱/۵ په مسافرانو باندِ خرچ کړے شى ۔ دَ دے برخلاف امام مالک ، امام ابوحنيفه اوامام احمد دَ دِے تقسيم قائل نهٔ دى ، اودَ هغوئ رائے داده چه دَ فَے ټول مال دَ مسلمانانو دَ کارونو

وَاتَّقُوا اللّٰهَ ؕ اِنَّ اللّٰهَ شَدِيْدُ الْعِقَابِ ۝ لِلْفُقَرَآءِ الْمُهٰجِرِيْنَ

دَ الله نه اُویریږئ، الله سخت سزا ورکوونکے دے۔ (دا رنګے هغه مال) دَ هغه غریبو مهاجرینو دَ پاره دے

دَ پاره دے (مغنی المحتاج)۔

ﷺ دا دَ قرآن مجید هغه اهم ترین اصولی آیت دے چه په دے کښے دَ مسلمانانو دَ حکومت دَ معاشی پالیسئ دا بنیادی قاعده بیان کړے شوی ده چه دولت دِ په ټولو خلقو کښے عام ګردش کوی، دا سے دِ نهٔ وی چه مال دِ صرف په مالدارو خلقو کښے چکرے خوری، یا دِ مالدار خلق وَرځ په وَرځ بنه مالداران کیږی او غریبان خلق دِ وَرځ په وَرځ بنه غریبان کیږی، په قرآن مجید کښے صرف دَ دے پالیسئ په بیانولو باندِ اکتفا نهٔ ده شوی بلکه دَ دِے مقصد دَ پاره سود حرام حرام کړے شوے دے، زکوٰة فرض کړے شوے دے، دَ غنیمت دَ مالونو نه دَ خمس یعنی دَ پنځمے حصّے دَ ایستلو حکم شوے دے، دَ نفلی صدقو نصیحت ځائے په ځائے شوے دے، مختلف قِسم کفّارے په دا سے شکلونو کښے مقرر کړے شوی دی چه دَ هغے په اداکولو سره دَ دولت مخه غریبو خلقو ته ورګرزولے کیږی، دَ میراث دا سے قانون جوړ کړے شوے دے چه دَ هر مړی نه پاتے شوے دولت دَ زیاتو نه په زیاتو حصّو کښے خوریږی، په اخلاقی حیثیت سره په شومتیا کولو سخت بَد وئیلے شوی دی او سخاوت بښکلے صفت ګرزولے شوے دے، مالدارو خلقو ته دا وئیلے شوی دی چه دَ هغوی په مالونو کښے دَ سوالګری او دَ محروم سړی حق دے چه هغه خیرات نهٔ دے بلکه هغه هغوئ ته دَ هغوئ حق اداکول په حیثیت ورکول پکار دی، او دَ اِسلامی حکومت دَ آمدنئ دَ یوے غټے ذریعے، یعنی فے په حقله دا قانون مقرر کړے شوے دے چه دَ دے یوه حصّه دِ لازماً دَ غریبو خلقو دَ اِمداد دَ پاره خرچ کولے کیږی۔ په دے سلسله کښے دا خبره هم په نظر کښے ساتل پکار دی چه دَ اِسلامی حکومت دَ آمدنئ په ذریعو کښے اهم ترین ذریعے دوه دی - یو زکوٰة، بل فے - زکوٰة دَ مسلمانانو دَ هغے سرمائے یعنی پنګے، څاروو، تجارتی مالونو او فصلونو نه اغستلے کیږی چه هغه دَ نصاب نه زیاتی وی، او دا زیات تر غریبانو له ورکړے کیږی۔ او په فے کښے دَ جزیئے او دَ خراج سره هغه ټوله آمدنیانے شامِلے دی کړے چه دَ غیر مسلمه خلقونه حاصِلے شی، او دَ هغے هم ډیره حصّه دَ غریبانو دَ پاره خاص کړے شوی ده - دا ښکاره اِشاره دِ ے طرفته ده چه یو اسلامی حکومت له پکار دی چه هغه دَ خپلے آمدنئ او دَ خرچ نظام، او دَ ملک دَ ټولو مالی او معاشی معاملاتو نظام په دا سے طریقه جوړ کړی چه دَ دولت په ذریعو باندِ دَ مالدارو او دَ با اثره خلقو اجاره داری قایمه نهٔ وی، او چه نهٔ دَ دولت مخه دَ غریبانو نه امیرانو ته شی او نهٔ صرف په امیرانو کښے تاویږی راتاویږی۔

ﷺ دَ بیان کومه سلسله چه راروانه ده دَ هغے په لحاظ سره دَ دے آیت مطلب دا دے چه دَ بنی نضیر دَ مالونو په انتظام کښے، او د غه شان دَ فے دَ مالونو دَ تقسیم په معامله کښے رسول الله صلی الله علیه وسلم کومه فیصله اُوکړی هغه بے تپوسه مَنئ، څه چه نبیؐ چاله ورکړی هغه واخلئ، او څه چه ور نهٔ کړی دَ هغے خلاف آواز مهٔ اوچتوئ۔ لیکن چونکه دَ حکم الفاظ عام دی نو په دے وجه دَ دے نه مُراد صرف دَ فے دَ مالونو تقسیم نهٔ دے، بلکه دَ دے نه مُراد دا دے چه په ټولو معاملاتو کښے د مسلمانانو دَ رسول الله صلی الله علیه وسلّم اِطاعت کوی - دا مطلب په دِے خبره سره نور هم واضحه کیږی چه "څه تاسو له رسول درکړی" په مقابله کښے "او څه درنهٔ کړی" الفاظ نهٔ دی استعمال کړے

الَّذِيْنَ اُخْرِجُوْا مِنْ دِيَارِهِمْ وَاَمْوَالِهِمْ يَبْتَغُوْنَ فَضْلًا مِّنَ اللّٰهِ

چه هغوئ دَ خپلو کورونو او جایدادونو نه ایستلے شوی دی[۱۶] - دا خلق دَ الله فضل او دَ هغه رضا

شوی بلکه دا فرمائیلے شوی دی چه " دَ کوم څیز نه هغه تاسو منع کړی دَ هغې نه منع شئ"، که چرے حُکم صرف دَ فَے دَ مالونو دَ تقسیم دَ پاره وے نو دَ "څه در کړی" په مقابله کښې به ئے " څه در نهٔ کړی" فرمائیلی وے - دَ منع کولو دَ الفاظو نه په خپله دا معلومیږی چه دَ حُکم مقصد دَ نبیؐ امر او نهی منل دی - دا خبره رسول الله صلی الله علیه وسلّم په خپله هم فرمائیلی ده - دَ حضرتِ ابوهریرهؓ روایت دَے چه نبیؐ فرمائیلی دی اِذَا اَمَرْتُكُمْ بِاَمْرٍ فَاْتُوْا مِنْهُ مَا استطعتم وما نهيتكم عنه فاجتنبوه." هرکله چه څه تاسو ته دَ یوے خبرے حُکم اُوکړم نو څومره چه کید ے شی په هغې عمل کوئ - او چه دَ کومے خبرے نه تاسو منع کړم دَ هغې نه ځان سا تئ". (بخاری، مُسلم) - دَ حضرت عبد الله بن مسعودؓ په حقله روایت دَے چه یو ځلے هغه په تقریر کښې اُوفرمائیل چه " الله تعالیٰ په فلانی فلانی فیشن کوُنکو ښځو باندِ لعنت وئیلے دَے". دَ دے تقریر په اَورید و سره یوه ښځه دَ هغه خواله راغله او عرض ئے اُوکړو چه دا خبره تا دَ کوم ځائے نه راغستی ده؟ دَ الله په کتاب کښې خو دا خبره ځما دَ نظر نه نهٔ ده تیره شوی - حضرت عبد الله اُوفرمائیل تا که چرے دَ الله کتاب وئیلے وے نو دا خبره به ضرور تا ته په هغې کښې مِلاوَ شوی وه - تا دا آیت نهٔ دَے لوستلے چه " مَا اٰتٰكُمُ الرَّسُوْلُ فَخُذُوْهُ وَمَا نَهٰىكُمْ عَنْهُ فَانْتَهُوْا؟ هغې عرض اُوکړو، هَو دا آیت خو ما لوستلے دَے - حضرت عبد الله ورته اُوفرمائیل نو رسول الله صلی الله علیه وسلم دَ دے نه منع کړی ده او دا ئے فرمائیلی دی چه کومے ښځے دا سے کار کوی په هغوی باندِ الله تعالیٰ لعنت وئیلے دَے - هغې ښځے عرض اُوکړو چه څه اُوس پوهه شوم (بخاری، مُسلم، مُسنَد احمد، مُسند ابن ابی حاتمؒ) -

[۱۶] دَ دے نه مُراد هغه خلق دی کوم چه په هغه وخت کښې دَ مکّے نه او دَ عرب دَ نورو علاقو نه صرف په دے وجه ایستلے شوی وُو چه هغوی اِسلام قبول کړے وُو - دَ بنی نَضِیر علاقه چه لا نهٔ وه فتحه کړے شوی دَ هغې پورے دَ دے مهاجرینو دَ پاره دَ ژوند تیرولو څه مستقله ذریعه نهٔ وه - اُوس حُکم اُوشو چه دا کوم مال په دے وخت کښې لاس له راغلے دَے، او آئنده چه کوم مالونه دَ فَے په طور لاس له راشی، په هغې کښې دَ عامو مسکینانو، یتیمانو او مسافرانو سره سره دَ دے خلقو حق هم دَے، دَ هغې نه دا سے تولو خلقو ته امداد ورکول پکار دی کوم چه دَ الله او دَ هغه دَ رسول او دَ هغه دَ دین دَ خاطره په هجرت مجبوره کړے شی او دار الاسلام ته راشی - دَ دے حُکم په بُنیاد باندِ رسول الله صلی الله علیه وسلم دَ بنی النَّضِیر دَ جایداد و نو یوه حصّه په مهاجرینو کښې تقسیم کړه او دَ کجورو هغه وَنے کومے چه انصارو خپلو مهاجرینو رونړو ته دَ امداد دَ پاره ورکړی وے هغه ئے هغوئ ته واپس کړے - لیکن دا خیال کول صحیح نهٔ دی چه په فَے کښې دَ مهاجرینو دا حصّه صرف دَ هغه زمانے دَ پاره وه - په حقیقت کښې دَ دے آیت مطلب دا دَے چه دَ قیامته پورے کوم خلق دَ اسلام قبلولو په وجه بے وطنه شی او په یو اسلامی وطن کښې په پناه اغستلو مجبور شی - هغوئ له ځائے ورکول، او هغوئ په خپلو پښو دَ روزئ کټلو قابل جوړول دَ هغه وطن دَ اسلامی حکومت فرض دے، او دَ زکوٰة نه علاوه دَ فَے دَ مالونو نه هم په دِ ے مَد باندِ خرچ کول پکار دی -

وَرِضْوَانًا وَّيَنْصُرُوْنَ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ ؕ اُولٰٓئِكَ هُمُ الصّٰدِقُوْنَ ۝۸ وَالَّذِيْنَ تَبَوَّؤُ الدَّارَ وَالْاِيْمَانَ مِنْ قَبْلِهِمْ يُحِبُّوْنَ مَنْ هَاجَرَ اِلَيْهِمْ وَلَا يَجِدُوْنَ فِيْ صُدُوْرِهِمْ حَاجَةً مِّمَّآ اُوْتُوْا وَيُؤْثِرُوْنَ عَلٰٓى اَنْفُسِهِمْ وَلَوْ كَانَ بِهِمْ خَصَاصَةٌ ۫ؕ وَمَنْ يُّوْقَ شُحَّ نَفْسِهٖ

غواړی او دَ الله او دَ هغه دَ رسول مرستے ته ملا تړلی وُسی۔ هم دا ریښتینی خلق دی۔ (او دغه مال دَ هغه خلقو د پاره هم دے) چه هغوئ دَ دے مهاجرو دَ راتلو نه مخکښے ایمان راوړے وُو او په دارالهجرت کښے اُوسیدل[۱۷]۔ دوئ دَ هغه خلقو سره مینه کوی چه هغوئ دَ دوئ ځائے ته په هجرت راغلی دی او هرڅه چه دوئ له ورکړے شی دَ هغے هیڅ حاجت قدر له هم په خپلو زړونو کښے نهٔ لری او په خپل ځان باندِ نورو له ترجیح ورکوی اګرچه پخپله هم محتاجه وی[۱۸]۔ حقیقت دا دے چه کوم خلق دَ خپل زړه دَ تنګسیانه بچ کړے شو

[۱۷] دَ دے نه مُراد دی انصار۔ یعنی په فَے کښے صرف دَ مهاجرو حق نهٔ دے، بلکه کوم مسلمانان چه دَ مخکښے نه په دارالاِسلام کښے آباد دی هغوئ هم په دے کښے دَ حصّے حقدار دی۔

[۱۸] دا صفت دے دَ مدینے دَ انصارو۔ مهاجر چه کله دَ مکے او دَ نورو ځایونو نه دَ هغوئ ښار ته په هجرت راغلل نو هغوئ دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم په خدمت کښے حاضر شو او وے وئیل چه زمونږه باغونه او دَ کجوررو وُنے حاضرے دی، دا زمونږه او دَ مهاجرو په منځ کښے تقسیم کړه۔ نبیؐ اُوفرمائیل چه دا خلق خو په باغوانئ نهٔ پوهیږی، دوئ دَ دا سے علاقے نه راغلی دی چه هلته باغونه نشته، آیا دا سے کید ے نشی چه تاسو په دِ ے خپلو باغونو او دَ کجوررو په وُنو کښے کار کوئ او په پیداوار کښے دوئ له حصّه ورکوئ؟ هغوئ اُووئیل سمعنا و اطعنا۔ (بخاری، ابن جریر)۔ مهاجرینو اُووئیل چه مونږه هیڅکله دا سے خلق نهٔ دی لیدلی چه هغوئ دومره غټه قربانی کوی۔ دوئ به کار په خپله کوی او حصّه به مونږ له راکوی۔ زمونږ خو دا خیال دے چه ټول ثوابونه دَ دوئ شو۔ نبیؐ اُوفرمائیل چه نهٔ، ترڅو پورے تاسو دَ دوئ صفتونه کوئ، او دَ دوئ په حق کښے دَ خیر دُعا گانے کوئ، تاسو ته به هم ثوابونه مِلاویږی (مُسند احمد)۔ بیا چه کله دَ بنی النضیر علاقه فتح شوه نو رسول الله صلی الله علیه وسلم اُوفرمائیل چه اُوس دَ بندوبست یو شکل دا دے چه ستاسو جائیدادونه او دَ یهودیانو نه پاتے شوی باغونه او دَ کجوررو وُنے را یو ځائے کړے شی او بیا ټول په شریکه ستاسو او دَ مهاجرینو په منځ کښے تقسیم کړے شی۔ او دویم شکل دا دے چه تاسو خپل جائیدادونه دَ ځان سره کړئ او دا پاتے شوی زمکے دِ په مهاجرینو کښے تقسیم کړے شی۔ انصارو عرض اُوکړو چه دا جائیدادونه په هغوئ تقسیم کړه او زمونږ دَ جائیدادونو نه هم چه څومره ته غواړے

فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ ⑨ وَالَّذِيْنَ جَآءُوْ مِنْۢ بَعْدِهِمْ

هم هغوئ فلاح موندونکی دی.[19] (او دغه مال د هغه خلقو د پاره هم دے) چه هغوئ د دوئ نه روستو راغلی دی،[20]

هغوم ه دوئ له ورکړه ـ د دے په اوریدو سره حضرت ابوبکرؓ اُوفرمائیل جزاکم الله یا معشر الانصار خیراً (یحییٰ بن آدم ـ بَلاذُری) دغه شان د انصارو په رضا سره د یهودیانو پاتے شوے مال په مهاجرینو کښے تقسیم کړے شو او په انصارو کښے صرف حضرتِ ابو دُجانه، حضرت سَهل بن حُنَیف (او په ځینی روایت کښے) حضرتِ حارث بن الصِّمَه ته حصے ورکړے شوی، ځکه چه دوئ ډیر غریبان وُو (بَلاذُری، ابن هِشام، رُوح المعانی) ـ هم دغه شان قربانی انصارو په هغه وخت کښے اُوکړه کله چه د بحرین علاقه په اسلامی حکومت کښے شامله شوه ـ رسول الله صلی الله علیه وسلم غوښتله چه د دے علاقے فتحه شوی زمکے دِ انصارو له ورکړے شی ـ لیکن هغوئ عرض اُوکړو چه مونږه به د دے نه هیڅ حصه نهٔ اخلو ترڅو چه دومره زمونږه مهاجرو رونړو ته نهٔ وی ورکړے شوی (یحییٰ بن آدم) ـ د انصارو دا هغه قربانی ده چه صفت ئے الله تعالیٰ بیان کړے دے.

[19] "بچ شو" نهٔ دی فرمائیلے شوی بلکه "بچ کړے شو" فرمائیلے شوی دی، ځکه چه د الله د توفیق او د الله د مدد نه بغیر هیڅوک په خپله په خپل زور سره د زړه مالداری نهٔ شی موندلے. دا د خدا ئے هغه نعمت دے چه صرف د خدا ئے په فضل سره اِنسان ته نصیب کیږی ـ شُح لفظ په عربئ ژبه کښے د کنجوسئ یعنی شومتیا او بُخل د پاره استعمالیږی، لیکن هر کله چه دا لفظ د نفس سره استعمال کړے شی او شُحِّ نفس اُووئیلے شی نو د دے معنیٰ د نظر تنګی، او د زړه تنګی، کمه حوصله او وړه سینه شی چه د شومتیا نه هم فراخه مطلب لری، بلکه د شومتیا هم اصلی بُنیاد دا دے. د دے صفت په وجه د بل حق منل او د بل حق ادا کول خو لا په خبره ده بلکه بل ته د ښه وئیلو اقرار کول ئے هم زړهٔ نهٔ منی ـ هغه غواړی چه په دُنیا کښے دِ هر څه هغه ته مِلاؤ شی بل دِ هیچا ته څه نهٔ مِلاویږی ـ بل ته خو خپله ورکړه کول خو غټه خبره ده، بل څوک که چا له څه ورکړی نو د هغه زړه دردکوی ـ د هغه حرص هیڅکله په خپل حق صبر نهٔ کوی، بلکه هغه د نورو حق ته لاسونه وراوږدکوی، یا کم نه کم د زړهٔ نه دا غواړی چه د هغه نه په ګیرچاپیره دُنیا کښے کوم ښه څیز دے هغه د ځان د پاره کړی او بل چاله هیڅ پرے نږدی ـ په دِ دے وجه په قرآن مجید کښے د دے بدئ نه بچ کیدو ته د فلاح ضمانت وئیلے شوے دے، او رسول الله صلی الله علیه وسلم د انسان دِ خراب صفت ته د فساد جرړه وئیلی ده ـ د حضرتِ جابر بن عبدالله نه روایت دے چه نبیؐ اُوفرمائیل، اتقوا الشح فان الشح اهلك من قبلكم حملهم علیٰ ان سفكوا دماء هم واستحلوا محارمهم (مُسلم، مُسندِ احمد، بَیهَقی، بخاری فی الادب) ـ د حضرت عبد الله بن عَمرو په روایت کښے الفاظ دا دی، امرهم بالظلم فظلموا وامرهم بالفجور ففجروا، وامرهم بالقطيعة فقطعوا (مُسند احمد، ابوداوٗد، نَسائی). یعنی "د شح نه ځان سا تئ ځکه چه ستاسونه وړاندِ خلق شُح هلاک کړل ـ دِ دے څیز هغوئ د یو بل وینو تویَولو ته او د بل حرام څیزونه د ځان د پاره حلالَولو ته تیار کړل ـ دِ دے څیز هغوئ ظلم کولو ته تیار کړل او هغوئ ظلم اُوکړو ـ د بدئ (فجور) حکم ئے ورته اُوکړو او هغوی بدئ اوکړه، خپلولئ ختمولو ته ئے تیار کړل او هغوئ خپلولی ختمه کړه".

دَ حضرت ابوهریرهؓ روایت دے چه نبیؐ اُوفرمائیل " ایمان او شُحّ نفس دَ چا په زړهٔ کښے نشی جمع کیدے " ( ابن ابی شیبه، نَسائیؔ، بَیهقی فی شُعَبِ الایمان، حاکم ) - دَ حضرتِ ابو سعید خُدری بیان دے چه نبیؐ اُوفرمائیل، " دوه خویُونه دی چه په مسلمان کښے جمع کیدے نشی، بُخل او بد خویٔ " ( ابوداؤد، ترمذی، بُخاری فی الادب ) - دَ اسلام دَ دے تعلیم وجـه ده چه یونیم تن نهٔ، بلکه ټول مسلمانان بحیثیت دَ یو قوم په دُنیا کښے نن هم دَ ټولونه زیات سخیان او ارتے سینے والا دی - کوم قومونه چه په ټوله دُنیا کښے دَ زړه دَ تنګسیا او دَ شومتیا په اعتبار سره مثال نهٔ لری بِعَینِه دَ هغوئ نه چه کوم په لکونو او کروړونو خلق مسلمانان شوی دی هغوئ دَ خپل غیر مُسلمه نسل سره اُوږه په اوږه اوسی - دَ دواړو په منځ کښے چه دَ زړه دَ فراښتیا او تنګسیا کوم څرګند فرق دے دَ هغے وجه دَ دے نه سِوا بله هیڅ نشی کیدے چه دا دَ اسلام دَ اخلاقی تعلیم فائیده ده چه دَ مسلمانانو زړونه ئے غټ کړی دی -

۱۵ دَ دے ځائے پورے چه کوم حکمونه بیان شوی دی په هغے کښے دا فیصله شوی ده چه په فَے کښے دَ الله او دَ رسول، او دَ رسول دَ خپلوانو، او دَ یتیمانو او مسکینانو او مسافرو، او مهاجرینو او انصارو، او دَ قیامته پورے دَ راتلونکو مسلمانانو حقونه دی - دَ قرآن مجید دا هغه اهمه قانونی فیصله ده چه دَ دے په رڼا کښے حضرت عمرؓ دَ عراق او دَ شام او دَ مصر دَ فتحه شوو ملکونو دَ زمکو او جائیدادونو نــوے بند و بست اُوکړو، او دَ دغه ملکونو دَ تیرو شوو حکومتونو او دَ هغوئ دَ حکمرانانو دَ جائیدادونو نوے بند و بست ئے هم اُوکړو - دا ملکونه چه کله فتحه شو نو څینو صحابو چه په هغے کښے حضرت زبیرؓ، حضرت بلالؓ، حضرت عبدالرحمٰن بن عوفؓ، او حضرت سلمان فارسیؓ غوندے بزرګان شامل وُو ډیر په ټینګښتیا سره اُووئیل چه دا دِ په هغه فوجونو باندِ تقسیم کړے شی څوک چه جنګیدلی دی او دا ئے فتحه کړی دی - دَ هغوئ دا خیال وُو چه دا مالونه فَمَآ اَوۡجَفۡتُمۡ عَلَیۡهِ مِنۡ خَیۡلٍ وَّلَا رِکَابٍ په تعریف کښے نهٔ راځی بلکه په دے باندِ خو مسلمانانو خپل اسونه او اُوښان زغلولی دی او دا ئے ګټلی دی، په دے وجه دَ هغه ښارونو او علاقونه علاوه چه هغوئ دَ جنګ نه بغیر اطاعت قبول کړے دے، باقی ټول فتحه شوی مُلکونه په غنیمت کښے راځی او دَ هغے شرعی حکم دا دے چه دَ هغے دَ زمکو او دَ هغے دَ وُسیدونکو پنځمه حصّه دِ بیت المال له ورکړے شی، او باقی څلور حصّے دِ په فوج باندِ تقسیم کړے شی - لیکن دا رائے په دے وجه صحیح نهٔ وه چه دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم په زمانه کښے کومے علاقے په جنګ سره فتحه کړے شوے وے په هغے کښے دَ هیڅ زمکے او وُسیدونکی نبیؐ دَ غنیمتونو پشان دَ پنځمے حصّے دَ ایستلونه روستو په فوج باندِ نهٔ وے تقسیم کړے - دَ نبیؐ دَ زمانے دوه څرګند مثالونه دی یو دَ مکے فتحه او بله دَ خیبر فتحه - په دے کښے مکّه خو هو به هو هغه دَ مکے وُسیدونکو ته حواله کړه - پاتے شو خیبر، نو دَ هغے په حقله دَ حضرت بشیر بن یَسار روایت دے چه نبیؐ هغه شپږ دیرش حصّے کړو او په هغے کښے اَتلس حصّے دَ اجتماعی ضرورتونو دَ پاره وقف کړلے او باقے اَتلس حصّے ئے په فوج باندِ تقسیم کړے ( ابوداؤد، بَیهقی، کتاب الاموال لابی عُبید، کتاب الخروج لیحیٰی بن آدم، فتوح البلدان لِلبَلاذُری، فتح القدیر لابن هُمام ) - دَ نبیؐ دَ دے عمل نه دا خبره څرګنده شوی وه چه دَ فتحه شوو زمکو حکم، اګر چه هغه په جنګ سره فتحه شوی وی، دَ غنیمت نهٔ دے، کنئ نو دا څنګه کیدے شوه چه نبیؐ خو مکّه بالکل دَ مکے وُسیدونکو ته حواله کړے وے او دَ خیبر نه ئے دَ پنځمے حصّے دَ ایستلو په ځائے دَ هغے پوره نیمه حصّه دَ اجتماعی ضرورتونو دَ پاره بیت المال ته حواله

کړې وې - نو د سنتونه چه کومه خبره ثابته وه هغه دا وه چه عَنْوَةً کوم ملکونه فتحه شوی وی دَ هغې په معامله کښې دَ خپل وخت امام له اختیار دے چه دَ حالاتو په لحاظ سره دَ هغې په باره کښې څه فیصله مناسب ګڼړی هغه دِ اوکړی - هغه هغه تقسیمولے هم شی - اوکه یوه علاقه ډیره اهمه وی لکه مکّهٔ معظّمه شوه ، نو دَ هغې دَ وُسیدونکو سره هغه احسان هم کولے شی لکه څنګه چه نبیؐ دَ مکّے والو سره اوکړو -

لیکن دَ نبیؐ په زمانه کښې چونکه فتوحات ډیر نهٔ وُو شوی ، اوکوم مختلف قِسم مُلکونه چه فتحه شوی وُو دَ هغې جُدا جُدا حکم دَ خلقو مخے ته صفاصفا نهٔ وُو راغلے ، خوکله چه دَ حضرت عُمرؓ په زمانه کښې لوئ لوئ ملکونه فتحه شول نو صحابهٔ کراموته دا پریشانی را مخے ته شوه چه دَ توره په زورکوے علاقے فتحه شوی دی آیا هغه غنیمت دے اوکه فَے - دَ مصر دَ فتح نه روستو حضرت زُبیر مطالبه اوکړه چه اقسمها کما قسم رسول الله صلی الله علیه وسلم خیبر، " دا ټوله علاقه هسے تقسیم کړئ لکه څنګه چه رسول الله صلی الله علیه وسلم خیبر تقسیم کړے وُو " ( ابوعُبَید ) - دَ شام او دَ عراق دَ فتحه شوُ علاقو په حقله حضرت بلال ډیر په ټینګتیا سره اُووئیل چه اقسم الاَرضین بین الّذین افتتحوها کما تقسم غنیمة العسکر، " ټولے زمکے په فاتح فوجونو باندِ هغسے تقسیم کړئ لکه څنګه چه دَ غنیمت مال تقسیمید ے شی " ( کتاب الخراج، ابو یوسف ) - بل طرفته دَ حضرت علیؓ رائے داوه چه دَ عهم یکونوا مادةً للمسلمین. " دا زمکے دِ دَ هغوئ دَ کروندګروسره پریښود ے شی چه دا دَ مسلمانانو دَ پاره دَ آمدن ذریعه وی " ( ابو یوسف، ابوعُبید ) - د غه شان دَ حضرت مُعاذ بن جَبل رائے داوه چه " که چرے تا تقسیم اوکړو نو دَ دے انجام به ډیر خراب وی - دَ دے تقسیم په وجه به لوئ لوئ جائیدادونه دَ یو څو هغه کسانو په قبضه کښې راشی چا چه دا علاقے فتحه کړی دی - بیا به دا خلق دَ دُنیانه لاړشی او دَ دوئ جائیدادونه به دَ دوئ دَ وارثانو سره پاتے شی ، چه په هغوئ کښې به اکثر چرته یوه ښځه وی یا به یو سړے وی، لیکن دَ راتلونکو نسلونو دَ پاره به هیڅ پاتے نشی چه دَ هغوئ ضرورتونه پرے پوره شی او دَ اسلامی سرحدونو دَ حفاظت خرچه هم پوره کړے شی - نو ته داسے بندوبست اوکړه چه په هغے کښې دَ موجوده نسلونو او دَ راتلونکو نسلونو دَ فائدے یو شان تحفّظ وی " ( ابوعُبَید ص ۵۹ - فتح الباری، ج ۶ - ص ۱۳۸ ) - حضرت عُمرؓ حساب اولګوو او وے کتل چه که چرے دَ عراق خوا وُشا علاقه تقسیم کړے شی نو دَ یوتن په سَر به څومره حصّه راځی - معلومه شوه چه دوه درے فلّاحه دَ یوتن اَوسط پریوزی - ( ابو یوسف - ابوعُبید ) - دَ دے نه روستو هغه په فراښه زړه سره دا رائے قائمه کړه چه دا علاقے تقسیمول نهٔ دی پکار - اوکومو صحابو کرامو چه دَ تقسیم مطالبه کوله هغوئ ته ئے دا جوابونه ورکړی وُو -

تریدون ان یاتی آخرالناس لیس لهم شیٔ ء - ( ابوعُبید )

آیا تاسو غواړئ چه رُوستنی خلق دِ په داسے حالت کښې راشی چه دَ هغوئ دَ پاره هیڅ نهٔ وی ؟

— فکیف بما یاتی من المُسلمین فیجدون الارض بعلوجها قد اقتسمت وورثت عن الآباء وحیزت ؟ ما

او هغه مسلمانان به څه کوی چه هغوئ روستو راشی او اُووینی چه زمکه دَ خپلو زمیداروسره تقسیم شوی ده او خلقو ته دَ پلارنیکه نه په وراثت کښے ملاؤ شوی ده ؟

| | |
|---|---|
| هذا برائ۔ (ابو یوسف) | دا هرگز مناسب نهٔ ده۔ |
| — فما لمن جاء بعدکم من المسلمین واخاف ان قسمته ان تفاسدوا بینکم فی المیاه (ابو عُبَید) | ستاسو نه روستو چه کوم مسلمانان راشی دَ هغوئ به څه وی؟ او څه یریږم چه که چرته څه دا تقسیم کړم نوتاسو به په اُوبو باندِ په خپلو کښے جنګونه کوئ۔ |
| — لولا آخرالناس ما فتحت قریه الا قسمتها کما قسم رسول الله صلی الله علیه وسلم خیبر (بخاری، موطاء، ابوعبید)۔ | که چرے دَ روستو راتلونکو خلقو خیال راسره نهٔ وے نو چه کومه علاقه ما فتح کړے هغه به ړم تقسیمولے لکه څنګه چه رسول الله صلی الله علیه وسلم خیبر تقسیم کړو۔ |
| — لا، هذا عین المال، ولکنی اجلسهٔ فیما یجری علیهم وعلی المُسلمین۔ (ابو عُبَیده) | نهٔ، دا خو عینُ المال (Real estate) دے۔ څه دا منع کوم چه دَ فاتح فوجیانو اودَ عامو مسلمانانو ضرورتونه دَ دے نه پوره کیږی۔ |

لیکن دَ دے جوابونو سره خلق مطمئن نهٔ شو او وے وئیل چه تهٔ ظلم کوے۔ آخر دا چه حضرت عمرؓ دَ مجلسِ شوریٰ اِجتماع مقرر کړه او دَ هغې مخے ته ئے دا معامله کیښوده۔ په دِے موقع چه کوم تقریر هغه اوکړو دَ هغې یوڅو فقرے دا دی؛

"ما تاسو له صرف په دِے وجه تکلیف درکړے دے چه تاسو څما سره دَ هغه امانت په اُوچتولو کښے شریک شئ چه دَ هغې بار ستاسو دَ معاملاتو چلَولو دَ پاره په ما دَ پاسه کیښودلے شوے دے۔ څه هم ستاسو نه یو تن یم، او تاسو هغه خلق یئ چه نن دَ حق اِقرار کوونکی یئ۔ په تاسو کښے دَ هرچا خوښه ده چه څما دَ رائے سره اتفاق کوی او که اختلاف۔ څه دا نهٔ غواړم چه تاسو څما په خواهش پسے را روان شئ۔ ستاسو سره دَ الله کتاب دے چه حق بیانونکے دے۔ په خدائے ړم دِ قسم وی څه چه کومه خبره کول غواړم هغه چه ما کړی ده نو دَ هغے نه څما مقصد دَ حق نه سِوا بل هیڅ نهٔ دے ..... تاسو دَ هغه خلقو خبرې اوریدلی دی چه دَ هغوئ خیال دا دے چه زهٔ دَ هغوئ سره ظلم کوم او دَ هغوئ حق ضائع کول غواړم۔ حالانکه چه څه دَ ظلم کولو نه په خدائے پورے پناه غواړم۔ څه به ډیر بَد بخته یم که په ظلم سره یو داسے څیز چه واقعی دَ هغوئ وی، هغوئ له ورنهٔ کړم او بل چاله ئے ورکړم۔ لیکن څه وینم چه دَ کِسریٰ دَ علاقے نه روستو اوس بله علاقه فتح کیدونکی نشته۔ الله تعالیٰ دَ ایرانیانو مالونه او دَ هغوئ زمکے او دَ هغوئ زمیداران ټول مونږ له په قبضه کښے راکړی دی۔ زمونږه فوجیانو چه کوم غنیمتونه حاصل کړی وُو دَ هغے نه خو ما پنځمه حصّه (یعنی خُمس) ایستلے ده او په هغوئ ړم تقسیم کړی ده، او کوم غنیمتونه چه لا اُوس تقسیم شوی نهٔ دی څه دَ هغے دَ تقسیمولو په فکر کښے یم۔ البته دَ زمکو په باره کښے څما رائے دا ده چه هغه

اوڈ هغې زميداران تقسيم نۀ کړم ، بلکه چه په هغه زمکه بانډې خراج او په زميدارانو بانډې جزيه اولګوم چه هغوئ به ئې هميشه اداکوئ اوداب ډ دے وخت ډ عامو مسلمانانو او ډ جنګي فوجيانو او ډ مسلمانانو بچوډ پاره. او ډ روستو را تلونکو نسلونو ډ پاره فې وی ۔ آيا تاسونۀ ګورئ چه زمونږ ډ دے سرحدونو ډ پاره لازماً ډدا سے خلقو ضرورت دے چه ډ ئې حفاظت کوی؟ آيا تاسونۀ ګورئ چه دا لوئ لوئ مُلکونه شام ، الجزيره ، کوفه ، بصره ، مصر، په دے ټولو کښے فوجونه اوسيدل پکار دی اوهغوئ ته په پابندئ سره تنخواګانے مِلاويدل پکار دی ؟ که څه دا زمکے ډدوئ ډ زميدارانو سره تقسيم کړم نو دا خرچونه به ډ کوم ځائے نه راځي "؟

دا بحث دوه دره ورځے روان وُو۔ حضرت عثمانؓ ، حضرت علیؓ ، حضرت طلحه ، حضرت عبدالله بن عمرؓ وغيره ډ حضرت عمرؓ ډ رائے سره اتفاق اوکړو۔ ليکن فيصله اونۀ شوه آخر دا چه حضرت عمرؓ پاسيدو او وے فرمايل چه ماته ډ الله ډ کتاب نه يو ډليل مِلاؤ شوے دے چه ډ دے مسئلے فيصله به اوکړی ۔ ډ هغې نه روستو هغه ډ سورۀ حشر هم دا آيتونه ډ ما افآء الله على رَسُوله منهم نه واخله ډ رَبَّنَآ اِنَّكَ رَءُوفٌ رَّحِيْمٌ پورے اولوستل او ډ دے نه ئې دا دليل پيش کړو چه دا کوم جائيدادونه الله راکړی دی په دے کښے صرف ډ دے زمانے ډ خلقو حصّه نۀ ده بلکه روستو راتلونکي خلق هم الله ډ دوئ سره شريک کړی دی ، بيا دا څنګه صحيح کيدے شی چه داکوم فے ډ ټولو ډ پاره ده دا مونږ صرف په دے فاتحينو بانډې تقسيم کړو او ډ روستنو ډ پاره څه پرے نږدو؟ دارنګے ډ الله تعالیٰ حکم دے کَیۡ لَا یَکُوۡنَ دُوۡلَۃًۢ بَیۡنَ الۡاَغۡنِیَآءِ مِنۡکُمۡ " ډ پاره ډ دے چه دا مال صرف ستاسو په مالدارانو کښے تاوېږی نۀ " ليکن که چرے څه دا په فاتحينو بانډې تقسيم کړم نو دا به صرف ستاسو په مالدارانو کښے تاوېږی او ډ نورو ډ پاره به هيڅ پاتے نشی ۔ په دے دليل سره ټول مطمئن شو او په دے خبره بانډې اجماع اوشوه چه دا فتحه شوی علاقه دې ډ عامو مسلمانانو ډ پاره فے اوګرځولے شی ، کوم خلق چه په دے زمکو بانډې کارکوی هغه دې هم ډ هغوئ سره پاتے کړے شی او په هغوئ بانډې خراج او جزيه اولګولے شی (کتاب الخراج لابی يوسف ، صفحه ۲۳ تا ۲۷ و ۳۵ ۔ احکام القرآن للجصّاص ) ۔

ډ دے فيصلے مطابق ډ فتحه شوو زمکو اصل حيثيت دا مقرر کړے شو چه په مجموعي حيثيت سره مسلمان ملت ډ دے مالک دے ، کومو خلقو چه ډ مخکښے نه په دے زمکو کار کوو هغوئ ډ کرونډګرو په طور ملت ډ خپل طرفنه برقرار ساتلی دی ، هغوئ به په دے زمکو بانډې اسلامی حکومت ته يوه مقرره حصّه ورکوی ، نسلاً نسلاً به دا ډ کرکيلے حقونه هغوئ ته په ميراث کښے مِلاويږی او هغوئ به دا حقونه خرڅولے هم شی ، ليکن ډ زمکے اصلی مالکان به هغوئ نۀ وی بلکه مسلمان اُمّت به ډ هغې مالک وی ۔ امام عُبيده په خپل کتاب الاموال کښے دا قانونی ټکے په دے طريقه بيان کړے دے ۔

اقرا هل السواد فی ارضيهم وضرب علیٰ رؤسهم الجزية وعلیٰ ارضيهم الطسق ۔ (ص ۵۷)

حضرت عمرؓ ډ عراق خواوشا خلق په خپلو زمکو بانډې برقرار اوساتل ، او په هغوئ بانډې ئې جزيه او ډ هغوئ په زمکو بانډې ئې ټيکس اولګولو ۔

| | |
|---|---|
| اذا اقرّ الامام اهل العَنْوة فی ارضهم توارثوها وتبایعوها۔ ( ص ۸۴ ) | امام ( دَ اِسلامی حکومت بادشاه ) چه کله دَ فتحه شوُو ملکونو خلق دَ هغوئ په خپلو زمکو باندې برقرار اوساتی نو هغوئ به هغه زمکې په میراث کښې هم پریښودے شی او خرڅولے به ئې هم شی ۔ |

دَ عُمر بن عبدالعزیز په زمانه کښې دَ شَعْبِی نه تپوس اوکړے شو چه آیا دَ عراق دَ اکثر و خلقو سره څه معاهده شته ؟ هغه جواب ورکړو چه معاهده خو نشته، لیکن کله چه دَ هغوئ نه دَ خراج اغستل قبول کړے شو نو دا دَ هغوئ سره معاهده اوشوه ( ابوعُبَیده ص ۴۹ ۔ ابویوسف ص ۲۸ ) ۔

دَ حضرت عُمرؓ په زمانه کښې عتبه بن فَرْقَد دَ فُرات په غاړه باندې یوه زمکه واغستله ۔ حضرت عُمرؓ دَ هغه نه تپوس اوکړو تا دا زمکه دَ چا نه اغستې ده ؟ هغه اُووئیل دَ دے زمکې دَ مالکانو نه ۔ حضرت عُمرؓ اُوفرمائیل دَ دے زمکې مالکان خو دا خلق دی ( یعنی مهاجرین او انصار ) ۔ رأیٔ عمران اصل الارض للمسلمین، " دَ حضرت عُمرؓ رائے داوه چه دَ دے زمکو اصلی مالکان مسلمانان دی" ( ابوعُبَیده ص ۷۴ ) ۔

دَ دے فیصلې ترمخه دَ فتحه شوُو مُلکونو کوم مالونه چه دَ مسلمانانو اجتماعی ملکیت گرزولے شوے دے هغه داوُو،

( ۱ ) هغه زمکې او علاقې چه دَ صلحې په ذریعه دَ اِسلامی حکومت په قبضه کښې راغلې ۔

( ۲ ) هغه فدیه یا خِراج یا جزیه چه دَ یوے علاقې خلقو دَ جنگ نه بغیر دَ مسلمانانو دَ امان حاصلولو دَ پاره دَ هغې ادا کول قبول کړی وی ۔

( ۳ ) هغه زمکې او جائیدادونه چه مالکانو پریښودل او اُوتښتیدل ۔

( ۴ ) هغه جائیدادونه چه دَ هغې مالکان اُووژلے شو او څوک مالک ئې پاتې نهٔ شو ۔

( ۵ ) هغه زمکې چه دَ اوّل نه دَ چا په قبضه کښې نهٔ وې ۔

( ۶ ) هغه زمکې چه دَ اول نه دَ خلقو په قبضه کښې وے لیکن دَ هغې مخکینی مالکان برقرار اُوساتلے شو او په هغوئ باندې جزیه او خراج اُولگولے شو ۔

( ۷ ) دَ مخکینو حکمران خاندانونو جاگیرونه ۔

( ۸ ) دَ مخکینو حکومتونو ملکیّت ۔

( دَ تفصیلاتو دَ پاره اُوگورئ بدائع الصنائع، ج ۷، ص ۱۱۶ ۔ ۱۱۸ ۔ کتاب الخراج، یحیٰی بن آدم، ص ۲۲ ۔ ۶۴ ۔ مُغنی المحتاج، ج ۳، ص ۹۳ ۔ حاشیه الدُسوقی علی الشرح الکبیر، ج ۲، ص ۱۹۰ ۔ غایةُ المُنتهی، ج ۱، ص ۴۶۷ ۔ ۴۷۱ ) ۔

دا څیزونه چونکه دَ صحابه کرامو په اتفاق سره فَے گرزولے شوی وُو، په دے وجه دَ اِسلام دَ فقهاوُ په منځ کښې هم دِ دے ته په فَے وئیلو باندې اصولاً اتفاق دے ۔ البته په یو څو خبرو کښې اختلاف دے چه هغه مونږه

مختصواً بیانوُو،

حنفیان وائی چه دَ فتحه شوُو ملکونو دَ زمکو په معامله کښې اسلامی حکومت ( دَ فقهاؤ په ژبه کښې امام) ته اختیار دے، که غواړی نو دَ دے نه دِ خُمس ( یعنی پنځمه حصّه ) راخلی او باقی دِ په فاتح فوج باندِ تقسیم کړی، او که غواړی نو هغه دِ دَ ځکینو مالکانو په قبضه کښې پریږدی او دَ هغې په مالکانو باندِ دِ جزیه او په زمکو باندِ دِ خراج اُولګوی۔ په دِے صورت کښې به دا دَ همیشه همیشه دَ پاره دَ مسلمانانو دَ پاره وقف وی۔ ( بدائع الصنائع۔ احکام القرآن للجصّاص۔ شرح العنایه علی الهدایه۔ فتح القدیر )۔ دا رائے عبدالله بن مبارک دَ امام سُفیان ثوری نه هم نقل کړی ده ( یحیٰی بن آدم۔ کتاب الاموال لابی عُبَید)۔

مالکیان وائی چه دا زمکے صرف دَ مسلمانانو په فتحه کولوسره خود بخود دَ مسلمانانو دَ پاره وقف کیږی۔ دَ دے دَ وقف کولو دَ پاره نهٔ دَ امام دَ فیصلے ضرورت شته او نهٔ دَ مجاهدینو دَ راضی کولو۔ دَ دے نه علاوه په مالکیانو کښې مشهور قول دا دے چه یوازے زمکے نهٔ، بلکه دَ فتحه شوو علاقو مکانونه او آبادیانے هم په حقیقت کښې دَ مسلمانانو دَ پاره وقف دی، البته اسلامی حکومت به په هغې باندِ کرایه نهٔ لګوی ( حاشیة الدُّسوقی)۔

حنبلیان دَ دے حده پورے دَ حنفیانو سره متفق دی چه زمکے په فاتحینو باندِ تقسیمول، یا دَ مسلمانانو دَ پاره وقف کول دَ امام په اختیار کښې دی۔ او په دِے خبره کښې دَ مالکیانو سره اتفاق کوی چه دَ فتحه شوو مُلکونو مکانونه هم اګرچه په وقف کښې به شامل وی لیکن په هغې به کرایه نهٔ لګولے کیږی ( غایة المُنتهیٰ۔ دا دَ حنبلی مذهب دَ فتوی شوُو مسئلو مجموعه ده او دَ لسمے صدیٔ نه په دے مذهب کښې فتویٰ هم دَ دے کتاب مطابق ورکولے کیږی)۔

دَ شافعیانو مسلک دا دے چه دَ فتحه شوُو علاقو ټول منقوله مالونه غنیمت دی، او ټول غیر منقوله مالونه ( یعنی زمکے او مکانونه ) به فَے وی ( مُغنی المحتاج)۔

ځینی فقهاء وائی چه کوم مُلکونه عَنوةً فتحه شوی وی دَ هغې زمکے که چرے امام دَ مسلمانانو دَ پاره وقف کول غواړی نو لازمی ده چه هغه دِ اول دَ فاتح فوجونو رضا حاصله کړی۔ دَ دے دَ پاره هغوئ دا دلیل پیش کوی چه حضرت عُمرؓ دَ سوادِ عراق دَ فتحے نه مخکښې دَ جَریر بن عبدالله البجَلی سره، چه دَ هغه دَ قبیلے خلق دَ جنګِ قادسیه دَ فوج څلورمه حصّه وه، دا وعده کړی وه چه دَ فتحه شوُو علاقو څلورمه حصّه به هغوئ له ورکوی۔ نو دَ دوؤ دریو کالو پورے دا حصّه دَ هغوئ سره وه۔ بیا حضرت علیؓ هغوئ ته اُوفرمائیل لو لا انی قاسم مسئول لکنتم علیٰ ما جعل لکم، واری الناس قد کثروا فاری ان ترده علیهم، " که چرے څه دَ تقسیم په معامله کښې ذمه وار او جوابده نهٔ وے نو څه چه تاسو له درکړے شوی دی هغه به هم تاسو ته پاتے کړے شوی وے۔ لیکن اُوس څه وینم چه خلق ډیر شوی دی، نو په دِے وجه زما رائے دا ده چه تاسو دا عامو خلقو ته واپس کړئ"۔ حضرت جریر دا خبره قبول کړه او حضرت عُمرؓ هغوئ له اتیا ۸۰ دیناره دَ انعام په طور ورکړل (کتاب الخراج لابی یوسف۔ کتاب الاموال لابی عبید)۔ دَ دے نه هغوئ دا دَلیل پیش کوی چه حضرت عُمرؓ دَ فاتحینو دَ رضا کولو نه روستو دَ مسلمانانو دَ پاره دَ فتحه شوُو علاقو دَ وقف کولو فیصله کړی وه۔ لیکن جمهور فقهاؤ دا دلیل منلے نهٔ دے۔ ځکه چه دَ ټولو فتحه شوُو علاقو په معامله کښې دَ ټولو فاتحینو دا قسم څه رضامندی نهٔ وه حاصله شوی،



يَقُوْلُوْنَ رَبَّنَا اغْفِرْ لَنَا وَلِاِخْوَانِنَا الَّذِيْنَ سَبَقُوْنَا بِالْاِيْمَانِ وَ لَا تَجْعَلْ فِيْ قُلُوْبِنَا غِلًّا لِّلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا رَبَّنَآ اِنَّكَ رَءُوْفٌ رَّحِيْمٌ ﴿۱۰﴾

اووائی چه" اے زمونږه ربه، مونږه اوزمونږه هغه تهول رُونړه اُوبخښے چه زمونږ نه ئے مخکښے ایمان راوړے دے، اوزمونږ په زړونوکښے د مومنانو دپاره بُغض را پیدا نهٔ کړے، اے زمونږه ربه، تهٔ ډیر مهربان اورحم کوُنکے یے[۲۱]۔

اویران ے دَ حضرت جـریر بن عبدالله سره دا معامله صرف په دے وجه شوی وه چه دَ فتحے نه مخکښے، چه لا دَ فتحه شوُ زمکو په حقله څه اجماعی فیصله نهٔ وه شوی، حضرت عُمرؓ دَ هغه سره یوه وعده کړی وه، نو په دِے وجه دَ وعدے دَ پابندئ نه دَ څان خلاصولو دَپاره هغه دَ هغهٔ رضا حاصله کړه۔ دے نه عام قانون نشی وئیلے کید ے۔

دَ فقهاؤ یوه بله ډله وائی چه دَ وقف کولو نه روستو هم په هر وخت کښے حکومت ته دا اختیار حاصل دے چه دا زمکے بیا په فاتحینو باندِ تقسیم کړی۔ دَ دے دَ پاره هغوئ دَ دے روایت نه دلیل پیش کوی چه یوځلے حضرت علیؓ خلقوته خطاب اوکړو او وِے فرمائیل لولا ان یضرب بعضکم وجوه بعد لقسمت السواد بینکم، "که دا یَره نهٔ وے چه تاسو به دَ یو بل سره جنګونه اُوکړئ نو ما به دَ سَواد علاقه په تاسو باندِ تقسیم کړے وے" (کتاب الخراج لابی یوسف۔کتاب الاموال لابی عُبَید)۔ لیکن جمهور فقهاؤ دا رائے هم قبول کړی نهٔ ده او دَ هغوئ په دِے خبره اتفاق دے چه هرکله یوځلے دَ فتحه شوؤ علاقو په خلقو باندِ جزیه او خِراج اُولګولے شی او دا فیصله اُوشی چه هغوئ به په خپلو زمکو باندِ برقرار پاتے وی نو دَ هغے نه روستو بیا دَا فیصله هیڅکله نشی بدلید ے۔ پاتے شوه هغه خبره کومه چه دَ حضرت علیؓ سره تړلے کیږی نو په هغے باندِ ابوبکرؒ جصّاص په احکام القرآن کښے تفصیلی بحث کړے دے او دا ئے ثابته کړی ده چه دا روایت صحیح نهٔ دے۔

[۲۱] په دے آیت کښے اګرچه اصل مقصد صرف دا ښودل دی چه دَ فَے په تقسیم کښے برازے دَ حاضرو اوَ موجودو خلقونهٔ، بلکه دَ روستو راتلونکو مسلمانانو او دَ هغوئ دَ آینده نسلونو حصّه هم ده۔ لیکن ورسره ورسره په دے کښے یو اهم اخلاقی سبق هم مسلمانانو ته ورکړے شوے دے، او هغه دا دے چه دَ یو مسلمان په زړه کښے دَ بل مسلمان دَ پاره بُغض ساتل نهٔ دی پکار، او دَ مسلمانانو دَپاره صحیح طریقه دا ده چه هغوئ دِ دَ خپلو مشرانو په حق کښے دَ بخښنا ئے دُعاګانے غواړی، نهٔ دا چه په هغوئ دِ لعنتونه وائی۔ مسلمانان چه کوم څیز دَ یو بل سره تړلی دی هغه په اصل کښے ایمان دے۔ که دَ یو سړی په زړه کښے ایمان دَ نورو ټولو څیزونو نه زیات خوږ وی نو خامخا به هغه دَ هغه ټولو خلقو خیرخواه وی کوم چه دَ ایمان په لړکښے دَ هغه رُونړه دی۔ دَ هغه په زړه کښے دَ هغوئ دَپاره بد خواهی او بُغض او نفرت هله راتلے شی

کله چه دَ ایمان قدر دَ هغه په نظر کښې پریوزی او بل څیزله دَ هغې نه زیات اهمیت ورکړی۔ نو دَ ایمان سره دا خبره بالکل ضروری ده چه دَ یو مومن زړه دِ دَ بل مومن خلاف دَ نفرت او دَ بُغض نه خالی وی۔ په دِے معامله کښې ډیر ښه سَبق دَ یو حدیث نه مِلاویږی چه هغه نسائیؒ دَ حضرت انسؓ نه روایت کړے دے۔ دَ هغه بیان دے چه یو ځلے درے ورځے مُسلسل دا سے ؤشوه چه رسول الله صلی الله علیه وسلّم به په خپل مجلس کښې دا اُوفرمائیل چه اُوس ستاسو مخے ته یو دا سے سړے راتلونکے دے چه هغه جنتی دے ، او هر ځل به هغه راتلونکے سړے دَ انصارو نه یو تن ؤو۔ په دِے سره دَ حضرت عبدالله بن عمرو بن عاص سره دا فکر پیدا شو چه آخر دے څه دا سے عمل کوی چه دَ هغې په وجه نبیؐ دَ هغه په باره کښې بار بار دا زیرے اورَولے دے۔ چنانچه هغه دَ یو بهانے په ذریعه درے ورځے مُسلسل دَ هغه ځائے ته دَ دے غرض دَ پاره لاړو او شپه به ئے تیره کړه چه دَ هغه دَ عبادت حال اُووینی۔ لیکن دَ هغه دَ شپے په عمل کښې هغه څه نا اشنا څیز اُونهٔ لیدو۔ آخر پخپله ئے دَ هغه نه تپوس اُوکړو چه زُوره ، ته څه دا سے عمل کوے چه دَ هغې په وجه مونږ دَ نبیؐ نه ستا په حقله دا لوئ زیرے اَورید لے دے؟ هغه اُووئیل چه څما دَ عبادت حال خو تا لیدلے دے۔ البته یوه خبره ده کید ے شی چه هغه دَ دے سبب وی ، او هغه دا ده چه لا اجد فی نفسی غلاً لاحد من المسلمین ، ولا احسده علی خیرٍ اعطاه الله تعالیٰ ایاه۔" څه په خپل زړه کښې دَ بل مسلمان خلاف کینه نهٔ لرم او کوم خیر چه الله هغه له ورکړے وی په هغې ورسره حسد نهٔ کوم"۔

دَ دے دا مطلب نهٔ دے چه یو مسلمان که دَ بل مسلمان په قول او عمل کښې څه غلطی وینی نو هغې ته دِ غلطی نهٔ وائی۔ دَ ایمان تقاضا دا هرگز نهٔ ده چه که مومن غلطی هم اُوکړی نو هغې ته دِ صحیح وئیلے کیږی ، یا دِ دَ هغه غلطے خبری ته غلطه خبره نهٔ وائی۔ لیکن یو څیز ته په دلیل سره غلط وئیل او په ښه طریقه هغه بیانَول بل څیز دے ، او بُغض او نفرت ، بَد رَد وئیل او کنځلے کول بالکل یو بل څیز دے۔ دا حرکت که دَ خپلے زمانے دَ یو ژوندی انسان په حق کښې اوکړے شی نو هم یوه غټه گناه ده ، لیکن دَ مړو مشرانو په حق کښې خو نوره هم زیاته غټه گناه ده ، ځکه چه هغه نفس به بالکل یو ډیر گنده نفس وی ، چه هغه مړو معاف کولو ته هم تیار نهٔ وی۔ او دَ دے ټولو نه ډیره سخته گناه دا ده چه څوک دَ هغه خلقو په حق کښې بَد ه خُله اُوخوزوی چه هغوئ په انتهائی سختو آزمیښتونو کښې دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم دَ ملگرتیا حق ادا کړے وُو او خپل ځانونه ئے مرگ ته وړاندِ کړی وُو او په دُنیا کښې ئے دَ اِسلام هغه رڼا خوره کړی وه چه دَ هغې په وجه نن مونږ ته دَ ایمان نعمت حاصل شوے دے۔ دَ هغوئ په منځ کښې چه کوم اختلاف راغلے دے په هغې کښې که یو سړے یوه ډله په حق باندِ گنړی او دَ بلے ډلے عمل دَ هغه په رائے کښې صحیح نهٔ وی نو هغه دا رائے لرلے شی او هغه په مناسبه طریقه بیانَولے هم شی۔ لیکن دَ یوے ډلے په مرسته کښې دا سے لرے تلل چه دَ بلے ډلے خلاف زړهٔ دَ بُغض او دَ نفرت نه ډک شی او دَ ژبے او دَ قلم په ذریعه بَد ه رَده وینا شروع شی ، دا یو دا سے حرکت دے چه څوک دَ خدائے نه یَریږی نو دا هیڅکله نهٔ شی کولے۔ کوم خلق چه دَ قرآن دَ څرگند تعلیم نه خلاف دا حرکت کوی هغوئ عام طور دَ دے خپل کار دَ پاره دا عُذر بیانَوی چه قرآن دَ مومنانو خلاف دَ بُغض ساتلو نه منع کړی ده ، او مونږ چه دَ چا خلاف بُغض ساتو نو هغوئ مومنان نهٔ وُو بلکه منافقان وُو۔ لیکن دا الزام دَ هغه گناه نه هم بد تر دے

اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِيْنَ نَافَقُوْا يَقُوْلُوْنَ لِاِخْوَانِهِمُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا

۲۲ تا اُونۀ لیدل هغه خلق چه دَ منافقت لار ئے اختیار کړې دۀ؟ دوئ خپلو کافرو اهلِ کتا بو

دَ کومے په صفائئ کښے چه دا دَ عُذر په طور پیش کړے کیږی ـ دَ قرآن مجید هم دا آیتونه، چه پکښے الله تعالیٰ روستو راتلونکو مسلمانانو ته دَ خپلو تیرو شوو مسلمانانو سره دَ بُغض نۀ ساتلو او دَ هغوئ په حق کښے دَ بخښنا نے دَ دُعاګانو غوښتلو تعلیم ورکړے دے، دَ هغوئ دَ دِے الزام دَ تردید دَ پاره کافی دی ـ په دِے آیتونو کښے پر لَپَسے درے ډلے دَ فے حقدارے ګرزولے شوی دی ـ اوّله ډله دَ مهاجرینو، دویمه دَ انصارو، دریمه ډله دَ هغوئ نه روستو راتلونکی مسلمانان ـ او دَغه روستو را تلونکو مسلمانانو ته فرمائیلے شوی دی چه ستاسو نه مخکښے کومو خلقو ایمان راوړے دے دَ هغوئ په حق کښے دَ بخښنا نے دُعاګانے غواړئ ـ ښکاره خبره ده چه په دے موقع دَ مخکښے ایمان راوړونکو نه مُراد دَ مهاجرینو او انصارو نه سِوا بل څوک نشی کیدے ـ بیا الله تعالیٰ دَ دے سورة حَشر په آیتونو ۱۱ تا ۱۷ کښے دا خبره هم په ډاګه کړې ده چه منافقان کوم خلق وُو ـ دَ دے نه دا خبره بالکل څرګندیږی چه منافقان هغه خلق وُو چه هغوئ دَ بنی نضیر دَ غزا په موقع باندِ دَ یهودیانو ملګرتیا کړې وه، او دَ هغوئ په مقابله کښے مومنان هغه وُو چه په دِے غزا کښے دَ رسول الله صلی الله علیه وسلّم سره شامل شوی وُو ـ دَ دے نه روستو یو مسلمان، چه هغه دَ خدائے نه یَره په زړه کښے لری، دا زړورتیا کولے شی چه دَ هغه خلقو دَ ایمان نه انکار اُوکړی ـ دَ کوموِ دَ ایمان ګواهی چه الله تعالیٰ ښپله کړې ده؟

امام مالک او امام احمد دَ دے آیت په دلیل سره دا رائے ظاهره کړې ده چه په فے کښے دَ هغه خلقو هیڅ حصّه نشته څوک چه صحابه کرامو ته بد وائی (احکام القرآن لابن عربی غایة المُنتهٰی) ـ لیکن حنفیانو او شافعیانو دَ دے رائے سره اتفاق نۀ دے کړے ـ دَ دے وجه دا ده چه الله تعالیٰ دَ درے ډلے په فے کښے حصّه دارے ګرزولی دی او دَ هرے ډلے ئے یو څرګند صفت بیان کړے دے، لیکن په هغے کښے یو صفت هم دَ شرط په طور نۀ دے چه که چرے دا شرط په هغه ډله کښے وی نو هغوئ له دِ حصّه ورکړے شی او که نۀ وی نو نۀ دِ ورکړے کیږی ـ دَ مهاجرینو په حقله ئے اوفرمائیل چه "هغوئ دَ الله فضل او دَ الله رضا غواړی او دَ الله او دَ هغه دَ رسول دَ مرستے دَ پاره ملا تړلی تیار وُسی" دَ دے دا مطلب نۀ دے چه په کوم مهاجر کښے دا صفت نۀ وی نو هغه په فے کښے دِ حصّے اغستو حقدار نۀ دے ـ دَ انصارو په حقله ئے اوفرمائیل چه "هغوئ دَ مهاجرینو سره مینه کوی، او هر څه چه ورله ورکړے شی دَ هغے غوښتنه په خپلو زړونو کښے نۀ لری، اګرکه دَ هغوئ لاس تنګ وی ۔۔" دَ دے هم دا مطلب نۀ دے چه په فے کښے دَ یو داسے انصاری حق نشته چه هغه دَ مهاجرینو سره مینه نۀ لری او څه چه هغه له ورکړے کیږی نو دَ هغے دَ حاصلولو خواهش په زړه کښے لری ـ نو دَ دریمے ډلے دا صفت چه "هغوئ دَ ځان نه مخکښے دَ ایمان راوړونکو په حق کښے دَ بخښنا نے دُعاګانے غواړی، او الله نه دا درخواست کوی چه دَ هغه په زړه کښے دَ یو مومن دَ پاره هم بُغض را پیدا نشی"، دا هم په فے کښے دَ حقدارکید و شرط نۀ دے بلکه دا یو ښه صفت بیان وُل دی او په دے خبره زور ورکول دی چه مومنانو له دَ خپلو مومنانو رُونړو سره او دَ خپلو ړومبنو تیرو شوو مومنانو په معامله کښے څه کول پکار دی ـ

مِنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ لَىِٕنْ اُخْرِجْتُمْ لَنَخْرُجَنَّ مَعَكُمْ وَ لَا نُطِیْعُ فِیْكُمْ اَحَدًا اَبَدًا ۙ وَّ اِنْ قُوْتِلْتُمْ لَنَنْصُرَنَّكُمْ ؕ وَ اللّٰهُ یَشْهَدُ اِنَّهُمْ لَكٰذِبُوْنَ ﴿۱۱﴾ لَىِٕنْ اُخْرِجُوْا لَا یَخْرُجُوْنَ مَعَهُمْ ۚ وَ لَىِٕنْ قُوْتِلُوْا لَا یَنْصُرُوْنَهُمْ ۚ وَ لَىِٕنْ نَّصَرُوْهُمْ لَیُوَلُّنَّ الْاَدْبَارَ ۫ ثُمَّ لَا یُنْصَرُوْنَ ﴿۱۲﴾ لَاَنْتُمْ اَشَدُّ رَهْبَةً فِیْ صُدُوْرِهِمْ مِّنَ اللّٰهِ ؕ

رونړو ته وائی "که چرے تاسو اوویستلے شوئ نو مونږ به هم د رسره اُوزو او ستاسو په معامله کښے به مونږه دَ چا خبره هرګز نهٔ منو، او که ستاسو سره جنګ اُوشو نو مونږ به ستاسو امداد کوؤ" لیکن الله ګواه دے چه دا خلق بالکل دروغژن دی۔ که هغوئ اُوویستلے شو نو دوئ به دَ هغوئ سره هرګز نهٔ اُوزی، او که دَ هغوئ سره جنګ اُوشو نو دوئ به دَ هغوئ هرګز اِمداد نهٔ کوی، او که امداد اُوکړی هم خو په شا به تښتی او بیا به دَ هیڅ ځائے نه څه امداد نهٔ مومی۔ دَ دوئ په زړونو کښے دَ الله نه زیاته ستاسو یَره پرته ده،[۲۳]

[۲۲] دَ دے ټولے رکوع دَ انداز بیان نه دا خبره معلومیږی چه دا په هغه زمانه کښے نازله شوی وه کله چه رسول الله صلی الله علیه وسلّم بنی نَضِیر قبیلے ته دَ مدینے نه دَ وتلو دَ پاره دَ لسو ورځو مُهلت ورکړے وُو او دَ هغوئ نه ګیرچاپیره په ګیره اچولو کښے لا یو څو ورځے باقی وے۔ لکه څنګه چه مونږه دَ دے نه مخکښے وئیلی دی چه کله رسول الله صلی الله علیه وسلّم بنی نَضِیر ته دَ وتلو دا خبرداره ورکړو نو عبدالله بن اُبَیّ او دَ مدینے نورو منافقانو مشرانو هغوئ ته دا خبر راُولیږو چه مونږ به دَ دوه زره کسانو سره ستاسو امداد له راځو، او بنی قُرَیظه او بنی غطفان به هم ستاسو مرستے له راپاسی، نو تاسو دَ مسلمانانو په مقابله کښے ټینګ ودریږئ او هرګز هغوی ته وسله مهٔ غورزوئ۔ که دوئ ستاسو سره جنګیږی نو مونږ به ستاسو په ملګرتیا کښے جنګیږو، او که تاسو دَ ځائے نه اُوویستلے شوئ نو مونږ به هم اُوزو۔ په دے باندِ الله تعالیٰ دا آیتونه نازل کړل۔ نو دَ نازلیدو دَ ترتیب په لحاظ سره دا رکوع اوله نازله شوی ده او اولنئ رکوع دَ دے نه روستو نازله شوی ده چه بنی نَضِیر دَ مدینے نه ایستلے شوی وُو۔ لیکن دَ قرآن مجید په ترتیب کښے اولنئ رکوع مخکښے او دویمه رکوع په دے وجه روستو کړے شوی ده چه ډیره اهمه خبره په اولنئ رکوع کښے بیان شوی ده۔

[۲۳] یعنی دوئ چه په ښکاره میدان ته نهٔ راځی نو دَ دے وجه دا نهٔ ده چه دوئ مسلمانان دی، دَ دوئ په زړونو کښے دَ خدائے یَره ده او دَ دے خبری ورسره فکر دے چه دَ ایمان دَ دعوے کولو نه روستو که دوئ دَ مومنانو په مقابله کښے دَ کافرانو مرسته کوی نو خدائے به ترِ تپوس کوی۔ بلکه دوئ چه دَ کوم څیز په وجه

ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ قَوْمٌ لَّا يَفْقَهُوْنَ ﴿۱۳﴾ لَا يُقَاتِلُوْنَكُمْ جَمِيْعًا اِلَّا فِيْ قُرًى مُّحَصَّنَةٍ اَوْ مِنْ وَّرَآءِ جُدُرٍ ؕ بَاْسُهُمْ بَيْنَهُمْ شَدِيْدٌ ؕ تَحْسَبُهُمْ جَمِيْعًا وَّقُلُوْبُهُمْ شَتّٰى ؕ ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ قَوْمٌ لَّا يَعْقِلُوْنَ ﴿۱۴﴾ كَمَثَلِ الَّذِيْنَ

ځکه چه دوئ داسے خلق دی چه هیڅ پوهه نهٔ لری[۲۴] - دوئ به هیڅکله په جمع سره ( په کولاؤ میدان کښے ) ستاسو سره مقابله اُونهٔ کړی، که جنګ کوی هم نو په قلعه بند کلو کښے به ناست وی یا به دَ دیوالونو نه شاته پټ وی - دوئ په خپل منځ کښے دَ یوبل سره په مخالفت کښے ډیر سخت دی - تهٔ په دوئ ګمان کوے چه ټول یوه ډله ده لیکن دَ دوئ زړونه دَ یوبل نه درے ورے دی[۲۵] - دَ دوئ دا حال په دے وجه دے چه دوئ بے عقله دی - دوئ دَ هغه خلقو پشان دی

ستاسو مخے له نشی راتلے هغه دا دے چه دَ اِسلام اودَ محمد صلی الله علیه وسلم سره ستاسو مینه او محبت او قربانی اُووینی او ستاسو زبردست اتحاد ته اُوګوری نو زړونه ئے مات شی - دوئ ته ښه معلومه ده چه تاسو اګرچه یو موټے خلق یئ، لیکن دَ شهادت کومے جذبے چه ستاسو دَ هرکس نه سرفروښانکے مجاهد جوړ کړے دے او دَ کوم تنظیم په وجه چه تاسو یوه فولادی ډله جوړه شوی یئ، دَ هغے سره په مقابله کولو کښے به دَ یهود یانو سره دوئ مهرتے ټوټے شی - دلته دا خبره په نظر کښے ساتل پکار دی چه دَ چا په زړه کښے دَ خدائے نه یَره کمه اودَ بل چانه زیاته وی نو [illegible] عمل کښے دَ خدائے نه دَ نهٔ یریدو نښه ده - ښکاره خبره ده چه کوم سړے په دوؤ خطرو کښے یوه کمه او بله زیاته ګڼړی، نو هغه دَ کمے خطرے پروانهٔ لری او ټول فکرورسره دَ زیاتے خطرے نه دَ بچ کیدو وی -

[۲۵] په دے وړه فقره کښے یو لوئ حقیقت بیان کړے شوے دے - څوک چه عقل فکر لری هغه ته خودا معلومه ده چه په اصل کښے یَره دَ خدائے دَ طاقت نه پکار ده نهٔ چه دَ انسانانو دَ طاقت نه - په دے وجه هغه به دَ هرهغه داسے کارنه ځان ساتی چه هغه ته پرِدَ خدائے سره دَ نیوے کید وخطره وی، خواه که دَ انسانی طاقت نه دَ نیوکے یَره دَ هغه سره وی اوکه نهٔ وی، او هغه به دَ هرهغه کاردَ پاره ملا تړی کوم چه خدائے په هغه بانِدِ فرض کړے وی اګر که دَ ټولے دُنیا طاقتونه هغه ته دَ لارے خنډ شی - لیکن یونا پوهه انسان ته چونکه دَ خدائے طاقت په ظاهره په نظرنهٔ ښکاری او دَ انسانی طاقتونه په ظاهره وِینی، نو په دے وجه په ټولو معاملا تو کښے هغه دَ خپل عمل فیصله دَ خدا په ځائے دَ انسانی طاقتونو په لحاظ سره کوی - که دَ یو څیزنه بچ کیږی نو په دے وجه نهٔ چه خدائے به پرے اُونیسی، بلکه په دے وجه چه دَ هغه مخے ته دَ انسانی طاقت خطره موجود ده - او که یو کار کوی نو هم په دے وجه نهٔ کوی چه خدائے پاک دَ هغے حکم کړے دے یا به پرِهغه ته دَ خدائے دَ طرفنه اجرمِلاؤ شی، بلکه

مِنْ قَبْلِهِمْ قَرِیْبًا ذَاقُوْا وَبَالَ اَمْرِهِمْ ۚ وَلَهُمْ عَذَابٌ اَلِیْمٌ ﴿۱۵﴾ كَمَثَلِ الشَّیْطٰنِ اِذْ قَالَ لِلْاِنْسَانِ اكْفُرْ ۚ فَلَمَّا كَفَرَ قَالَ اِنِّیْ بَرِیْٓءٌ مِّنْكَ اِنِّیْٓ اَخَافُ اللّٰهَ رَبَّ الْعٰلَمِیْنَ ﴿۱۶﴾

چه دَ دوئ نه لږه موده مخکښې ئې دَ خپل عمل مزه څکَلې ده[۲۶] او دَ دوئ دَ پاره دردناک عذاب دَے۔ دَ دوئ مثال دَ شیطان پشان دَے چه هغه اول انسان ته وائي چه کفر اُوکړه، او چه کله انسان کفر اُوکړي نو بیا وائي چه زۀ ستا ذمه وار نۀ یم، زۀ خو دَ الله ربّ العالمین نه یریږم،[۲۷]

صرف په دې وجه ئې کوي چه یو انساني طاقت دَ هغې حکم کوي یا هغه خوښوي او دَ هغې اجر به ورکوي۔ دا پوهه او ناپوهتیا په اصل کښې دَ مومن او دَ غیرمومن عمل دَ یو بل نه جُدا کوي۔

۲۵ دا دَ منافقانو دَ دویمې کمزورئ بیان دَے۔ اوله کمزوري دا وه چه هغوئ یَرَه زړي وُو، دَ خدائے نه دَ یریدو په ځائے به دَ انسانانو نه یَریدل. او دَ مومنانو پشان اُوچت مقصد (یعني نصب العین) دَ هغوئ مخې ته نۀ وُو چه دَ هغې دَ پاره پکښې دَ سَرقربانولو جذبه راپیدا شوې وے۔ او دویمه کمزوري دا وه چه دَ منافقت نه سِوا بل هیڅ څیز دَ هغوئ په منځ کښې شریک نۀ وُو چه هغوئ ئې یَوکړي وے او مضبوطه ډله ئې تړجوړه کړې وے۔ هغوئ چه دَ کوم څیز په وجه راجمع شوي وُو هغه صرف دا وُو چه محمّد صلی الله علیه وسلم دَ هغوئ ښار ته دَ بهرنه راغلے وُو او هلته ئې مشري کوله، او دَ هغوئ دَ خپل وطن انصارو به دَ مهاجرینو حوصله اُوچتوله، دِے ته چه به ئې کتل نو دَ ټولو دَ زړونو نه به لوخړه ختله او دَ غصّے نه به تاؤ راتاؤ کیدل۔ دَ دے حسد په وجه هغوئ غوښتله چه ټول راجمع شي او دَ اِسلام دَ خواؤ شا دُشمنانو سره سازوباز اُوکړي او دا بهرنئ مشري او اقتدار په څه چل ختم کړي۔ دَ دے نه علاوه بل هیڅ دا سے مقصد نۀ وُو چه هغوئ ئې راجمع کړي وے۔ په هغوئ کښې دَ هر سردار ډله جُدا وه۔ هر یو خپله مشري غوښتله۔ هیڅوک دَ بل مخلص دوست نۀ وُو۔ بلکه دَ هر یو په زړه کښې دَ بل دَ پاره دومره بغض او حسد پروت وُو چه کوم ئې خپل شریک دُشمن گڼړلو دَ هغه مقابلے ته ئې هم خپلے دُشمنیانے نۀ شوے هیروَلے، او نۀ دَ یو بل دَ خپو وهلو نه منع کیدے شو۔

دَ غه شان الله تعالیٰ دَ بني نَضِیر دَ غزا نه مخکښې دَ منافقانو حالت مسلمانانو ته اُوښودو چه دَ دوئ دَ طرفنه په حقیقت کښې څه خطره نشته، نو تاسو دَ دوئ دَ دے خبرونه مۀ یَریږئ چه کله تاسو دَ بني نَضِیر قبیلے نه دَ گیرے اچولو دَ پاره را اُوزئ نو دا منافقان سرداران به دَ دوؤ زرو لښکرسره په تاسو باندِ دَ روستو نه

فَكَانَ عَاقِبَتَهُمَآ اَنَّهُمَا فِى النَّارِ خَالِدَيْنِ فِيْهَا ۭ وَذٰلِكَ جَزٰٓؤُا الظّٰلِمِيْنَ ۝۱۷ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اتَّقُوا اللّٰهَ وَلْتَنْظُرْ نَفْسٌ مَّا قَدَّمَتْ لِغَدٍ ۚ وَاتَّقُوا اللّٰهَ ۭ اِنَّ اللّٰهَ خَبِيْرٌۢ بِمَا تَعْمَلُوْنَ ۝۱۸

بيا به دَ دواړو انجام داوی چه دَ هميشه دَپاره دوزخ ته لاړشی، او دَ ظالمانو هم دا جزاده - ع
اے هغه خلقوچه ايمان موراوړے دے[۲۸]، دَ الله نه اُويريږئ، او هر سړے دِ دا اُوګوری چه هغه دَ صبا دَپاره څه سامان تيار کړے[۲۹] دے، دَ الله نه يَره کوئ، يقيناً چه الله ستاسو دَ هغه ټولو عملونو نه خبر دے کوم چه تاسو کوئ -

---

حمله اُوکړی او ورسره ورسره به بنی قريظه او بنی غَطَفان هم په تاسو درواچوی. داټولے هسے تشے لافے دی، دَ دوئ باد به په اول آزميښت کښے اُوزی -

[۲۶] اشاره ده دَ قريشو کافرانو ته او دَ بنی قينقاع يهوديانو ته چه په شماره هم ډير وُواو ساز وسامان ورسره هم ډير وُو خو بيائے هم دَ دے کمزورئ په وجه دَ ډيرو موټی بے ساز وسامان مسلمانانو نه شکست خوړلے وُو-

[۲۷] يعنی دا منافقان دَ بنی نَضِير سره هغه معامله کوی کومه چه شيطان دَ انسان سره کوی - نن دوئ هغوئ ته وائ چه تاسو دَ مسلمانانو سره اُوجنګيږئ، او موږ د درسره يو- خو چه کله هغوئ واقعی اُوجنګيږی نو دوئ به لمن اُوسَنډی او دَ خپلو ټولو وعدو نه به پَښا شی او هډو ګوری به نهٔ چه په هغوئ څه تيريږی - هم د غسے معامله شيطان دَ هر کافر سره کوی، او هم د غسے معامله هغه دَ قريشو دَ کافرانو سره په جنګ بدر کښے کړی وه، چه دَ هغے ذکر په سورۃ انفال آيت ۴۸ کښے راغلے دے - اول خو هغه هغوئ ته لوئ لوئ اُووئيلے او هغوئ ئے په بدر کښے دَ مسلمانانو مقابلے ته راوستل او ورته ئے اُووئيل چه "لَا غَالِبَ عَلَيْكُمُ الْيَوْمَ مِنَ النَّاسِ وَاِنِّیْ جَارٌ لَّكُمْ،" نن به هيڅوک په تاسو غالب کيږی نهٔ او زهٔ ستاسو شاته ولاړيم" خو چه کله دواړه فوجيانو بل ته مخامخ شو نو هغه واپس شواو وے وئيل چه اِنِّیْ بَرِیْٓءٌ مِّنْكُمْ، اِنِّیْٓ اَرٰی مَا لَا تَرَوْنَ اِنِّیْٓ اَخَافُ اللّٰهَ، "زهٔ ستاسو ذمه وار نهٔ يم، زما ته هغه څه ښکاری کوم چه تاسو ته نهٔ ښکاری، زهٔ خو دَ الله نه يَريږم"-

[۲۸] دَ قرآن مجيد دا قاعده ده چه کله دَ منافقو مسلمانانو په منافقت باندِ ګرفت کيږی نو ورسره ورسره هغوئ ته نصيحت هم کيږی چه که په هغوئ کښے دَ ځاضمير څه لږ شان ژوند ے وی نو چه هغه په خپل عمل شرمنده شی او دَ خدائے نه اُويريږی او دَ هغه کندے نه دَ وتلو فکر اُوکړی کوم ته چه دَ دے دَ نفس بندګئ ورغورزولے دے - په دِے ټوله رکوع کښے هم دا نصيحت دے.

[۲۹] دَ صبا نه مُراد آخرت دے - يعنی دَ دُنيا داټول ژوند "نن" دے او "صبا" دَ قيامت هغه

وَلَا تَكُونُوا كَالَّذِينَ نَسُوا اللَّهَ فَأَنسَاهُمْ أَنفُسَهُمْ ۚ أُولَٰئِكَ هُمُ الْفَاسِقُونَ ﴿١٩﴾ لَا يَسْتَوِي أَصْحَابُ النَّارِ وَأَصْحَابُ الْجَنَّةِ ۚ أَصْحَابُ الْجَنَّةِ هُمُ الْفَائِزُونَ ﴿٢٠﴾ لَوْ أَنزَلْنَا هَٰذَا الْقُرْآنَ عَلَىٰ جَبَلٍ لَّرَأَيْتَهُ خَاشِعًا مُّتَصَدِّعًا مِّنْ خَشْيَةِ اللَّهِ ۚ

دَهغه خلقو پشان مه کیږئ چه الله ئے هیرکړونو الله دَهغوئ نه خپل نفسونه هیر کړل[۳۰]، هم دا خلق فاسقان دی - دوزخ ته تلونکی خلق او جنت ته تلونکی خلق هیڅکله یو شان نشی کیدے - جنت ته تلونکی خلق په اصل کښے کامیاب خلق دی -

که چرے مونږه دا قرآن په یو غر باندِ هم نازل کړے وے نو تا به لیدلے وے چه هغه دَ الله دَ یرے نه چتیږی او ټوټے ټوټے کیږی[۳۱]-

ورځ ده کومه چه په دے نن پسے راروانه ده - په دے قسم خبرو الله پاک ډیر په حکمت سره انسان په دے پوهه کړے دے چه لکه څنګه په دُنیا کښے هغه سړے سخت بے وُقوف دے څوک چه دَ نن په مزو چړچو باندِ خپل هرڅه اَلوُزَوی او دا سوچ نهٔ کوی چه صباله به دَهغه سره دَ خوراک پروړی او دَ سر پټولو ځائے هم پاتے شی او که نهٔ. دغه شان هغه سړے هم خپلے خپے ځان له ټخپله وهی څوک چه دَ خپلے دُنیا جوړولو په فکر کښے دومره غښتے وی چه هغه دَ خپل اٰخرت نه بالکل بے پرواشوے وی ، حالانکه اٰخرت به ټیک هم هغسے راځی لکه څنګه چه په نن پسے صبا راتلونکے دے ، او هغه که چرے دَ دُنیا په موجوده ژوند کښے دَ اٰخرت دَپاره څه سامان نهٔ وی لیږلے نو هلته هغه هیڅ نشی موندلے - دَ دے سره دَ حکمت دویمه نُکته دا ده چه په دے آیت کښے هر سړے ټخپله دَ خپل ځان مُحتسب (یعنی حساب کونکے) جوړکړے شوے دے - ترڅو چه په یو سړی کښے ټخپله دَ خپلے بدئ او نیکئ تمیز پیدا نهٔ شی نو هغه ته دَ دے خبرے هډو څه احساس نشی کیدے چه هغه څه کوی چه په هغے دَهغه دَ اٰخرت ژوند به کیږی او که خرابیږی - او کله چه دَ هغه سره دا فکر راپیدا شی نو هغه به ټخپله خپل حساب لګوی او ګوری به چه هغه خپل وخت ، خپله سرمایه ، خپل محنت ، خپل قابلیتونه او خپل کوششونه په کومه لار کښے لګوی چه آیا هغه دے جنت ته بوزی او که دوزخ ته - په دے حساب کولو کښے دَهغه خپله فائده ده ، او که نهٔ کوی نو ټخپله به خپل راتلونکے ژوند خرابوی -

[۳۰] یعنی دا لازمی ده چه دَ خدائے دَ هیرولو سره دَانسان نه خپل ځان هیریږی - دَ سړی نه چه کله دا هیرشی چه هغه دَچا بنده دے نو هغه خامخا په دُنیا کښے خپل غلط حیثیت مقرروی او دَ هغه ټول ژوند دَدے بُنیادی غلط فهمئ په وجه غلط پاتے شی - دغه شان چه کله دَهغه نه دا هیرشی چه هغه دَ یو خدائے نه سِوا دَبل چا بنده نهٔ دے نو هغه دَ هغه یو بندګی خو نهٔ کوی دَ کوم چه هغه په حقیقت کښے بنده دے، او دَ هغه سرُو نو خدایانو بندګی کوی دَ کوموچه هغه په حقیقت کښے بنده نهٔ دے - دا بیا یوه لویه

وَتِلْكَ الْأَمْثَالُ نَضْرِبُهَا لِلنَّاسِ لَعَلَّهُمْ يَتَفَكَّرُونَ ﴿٢١﴾ هُوَ اللّٰهُ الَّذِي لَا إِلٰهَ إِلَّا هُوَ عَالِمُ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ هُوَ الرَّحْمٰنُ

دا مثالونه مونږه خلقوته ددے غرض د پاره بیانوو چه هغوئ (په خپل حالت باندِ) غور اوکړی۔[۳۱]
هغه هم الله دے چه د هغه نه سوا بل معبود نشته،[۳۲] د پټ او ښکاره د هر څیز نه خبردار دے،[۳۳] هم هغه رحمان

---

غلط فهمي ده چه د هغې په وجه د هغه ټول ژوند په غلطه لار روانيږی۔ د انسان اصل مقام په دُنيا کښے داد ے چه هغه بنده دے، آزاد او خپلواکه نهٔ دے، او صرف د يو خدائے بنده دے، د هغه نه سوا د بل چا بنده نهٔ دے۔ چاته چه دا خبره نهٔ وی معلومه هغه ته په حقيقت کښے خپل ځان نهٔ وی معلوم۔ او څوک چه ددے معلوماتو باوجود د لږ ساعت د پاره دا خبره هيره کړی نو په هغه ساعت د هغه نه هغه حرکت کيدے شی کوم چه د يو منکر يا د يو مشرک، يعنی د خود فراموشه انسان د کولو وی۔ په صحيح لاره باندِ د ټينګ وَسيدو ټول دارومدار په دِے خبره دے چه هغه ته دِ خدائے ياد وی۔ د هغه نه د بے پروا کيدو سره هغه ځخپله د خپل ځان نه بے پروا کيږی، او هم دا بے پروائی د هغه نه فاسق جوړوی۔

[۳۱] ددے مثال مطلب داد ے لکه څنګه چه قرآن د خدائے لويئ بيانوی او بنده ته صفا صفا وائی چه ته د خپل هر عمل ذمه وار يُ الله به درنه د هغې تپوس کوی، په دِے که چرے د غرغوندِ لوئ مخلوق هم پوهيدلے او هغه ته به پته لږيدلے چه څومره قادر خدائے به د هغه نه د عملونو تپوس کوی نو هغه به هم د يرے نه ريبدلے وَے۔ ليکن حيرانتيا ده هغه بے فکره انسان ته چه په قرآن پوهيږی او د هغه په ذريعه يُ حقيقت پيژندلے دے او بيا هم پِرِ نهٔ څه يره راځی، نهٔ ورسره دا فکر پيدا کيږی چه کومے ذمه واريانے په هغه اچولے شوی دی د هغې په باره کښے به هغه خپل خدائے له څه جواب ورکوی۔ بلکه د قرآن د اوريدو يا لوستلو نه روستو هغه داسے بے اثره وی لکه چه هغه يو بے وسه کانړے دے چه نهٔ څه اوری، نهٔ څه وينی او نهٔ په څه پوهيږی (د زياتے تشريح د پاره اوګوره تفهيم القرآن، څلورم جلد، الاحزاب، حاشيه ۱۲۰)۔

[۳۲] په دِے آيتونو کښے دا ويلے شوی دی چه د کوم خدائے د طرفنه دا قرآن تاسو ته رالیږلے شوے دے، چه هغه کومے ذمه وارئ په تاسو اچولی دی، او چه آخر به تاسو هغه له د خپلو عملونو جواب ورکوئ، نو چه هغه څنګه خدائے دے او د هغه څه صفتونه دی۔ د ياسنئ خبری نه روستو فوراً د الله د دے صفتونو بيانولو سره ځخپله په انسان کښے دا فکر را پيدا کيږی چه هغه به د يو معمولی هستئ سره نهٔ مخ کيږی بلکه د هغې لوئے او بزرګے هستئ سره به مخ کيږی چه د هغه دا اودا صفتونه دی۔ دلته په دِے خبره هم ځان پوهه کول پکار دی چه په قرآن مجيد کښے اګرچه ځائے په ځائے د الله تعالیٰ صفتونه په داسے بے مثاله طريقے سره بيان کړے شوی دی چه د هغې نه د الله د ذات واضحه تصوّر په ذهن کښے کينی، ليکن دوه ځايونه داسے دی چه په هغې کښے د الله تعالیٰ صفتونه په جامع ترين شکل کښے

الرَّحِيمُ ﴿٢٢﴾ هُوَ اللّٰهُ الَّذِي لَا إِلٰهَ إِلَّا هُوَ ۚ الْمَلِكُ الْقُدُّوسُ

اورحیم دے[۳۵] - هغه هم خاص الله دے چه دَ هغه نه سِوا بل معبود نشته هغه بادشاه دے[۳۶] ډیر پاک دے،

بیان کړے شوی دی، یو په سورة بقره کښې آیت الکرسی (آیت ۲۵۵) - دویم دَ سورة حشر دا آیتونه.

۳۳ یعنی چه دَ هغه نه سِوا دَ بل چا دا حیثیت او مرتبه نشته چه دَ هغه بندګی او عبادت دِ اوکړے شی - چه دَ هغه نه سِوا بل څوک دَ خدائی صفتونه او اختیارات هډو لری نهٔ چه هغه دِ دَ معبود جوړیدو حقدار شی -

۳۴ یعنی څه چه دَ مخلوقاتو نه پټ دی هغه هم هغه ته معلوم دی او څه چه مخلوقاتو ته ښکاره دی دَ هغې نه هم هغه خبردے - په دے کائناتو کښې هیڅ څیز دَ هغه دَ علم نه پټ نشته - تیر څه چه تیر شوی دی، اوس چه څه موجود دی، او آئنده چه به څه کیږی، هر څیز هغه ته بیغ په نیغه معلوم دے - دَ علم ذریعے ته هغه محتاج نهٔ دے -

۳۵ یعنی دغه یوه هستی داسے ده چه دَ هغه رحمت بے حده دے، په ټول کائنات باندِ خور دے، او دَ کائناتو هر څیز ته دَ هغه فائیده وَرَرسی - په ټول جهان کښې داسے لا محدوده رحمت والا بل څوک نشته - په بله هره هستئ کښې چه دَ رحمت کوم صفت موندلے کیږی هغه جُزوی او محدود رحمت دے، او هغه هم دَ هغه ذاتی صفت نهٔ دے بلکه خالق دَ څه فائیدے او ضرورت دپاره هغه له ورکړے دے، په کوم مخلوق کښې چه هغه دَ بل مخلوق دَپاره دَ رحم جذبه پیدا کړی ده، نو په دے وجه ئے پیدا کړی ده چه هغه یو مخلوق دَ بل مخلوق دَ پالنے اودَ خوشحالئ ذریعه جوړول غواړی - دا پخپله ځائے دَ هغه دَ لا محدوده رحمت دلیل دے -

۳۶ په اصل کښې لفظ اَلْمَلِكُ استعمال شوے دے - مطلب ئے دا دے چه اصل بادشاه هم هغه دے - دارنګے مطلقاً دَ الملک لفظ استعمالولو نه دا مطلب هم راوُزی چه هغه دَ یو خاص علاقے یا دَ یو خاص مملکت بادشاه نهٔ دے بلکه دَ ټول جهان بادشاه دے - په ټول کائنات باندِ دَ هغه بادشاهی ده - دَ هر څیز هغه مالک دے - هر څیز دَ هغه دَ اقتدار او دَ هغه دَ حکم تابع دے - او هیڅ څیز داسے نشته چه دَ هغه حاکمیت محدود کړی - په قرآن مجید کښې په مختلفو ځایونو کښې دَ الله تعالیٰ دَ بادشاهئ دا ټول اړخونه ښه په وضاحت سره بیان کړے شوی دی،

| | |
|---|---|
| وَلَهُ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ ۖ كُلٌّ لَّهُ قٰنِتُوْنَ - (الروم، ۲۶) - | په زمکه او په آسمانونو کښې چه څه دی هغه ټول دَ هغه دی او ټول دَ هغه دَ فرمان تابع دی - |
| يُدَبِّرُ الْأَمْرَ مِنَ السَّمَآءِ إِلَى الْأَرْضِ - (السجده، ۵) | دَ آسمان نه دَ زمکے پورے خاص هم هغه دَ هر کار تدبیر کوی - |
| لَهُ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ ۚ وَإِلَى اللّٰهِ تُرْجَعُ الْأُمُوْرُ (الحدید، ۵) | دَ زمکے او دَ آسمانونو بادشاهی دَ هغه ده او خاص الله ته ټول معاملات واپس کیږی - |

وَلَمْ يَكُنْ لَّهٗ شَرِيْكٌ فِى الْمُلْكِ (الفرقان، ۲)
په بادشاهۍ کښې دَ هغه هیڅوک شریک نشته -

بِيَدِهٖ مَلَكُوْتُ كُلِّ شَيْءٍ (یٰسٓ، ۸۳)
دَ هرڅیز بادشاهي دَ هغه په لاس کښې ده -

فَعَّالٌ لِّمَا يُرِيْدُ (البروج، ۱۶)
چه دَ څه څیز اِراده اُوکړي هغه کوي -

لَا يُسْئَلُ عَمَّا يَفْعَلُ وَهُمْ يُسْئَلُوْنَ (الانبیاء، ۲۳)
څه چه هغه کوي دَ هغې به دَ هغه نه تپوس نشي کیدے، اودَ ټول مخلوق نه به تپوس کیږي -

وَاللّٰهُ يَحْكُمُ لَا مُعَقِّبَ لِحُكْمِهٖ (الرعد، ۴۱)
او الله فیصله کوي، څوک دَ هغه په فیصلے باندِ دوباره نظر اچونکے نشته -

وَهُوَ يُجِيْرُ وَلَا يُجَارُ عَلَيْهِ (المومنون، ۸۸)
او هغه پناه ورکوي او بل هیڅوک دَ هغه په مقابله کښې پناه نشي ورکولے -

قُلِ اللّٰهُمَّ مٰلِكَ الْمُلْكِ تُؤْتِى الْمُلْكَ مَنْ تَشَآءُ وَتَنْزِعُ الْمُلْكَ مِمَّنْ تَشَآءُ وَتُعِزُّ مَنْ تَشَآءُ وَتُذِلُّ مَنْ تَشَآءُ بِيَدِكَ الْخَيْرُ اِنَّكَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ - (آل عمران، ۲۶)
اُووایه "اے خدایا، دَ مُلک مالکه، ته چې چا له خوښه مُلک ورکوے، او چې چا نه خوښه مُلک اخلے- چې چا له خوښه چاله عزت ورکوے او څوک ذلیله کوې، خیر هم ستا په لاس کښې دے یقیناً چه ته په هرڅیز باندِ قدرت لرے -

دَ دے تشریحاتو نه دا معلومیږي چه دَ الله تعالیٰ بادشاهي محدوده یا مجازي بادشاهي نهٔ ده بلکه پوره او مکمله حقیقي بادشاهي ده - په حقیقت کښې حاکمیت نو مے څیز صرف او صرف دَ الله تعالیٰ په بادشاهي کښې دے - دَ دے نه سِوا په بل هرځائے کښې چه دَ حاکمیت دعویٰ کیږي، خواه که هغه بادشاه وي یا ډیکټیټر وي، یا یوه طبقه، یا یوه ډله یا یو خاندان وي، یا یو قوم وي، هغوئ ته په حقیقت کښې حاکمیت حاصل نهٔ دے، ځکه چه حاکمیت هغه حکومت ته هڅو والیٔ نهٔ چه دَ بل چا عطیه وي (یعني بل چا ورکړے وي)، چه کله مِلا ویږي او کله ختمیږي، چه دَ بل طاقت نه ورته خطره کیدے شي، چه هغه عارضي وي او دَ څه وخت دَ پاره وي، چه دَ هغه اقتدار بل مخالف قوت محدود کولے شي -

لیکن قرآن مجید صرف په دے خبره اکتفا نهٔ کوي چه الله تعالیٰ دَ کائناتو بادشاه دے، بلکه رُوستو ورپسے دا وضاحت کوي چه هغه داسے بادشاه دے چه قدّوس دے، سلام دے، مومن دے، مُهیمن دے، عزیز دے، جبّار دے، متکبّر دے، خالق دے، باري دے او مصوّر دے -

۲۷ په اصل کښې لفظ قدّوس استعمال شوے دے چه دَ مبالغے صیغه ده - دَ دے ماده قدس ده - دَ قدس معنیٰ ده دَ ټولو خرابو صفتونو نه پاک - او دَ قُدّوس مطلب دا دے چه هغه دَ دے نه په څو درجے اُوچت او برتر دے چه دَ هغه په ذات کښې دِ څه عیب، یا څه نقص یا څه خراب صفت وي - بلکه هغه یوه پاکه هستي ده چه دَ هغه په باره کښې دَ خرابئیا هیڅ تصوّر نشي کیدے - دلته په دے خبره ځان بنه پوهه کول پکار دي

اَلسَّلٰمُ الْمُؤْمِنُ الْمُهَيْمِنُ الْعَزِيْزُ الْجَبَّارُ الْمُتَكَبِّرُ

سراسر سلا متیا ده[۳۸]، امن ورکوونکے دے[۳۹]، ساتونکے دے[۴۰]، په ټولو غالب دے[۴۱] خپل حکم په زور جاری کوونکے دے[۴۲]، او په حقیقت کښے لوئ دے[۴۳]۔

چه قُدّوسیت په حقیقت کښے د حاکمیت اولنے شرط دے۔ د انسان عقل او فطرت دا نهٔ منی چه حاکمیت دِ دَیوے داسے هستئ سره وی چه هغه دِ شریر او بد خویه او بد نیته وی۔ چه په هغه کښے دِ خراب صفتونه وی۔ چه دَ هغه دَ اقتدار نه دِ دَ هغه رعیت ته دَ خیر رسیدو په ځائے دَ بدیٔ رسید و خطره وی۔ دا وجه ده چه انسان په کوم ځائے کښے حاکمیت مقرر ری هلته که قدّوسیت نهٔ هم وی نو دَ ځانه ئے فرض کوی، ځکه چه دَ قدّوسیت نه بغیر دَ مطلق اقتدار تصوّر نشی کیدے۔ لیکن دا ظاهره خبره ده چه دَ الله تعالیٰ نه سِوا په حقیقت کښے بل هیڅوک قدّوس نهٔ دے او نشی کیدے۔ که شخصی باد شاهی وی او که دَ جمهور حاکمیت وی، یا که دَ اشتراکی نظام حکومت وی، یا دَ انسانی حکومت بل څه شکل وی، بهرحال دَ هغے په حق کښے دَ قُدّوسیت خیال هم نشی کیدے۔

[۳۸] په اصل کښے لفظ اَلسَّلَام استعمال شوے دے چه معنیٰ ئے ده سلامتیا۔ څوک چه چاته دَ سلیم یا دَ سالم وئیلو په ځائے سلامتیا اُووائی نو دَ دے نه پخپله دَ مبالغے مطلب را پیدا کړی۔ مثلاً چاته دَ حَسِین (یعنی ښائسته) وئیلو په ځائے حُسن (ښائست) اُووئیلے شی نو دَ دے مطلب به دا وی چه هغه دَ سرنه دَ خپو پورے حُسن یعنی ښائست دے۔ الله ته دَ السّلام وئیلو مطلب دا دے چه هغه سراسر سلامتیا ده۔ دَ هغه ذات دَ دے نه اُوچت دے چه په هغه دِ څه آفت یا کمزوری یا کمے راشی۔ یا دِ چرته دَ هغه په کمال باندِ زوال راشی۔

[۳۹] په اصل کښے لفظ اَلْمُؤْمِنُ استعمال شوے دے چه ماده ئے امن ده۔ دَ امن معنیٰ ده دَ یرے نه محفوظ کیدل۔ او مُؤْمِن هغه دے چه بل له امن ورکړی۔ الله تعالیٰ ته په دے معنیٰ کښے مومن وئیلے شوے دے چه هغه خپل مخلوق له امن ورکوونکے دے۔ دَ هغه مخلوق دَ دے یرے نه بالکل محفوظ دی چه هغه به پرچرته ظلم اُوکړی، یا به دَ هغه حق اُووهی، یا به دَ هغه اجر ضائع کړی، یا به دَ هغه سره دَ کړی وعدو خلاف ورزی اُوکړی۔ بیا چونکه دَ دے فاعل مفعول نهٔ دے بیان کړے شوے چه هغه چاله امن ورکوونکے دے، بلکه مطلقاً المؤمن وئیلے شوے دے۔ په دے وجه دَ دے نه دا مطلب پخپله را اُوزی چه دَ هغه امن دَ ټول کائنات او دَ کائنات دَ هر څیز دَ پاره دے۔

[۴۰] په اصل کښے لفظ اَلْمُهَيْمِنُ استعمال شوے دے چه درے معنے لری۔ یوه ساتونکے او حفاظت کوونکے۔ دویمه، شاهد، یعنی کتونکے چه ګوری چه څوک څه کوی۔ دریمه، دَ خلقو په کارونو باندِ قایم، یعنی چه دَ خلقو دَ ضرورتونو او حاجتونو پوره کولو ذمه ئے اغستلی وی۔ دلته هم چونکه مطلقاً اَلْمُهَيْمِنُ استعمال کړے شوے دے، او دَ دے فاعل مفعول نهٔ دے بیان کړے شوے چه هغه دَ چا ساتونکے او حفاظت کوونکے دے، چاته کتونکے دے، او دَ چا دَ ضرورتونو ذمه واری ئے اغستلی ده، نو په دے وجه دَ دے نه پخپله دا مطلب را اُوزی چه هغه دَ ټولو مخلوقاتو نګرانی او حفاظت کوی، دَ ټولو عملونو ته ګوری، او دَ کائناتو دَ هر مخلوق دَ پالنے او دَ هغه دَ ضرورتونو پوره کولو ذمه ئے اغستلی ده۔

سُبۡحٰنَ اللّٰہِ عَمَّا یُشۡرِکُوۡنَ ﴿۲۳﴾ هُوَ اللّٰهُ الۡخَالِقُ الۡبَارِئُ الۡمُصَوِّرُ لَهُ الۡاَسۡمَآءُ الۡحُسۡنٰی ؕ یُسَبِّحُ لَهٗ مَا فِی السَّمٰوٰتِ وَالۡاَرۡضِ ۚ وَهُوَ الۡعَزِیۡزُ الۡحَکِیۡمُ ﴿۲۴﴾



پاک دے اللہ د هغه شرک نه کوم چه خلق کوی۔ هغه هم اللہ دے چه د پیدا وښت د منصوبے جوړونکے او د هغې چلونکے او د هغې مطابق شکل جوړونکے دے[۴۵]۔ د هغه د پاره بهترین نومونه دی[۴۶]۔ په آسمانونو او په زمکه کښے هر څیز د هغه تسبیح[۴۷] والی، او هغه زبردست او حکیم دے[۴۸]۔ ع

۴۱ه په اصل کښے لفظ العـزیز استعمال شوے دے چه داسے زبردستے هستئ ته وئیلے شی چه د هغه مقابلے ته هیڅوک سر نۀ شی اوچتولے، چه د هغه د فیصلو مخه هیڅوک نشی بندولے، چه د هغه په وړاندې ټول بے وسه او بے طاقته دی۔

۴۲ه په اصل کښے لفظ الجبّار استعمال شوے دے چه مادّه ئے ده جبر۔ د جبر معنیٰ ده یو څیز په طاقت سره صحیح کول، د یو څیز اصلاح په زُور سره کول۔ اګرچه په عربئ ژبه کښے کله جبر صرف د اصلاح د پاره هم وئیلے کیږی، او کله صرف د زبردستئ د پاره هم استعمالیږی، لیکن د دے حقیقی مطلب د اصلاح د پاره د طاقت استعمال دے۔ نو اللہ تعـالیٰ ته جبّار په دے معنیٰ کښے وئیلے شوے دے چه هغه د خپل کائناتو نظم په زُور صحیح کوُنکے دے او خپله اِراده، چه هغه سراسر د حکمت نه ډکه وی، په زُور جاری کوُنکے دے۔ د دے نه علاوه په لفظ جبّار کښے د عظمت مطلب هم شامل دے۔ په عربئ ژبه کښے د کجورے هغه وُنے ته جبّار والی چه هغه دومره دنګه وی چه د هغې نه میوه را شُوکول آسان نۀ وی۔ د غه شان یو کار چه هغه ډیر عظیم الشان وی هغې ته عملِ جبّار والی۔

۴۳ه په اصل کښے لفظ المتکبّر استعمال شوے دے چه دوه مطلبونه ئے دی۔ یو هغه چه په حقیقت کښے لویٔ نۀ وی خو خامخا د ځان نه لویٔ جوړ کړی۔ دویم هغه چه په حقیقت کښے لویٔ وی او په لویٔ مقام قایم وی۔ که انسان وی او که شیطان وی یا که بل څـه مخلوق وی، چونکه لوئی په حقیقت کښے د هغه د پاره نۀ ده، نو هغه که چرے خپل ځان لویٔ ګنړی او په نورو باندې خپله لویٔ ژباتی نو داد دروغو دعویٰ ده او بدترین عیب دے۔ د دے نه برعکس، اللہ تعـالیٰ په حقیقت کښے لوئے دے او لوئی په حقیقت کښے د هغه د پاره ده او د کائناتو هر څیز د هغه په مقابله کښے سپک او ذلیل دے، نو په دے وجه د هغه لویٔ او د لوئیٔ په مقام وُدریدل څه دروغ نۀ دی بلکه یو حقیقی آمر دے، یو خراب صفت نۀ دے بلکه یوه خوبی ده

چه دَ هغه نه سِوا په بل چا کښے نهٔ موندے کیږی۔

۴۴ه یعنی دَ هغه په اِقتدار او اختیاراتو او صفتونو کښے، یا د هغه په ذات کښے چه کوم خلق یو مخلوق دَ هغه سره شریکوی، هغوی په حقیقت کښے ډیر غټ دروغ وائی۔ الله تعالیٰ دَ دے نه پاک دے چه په یوه معنیٰ کښے دِڅوک دَ هغه شریک شی۔

۴۵ه یعنی ټوله دُنیا او دَ دُنیا هرڅیز دَ پیداکیدو دَ اولے منصُوبے نه واخله دَ خاص شکل جوړیدو پورے بالکل خاص دَ هغه پیداوښت دے۔ یو څیز هم نهٔ پخپله پیدا شوے دے، نهٔ اتفاقاً پیدا شوے دے، نهٔ دَ هغه په پیداوښت کښے دَ بل چا دَ ذرّے هومره څه دخل شته۔ دلته دَ الله تعالیٰ دَ پیداوښت منصُوبه په دریو جُدا جُدا مرتبو کښے بیان کړے شوی ده چه هغه په یو بل پسے جوړیږی۔ اوله مرتبه دَ خَلق یعنی دَ تقدیر یا دَ منصُوبے ده۔ دَ دے مثال داسے دَے لکه چه یو انجنیر دَ یوے آبادیٔ جوړولو نه مخکښے دا اِراده کوی چه هغه به په دِے طریقه یوه آبادِی دَ فلانی مقصد دَپاره جوړوی او هغه په خپل ذهن کښے دَ هغے نقشه سازوی چه دَ دے مقصد دَپاره دَ آبادیٔ شکل په دِے طریقه پکار دے۔ دویمه مرتبه ده بَرْء، چه اصل معنیٰ ئے ده جُدا کول۔ دَ خالق دَپاره «باری» لفظ په دِے معنیٰ کښے استعمال شوے دے چه هغه خپله سازه شوی نقشه جوړوی، او دَ کوم څیز نقشه چه دَ هغه په سوچ کښے ده هغه وجود ته راولی۔ دَ دے مثال داسے دے لکه څنګه چه انجنیر دَ آبادیٔ کومه نقشه په ذهن کښے جوړه کړی وه دَ هغے مطابق ټیک ټیک په زمکه کښے کچ میچ کوی، بیا بُنیادُونه کنی، او دیوالُونه اُوچتوی او دغه شان نورکار کوی۔ دریمه مرتبه تصویر دے، چه معنیٰ ئے ده شکل جوړول، او دلته دَ دے نه مُراد دے یو څیز په خپل آخری مکمّل شکل کښے جوړول۔ په دے دریواړو مرتبو کښے دَ الله تعالیٰ دَ کار او دَ انسانی کارونو په مینځ کښے هیڅ څه مشابهت نشته۔ دَ انسان یوه منصوبه هم داسے نهٔ ده چه هغه دَ مخکینو نمونو نه اغستے شوی نهٔ وی۔ لیکن دَ الله تعالیٰ هره منصُوبه بے مثاله ده او دَ هغه خپل ایجاد دے۔ انسان چه څه جوړوی۔ نو دَ الله تعالیٰ دَ پیدا کړو څیزونو نه ئے جوړوی۔ هغه یو څیز دَ عَدَم نه وجود ته نهٔ راولی یعنی داسے نهٔ ده چه یو څیز نهٔ وی او هغه ئے شته کړی بلکه څه چه موجود دی هغه له په مختلفو طریقو سره ترکیب ورکوی۔ دَ دے برخلاف الله تعالیٰ ټول څیزونه دَ عدم نه وجود ته راولی یعنی یو څیز نهٔ وی او هغه ئے شته کړی او هغه ماده هم الله تعالیٰ پیدا کړی ده دَ کوم نه چه هغه دا دُنیا جوړه کړی ده۔ دغه شان په شکل جوړولو کښے هم انسان ایجاد کونکے نهٔ دے بلکه دَ الله تعالیٰ دَ جوړو شوُو شکلونو نقل کوُنکے او نا چاره نقل کونکے۔ اصل مُصوّر یعنی شکل جوړونکے الله تعالیٰ دے چه هغه هر جنس، هر قسم او دَ هر فرد شکل بے مثاله جوړ کړے دے او هیڅکله ئے یو شکل هُو به هُو دوباره نهٔ دے جوړ کړے۔

۴۶ه دَ نومونو نه مُراد صفتی نومونه دی۔ او دَ هغه دَپاره دَ بهترینو نومونو مطلب دا دے

چه دَ هغه سره هغه صفتي نومونه موزون نهٔ دي دَ کومو نه چه دَ څه نقصان اِظهار کيږي ، بلکه هغه په هغه نومونو سره يادَول پکار دي چه دَ هغه دَ کمالي صفتونو اِظهار کوي - په قرآن مجيد کښې ځائے په ځائے دَ الله تعالیٰ دا ښائسته نومونه ( اسمائے حُسنیٰ ) بيان کړے شوي دي ، او په حديث کښې دَ هغه پاک ذات يو کم سل ۹۹ نومونه شمار کړے شوي دي چه ترمذي او ابن ماجه دَ حضرت ابوهريره په روايت سره ډير په تفصيل سره نقل کړي دي - په قرآن او په حديث کښې که سړے دغه نومونه په غور سره اُولولي نو هغه په آسانئ سره پوهيدے شي چه که چرے څوک دَ دُنيا په نورو ژبو کښې الله تعالیٰ يادَوي نو کوم لفظونه به د هغه دَ پاره موزون وي -

۴۷ه يعنی په وينا سره يا په زُبانِ حال سره دا بيان کوي چه دَ هغه خالق دَ هر عيب ، دَ هر نقصان ، دَ هرے کمزورئ او دَ هرے غلطئ نه پاک دے -

۴۸ه دَ تشريح دَ پاره اُوګوره تفهيم القرآن ، پنځم جلد ، تفسير دَ سورة حديد ، حاشيه ۲ -

---

# المُمتَحِنَه

**نوم** دَ دے سورۃ په آيت ۱۰ کښے حکم شوے دے چه کومے ښځے په هجرت راشی او دَ مسلمانئ دعویٰ اُوکړی نو دَ هغوئ امتحان واخلئ۔ په دې مناسبت سره دَ دې نوم المتحنه کيښودے شوے دے۔ دا مُمتَحَنَه هم ويئلے شی او مُمتَحِنَه هم۔ دَ اولنی تلفظ په لحاظ سره معنیٰ ده "هغه ښځه چه امتحان ترې واخستے شی"۔ او دَ دويم تلفظ په لحاظ سره معنیٰ ده "امتحان اخستونکے سورۃ"۔

**دَ نازليدو زمانه** په دِے کښے په دوو داسے معاملو باندِ خبره شوی ده چه دَ هغے زمانه تاريخی طور معلومه ده۔ اوله معامله دَ حضرت حاطِب بن ابی بَلتَعَه دَهٔ چه چه هغه دَ مکے دَ فتحے نه څه لږه موده مخکښے دَ يو پټ خط په ذريعه دَ قريشو سردارانو ته دَ رسول الله صلی الله عليه وسلّم دَ دے اراد ے اطلاع ورلیږلی وُه چه هغه په مکّه حمله کوُنکے دے۔ او دويمه معامله دَ هغه مسلمانو ښځو ده چه هغوئ دَ حُديبيے دَ صلحے نه روستو دَ مکے نه مدينے ته هجرت شروع کړے وُو او دَ هغوئ په باره کښے دا خبره مخے ته راغلی وه چه آيا دَ صلحے دَ شرطونو ترمخه دِ دا ښځے هم دَ مسلمانانو سړو پشان کافرانو ته حواله کړے شی؟ دَ دے دواړو معاملو دَ ذکر نه دا خبره قطعی طور ثابتيږی چه دا سورۃ دَ صلح حُديبيے او دَ فتح مکے په منځنی دَور کښے نازل شوے دے۔ دَ دے نه علاوه يوه دريمه معامله هم ده چه دَ هغے ذکر دَ سورۃ په آخر کښے راغلے دے، او هغه دا چه کله ښځے ايمان راوړی او دَ بيعت دپاره دَ رسول الله صلی الله عليه وسلّم په خدمت کښے حاضرېږي نو چه نبیّ دَ هغوئ نه دَ کومو خبرو وعده واخلی۔ دَ دے حصّے په حقله هم قياس دا دے چه دا هم دَ مکے دَ فتحے نه څه لږه مخکښے نازله شوی ده، ځکه چه دَ مکے دَ فتحے نه روستو دَ قريشو دَ سړو پشان دَ هغوئ ښځے هم په کثير تعداد کښے په يو وخت په اِسلام کښے داخليدونکی وِے او په دِے موقع دا ضرورت پيښ شوے وُو چه اجتماعی طور دِ دَ هغوئ نه وعده واخستے شی۔

**موضوع او بحثونه** دَ دے سورۃ درے حصّے دی:

اوله حصّه دَ سورۃ دَ شروع نه دَ نهم آيت پورے ده او دَ سورۃ په آخر کښے دیارلسم آيت هم دَ دے سره تعلق لری۔ په هغے کښے دَ حضرت حاطب بن ابی بَلتَعَه په دِے کار باندِ سخته خبره شوی ده چه هغه صرف دَ خپل بال بچ دَ بچ کولو دَ پاره دَ رسول الله صلی الله عليه وسلّم دَ يو ډير اهم جنگی راز نه دَ دُشمنانو دَ خبرولو کوشش کړے وُو چه که چرے هغه په وخت نهٔ وَے ناکام کړے شوے نو دَ مکے دَ فتحے په موقع به ډيرے وينے توئ شوِی وِے، ډير قيمتی قيمتی مسلمانان به هم وژلے

شوی وُو ، دَ قریشو به هم ډیر داسے خلق مړه شوی وُو چه هغوی روستو دَ اِسلام لویٔ خدمتونه کونکی وُو ، هغه ټولے فایدے به هم ضائع شوی وے کومے چه دَ مکےّ دَ پر امن فتحے سره حاصلیدے شوے ، او دومره لویٔ نقصانونه به صرف په دے وجه شوی وے چه په مسلمانانو کښے یوسړی خپل بال بچ دَ جنګ دَ خطرونه محفوظ ساتل غوښتل - په دے سخته غلطیٔ باندِ الله تعالیٰ زور نه کړی ده او ټولو مومنانو ته ئے دا تعلیم ورکړے دے چه مومن سړی له دَ دُشمن کافرانو سره دَ څه غرض دَ پاره په هیڅ حال کښے دَ مینے او دَ دوستیٔ تعلق ساتل نهٔ دی پکار او څه داسے کار کول نهٔ دی پکار چه هغه دَ کفر او دَ اسلام په جنګ کښے دَ کافرانو دَ پاره فایده مند وی - البته چه کوم کافران دَ اِسلام او دَ مسلمانانو خلاف عملاً دُشمنی نهٔ کوی او هغویٔ ته تکلیف نهٔ رَسَوی نو دَ هغویٔ سره په احسان کولو کښے څه باک نشته -

لسم او یوولسم آیت دویمه حصّه ده - په دے کښے دَ استو کښے دَ یو ے اهمے مسئلے فیصله شوی ده چه په هغه وخت کښے ئے لویٔ ګړبړ پیدا کولو - په مکهّ کښے ډیرے مسلمانانے ښځے داسے وے چه دَ هغویٔ خاوندان کافران وُو ، هغویٔ به په څه طریقه هجرت اُوکړو او مدینے ته به را اُو رسیدلے - دغه شان په مدینه کښے ډیر مسلمانان سړی داسے وُو چه دَ هغویٔ ښځے کافرانے وے او هغویٔ په مکهّ کښے پاتے شوی وے - دَ هغویٔ په باره کښے دا مسئله را پیدا کیدله چه آیا دَ هغویٔ په منځ کښے دَ کوروالیٔ رشته باقی ده او که نهٔ - الله تعالیٰ دَ دے فیصله دَ همیشه همیشه دَ پاره دا اُوکړه چه دَ مسلمانے ښځے دَ پاره کافر خاوند حلال نهٔ دے ، او دَ مسلمان سړی دَ پاره هم دا جائز نهٔ دی چه مشرکه ښځه په خپله نکاح کښے اُوساتی - په دے فیصله کښے ډیرے اهمے قانونی خبری دی چه تفصیل به ئے وړاندِ مونږه په حاشیو کښے بیان کړو -

دریمه حصّه په دولسم آیت کښے ده چه په هغے کښے رسول الله صلی الله علیه وسلّم ته فرمائیلے شوی دی چه کومے ښځے اِسلام قبول کړی نو ته دَ هغویٔ نه وعده واخله چه دَ هغه لویو لویو ګناهونو نه ځان اُوساتی کوم چه به دَ جاهلیت په زمانه کښے ښځو کول او دَ دے خبری اِقرار تر واخله چه آینده به هغه ټول نیک کارونه کوی دَ کوم حکم چه دَ الله دَ رسول دَ طرفنه هغویٔ ته اُوشی -

---

# سُوْرَةُ الْمُمْتَحِنَةِ مَدَنِيَّةٌ

آیاتها ۱۳ — رکوعاتها ۲

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَتَّخِذُوْا عَدُوِّيْ وَعَدُوَّكُمْ اَوْلِيَآءَ تُلْقُوْنَ اِلَيْهِمْ بِالْمَوَدَّةِ وَقَدْ كَفَرُوْا بِمَا جَآءَكُمْ مِّنَ الْحَقِّ ۚ يُخْرِجُوْنَ الرَّسُوْلَ وَاِيَّاكُمْ اَنْ تُؤْمِنُوْا بِاللّٰهِ رَبِّكُمْ ؕ اِنْ كُنْتُمْ خَرَجْتُمْ جِهَادًا فِيْ سَبِيْلِيْ وَابْتِغَآءَ مَرْضَاتِيْ ۖ تُسِرُّوْنَ اِلَيْهِمْ بِالْمَوَدَّةِ ۖ وَاَنَا اَعْلَمُ بِمَآ اَخْفَيْتُمْ وَمَآ اَعْلَنْتُمْ ؕ وَمَنْ يَّفْعَلْهُ

اے[۱] هغه خلقو چه ایمان مو راوړے دے، که چرے تاسو ځما په لار کښے دَ جهاد کولو دَ پاره او ځما دَ رضا موندلو دَ پاره (وطن پریښود ے وی او دَ کورونو نه) وتلی یئ نو ځما دُشمنان او خپل دُشمنان مهٔ دوستان کوئ ـ تاسو دَ هغوئ سره دَ دوستئ بُنیاد بږدئ، حالانکه چه کوم حق تاسو ته راغلے دے هغوئ دَ هغے دَ منلو نه اِنکار کړے دے او دَ هغوئ کار دا دے چه رسول او تاسو صرف په دے وجه بے وطنه کوی چه تاسو په خپل رب، الله باندِ ایمان راوړے دے۔ تاسو پټ په پټه هغوئ ته دَ دوستانے پیغامونه لیږئ، حالانکه څه چه تاسو په پټه کوئ او څه چه په ښکاره کوئ هر څیز ما ته ښه معلوم دے ـ په تاسو کښے چه هر څوک دا سے

[۱] مناسبه خبره داده چه په شروع کښے دَ هغه واقعے تفصیلات بیان کړے شی دَ کومے په باره کښے چه دا آیتونه نازل شوی دی چه په وړاندینۍ خبرو باندِ سړے په آسانه پوهه شی۔ دَ مفسّرینو په دے خبره باندِ اتفاق دے او دَ ابن عباس، مجاهد، قتاده او دَ عُروه بن زُبَیر وغیرو متفقه روایت هم دادے چه دا آیتونه په هغه وخت کښے نازل شوی وُو کله چه دَ مکے دَ مشرکانو په نوم دَ حضرت حاطب بن ابی بَلتَعَه خط نیولے شوے وُو۔

قیصه داده چه کله قریشو دَ حدَیبیے دَ صلحے معاهده ماته کړه نو رسول الله صلی الله علیه وسلّم په مکه معظمه باندِ دَ حملے کولو تیاریانے شروع کړے، لیکن دَ یو څو خاص صحابو نه سِوائے بل چا ته دا خبره ښکاره نهٔ کړه چه هغه څه کول غواړی ـ اتفاقاً په دغه ورځو کښے دَ مکے نه یوه ښځه راغله چه هغه دَ اوّل نه دَ بنی عبدالمطلب وینځه وه او بیا آزاده شوه او دَ سندرو ږ ما مو کار به یئے کولو۔

هغه نبیؐ له راغله، خپله غریبي ئې بیان کړه او څه مالي إمداد ئې اُوغوښتو۔ نبیؐ بني عبد المطّلب او بني المطّلب ته اپیل اُوکړو او دَ هغې حاجت ئې پوره کړو۔ کله چه هغه مکّې ته روانه شوه نو حضرت حاطب بن ابي بلتعه دَ هغې سره مِلاوْ شو او پټ شان ئې ورله دَ مکّې دَ څینو سردارانو په نوم خط ورکړو او ورسره ئې لَس دینارهٔ ورکړل چه راز ښکاره نهٔ کړي او پټ په پټه دا خط هغوئ ته اُورسوي۔ هغه بس دَ مدینې نه روانه شوې وه چه الله تعالیٰ نبي صلی الله علیه وسلّم ته دَ هغې اطلاع ورکړه۔ نبیؐ فوراً حضرت عليؓ، حضرت زُبَیرؓ او حضرت مِقداد بن اَسْود په هغې پسې اُولیږل او حکم ئې اُوکړو چه تیز لاړ شئ، په روضه خاخ نومې ځائې کښې به (چه دَ مدینې نه مکّې طرفته دولس میله لرې وُو) تاسو ته یوه ښځه مِلاوْ شي چه دَ هغې سره دَ مشرکانو په نوم دَ حاطب یو خط دے۔ هر څنګه چه وي دَ هغې نه هغه خط واخلئ۔ که خط ئې درکړو نو بیا ئې پرېږدئ او که در ئې نهٔ کړو نو وِے وژنئ۔ هغوئ چه کله هغه ځائې ته اُورسیدل نو هغه ښځه هلته موجود وه۔ هغوئ ترې خط اُوغوښتو۔ هغې ورته اُووئیل چه ما سره خط نشته۔ هغوئ ئې تلاشي واغستله خو خط ئې ورسره اُونهٔ موندو۔ په آخر کښې ورته هغوئ اُووئیل چه خط موږ له راکړه کنئ نو موږ به تا لغړه کړو او تلاشي به دِ واخلو۔ هغې ته چه پته اُولګیدله چه دَ بچ کیدو څه لار نشته نو دَ خپلې کمڅئ نه ئې هغه خط را اُوویستو او هغوئ له ئې ورکړو او هغوئ نبیؐ له راوړو۔ چه وِے کتلو نو په هغې کښې دَ قریشو خلقو ته دا خبر ورکړې شوے وُو چه رسول الله صلی الله علیه وسلّم په تاسو باندِ دَ حملې کولو تیاری کوي۔ (په مختلفو روایتونو کښې دَ خط الفاظ مختلف دي، لیکن مطلب دَ ټولو یو دے)۔ نبیؐ دَ حضرت حاطِب نه تپوس اُوکړو چه دا دِ څه کړي دي؟ هغه عرض اُوکړو چه تاسو ځما په معامله کښې تلوار مهٔ کوئ۔ ما چه څه کړي په دې وجه مې نهٔ دي کړي چه ګنې څه کافر شوے او مرتد شوے یم۔ او دَ إسلام نه روستو مې کفر خوښ شوے دے۔ اصل خبره دا ده چه ځما خپلوان په مکّه کښې اُوسي۔ څه دَ قریشو دَ قبیلې سړے نهٔ یم، بلکه دَ څینو قریشو په سرپرستئ کښې هلته اباد شوے یم۔ په مهاجرینو کښې چه دَ نورو کومو خلقو اهل وعیال په مکّه کښې دي، هغوئ خو به دَ هغوئ قبیله بچ کړي۔ لیکن ځما قبیله هلته نشته چه ګنې هغوئ به بچ کړي۔ نو ما دا خط په دې خیال سره لیږلے وُو چه په قریشو باندِ ځما یو احسان وِي چه دَ هغې په وجه ځما بال بچ نهٔ چیړي۔ (دَ حضرت حاطِب دَ ځوئ عبد الرحمٰن روایت دا دے چه په هغه وخت کښې دَ حضرت حاطب بچي او وُرونړه په مکّه کښې وُو، او څنګه دَ حضرت حاطِب دَ یو روایت نه معلومیږي چه دَ هغه مُور هم هلته وه)۔ رسول الله صلی الله علیه وسلّم چه دَ حاطِب دا خبره واوریده نو حاضرو خلقو ته ئې اُوفرمائیل چه قَدْ صَدَقَکُم، ”حاطِب تاسو ته رښتیا خبره کړې ده“ یعني دَ هغه دَ دے کار اصلي وجه دا وه، دَ إسلام نه پښا کیدل او دَ کفر مرسته ئې اصل وجه نهٔ وه۔ حضرت عُمرؓ پاسیدو او عرض ئې اُوکړو چه اے دَ الله رسوله ماله اجازت راکړه چه څه دَ دے منافق څټ اُوړهم، دهٔ دَ الله او دَ هغه دَ رسول او دَ مسلمانانو سره خیانت کړے دے۔ نبیؐ اُوفرمائیل ”دے سړي په جنګ بدر کښې حصّه اغستلې ده۔ تا ته څه پته ده کیدے شي چه الله تعالیٰ بدروالو ته فرمائیلي وِي چه که تاسو هر څه اُوکړئ ما تاسو معاف کړي یئ“۔ (دَ دے آخري فقرے الفاظ په

مِنْكُمْ فَقَدْ ضَلَّ سَوَآءَ السَّبِيْلِ ﴿۱﴾ اِنْ يَّثْقَفُوْكُمْ يَكُوْنُوْا لَكُمْ اَعْدَآءً وَّ يَبْسُطُوْٓا اِلَيْكُمْ اَيْدِيَهُمْ وَاَلْسِنَتَهُمْ بِالسُّوْٓءِ وَوَدُّوْا لَوْ تَكْفُرُوْنَ ﴿۲﴾ لَنْ تَنْفَعَكُمْ اَرْحَامُكُمْ وَلَآ اَوْلَادُكُمْ ۚ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ ۚ

اُوکړي هغه یقیناً د نیغ لارے نه بے لارے شو۔ د هغوی عمل خو داد ے چه که په تاسو باندِ ئے لاس بَرشو نو دُشمنی درسره کوی او په لاسونو او په ژبه درته آزار در رسوی۔ هغوئ خو دا غواړي چه تاسو په څه طریقه کافران شئ ۔ د قیامت په ورځ به نهٔ ستاسو خپل خپلوان څه په کار راشی او نهٔ ستاسو اَولاد[۳]۔

مختلفو روایتونو کښے مختلف دی. په یو روایت کښے دی قد غفرت لکم، ما تاسو اُو بخښلئ۔ په بل کښے دی اِنّی غافر لکم، څهٔ بخښونکے یم تاسو له۔ او په بل کښے دی سَاغفر لکم، څهٔ به تاسو اُو بخښم)۔ حضرت عمرؓ چه دا خبره واوریده نو په ژړا شو او وے وئیل چه الله او د هغه رسول د ټولو نه ښه پوهیږی۔ دا د هغه کېږو روایتونو خلاصه ده چه د کېږو معتبر و سندونو سره بخاری، مُسلم، احمد، ابوداؤد، ترمذی، نسائیؒ، ابن جریر طَبَری، ابن هِشام، ابن حبّان او ابن ابی حاتمؒ نقل کړی دی په دِ ے کښے د ټولو نه زیات مُستند روایت هغه د ے چه هغه په خپله د حضرت علیؓ د خُلے نه د هغه لیکوال (سِکرټری) عبدالله بن ابی رافع نه واوریدو او د هغه نه د حضرت علیؓ نوسی حسن بن محمد بن حنیفه واوریدو او روستنو رَوایانو ته ئے اُورسوُو۔ په هغے کښے په یو روایت کښے هم دا څرګندونه نشته چه د حضرت حاطِب په دِ ے عُذر اَوریدو سره کِنِی هغه ته معافی اُوکړے شوه۔ لیکن په هیڅ ذریعه دا معلومات هم نشته چه هغه ته څهٔ سزا ورکړے شوه۔ په دِ ے وجه د اُمّت عالمانو دا خیال کړے د ے چه د حضرت حاطِب عُذر قبول شوے وُو او هغه پریښودے شوے وُو۔

[۲] د دے ځائے پورے چه څه حکم شوے د ے، او وړاندِ چه په دے سِلسله کښے څه حکم را روان د ے، اګرچه د دے د نازلیدو موقع خاص د حضرت حاطِب واقعه وه، لیکن الله تعالیٰ یوازے د هغه په مُقدمه باندِ بحث نهٔ دے کړے بلکه ټولو مومنانو ته ئے د همیشه همیشه د پاره دا سبق ورکړے دے چه په کوم ځائے کښے د کفر او د اِسلام مقابله وی، او هرچرته چه څه خلق د مومنانو سره د هغوئ په مُسلمانیدو باندِ دُشمنی کوی، هلته د څه غرض یا د څه مصلحت د پاره دا سے کار کول چه په هغے سره اِسلام ته نقصان رسیږی او د کفر او د کافرانو خدمت کیږی، بلکل د ایمان نه خلاف کار د ے ۔ څوک چه د اِسلام هم و بد خواه نهٔ وی او د بد نیتئ نه بالکل خالی وی، او صرف د خپل ذاتی غرض د پاره دا کار اُوکړی بیا هم دا کار د یو مومن د کولو کار نهٔ د ے، او هرچا چه دا کار اُوکړو هغه یقیناً د نیغ لارے نه بے لارے شو۔

[۳] دا اشاره ده حضرت حاطِب ته ۔ هغه دا کار د جنګ په موقع د خپلے مُور او رُور او د اَولاد د بچ کولو د پاره کړے وُو۔ په دے حقله فرمائی چه تا د چا د پاره دا دومره لویه ګناه اُوکړه هغه به د قیامت په ورځ ستا د بچ کولو د پاره رانشی۔ د هیچا به دا همّت نهٔ وی چه د خدائے په عدالت کښے وړاندِ شی

يَفْصِلُ بَيْنَكُمْ ۚ وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ ③

په هغه ورځ بــه الله تعالیٰ ستاسو په منځ کښے جُدائی راولی[4]، او الله ستاسو ټول عملونه وینی۔[5]

اودا اُووائی چه ځما پلار یا ځما خوئ یا ځما ورځما د پاره داګناه کړی وه نو د ده د ګناه سزا دِ ما له راکړے شی۔ په هغه وخت کښے به د هرچا سره خپل فکر وی، د خپل عمل د سزا نه د بچ کیدو غم به د هر سړی د پاره یو غرجوړ شوے وی نو لا د بل چا سزا اغستو ته به څه تیار شی۔ هم دا خبره د قرآن مجید په ویر وځایونو کښے په زیاتو څرګند والفاظو سره فرمائیلے شوی ده۔ په یو ځائے کښے فرمائی "په هغه ورځ به مجرم داغواړی چه که چرے هغه خپل اولاد، خپله ښځه، خپل رُور، خپل مرستیالی خاندان او د ټولے دُنیا خلق په فِدیه کښے ورکړی او د عذاب نه خلاصید ے شی نو هغه به ورکړی خو چه د ے خلاص شی"۔ (المعارج، آیتونه ۱۱-۱۴)۔ په بل ځائے کښے فرمائی، "په هغه ورځ به سړے د خپل رُور، د خپلے مور، د خپل پلار، د خپلے ښځے او د خپل اولاد و نه تښتی۔ هریو به په خپل حال کښے داسے اخته وی چه د بل نه به خبر نهٔ وی" (عبس۔ ۳۴-۳۷)۔

[4] یعنی د دُنیا ټولے رشتے او تعلقات اورابطے به هلته ختمے کړے شی۔ د ډلو ټپو او خاندانونو په شکل کښے به حساب کتاب نهٔ کیږی، بلکه هریو به په خپل ذاتی حیثیت کښے پیش کیږی، او هریو به خپل ذاتی حساب ورکوی۔ دا وجه ده چه په دُنیا کښے هیچا له دا نهٔ دی پکار چه د خپلوئ یاد وستئ یا د ډلے ټپے د خاطره څه ناجائزه کار اُوکړی، ځکه چه د خپل عمل سزا به هغه پخپله برداشت کوی، د هغه په ذاتی ذمه وارئ کښے به بل هیڅوک شریک نهٔ وی۔

[5] د حضرت حاطِب د دے مقد مے نه چه تفصیل ئے یوه موبزه بیان کړے دے، او د دے آیتونو نه چه د دے واقعے په باره کښے نازل شوی دی، لاندینئ خبری را بر سیره کیږی:

(۱) چه دِے ته نهٔ ګورے چه کُونکی دا کار په کوم نیت سره اُوکړو، نو دا کار پخپله یو څرګند جاسوسی کار وُو، او جاسوسی هم په ډیره نازکه موقع بانډِ سخته خطرناکه جاسوسی وه چه د حملے نه مخکښے بے خبره دُشمن خبر کړے شوے وُو۔ بیا معامله د شُبهے هم نهٔ وه بلکه د مُلـزم د خپل لاس لیکلے شوے خط نیولے شوے وُو چه د هغے نه روستو د څه ثبوت حاجت نهٔ وُو۔ حالات هم داسے وُو چه د امن زمانه نهٔ وه، د جنګ زمانه وه۔ لیکن د دے باوجود نبی صلی الله علیه وسلم داسے اُونهٔ کړه چه حضرتِ حاطِب له ئے د صفائئ موقع ورنهٔ کړه او نظربند ئے کړو۔ د صفائئ موقع ئے ورکړه او هغه هم په بند کمره کښے نه بلکه ښکاره په کولاؤ عدالت کښے۔ د د ے نه صفا معلومیږی چه په اِسلام کښے د داسے قانون او قاعدے هیڅ ګنجایش نشته چه د هغے په وجه په یو حالت کښے حاکمانو ته دا حق رسی چه یو سړے صرف د خپل علم یا شُبهے په وجه قید کړی او په بند کمره کښے پټ په پټه د مقد مے چلولو طریقه هم په اِسلام کښے نشته۔

(۲) حضرتِ حاطِب نهٔ یوازے د مهاجرینو نه وُو بلکه د جنګ بدر په اَصحابو کښے هم شامل وُو چه هغوئ ته په صحابو کښے یو لوړ مقام حاصل وُو۔ لیکن د دے باوجود د هغه نه دومره لوئ جرم اُوشو، او په هغے بانډِ الله تعالیٰ دومره سخت ګرفت اُوکړو چه هغه په پاسنو آیتونو کښے سړے لید ے شی۔ په اَحادیثو کښے هم د هغه قیصه ښه په تفصیل سره بیان کړے شوی ده او تقریباً هر مفسّر د د ے ذکر کړے د ے۔ دا د ګڼړو ثبوتونو نه یو ثبوت د ے د د ے خبری

چه صحابه بے خطانه وُو، دَ هغوئ نه هم دَ بشری کمزورئ په وجه خطاګانے کیدے شوے، اوعملاً تر اوشوے، او دَ هغوئ دَ عزّت او احترام کولو چه کوم تعلیم الله او دَ هغه رسول ورکړے دے کم از کم دَ هغے تقاضا دا هرګز نهٔ ده چه په هغوئ کښے که چرے دَ چا نه غلطی شوی وی نو دَ هغے ذکر دِ نهٔ کیږی۔ کنے نو ظاهره خبره ده که چرے دَ هغے تقاضا داوے نو نهٔ به الله تعالیٰ په خپل کتاب کښے دَ هغے ذکر کړے وے او نهٔ به صحابه کرامو او تابعینو او محدّثینو او مفسّرینو په خپلو روایتونو کښے دَ هغے تفصیلات بیان کړی وے۔

(۳) دَ حضرت حاطِب په مقدمه کښے چه حضرت عمرؓ دَ کومے رائے څرګندونه اوکړه هغه دَ ظاهری شکل په لحاظ سره وه۔ دَ هغه دلیل دا وُو چه کار داسے دے چه څرګند دَ الله او دَ هغه دَ رسول او دَ مسلمانانو سره دَ خیانت رنګ لری، نو په دِے وجه حاطِب منافق دے او قتل کول ئے واجب دی۔ لیکن رسول الله صلی الله علیه وسلّم دَ هغه خبره رد کړه او دَ اسلامی شریعت اصلی بُنیادی خبره ئے په ګوته کړه چه صرف دَ کار په ظاهری شکل باندِ فیصله کول نهٔ دی پکار بلکه دِے ته هم کتل پکار دی چه دَ کوم سړی نه هغه کار شوے وی چه دَ هغه دَ تیر شوی ژوند نه او دَ هغه دَ مجموعی عمل نه څه څرګندونه کیږی او په کومه خبره دلالت کوی۔ بے شکه چه کار دَ جاسوسئ دے۔ لیکن آیا دَ کارکونکی دَ عمل نه دا معلومیږی چه دَ سړی دا کار دَ الله او دَ رسول او دَ مسلمانانو سره دَ خیانت په نیت کولے شو؟ هغه په هغه خلقو کښے دے چه هغوی دَ ایمان دَ خاطره هجرت اُوکړو۔ آیا دَ خلوص نه بغیر هغه دومره قربانی کولے شوه؟ هغه دَ جنګ بدر غوندِ په نازکه موقع باندِ، چه دَ دُشمنانو دَ دریمه چنده او دَ وسله بند طاقت سره مقابله پیبنه وه، او دَ ایمان دَ خاطره اُوجنګیدو، آیا دَ دا سے سړی په اخلاص کښے شک کیدے شی؟ یا دَ هغه په باره کښے دَ چا دا باور راتلے شی چه دَ هغه په زړه کښے دَ قریشو دَ کافرانو سره نرئ شان مینه هم موجود وه؟ هغه دَ خپل کار صفا صفا وجه دا بیانوی چه په مکه کښے دَ هغه بال بچ او خاندان او قبیلے ته هغه تحفظ حاصل نهٔ دے کوم چه نورو مهاجرینو ته حاصل دے، په دے وجه هغه دَ دے خاطره دا کار کړے دے چه هغوئ دَ جنګ په موقع دَ کافرانو دَ ضرر رسانئ نه بچ شی۔ دَ تحقیق سره دا خبره ثابتیږی چه واقعی په مکه کښے دَ هغه قبیله نشته او دا هم معلومه ده چه واقعی دَ هغه بال بچ هلته موجود دے۔ نو هیڅ داسے وجه نشته چه دَ هغے له کبله دَ هغه دا بیان دروغ اُوګڼلے شی او دا رائے قایمه کړے شی چه دَ هغه دَ دے کار اصل سبب دا نهٔ وُو بلکه دَ هغه په زړه کښے خاص دَ خیانت اراده وه۔ بے شکه چه دَ یو مخلص مسلمان دَ پاره په نیک نیتئ سره هم دا حرکت جائز نهٔ دے چه هغه صرف دَ خپلے ذاتی فائدے دَ خاطره دُشمنانو ته دَ مسلمانانو دَ جنګی منصوبو خبرو راورسوی، لیکن دَ مخلص سړی په غلطئ کښے او دَ منافق سړی په غدّارئ کښے ډیر لوئ فرق دے۔ تش دَ کار په یو شان والی باندِ دَ دواړو یوه سزا نهٔ شی کیدے۔ دا وه په دے مقدمه کښے دَ رسول الله صلی الله علیه وسلّم فیصله، او الله تعالیٰ دَ سورۃ مُمتحنة په دے آیتونو کښے دَ دے تائید اُوکړو۔ پاسنی دریواړه آیتونه چه په غور سره اُولوستے شی نو صفا معلومیږی چه په هغے کښے په حضرت حاطِب باندِ ملامتیا خو ضرور فرمائیلے شوی ده لیکن دا ملامتیا په هغه طرز ده کومه چه دَ یو مومن دَ پاره وی نهٔ هغه چه دَ یو منافق دَ پاره وی۔ دَ دے دَ پاسه دَ هغه دَ پاره څه مالی او بدنی سزا نهٔ ده مقرّر کړے شوی بلکه دَ عامو خلقو په مخکښے رټنه ورکړے شوی ده او بیا پریښودے شوے دے۔ چه مطلب ئے دا دے چه په مسلمانانو کښے دَ یو خطا کار مومن په

عزّت باندِ داغ لګيدل او دَ هغه په بروسه باندِ الزام راتلل هم دَ هغه دَپاره يوه لويه سزا ده۔

(۴) دَ بدر دَ صحابـو په فضيلت کښې دَ رسول الله صلی الله عليه وسلّم دا حديث چه "تا سو څه خبر يئ، کيدے شي چه الله تعالیٰ دَ بدريانو لحاظ کړے وي او فرمائيلي وي چه که تا سو هر څه اُوکړئ، ما تاسو معاف کړئ"۔ دَ دے مطلب دا نهٔ وُو چه بدری صحابو ته اوّه مرګونه معاف دی، او هغوئ ته ازادی ده چه په دُنيا کښې کومه ګناه او کوم جرم کول غواړی هغه دِ کوی، دَ بخښنا نے ضمانت هغوئ ته دَ مخکښې نه حاصل دے۔ دا مطلب نهٔ دَ نبیؐ وُو، نهٔ صحابو دَ دے حديث نه چرته دا مطلب اغستلے دے، نهٔ يو بدری صحابی دَ دے زيری په اَوريد وسره خپل ځان دَ هرے ګناه دَپاره آزاد ګڼړلے دے، او نهٔ په اسلامی شريعت کښې دَ دے په وجه څه داسے قاعده جوړه کړے شوی ده چه که چرے دَ بدری صحابی نه څه جرم اُوشی نو هغه له دِ سزا نهٔ ورکړے کيږی۔ په اصل کښې چه په کومه موقع او محل کښې دا خبره شوی وه په هغے باندِ، او نبیؐ چه کوم الفاظ استعمال کړی دی په هغے باندِ، که غور اُوکړے شی نو دَ دے صفا مطلب دا په ذهن کښې کيني چه دَ بدر صحابو دَ الله او دَ هغه دَ دين دَ پاره دَ اخلاص او دَ قربانئ دومره لويه کارنامه کړی ده چه دَ هغے نه روستو که الله تعالیٰ دَ هغوئ مخکښې روستو ګناهونه ټول معاف کړی وی نو دا هم دَ دے خدمت او دَ الله دَ کرم ترمخه څه ناممکنه خبره نهٔ ده، نو په يو بدری باندِ دَ خيانت او دَ منافقت شک مهٔ کوئ، او دَ خپل جرم چه کوم سبب هغه پخپله بيانوی هغه قبول کړئ۔

(۵) دَ قرآن مجيد او دَ رسول الله صلی الله عليه وسلّم دَ دے حکم نه دا خبره هم واضحه کيږی چه يو مسلمان که چرے دَ کافرانو دَ پاره جاسوسی اُوکړی نو صرف دا کار دَ دے فيصلے کولو دَ پاره کافی نهٔ دے چه هغه مرتد شوے دے، يا په هغه کښې ايمان نشته، يا منافق دے، دَ داسے فيصلے کولو دَ پاره که نُور دليلونه موجود وی نو بيا بيله خبره ده، کنهٔ نو دا کار پخپل ځائے صرف يو جرم دے کفر نهٔ دے۔

(۶) دَ قرآن مجيد دَ دے آيتونو نه دا خبره هم څرګنده ده چه دَ مسلمان دَ پاره دَ کافرانو جاسوسی کول په هيڅ حال کښې جائز نهٔ ده، اګرکه هغه ته يا دَ هغه نزدے خپلو خپلوانو ته هر څومره خطره وی۔

(۷) حضرت عمرؓ چه کله دَ جاسوسی په جُرم کښې دَ حضرت حاطِب دَ قتل کولو اجازت اُوغوښتو نو نبیؐ په جواب کښې دا اُو نهٔ فرمائيل چه په دِے جُرم باندِ قتل واجب نهٔ دے، بلکه هغه له ئے په وجه اجازت ور نهٔ کړو چه حضرت حاطِب په جنګِ بدر کښې شامل شوے وُو، او په بدر کښې دَ هغه شامليدل دَ هغه دَ اِخلاص څرګند ثبوت دے او دَ هغه دا بيان صحيح دے چه هغه دَ دُشمنانو دَ ښيګړے دَپاره نهٔ بلکه دَ خپل بال بچ دَ بچ کولو دَپاره دا کار کړے وُو۔ دَ دے نه دَ فقهاوُ يو ډلے دا دَليل را ايستلے دے چه دَ مسلمان جاسوس دَپاره عام قانون دا دے چه هغه دِ قتل کړے شی ماسِوا دَ دے نه چه هغه له دَ کمے سزا ورکولو دَپاره يا هسے دَ ملامته کولو دَپاره وير دَرون سبب موجود وی۔ ليکن دَ فقهاوُ په منځ کښې په دِے مسئله کښې اختلاف دے۔ دَ امام شافعیؒ او دَ حُينو نورو فقهاوُ مسلک دا دے چه مسلمان جاسوس له دِ سزا ورکړے شی ليکن دَ هغه قتل جائز نهٔ دے۔ امام ابوحنيفهؒ او امام اوزاعیؒ وائی چه هغه له دِ بدنی سزا او اوږد قيد ورکړے شی۔ امام مالک وائی چه هغه به وژلے کيږی۔

قَدْ كَانَتْ لَكُمْ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ فِيْٓ إِبْرٰهِيْمَ وَالَّذِيْنَ مَعَهٗ ۚ إِذْ قَالُوْا لِقَوْمِهِمْ إِنَّا بُرَءٰٓؤُا مِنْكُمْ وَمِمَّا تَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ ۡ كَفَرْنَا بِكُمْ وَبَدَا بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمُ الْعَدَاوَةُ وَالْبَغْضَآءُ

ستاسو دَ پاره په ابراهیم او دَ هغه په ملګرو کښې یو ښهٔ نمونه ده چه هغوی خپل قوم ته صفا اُووئیل " مونږه ستاسو نه او ستاسو دَ دے معبودانو نه چه تاسو دَ خدائے په ځائے دَ هغوی عبادت کوئ بالکل بے زاره یو، مونږه ستاسو سره کفر اُوکړو او زمونږه او ستاسو په مینځ کښې دَ همیشه دَ پاره بُغض او دُشمنی شروع شوه

لیکن دَ مالِکی فقهاؤ قولونه په دِے مسئله کښې مختلف دی - اَشْهَبْ وائی چه امام ته په دے معامله کښې وسیع اختیارات حاصل دی، دَ جُرم او دَ مجرم دَ حالاتو ترمخه هغه په خپل اجتهاد سره هرڅنګه سزا ورکولے شی - یو قول دَ امام مالک او دَ ابن القاسم هم داد ے - ابن الماجشون او عبد الملک بن حبیب وائی چه که چرے مجرم دَ جاسوسئ عادت جوړ کړے وی نو هغه دِ قتل کړے شی - ابنِ وَهب وائی چه دَ جاسوس سزا خو قتل ده لیکن که هغه دَ دِے کار نه توبه کار شی نو هغه ته معافی کیدے شی - سحنون وائی چه دَ هغه توبه صحیح ده او که تشه دوکه ده، دَ دے پته به آخر څنګه لږی؟ په دے وجه دَ هغه وژل پکار دی - دَ ابن القاسم هم دا یو قول دَ دے په تائید کښې دے - او اَصْبَغ وائی چه دَ حربی جاسوس سزا قتل ده، لیکن مُسلمان او ذمی جاسوس ته به دَ قتل په ځائے سزا ورکړے کیږی، خو هله چه هغه دَ مسلمانانو په مقابله کښې دَ دُشمنانو ښکاره امداد نهٔ کوی - ( احکام القرآن، ابن العربی، عمدة القاری، فتح الباری ) -

(۸) دَ دے حدیث نه دا هم معلومیږی چه دَ جُرم دَ تفتیش دَ پاره که ضرورت را غے نو بیا ځے دَ مُلزم سری نه نهٔ بلکه دَ ملزمے ښځے نه هم جامے ایستل جائز دی - حضرت علیؓ، حضرت زُبیر او حضرت مقدادؓ اګرچه هغه ښځه لغړه کړی نهٔ وه، لیکن وئیلی ئے ورته وُو چه که چرے خط دِ را ته حواله نهٔ کړو نو لغړه به دِ کړو او تالاشی به دِ واخلو - ښکاره خبره ده که چرے دا کار جائز نهٔ وے نو دِ دَ رسول صحابو به هغے ته دا خبره نهٔ وه کړے. او دَ قیاس نه دا معلومیږی چه هغوئ واپس تلی وی نو ضرور به ئے رسول الله صلی الله علیه وسلم ته خپله پوره قیصه اُورولی وی - که نبیؐ په هغے دَ ناخوښئ اِظهار کړے وے نو هغه به ضرور چا وئیلے وے - په دِے وجه فقهاؤ فتویٰ کړی ده چه دَ تفتیش دَ پاره دَ مُلزم لغړول جائز دی ( عمدة القاری ) -

لله یعنی مونږه ستاسو کافران یو، نهٔ تاسو په حق منو او نهٔ ستاسو دین، په الله باندِ دَ ایمان راوړلو سره دا خبره لازمی ده چه دَ طاغوت سره کُفر اوکړے شی - فَمَنْ يَّكْفُرْ بِالطَّاغُوْتِ وَيُؤْمِنْۢ بِاللّٰهِ فَقَدِ اسْتَمْسَكَ بِالْعُرْوَةِ الْوُثْقٰى لَا انْفِصَامَ لَهَا - " چا چه دَ طاغوت سره کُفر اوکړو او په الله باندِ ئے ایمان راوړو نو هغه په حقیقت کښې مضبوطه ذریعه راټینګه کړه چه هغه هیڅکله شلیدونکی نهٔ ده " البقره، ۲۵۶ ) -

اَبَدًا حَتّٰى تُؤْمِنُوْا بِاللّٰهِ وَحْدَهٗٓ اِلَّا قَوْلَ اِبْرٰهِيْمَ لِاَبِيْهِ لَاَسْتَغْفِرَنَّ لَكَ وَمَآ اَمْلِكُ لَكَ مِنَ اللّٰهِ مِنْ شَيْءٍ ؕ رَبَّنَا

ترڅو چه تاسو په یو الله ایمان را نوړئ" خو د ابراهیمؑ خپل پلار ته دا وینا (په دے کښے شامل نهٔ ده) چه "زهٔ به ستا د پاره د بخښنا نے درخواست ضرور کوم، او ستا د پاره د الله نه څه حاصلول زما په وَس کښے نهٔ دی" (د ابراهیم علیه السّلام او د هغه د ملګرو دُعا دا وه چه) "اے زمونږه ربه،

حکه یعنی د دے مطلب دا دے چه ستاسو د پاره د حضرت ابراهیمؑ دا خبره خو د عمل کولو قابل ده چه هغه د خپل کافر او مشرک قوم نه صفا صفا د بے زارئ او د بے تعلقئ اِعلان اوکړو، لیکن د هغه دا خبره د عمل کولو قابل نهٔ ده چه هغه د خپل مشرک پلار د پاره د بخښنا نے د دُعا غوښتلو وعده اوکړه او عملاً ئے د هغه په حق کښے دُعا اُوکړه۔ ځکه چه د کافرانو سره د مینے او د همدردئ دومره تعلق هم مومنانو له نهٔ ساتل پکار دی۔ د سورۃ توبے په آیت ۱۳ کښے د الله تعالیٰ صفا صفا حکم دے، مَا كَانَ لِلنَّبِيِّ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اَنْ يَّسْتَغْفِرُوْا لِلْمُشْرِكِيْنَ وَلَوْ كَانُوْٓا اُولِيْ قُرْبٰى ۔ "د نبیؐ دا کار نهٔ دے او نهٔ د هغه خلقو سره دا ښائی چه ایمان ئے راوړے دے چه د مشرکانو د پاره د بخښنا نے دُعا اُوغواړی، اګر که هغه د هغوئ نژدے رشته داران وی"۔ نو یو مسلمان ته دا اجازت نشته چه د خپلو کافرو رشته دارانو په حق کښے د بخښنا نے دُعا اُوغواړی او دا دلیل پیش کړی چه دا کار حضرت ابراهیمؑ کړے وُو۔ پاتے شوه دا خبره چه پخپله ابراهیم علیه السّلام څنګه دا کار اُوکړو؟ او آیا هغه په دے باندے قائم هم پاتے شو؟ د دے جواب مونږ ته په قرآن مجید کښے ښه په تفصیل سره ملاویږی۔ د هغه پلار چه کله هغه د کورنه اُوویستو نو د تلو په وخت کښے هغه ویلی وُو سَلٰمٌ عَلَيْكَ ۚ سَاَسْتَغْفِرُ لَكَ رَبِّيْ ۔ "تا ته سلام دے، زهٔ به د خپل رب نه ستا د پاره د بخښنا نے دُعا غواړم" (مریم، ۱۴۷)۔ د دے وعدے په وجه هغه دوه ځله د هغه په حق کښے دُعا اُوکړه۔ د یو دے دُعا ذکر د سورۃ ابراهیم په آیت ۴۱ کښے دے، رَبَّنَا اغْفِرْ لِيْ وَلِوَالِدَيَّ وَلِلْمُؤْمِنِيْنَ يَوْمَ يَقُوْمُ الْحِسَابُ ۔ "اے زمونږه پروردګاره، ما او زما مور او پلار او ټول مومنان په هغه ورځ معاف کړے کله چه حساب اغستے کیږی"۔ او دویمه دُعا د سورۃ شعراء په آیت ۸۶ کښے ده، وَاغْفِرْ لِاَبِيْٓ اِنَّهٗ كَانَ مِنَ الضَّآلِّيْنَ وَلَا تُخْزِنِيْ يَوْمَ يُبْعَثُوْنَ ۔ "زما پلار معاف کړے ځکه چه هغه په ګمراهانو کښے وُو او ما په هغه ورځ مهٔ شرمنده کوه کله چه به ټول خلق ژوندی را پاسولے کیږی"۔ لیکن روستو چه کله هغه ته دا پته اُولګیده چه د کوم پلار د پاره هغه د بخښنا نے دُعا غواړی هغه خو د الله دُشمن وُو، نو هغه د هغه نه بے زاره شو او د هغه سره ئے د مینے او د همدردئ دا تعلق هم ختم کړو،

عَلَيْكَ تَوَكَّلْنَا وَإِلَيْكَ أَنَبْنَا وَإِلَيْكَ الْمَصِيرُ ۝٤ رَبَّنَا لَا تَجْعَلْنَا فِتْنَةً لِّلَّذِينَ كَفَرُوا وَاغْفِرْ لَنَا رَبَّنَا إِنَّكَ أَنتَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ ۝٥

خاص په تا باندې موږه بروسه اوکړه او خاص تا ته موږه رجوع اُوکړه او خاص تا ته زموږ واپس درتلل دی۔ اے زموږه ربه، موږه د کافرانو د پاره فتنه مهٔ جوړوه۔ او اے زموږه ربه، زموږه ګناهونه موږ ته معاف کړه، بے شکه تهٔ زبردست یې او د حکمت خاوند یې۔

وَمَا كَانَ اسْتِغْفَارُ إِبْرَاهِيمَ لِأَبِيهِ إِلَّا عَن مَّوْعِدَةٍ وَعَدَهَا إِيَّاهُ فَلَمَّا تَبَيَّنَ لَهُ أَنَّهُ عَدُوٌّ لِّلَّهِ تَبَرَّأَ مِنْهُ إِنَّ إِبْرَاهِيمَ لَأَوَّاهٌ حَلِيمٌ ۝ (التوبه-۱۱۴)

او ابراهیمؑ چه د خپل پلار د پاره د بخښنې دُعا غوښتلې وه د هغې وجه د دے نه سِوا بله نهٔ وه چه هغه یوه وعده وه او هغه د خپل پلار سره کړې وه۔ بیا چه کله هغه په دے خبره پوهه شو چه هغه د الله دُشمن وو نو هغه د هغه سره تعلق ختم کړو۔ حقیقت دا دے چه ابراهیمؑ یو نرم دله او نرم خُویه انسان وُو۔

په دے آیتونو چه سړے غور اُوکړی نو دا اُصولی حقیقت څرګندیږی چه د پیغمبرانو صرف هغه کار د عمل کولو قابل دے چه په هغې باندې هغه د آخر وختو پورے قایم پاتے شوی وی۔ پاتے شو د پیغمبرانو هغه عملونه چه هغه هغوی روستو پخپله پریښودی وی، یا پس الله تعالیٰ قایم پاتے کیدو ته پرینښودی نهٔ وی، یا د هغې منع د الله په شریعت کښے راغلی وی، نو هغه د عمل کولو قابل نهٔ دی، او هیڅوک په دے حجت سره د هغوی د داسے عملونو پیروی نشی کولے چه دا د فلانی نبی عمل دے۔

د لته یو بله خبره هم د سړی په زړه کښے شک را پیدا کولے شی۔ په دے آیت کښے چه الله تعالیٰ د حضرت ابراهیم علیه السّلام کوم قول د نمونے جوړولو قابل نهٔ دے ګرزولے د هغې دوه حصّے دی۔ یوه حصّه دا ده چه هغه خپل پلار ته اُوویے "زهٔ به ستا د پاره د بخښنے دُعا غواړم" او دویمه حصّه دا ده چه "زما په وَس کښے هیڅ نشته چه الله نه درله معافی اُوغواړم"۔ په دے اولنۍ خبره خو په عقل کښے راځی چه د تقلید قابل نهٔ ده۔ لیکن په دویمه خبره کښے څه خرابی ده چه هغه هم د نمونے جوړولو قابله اونهٔ ګرزی؟ حالانکه هغه په خپل ځائے حقه خبره ده۔ د دے جواب دا دے چه د حضرت ابراهیمؑ دا قول د تقلید قابل په دے وجه نهٔ دے چه کله یو سړے د چا سره د یو کار وعده اُوکړی او بیا روستو دا اُووائی چه ستا د پاره د دے نه زیات څه زما په وَس کښے نشته نو د دے نه پخپله دا مطلب را اُوزی چه چرے د دے نه زیات څه د هغه په وَس کښے وے نو هغه به د هغه سړی د پاره هغه هم کړے وے۔ د دے نه پته لګی چه د هغه د هغه سړی سره ډیره زیاته سخته مینه ده۔ په دے وجه د حضرت ابراهیمؑ دا دویم قول هم د تقلید جوړولو مستحق نهٔ وُو، اګرچه دا خبره په خپل ځائے [illegible] وه چه په الله تعالیٰ باندې



لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِيهِمْ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ لِّمَنْ كَانَ يَرْجُوا اللَّهَ وَالْيَوْمَ الْآخِرَ ۚ وَمَن يَتَوَلَّ فَإِنَّ اللَّهَ هُوَ الْغَنِيُّ الْحَمِيدُ ﴿٦﴾ عَسَى اللَّهُ أَن يَجْعَلَ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَ الَّذِينَ عَادَيْتُم مِّنْهُم مَّوَدَّةً ۚ وَاللَّهُ قَدِيرٌ ۚ وَاللَّهُ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿٧﴾

د دے خلقو په ژوند کښې ستاسو دَ پاره اودَ هر هغه سړی دَ پاره ښهٔ نمونه ده څوک چه دَ الله اودَ آخرت دَ ورځے اُمید لری۔ دَ دے نه چه څوک مخ واړوی نو الله بے نیازه دے اوپه خپل ذات کښے پخپله ستائیلے شوے دے ۔ ع

دا خبره لرے نهٔ ده چه الله ستاسو اودَ هغه خلقو تر منځه مینه پیدا کړی چه نن ورسره ستاسو دُشمنی ده ۔ الله لوئ قدرت لری ۔ او هغه بخښونکے او مهربانه دے ۔

څوک بخښل دَ یو نبی دَ وَس نه بهر خبره ده ۔ علامه آلوسی هم په رُوح المعانی کښے دَ دے خبری دا جواب کړے دے ۔

ش‍ه دَ کافرانو دَ پاره دَ مومنانو دَ فتنے جوړیدلو ډیر شکلونه کیدے شی چه هر مومن له تړ په خدائے پورے پناه غوښتل پکار دی ۔ دَ مثال په طوریو شکل دا جوړیدے شی چه کافران په هغوئ باندِ غالب شی او خپلے غلبے ته د دے خبری دلیل اُووائی چه موږ ه په حق یو او مومنان په باطله دی، کنهٔ نو دا څنګه کیدے شوه چه دِ دے خلقو ته دِ دَ خدائے رضا حاصله وی او بیا دِ هم موږ ته په دوئ باندِ غلبه حاصله شی ۔ دویم شکل دا کیدے شی چه په مومنانو باندِ دَ کافرانو ظلمونه دومره ډیر شی چه هغه د بر داشت دَ حد نه واوړی او آخر دا چه مومنان دَ کافرانو نه دباؤ شی او خپل دین اوخپل اخلاق خرڅول شروع کړی ۔ دا څیز به په ټوله دُنیا کښے دَ مومنانو دَ بد نامئ سبب وی اوکافرانو ته به دَ دے نه په دین پورے اوپه دینداروخلقو پورے دَ خندا کولو موقع په لاس ورشی ۔ دریم شکل دا کیدے شی چه مومنان دَ حق دین په لوړ مقام باندِ ولاړ هم وی او بیا هم دَ هغه بنواخلاقو نه محروم وی کوم چه دَ دے مقام سره ښائی ، اودَ دُنیا خلق هم دَ هغوئ په عملونو کښے هغه عیبونه وینی کوم چه په جاهلانو خلقو کښے عام طورپه نظر راځی ۔ دَ دے نه به کافرانو ته دَ دے وینا موقع مِلاویږی چه په دے دین کښے آخر هغه څه خوبی ده چه زموږ په کفر باندِ غوره شی ؟ ( دَ زیات تفصیل دَ پاره اُوکوره تفهیم القرآن ، دوېم جلد ، یونس ، حاشیه ۸۳ ) ۔

ش‍ه یعنی چه دَ دے خبری اُمید لری چه یوه ورځ به دَ الله دربار ته حاضریږی ، اودَ دے څیز

لَا يَنْهٰىكُمُ اللّٰهُ عَنِ الَّذِيْنَ لَمْ يُقَاتِلُوْكُمْ فِي الدِّيْنِ وَلَمْ يُخْرِجُوْكُمْ مِّنْ دِيَارِكُمْ اَنْ تَبَرُّوْهُمْ وَتُقْسِطُوْٓا اِلَيْهِمْ ؕ اِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ الْمُقْسِطِيْنَ ۞ ⑧ اِنَّمَا يَنْهٰىكُمُ اللّٰهُ عَنِ الَّذِيْنَ قٰتَلُوْكُمْ فِي الدِّيْنِ وَاَخْرَجُوْكُمْ مِّنْ دِيَارِكُمْ وَظٰهَرُوْا عَلٰٓى اِخْرَاجِكُمْ اَنْ تَوَلَّوْهُمْ ۚ وَمَنْ يَّتَوَلَّهُمْ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الظّٰلِمُوْنَ ⑨

الله تا سو دَ دے خبرې نه نهٔ منع کوي چه تا سو دَ هغه خلقو سره دَ نیکئ او دَ انصاف سلوک اوکړئ چا چه دَ دین په معامله کښے ستا سو سره جنګ نهٔ دے کړے او تا سو ئے دَ خپلو کورونو نه نهٔ یئ ایستلی - الله انصاف کوُنکی خلق خوښوي[۱۲] - الله چه تا سو دَ کومے خبرې نه منع کوي هغه خو دا ده چه تا سو دَ هغه خلقو سره دوستی شروع کړئ چا چه ستا سو سره دَ دین په معامله کښے جنګ کړے دے او تا سو ئے دَ خپلو کورونو نه ایستلی یئ او ستا سو په ایستلو کښے ئے دَ یو بل سره امداد کړے دے - دَ هغوي سره چه څوک دوستی کوي هم هغوي ظالمان دي[۱۳] -

اُمید وار وی چه الله پرِ خپل فضل اُوکړي او دَ آخـرت په وُرځ ورته خوشحالی نصیب شي -

[۱۱] یعنی الله ته دَ داسے مومنانو هیڅ حاجت نشته چه دَ هغه دَ دین دِ منلو دعوی هم کوي او بیا دَ هغه دَ دُشمنانو سره دوستی هم ساتي - هغه بے نیازه دے - دَ هغه خدائی دِ ته محتاجه نهٔ ده چه دا خلق دَ هغه خدائی اُومني - او هغه په خپل ذات کښے په خپله ستائیلے شوے دے، او دَ هغه ستائینه دِ ته بنده نهٔ ده چه دوئ دِ دَ هغه حمد اُووائی - دوئ که ایمان راوړي نو دَ الله دَ څه فائدے دَ پاره نهٔ، بلکه دَ خپلے فائدے دَ پاره راوړي - او دوئ ته دَ ایمان هیڅ فائده نشي حاصلیدے ترڅو چه دوئ دَ حضرت ابراهیمؑ او دَ هغه دَ ملګرو په شان دَ الله دَ دُشمنانو سره دَ مینے او دَ دوستئ تعلقات ختم نهٔ کړي -

[۱۲] په پاسنو آیتونو کښے چه مسلمانانو ته دَ خپلو کافرانو رشته دارانو سره دَ تعلق ختمولو کوم حکم شوے وُو په هغے باندِ ریښتینی مومنانو اګرچه ډیر په صبر سره عمل کولو، لیکن الله ته معلومه وه چه دَ خپل مور او پلار، او خویندو وروڼو او نزدے رشته دارانو سره تعلق ختمول څومره سخت کار دے او دا دے نه به دَ مومنانو په زړونو باندِ څه تیریږي - په دے وجه الله تعالیٰ هغوئ له تسلی ورکړه

چه هغه وخت لرې نهٔ دے چه ستاسو هٔا رشته داران به مسلمانان شی او دَ ننن دُشمنی به صبا له په محبت کښې بدله شی۔ کله چه دا خبره کیدله په هغه وخت کښې دَ هیچا دا په خیال کښې نهٔ راتلله چه دا کار به څنګه اُوشی۔ لیکن دَ دے آیتونو دَ نازلیدو نه یوځو هفتې روستو مکه فتحه شوه، دَ قریشو خلق ډلے ډلے په اسلام کښې دا خلیدل شروع شول او مسلمانانو په خپلو سترګو اُولیدل چه دَ کوم څیز اُمید هغوئ له ورکړے شوے وُو هغه څنګه پوره شو۔

سلهٔ دلته دَ سړی په ذهن کښې دا شک راپیدا کیدے شی چه کوم کافران دُشمنی نهٔ کوی دَ هغوئ سره نیک سلوک کول خو خیر ټیک دهٔ، لیکن آیا انصاف هم صرف دَ هغوئ دَ پاره خاص دے؟ او آیا دَ دُشمنانو کافرانو سره بے انصافی کول پکار دی؟ دَ دے جواب داد ے چه دلته په اصل کښې انصاف په یوخاص مفهوم کښې استعمال شوے دے۔ دَ دے مطلب داد ے چه څوک ستاسو سره دُشمنی نهٔ کوی نو انصاف دا دے چه تاسو هم دَ هغوئ سره دُشمنی مهٔ کوئ۔ دُشمن او غیر دُشمن له یو مقام ورکول او دَ دواړو سره یوشان سلوک کول انصاف نهٔ دے۔ تاسو ته دا حق حاصل دے چه دَ هغه خلقو سره سخت سلوک اُوکړئ کومو خلقو چه دَ ایمان راوړلو په وجه په تاسو ظلمونه اُوکړل، او تاسو ئې دَ وطن نه اُوشړلئ، او دَ شړلو نه روستو ئې هم تاسو په آرام نهٔ پرېښودئ۔ لیکن کومو خلقو چه په دے ظلم کښې څه حصه نهٔ ده اخستے، انصاف دا دے چه تاسو دَ هغوئ سره ښه سلوک اُوکړئ او دَ رشتے او دَ رُوروَلئ په لحاظ سره چه دَ هغوئ کوم حقونه په تاسو باندې راځی هغه ادا کړئ۔

سلهٔ په تیرو شوو آیتونو کښې چه دَ کافرانو سره دَ کوم تعلق ختمولو کوم حکم شوے وُو دَ هغې په حقله خلقو ته دا غلط فهمی راتلے شوه چه دا ګنی دَ هغوئ دَ کافر کیدو وجه دهٔ۔ په دے وجه په دے آیتونو کښې دا اُوښئلے شو چه دَ هغې اصل وجه دَ هغوئ کفر نهٔ دے بلکه دَ اسلام او مسلمانانو سره دَ هغوئ دُشمنی ده او دَ هغوئ دَ ظلم سلوک دے۔ نو مسلمانانو له پکار دی چه دَ دُشمن کافر او دَ غیر دُشمن کافر په مینځ کښې فرق اُوکړی، او دَ هغه کافرانو سره دَ اِحسان سلوک اُوکړی کومو چه دَ هغوئ سره هیڅ بد نهٔ وی کړی۔ دَ دے ښه تشریح هغه واقعه ده کومه چه دَ حضرت اسماء بنت ابی بکرؓ او دَ هغې دَ کافرے مُور په مینځ کښې راغلی وه۔ دَ حضرت ابو بکرؓ یوه ښځه قُتَیلَه بنت عبدالعُزّٰی کافره وه او دَ هجرت نه روستو هم په مکه کښې پاتے شوی وه۔ حضرت اسماء دَ هغې لُور وه۔ دَ صلح حدیبیه نه روستو کله چه دَ مدینے او دَ مکے په مینځ کښې دَ تلو را تلو لار کولاوُ شوه نو هغه دَ لُور کره مدینے ته راغله او څه تحفے ئې هم دَ ځان سره راوړے۔ دَ حضرت اسماءؓ خپل روایت دا دے چه ځهٔ لاړم او دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم نه مې تپوس اُوکړو چه دَ خپلے مُور سره مِلاوُ شم؟ او آیا څهٔ ورسره صله رحمی هم کولے شم؟ نبیؐ ورته په جواب کښې اُوفرمائیل چه دَ هغې سره صله رحمی کوه، (مُسنَد احمد، بخاری، مُسلم)۔ دَ حضرت اسماء ځوے عبدالله بن زُبیرؓ دَ دے واقعے زیات تفصیل دا بیانوی چه اوّل حضرت اسماء دَ مُور سره دَ مِلاویدو نه اِنکار کړے وُو۔ روستو چه کله دَ الله او دَ هغه دَ رسول اجازت مِلاوُ شو نو بیا دَ هغې ورسره مِلاوُ شوه (مُسند احمد، ابن جریر، ابن ابی حاتم)۔ دَ دے نه پخپله دا نتیجه راوزی چه یو مسلمان له دَ خپل کافر مُور او پلار

يَآيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِذَا جَآءَكُمُ الْمُؤْمِنٰتُ مُهٰجِرٰتٍ فَامْتَحِنُوْهُنَّ ۭ اَللّٰهُ اَعْلَمُ بِاِيْمَانِهِنَّ ۚ فَاِنْ عَلِمْتُمُوْهُنَّ مُؤْمِنٰتٍ فَلَا تَرْجِعُوْهُنَّ اِلَى الْكُفَّارِ ۭ لَا هُنَّ حِلٌّ لَّهُمْ وَلَا هُمْ يَحِلُّوْنَ لَهُنَّ ۭ

اے هغه خلقو چه ایمان مو راوړے دے، کله چه مومنانے ښځے هجرت اُوکړی او تاسو له راشی نو (دَ هغوئ دَ ایمان) جاچ واخلئ، او دَ هغوئ دَ ایمان په حقیقت الله ښهٔ پوهه دے - بیا چه کله تاسو ته پته اولږی چه هغوی مومنانے دی نو هغوئ کافرانو ته مهٔ واپس کوئ - نهٔ هغوئ دَ کافرانو دَ پاره حلالے دی او نهٔ کافران دَ هغوئ دَ پاره حلال دی - دَ هغوئ کافرانو خاوندانو

خدمت کول او دَ خپلو کافرو رُوڼړو او خویندو او رشته دارانو امداد کول جائز دی خو هغه چه هغوئ دَ اسلام دُشمنان نهٔ وی - او دغه شان په ذمیانو مسکینانو باندے صدقے هم خرچ کید ے شی (احکام القرآن للجصّاص - رُوح المعانی) -

[۱۲] دَ دے حکم نه مخکینی حالات دا دی چه دَ صلح حُدَیبیے نه روستو به اوّل اوّل خو مسلمانان سړی دَ مکے نه تښتیدل او مدینے ته به تلل او هغوئ به دَ معاهدے دَ شرطونو مطابق واپس کیدل - بیا دَ مسلمانو ښځو دَ تلو سلسله شروع شوه او دَ ټولو نه اوّل اُم کلثوم بنت عُقبه بن ابی مُعیط هجرت اُوکړو او مدینے ته اُورسیده - کافرانو دَ معاهدے په حواله سره دَ هغے دَ واپس کولو مطالبه هم اُوکړه او دَ اُم کلثوم دوه روڼړه ولید بن عُقبه او عُماره بن عُقبه دَ هغے دَ واپس بوتللو دَ پاره مدینے ته لاړل - په هغه وخت کښے دا خبره مخے ته شوه چه آیا دَ حُدَیبیے معاهده دَ ښځو دَ پاره هم ده؟ الله تعالیٰ دَ دے خبرے دلته جواب ورکړے دے چه که چرے هغوی مسلمانانے وی او دَ سړی پړے دا باور راشی چه واقعی هغوئ دَ ایمان دَ خاطره په هجرت راغلی دی، په بل غرض نهٔ دی راغلی، نو هغوئ دِ نهٔ واپس کولے کیږی -

دَ صلح حُدَیبیے دَ شرطونو په حقله چه دَ احادیثو کوم روایتونه موږ ته ملاویږی هغه اکثر معنوی روایتونه دی - او دَ معنوی روایتونو دَ وجے نه دلته یو لوئ گړبړه راپیدا شوے دے چه دَ هغے حل کول ضروری دی - دلته چه په کوم شرط بحث شروع دے دَ هغے په حقله چه کوم روایتونه ملاؤ شوی دی په هغے کښے دَ یو روایت الفاظ دا دی: من جاء منکم لم نردہ علیکم ومن جاء کم منا رددتموہ علینا۔ "په تاسو کښے چه څوک موږ ته راشی هغه به موږ نه واپس کوُو او په موږ کښے چه څوک تاسو ته راشی هغه به تاسو واپس کوئ"۔ دَ بل روایت الفاظ دا دی: من اتی رسول الله من اصحابه بغیر اذن ولیه ردہ علیه۔ "رسول الله ته چه دَ هغه دَ اصحابو نه څوک دَ خپل ولی دَ اجازت نه بغیر راشی هغه به هغه واپس کوی" او په بل کښے دی: من اتیٰ محمداً من قریش بغیر اذن ولیه ردہ علیهم۔ "په قریشو کښے چه څوک محمدؐ ته دَ خپل ولی

دَ ایمان نه بغیر را شی هغه به قریش ته واپس کوی" دَ دې روایتونو دَ طرز بیان نه ځکه دا معلومیږی چه په دې کښې دَ معاهدې دا شرط په هغه الفاظو کښې نهٔ دې نقل کړې شوې کوم چه په اصل معاهده کښې لیکلې شوې وُو، بلکه راویانو دَ هغې مطلب ځپلو الفاظو کښې بیان کړې دې. لیکن چونکه زیات روایتونه په دې رنګ دی نو په دې وجه عام طور مفسرینو او محدثینو دَ دې نه دا مطلب واخستو چه معاهده عامه وه په هغې کښې ښځې او سړی ټول شامل وُو او ښځې هم دَ هغې ترمخه واپس کیدل پکار وُو. دَ دې نه روستو چه کله هغوی ته دَ الله تعالیٰ دا حکم راغې چه مومنانې ښځې دِ نهٔ واپس کیږی نو دَ حضراتو دَ دې دا مطلب واغستو چه الله تعالیٰ په دې آیت کښې دَ مومنو ښځو دَ حده پورې دَ معاهدې دَ ختمولو فیصله اُوکړه. لیکن دا څه معمولی خبره نهٔ ده چه دومره په اسانئ سره دِ قبوله کړې شی. که چرې معاهده واقعی دَ ښځو سړو ټولو دپاره عامه وه نو آخر دا څنګه جائز کیدې شو چه یوه ډله دِ په هغې کښې دَ یو طرفه بدلون راولی یا دَ هغې یوه حصه دِ ځپله رضا بدله کړی؟ او بالفرض که داسې شوې هم وې نو دا څنګه عجیبه خبره ده چه دَ قریشو خلقو په هغې باندې څه احتجاج اُونهٔ کړو. دَ قریشو خلق خو دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم او دَ مسلمانانو یوې یوې خبرې ته تکی ناست وُو. هغوی ته که دَ دې خبرې پته لګیدلې وې چه نبیؐ دَ معاهدې دَ شرطونو څرګنده خلاف ورزی کړې ده نو هغوی به ز مکه او آسمان یو کړې وې. لیکن موږ ته په یو روایت کښې دَ دې خبرې اِشاره قدر له نهٔ ملاویږی چه هغوی دَ قرآن په دې فیصله باندې د ذرې هومره خبری اتری کړی وی. دا داسې خبره وه چه په وِې غور شوې وې نو دَ معاهدې دَ اصل الفاظو دَ لټون په ذریعه دَ دې کړکیچ حل پیدا کیدې شو، لیکن ډیرو خلقو خو دې طرفته توجه اونهٔ کړه، او ځینو حضراتو (مثلاً قاضی ابوبکر ابن عربی) توجه هم اوکړه خو هغوی دَ قریشو دَ اعتراض نهٔ کولو دا وجه بیان کړه چه الله تعالیٰ په دې معامله کښې دَ معجزې په طور دَ قریشو ژبه بنده کړې وه. تعجب دې چه په دې تشریح باندې دَ دې حضراتو زړه څنګه مطمئن شو.

اصل خبره دا ده چه دَ صلحې دا شرط دَ مسلمانانو دَ طرفنه نهٔ بلکه دَ قریشو دَ کافرانو دَ طرفنه وُو، او دَ هغوئ دَ طرفنه چه دَ هغوئ نمائنده سُهیل بن عمرو کوم الفاظ په معاهده کښې لیکلی وُو هغه دا وُو: "علیٰ ان لا یاتیک منا رجل وان کان علیٰ دینک الا رددته الینا." "او دا چه که تاسو ته زموږ نه یو نارینه هم راشی، اګرچه هغه ستاسو په دین باندې وی، تاسو به هغه موږ ته واپس کوئ." دَ مفسرینو دا الفاظ دَ بخاری په کتاب الشروط، باب الشروط فی الجهاد والمصالحه کښې دَ قوی سند سره نقل شوی دی. کیدې شی چه سُهیل دَ "رجل" لفظ دَ سړی په معنیٰ کښې استعمال کړې وی، لیکن دا به دَ هغه ذهنی مُراد وی. په معاهده کښې چه کوم لفظ لیکلې شوې وُو هغه "رَجُل" وُو چه په عربئ ژبه کښې دَ نارینه سړی دَپاره وئیلې کیږی. دا وجه وه چه کله دَ اُمِّ کلثوم بنت عُقبه په واپسئ پسې دَ هغې رونړه رسول الله صلی الله علیه وسلم له راغلل نو (دَ اِمام زُهری دَ روایت مطابق) رسول اللهؐ دَ هغې دَ واپس کولو نه اِنکار اُوکړو او وې فرمائیل چه "کان الشرط فی الرجال دون النساء." "شرط دَ سړو په باره کښې وُو نهٔ چه دَ ښځو په باره کښې" (احکام القرآن، ابن عربی، تفسیر کبیر، امام رازی). دَ دغه وخته پورې ځکه دَ قریشو خلق هم په دې دوکه کښې پراته وُو چه

معاهدٌ دَهرقسم مهاجر دَپاره ده خواه که هغه سړے وی او که ښځه وی لیکن کله چه نبیؐ دَهغوئ ترجه دَمعاهدے دے الفاظو ته را اُوګرزوله نو هغوئ حیران پاتے شوا و په ناچاری سره ئے دا فیصله اُومنله ـ

دَ معاهدے دَدے شرط په لحاظ سره مسلمانانو ته حق وُو چه کومه ښځه دَ مکے نه مدینے ته را تلله، او که په هرڅه غرض را تلله، چه هغه مکے ته واپس نهٔ کړی ـ لیکن دَ اسلام صرف دَ مومنو ښځو دَ حفاظت سره د لچسپی وه، دَ هرقسم ښځو دَ پاره دَ مدینے نه دَ پناه ګاه جوړولو مقصد نهٔ وُو ـ په دے وجه الله تعالیٰ حکم اُوکړو چه کومے ښځے په هجرت را شی او دَ خپل ایمان ښکاره ونه اُوکړی، نو دَ هغوئ نه تپوسونه اُوکړئ چه واقعی هغوئ ایمان راوړے دے، او چه کله دَ هغوئ په ایمان باندِ ستاسو اطمینان را شی نو هغه مهٔ واپس کوئ ـ نو دَ الله تعالیٰ په دے حکم باندِ دَ عمل کولو دَ پاره چه کومه قاعده جوړه کړے شوه هغه داوه چه کومو ښځو به هجرت اُوکړو او را به غلے نو دَ هغوئ نه به تپوسونه کیدل چه آیا هغوئ دَ الله په توحید او دَ محمد صلی الله علیه وسلّم په رسالت باندِ ایمان لری او صرف دَ الله او دَ هغه دَ رسول دَ خاطره ئے هجرت کړے دے؟ چرته دا سے خو نهٔ ده چه دَ خاوند نه خفه شوی وی او دَ کورنه راوتلی وی؟ یا په موږ کښے دَ یو سړی سره دَ محبت په وجه را غلی وی؟ یا دَ دُنیا دَ بل غرض په وجه ئے دا کار کړے وی؟ د دے تپوسونو جوابونه چه به کومو ښځو ورکول او دَ زړه اطمینان به پرِ را تللو نو صرف هغوئ به منع کیدے شوے، باقی نورے تولے به واپس کیدلے (ابن جریر، په حواله دَ ابن عباس، قتاده، مجاهد، عکرمه، ابن زید) ـ

په دے آیت کښے دَ قانونِ شهادت هم یوه اصُولی قاعده بیان کړے شوی ده او دَ دے زیاته تشریح دَ هغه طریقے نه شوی ده کومه چه رسول الله صلی الله علیه وسلّم په دے باندِ دَ عمل کولو دَ پاره مقرر کړی وه ـ په آیت کښے درے خبری فرمائیلے شوی دی ـ یوه دا چه کومے ښځے ځان ته مومنانے وائی او په هجرت را شی نو د هغوئ دَ ایمان جاج واخلئ ـ دویمه دا چه دَ هغوئ دَ ایمان حقیقت خو صرف الله تعالیٰ ته معلوم دے، ستاسو سره دَ هغوئ دَ ایمان معلومولو څه ذریعه نشته ـ دریمه دا چه په جاج اغستو سره کله تاسو ته معلومه شی چه هغوئ مومنانے دی نو هغوئ مهٔ واپس کوئ ـ بیا دَ دے حکم مطابق چه نبیؐ دَ دے ښځو دَ ایمان دَ جاج اغستلو دَ پاره کومه طریقه مقرر کړه هغه داوه چه دَ هغوئ په قسمی بیان باندِ دِ اعتماد اُوکړے شی. او دَ ضروری بحث کولو نه روستو دِ دا اطمینان را وستے شی چه دَ هغوئ هجرت دَ ایمان نه سِوا دَ بل څه غرض دَ پاره نهٔ دے ـ دَ دے نه اوّل خو دا قاعده معلومه شوه چه دَ معاملا تو دَ فیصلے کولو دَ پاره عدالت ته دَ حقیقت علم حاصلول ضروری نهٔ دی بلکه صرف هغه علم کافی دے کوم چه دَ شهادتونو نه حاصل شوے وی ـ دویمه خبره دا معلومه شوه چه موږ به دَ یو سړی په قسمی بیان ترهغے بروسه کوُو ترڅو چه یو ښکاره دلیل دَ هغے په دروغژن کیدو باندِ دلالت نهٔ کوی ـ دریمه خبره دا معلومه شوه چه سړے دَ خپلے عقیدے او دَ خپل ایمان په حقله څنګه کوم بیان ورکوی موږ به هغه قبلوُو او دَ دے خبرے لټون به نهٔ کوُو چه آیا واقعی دَ هغه هم هغه عقیده ده کومه چه هغه څنګه بیانوی، سِوا دَ دے نه چه یوه ښکاره نښه موږ ته داسے معلومه شی چه هغه دَ هغے تردید کوی ـ او څلورمه خبره دا چه دَ یو سړی کوم ذاتی حالات بل ته نهٔ شی معلومیدے په هغے کښے به هم دَ هغه په بیان بروسه کیدے شی، مثلاً دَ طلاق او دَ عدت په معاملا تو کښے دَ ښځے دَ حیض او دَ طُهر (یعنی دَ نارو غتیا او دَ پاکوالی) په حقله به دَ هغے خپل بیان معتبر وی، خواه که هغه

وَاٰتُوْهُمْ مَّآ اَنْفَقُوْا ۚ وَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ اَنْ تَنْكِحُوْهُنَّ اِذَآ اٰتَيْتُمُوْهُنَّ اُجُوْرَهُنَّ ۚ وَلَا تُمْسِكُوْا بِعِصَمِ الْكَوَافِرِ وَسْـَٔلُوْا مَآ اَنْفَقْتُمْ وَلْيَسْـَٔلُوْا مَآ اَنْفَقُوْا ۚ ذٰلِكُمْ حُكْمُ اللّٰهِ ۚ

چه کوم مَهر هغوی له ورکړے وُو هغه هغوئ له ورکړئ ـ او په تاسو هیڅ گناه نشته چه دَ هغوئ سره نکاح اُوکړئ هله چه تاسو هغوئ له دَ هغوئ مَهر ورکړئ[۱۵] ـ او تاسو پخپله هم کافره ښځے په خپله نکاح کښے مهٔ ساتئ ـ کوم مَهر چه تاسو خپلو کافرو ښځو له ورکړے وُو هغه تِر تاسو واپس اُوغواړئ او کوم مَهر چه کافرانو خپلو مسلمانانو ښځو له ورکړے وُو هغه دِ هغوئ واپس اُوغواړی[۱۶] ـ دا دَ الله حُکم دے،

دروغ وائی او که رښتیا ـ دَ دے قاعدو مطابق په علم حدیث کښے به هم هغه روایتونه قبلیدے شی چه دَ هغے دَ راویانو ظاهری حال دَ هغوئ دَ رښتینولئ گواهی ورکوی ـ ماسوا دَ هغے نه چه څه بل دلیل دا سے موجود وی چه دَ هغے په وجه یو روایت دَ قبلیدو قابل نهٔ وی ـ

[۱۵] مطلب دا دے چه دَ هغوی کافر خاوندانو ته کوم مَهر واپس کړے شی هغه به دَ هغه ښځو مَهر نهٔ شمار لے کیږی، بلکه اوس چه کوم مسلمان په هغوی کښے دَ یوے ښځے سره نکاح کول غواړی هغه دِ دَ هغے مَهر هغے له ورکړی او دَ هغے سره دِ نکاح اُوکړی ـ

[۱۶] په دِ دے آیتونو کښے څلور غټ غټ مطلبونه بیان کړے شوی دی چه دَ هغے تعلق دَ اِسلام دَ خاندانی قانون سره هم دے او دَ بین الاقوامی قانون سره هم ؛

اوّل دا چه کومه ښځه مسلمانه شی نو هغه دَ خپل کافر خاوند دَ پاره حلاله نهٔ ده او نهٔ کافر خاوند دَ هغے دَ پاره حلال دے ـ

دویم دا چه کومه نکاح شوی ښځه مسلمانه شی او دَ دارالکفر نه دارالاسلام ته هجرت اُوکړی نو دَ هغے نکاح پخپله ماتیږی او بیا چه هر مسلمان دَ هغے سره نکاح کول غواړی نو کولے شی خو مَهر به ورکوی ـ

دریم دا چه کوم سړے مسلمان شی نو دَ هغه دَ پاره دا جایز نهٔ دی چه که دَ هغه ښځه کافره پاتے شی نو هغه دِ په خپله نکاح کښے اُوساتی ـ

څلورم دا چه که چرے دَ دارالکفر او دَ دارالاِسلام په مینځ کښے دَ صلحے تعلقات موجود وی نو اِسلامی حکومت له پکار دی چه دَ دارالکفر دَ حکومت سره دَ دے فیصلے کولو کوشش اُوکړی چه دَ کافرانو کومے نکاح شوی ښځے مسلمانے شوی وی او دارالاسلام ته په هجرت راغلی وی نو چه دَ هغوئ مَهرونه دَ مسلمانانو دَ طرفنه واپس ورکړے شی، او دَ مسلمانانو نکاح شوی کافرانے ښځے چه په دارالکفر کښے پاتے شوی وی نو چه دَ هغوی مَهرونه دَ کافرانو دَ طرفنه واپس مِلاؤ شی ـ

دَدې حکمونو تاریخي حالات دا دي چه دَ اِسلام په شروع کښې ډیرې داسې وُو چه مېړونو اسلام قبول کړو خو ښځې ئې مسلمانې نهٔ شوې ـ او ډیرې ښځې داسې وې چه مسلمانې شوې خو خاوندانو ئې اِسلام قبول نهٔ کړو ـ پخپله دَ رسول الله صلی الله علیه وسلّم دَ یوې لور حضرت زینب رضؓ خاوند ابوالعاص مسلمان نهٔ وُو او دَ ډیرو کلونو پورې غیر مسلم وُو ـ په اولنی دَور کښې داسې څهٔ حکم نهٔ وُو شوې چه دَ مسلمانې ښځې دَپاره دَ هغې کافر خاوند حلال نهٔ دې او دَ مسلمان سړي دَپاره دَ هغه مشرکه ښځه حلاله نهٔ ده ـ په دې وجه دَ مېړونو په منځ کښې خانداني تعلقات برقرار وُو ـ دَ هجرت نه روستو هم دَ یو څو کالو دَپاره دا حالت وُو چه ډیرې ښځې مسلمانې شوې او په هجرت را غلې او دَ مېړونو کافران خاوندان په دارالکفر کښې وُو ـ او ډیر مسلمانان سړي په هجرت را غلل او دَ مېړونو کافرې ښځې په دارالکفر کښې پاتې شوې خو بیا هم دَ مېړونو تر منځه خانداني تعلقات قایم وُو ـ دَ دې نه خاص طور دَ ښځو دَپاره ډیر کړکېچ پیدا کیدو، ځکه چه سړو خو به دویمه نکاح هم کولې شوه، لیکن دَ ښځو دَپاره دا ممکن نهٔ وو چه دَ دویم خاوند سره نکاح اُوکړي تر څو چه ئې دَ مخکینو خاوندانو سره نکاح ختمه شوې نهٔ وي ـ دَ صلح حدیبیې نه روستو چه کله دا آیتونه نازل شو نو هغې دَ مسلمانانو او دَ کافرانو او دَ مشرکانو تر منځه مخکینی مناشتې ختمې کړې او دَ ائینده دَپاره ئې دَ هغې په باره کښې یو قطعي او واضحه قانون جوړ کړو ـ دَ اِسلام فقهاؤ دا قانون دَ څلورو لویو لویو عنوانونو لاندې په ترتیب کړې دے ـ

یو، هغه حالت، چه په هغې کښې ښځه خاوند په دارالاسلام کښې وي او په مېړونو کښې یو مسلمان شي او بل کافر پاتې شي ـ

دویم، هغه حالت چه په هغې کښې ښځه خاوند په دارالکفر کښې وي او په مېړونو کښې یو مسلمان شي او بل کافر پاتې شي ـ

دریم، هغه حالت چه په هغې کښې دَ ښځې خاوند نه یو مسلمان شي او دارالاسلام ته هجرت اُوکړي او بل په دارالکفر کښې پاتې شي ـ

څلورم، هغه حالت چه په هغې کښې دَ ښځې خاوند نه یو مُرتد شي یعنی کفر ته واپس لاړ شي ـ

لاندې مونږه دَ دې څلورو واړو حالتونو په حقله دَ فقهاؤ مسلکونه جُدا جُدا بیانوُو ـ

(۱) په اولنی شکل کښې که چرې سړي اسلام قبول کړې وي او دَ هغه ښځه عیسائینه یا یهودنه وي او هغه په خپل دین باندې ټینګه پاتې شي نو دَ دواړو په منځ کښې به نکاح باقي وي، ځکه چه دَ مسلمان سړي دَپاره دَ اهلِ کتابو ښځه جائز ده ـ په دې خبره دَ ټولو فقهاؤ اتفاق دے ـ

او که چرې دَ اسلام قبلونکی سړي ښځه دَ غیر اهلِ کتابو نه وي او هغه په خپل دین باندې قایم پاتې شي، نو حنفي عالمان په دې حقله وائي چه ښځې ته به اِسلام پیش کړې شي، که قبول ئې کړو نو نکاح به باقي پاتې شي، او که قبول ئې نهٔ کړو نو دَ مېړونو په منځ کښې به جُدائي واقع شي ـ په دې صورت کښې که چرې دَ ښځې خاوند په منځ کښې کور والې شوې وي نو ښځه به دَ مهر مستحقه وي، او که کور والې نهٔ وي شوې نو دَ مهر حق به ئې نهٔ وي ځکه چه جُدائي دَ هغې دَ اِنکار په وجه راغلې ده (المبسوط، هدایه، فتح القدیر) امام شافعي او امام احمد وائي چه که چرې دَ ښځې خاوند په منځ کښې کور والې نهٔ

وی شوے نو دَ سړی دَ اسلام قبلولو سره ښځه دَ هغه دَ نکاح نه بهر کیږی، اوکه چرے کور والے شوی نو ښځه به دَ درے ځله ناجوړتیا (حیض راتلو) پورے دَ هغه په نکاح کښے وی، په دے دوران کښے که هغې ځپله مرضا سره اسلا قبول کړو نو نکاح به باقی وی، کنه نو دَ دریم ځل ناجوړتیا دَ ختمیدو سره به نکاح خود بخود ختمه شی. امام شافعیؒ داهم وائی چه دَ ذمیانو ته دَ مسلمانانو دَ طرفنه دَ هغوی دَ مذهب نه چیړلو کوم ضمانت ورکړے شوے دے دَ هغې تر مخه دا صحیح نهٔ ده چه ښځے ته دِ اسلام پیش کړے شی. لیکن په حقیقت کښے دا یوه کمزوری خبره ده، ځکه چه دَ یوے ذمی ښځے مذهب چیړل خو به هله وی چه هغه په اسلام قبلولو باندِ مجبوره کړے شی. هغې ته صرف داوینا کول چه بے ځایه چیړل نهٔ دی چه ته اسلام قبول کړه نو دَ خپل خاوند سره به پاتے شے کنه نو ته به دَ خاوند نه جُدا کیږے. دَ حضرت علیؓ په زمانه کښے دَ دے مثال پیش شوے هم دے. دَ عراق یو مجوسی زمیندار اسلام قبول کړو او دَ هغه ښځه کافره پاتے شوه. حضرت علیؓ هغې ته اسلام پیش کړو. او چه کله هغې اِنکار اُوکړو نو پس دَ هغې ئے دواړه جُدا کړل (المبسوط). امام مالکؒ وائی چه که چرے کور والے شوی شوے نو دَ سړی دَ اسلام قبلولو سره به دَ هغه کافره ښځه فوراً دَ هغه نه جُدا کیږی اوکه چرے کور والے شوی وی نو ښځے ته به اِسلام پیش کیږی که انکار ئے اُوکړو نو جُدا والے به راځی (المغنی لابن قدامه).

اوکه چرے اسلام ښځے قبول کړے وی او سړے کافر پاتے شی، نو که هغه دَ اهلِ کتابونه وی اوکه دَ غیر اهلِ کتابونه وی، حنفیان وائی چه که دَ دواړو کور والے شوے وی اوکه نهٔ وی، په هرحال کښے به خاوند ته اسلام پیش کړے کیږی، که قبول ئے کړو نو ښځه به دَ هغه په نکاح کښے وی، که انکار ئے اُوکړو نو قاضی به په دواړو کښے جُداوالے راولی. په دے دوران کښے چه ترڅو پورے سړی دَ اسلام نه اِنکار نهٔ وی کړے، تر هغې به ښځه دَ هغه ښځه وی خو دَ کور والی حق به ئے نهٔ وی. چه خاوند ئے دَ اسلام قبلولو نه اِنکار اُوکړی نو جُدا والے به دَ طلاق بائن په حکم کښے وی. که چرے دَ هغې نه مخکښے کور والے نهٔ وی شوے نو ښځه به دَ نیم مهر حقداره وی، اوکه کور والے شوے وی نو ښځے ته به پوره مهر ملاویږی او دَ عدت نفقه هم (المبسوط، هدایه، فتح القدیر).

دَ امام شافعیؒ په نیز چه کور والے نهٔ وی شوے نو دَ ښځے دَ اسلام قبلولو سره به نکاح ماتیږی، او چه کور والے شوے وی نو دَ عدت دَ ختمیدو پورے به ښځه دَ هغه سړی په نکاح کښے وی. په دے موده کښے چه که هغه اسلام قبول کړو نو نکاح به باقی پاتے وی، کنه نو دَ عدت دَ ختمیدو سره به جُدائی راشی. لیکن دَ سړی په معامله کښے هم امام شافعیؒ هغه رائے ظاهره کړې ده کومه چه دَ ښځے په باره کښے بره نقل شوی ده چه هغه ته اسلام پیش کول جائز نهٔ دی، او دا رائے هم یوه کمزوری ده. دَ حضرت عمرؓ په زمانه کښے ډیر واقعات داسے راغلی دی چه ښځے اسلام قبول کړو او سړی ته اسلام پیش کړے شو او چه کله هغه انکار اُوکړو نو دَ دواړو په مینځ کښے جُداوالے راوستے شو. مثلاً دَ بنی تغلب دَ یو عیسائی ښځے معامله هغه ته پیش شوه. هغه سړی ته اُووے یا خو ته اسلام قبول کړه کنه نو ځه به تاسو دواړه جُدا کړم. هغه اِنکار اُوکړو او حضرت عمرؓ ورله دَ

جُدا والی سند ورکړو - دَ بهزَا الملک یوه زمیندارہ ښځه نوی مسلمانه شوی وه دَ هغې مقدمه حضرت عمرؓ ته اُولیږلے شوه - دَ هغې په معامله کښې هم هغه حکم اُوکړو چه دَ هغې خاوند ته دِ اِسلام پیش کړے شی، که قبول ئے کړو خو ښه ده، کنې نو دواړه دِ جُدا کړے شي - دا واقعات دَ صحابه کرامو په مخکښے واغلی وُو او هیچا تړ انکار نهٔ دے کړے (احکام القرآن للجصّاص، المبسوط، فتح القدیر) - دَ امام مالکؒ رائے په دِے معامله کښے داده چه که چرے دَ کورو والی نه مخکښے ښځه مسلمانه شی نو خاوند ته دِ اسلام پیش کړے شی، که هغه قبول کړو خو ښه دهٔ، کنې نو فوراً دِ جُدا والے اُوکړے شی - او که چرے کورو والے شوے وی او دَ هغې نه روستو ښځه اِسلام قبول کړی، نو دَ عدت دَ ختمیدو پورے دِ اِنتظار اُوکړے شی، که په دِے موده کښے خاوند اسلام قبول کړو نو نکاح به باقی پاتے وی، کنې نو دَ عدّت دَ تیریدو سره به جُدا والے راشی - دَ امام احمد یو قول دَ امام شافعیؒ په تائید کښے دے، او دویم قول ئے دادے چه دَ ښځې خاوند په منځ کښے دَ دین دَ اختلاف په وجه په هر حال کښے فوری جُدا والے واجبیږی، خواه که کورو والے شوے وی او که نهٔ وی (المُغنی) -

(۲) په دارالکفر کښے که ښځه مسلمانه شی او سړے کافر پاتے شی، یا سړے مسلمان شی او دَ هغه ښځه (چه عیسایئه یا یهودنړه نهٔ وی بلکه غیر کتابی وی) په خپل مذهب قایمه پاتے شی، نو دَ حنفیانو په نزد که کورو والے شوے وی او که نهٔ وی، خو جُدا والے به تر هغې پورے نهٔ راځی تر څو چه دَ ښځې میاشتینړے ناجوړتیا درے ځله نهٔ وی راغلی، یا ئے که "ناجوړتیا" بنده شوی وی نو چه درے میاشتے نهٔ وی تیرے شوی - په دِے دَوران کښے که دویم فریق هم مُسلمان شو نو نکاح به باقی پاتے وی، کنې نو دَ مودے دَ تیریدو سره به جُدا والے راځی، امام شافعیؒ په دِے معامله کښے هم دَ کورو والی او دَ نهٔ کورو والی په منځ کښے فرق کوی - دَ هغه رائے داده چه که چرے کورو والے نهٔ وی شوے نو دَ دین دَ اختلاف په وجه به دَ ښځې خاوند په منځ کښے جُدا والے راځی، او که دَ کورو والی نه روستو دَ دین اختلاف راغلے وی نو دَ عدّت دَ ختمیدو پورے به دَ هغوی نکاح باقی وی - په دِے دَوران کښے که چرے دویم فریق اِسلام قبول نهٔ کړو نو دَ عدّت دَ ختمیدو سره به نکاح هم ختمیږی - (المبسوط، فتح القدیر، احکام القرآن للجصّاص) -

(۳) کله چه دَ ښځې خاوند په منځ کښے دَ دین دَ اختلاف سره دَ وطن اختلاف هم راشی، یعنی په هغوی کښے یو په دارالکفر کښے کافر پاتے شی، او بل دارالاسلام ته هجرت اُوکړی، نو دَ دے په باره کښے حنفیان وائی چه دَ دواړو په منځ کښے به دَ نکاح تعلق پخپله ختمیږی - که ښځې هجرت اُوکړو نو هغې ته فوراً دَ دویم نکاح کولو حق حاصل دے، په هغې باندِ هیڅ عدّت نشته، البته دَ کورو والی دَ پاره به دَ هغې خاوند هغې ته دَ بچه دان دَ پاکئ دَ خاطره دَ یو میاشتینړے ناجوړ تیا (یعنی دَ یو حیض راتلو) پورے انتظار کوی، او که چرے هغه حامله وی یعنی بچے ئے په کیده وی نو بیا هم نکاح کیدے شی خو دَ کورو والی کولو دَ پاره به دَ بچی دَ پیدا کیدو پورے انتظار کوی - امام ابویوسف او امام محمد په دِے مسئله کښے دَ امام ابوحنیفهؒ نه صرف دومره اختلاف کړے دے چه هغوی وائی چه دَ ښځې دَ پاره عدّت لازمی دے، او که دَ ښځې بچے په کیده وی نو دَ بچی دَ پیدا کیدو نه مخکښے دَ هغې نکاح نشی کیدے (المبسوط - هدایه - احکام القرآن للجصاص) - امام شافعیؒ، امام احمدؒ او امام مالکؒ وائی چه په دِے معامله کښے دَ وطن اختلاف هیڅ دخل نهٔ لری، بلکه اصل څیز صرف دَ دین اختلاف دے - دا اختلاف چه په ښځه خاوند کښے راشی نو حکمونه هم هغه دی کوم چه په دارالاسلام کښے دَ دے مسئلے په

بنساره کښے دی (المُغنِی) ۔ امام شافعیؒ دَ خپلې پاسنۍ رائے سره سره دَ هجرت کونکی مسلمانې ښځې په باره کښے دا رائے هم ظاهروی چه که چرے ښځې دَ خپل کافرخاوند سره جنګ کړے وی او دَ هغه نه دَ جُدا والی په اراده سره راوتلی وی نو دَ وطن دَ اختلاف په وجه نهٔ بلکه دَ هغې دَ دے اراد ے په وجه به فوراً جُدا اوالے واقع کیږی (المبسوط ۔ هدایه) ۔

لیکن دَ قرآن مجید په دِ دے آیت باندِ دَ غورکولو نه صفا معلومیږی چه په دے معامله کښے دَ ټولونه صحیح رائے هم هغه ده کومه چه امام ابوحنیفهؒ ظاهرکړی ده ۔ الله تعالیٰ دا آیت دَ هجرت کونکو مومنو ښځو په باره کښے نازل کړے دے او هم دَ هغوئ په حق کښے ئے دا فرمائیلی دی چه هغوئ دَ هغه کافرانو خاوندانو دَ پاره حلالے نهٔ دی کوم چه هغوئ په دارالکفرکښے پریښودی دی، او دَ دارالاسلام مسلمانانو ته ئے اجازت ورکړے دے چه دَ هغوئ مَهرادا کړئ او دَ هغوئ سره نکاح اوکړئ ۔ بل طرفته ئے مهاجرو مسلمانانو ته دا فرمائیلی دی چه خپلے هغه کافرے ښځے په خپل نکاح کښے مَه ساتئ کومے چه په دارالکفرکښے پاتے شوی دی او دَ کافرانو نه خپل مَهرونه واپس اوغواړئ کوم چه تاسو هغه ښځوله ورکړی وُو ۔ ښکاره خبره چه دا صرف دَ دین دَ اختلاف حکمونه نهٔ دی بلکه دَ دے حکمونو خاص وجه دَ وطن اختلاف دے ۔ که دَ هجرت په وجه دَ مسلمانو ښځو نکاحونه دَ خپلو کافرو خاوندانو سره مات شوے نهٔ وے نو مسلمانانو ته به دَ هغوئ سره دَ نکاح کولو اجازت څنګه ورکړے شوے وے، او هغه هم په دے طریقه چه په دِ دے اجازت کښے عدّت طرفته هیڅ اشاره نشته ۔ دغه شان که چرے دَ لَا تُمْسِكُوا بِعِصَمِ الْكَوَافِرِ دَ حکم راتلو نه روستو هم دَ مسلمان مهاجرینو کافرے ښځے دَ هغوئ په نکاح کښے باقی پاتے وے نو ورسره به دا حکم هم شوے وے چه هغوئ له طلاق ورکړئ ۔ لیکن دلته دِ دے طرفته هم څه اشاره نشته ۔ بے شکه دا خبره صحیح ده چه دَ دے آیت دَ نازلیدو نه روستو حضرت عُمرؓ او حضرت طلحهؓ او څینو نورو مهاجرینو خپلو ښځوله طلاق ورکړی وُو ۔ لیکن دا دَ دے خبرے ثبوت نهٔ دے چه دَ هغوئ دَ پاره دا ئے کول کښی ضروری وُو، او دَ هغوئ دَ ښځو پریښودل کښی دَ هغوئ طلاق و رکولو ته بند وُو، که هغوئ طلاق نهٔ ورکولے نو دَ هغوئ ښځے به کښی دَ هغوئ په نکاح کښے باقی پاتے وے ۔

دَ دے په جواب کښے دَ نبیؐ دَ زمانے درے واقعات په مثال کښے پیش کړے کیږی چه هغے ته دَ دے خبرے ثبوت وئیلے شی چه دَ دے آیتونو دَ نازلیدو نه روستو هم نبی صلی الله علیه وسلم دَ وطن دَ اختلاف سره دَ مومن او دَ کافر ښځے خاوند په منځ کښے دَ نکاح تعلق برقرار اوساتو ۔ اولنۍ واقعه دا ده چه دَ مکے دَ فتحے نه لږ شان مخکښے ابوسفیان په مَرّالظُّهران (چه اُوس ورته وادی فاطمه وائی) نوے ځائے کښے دَ اِسلام لښکرته راغے او هلته ئے اِسلام قبول کړو او دَ هغه ښځه چه نوم ئے هِند وُو په مکه کښے اُوسیدله ۔ بیا دَ مکے دَ فتحے نه روستو هِند هم اسلام قبول کړو او نبی صلی الله علیه وسلّم دَ هغوئ نکاح نَوی اُو نهٔ تړله بلکه هغه پخوانئ نکاح ئے برقـــران اُوساتله ۔ دویمه واقعه دا ده چه دَ مکے دَ فتحے نه روستو عِکرمه بن ابی جَهل او حکیم بن حِزام دَ مکے نه اُوتښتیدل او دَ هغوئ دَ تښتیدو نه روستو دَ هغوئ دواړو ښځے مسلمانے شوے ۔ بیا هغوئ دَ نبیؐ نه دَ خپلو خاوندانو دَ پاره امان اُوغوښتو هغوئ دواړه لاړے او خپل خاوندان ئے راوستل ۔ دواړه راغلل او اِسلام ئے قبول کړو او نبی صلی الله علیه وسلم دَ هغوئ هم مخکینی نکاحونه برقرار اُوساتل ۔ دریمه واقعه دَ نبیؐ دَ خپلے لور حضرت زینبؓ ده چه مدینے ته ئے هجرت کړے وُو او دَ هغې خاوند ابوالعاص دَ کفر په حالت کښے

په مکّه کښې پاتې شوې وُو - دَ هغه په حقله په مُسند احمد، ابو داوُد، تِرمذی او ابن ماجه کښې دَ ابن عباس روایت داد ے چه هغه په ۸ھ هجرئ کښې مدینې ته راغے او مسلمان شو۔ نبیؐ دَ هغوئ نکاح نوی نهٔ کړه بلکه دَ مخکینئ نکاح مطابق ئې خپله لور دَ هغه سره کړه - لیکن په دے کښې اولنو دوُو واقعو ته خو په حقیقت کښې دَ وطن اختلاف نشي ویلے، ځکه چه دَ وطن اختلاف دے ته نهٔ وائی چه یو سړے عارضي طور دَ یو وطن نه بل وطن ته لاړ شي یا اُوتښتي، بلکه دَ وطن اختلاف هغې ته ویلے شي چه کله یو سړے دَ یو وطن نه لاړ شي او په بل وطن کښې آباد شي او دَ هغه او دَ هغه دَ ښځې په منځ کښې دَ موجوده زمانے دَ وینا مطابق دَ قومیت" (Nationality) فرق راشي - پاتې شوه دَ حضرت زینب رضی الله عنها معامله نو دَ هغې په باره کښې دوه روایتونه دی - یو روایتِ دَ ابن عباس دے چه دَ هغې حواله بره ورکړې شوې ده، او دویم روایت دَ حضرت عبدالله بن عمرو بن عاص دے چه هغه امام احمد، تِرمذی او ابن ماجه نقل کړے دے - په دے دویم روایت کښې ویلے شوی دی چه نبی صلی الله علیه وسلم خپله لور دَ نوی نکاح او دَ نوی مهر سره بیا ابوالعاص ته ورکړه - دَ دے روایت دَ اختلاف په وجه اوّل خو دا مثال دَ هغه کسانو دَ پاره قطعی طور دَ لیل نهٔ گرزی څوک چه دَ وطن اختلاف په قانونی حیثیت سره بے اثره گنړی - دویم، که چرے هغوئ دَ ابن عباس روایت له زور ورکړی چه هم دا صحیح دے نو دا بیا دَ هغوئ دَ مسلک خلاف کیږی - ځکه چه دَ هغوی دَ مسلک مطابق خو چه دَ کوم ښځې خاوند په منځ کښې دَ دین اختلاف راغلے وی او هغوئ کور والے کړے وی نو دَ هغوئ نکاح صرف دَ ښځې دَ درے ځله میاشتیزے ناجوړتیا راتلو پورے باقی پاتې کیږی، په دے دوران کښې که دویم فریق اسلام قبول کړو نو نکاح به برقرار وی، کنهٔ نو دَ دریم ځل ناجوړتیا راتلو سره به نکاح خپله ماتیږی - لیکن دَ حضرت زینبؓ دَ کور دَ واقعے نه چه هغوی دلیل ورکوی په هغې کښې دَ ښځې خاوند په منځ کښې دَ وطن دَ اختلاف ډیر کلونه تیر شوی وُو، دَ حضرت زینب دَ هجرت نه شپږ کاله روستو ابوالعاص ایمان راوړے وُو، او دَ هغه دَ ایمان راوړو نه کم از کم دوه کاله مخکښې په قرآن کښې هغه حکم نازل شوے وُو چه دَ هغې تر مخه مسلمانه ښځه په مشرکانو باندِ حرامه کړے شوی وه -

(۴) څلورمه مسئله کفر ته دَ اوړیدو (یعنی دَ ارتداد) ده دَ دے یو صورت دادے چه ښځه خاوند په یو وخت کفر ته واوړی، او دویم صورت دادے چه په هغوئ کښې یو کفر ته واپس واوړی او بل مسلمان پاتې شي -

که چرے ښځه خاوند دواړه په یو وخت کفر ته واپس لاړ شي نو شافعیان او حنبلیان وائی چه که چرے دَ کور والی نه مخکښې دا سے اُوشي نو فوراً به هغه نکاح ختمیږی کومه چه دَ اسلام په حالت کښې تړلے شوی وه، او که دَ کور والی نه روستو اُوشي نو دَ عدت دَ مود ے دَ ختمیدو سره به مخکینئ نکاح ختمیږی - دَ دے برعکس حنفیان وائی چه اګرچه قیاس خو هم داد ے چه دَ هغوئ نکاح دِ ماته شی، لیکن دَ حضرت ابوبکرؓ په زمانه کښې چه دَ ارتداد کومه فتنه شروع شوی وه په هغې کښې زرګونه کسان مرتد شول، بیا مسلمانان شول، او صحابه کرامو یو ته هم دَ نکاح دَ نوی کولو حکم اُونهٔ کړو، په دے وجه مونږه دَ صحابو دا متفقه فیصله قبلوُو او دَ قیاس نه خلاف دا خیره منو چه کله ښځه خاوند په یو وخت مرتد شی نو دَ هغوی نکاح نهٔ ماتیږی - (المبسوط، فتح القدیر، الفقه علی المذاهب الاربعه) -

يَحۡكُمُ بَيۡنَكُمۡ ۚ وَاللّٰهُ عَلِيۡمٌ حَكِيۡمٌ ﴿۱۰﴾ وَاِنۡ فَاتَكُمۡ شَىۡءٌ مِّنۡ اَزۡوَاجِكُمۡ اِلَى الۡكُفَّارِ فَعَاقَبۡتُمۡ فَاٰتُوا الَّذِيۡنَ ذَهَبَتۡ اَزۡوَاجُهُمۡ مِّثۡلَ مَاۤ اَنۡفَقُوۡا ؕ وَاتَّقُوا اللّٰهَ الَّذِىۡۤ اَنۡتُمۡ بِهٖ مُؤۡمِنُوۡنَ ﴿۱۱﴾

هغه ستاسو په منځ کښې فیصله کوي او الله ویر پوهه او د حکمت خاوند دے۔ او که چرے ستاسو د کافرو ښځو د مهرونو نه څه تاسو ته د کافرانو نه واپس مِلاؤ نهٔ شي او بیا پرِ ستاسو وار راشي نو د کومو خلقو ښځے چه هلته پاتے شوې دي هغوئ له هغومره پیسے ورکړئ چه هغه د هغوئ د ورکړے شوو مهرونو برابر وي[۱۷] - او د هغه الله نه یرَه کوئ چه تاسو پرِ ایمان راوړے دے -

که چرے خاوند مُرتد شي او ښځه مسلمانه پاتے شي نو د حنفیانو او مالکیانو په نیز به فوراً نکاح ماتیږي، خواه که څکښے شوے کور والے شوے وي او که نهٔ وي - لیکن شافعیانو او حنبلیانو وائي چه که چرے د کور والے نه مخکښے داسے شوے وي نو فوراً به نکاح ماتیږي او که د کور والے نه روستو داسے شوے وي نو نکاح به د عدّت د مودے پورے باقي وي، په دے دوران کښې که هغه سړے مسلمان شو نو نکاح به برقراره پاتے شي کنه نو د عدّت د ختمیدو سره به د ارتداد د وخت نه نکاح ماته شمار لے کیږي، یعني ښځه به بیا نوے عدّت نهٔ تیروي - د ټولو وارو فقهاؤ په دے بانډِ اتفاق دے چه که چرے د کور والی نه مخکښے دا معامله پیښه شوې وي نو د ښځے نیم مهر حق دے او که د کور والی نه روستو پیښه شوې وي نو پوره مهر ئے حق دے -

او که چرے ښځه مرتده شوې وي نو د حنفیانو پخوانی فتویٰ دا وه چه په دے مسئله کښې به هم نکاح فوراً ماتیږي، لیکن په روستني دور کښې د بلخ او د سمرقند عالمانو دا فتویٰ ورکړه چه د ښځے د مرتد کیدو په وجه فوراً جدائي نهٔ واقع کیږي، او د دے نه د هغوئ مقصد دا دے چه خبرې ئے پوهه هسے نه ښځے د خاوندانو نه د ځان خلاصولو د پاره د ارتداد په لاره ټک شروع نه کړي - د مالکیانو فتویٰ هم د دے سره تقریباً یو شان ده - هغوئ وائي که چرے د حالاتو نه دا معلومیږي لمچه ښځے صرف د خاوند نه د جدائي حاصلولو د پاره د حیلے په طور د کفر لار اختیار کړې ده نو جُدائي به نهٔ واقع کیږي - شافعیان او حنبلیان وائي چه د ښځے د ارتداد په مسئله کښې هم قانون هغه دے کوم چه د سړي د ارتداد په مسئله کښې دے، یعني که د کور والي نه مخکښے مرتده شوه نو فوراً به نکاح ماتوي، او که د کور والی نه روستو مرتده شوه نو د عدّت د تیریدو پورے به نکاح باقي وي، په دے دوران کښې که هغه مسلمانه شوه نو نکاح به برقرار پاتے وي، کنه نو د عدّت د تیریدو سره به د ارتداد د وخت نه نکاح ماته شمار لے کیږي - د مهر په باره کښې په دے خبره بانډِ اتفاق دے چه د کور والی نه مخکښے که ښځه مرتده شوې ده نو هغے ته به هیڅ مهر نهٔ مِلاویږي،

اوکه چرته د کوروالی نه روستو هغه مُرتده شوی وه نو پوره مَهر به ورته ملاویږی (المبسوط هدایه ـ فتح القدیر ـ المُغنی ـ الفقه علی المذاهب الاربعه) ـ

**۱۷ـه** د دے مسئلے دوه شکلونه دی او دا آیت د دواړو سره لګی ،

یو شکل دا وُو چه د کومو کافرانو سره د مسلمانانو معاهده وُو او د هغوئ سره مسلمانانو دا فیصله کول اُوغوښتل چه کومو ښځو هجرت کړے دے او مونږ ته راغلی دی د هغوئ مَهر به مونږ واپس درکوُو ، او زمونږ د خلقو چه کومے کافرانے ښځے هلته پاتے شوی دی د هغوئ مَهر تاسو واپس کړئ ـ لیکن هغوئ دا خبره قبول نهٔ کړه ـ نو امام زُهری وائی چه د الله تعالیٰ د حکم مطابق خو مسلمانان د هغه ښځو مَهرونو واپس کولو ته تیار شوکومے چه د مشرکانو سره په مکه کښے پاتے شوی وے ، لیکن مشرکانو د هغه ښځو د مَهرونو واپس کولو نه انکار اُوکړو کومو چه هجرت کړے وُو او مسلمانانو له راغلے وے ـ په دے باندے الله تعالیٰ حکم اُوکړو چه د مهاجرو ښځو کوم مَهرونه به تاسو مشرکانو ته واپس کوئ هغه دِ هغوئ ته د لیږلو په ځائے په مدینه کښے راجمع کړے شی او چه کوم خلق به د مشرکانو نه خپل ورکړی مَهرونه واپس اخلی په هغوئ کښے دِ هر یو ته هغومره پیسے ورکړے شی څومره چه هغوئ له د کافرانو نه وصولی کول پکار وُو ـ

دویم شکل دا وُو چه د کومو کافرانو سره د مسلمانانو معاهده نهٔ وه د هغوئ د علاقو نه هم ډیرو سړو اسلام قبول کړے وُو او دار الاسلام ته راغلی وُو او د هغوئ کافرانے ښځے هلته پاتے شوی وے ـ د هغوئ په باره کښے دا فیصله اُوشوه چه هم په دار الاسلام کښے دِ ادل بدل اُوکړے شی ـ هر کله چه د کافرانو نه څه مَهر واپس نهٔ ملاویدو نو هغوئ ته دِ هم مَهر نهٔ واپس کړے کیږی ـ د دے په ځائے چه کومه ښځه دلته راغلی ده د هغے د بدلے مَهر دِ هغه سړی له ورکړے شی چه د چا ښځه هلته پاتے شوی ده ـ

لیکن که په دے طریقه حساب برابر نشی ، اوچه د کومو مسلمانانو ښځے هلته پاتے شوی دی د هغوئ مَهرونه د هجرت کوُنکو مسلمانو ښځو د مَهرونو نه زیات وی ، نو حکم اُوشو چه د هغه مالِ غنیمت نه دِ باقی پیسے ورکړے شی کوم چه د کافرانو سره په جنګ کښے د مسلمانانو لاس ته راغلے وی ـ د ابن عباسؓ روایت دے چه د کوم سړی د حصے مَهر به هغه ته ادا نهٔ کړے شو نو نبی صلی الله علیه وسلّم به حکم اُوکړو چه د دهٔ کمے دِ د مالِ غنیمت نه پوره کړے شی (ابن جریر) ـ دا مسلک عطاء ، مُجاهد ، زُهری ، مسرُوق ، ابراهیم نَخعی ، قَتاده ، مُقاتِل او ضحاک اختیار کړے دے ـ دوئ ټول وائی چه د کومو خلقو مَهر کافرانو ته پاتے شوے وی ، د هغوئ بدله دِ د هغه مالِ غنیمت نه ورکړے شی کوم چه د کافرانو نه لاس له راغلے وی ، یعنی د غنیمتونو د تقسیمولو نه مخکښے دِ د دے خلقو پاتے شوے مَهر دوئ له ورکړے شی او پس د هغے دِ تقسیم اُوشی چه په هغے کښے دِ دوئ ته هم د نورو ټولو مجاهدینو هومره برابر حصه ملاوُ شی ـ څینی فقهاء دا هم وائی چه صرف د مالِ غنیمت نه نهٔ بلکه د فے د مال نه هم د داسے خلقو کمے پوره کیدے شی ـ لیکن د عالمانو یوے لوئے ډلے دا مسلک قبول کړے نهٔ دے ـ

يَاَيُّهَا النَّبِيُّ اِذَا جَآءَكَ الْمُؤْمِنٰتُ يُبَايِعْنَكَ عَلٰٓى اَنْ لَّا يُشْرِكْنَ بِاللّٰهِ شَيْـًٔا وَّلَا يَسْرِقْنَ وَلَا يَزْنِيْنَ وَلَا يَقْتُلْنَ اَوْلَادَهُنَّ وَلَا يَاْتِيْنَ بِبُهْتَانٍ يَّفْتَرِيْنَهٗ بَيْنَ اَيْدِيْهِنَّ وَاَرْجُلِهِنَّ وَلَا يَعْصِيْنَكَ فِيْ مَعْرُوْفٍ فَبَايِعْهُنَّ وَاسْتَغْفِرْ لَهُنَّ اللّٰهَ ؕ

اے نبیؐ، کله چه تاته مومنانے ښځے دَ بیعت کولو دَ پاره راشی[۱۸] او دَ دے خبرې وعدهٔ درسره کوی چه هغوی به دالله سره هیڅ څیز نهٔ شریکوی، نهٔ به غلا کوی[۱۹]، نهٔ به زنا کوی، نهٔ به خپل اولاد وژنی[۲۰]، نهٔ به دَ خپلو لاسونو او خپو مخے ته بُهتان راوړی[۲۱] او نهٔ به دَ نیکئ په کار کښے ستا نافرمانی کوی[۲۲]، نو دَ هغوئ سره بیعت اُوکړه[۲۳] او دَ هغوئ په حق کښے دَ الله نه دَ بخښنانے دُعا اُوغواړه،

[۱۸] لکه څنګه چه مونږ د مخکښے وئیلی دی، دا آیت دَ مکے دَ فتحے نه څه لږ مخکښے نازل شوے وُو- دَ دے نه روستو چه کله مکه فتحه شوه نو دَ قریشو خلق دَ نبیؐ سره دَ بیعت کولو دَ پاره ډلے ډلے حاضریدل شروع شول - نبیؐ پخپله دَ صفا په غرباندِ دَ سړونه بیعت واخستو او حضرت عُمرؓ ئے دَ خپل طرفنه مقرر کړو چه دَ زنانو نه بیعت واخلی او دَ هغه خبرو اقرار ترِ واخلی کوم چه په دِ دے آیت کښے بیان شوی دی (ابن جریر په روایت دَ ابن عباس، ابن ابی حاتم په روایت دَ قتاده) - بیا چه کله نبیؐ مدینے ته واپس لاړو نو حکم ئے اُوکړو چه دَ انصارو ښځے دِ یو کور ته راجمع شی او دَ هغوئ نه دَ بیعت اغستلو دَ پاره ئے حضرت عُمرؓ وراُولیږو (ابن جریر، ابن مَردُویه، بزّار، ابن حِبّان په روایت دَ امّ عطیّه انصاریه) - دَ اختر په ورځ هم چه کله نبیؐ سړو ته خطبه اُووئیله نو بیا دَ ښځو طرفته لاړو او هلته ئے دَ خپلے خُطبے په دَوران کښے دا آیت تلاوت کړو او دَ هغه خبرو وعده ئے ترِ واغستله کومے چه په دے آیت کښے ذکر شوی دی (بخاری په روایت دَ ابن عباس) - دَ دے موقعونه علاوه به هم په مختلفو وختونو کښے یوه یوه ښځه هم او ډیرے ښځے هم دَ نبیؐ په خدمت کښے حاضریدلے او بیعت به ئے کولو چه ذکر ئے په ډیرو احادیثو کښے راغلے دے -

[۱۹] په مکه کښے چه کله دَ ښځو نه بیعت اغستلے کیدو نو په هغه وخت کښے دَ حضرت ابوسفیان ښځے هِند بنت عُتبه دَ دے حکم په تشریح کښے دَ نبیؐ نه تپوس اُوکړو چه اے دَ الله رسوله، ابوسفیان لږ شان بخیل سړے دے، آیا ماته به په دِ دے کښے څهٔ ګناه وی چه څهٔ دَ خپل ځان او دَ خپل بال بچ دَ ضرورتونو دَ پاره دَ هغه دَ تپوس نه بغیر دَ هغه دَ مال نه څهٔ راخلم؟ نبیؐ اُوفرمائیل چه نهٔ، لیکن دَ معروف دَ حده پورے اخله - یعنی بس دومره مال اخله چه هغه واقعی دَ جائزو ضرورتونو دَ پاره کافی وی (احکام القرآن، ابن عربی) -

**۲۰ه** په دے کښې اسقاطِ حمل (یعنی دَ خیټې نه کچه بچے لرے کول) هم شامل دی خواه که هغه جائز حمل لرے کول وی او که ناجائزه حمل۔

**۲۱ه** دَ دے نه دوه قسمه بهتان مُراد دے۔ یو دا چه یوه ښځه په نورو ښځو باندِ دَ پردو سړو سره دَ آشنایئ کولو تهمتونه لګوی او دا قسم خبرے په خلقو کښې خورَوی، ځکه چه په ښځو کښې خاص طور دَ دے خبرو دَ مشهورَولو مَرض پروت وی۔ دوَیم دا چه یوه ښځه بچے دَ بل سړی نه راوړی او خپل خاوند له یقین ورکوی چه دا هم ستا بچے دے۔ په ابوداؤد کښې دَ حضرت ابوهریرهؓ روایت دے چه هغه دَ نبیؐ نه دا اَوریدلی دی چه "کومه ښځه یو خاندان ته داسے بچے راوړی چه هغه دَ هغه خاندان نهٔ وی، نو دَ هغې دَ الله سره هیڅ واسطه نشته، او هغه به الله تعالیٰ هیڅ کله جنّت ته داخله نهٔ کړی۔

**۲۲ه** په دے لنډه شان فقره کښې دوه لوئے لوئے اهمے قانونی نکتے بیان کړے شوی دی، اوله نکته دا ده چه دَ نبی صلی الله علیه وسلم په اطاعت باندِ هم دَ اطاعت فی المعروف قید لګولے شوے دے، حالانکه دَ نبیؐ په حقله دَ دے خبرې څه معمولی غوندِ شک هم نهٔ وُو چه هغه به کله دَ منکر دَ پاره هم حکم اُوکړی۔ دَ دے نه دا خبره ښکاره معلومه شوه چه په دُنیا کښې دَ خدائے دَ قانون نه بهر دَ یو مخلوق اطاعت نشی کیدے، ځکه چه هرکله دَ خدائے دَ رسولؐ دَ اطاعت سره دَ معروف شرط لګولے شوے دے نو بیا بل څوک داسے کیدے شی چه دَ هغه اطاعت دِ بے شرطه وی او دَ هغه یو داسے قانون یا قاعده یا رِیواج دِ اُومنلے شی چه هغه دَ خدائے دَ قانون نه خلاف وی۔ دا قاعده رسول الله صلی الله علیه وسلّم په دِ دے الفاظو کښې بیان کړی ده، لا طاعة فی معصیّة الله، انما الطاعة فی المعروف۔" دَ الله په نافرمانئ کښې اطاعت نشته، اطاعت صرف په معروف کښې دے۔" (مُسلم، ابوداؤد، نَسائیؒ)۔ هم دا خبره لویو لویو عالمانو دَ دے آیت نه را ایستلی ده۔ حضرت عبدالرحمٰن بن زید بن اسلم فرمائی،

"الله تعالیٰ دا اُونهٔ فرمایل چه هغوئ دِ ستا نافرمانی اُونه کړی، بلکه دا ئے اُوفرمایل چه هغوئ دِ په معروف کښې ستا نافرمانی اُونهٔ کړی۔ نو هرکله چه الله تعالیٰ دَ نبیؐ تا اطاعت سره دَ معروف شرط لګولے دے نو دَ بل چا څه حق کیدے شی چه دَ معروف نه سِوا دِ په یوه معامله کښې دَ هغه اطاعت اُوکړے شی" (ابن جریر)۔

امام ابوبکر جصّاص لیکی،

" الله ته معلومه وه چه دَ هغه نبی هیڅکله دَ معروف نه سِوا دَ بل څیز حُکم نهٔ کوی، بیا هم هغه دَ خپل نبی دَ نافرمانئ نه دَ منع کولو دَ پاره دَ معروف شرط اُولګوُو چه چرته څوک تر دَ دے خبرې ګنجائش را اُونهٔ باسی چه دَ بادشاهانو اطاعت وِ په هغه حالت کښې هم کیږی کله چه دَ هغوئ حکم دَ الله په اطاعت کښې نهٔ وی۔ دَ نبی صلی الله علیه وسلّم حکم دے چه من اطاع مخلوقاً فی معصیّة الخالق سلّط الله علیه ذٰلک المخلوق، یعنی څوک چه دَ خالق په نافرمانئ کښې دَ مخلوق اطاعت اُوکړی، الله تعالیٰ به هغه باندِ هم هغه خلق مسلّط کوی" (احکام القرآن)۔

علامه آلوسی فرمائی :

"داحکم دَ هغه جاهلانو دَ خیال تردید کوی چه هغوئ وائی چه دَ اولی الامر اطاعت بالکل لازم دے ۔ الله تعالیٰ خو دَ رسول په اطاعت باندِ هم دَ معروف قید لګولے دے ، حالانکه رسول هیڅکله دَ معروف نه سِوا بل څه حکم نهٔ کوی ۔ دَ دے مقصد دا دے چه خلق دَ دے خبری نه خبردار شی چه دَ خالق په نافرمانئ کښے دَ هیچا اطاعت اجازت جائز نهٔ دے"

(روح المعانی) ۔

ثابته شوه چه په حقیقت کښے داحکم په اسلام کښے دَ قانون دَ حکمرانئ (Rule of Law) بُنسیاد دے ۔ اصولی خبره داده چه کوم کار دَ اسلامی قانون خلاف وی هغه جُرم دے او هیڅوک دا حق نهٔ لری چه دَ داسے یو کار حکم چاته اُوکړی ۔ هرڅوک چه دَ قانون نه خلاف حکم کوی هغه پخپله مُجرم دے ، او څوک چه دَ هغه حکم منی هغه هم مُجرم دے ۔ یو ماتحت سړے په دِے عُذر دَ سزا نه نشی بچ کیدے چه دَ هغه بالا افسر هغه ته دَ یو داسے کار حکم کړے وُو چه هغه په قانون کښے جُرم دے ۔

په آئینی حیثیت سره چه بله کومه خبره ډیر اهمیت لری هغه داده چه په دِے آیت کښے مخکښے دَ پنځو خیزونو دَ نهٔ کولو حکم شوے دے او بیا ورپسے صرف دَ یو خیز دَ کولو حکم شوے دے او هغه دا چه په ټولو نیکو کارونو کښے به دَ نبی صلی الله علیه وسلم حکم منلے کیږی ۔ تر څو چه دَ بدئ دَ نهٔ کولو خبره ده نو هغه لوئے لوئے بدیانے په ګوته کړے شوے کومے چه به دَ جاهلیت دَ زمانے ښځو کولے او دَ هغے دَ نهٔ کولو وعده دَ مسلمانو ښځو نه واغستلے شوه ، لیکن څومره چه نیک کارونه دی هغه په ګوته نهٔ کړے شو چه تاسو به فلانے فلانے نیک کار کوئ بلکه دَ هغے په ځائے صرف دا وعده واغستلے شوه چه دَ کوم نیک کار حکم نبیؐ کوی په هغے به تاسو ځا عمل کوئ ۔ اوس دا ښکاره خبره ده که چرے هغه نیک عملونه صرف هغه وی دَ کوم دَ حکم چه الله تعالیٰ په قرآن مجید کښے کړے دے نو وعده په دِے الفاظو کښے اغستل پکار وُو چه "تاسو به دَ الله نافرمانی نهٔ کوئ" یا دا چه "تاسو به دَ قرآن دَ حکمونو نافرمانی نهٔ کوئ" ۔ لیکن هرکله چه وعده په دِے الفاظو کښے واغستلے شوه چه "دَ کوم نیک کار حکم رسول الله صلی الله علیه وسلم کوی تاسو به دَ هغه خلاف ورزی نهٔ کوی" نو دَ دے نه پخپله دا نتیجه را اوزی چه دَ خلقو دَ اصلاح دَ پاره نبیؐ له ډیر فراښه اختیارات ورکړے شوی دی او دَ هغه ټول حکمونه واجب الاطاعت دی یعنی دَ هغه دَ ټولو حکمونو منل واجب دی خواه که هغه په قرآن مجید کښے وی او که نهٔ وی ۔

دَ دے آئینی اختیار په وجه رسول الله صلی الله علیه وسلّم دَ بیعت اغستلو په وخت کښے دَ هغه کمزورو ګناهونو پریښودلو وعده واغستله کوم چه په هغه وخت کښے دَ عربو په ښځو کښے عام وُو او په دِے داسے حکمونه ئے اُوکړل کوم چه په قرآن مجید کښے ذکر کړے شوی نهٔ دی ۔ دَ دے دَ پاره لاندینی حدیثونه اُوګوره :

دَ ابن عباسؓ ، ام سلمه او ام عطیهؓ انصاریه وغیره روایتونه دی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم کله دَ ښځو نه بیعت اغستلو نو دا وعده ئے تر وا غستله چه هغوی به په مړو باندِ ماتم (یعنی ژړا انګولا او مخ سر وهل) نهٔ کوی ۔ دا روایتونه بُخاری ، مُسلم ، نسائیؒ او ابن جریر نقل کړی دی ۔

دَ ابن عباس په یو روایت کښے دا تفصیل دے چه نبیؐ حضرت عمرؓ ته حکم اُوکړو چه دَ ښځُونه بیعت واخلی او هغوی دَ ماتم کولونه منع کړی، ځکه چه دَ جاهلیت په زمانه کښے به ښځو په مړو باندِ ماتم کولو، جامے به ئے شلولے، مخ به ئے را شوکولو، ویښته به ئے پریکول او سخته واویلا به ئے کوله (ابن جریر).

زید بن اسلم روایت کوی چه نبیؐ دَ بیعت په وخت کښے ښځے دَ دے نه منع کړے چه په مړو ماتم اُوکړی، مخ را اُوشوکوی، گریوان اُوشلوی، چغے سورے اُووهی او دَ ژړا په رنګ کښے ستاینے اُوکړی۔ (ابن جریر)۔ دغه رنګ یو روایت ابن ابی حاتم او ابن جریر دَ یوے دا سے ښځے نه نقل کړے دے چه هغه په بیعت کونکو کښے شامله وه۔

قتادهؒ او حسن بصریؒ وائی چه کومے وعدے نبیؐ دَ بیعت په وخت کښے دَ ښځُونه اغستلے وے په هغے کښے یوه وعده دا وه چه هغوی به دَ غیرمحرمه سړو (یعنی چه نکاح ئے ورسره کیږی دَ هغه سړو) سره خبری نهٔ کوی۔ دَ ابن عباس په روایت کښے دَ دے دا وضاحت دے چه دَ غیرمحرمه سړو سره به په ځان له ځائے کښے خبری نهٔ کوی۔ قتاده زیات وضاحت داکړے دے چه دَ نبیؐ دَ دے حکم په اوریدو سره حضرت عبدالرحمٰن بن عوف عرض اُوکړو چه کله دا سے اُوشی چه موږ په کورکښے نهٔ یو او خوک کورته دَ ملاویدو دَ پاره راشی۔ نبیؐ اُوفرمائیل چه ځما مُراد دا نهٔ دے۔ یعنی دا منع نهٔ دی چه ښځه چاته دومره خبره اوکړی چه "هغه" په کورکښے نشته (دا روایتونه ابن جریر او ابن ابی حاتم نقل کړی دی)۔

دَ حضرت فاطمےؓ دَ ترور اُمیمهؓ بنت رُقیقه نه حضرت عبداللهؓ بن عمرو بن العاص دا روایت نقل کړے دے چه نبیؐ د هغوی نه دا وعده واغستله چه ماتم به نهٔ کوئ او دَ جاهلیت پشان به په ډول سنګار سره خپل نمائش نهٔ کوئ (مُسندِ احمد، ابن جریر)۔

دَ نبیؐ یوه ترور سلمٰی بنت قیس وائی چه کله دَ انصارو دَ یو څو ښځو سره دَ بیعت دَ پاره لاړم نو نبیؐ دَ قرآن دَ دے آیت مطابق زمونږ نه وعده واغستله، بیا ئے اُوفرمائیل "ولا تغششن ازواجکن"، "دَ خپلو خاوندانو سره دوکه بازی مهٔ کوئ"۔ چه کله موږ واپس شو نو یوے ښځے ماته اُووئیل چه لاړه شه او دَ نبیؐ نه تپوس اُوکړه چه دَ خاوندانو سره دَ دوکه بازئ کولو څه مطلب دے؟ څه لاړم تپوس مِ اُوکړو نو نبیؐ اُوفرمائیل تا خـذ ماله فتحابی به غیره" دا چه ته دَ هغه مال را واخلے او په بل باندِ ئے اُوشیندے"، (مسند احمد)۔

امّ عطیهؓ فرمائی چه دَ بیعت اغستلو نه روستو نبیؐ موږ ته حکم اُوکړو چه تا سو به دَ اخترونو مونځونو ته حاضریږئ۔ البته دَ جمعے مونځ په تاسو باندِ فرض نهٔ دے، او دَ جنازو سره مهٔ ځئ (ابن جریر)۔

کوم حلق چه دَ نبیؐ دے آئینی اختیاراتو نه دَ رسالت په ځائے دَ امارت حیثیت ورکوی او وائی چه هغه چونکه دَ خپل وخت حکمران هم وُو نو په دے وجه چه په دے حیثیت کښے هغه کوم حکمونه کړی دی دَ هغے منل صرف دَ هغه په زمانه کښے واجب وُو، نو هغوی ډیره دَ جهالت خبره کوی۔ په پاسنو کرښو کښے چه موږ دَ نبیؐ کوم حکمونه نقل کړی دی په هغے یو نظر واچوئ۔ په هغے کښے چه دَ ښځُو دَ صحیح کولو دَ پاره نبیؐ کومے خبری کړی دی هغه که چرے دَ هغه وخت دَ حکمران کیدو په حیثیت سره وے نو دَ ټولے دُنیا دَ مسلمانانو په ښځو کښے دا اصلاحات دَ همیشه همیشه دَ پاره څنګه جاری شوے وے؟ آخر دَ دُنیا هغه کوم حاکم دے چه هغه ته دا مرتبه حاصله وی

چه دَ هغه دَ ځلے نه کوم حکم اُوزی او دَ زمکے په مخ چه په کوم کوم ځائے کښے مسلمانان آباد وی هلته دَ هميشه دَ پاره هغه اصلاح جاری شی دَ کوم چه هغه حکم کړے وی؟ (دَ زيات تشريح دَ پاره اُوګورۂ تفهيم القرآن، پنځم جلد، تفسير دَ سورۃ حشر، حاشيه ۱۵)۔

۲۳ دَ معتبرو کتبو احاديثو نه معلوميږی چه دَ رسول الله صلی الله عليه وسلم په زمانه کښے دَ ښځو نه دَ بيعت اغستلو طريقه دَ سړو دَ بيعت نه مختلفه وه ۔ دَ سړو نه دَ بيعت اغستلو طريقه داوه چه بيعت کونکی به دَ نبیؐ په لاس کښے لاس ورکړو او وعده به ئے کوله ۔ ليکن دَ ښځو نه دَ بيعت اغستلو په وخت کښے نبیؐ هيڅکله دَ ښځے لاس په خپل لاس کښے نۂ دے اغستے بلکه نورے مختلفے طريقے ئے اختيار کړے ۔ په دے باره کښے چه کوم روايتونه نقل کړے شوی دی هغه مونږ ه لاندِ ليکو؛

حضرت عائشهؓ فرمائی چه "په خدائے مِ قسم وی چه په بيعت اغستلو کښے دَ نبیؐ لاس هيڅکله دَ يوے ښځے دَ لاس سره نۂ دے لګيدلے ۔ نبیؐ چه به دَ ښځے نه بيعت اغستلو نو بس په ژبه به ئے دا اُوفرمائيل چه ما ستانه بيعت واغستو" (بخاری ۔ ابن جرير)۔

اُمَيمه بنت رُقيقه بيان کوی چه څه او يو څو ښځے دَ بيعت دَ پاره نبیؐ له لاړو او هغه دَ قرآن دَ دے آيت مطابق زمونږ نه وعده واغستله ۔ کله چه مونږ ه اُوويئيل "چه مونږ به په معروف کښے ستا نافرمانی نۂ کوُو" نو نبی اُوفرمائيل، فيما استطعتن و اطقتن، "ترڅو چه ستاسو په وَس کښے وی او ستاسو دَ پاره ممکن وی" مونږ ه عرض اُوکړو "الله او دَ هغه رسول زمونږ دَ پاره ځپله زمونږ نه زيات رحيم دے"۔ بيا مونږه عرض اُوکړو اے دَ الله رسوله لاس دِ را اوږد کړه چه مونږه ستاسو بيعت اُوکړو ۔ نبیؐ اُوفرمائيل څه دَ ښځو سره لاس نۂ مِلاوَم، بس څه به ستاسو نه وعده اخلم ۔ نو هغه زمونږ نه وعده واغستله ۔ په يو بل روايت کښے دَ هغے بيان دے چه نبیؐ په مونږ کښے دَ يوے ښځے سره هم لاس مِلاوُ نۂ کړل (مُسندِ احمد، ترمذی، نسائی، ابن ماجه، ابن جرير، ابن ابی حاتم)۔

ابوداوُد په مراسيل کښے دَ شعبی روايت نقل کړے دے چه دَ ښځو نه دَ بيعت اغستلو په وخت کښے يو څادر دَ نبیؐ طرفته را اوږد کړے شو ۔ نبیؐ بس هغه په لاس کښے را واغستو او وِے فرمائيل څه دَ ښځو سره لاس نۂ مِلاوَم ۔ هم دا حديث ابن ابی حاتم دَ شَعْبِی نه او عبدالرزاق دَ ابراهيم نخعی نه او سعيد بن منصور دَ قيس بن ابی حازم نه نقل کړے دے ۔

ابن اسحاق په مَغازی کښے دَ اَبان بن صالح نه روايت نقل کړے دے چه نبیؐ به دَ اُوبو په يو لوښی کښے لاس کيښودلو، او بيا به هم په هغه لوښی کښے ښځے خپل لاس کيښودلو ۔

په بُخاری کښے دَ حضرت عبدالله بن عباس روايت دے چه دَ اختر دَ خطبے ورکولو نه روستو نبیؐ دَ سړو دَ صفونو نه هغه ځائے ته لاړو په کوم ځائے کښے چه ښځے ناستے وے ۔ نبیؐ هلته په خپل تقرير کښے دَ قرآن مجيد دا آيت اُولوستو، بيائے دَ ښځو نه تپوس اُوکړو آيا تاسو دَ دے وعده کوئ؟ په مجلس کښے يوے ښځے جواب ورکړو چه هَو اے دَ الله رسوله ۔

يو روايت ابن حِبّان، ابن جرير او بزّار وغيره نقل کړے دے، په هغے کښے دَ اُمّ عَطيّه دا بيان دے چه

إِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿۱۲﴾ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَتَوَلَّوْا قَوْمًا غَضِبَ اللَّهُ عَلَيْهِمْ قَدْ يَئِسُوا مِنَ الْآخِرَةِ كَمَا يَئِسَ الْكُفَّارُ مِنْ أَصْحَابِ الْقُبُورِ ﴿۱۳﴾

یقیناً الله بخښونکے او رحم کونکے دے۔

اے هغه خلقو چه ایمان مو راوړے دے، هغه خلق دوستان مه جوړوئ چه په کومو الله غضب کړے دے، چه د آخرت نه داسے نا اُمیده دی لکه څنګه چه په قبرونو کښے پراته کافران نا اُمیده دی۔[۲۲]

" نبیؐ د کور د بهر نه لاس را اُوږد کړو او مونږ د دننه نه لاسونه ور اُوږده کړل "، لیکن د دے نه دا نه لازمیږی چه ښځو به د هغه سره لاس هم ملاؤ کړی وی، ځکه چه اُمّ عطیهؓ د لاس ملاو ولو ذکر کندونه نه ده کړے۔ غالباً چه به دے موقع به داسے کار شوے وی چه د وعدے اخستلو په وخت کښے به نبیؐ د بهر نه لاس ور اُوږد کړے وی او د دننه نه به ښځو خپل لاسونه د نبیؐ طرفته ور اُوږده کړی وی او د هیڅ لاس به د هغه د لاس سره نه وی لګیدلے۔

[۲۲] اصل الفاظ دی قَدْ يَئِسُوا مِنَ الْآخِرَةِ كَمَا يَئِسَ الْكُفَّارُ مِنْ أَصْحَابِ الْقُبُورِ د دے دوه معنی کالے کیدے شی۔ یوه دا چه هغوی د آخرت د خوشحالئ او هغے د ثوابونو نه هغسے نا اُمیده دی لکه څنګه چه د مرګ نه روستو د ژوند نه انکار کونکی خلق د دے خبری نه نا اُمیده دی چه د هغوی کوم خپل خپلوان قبرونو ته تلی دی هغوی به بیا ژوندی کړے شی۔ دویمه معنی دا کیدے شی چه هغوی د آخرت د رحمت او بخښنا نه هغسے نا اُمیده دی لکه څنګه چه په قبرونو کښے پراته کافران د هر خیر نه نا اُمیده دی، ځکه چه د هغوی د خپلو عذابیدو یقین راغلے دے۔ دا معنی د عبدالله بن مسعودؓ، او مجاهد، عکرمه، ابن زید، کلبی، مقاتل او منصور رحمهم الله نه نقل کړے شوی ده۔

# الصَّفّ

**نوم** دا نوم د څلورم آیت د فقرې يُقَاتِلُوْنَ فِيْ سَبِيْلِهٖ صَفًّا نه اغستې شوې دې - مُراد دا دے چه دا هغه سورة دے چه په هغې کښې لفظ صف راغلے دے -

**د نازليدو زمانه** د معتبر روايت نه د دے د نازليدو زمانه معلومه نۀ شوه ليکن د دے په مضمونونو باندې د غورکولو نه دا اندازه لږي چه دا به غالباً د جنګِ اُحد سره په جوخته زمانه کښې نازل شوې وي، ځکه چه په دے کښې کومو حالاتو ته اشاره معلوميږي هغه هم په دغه دَور کښې موندے کيدل -

**موضوع او مضمون** د دے موضوع دا ده چه مسلمانان په خپلو ايمانونو کښې اخلاص را پيدا کړي او د الله په لار کښې جنګ کولو ته تيار شي - په دے کښې د کمزوري ايمان والا مسلمانانو ته هم خبرې شوې دي، او هغه خلقو ته هم چه د ايمان د دروغو دعوې ئې کړې وه او په اسلام کښې داخل شوې وُو، او هغه خلقو ته هم چه هغوئ مخلصان وُو - ځينې آيتونه اولنو دواړو ډلو ته دي، په ځينو کښې خبره صرف منافقانو ته شوې ده او په ځينو کښې د خبرو مخه صرف مخلصانو ته ده - د کلام د اندازے نه په خپله معلوميږي چه خبره چاته ده -

په شروع کښې ټولو مومنانو ته خبردارے ورکړے شوے دے چه د الله په نظر کښې هغه خلق ډير خراب دي چه هغوئ وائي يو څه اوکوي بل څه، او هغه خلق ډير ښه دي چه د حق په لاره کښې د جنګ د پاره د ويلې کړے شوې سيسے د ديوال پشان مضبوط ولاړ وي -

بيا د پنځم آيت نه د اوم آيت پورے د رسول الله صلی الله عليه وسلّم اُمتيانو ته خبردارے ورکړے شوے دے چه تاسو له د خپل رسول او د خپل دين سره هغه طريقه اختيارول نۀ دي پکار کومه چه بنی اسرائيلو د موسیٰ عليه السّلام او د عيسیٰ سره اختيار کړې وه - حضرت موسیٰ به هغوئ د خدائے رسول ګڼړو او سره د هغې به ئې تنګولو، او د حضرت عيسیٰ څرګند دے نښے هغوئ ليدلے وے او سره د هغې هغه ته د دروغژن ويلو نه منع نۀ شو- نتيجه ئې دا شوه چه د هغه قوم د مزاج لوښے کوږ شو او د هغوئ نه د هدايت توفيق واغستلے شو- داڅه داسے ښه حالت نۀ دے چه بل قوم ورته او پسخيږي او د هغوئ پشان د کيدو آرزو اُوکړي -

بيا په آيت اتم نهم کښې ډير په زور سره اعلان اُوکړے شو چه يهوديان او عيسايان او د هغوئ سره ساز باز لرونکي منافقان د الله د دے نُور د مرکولو که هرڅومره کوشش اوکړي خو دا به ډير په زور سره په ټوله دُنيا کښې خوريږي، او که مشرکان هرڅومره نۀ خوښوي

خو رسول چه کوم دین راوړے دے هغه با خامخا په ټولو دینونو باندې غالب کیږی ـ

دَ دے نه روستو په آیتونو ۱۰ ـ ۱۳ کښے مومنانو ته وېلے شوی دی چه په دُنیا اوپه آخرت کښے دَ کامیابئ لار صرف یوه ده ، او هغه دا ده چه په الله او دَ هغه په رسول باندِ دَ زړهٔ په صدق سره ایمان راوړئ ، او دَ الله په لار کښے په سر و مال سره جهاد اوکړئ ـ په آخرت کښے دَ دے فایئده دَ خدا ئے دَ عذاب نه خلاصے ، دَ گناهونو بخښنانه ، او دَ همیشه همیشه دَ پاره جنّت ملاویدل دی ، او په دُنیا کښے دَ دے انعام دَ خدا ئے امداد او مرسته او فتحه اوکامیابی ده ـ

په آخر کښے مومنانو ته نصیحت شوے دے چه لکه څنگه دَ حضرت عیسیٰ علیه السّلام حواریانو دَ الله په لار کښے دَ هغه سره ملګرتیا کړی وه د غه شان دِ هغوئ هم " انصار الله " جوړ شی چه دَ کافرانو په مقابله کښے هغوئ ته هم هغسے دَ الله تائید او مرسته حاصله شی لکه څنګه چه اولنو مومنانو ته حاصله شوی وه ـ

آیاتها ۱۴ سُوْرَةُ الصَّفِّ مَدَنِيَّةٌ رکوعاتها ۲

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

سَبَّحَ لِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ ۚ وَهُوَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ① يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لِمَ تَقُوْلُوْنَ مَا لَا تَفْعَلُوْنَ ② كَبُرَ مَقْتًا عِنْدَ اللّٰهِ اَنْ تَقُوْلُوْا مَا لَا تَفْعَلُوْنَ ③ اِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ

د الله تسبیح وئیلی ده هر هغه څیز چه په آسمانونو او په ځمکه کښ دے، او هغه غالب او حکیم دے۔[1] اے هغه خلقو چه ایمان مو راوړے، تاسو ولے هغه خبره کوئ چه پوره کوئ ئے نه؟[2] د الله په نزد دا ډیر ناخوښه کار دے چه تاسو اُوکوئ هغه خبره چه پوره کوئ ئے نه۔ د الله خوښیږي هغه خلق دي

[1] دا د دے خطبے مختصر شان تمهید دے۔ د تشریح د پاره اُوګورئ تفهیم القرآن، پنځم جلد، تفسیر د سورة الحدید، حاشیه ۱-۲۔ شروع د دے تمهید نه په دے وجه شوې ده چه وړاندې څه فرمائیلے کیږي چه د هغې د اوریدلو یا لوستلو نه مخکښې سړے په دے خبره ښه پوهه شي چه الله تعالیٰ بے نیاز دے۔ د هغه خدائي د چا په ایمان او د چا په امداد او قربانیو باندې نه چلیږي۔ هغه که مومنانو ته دا نصیحت کوي چه په ایمان کښ اخلاص پیدا کړئ او د صداقت د اُوچتولو د پاره په سر و مال سره جهاد اُوکړئ، نو دا ټول هر څه د هغوئ د خپلے ښیګړے د پاره دی۔ ګنی نو د هغه اراده خاص د هغه په خپل طاقت او په خپل تدبیر سره پوره کیږي، خواه که مخلوق د هغے په پوره کولو کښ د ذرے هومره کوشش هم اُونه کړي، بلکه که ټوله دُنیا وا یو ځائے شي او د هغے مخ نیوي له تیاره شي نو هم به د هغه اراده پوره کیږي۔

[2] د دے حکم یو مطلب خو عام دے کوم چه د دے د الفاظو نه دا معلومیږي۔ او یو مطلب ئے خاص دے کوم چه د وروستنی آیت د یو ځائے کولو سره څرګندیږي۔ اولنے مطلب دا دے چه د یو رښتینی مسلمان په قول او په عمل کښ یو شان والے پکار دے۔ چه څه وائي هغه دې پوره کړي، او چه د کولو نیت یا همت ئے نه وي نو دا خلے نه و خبره نه دې اُوباسي۔ وئیل یو څه او کول بل څه، دا د انسان هغه خراب ترین صفت دے چه د الله په نظر کښ د ټولو نه زیات ناخوښه دے، نو دا اخلاقي عیب به په هغه انسان کښ څنګه راشي چه هغه په الله باندې د ایمان لرلو دعوی کوي۔ نبي صلی الله علیه وسلم څرګند نه کړې ده چه په کوم سړي کښ دا صفت وي نو هغه مومن نه دے بلکه منافق دے۔ په یو حدیث کښ دي چه نبي اُوفرمائیل:

آية المنافق ثلاث (زاد مسلم وان صام وصلّى وزعم انه مسلم) اذا حدث كذب واذا وعد اخلف واذا اؤتمن خان۔ (بخاری او مسلم)

د منافق درې نښې دي اګر که هغه روژه کوي او لمونځ کوي او د مسلمانۍ دعوی کوي، هغه دا چه کله خبرې کوي نو دروغ وائي، او چه کله وعده اوکړي نو د هغې خلاف ورزي کوي او چه امانت ورله حواله کړے شي نو په هغې کښې خيانت کوي۔

په بل حديث کښې بيا فرمائي،

اربع من كن فيه كان منافقاً خالصاً ومن كانت فيه خصلة منهن كانت فيه خصلة من النفاق حتى يدعها، اذا اؤتمن خان، واذا حدث كذب، واذا عاهد غدر، واذا خاصم فجر۔ (بخاری او مسلم)

څلور صفتونه داسې دي چه په کوم سړي کښې هغه څلور واړه وي نو هغه خالص منافق دے، او چه په کوم سړي کښې د هغې نه يو صفت وي نو په هغه کښې د منافقت يو خصلت دے ترڅو چه هغه هغه پريږدي نه وي۔ دا چه کله امانت هغه ته حواله کړے شي نو په هغې کښې خيانت کوي، او چه کله خبرې کوي نو دروغ وائي، او چه کله وعده اوکړي نو د هغې خلاف ورزي کوي۔ او چه کله جنګ کوي نو د اخلاقو حد ماتوي په هغې کښې کوي۔

د اسلام د فقهاؤ تقريباً په دې خبره اتفاق دے چه که چرته يو سړي د الله سره وعده اوکړه (مثلاً د يو څيز نذر ئے اومنلو)، يا ئے د بندګانو سره يو معاهده اوکړه او د چا سره ئې وعده اوکړه نو د هغې پوره کول لازمي دي، ماسوا د دې نه چه هغه کار پخپله ګناه وي د کوم چه هغه وعده کړې وي۔ او که هغه کار ګناه وي د کوم چه هغه کړې ده نو بيا هغه کار نه کول پکار دي، ليکن د هغې د پابندۍ نه د ځان آزادولو د پاره د قسم کفاره ادا کول پکار دي کومه چه د سورة مائدې په آيت ۸۹ کښې بيان کړے شوې ده۔ (احكام القرآن للجصاص و ابن عربي)۔

دا خو د دې آيتونو عام مطلب ـ باقي شو هغه خاص مطلب چه د هغې د پاره په دې موقع دا آيتونه نازل کړے شوي دي نو هغه چه د دې آيت سره روستنۍ آيت يوځائے شي نو پس د هغې څرګنديږي۔ دلته هغه خلق ملامته کول مقصد دي کوم چه به د اسلام د پاره د قربانۍ کولو غټې غټې وعدې کولې، خو چه کله به د آزميښت وخت راغے نو تښتيدل به۔ د کمزوري ايمان والو په دې کمزورۍ باندې په قرآن مجيد کښې په ډير ځايونو کښې ګرفت شوے دے۔ مثلاً د سورة نساء په آيت ۷۷ کښې فرمائي، "تا هغه خلق هم اوليدل چه هغوی ته وئيلے شوي وو چه خپل لاسونه منع اوساتئ او صلوة قائم کړئ او زکوة ورکړئ؟ اوس چه ورته د جنګ کولو حکم اوشو نو په هغوی کښې د يو ډلې حال دا دے چه د خلقو نه داسې يريږي لکه څنګه چه د خدائے نه يريدل پکار دي، يا د دې نه هم زيات۔ وائي چه اے خدايا، دا په مونږ باندې د جنګ کولو حکم ولې اوليکو؟ ولې مونږ له لږ نور مهلت را نه کړو"۔ او د سورة محمد په آيت ۲۰ کښې فرمائي، "چه کوم خلقو

الَّذِيْنَ يُقَاتِلُوْنَ فِيْ سَبِيْلِهٖ صَفًّا كَاَنَّهُمْ بُنْيَانٌ مَّرْصُوْصٌ ④

چه دَ هغه په لارکښې داسې په ترتيب سره جنګيږي لکه چه هغوئ دَ ويلې کړے شوي سيسے ديوال وي[۳]۔

ايمان راوړے دے هغوئ به وئيل چه يو (داسے) سورة وَلے نهٔ نازليږي (چه په هغې کښے دَ جنګ حکم اُوشي ؟)، خوچه کله يو محکم سورت نازل کړے شوچه پکښے دَ جنګ ذکرنهٔ ؤو نو تا اُوليدل چه دَ کومو خلقو په زړونوکښے مرض ؤو هغوئ تاته داسے کوري لکه چه چاته مرګ راروان وي"۔ دَ جنګ اُحُد په موقع داکمزوريانے خاص طور مخے ته راغلے چه هغې ته په سورۂ آلِ عمران کښےِ دَ ديارلسےِ رکوع نه دَ اُوَلسےِ رکوع پورے مُسلسل اِشارے شوي دي۔

مفسرينو دَ دے آيتونو په شانِ نزول کښے دَ هغه کمزوريانو مختلف شکلونه بيان کړي دي؛ په کومو چه دلته بحث شوے دے۔ ابن عباس فرمائي چه دَ جهاد دَ فرض کيدونه مخکښے څه مسلمانان داسے ؤو چه وئيل به ئے چه ارمان دے که موبږ ته هغه عمل معلوم شوے چه هغه دَ الله دَ ټولونه زيات خوښ وي نوموبږ به هم هغه کوُو۔ خوچه کله هغوئ ته اُووئيلے شوچه هغه عمل جهاد دے نوهغوئ ته هغه خپله خبره پوره کول ډيرګران شو۔ مُقاتِل بن حيّان وائي چه دَ اُحُد په جنګ کښے په دِے خلقو آزميښت راغے نودوئ نبيؑ پريښودو او اُوتښتيدل۔ ابن زيد وائي چه ډيرو خلقو به نبي صلی الله عليه وسلم له يقين ورکولو چه که تهٔ دَ دُشمن مقابلے ته اُووتلے نوموبږ به ستاسره اُوزُو۔ خوچه کله دَ وتلو وخت راغے نودَ هغوئ وعدے دروغ اُوختے۔ قتاده او ضحاک وائي چه ځينې خلق به په جنګ کښے شريک هم شو خو څه کار به ئے نهٔ کولو خوچه واپس به راغلل نو دالافِ به ئے کولے چه موبږه داسے اُوجنګيدو اوموبږه داسے داسے وهل اُوکړل۔ داسے خلق الله تعالیٰ په دِے آيتونوکښے ملامته کړي دي۔

[۳] دَ دے نه اوّل خو دا معلومه شوه چه دَ الله تعالیٰ رضا هغه مومنانوته حاصليږي چه هغوئ دَ الله په لارکښے جنګ کولوته او خطرو برداشت کولوته تيار وي۔ دويمه خبره دا معلومه شوه چه دَ الله تعالیٰ کوم فوج خوښ دے په هغې کښے درے صفتونه پکار دي۔ يَودا چه هغه بنهٔ په سوچ سره دَ الله په لارکښے جنګيږي اوپه داسے لارکښے هيڅکله نهٔ جنګيږي چه هغه في سبيل الله نهٔ وي۔ دويم داچه هغوئ بے ترتيبه اوخواره واره نهٔ وي بلکه په مضبوط نظم کښے په ترتيب سره جنګيږي۔ دريم دا چه دَ دُشمنانو په مقابله کښے دَ هغوئ حالت دَ " وِيلې کړے شوي سيسے دَ ديوال " پشان وي۔ بيا دا آخري صفت پخپله دَ معنیٰ نه ډک دے۔يوفوج دَ هغه وخته پورے په ميدانِ جنګ کښے دَ ويلې کړے شوي سيسے دَ ديوال پشان نشي وديدے ترڅو چه پکښے لاندينی صفتونه نهٔ وي پيدا شوي:

—— چه دَ هغوئ په عقيده او مقصد کښے کامل اتفاق وي، چه دَ هغې په وجه دَ هغوئ سپاهيان او افسران پخپلو کښے پوره متحد وي۔

—— چه دَ هغوئ دَ يو بل په خلوص باندِ بروسه وي، او دا بروسه دَ دے نه بغير پيدا کيدے نشي چه ټول په خپل مقصد کښے واقعي مخلص وي او دَ ناپاکو ارادو نه پاک وي۔ کنئ نو جنګ يو داسے سخت آزميښت دے

وَاِذْ قَالَ مُوْسٰى لِقَوْمِهٖ يٰقَوْمِ لِمَ تُؤْذُوْنَنِيْ وَقَدْ تَّعْلَمُوْنَ اَنِّيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ اِلَيْكُمْ ؕ فَلَمَّا زَاغُوْٓا اَزَاغَ اللّٰهُ قُلُوْبَهُمْ ؕ وَاللّٰهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الْفٰسِقِيْنَ ﴿۵﴾

اویاده کړئ د موسٰی هغه خبره چه هغه خپل قوم ته کړې وه چه "اے زما د قوم خلقو، تاسو ماله ولے تکلیف راکوئ حالانکه تاسو ښه پوهه یئ چه زه تاسو ته د الله رالیږلے شوے رسول یم؟" نو هرکله چه هغوی کوږ والے اختیار کړو نو الله د هغوئ زړونه کاږه کړل، الله فاسقانو ته هدایت نهٔ کوی۔[۵]

چه د چا د زړه خبرے پټ نهٔ پاتے کوی، او هرکله چه بروسه ختمه شی نو د فوج سپاهیان په یو بل باندِ د اعتبار کولو په ځائے اُلټا شک کول شروع کړی۔

ــــ چه د هغوئ د اخلاقو یو اُوچت معیار وی، چه که چرے د هغے معیار نه د فوج افسر او سپاهی را اُوغورزیږی نو بیا د هغوئ په زړونو کښے نهٔ د یو بل سره محبت پیدا کیدے شی او نهٔ عزّت، او نهٔ هغوی په خپلو کښے د جنګیدو نه بچ کیدے شی۔

ــــ چه په هغوئ کښے د خپل مقصد سره داسے لیونئ مینه او د هغے د حاصلولو داسے کلکه اراده وی چه هغه په ټول فوج کښے د قربانئ یوه نهٔ بدلیدونکی جذبه پیدا کړی او هغوئ په میدانِ جنګ کښے واقعی د سِیسے د دیوال پشان مضبوط ودریږی۔

دا هغه بُنیادونه وُو چه په هغے باندِ د نبی صلی الله علیه وسلم په مشرئ کښے یو داسے زبردست لښکری تنظیم را اُوچت شو چه د هغے سره په ډغره کښے لوئ لوئ طاقتونه ټوکړے ټوکړے شو او د سوُونو کلونو پورے د دُنیا یو طاقت د هغے مخے ته ټینګ نهٔ شو۔

[۴] په قرآن مجید کښے په ډیرو ځایونو کښے ډیر په تفصیل سره ویلے شوی دی چه بنی اسرائیلو حضرت موسٰیؑ د الله نبی او خپل محسن کنړلو خو بیا ئے هم هغه په قِسما قِسم طریقو سره تنګولو او قِسما قِسم بے وفایانے به ئے د هغه سره کولے۔ د مثال په طور اُوګورئ البقره، آیتونه ۵۱-۵۵-۶۰-۶۷ تا ۷۱۔ النساء ۱۵۳۔ المائده ۲۰ تا ۲۶۔ الاعراف ۱۳۸ تا ۱۴۱-۱۴۸ تا ۱۵۱۔ طٰه ۸۶ تا ۹۸۔ په بائیبل کښے د یهودیانو خپل بیان کړے تاریخ هم د دے قِسم واقعاتو نه ډک دے۔ صرف د نمونے په طور د یو څو واقعاتو د پاره اُوګورئ خروج ۵؛ ۲۰-۲۱-۱۴؛ ۱۱-۱۲-۱۶؛ ۲-۳-۷؛ ۳-۴-ګنتی ۱۱؛ ۱-۱۵-۱۴؛ ۱-۱۰-۱۶، مکمل-۲۰؛ ۱-۵۔ دلته دِ دے واقعاتو ته اِشاره د دے د پاره کیږی چه مسلمانان خبردار شی چه خپل نبی سره هغه سلوک اُونه کړی کوم چه بنی اسراءیلو د خپل نبی سره کړے وُو، کنه نو د هغوئ به هم هغه انجام شی کوم چه د بنی اسراءیلو وُو۔

[۵] یعنی د الله تعالٰی دا طریقه نهٔ ده چه کوم خلق پخپله په کږه لاره تلل غواړی هغوئ دِ خامخا په نیغه لار راوارَوی، او چا چه د هغه نافرمانئ ته مُلا تړلی وی نو هغه ته دِ په زور هدایت اُوکړی۔ د دے نه دا خبره پخپله معلومه شوه چه د یو سړی یا د یو قوم ګمراهی د الله تعالٰی د طرفنه نهٔ شروع کیږی بلکه د هغه سړی یا د هغه قوم د

وَاِذْ قَالَ عِيْسَى ابْنُ مَرْيَمَ يٰبَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ اِنِّيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ

او یاد کړئ د عیسیٰ ابن مریمؑ هغه خبره چه هغه کړې وه چه "اے بنی اسرائیلو، زۀ تاسو ته

طرفه شروع کېږي، البته د الله قانون دا دے چه څوک ګمراهي خوښه کړي نو هغه د هغه د پاره د نېغ لارے نه، بلکه د ګمراهئ اسباب پیدا کوي د دې د پاره چه هغه په کومو غلطو لارو تلل غواړي نو چه لاړ شي - الله تعالیٰ هر انسان له د خپلې خوښې د کار کولو آزادي (Freedom of Choice) ورکړې ده - د دې نه روستو دا فیصله کول د هر انسان پا د هغه خپل کار دے چه هغه د خپل رب د الله تعالیٰ اطاعت کول غواړي او که نه، او نېغه لاره خوښوي او که په کږه لاره تلل غواړي - په دې خوښه کښې د الله تعالیٰ د طرفه څه زور نشته - که څوک د اطاعت او د هدایت لاره خوښه کړي نو الله تعالیٰ هغه په زور ګمراهئ او نا فرمانئ ته نۀ ورد پکه کوي، او که څوک دا فیصله اوکړي چه هغه به خامخا نا فرماني کوي او په نېغه لاره به نۀ ځي نو د الله تعالیٰ دا طریقه هم نۀ ده چه هغه مجبور کړي او د اطاعت او هدایت په لاره ئې راولي - لیکن دا حقیقت ځائے پر حقیقت دے چه څوک کږه لاره خپل ځان د پاره غوره کړي نو په هغې باندې هغه تر هغې پورے پر قدم هم نشي تلے تر څو چه الله تعالیٰ د هغه د پاره هغه اسباب او حالات پیدا نۀ کړي کوم چه په هغې باندې د تګ د پاره ضروري وي - هم دا د الله هغه "توفیق" دے چه په دې باندې د انسان د هر کوشش د کامیابئ دار و مدار وي او س که څوک پوښتي د نیکئ توفیق هم ورته سرله غواړي نه، بلکه الټا د بدئ توفیق غواړي نو هغه ته هم هغه ملاوېږي - او هر کله چه هغه ته د بدئ توفیق ملاوېږي نو د هغې مطابق د هغه د ذهن لوبه کېږي او د هغه د عمل لارے کېږي، آن تر دے پورے چه په هغه کښې د نیکئ د قبلولو صلاحیت بالکل ختم شي - هم دا معنیٰ ده د دے حکم چه "کله هغوی کږوالے اختیار کړو نو الله هم د هغوی زړونه کاږه کړل"! په دې حالت کښې دا خبره د الله د قانون نه خلاف ده چه څوک په خپله ګمراهي غواړي او د ګمراهئ په لټون کښې تېز تېز روان وي او د هغې د پاره خپل تول لګن او کوشش استعمالوي نو هغه به په زور هدایت ته را اوګرځولے شي، ځکه چه په دا سے کولو سره به د آزمېښت او امتحان هغه غرض ختم شي د کوم د پاره چه په دې دنیا کښې انسان ته د خوښولو آزادي ورکړې شوې ده، او په دې طریقه چه انسان ته هدایت ملاو شي او هغه بیا په نېغه لاره روان شي نو مناسب نۀ ده چه په دې باندې هغه د ښه بدلے مستحق شي - بلکه په دې طریقه خو چه ځانته په زور هدایت نۀ ورې ملاو شوے او ځو په وجه هغه په ګمراهئ کښې پاتے شوے وي نو هغه له هم د سزا حقدار کېدل نۀ دي پکار ځکه چه بیا خو د هغه د ګمراهئ پاتے کېدو ذمه واري په الله تعالیٰ باندې راځي او هغه به آخرت کښې د حساب کتاب په وخت کښې دا دلیل پیش کولے شي چه هر کله ستا په قانون کښې په زور نېغې لارے ته د راوستلو قاعده موجوده وه نو تا څه ولے نېغې لارے ته رانۀ وستلم؟ هم دا مطلب دے د دې حکم چه "الله فاسقانو ته هدایت نۀ کوي"! یعنی چه کوم خلقو د خپل ځان د پاره په خپله د فسق او نا فرمانئ لار خوښه کړې ده هغوی ته الله تعالیٰ د اطاعت او فرمانبردارئ په لاره د تللو توفیق نۀ ورکوي.

ــــــــــــ دا د بنی اسرائیلو د ورپسے نا فرمانئ ذکر دے - هغوی نا فرمانئ خو په کومه چه هغوی د خپل تاریخ د ورد په شروع کړے وه - او د هغې نا فرمانئ دا چه د دې دور په آخر کښې هغوی اوکړه چه د هغې نه روستو د همیشه همیشه د پاره په هغوی باندې د خدائے لعنت پریوتو - د دې دواړو واقعو د بیانولو مقصد دا

# إِلَيْكُم مُّصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيَّ مِنَ التَّوْرَاةِ

د الله رالیږلے شوے رسول یم، تصدیق کوونکے یم د هغه توراة چه ځما نه مخکښې راغلې ده او موجوده ده،

دا ده چه که څوک مسلمانان هم د خدائے د رسول سره د بنی اسرائیلو پشان سلوک اوکړی نو انجام به ئے بنه نه وی۔

یعنی د دے فقرے درے معنے دی:

یو دا چه ماخه نا آشنا دین نه دے راوړے بلکه هغه دین مې راوړے دے کوم چه موسیٰ علیه السلام راوړے وو۔ څه د توراة تردید نه کوم بلکه د هغه تصدیق کوم، لکه څنګه چه همیشه د خدائے رسول د خپلو مخکښنو رسولانو تصدیق کوی۔ نو هیڅ وجه دا سے نشته چه تاسو به زما د رسالت نه انکار اوکړئ۔

دویمه معنیٰ دا ده چه کوم زیری ځما د راتلو په حقله په توراة کښې موجود دی څه هم هغه زیرے یم۔ نو په ځائے د دے چه تاسو زما مخالفت اوکړئ، تاسو له په و دے خبرې خوشحالی کول پکار دی چه د چا د راتلو په باره کښې مخکښنو پیغمبرانو خبر ورکړے وو هغه راغلے۔

او دا فقره چه د روستنئ فقرے سره ملاؤ کړے شی نو دریمه معنیٰ ترے راوزی چه په توراة کښې د احمد (صلی الله علیه وسلم) د راتلو په حقله کوم زیرے ورکړے شوے دے څه د هغه زیری تصدیق کوم او پخپله هم د هغه د راتلو زیرے درکوم۔ د دے دریمې معنیٰ په لحاظ سره د حضرت عیسیٰ علیه السلام د دے قول اشاره هغه زیری ته ده کوم چه د رسول الله صلی الله علیه وسلم په حقله حضرت موسیٰ علیه السّلام خپل قوم ته په خطاب کښې کړے وو۔ په هغې کښې هغه فرمائی:

"ستا خداوند خدائے به ستا دپاره هم ستا د منځ نه، یعنی ستا د رورنړو نه ځما پشان یو نبی راپورته کړی۔ تاسو به د هغه اوریئ۔ دا به ستا د هغې درخواست مطابق وی کوم چه تا خداوند خپل خدائے ته د حورب په ورځ په حورب کښې کړے وو چه څه نه خود خداوند خپل خدائے آواز بیا اورم او نه دا سے لویه اور اوویනم د پاره د دے چه مړ نه شم۔ او خداوند ما ته اوویل چه هغوی څه وائی هغه ټیک وائی۔ څه به د هغوی د پاره هم د هغوی د رورنړو نه ستا پشان یو نبی را اوچت کړم او خپل کلام به د هغه په خوله کښې واچوم او څه څه حکم چه څه هغه ته کوم هغه به هم هغه هغوی ته وائی۔ او څوک چه ځما هغه خبرې وانه وری کومې چه هغه ځما په نوم خلقو ته وائی نو څه به د هغه حساب د هغوی سره کوم۔

(استثناء۔ باب ۱۸ ـ آیتونه ۱۵ ـ ۱۹)

دا د توراة څرګنده پیشګوئی ده چه د محمد صلی الله علیه وسلّم نه سوا د بل چا په حقله نه صحیح کیږی۔ په دے کښې حضرت موسیٰ خپل قوم ته د الله تعالیٰ دا حکم اوروی چه څه به ستا د پاره ستا د رورنړو نه یو نبی را اوچت کړم۔ ظاهره خبره ده چه د یو قوم د "رورنړو" نه مراد پخپله د هغه قوم یو قبیله یا خاندان نه شی کیدے بلکه بل داسے قوم کیدے شی

چه دَهغه سره دَهغه نزدے نسلی رشته وی۔ که چرے مُراد یخپله دَ بنی اسراء یلو نه دَ یو نبی راتلل وے نو الفاظ به داوے چه څه به ستاسو دَ پاره هم ستاسو نه یو نبی را اُوچتوم ۔ نو دَ بنی اسراءیلو دَ رُورنړو نه مُراد خامخا هم بنی اسمٰعیل کیدے شی چه دَ حضرت ابراهیمؑ اولاد دی او په دِے وجه دَهغوی نسبی رشته دار دی۔ دَ دِے نه علاوه دا پیشن گوئی دَ بنی اسراءیلو په یو نبی په دِے وجه هم صادقانه راځی چه دَ حضرت موسیٰؑ نه روستو په بنی اسراءیلو کښے څه یو نبی نهٔ دے راغلے، بلکه ډیر نبیان راغلی دی چه بائیبل تړوک دے۔

دویمه خبره په دِے زیری کښے دا شوی ده چه کوم نبی به راځی هغه به دَ حضرت موسیٰؑ پشان وی۔ دَ دِے نه مُراد دا نهٔ دے چه په شکل یا دَ ژوند په حالاتو کښے به یو شان وی، ځکه چه په دِے لحاظ سره یو سړے هم دَ بل سړی پشان نهٔ وی۔ او دَ دِے نه مُراد صرف دَ نبوت په صفت کښے یو شانوالے هم نهٔ دے، ځکه چه دا صفت په هغه ټولو پیغمبرانو کښے شریک دے کوم چه دَ حضرت موسیٰؑ نه روستو راغلی دی، په دِے وجه دَ یو نبی دا خصوصیت نشی کیدے چه هغه دِ په دِے صفت کښے دَ هغوی پشان وی۔ نو هر کله چه دَ دِے دواړو مشابهتونو نه مُراد هغه مشابهت نهٔ دے دَ کوم په وجه چه یو خاص راتلونکے نبی پیژندے شی، نو بیا دَ یو شانوالی بله وجه دَ دِے نه سِوا نشی کیدے چه هغه نبی به یو مستقل شریعت راوړی او په دِے اعتبار سره به هغه دَ حضرت موسیٰؑ پشان وی۔ او دا خصوصیت دَ محمد صلی اللہ علیه وسلّم نه سِوا په بل پیغمبر کښے نهٔ موندے کیږی، ځکه چه دَ نبیؐ نه مخکښے په بنی اسراءیلو کښے کوم پیغمبران راغلی وُو هغوی ټول دَ موسیٰؑ دَ شریعت پیروکار وُو، په هغوئ کښے یو هم ځان له یو مستقل شریعت نهٔ وُو راوړے۔

دِے تشریح ته زیات طاقت دَ پیشن گوئی دَ دِے الفاظو نه مِلاویږی چه "دا به ستا (یعنی دَ بنی اسراءیل) دَ هغه درخواست مطابق وی کوم چه تا خداوند خپل خدائے ته دَ مجمعے په ورځ په حورِب کښے کړے وُو چه څه نهٔ حُوړ دَ خداوند خپل خدائے بیا واورم او نهٔ دا سے لوئ وُور اُووینم دَ پاره دَ دِے چه مړنهٔ شم۔ او خداوند ماته اُووئیل چه هغوئ څه وائی هغه ټیک وائی۔ څه به دَ هغوئ دَ پاره هم دَ هغوئ دَ رُورنړو نه ستا پشان یو نبی را اُوچت کړم او خپل کلام به دَ هغه په خُله کښے واچوم"۔ په دِے کلام کښے دَ حورِب نه مُراد هغه غرد ے چه په کوم ځائے کښے حضرت موسیٰؑ ته په اول ځل دَ شریعت حکمونه ورکړے شوی وُو۔ او دَ بنی اسراءیلو دَ کوم درخواست ذکر چه په دِے کښے شوے دے دَ هغے مطلب دا دے چه که چرے بیا مونږ له شریعت راکړے کیږی نو دَ یرے په هغه حالاتو کښے دِ نهٔ راکړے کیږی کوم چه دَ حورِب غر په لمن کښے دَ شریعت ورکولو په وخت کښے پیدا کړے شوی وُو۔ دَ هغه حالاتو ذکر په قرآن مجید کښے هم موجود دے او په بائیبل کښے هم۔ (اُوگوره البقره، آیتونه ۵۵ – ۵۶ – ۶۳۔ الاعراف، آیتونه ۱۵۵ – ۱۷۱۔ بائیبل، کتاب خروج ۱۹ : ۱۷ – ۱۸)۔ دَ دِے په جواب کښے حضرت موسیٰؑ بنی اسراءیلو ته وائی چه اللہ تعالیٰ ستاسو درخواست قبول کړے دے، هغه فرمائی چه څه به دَ هغوی دَ پاره یو دا سے نبی را اُوچت کړم چه دَ هغه په خُله کښے به څه خپل کلام واچوم۔ یعنی آئنده به دَ شریعت ورکولو په وخت کښے دَ یرے هغه حالات نهٔ پیدا کړے کیږی کوم چه دَ حورِب غر په لمن کښے پیدا کړے شوی وُو، بلکه اُوس چه کوم نبی ته دا منصب حواله کړے کیږی دَ هغه په خُلهٔ کښے به بس دَ اللہ کلام اچولے کیږی او هغه به هغه دَ خدائے مخلوق ته اورَوی۔ په دِے تشریح باندِ دَ غور کولو نه روستو په دِے خبره کښے هیڅ شک نهٔ پاتے کیږی چه دا پیشن گوئی صرف په محمد صلی اللہ علیه وسلّم باندِ صادقه راځی۔ دَ حضرت موسیٰؑ

وَمُبَشِّرًا بِرَسُوْلٍ يَّاْتِيْ مِنْ بَعْدِي اسْمُهٗٓ اَحْمَدُ ؕ

او زیرے درکوُنکے یم دَ یو رسول چه ځمانه روستو به راځی او نوم به ئے اَحمد وی[۵۸]۔

نه روستو مُستقل شریعت صرف نبیؐ ته ورکړے شو، دَ هغې دَ ورکولو په وخت کښے دا سے غوندې اُونهٔ شوه لکه څنګه چه دَ حورِب غرپه لمن کښے دَ بنی اسراءیلو شوی وه، او دَ شریعت دَ حکمونو ورکولو په موقع بانډې په یو وخت کښے هم هغه حالات پیدا نهٔ کړے شو کوم چه هلته پیدا کړے شوی وُو۔

[۵۸] دا دَ قرآن مجید یو ډیر اهم آیت دے چه دَ اسلام دَ مخالفینو دَ طرفنه پرې ډیر کوشش هم شوے دے او دَ ډیر غټ خیانت نه هم کار اغستے شوے دے، ځکه چه په دے کښے دا وئیلے شوی دی چه حضرت عیسیٰ علیه السّلام دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم صفا صفا نوم اغستے وُو او دَ هغه دَ راتلو زیرے ئے ورکړے وُو۔ نو په دے وجه ضروری ده چه په دے بانډې په تفصیل سره بحث اُوکړے شی۔

۱۔ په دے کښے دَ نبی کریم صلی الله علیه وسلم نوم احمد ښودلے شوے دے۔ دَ احمد دوه معنے دی۔ یو هغه سړے چه دَ الله دَ ټولونه زیات تعریف کونکے وی، دوئم هغه سړے چه دَ هغه دَ ټولونه زیات تعریف شوے وی، یا چه په بندګانو کښے دَ ټولونه زیات دَ تعریف قابل وی، دَ صحیح احادیثو نه ثابته ده چه دا هم دَ نبیؐ یو نوم وُو۔ په مُسلم او ابوداؤد طیالسی کښے دَ حضرت ابوموسیٰ اشعریؓ روایت دے چه نبیؐ اُوفرمائیل چه انا محمّد و انا احمد والحاشر..... "ځهٔ محمّد یم او ځهٔ احمد یم او ځهٔ حاشر یم ....." دا قسم روایتونه دَ حضرت جُبیر بن مُطعِم نه امام مالک، بُخاری، مُسلم، دارمی، ترمذی او نسائیؒ نقل کړی دی۔ دَ نبیؐ دا نوم په صحابو کښے ډیر مشهور وُو، دَ حضرت حسّان بن ثابت شعر دے؛

صلی الاله ومن یحف بعرشه     والطیبون علی المبارك احمد

"الله او دَ هغه دَ عرش نه ګیرچاپیره راغونډ وشوُو فرښتو او ټولو پاکو مستو په برکتناک احمد بانډې درود لیږلے دے۔"

دَ تاریخ نه هم دا ثابته ده چه دَ نبیؐ نوم مبارک صرف محمّد نهٔ وُو بلکه احمد هم وُو۔ دَ عربو ټول لیک دَ دے خبری نه خالی دے چه دَ نبیؐ نه مخکښے دَ چا نوم احمد کیښودلے شوے وُو۔ او دَ نبیؐ نه روستو احمد او غلام احمد دَ دومره خلقو نومونه کیښودلے شوی دی چه دَ هغې شمار نشی کیدے۔ دَ دے نه زیات ثبوت دَ دے خبرې څهٔ کیدے شی چه دَ نبوت دَ زمانے نه واخله دَ نن زمانے پورے په ټول اُمت کښے دَ هغه دا نوم معلوم او مشهور دے۔ که دَ نبیؐ دا نوم نهٔ وے نو چا چه دَ خپلو بچو نه غلام احمد نوم کیښودلے دے نو هغوئ آخر خپلو بچو ته دَ کوم احمد غلام وئیلو؟

۲۔ انجیل یوحنّا په دے خبره ګواه دے چه دَ مسیحؑ دَ راتلو په زمانه کښے بنی اسراءیل دَ دریو کسانو په انتظار وُو۔ یو مسیح، دوئم ایلیا (یعنی دَ حضرت الیاس دوباره راتلل)، او دریم "هغه نبی"۔ دَ انجیل الفاظ دا دی؛

" او دَ یوحنّا (حضرت عیسیٰ علیه السّلام) گواهي دا ده چه کله یهود یانو دَ یروشلم نه کاهن او لاوي دَ ده تپوس دَ پاره هغه ته اُولیږل چه ته څوک یې، نو هغه اقرار اُوکړو او انکار یې اُونهٔ کړو بلکه اقرار یې اُوکړو چه ځهٔ خو مسیح نهٔ یم، هغوئ د هغه نه تپوس اوکړو نو بیا څوک یې؟ آیا ته ایلیاه یې؟ هغه اُووئیل ځهٔ نهٔ یم؟ آیا تهٔ هغه نبي یې؟ هغه جواب ورکړو چه نهٔ. نو هغوئ هغه ته اُووئیل نو بیا تهٔ څوک یې . . . . . . هغه اُووئیل ځهٔ په بیابان کښې دَ یو آواز کوُنکی آواز یم چه تاسو دَ خداوند لاره نیغه کړئ . . . . . . هغوئ دَ هغه نه دا تپوس اُوکړو چه که چرې تهٔ نهٔ مسیح یې، نهٔ ایلیاه، نهٔ هغه نبي، نو بیا بپتسمه (غسل) وَلې ورکوې"

(باب ۱، آیتونه ۱۹ - ۲۵).

دا الفاظ په واضح خبره ښکاره دلالت کوي چه بني اسرائیل دَ حضرت مسیح او حضرت الیاس نه علاوه دَ یو بل نبي په انتظار هم وُو، او هغه حضرت یحییٰ نهٔ وو. دَ هغه نبي دَ راتلو عقیده په بني اسرائیلو کښې دومره مشهوره وه چه "هغه نبي" وئیل کړیا دَ هغه طرفته دَ اشارې کولو دَ پاره بالکل کافي وُو، دَ دې وینا ضرورت هم نهٔ وُو چه "خبر یې په توراة کښې ورکړې شوې دې". او دَ دې نه دا هم معلومه شوه چه دَ کوم نبي طرفته هغوئ اشاره کوله دَ هغه راتلل قطعي طور ثابت وُو، ځکه چه هر کله دَ حضرت یحییٰ نه دا تپوسونه اُوشو نو هغه دا اُونهٔ وئیل چه بل نبي نهٔ راځي تاسو دَ کوم نبي په حقله تپوس کوئ؟

۳- اُوس هغه پیشنګویانې اُوګورې کومې چه په انجیل یوحنّا کښې مُسلسل دَ باب ۱۴ نه دَ ۱۶ پورې نقل کړې شوې دي،

" او ځهٔ به پلار ته درخواست کوُم نو هغه به تاسو له دویم مددګار درکړي چه همیشه ستاسو سره وي، یعنې حق رُوح چه دُنیا یې نهٔ شي حاصلولې ځکه چه نهٔ هغه وینی نهٔ یې پیژني. تاسو هغه پیژنئ ځکه چه هغه ستاسو سره اوسي او په تاسو کښې به دَ ننه دې" (۱۴: ۱۶ - ۱۷).

" ما دا خبرې ستاسو په ملګرتیا کښې ستاسو سره اُوکړې. لیکن مددګار یعنې رُوح القدس چه پلار به یې ځما په نوم رالیږي هغه به تاسو ته ټولې خبرې ښائي او ځهٔ چه ما تاسو ته وئیلي دي هغه ټول به درته دریاد کړي (۱۴: ۲۵-۲۶).

" دَ دې نه روستو به ځهٔ ستاسو سره ډیرې خبرې نهٔ کوُم ځکه چه دَ دُنیا سردار راځي او په ما کښې دَ هغه هیڅ نشته" (۱۴: ۳۰).

" لیکن کله چه هغه مددګار راشي چه ځهٔ به یې تاسو ته دَ پلار دَ طرفنه در اُولیږم، یعنې دَ رښتیا رُوح چه دَ پلار نه راوُځي، نو هغه به ځما ګواهي کوي" (۱۵: ۲۶).

" لیکن ځهٔ تاسو ته رښتیا وایم چه ځما تلل ستاسو دَ پاره فایده مند دي ځکه چه که چرې ځهٔ لاړ نهٔ شم نو هغه مددګار به تاسو ته نهٔ راځي، لیکن که چرې لاړم نو هغه به تاسو ته در اُولیږم" (۱۶: ۷).

" ما به تاسو ته نورې هم ډیرې خبرې کوُم خو اُوس تاسو هغه نهٔ شئ برداشت کولے. لیکن چه

هغه يعنې د رښتيا رُوح راشي نو هغه به درته د رښتيا ټولې لارې اُوښائي ځکه چه هغه به د خپل طرفنه نهٔ وائي ليکن چه څه اوري هغه به وائي او تاسو ته به راتلونکې خبرې ښائي ـ هغه به ځما بزرګي ظاهروي ـ ځکه چه هغه به خاص ځما نه حاصلوي او تاسو ته به خبره درکوي ـ څه چه د پلار دي هغه ټول ځما دي ـ په دې وجه ما اُوويل چه هغه به خاص ځما نه حاصلوي او تاسو ته به خبره درکوي" (۱۶: ۱۲-۱۵)۔

۴ ـ د دې عبارتونو د معنیٰ کولو دپاره څو خبرو پوهه کول اول دا پوهه راوستل ضروري دي چه د مسيح عليه السّلام او د هغه د زمانې د فلسطيني عامه ژبه هغه آرامي ژبه وه چه هغې ته سُرياني (Syriac) ژبه وئيلې کيږي ـ د مسيح د پيدا کيدو نه دوه درې نيم سوه کاله مخکښې د سلوقي (Seleucide) اقتدار په زمانه کښې د دې علاقې نه عبراني ژبه رخصت شوې وه او د هغې په ځائې سُرياني ژبه راغلې وه ـ اګرچه د سلوقي او بيا د رومي سلطنتونو د اثر نه يوناني ژبه هم دې علاقې ته راسيدلې وه، ليکن هغه صرف هغه طبقې وئيله څوک چه د سرکار په دربار کښې وُو يا د سرکار دربار ته ځان رسول غوښتل او د دې خاطره ئې يونانيت اختيار کړې وُو ـ د فلسطين عام خلقو به د سُرياني ژبې يو خاص طرز (Dialect) استعمالولو چه د هغې وينا به د دمشق په علاقه کښې د سُرياني ژبې د وينا نه مختلفه وه، او د دې ملک عام خلق د يوناني ژبې نه دومره ناخبره وُو چه کله په ۷۰ع کښې په يروشلم باندې د قبضې کولو نه روستو رُومي جنرل تيتس (Titus) د يروشلم خلقو ته په يوناني ژبه کښې خطاب اُوکړو نو د هغې ترجمه په سُرياني ژبه کښې اُوکړې شوه ـ د دې نه دا خبره ښکاره معلوميږي چه حضرت مسيح خپلو شاګردانو ته څه وئيلي وُو هغه به خامخا په سُرياني ژبه کښې وُو۔

دويمه دا خبره پيژندل ضروري دي چه د بائيبل ټولې واړه انجيلونه هغه عيسايانو ليکلي دي چه ژبه ئې يوناني وه او د حضرت عيسیٰ نه روستو په دې مذهب کښې داخل شوي وُو ـ مغوي ته د حضرت عيسیٰ اقوال او اعمال د سُرياني ژبې وئيونکو عيسايانو په ذريعه د څه ليکو په شکل کښې نهٔ بلکه د زباني روايتونو په شکل کښې ور رسيدلي وُو او د ه سُرياني روايتونه مغوي په خپله ژبه کښې ترجمه کړي وُو او بيا ئې ليکلي وُو ـ په هغې کښې يو انجيل هم د ۷۰ع نه مخکښې نهٔ دې ليکلې شوې، او انجيل يوحنا خود حضرت عيسیٰ نه سل کاله روستو غالباً چه د ايشيا د کوچک په اِفِسُس ښار کښې ليکلې شوې دې ـ او بله دا چه د دې انجيلونو هم اصلي نسخه په هغه يوناني ژبه کښې محفوظ نهٔ ده په کومه ژبه کښې چه اول دا ليکلې شوي وُو ـ د چاپخانې د جوړيدو نه مخکښې چه څومره يوناني ليکونه ځائې په ځائې په تلاش سره راجمع کړې شوي دي په هغې کښې يو ليک هم د څلورمې صدئ نه مخکښې نهٔ دې ـ په دې وجه دا وئيل مشکل دي چه په دريو صدو کښې به په هغې کښې څه ردو بدل شوې وي ـ دا معامله چه خاص طور د کوم څيز په وجه شکمنه کيږي هغه دا دې چه عيسايان په خپلو انجيلونو کښې د خپلې خوښې مطابق قصداً ردو بدل کول بالکل جائز ګڼړي ـ د انسائيکلو پيډيا برټانيکا (ايډيشن ۱۹۴۶ء) د مضمون "بائيبل" مُصنّف ليکي،

"په انجيلونو کښې داسې څرګند ردو بدل قصداً شوي دي لکه چه مثلاً ځيني پوره پوره عبارتونه د بل ځائې نه راغستل او په کتاب کښې شاملول .... دا ردو بدل ښکاره هغه خلقو په قصد کړې دې چه په اصلي کتاب کښې د شاملولو دپاره

ورته دَ چرته نه څه مواد مِلاؤ شو، او هغوئ خپل ځان دَ دې خبرې جوګه کړو
چه دَ کتاب دَ بهترۍ کولو دَ پاره په هغې کښې دَ خپل طرفنه څه مواد ور زیا ت
کړي .... دا قِسم زیاتوالے زیاد تر په دویمه صدۍ کښې شوے وُو او هیڅ
پته نۀ لګي چه دَ هغې ماخذ څۀ وُو۔"

په دِے صورتِ حال کښې قطعي طور دا ویناکول ډیر ګران دي چه په انجیلونو کښې دَ حضرتِ عیسیٰ علیه السّلام کومه ویناموږ ته مِلاویږي چه هغه بالکل ټیک ټیک لیکلے شوې ده او په هغې کښې هیڅ ردوبدل نۀ دے شوے۔

درېمه او ډیره اهمه خبره داده چه دَ مسلمانانو دَ فتح نه روستو هم تقریباً دَ درېو سوؤ کالو پورے دَ فلسطین دَ عیسایانو ژبه سُریاني وه او چرته په نخمه عیسوي صَدۍ کښې عربي ژبه دَ هغې په ځائے راغلې وه ـ دَ سُریاني ژبے ویونکو فلسطینیانو په ذریعه چه دَ عیسائي روایتونو په حقله کوم معلومات په اولنو دریو صدؤ کښے مسلمانانو عالمانو ته حاصل شو هغه پکار دي چه دَ هغه خلقو دَ معلوماتو په نسبت زیات معتبر وي چانه چه دَ سُریاني ژبے نه په یوناني ژبه کښے او بیا دَ یوناني ژبے نه په لاطیني ژبه کښے دَ ترجمو په ذریعه دا معلومات را رسیدلي دي ـ ځکه چه دَ هغوئ سره دَ مسیح دَ ژبے اصلي سُریاني الفاظ محفوظ پاتے کیدل زیات ممکن وُو۔

۵ ـ دا ریښتینې تاریخي حقیقت په نظر کښے لره او اوګوره چه دَ انجیل یوحنّا په پاسنې عبارت کښے حضرتِ عیسیٰ علیه السّلام دَ خپل ځان نه روستو دَ یو را تلونکي خبر ورکوي او دَ هغه په حقله هغه وائي چه "هغه به دَ دُنیا سردار (سرورِعالم) وي"، "همیشه" به وي، "دَ ریښتیاؤ تولے لارے به ښائي"، او نخپله دَ هغه (یعني دَ حضرت عیسیٰ) ګواهي به ورکوي" یوحنّا په دِے عبارتونو کښے "روح القدس" او "دَ ریښتیاؤ رُوح" وغیره الفاظ شامل کړے شوي دي او دَ مدّعا دَ غلطولو پوره کوشش شوے دے، لیکن دَ دے باوجود که دا ټول عبارتونه په غور سره اولوستے شي نو صفا معلومیږي چه دَ کوم راتلونکي خبر ورکړے شوے دے هغه رُوح نۀ دے بلکه انسان دے او خاص سړے دے چه دَ هغه تعلیم به عالمګیر او همه ګیر وي، او دَ قیامته پورې به باقي وي۔ دَ دغه خاص سړي دَ پاره په اُردو ترجمه کښے لفظ "مددګار" استعمال کړے شوے دے او دَ یوحنّا په اصل انجیل کښے چه دَ یوناني ژبے کوم لفظ استعمال کړے شوے وُو دَ هغې په باره کښے عیسایان په کلکه وائي چه هغه (Paracletus) وُو ـ لیکن دَ دے په معنیٰ کولو کښے نخپله عیسائي عالمانو ته سخت مشکلات را وړاندِ شوي دي ـ په اصلي یوناني ژبه کښے دَ (Paraclete) ډیرے معنے دي؛ یو ځائے ته را بلل، دَ امداد دَ پاره آواز کول، یرَونه او خبرداري، را پسے غوښتل، آرزو کول، دُعا غوښتل ـ بیا دا لفظ په هیلیني مفهوم کښے دا معنیٰ لري؛ تسلّي او تسکین ورکول ـ حوصله اوچتول ـ په بائیبل کښے چه دا لفظ په کوم کوم ځائے کښے استعمال کړے شوے دے په هغه ټولو ځایونو کښے دَ دے یوه معنیٰ هم ټیک نۀ راځي ـ اُوراِجِن (Origen) چرته دَ دے (Consolator) ترجمه کړې ده او چرته (Deprecator)، لیکن نورو مفسّرینو دا دواړه ترجمې رد کړلے ځکه چه اوّل خو دا دَ یوناني قاعدے (یعني ګرامر) په لحاظ سره صحیح نۀ دي، دویم په ټولو عبارتونو کښے چه په کوم ځائے کښے دا لفظ راغلے دے هلته دا معنے نۀ چلیږي ـ ځینو نورو ترجمه کونکو (Teacher) دَ دے ترجمه کړې ده، لیکن دَ یوناني ژبے دَ استعمالاتو نه دا معنیٰ هم نشي را غستے کیدے ـ ترتولیان او آګستاین لفظ (Advocate) له ترجیح ورکړې ده، او ځینو نورو

خلقو (Assistant) ، او (Comforter) ، او (Consoler) وغیره الفاظ لیکلی دیٔ۔ (اُوګوره سائیکلوپیډیا آف ببلیکل لټریچر، لفظ پیریکلیټس)۔

اُوس دلچسپه خبره داده چه په یونانی ژبه کښے یو بل لفظ (Periclytos) موجود دۓ چه معنیٰ ئے ده "ستائیلے شوے" دالفظ بالکل دَ "محمّد" معنی لری، اوپه وینا کښے دا لفظ او (Paracletus) یوشان راځی۔ دا هم کیدے شی چه کومو مسیحی خلقو په خپلو مذهبی کتابونو کښے دَ خپلے مرضیٔ اودَ خپلے خوښے مطابق ردّوبدل کولو هڅویٔ چه دَ یوحنّا دَ پیشګوئیٔ دالفظ دَ خپلے عقیدے خلاف لیدلے وی نودَ دے په لیکلو کښے به ئے دالږشان بدلون راوستے وی۔ دَ دے معلوماتو کولو دَ پاره دَ یوحنّا لیکلے شوے اولنے یونانی انجیل هم چرته نشته چه دَ هغے نه دا تحقیق اُوکړے شی چه په هغے کښے په دِ دے دواړو لفظونو کښے په اصل کښے کوم یو لفظ استعمال کړے شوے وُو۔

۷ ـ لیکن فیصله دِ دے ته هم نهٔ ده ایساره چه یوحنّا په یونانی ژبه کښے په اصل کښے کوم لفظ لیکلے وُو، ځکه چه بهرحال هغه هم ترجمه خووه اودَ حضرت مسیحؑ ژبه، لکه څنګه چه مونږه بره ذکرکړے دے دَ فلسطین سُریانی ژبه وه، نوپه دِ دے وجه هغه چه په خپل زیری کښے کوم لفظ استعمال کړے وی نوپکاردی چه هغه خامخا یو سُریانی لفظ وی۔ خوش قسمتی داده چه هغه اصلی سُریانی لفظ مونږ ته دَ ابنِ هشام په سیرت کښے مِلا ویږی او ورسره ورسره دا هم دَ دۓ کتاب نه معلومیږی چه دَ دے پشان معنیٰ لرونکے یونانی لفظ څه دۓ۔ دَ محمد بن اسحاق په حواله سره ابنِ هشام دَ یُحنّس (یوحنّا) دَ انجیل دَ باب ۱۵ آیتونه ۲۳ تا ۲۷، اودَ باب ۱۶ دَ اولنی آیت پوره ترجمه نقل کړی ده اوپه هغے کښے دَ یونانی "فارقلیط" په ځائے دَ سُریانی ژبے لفظ مُنْحَمَنّا استعمال کړے شوے دے۔ بیا دَ ابنِ اسحاق یا ابنِ هشام دَ دے تشریح داکړی ده چه دَ مُنْحَمَنّا معنیٰ په سُریانیٔ ژبه کښے محمّد او په یونانیٔ ژبه کښے برقلیطُس ده" (ابنِ هشام اول جلد، ص ۲۴۸)۔

اُوس اُوګوره چه تاریخی طور دَ فلسطین دَ عامو عیسایانو ژبه دَ نهمے عیسوی صَدیٔ پورۓ سُریانی ژبه وه۔ دا علاقه دَ اوّمے صَدیٔ دَ نیمے نه په اسلامی مقبوضاتو کښے شامله وه۔ ابنِ اسحاق په ۷۶۸ءسنه کښے او ابنِ هشام په ۸۲۸ءسنه کښے وفات شوے دۓ۔ دَ دے مطلب داد ے چه دۓ دواړو په زمانه کښے فلسطینی عیسایانو سُریانی ژبه ویٔیله، او دۓ دواړو ته دَ خپل ملک دَ عیسائی رعیت سره ربط پیداکول هیڅ ګران کار نهٔ وُو۔ دا رنګے په هغه زمانه کښے یونانی ژبه ویونکی عیسایان هم دَ لکونو په تعداد کښے په اسلامی مقبوضاتو کښے دَ ننه اُوسیدل، نوپه دے وجه دَ هغویٔ دَ پاره دا معلومول هم ګران نهٔ وُو چه دَ سُریانیٔ ژبے دَ کوم لفظ معنیٰ دَ یونانی ژبے دَ کوم لفظ سره یوشان ده۔ اُوس که چرے دَ ابن اسحاق په نقل کړے شوی ترجمه کښے سُریانی لفظ مُنْحَمَنّا استعمال شوے دے، او ابنِ اسحاق یا ابنِ هشام دَ دۓ تشریح داکړی وهٔ چه په عربیٔ ژبه کښے دَ دے پشان معنیٰ لرُونکے لفظ مُحَمّد دے اوپه یونانی ژبه کښے برقلیطُس دے، نوپه دۓ خبره کښے هیڅ شک نهٔ پاتے کیږی چه حضرت عیسیٰ دَ نبیؐ نوم اغستے وُو او خاص دَ هغه دَ راتلو زیرے ئے کړے وُو، او ورسره ورسره دا هم معلومیږی چه دَ یوحنّا په یونانی انجیل کښے په اصل کښے لفظ (Periclytos) استعمال شوے وُو چه هغه عیسایانو روستو په څه وخت کښے په لفظ (Paractetus) سره بدل کړو۔

۸ - دَ دې نه هم زیات ښکاره تاریخي شهادت دَ حضرت عبدالله بن مسعودؓ دا روایت دې چه کله نجاشي دَ حبشې مهاجرین خپل دربار ته را اوغوښتل، او دَ حضرت جعفر بن ابی طالب رضی الله عنه نه ئې دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم تعلیمات واوریدل نو هغه اووئیل: مَرْحَبًا بِكُمْ وَبِمَنْ جِئْتُمْ مِنْ عِنْدِهٖ، اَشْهَدُ اَنَّهٗ رَسُوْلُ اللّٰهِ وَاَنَّهُ الَّذِیْ نَجِدُ فِی الْاِنْجِیْلِ وَاَنَّهُ الَّذِیْ بَشَّرَ بِهٖ عِیْسَی ابْنُ مَرْیَمَ (مُسند احمد).

یعنی "هر کله ورځئ تاسو ته او هغه هستئ ته چه دَ چا د طرفه تاسو راغلي یئ - څه ګواهي کوم چه هغه دَ الله رسول دے او هم دَ هغه ذکر مونږ ته په انجیل کښې ملاویږي، او دا هم هغه دے چه زیرے ئې عیسی ابن مریم ورکړې وو". دا قیصه په احادیثو کښې پخپله دَ حضرت جعفر او دَ حضرت ام سلمې نه هم نقل کړې شوې ده - دَ هغې نه یوازې نۀ دا ثابتیږي چه دَ اوومې صدۍ په شروع کښې نجاشي ته دا معلومه وه چه حضرت عیسی علیه السلام دَ یو نبي پیشن ګوئي کړې ده، بلکه دا هم ثابتیږي چه دَ هغه نبي دا سې صفا نښې په انجیل کښې موجود وې چه دَ هغې په وجه نجاشي زر دا رائې قائمه کړه چه محمد صلی الله علیه وسلم هم هغه نبي دے - البته دَ دې روایت نه دا نۀ معلومیږي چه دَ حضرت عیسیٰؑ دا زیرې په حقله نجاشي ته معلومات هم دَ یوحنا انجیل په ذریعه شوي وو او که څه بله ذریعه دَ هغې دَ پیژندګلو په هغه وخت کښې موجود وه -

۹ - حقیقت دا دے چه یوازې دَ رسول الله صلی الله علیه وسلّم په باره کښې دَ حضرت عیسیٰ دَ پیشګویانو دَ پیژندلو نه، بلکه پخپله دَ حضرت عیسیٰؑ دَ خپلو صحیح حالاتو او دَ هغه دَ اصلي تعلیماتو دَ پیژندلو هم معتبره ذریعه هغه څلور انجیلونه نۀ دي کوم چه مسیحي کلیسا معتبر انجیلونه (Canonical Gospels) ګرزولي دي، بلکه دَ هغې زیاته قابل اعتماد ذریعه هغه انجیل برناباس دے چه هغې ته کلیسا غیر قانوني او شکمن (Apocryphal) وائي - عیسایانو دَ دې دَ پټولو ډیر کوشش کړې دے - په سوونو کاله دا دَ دُنیانه ورک وُو - په شپاړسمه صدۍ کښې دَ دې دَ اطالوي ترجمې صرف یو نسخه دَ پوپ سکسټس (Sixtus) په کُتب خانه کښې موجود وه او هیچا ته دَ هغې دَ لوستلو اجازت نۀ وُو - دَ اتلسمې صدۍ په شروع کښې هغه دَ یو سړي جان ټولینډ لاس له ورغله - بیائې په مختلفو لاسونو کښې چکرې خوړلې اَن تر دې چه په ۱۷۳۸ء کښې دَ ویانا امپیریل لائبریرۍ ته اُورسیدله - په ۱۹۰۷ء کښې دَ دې نسخې انګریزي ترجمه دَ آکسفورډ کلیرنډن پریس نه خوره شوې وه لیکن غالباً چه دَ دې دَ خوریدو نه روستو فوراً په عیسایانو کښې دا فکر راپیدا شو چه دا کتاب خو دَ هغه مذهب جرړې پریکوي کوم چه دَ حضرت عیسیٰ په نوم یادیږي - په دې وجه دَ دې چاپ شوې نسخې په خاص تدبیر سره غیبې کړې شوې او بیا هیڅکله دَ هغې دَ چاپ کولو وار رانغې - دَ دې اطالوي ترجمې یوه بله نسخه چه په اسپینې ژبه کښې شوې وه، په اتلسمه صدۍ کښې موجود وه، چه ذکر ئې جارج سیل دَ قرآن مجید دَ خپلې انګریزۍ ترجمې په مقدمه کښې کړې دے - لیکن هغه هم چرته غیبه کړې شوه او نن دَ هغې هم چرته پته نښه نۀ مِلاویږي - ما دَ آکسفورډ نه شائع شوې دَ انګریزۍ ترجمې یوه فوټوسټیټ کاپي لیدلې ده او هغه مې لفظ په لفظ لوستلې ده - څما خیال دا دے چه دا یو ډیر لوئ نعمت دے چه عیسایانو ترې تش دَ تعصب او ضد په وجه خپل ځان محروم ساتلے دے -

په مسيحي کتابونو کښې چه دَ دې انجيل ذکر چرته راځي نو هغه په ډېر زور سره ردکړې شي چه دا يو جعلي انجيل دے چه شايد چرته يو مسلمان سړي ليکلے دے او دَ برناباس په نوم ئې مشهور کړے دے، ليکن دا ډير غټ دروغ دي او صرف په دې وجه دا غټ دروغ اُوويشلے شو چه په دې کښې ځائې په ځائې په څرګند والفاظو سره دَ نبي صلی الله عليه وسلم په حقله پيشن ګوياني مِلاويږي. اول خو دَ انجيل دَ لوستلو نه دا صفا معلوميږي چه دا کتاب دَ مسلمان ليکلے شوے کتاب نشي کيدے. دويم که چرے دا يو مسلمان ليکلے وے نو په مسلمانانو کښې به په ګنړ تعداد کښې خور شوے وے او دَ اسلام دَ عالمانو په کتابونو کښې به دَ هغې ذکر ډير ډير وَے. ليکن دلته حال دا دے چه دَ جارج سيل دَ قرآن دَ انګريزئ ژبے دَ مقدمے نه مخکښې مسلمانانو ته هډو دَ دے دَ وجود علم نهٔ وُو. طبري، يعقوبي، مسعودي، البيروني، ابنِ حزم او نور مسلمانان ليکوالان، چه په مسيحي لټريچر باندِ زيات خبردار وُو، هغوي چه دَ مسيحي مذهب په لړ کښې کوم بحث کړے دے په هغې کښې دَ ډيرو په بحث کښې هم انجيل برناباس ته اِشاره قدرله نهٔ مِلاويږي. دَ اسلامي دُنيا په کُتب خانو کښې چه کوم کتابونه موجود وُو دَ هغې بهترين فهرستونه دَ ابن نديم الفهرست او دَ حاجي خليفه کشف الظّنون دي، او په هغې کښې هم دَ دے هيڅ ذکر نشته. دَ نولسيے صَدَۍ نه مخکښې يو مسلمان عالم دَ انجيل برناباس نوم قدرله نهٔ دے اخستے. دريم او دَ ټولونه غټ دليل دَ دے خبرې دَ دروغوالي دا دے چه دَ نبي صلی الله عليه وسلم دَ پيدا کيدونه هم پنځه اويا کاله مخکښې دَ پوپ ګلا سيس اوّل په زمانه کښې چه دَ خرابے عقيدے او دَ ګمراه کُن (Heretical) ، کتابونو کوم فهرست ليکلے شوے وُو، او چه دَ يوے پاپائي فتوے په ذريعه دَ هغې لوستل منع کړے شوي وُو، په هغې کښې انجيلِ برناباس (Evangelium Barnabe) هم شامل وُو. خبره دا ده چه په هغه وخت کښې کوم مسلمان وُو چه هغه دا جعلي انجيل تيار کړے وُو؟ دا خبره خو په خپله عيسائي عالمانو منلي ده چه دَ شام، اسپين، مصر وغيره ملکونو په اولنی مسيحي کليسا کښې دَ يوے موده پورے دَ برناباس انجيل جاري وُو او په شپږمه صَدَۍ کښې هغه منع کړے شو.

۱۰- په دې انجيل کښې چه دَ نبي صلی الله عليه وسلّم په حقله دَ حضرت عيسیٰ عليه السّلام کوم زيرې دي دَ هغې دَ نقل کولونه مخکښې دَ دې انجيل مختصر شان پيژندګلو ضروري ده، دَ پاره دَ دې چه دَ دے اهميت معلوم شي او دا خبره هم مخے ته راشي چه عيسايان دَ دے نه دومره ناراضه وَلے دي.

په بائيبل کښې چه کوم څلور انجيلونه شامل کړے شوي دي او قانوني او معتبر ګرزولے شوي دي، په هغې کښې يو ليکوال هم دَ حضرتِ عيسیٰ صحابي نهٔ وُو. او په هغوئ کښې يو هم دا دعوي نهٔ ده کړې چه هغه دَ حضرتِ عيسیٰ دَ صحابو نه معلومات حاصل کړي دي او بيا ئې په خپل انجيل کښې ليکلي دي. دَ کومو ذريعونه چه هغوئ معلومات حاصل کړي دي دَ هغې څه حواله هغوئ نهٔ ده ورکړې چه دَ هغې نه دا پته اُولګيږي چه آيا راوي په خپله هغه واقعات ليدلي دي او هغه قولونه ئې اوريدلي دي چه کو هغه بيانوي يا دَ يوے يا دَ ګنړو واسطو په ذريعه دا خبرې هغه ته رسيدلي دي. دَ دے برخلاف دَ انجيل برناباس ليکوال وائي چه زۀ دَ مسيح په اولنو دولسو حواريانو کښې يم، دَ اوّل نه دَ آخره پورے دَ مسيح سره پاتے شوے يم او دَ خپلو سترګو ليدلي واقعات او په خپلو غوږونو اوريدلي اقوال په دې کتاب کښې ليکم. يوازې دا نهٔ بلکه دَ کتاب په آخر کښې هغه وائي چه دَ دُنيا نه دَ رخصتيدو په وخت کښې

حضرت مسیح مانه فرمائیلی وُو چه څنګه په حقله کومے غلط فهمیانے په خلقو کښے خورے شوی دی هغه صفا کول او صحیح حالات دَ دُنیا مخے ته راوستل ستا ذمه واری ده۔

دا برناباس څوک وُو؟ دَ بائیبل په کتاب اَعمال کښے دَ دے نوم دَ یوسړی ذکر ډیر په ډیر راځی چه دَ قبرص دَ یو یهودی خاندان سره ئے تعلق لرلو۔ دَ مسیحیّت دَ تبلیغ او دَ مسیح دَ پیرو کارانو دَ امداد او دَ اعانت په سلسله کښے دَ هغه دَ خدمتونو ډیر تعریف شوے دے۔

لیکن دا پکښے هیچرته نهٔ دی وئیلے شوی چه هغه دَ مسیح په دین کښے کله داخل شو، او دَ اولنو دولسو حواریانو چه کوم فهرست په دریوا نجیلونو کښے ورکړے شوے دے په هغے کښے هم چرته دَ هغه نوم لیکلے شوے نهٔ دے۔ په دے وجه څوک دا نشی وئیلے چه دَ دے انجیل لیکوال هم هغه برناباس دے یا بل څوک دے۔ متی او مرقس چه دَ حواریانو (Apostals) کوم فهرست ورکړے دے، دَ برناباس فهرست دَ هغے نه صرف په دوو نومونو کښے مختلف دے۔ بوتوُما، چه دَ هغے په ځائے برناباس خپل نوم ورکړے دے، دوېم شمعون قنانی، چه دَ هغه په ځائے هغه یهوا بن یعقوب نوم اخلی۔ دَ لوقا په انجیل کښے دا دوېم نوم هم موجود دے۔ په دے وجه دا قیاس کول په صحیح وی چه روستو په څه وخت کښے دَ برناباس نوم دَ حواریانو دَ فهرست نه خارج کړے شوے دے او دَ هغه په ځائے توُما نوم داخل کړے شوے دے دَ پاره دَ دے چه دَ برناباس دَ انجیل نه ځان خلاص کړی، او دا قسم بدلون کول په خپلو مذهبی کتابونو کښے دَ دے خلقو په نزد څه ناجائز کار نهٔ وُو۔

دا انجیل که څوک دَ تعصب نه بغیر په پرانستو سترګو اُولولی او دَ نوے عهد نامے دَ څلورو واړوا نجیلونو سره دَ دے مقابله اُوکړی نو دَ هغه به خامخا دا فکر راځی چه دا دَ هغه څلورو واړو نه ډیر زیات بهتر دے۔ په دے کښے دَ حضرت عیسٰی علیه السّلام حالات زیات په تفصیل سره بیان شوی دی او په داسے طریقه بیان شوی دی لکه چه څوک واقعی هلته تول هرڅه وینی او په هغه واقعاتو کښے بخپله شریک وی۔ دَ څلورو واړوا نجیلونو دَ بے ربطه قیصو په مقابله کښے دا تاریخی بیان زیات مربُوط هم دے او دَ دے په روانو واقعاتو سړے هم ښه پوهیږی۔ دَ حضرت عیسٰی علیه السّلام تعلیمات په دے کښے دَ څلورو واړوا نجیلونو په نسبت زیات واضحه په تفصیل سره او په اثرناکه طریقه بیان شوی دی۔ دَ توحید تعلیم، دَ شرک تردید، دَ الله تعالیٰ صفتونه، دَ عباداتو رُوح او دَ ښواخلاقو بیان په دے کښے ډیر زُوردار، مدلّل او مفصل دے۔ دا مضامین چه په کوم عبرتناک مثالونو سره مسیح بیان کړی دی دَ هغے سلمه حصه هم په څلورو واړوا نجیلونو کښے نشته۔ دَ دے نه دا هم زیات په تفصیل سره معلومیږی چه هغه به دَ خپلو شاګردانو تربیت په څنګه حکمتی طریقے سره کولو۔ دَ حضرت عیسٰیؑ دَ ژبے، دَ بیان دَ طرز او دَ مزاج نه چه سړے څه لږ ډیر هم آشنا وی او دا انجیل اُولولی نو مجبوراً به دا منی چه دا څه جعلی قیصه نهٔ ده چه کِنی روستو چا دَ ځانه جوړه کړی ده، بلکه په دے کښے حضرت مسیحؑ دَ څلورو واړوا نجیلونو په نسبت په خپل اصلی شان کښے زیات څرګند مخے ته راځی، او په دے کښے دَ هغه اختلافاتو نوم نشان هم نشته کوم چه په څلورو واړوا نجیلونو کښے دَ هغه په مختلفو قولونو کښے موندے شی۔

په دے انجیل کښے دَ حضرت عیسٰیؑ ژوند او دَ هغه تعلیمات ټیک ټیک دَ یو نبی دَ ژوند او دَ تعلیماتو مطابق په نظر راځی۔ هغه خپل ځان دَ یو نبی په حیثیت سره پیش کوی۔ دَ تیرو شوو تهولو

پیغمبرانو او کتابونو تصدیق کوی ـ هغه صفا وائی چه د پیغمبرانو د تعلیماتو نه سوا د حق د پیژندلو بله هیڅ ذریعه نشته ، او څوک چه پیغمبران پریږدی هغه په اصل کښې خدائے پریږدی ـ هغه د توحید ، د رسالت او د آخرت تهیک هغه عقیدے پیش کوی کوم چه ټولو پیغمبرانو پیش کړی دی ـ د مونځ ، د روژے او د زکاة تلقین کوی ـ د هغه د مونځونو ذکر چه برناباس په اکثرو ځایونو کښې کړے دے د هغې نه پته لږی چه هم دا د صبا ، د ماسپښین ، د مازدیګر ، د ماښام ، د ماسختن او د تهجد وختونه وُو چه هغه به پکښې مونځونه کول ، او همیشه به ئے د مونځ نه مخکښې اودس کولو ـ هغه حضرت داؤدؑ او سلیمانؑ ته پیغمبران وائی حالانکه یهودیانو او عیسایانو هغوی د پیغمبرانو د فهرست نه بهر کړی دی ـ هغه حضرت اسماعیلؑ ته ذبیح وائی او یو یهودی عالم ته دا اقرار اخلی چه حضرت اسماعیلؑ واقعی ذبیح وُو او بنی اسراءیلو په زور زبردستئ سره د حضرت اسحاقؑ نه ذبیح جوړ کړے دے ـ د آخرت او د قیامت او د جنّت دوزخ په حقله د هغه تعلیمات تقریباً هم هغه دی کوم چه په قرآن کښې بیان شوی دی ـ

۱۱ـ عیسایان چه په کومه وجه د برناباس د انجیل نه مخالف دی ، هغه په اصل کښې دا نهٔ ده چه په دے کښې د رسول الله صلی الله علیه وسلّم په حقله ځائے په ځائے صفا صفا پیشنګویانے دی ، ځکه چه هغوی خو د نبیؐ د پیدا کیدو نه هم ډیر مخکښې دا انجیل رد کړے وُو ـ د هغوی د ناراضګئ د اصلی وجے د معلومولو د پاره لږ شان تفصیلی بحث ضروری دے ـ

اول اول د حضرت عیسٰیؑ پیروکارانو حضرت عیسٰی صرف نبی منلو ، هغوی به د موسٰی د شریعت پیروی کوله ، په عقیده او حکمونو او عبادتونو کښې به هغوی خپل ځان د نورو بنی اسراءیلو نه قطعاً جُدا نهٔ ګڼړلو ، او د یهودیانو سره د هغوی اختلاف صرف په دے خبره کښې وُو چه دوی حضرت عیسٰیؑ مسیح منلو او په هغه ئے ایمان راوړے وُو او هغوی هغه مسیح نهٔ منلو ـ روستو چه کله سینټ پال په دے ډله کښې داخل شو نو هغه په رومیانو ، یونانیانو او نورو غیرو یهودیانو او غیر اسراءیلیانو کښې هم د دے دین تبلیغ شروع کړو ، او د دے غرض د پاره ئے یو نوے دین جوړ کړو چه د هغې عقیدے او اصول او حکمونه د هغه دین نه بالکل مختلف وُو کوم چه حضرت عیسٰیؑ پیش کړے وُو ـ دا سړے د حضرت عیسٰیؑ مجلس له هډو تلے نهٔ وُو بلکه د هغه په زمانه کښې د هغه سخت مخالف وُو او د هغه نه روستو هم ډیر کلونه د هغه د پیروکارانو دُشمن وُو ـ بیا چه کله هغه په دے ډله کښې شامل شو او یو نوے دین جوړول ئے شروع کړل په هغه وخت کښې هم هغه چرته د حضرت عیسٰیؑ د یو قول سند پیش نهٔ کړو بلکه خپل کشف او الهام ئے بُنیاد جوړ کړو ـ د دے نوی دین په جوړولو کښې د هغه مخے ته بس دا مقصد وُو چه دین دِ داسے وی چه عام غیر یهودیان (Gentlile) خلق ئے قبول کړی ـ هغه اعلان اُوکړو چه عیسائی د یهود د شریعت د ټولو پابندیانو نه آزاد دے ـ هغه په خوراک څکاک کښې د حلالو او د حرامو ټولے پابندیانے ختم کړے ـ هغه د هلکانو د "سُنّت کولو" حکم هم منسوخ کړو چه خاص طور د غیر یهودیانو خوښ نهٔ وُو ـ اَن تر دے پورے چه هغه د مسیح د خدائیئ عقیده او د هغه د ابنُ الله کیدو عقیده او په صلیب باندِ د رُوح ورکولو سره د انسان د ګناهونو د پاره د کفارے جوړیدو عقیده هم جوړه کړه ځکه چه دِئے د عامو مشرکانو د مزاج سره ډیر مناسبت لرلو ـ د مسیح اولنو پیروکارانو د دے بدعتونو مخ نیوے اُوکړو ، لیکن سینټ پال چه کومه دروازه پرانستے وه په هغې باندِ د غیر یهودی عیسایانو

د ومره ډیر خلق په دې مذهب کښې راننوتل چه دَ هغې مقابلې ته د غه یوموټې خلق ټینګ نهٔ شو۔ بیاهم دَ دریمې عیسوی صَدیٔ دَ ختمیدو پورې ډیر خلق داسې موجود وُو چه دَ مسیح دَ خدائیٔ دَ عقیدې نه به ئې اِنکار کولو۔ لیکن دَ څلورمې صَدیٔ په شروع (۳۲۵ ء) کښې دَ نیقیه (Nicaea) کونسل (یعنې غونډې) پولوسی عقیدو ته قطعی طور دَ مسیحیّت مذهب اُوښـلو۔ بیا رومی سلطنت پخپله عیسائیٔ شو او دَ قیصر تهیو ډوسیس په زمانه کښې هم دا مذهب دَ سلطنت سرکاری مذهب شو۔ دَ دې نه روستو قدرتی خبره وه چه کوم کتابونه دَ دې عقیدې خلاف وی هغه ټول دِ رد کړې شی او صرف هغه کتابونه دِ معتبر اُوګرزولې شی کوم چه دَ دې عقیدې سره مطابقت لری۔ په ۳۶۷ ء کښې اول ځل دَ اتهانا سیوس (Athanasius) دَ یو خط په ذریعه دَ معتبرو کتابونو دَ یو مجموعې اعلان اُوشو، بیا دَ هغې پخلې (توثیق) په ۳۸۲ ء کښې دَ پوپ ډیمسیس (Damasius) دَ صدارت لاندې یو مجلس اُوکړو، او دَ پخئې صدیٔ په آخـر کښې پوپ ګلاسیس (Gelasius) دا مجموعه صحیح اُوګـرزوله او ورسره ورسره ئې دَ غیر صحیح کتابونو یو فهرست هم اُولیکلو۔ حالانکه چه دَ کومو پولوسی عقیدو په وجه دَ مذهبی کتابونو دَ معتبر کیدو او دَ غیر معتبر کیدو دا فیصله شوی وه، دَ هغې په حقله هیڅکله هم یو عیسائیٔ عالم دا دعویٰ نهٔ ده کړی چه په هغې کښې دَ یو عقیدې تعلیم پخپله حضرت عیسیٰؑ ورکړې وُو۔ بلکه دَ معتبرو کتابونو په مجموعه کښې چه کوم انجیلونه شامل دی، پخپله په هغې کښې هم دَ حضرت عیسیٰؑ دَ خپل یو قول نه دَ دې عقیدو ثبوت نهٔ مِلاویږی۔

انجیل برناباس په غیر صحیح کتابونو کښې په دې وجه شامل کړې شو چه هغه دَ مسیحیّت دَ دې سرکاری عقیدې نه بالکل خلاف وُو۔ دَ دې لیکوال دَ کتاب په شروع کښې دَ خپل کتاب مقصد دا بیانوی چه " دَ هغه خلقو دَ خیالاتو اصلاح دِ اُوکړې شی چه دَ شیطان په دوکه کښې راغلی دی او یسوع ته ابن الله وائی، دَ ختنې " سُنّت کول " غیر ضروری ګنړی، او حرام خوراک نه حلالوی، چه په هغې کښې یو دوکه خوړونکې پولوس هم دې"۔ هغه وائی چه کله حضرت عیسیٰؑ په دُنیا کښې موجود وُو په هغه زمانه کښې چه دَ هغه مُعجزې ښکاره شوې نو دَ ټولو نه مخکښې مشرکانو رُومی سپاهیانو هغه ته خدائې ویئل او څینو کسانو ورته دَ خدائې ځوئې ویئل شروع کړل، بیا دا مرض دَ بنی اسرائیلو عوامو ته هم اُولږیدو۔ په دې باندې حضرت عیسیٰؑ سخت پریشانه شو۔ هغه باربار ډیر په سختئ سره دَ خپل ځان په حقله دَ دې غلطې عقیدې تردید اُوکړو او په هغه خلقو باندې ئې لعنت اُولیږلو چه دَ هغه په حقله به ئې داسې خبرې کولې۔ بیا هغه خپل شاګردان په ټول یهود یه کښې دَ دې عقیدې دَ تردید دَ پاره اُولیږل او دَ هغه په دُعا سره دَ شاګردانو دَ لاسه هم هغه معجزې ښکاره کړې شوې چه په پخپله دَ حضرت عیسیٰؑ نه ښکاریدلې، دَ پاره دَ دې چه خلق دَ دې غلط خیال کولو نه منع شی چه دا معجزې دَ چا دَ لاس نه ښکاره کیږی هغه ګنی خدائې یا دَ خدائې ځوئې دې۔ په دې سلسله کښې هغه دَ حضرت عیسیٰؑ تفصیلی تقریرونه نقل کوی چه په هغې کښې هغه ډیر په سختئ سره دَ دې غلطې عقیدې تردید کړې وُو، او ځائې په ځائې دا لیکی چه حضرت عیسیٰؑ دَ دې ګمراهئ په خوریدو باندې ډیر پریشانه وُو۔ دَ دې نه علاوه هغه دَ دې پولوسی عقیدې هم صفا صفا تردید کوی چه مسیح علیه السّلام په صلیب باندې رُوح ورکړې وُو۔ هغه دَ خپلو سترګو لیدلی حالات دا بیانوی چه کله یهودا اسکریوتی دَ یهودیانو دَ سردار

کا هن نه رشوت واخستو او دَ حضرت عیسیٰؑ دَ نیو لو دَ پاره دَ سپاهیانو سره راغے نو دَ الله تعالیٰ په حکم سره څلورو فرښتو حضرت عیسیٰؑ پورته اُوچت کړو، او دَ یهوداه اسکریوتی شکل او آوازے بالکل هغه شان کړو کوم چه دَ حضرت عیسیٰؑ وُو۔ په صلیب ( یعنی سُولیٰ ) باندِ هم هغه خیږوَلے شوے وُو نهٔ چه حضرت عیسیٰؑ ۔ په دِے طریقه دا انجیل دَ پولوسی مسیحیّت جرړے پریکوی او دَ قرآن دَ بیان پوره توثیق ( یعنی پخلے ) کوی ۔ حالانکه دَ قرآن دَ نازلیدو نه پخُه کم شپږ شلے کاله مخکښے دَ هغه دَ دے بیانا تو په وجه مسیحی پادری هغه رد کړے وُو۔

۱۲۔ دَ دے بحث نه دا خبره واضحه کیږی چه انجیل برناباس په حقیقت کښے دَ څلورو وارو انجیلونو نه زیات معتبر انجیل دےؑ، دَ مسیح علیه السّلام دَ تعلیماتو، دَ هغه دَ سیرت او دَ هغه دَ اقوالو صحیح ترجمانی کوی، او دا دَ عیسایانو خپله بد قسمتی ده چه دَ دے انجیل په ذریعه دَ خپلو عقیدو دَ صحیح کولو او دَ حضرت مسیح دَ اصلی تعلیماتو پیژندلو کومه موقعه هغوئ ته مِلاوُ شوی وه هغه صرف دَ ضد په وجه هغوئ ضایع کړه۔ دَ دے نه روستو مونږ به په اطمینان سره هغه زیری نقل کوو لے شو کوم چه دَ رسول الله صلی الله علیه وسلّم په باره کښے برناباس دَ حضرت عیسیٰؑ نه روایت کړی دی۔ په دے بشارتونو ( یعنی زیرو او پیشنګویانو ) کښے حضرت عیسیٰؑ په یو نیم ځائے کښے دَ نبیؐ نوم اخلی، په یو نیم ځائے کښے " رسول الله "وائی، په یو نیم ځائے کښے دَ هغه دَ پاره لفظ " مسیح " استعمالوی، چرته " قابل تعریف " (Admirable) استعمالوی او چرته صفاصفا داسے فقرے فرمائی چه بالکل دَ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللهُ مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللهِ په شان معنیٰ لری۔ مونږ هغه ټول بشارتونه دلته نشو لیکلے، ځکه چه هغه دومره زیات دیٔ چه دَ هغے نه یو اوږده رساله جوړیږی۔ دلته مونږ صرف دَ نمونے په طور یو څو لیکو؛

" ټول پیغمبران چه خدائے دُنیا ته رالیږلی دی، چه په شماره یولاک څلورشلو زره وُو، هغوئ په ابهام سره ( یعنی په ګول مول انداز کښے ) خبره کړی ده۔ لیکن ځما نه روستو به دَ ټولو پیغمبرانو او دَ مقدسو هستیانو نُور راځی چه دَ پیغمبرانو په ویلے شوُو خبرو باندِ به رڼړا اچوی ځکه چه هغه دَ خدائے رسول دے "۔ ( باب ۱۷ )۔

" فریسیانو او لاویانو اُووئیل چه ته نهٔ مسیح ئے، نهٔ الیاس، نهٔ بل نبی، نو ته وَلے شوے تعلیم ورکوے او خپل ځان دَ مسیح نه هم زیات پیش کوے؟ یسوع جواب ورکړو چه کوم معجزے خدائے پاک ځما دَ لاس نه ظاهروی دَ هغے نه دا معلومیږی چه څه هغه څه وایم کوم چه خدائے غواړی، کنیٔ نو څه په حقیقت کښے خپل ځان دَ هغه " مسیح " نهٔ دَ شمېرلو قابل نهٔ یم دَ کوم ذکر چه تاسو کوئ۔ څه خو دَ خدائے دَ هغه رسول دَ موزو بند یا دَ هغه دَ پیزار دَ تسمو پرانستلو لائق هم نهٔ یم چا ته چه تاسو مسیح وائی، چه ځما نه مخکښے جوړ کړے شوے وُو او ځما نه روستو به راځی او دَ صداقت خبری به راوړی دَ پاره دَ دے چه دَ هغه دَ دین څه انتها نهٔ وی " ( باب ۴۲ )۔

" په یقین سره څه تاسو ته وایم چه کوم نبی راغلے دے هغه صرف دَ یو قوم دَ پاره دَ خدائے دَ رحمت دَ نښے په حیثیت سره پیدا شوے دے۔ دا وجه ده چه دَ هغه پیغمبرانو خبری دَ هغه خلقو نه سِوا چرته په بل ځائے کښے خورے نهٔ شوے چا ته چه هغوئ لیږلے

شوی وُو۔ خود خدائے رسول چه کله راشی ، گویا چه خدائے به هغه له دَ خپل لاس مُهر ورکړی ، اَنْ تردے پورے هغه به دَ دُنیا هغه ټولو قومونو ته چه دَ هغه تعلیم بیاموّمی ، نجات اورحمت رَسَوی ۔ هغه به په بے خدایه خلقو باندِ دَ اقتدار سره راځی اوبُت پرستی به داسے ختموی چه شیطان به پریشانه شی ۔ دَدے نه وړاندِ دَ شاګردانو سره په اُوږد بحث کښے حضرت عیسیٰ څرګند بیان کړی چه هغه به دَ بنی اسماعیل دَ ځا ګی نه وی ( باب ۴۳ ) ۔

" ځکه څه تاسو ته وایم چه دَ خدائے رسول هغه رڼا ده چه په څخ سره به تقریباً دَ خدائے پیداکړے شوُو ټولو څیزونو ته خوشحالی نصیب شی ځکه چه دَ هغه پوهے اودَ نصیحت نه ، دَ حکمت اودَ طاقت نه ، دَ یرے اودَ محبت نه ، دَ احتیاط او دَ پرهیزګاری دَ رُوح نه ډک دے ۔ هغه دَ سخاوت اودَ رحمت ، دَ عدل او دَ تقوی ، دَ شرافت اودَ صبر دَ رُوح نه بنایسته مُوندلے دے ، دا رُوح چه خدائے په خپل مخلوق کښے چاله ورکړے دے دَ هغوئ ټولو په نسبت درے چنده زیات هغه ته ملاوُ شوے دے ۔ ځکه برکتناک وخت به وی کله چه هغه دُنیاته راشی ۔ یقین اُوکړئ ما هغه لیدلے دے اودَ هغه تعظیم مِ کړے دے لکه څنګه چه هر نبی هغه لیدلے دے ۔ دَ هغه رُوح ته دَکتو په وجه خدائے هغه له نبوّت ورکړو ۔ اوکله چه ما هغه اُولیدو نوځما رُوح به دِے ویناسره دَ تسکین نه ډک شو چه اے محمّد ، خدائے دِ ستاملَ وی ، او هغه دِ ما ستا دَ پیزار دَ تسمو تړلو قابل کړی ، ځکه چه که چرے دا مرتبه راته مِلاوُ شی نوځه به یولوئ نبی اودَ خدائے یوه پاکه هستی شم " ( باب ۴۴ ) ۔

" ( ځما په تلوسره ) دِ ستا زړه پریشانه نهٔ شی ، مهٔ ته یَره کوه ، ځکه چه ما تهٔ پیداکړے نهٔ یے ، بلکه خدائے زمونږه خالق ، چه تهٔ ئے پیداکړے یے ، هم هغه به ستا حفاظت کوی ۔ پاتے شوم څه ، نو په دِے وخت کښے څه دَ خدائے دَ هغه رسول دَ لارے تیارَولو دَ پاره راغلے یم چه هغه به دَ دُنیا دَ پاره دَ ځان سره نجات راوړی ..... اندریاس اُوویُل اے اُستاذه ، مونږ ته دَ هغه نښه اُوښایه چه مونږئے اُوپیژنو ۔ یَسوع جواب ورکړو هغه به ستاسو په زمانه کښے نهٔ راځی بلکه ستاسو نه به یوڅوکاله روستو راځی چه ځما انجیل به داسے مسخ شوے وی چه به مُشکله سره به دیرش سرے مومنان پاتے شوی وی ۔ په هغه وخت کښے به الله په دُنیا باندِ رحم اُوکړی اوخپل رسول به رااُولیږی چه په سر به ئے دَ سپینے وریځے سورے وی چه دَ هغے په وجه به دَ خدائے مَیَن ګڼړلے شی ، اودَ هغه په ذریعه به دَ خدائے پیژندګلو دُنیا ته حاصله شی ۔ هغه به دَ بے خدایه خلقو خلاف دَ ډیر طاقت سره راځی او په زمکه به بُت پرستی ختموی ۔ اوماته په دِے ډیره خوشحالی ده ځکه چه په دے ذریعه به زمونږه خدائے اُوپیژندلے شی او دَ هغه پاکی به وی اوځما صداقت به دُنیا ته معلوم شی او هغه به دَ هغه خلقو نه بدله واخلی چه ما دَ انسان نه زیات څه څیز ګرځوی ..... هغه به دَ یو داسے صداقت سره راځی چه دَ ټولو پیغمبرانو دَ صداقت نه به زیات څرګند وی " ( باب ۷۲ ) ۔

"دَ خدائے وعده په یروشلم کښې، دَ سلیمان په عبادت خانه کښې دَ ننه شوې وه، بل ځائے نهٔ وه شوې۔ لیکن ځما په خبره یقین اُوکړئ چه یو وخت به را شی چه خدائے به خپل رحمت په بل ښار کښې نازل کړی، بیا به په هر ځائے کښې دَ هغه صحیح عبادت کیدے شی، او الله به په خپل رحمت سره په هر ځائے کښې رښتینې مونځ قبلوی۔ ..... څه په اصل کښې دَ اسرائیل کورنئ ته دَ نجات نبی رالیږلے شوے یم، لیکن ځما نه روستو به مسیح راځی، دَ خدائے رالیږلے شوے، ټولے دُنیا ته، چه دَ هغه دَپاره خدائے دا ټوله دُنیا جوړه کړی ده، په هغه وخت کښې به په ټوله دُنیا کښې دَ الله عبادت کیږی او دَ هغه رحمت به نازلیږی" (باب ۸۳)۔

"(یسوع سردارکاهن ته اُووئیل) په ژوندی خدائے م قَسم چه هغه ته ځما رُوح حاضر دے، څه هغه مسیح نهٔ یم چه دَ هغه دَ راتلو انتظار دَ ټولے دُنیا قومونه کوی، چه دَ هغه وعده زمونږه دَ پلار ابراهیمؑ سره خدائے په دے وینا کړې وه چه "ستا دَ نسل په وسیله سره به دَ زمکے ټول قومونه برکت بیا مومی" (پیدائش، ۲۲:۱۸)۔ لیکن چه کله خدائے ما دَ دُنیانه بوځی نو شیطان به بیا دا بغاوت را پورته کوی چه غیر پرهیزګار خلق ما خدائے او دَ خدائے ځوئے اُومنی۔ دَ هغے په وجه به ځما خبرې او ځما تعلیمات مسخ کړے شی ان تر دے پورے چه په مشکله به دیرش کسان ایماندار پاتے شی۔ په هغه وخت کښې به خدائے په دُنیا باندې رحم اُوکړی او خپل رسول به را اُولیږی چه دَ هغه دَپاره هغه دَ دُنیا دا ټول څیزونه جوړ کړی دی، چه دَ طاقت سره به دَ جنوب نه راځی او بُتان به دَ بُت پرستانو سره برباد کړی، چه دَ شیطان نه به هغه اقتدار په زور واخلی کوم چه هغه په انسانانو باندې حاصل کړے دے۔ هغه به دَ ځان سره دَ خدائے رحمت دَ هغه خلقو دَ نجات دَپاره راوړی چه په هغه باندې ایمان راوړی، او برکتناک دے هغه څوک چه دَ هغه خبرې اُومنی" (باب ۹۶)۔

"سردارکاهن تپوس اُوکړو آیا دَ خدائے دَ هغه رسول نه روستو به بل نبی هم راځی؟ یسوع جواب ورکړو دَ هغه نه روستو به دَ خدائے رالیږلے شوے رښتینې نبی نهٔ راځی خو دَ دروغو ډیر نبیان به راځی چه ما سره دَ هغے ډیر غم دے۔ ځکه چه شیطان به دَ خدائے دَ عادلانه فیصلے په وجه هغوئ اُوچت کړی او هغوئ به ځما دَ انجیل په پرده کښې خپل ځانونه پټوی" (باب ۹۷)۔

"سردارکاهن تپوس اُوکړو چه هغه مسیح به په کوم نوم سره یادیږی او دَ هغه دَ راتلو به څه نښے وی؟ یسوع جواب ورکړو دَ هغه مسیح نوم "دَ تعریف قابل" یعنی "ستائیلے شوے" دے ځکه چه خدائے کله دَ هغه رُوح پیدا کړے وُو نو په هغه وخت ئے دَ هغه دا نوم پخپله کیښودلے وُو، او هلته هغه په یو ملکوتی شان کښې ساتلے شوے وُو۔ خدائے اُووئیل "اے محمدؐ انتظار کوه، ځکه چه ستا دَ خاطره به څه جنّت، دُنیا او ډیر مخلوق پیدا کوم، او هغه به تا له دَ تحفے په طور درکوم، ان تر دے پورے چه څوک په تا برکت لیږی هغه له به برکت ورکړے کیږی او څوک چه په تا لعنت کوی په هغه به لعنت کیږی۔ هرکله چه څه تا دُنیا ته لیږم نو څه به تا خپل پیغمبر دَ نجات په حیثیت سره لیږم۔ ستا خبره

بهٔ ربښتینې وی آٰ تردے پورے چه زمکه او آسمان به اُوخوزی لیکن ستا دین به نهٔ خوزی - دَ هغه برکتناک نوم محمدٌ دے" (باب ۹۷)۔

برناباس لیکی چه په یو موقع کښے حضرت عیسیٰؑ شاگردانو ته اُووئیل چه ځما دَ شاگردانو نه یو (چه روستو بیا معلوم شو چه یهوداه اسکریوتی وُو) دَ دیرشو سکوّ په بدله کښے ما دَ دُشمنانو په لاس خرڅوی، بیا ئے اُوفرمائیل،

"دَ دے نه روستو ځما یقین دے چه څوک ما خرڅوی هغه به هم ځما په نوم مړ کیږی، ځکه چه خدائے به ما دَ زمکے نه پورته واخلی او دَ هغه غدارسړی شکل به داسے بدل کړی چه هر سړے به دا گمان کوی چه هغه څهٔ یم - بیا هم چه کله هغه په خراب مرګ مړ شی نو دَ یو ے مودے پورے به ځما سپکاوے کیږی - خو کله چه محمد دَ خدائے پاک رسول راشی نو ځما هغه بدنامی به لرے کړے شی - او خدائے به دا په دے وجه کوی چه ما دَ هغه مسیح دَ صداقت اقرار کړے دے - هغه به ماله دَ هغے دا انعام راکړی چه خلقو ته به معلومه شی چه څهٔ ژوندے یم او دَ هغه ذلت دَ مرګ سره ځما هیڅ واسطه نشته" (باب ۱۱۳)۔

"(شاگردانو ته حضرت عیسیٰؑ اُووئیل) بے شکه څهٔ تاسو ته وایم چه که چرے دَ موسیٰ دَ کتاب نه صداقت نه وے مسخ کړے شوے نو خدائے به زمونږه پلار داؤد ته یو بل کتاب نهٔ وے ورکړے - او که چرے دَ داؤد په کتاب کښے تعریف نهٔ وے شوے نو خدائے به ماله انجیل نهٔ وے راکړے، ځکه چه خداوند زمونږه خدائے بدلیدونکے نهٔ دے او هغه ټولو انسانانو ته اِکّے یو پیغام ورکړے دے - نو کله چه دَ الله رسول راشی نو هغه به دَ دے دَپاره راځی چه هغه ټول څیزونه صفا کړی په کوم چه بے خدایه خلقو ځما ککړ کړے دے" (باب ۱۲۴)۔

په دے صفا صفا او تفصیلی پیش گویانو کښے صرف درے څیزونه داسے دی چه په ظاهره په نظر بشه نهٔ لږی - یو دا چه په دے کښے، او دَ انجیل برناباس په نورو ډیرو عبارتونو کښے حضرت عیسیٰ علیه السّلام دَ خپل مسیح کیدو نه انکار کړے دے - دویم دا چه یوازے په دے عبارتونو کښے نهٔ بلکه دَ دے انجیل په ډیرو ځایونو کښے دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم اصلی عربی نوم "محمّد" لیکلے شوے دے حالانکه دا دَ پیغمبرانو دَ پیش گویانو عامه طریقه نهٔ ده چه دَ روستو راتلونکی هستیٔ اصلی نوم واغستلے شی - دریم دا چه په دے کښے نبی صلی الله علیه وسلم ته مسیح وئیلے شوے دے -

دَ اولنی خبرے جواب دا دے چه یوازے په انجیلِ برناباس کښے نهٔ بلکه دَ لوقا په انجیل کښے هم دا ذکر موجود دے چه حضرت عیسیٰؑ خپل شاگردان دَ دے خبرے نه منع کړی وُو چه هغه ته مسیح اُووائی - دَ لوقا الفاظ دا دی،

"هغه هغوئ ته اُووئیل، لیکن تاسو ماته څه وایئ؟ پطرس په جواب کښے اُووئیل دَ خدائے مسیح - هغه هغوئ ته په تاکید سره حکم اُوکړو چه دا چاته مه وایئ" (۹: ۲۰-۲۱) - غالباً دَ دے وجه دا وه چه بنی اسرائیل دَ کوم مسیح په انتظار کښے وُو دَ هغه په حقله دَ هغوئ دا خیال وُو چه هغه به دَ تورے په زور دَ حق په دُشمنانو باندِ غالب کیږی، په دِ ے وجه حضرت عیسیٰؑ اُوفرمائیل چه هغه مسیح څهٔ نهٔ یم بلکه هغه ځما نه روستو راتلونکے دے -

دَ دویمے خبرے جواب دا دے چه دَ برناباس کوم اطالوی ترجمه په دے وخت کښے په دُنیا کښے موجود ده په

هغې کښې خود نبیؐ نوم بې شکه محمّد لیکلې شوې دې، لیکن دا هیڅ ته معلومه نهٔ ده چه دا کتاب د څومره ژبونه ترجمه شوې دے او اطالوی ژبے ته رارسیدلی دې ـ ظاهره خبره ده چه اصلی انجیل برناباس به په سُریانیٔ ژبه کښے وی، ځکه چه هغه د حضرت عیسیٰؑ او د هغه د ملګرو ژبه وه ـ که چرته هغه اصل کتاب وے نو بیا به لیدے شوه چه په هغې کښے د نبیؐ نوم څه لیکلے شوے وُو ـ اُوس چه کوم قیاس کیدے شی هغه دا دے چه په اصل کښے خو به حضرت عیسیٰؑ لفظ مُنحمنّا استعمال کړے وی، لکه څنګه چه مونږه د ابنِ اسحاق د ورکړے شوی انجیل یوحنّا په حواله سره ویلی دی ـ بیا به مختلفو ترجمه کونکو په خپلو خپلو ژبو کښے د دے ترجمے کړی وی ـ د دے نه روستو به غالباً چه یو ترجمه کونکی دا ولیدلی وی چه په پیشن ګوییٔ کښے د راتلونکی پیغمبر کوم نوم ښودلے شوے دے هغه بالکل د "مُحَمّد" معنیٰ لری، نو هغه به د هغه هم دغه نوم لیکلے وی ـ په دې وجه تش د دې نوم د وجے نه دا شُبهه کول هرګز کافی نهٔ ده چه ټول انجیلِ برناباس یو مسلمان د ځانه لیکلے دے ـ

د دریم خبری جواب دا دے چه لفظ مسیح په حقیقت کښے یو اسراعیلی ټکے دے چه په قرآن مجید کښے خاص طور د حضرت عیسیٰؑ د پاره صرف په دے وجه استعمال کړے شوے دے چه یهود یانو به د هغه د مسیح کیدو نه انکار کوو، کنهٔ نو نهٔ دا د قرآن اِصطلاحی ټکے دے نهٔ په قرآن کښے چرته دا د اسرائیلی اصطلاح په معنو کښے استعمال کړے شوے دے ـ نو که چرے د رسول الله صلی الله علیه وسلّم په حق کښے حضرت عیسیٰ علیه السّلام لفظ مسیح استعمال کړے وی او په قرآن کښے د هغه د پاره دا لفظ استعمال کړے شوے نهٔ وی نو د دے نه دا نتیجه نشی راویستلے کیدے چه انجیل برناباس نبیؐ ته یو داسے څیز منسوب کوی چه د هغې نه قرآن اِنکار کوی ـ په اصل کښے د بنی اسراءیلو عِبرانیٔ طریقه داوه چه یو څیز یا یو سړے به کله د یو پاک مقصد د پاره خاص کړے شو نو په هغه څیز باندې یا د هغه سړی په سر باندې به تیل اُومږلے شو او هغه به برکتناک (Consecrate) کړے شو ـ په عبرانیٔ ژبه کښے به د تیلو مږلو دې کار ته مسح خلقو ویله او چه په چا به مږلے کیدل هغه ته به مسیح ویلے کیدو ـ د عبادت خانے لوښی به په دے طریقه مسح کړے شو او د عبادت د پاره به وقف کړے شو ـ کاهنان چه به د کهانت (Priesthooni) په منصب باندې مقرر کړے شو نو هغوی به هم مسح کړے کیدل ـ بادشاه او نبی به هم چه کله د خدائے د طرفنه د بادشاهیٔ یا د نبوت د پاره مقرر کړے کړے شو نو هغوئ به مسح کړے کیدل ـ چنانچه د بائیبل مطابق د بنی اسراءیلو په تاریخ کښے ډیر مسیحان موندلے کیږی ـ حضرت هارونؑ د کاهن په حیثیت سره مسیح وُو ـ حضرت موسیٰؑ د کاهن او د نبی په حیثیت سره، طالوت د بادشاه په حیثیت سره، حضرت داوُد د بادشاه او د نبی په حیثیت سره، مَلکِ صَدَق د بادشاه او د کاهن په حیثیت سره، او حضرت اَلْیَسَع د نبی په حیثیت سره مسیحان وُو ـ روستو بیا دا هم ضروری نهٔ وه چه په تیلو مږلو دِ څوک مقرر کړے شی بلکه تش مامور من الله کیدل به د مسیح کیدو د پاره کافی وُو ـ د مثال په طور اُوګوره ا ـ سلاطین باب ۱۹ کښے ذکر راغلے دے چه خدائے حضرت الیاس (ایلیاه) ته حکم اُوکړو چه حزائیل مسح کړه چه د آرام (دمشق) بادشاه شی، او د نِمسی ځوئے یاهو مسح کړه چه د اسراءیل بادشاه شی، او الیشع (اَلْیَسَع) مسح کړه چه ستا په ځائے نبی شی ـ په دوئ کښے د هیچا په سر باندې تیل او نهٔ مږلے شو ـ بس د خدائے د طرفنه د هغوئ د مقرریدو فیصله اَوروَل ګویا د هغوئ مسح کول وُو ـ نو د اسراءیلی تصوّر مطابق لفظ مسیح په حقیقت کښے د "مامور من الله" معنیٰ لرله او هم په دې معنیٰ کښے حضرت

فَلَمَّا جَآءَهُمْ بِالْبَيِّنٰتِ قَالُوْا هٰذَا سِحْرٌ مُّبِيْنٌ ۝۶ وَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرٰى عَلَى اللّٰهِ الْكَذِبَ وَهُوَ يُدْعٰٓى اِلَى الْاِسْلَامِ ؕ وَاللّٰهُ لَا يَهْدِى الْقَوْمَ الظّٰلِمِيْنَ ۝۷ يُرِيْدُوْنَ لِيُطْفِـُٔوْا نُوْرَ اللّٰهِ بِاَفْوَاهِهِمْ وَاللّٰهُ مُتِمُّ نُوْرِهٖ وَلَوْ كَرِهَ الْكٰفِرُوْنَ ۝۸

خو هر کله چه هغه هغوئ ته دَ صفا صفا نښو سره راغے نو هغوئ او وئيل چه دا خو ښکاره دوکه ده [۹]۔ بنه نو اوس به دَ هغه سړی نه غټ ظالم بل څوک وی چه هغه په الله پورے دروغ بُهتان اُوتړی حالانکه هغه ته دَ اسلام (يعنی الله ته دَ اطاعت دَ سر ښکته کولو) دعوت ورکړے کيږی؟ [۱۰] دا سے ظالمانو ته الله هدايت نهٔ کوی۔ دا خلق غواړی چه دَ خپلو خلُو په پوکو دَ الله نُور مړکړی او دَ الله فيصله دا ده چه هغه به خامخا خپل نُور پوره پوره خوَرَوِی اگر که کافران ئے هرڅومره نهٔ خوښوی [۱۱]۔

عيسیٰ عليه السّلام دَ رسول الله صلی الله عليه وسلم دَ پاره دا لفظ استعمال کړے وُو (دَ لفظ "مسيح" چه کوم اسرائيلی مفهوم دے دَ هغے دَ تشريح دَ پاره اُوگورهٔ سائيکلوپيډيا آف ببليکل لټريچر لفظ "ميسياه")۔

[۹] په اصل کښے لفظ سحر استعمال شوے دے۔ سحر دلته دَ جادو په معنیٰ کښے نهٔ بلکه دَ دوکے په معنیٰ کښے استعمال شوے دے۔ په عربئ ژبه کښے دَ جادو پشان دَ دے دا معنیٰ هم مشهوره ده۔ وائی چه سَحَرَهٗ اَیْ خَدَعَهٗ "هغه په فلانی سړی جادو اُوکړو، هغه له ئے دوکه ورکړه"۔ زړه وړونکو سترگو ته "عَيْنٌ سَاحِرَةٌ" وئيلے کيږی، (يعنی ساحرے سترگے)۔ په کومه زمکه کښے چه هر طرف ته سَراب سَراب ښکاری هغے ته اَرْضٌ سَاحِرَةٌ وائی۔ دَ سپينو زرو دَ پاسه چه سرهٔ زر اُوخيژولے شی نو وائی چه سُحِرَتِ الْفِضَّةُ۔ نو دَ آيت مطلب دا دے چه هر کله هغه نبی، چه دَ هغه دَ راتلو زيرے حضرت عيسیٰ عليه السّلام ورکړے وُو، دَ خپلے پيغمبرئ دَ واضحه نښو سره راغے نو بنی اسرائيلو او دَ عيسیٰ اُمّت اُو وئيل چه دَ ده دَ نبوّت دعویٰ ښکاره دوکه ده۔

[۱۰] يعنی دَ الله راليږلی شوی نبی ته دروغژن اُو وائی، او دَ الله هغه کلام چه دَ هغه په نبی باندِ نازليږی هغے ته دَ نبی خپل جوړ کړے کلام اُو وائی۔

[۱۱] يعنی اوّل خو ريښتينی نبی ته دَ دروغو دَ غوَگير وئيل څه کم ظلم نهٔ دے، لا چه دَ دے دَ پاسه دا ظلم اُوشی چه بلو نکے دَ خدائے بندگئ ته رابلل کوی او اَوريدونکے په جواب کښے هغه ته کنځلے اُوکړے او دَ هغه دعوت ته دَ نقصان رسولو دَ پاره دروغ او بُهتان لګول شروع کړی۔

هُوَ الَّذِيٓ اَرْسَلَ رَسُوْلَهٗ بِالْهُدٰى وَدِيْنِ الْحَقِّ لِيُظْهِرَهٗ عَلَى الدِّيْنِ كُلِّهٖ وَلَوْ كَرِهَ الْمُشْرِكُوْنَ ﴿۹﴾ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا هَلْ اَدُلُّكُمْ عَلٰى تِجَارَةٍ تُنْجِيْكُمْ مِّنْ عَذَابٍ اَلِيْمٍ ﴿۱۰﴾

هم هغه دے چه خپل رسول ئے دَ هدایت او دَ حق دین سره رالیږلے دے چه هغه په ټول دین باندې غالب کړي اګر که مشرکانو[۱۳] هرڅومره نه خوښوي - ع

اے هغه خلقو چه ایمان مو راوړے دے، څه درته اُوښایم هغه تجارت[۱۴] چه تاسو دَ دردناک عذاب نه بچ کړي ؟

[۱۲] داخبره په ذهن کښے یاده ساتئ چه دا آیتونه په دریمه هجرئ کښے دَ جنګ اُحُد نه روستو نازل شوی وُو چه اسلام لا صرف په مدینه کښے وُو، دَ مسلمانانو تعداد صرف یوڅو زره وُو، او ټول عرب دَ دے دین دَ ختمولو دَ پاره ملا تړلی وه - دَ اُحُد په جنګ کښے چه کوم نقصان مسلمانانو ته رسیدلے وُو دَ هغې په وجه دَ هغوئ دبدبه ختمه شوی وه، او دَ خواؤ شا قبائیل پرے زړَوَر شوی وُو- په دِے حالاتو کښے اُوفرمائیلے شو چه دَ الله دا نُور به څوک مړ نهٔ کړے شي بلکه بښه به روښانه شی او په ټوله دُنیا کښے به خور شي - دا یوه څرګنده پیشن ګوئ ده چه ټکے په ټکی صحیح ثابته شوه - دَ الله نه سوا په هغه وخت کښے بل چاته دا معلومه وه چه دَ اسلام مستقبل څه دے؟ انسان ته خو په هغه وخت کښے دا معلومیدله چه دا یوه شمع کیدونکی ډیوه ده او دَ مړکولو دَ پاره پرتیزے هواګانے وررواٰنے دی -

[۱۳] دَ "مشرکانو" نه مُراد هغه خلق دی چه دَ الله دَ بندګئ سره نورے بندګیانے شریکوی، او دَ الله په دین کښے نُور دینونه ورګډئ کوی - یعنی هغه خلق چه په دِے خبره راضی نهٔ دی چه دَ ژوند ټول نظام دِ صرف دَ یو خدائے په اطاعت او هدایت باندې قایم وی - چه هغوئ په دِے خبره ټینګ ولاړ دی چه دَ خپلے خوښے دَ معبودانو بندګی به کوی او دَ خپلے خوښے دَ فلسفو او نظریاتو مطابق به خپلے عقیدے، اخلاقیات او دَ ژوند تیرَولو نقشه جوړوی - دَ دا سے ټولو خلقو دَ مزاج خلاف دا فرمائی چه دَ الله رسول دَ هغوئ سره دَ مصالحت کولو دَ پاره نهٔ دے رالیږلے شوے بلکه دَ دے دَ پاره رالیږلے شوے دے چه کوم هدایت او حق دین هغه دَ الله دَ طرفنه راوړے دے هغه په ټول دین یعنی دَ ژوند په هر اړخ باندې غالب کړي - دا کار به هغه خامخا کوی - که کافران او مشرکان ئے منی بیا هم او که نهٔ ئے منی نو بیا هم او که دَ څنی نیوی دَ پاره ډیر زور او لګوی نو بیا هم، دَ رسول دا مِشن به په هر حالت کښے پوره کیږی - دا اعلان دَ دے نه مخکښے په قرآن کښے دوه ځایه شوے دے - یو، دَ سورة توبه په آیت ۳۳ کښے - دویم، دَ سورة فتح په آیت ۲۸ کښے - اوُس په دریم ځل دلته بیا کیږی - ( دَ زیاتے تشریح دَ پاره اُوګوره تفهیم القرآن، دویم جلد، التوبه حاشیه ۳۲، پنځم جلد، الفتح، حاشیه ۵۱ ) -

تُؤۡمِنُوۡنَ بِاللّٰهِ وَ رَسُوۡلِهٖ وَ تُجَاهِدُوۡنَ فِیۡ سَبِیۡلِ اللّٰهِ بِاَمۡوَالِکُمۡ وَ اَنۡفُسِکُمۡ ؕ ذٰلِکُمۡ خَیۡرٌ لَّکُمۡ اِنۡ کُنۡتُمۡ تَعۡلَمُوۡنَ ﴿ۙ۱۱﴾ یَغۡفِرۡ لَکُمۡ ذُنُوۡبَکُمۡ وَ یُدۡخِلۡکُمۡ جَنّٰتٍ تَجۡرِیۡ مِنۡ تَحۡتِهَا الۡاَنۡهٰرُ وَ مَسٰکِنَ طَیِّبَةً فِیۡ جَنّٰتِ عَدۡنٍ ؕ ذٰلِکَ الۡفَوۡزُ الۡعَظِیۡمُ ﴿ۙ۱۲﴾ وَ اُخۡرٰی تُحِبُّوۡنَهَا ؕ نَصۡرٌ مِّنَ اللّٰهِ وَ فَتۡحٌ قَرِیۡبٌ ؕ وَ بَشِّرِ الۡمُؤۡمِنِیۡنَ ﴿۱۳﴾

ایمان راوړئ په الله او د هغه په رسول[۱۵] باندې، او جهاد اوکړئ د الله په لار کښې په خپلو مالونو سره او په خپلو ځانونو سره ـ هم دا ستاسو د پاره بهتره ده که تاسو پوهیږئ[۱۶]، الله به ستاسو ګناهونه معاف کړي او تاسو به داسې باغونو ته ورننباسي چه لاندې به ترې نهرونه بهیږي، او د همیشه اوسیدو په جنتونو کښې به درله بهترین کورونه درکړي دا لویه کامیابي ده[۱۷] ـ او هغه دویم څیز چه تاسو غواړئ هغه به هم درکړي، (یعنې) د الله د طرفنه امداد او نزدې حاصلیدونکې فتح[۱۸] ـ اے نبی، مومنانو ته د دے زیرے ورکړه ـ

[۱۴] تجارت یو داسې څیز دے چه سړے پکښې خپل مال، وخت، محنت او ذهانت او قابلیت د دے د پاره خرچ کوي چه هغه ته نفع حاصله شي ـ په دې وجه دلته ایمان او جهاد فی سبیل الله ته تجارت وئیلے شوے دے ـ مطلب دا دے که تاسو په دې لار کښې خپل هرڅه خرچ کړل نو هغه نفع به درته حاصله شي کومه چه وړاندې بیانیږي ـ هم دا خبره د سورة توبه په آیت ۱۱۱ کښې په یوه بله طریقه بیان کړے شوې ده ـ (اوګورئ تفهیم القرآن، دویم جلد، التوبه، حاشیه ۱۰۶) ـ

[۱۵] مومنانو ته چه کله اووئیلے شي چه تاسو ایمان راوړئ، نو د دے نه ښکاره دا مطلب راوځي چه مخلص مسلمانان جوړ شئ ـ تش د ژبې په دعوو اکتفا مه کوئ بلکه چه په کوم څیز مو ایمان راوړے دے د هغې د پاره هر قسم قربانۍ کولو ته تیار شئ ـ

[۱۶] یعنې دا تجارت ستاسو د پاره د دُنیا د تجارتونو نه زیات بهتر دے ـ

[۱۷] دا د دے تجارت اصلي فایده ده چه د آخرت په همیشه ژوند کښې به حاصلیږي ـ یو، د خدائے د عذاب نه محفوظ پاتې کیدل، دویم، د ګناهونو معافي، دریم، د خدائے هغه جنتونو ته ورننوتل، چه نعمتونه به ئې همیشه وي زوال به نه مومي ـ

يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ كُونُوٓا۟ أَنصَارَ ٱللَّهِ كَمَا قَالَ عِيسَى ٱبْنُ مَرْيَمَ لِلْحَوَارِيِّـۧنَ مَنْ أَنصَارِىٓ إِلَى ٱللَّهِ ۖ قَالَ ٱلْحَوَارِيُّونَ نَحْنُ أَنصَارُ ٱللَّهِ ۖ فَـَٔامَنَت طَّآئِفَةٌ مِّنۢ بَنِىٓ إِسْرَٰٓءِيلَ وَكَفَرَت طَّآئِفَةٌ ۖ فَأَيَّدْنَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ عَلَىٰ عَدُوِّهِمْ فَأَصْبَحُوا۟ ظَٰهِرِينَ ﴿١٤﴾



اے هغه خلقو چه ایمان موراوړے دے، دَ الله مددګار شئ، لکه څنګه چه عیسیٰ ابن مریم حواریانو ته[19] وئیلی وُو: "الله طرفته (په بلنه کولو کښے) څوک ځما مددګار دے؟" او حواریانو جواب ورکړے وُو: "مونږه دَ الله مددګار یو[20]" په هغه وخت کښے دَ بنی اسراءیلو یوے ډلے ایمان راوړو او بلے ډلے انکار اُوکړو - بیا مونږه دَ دُشمنانو په مقابله کښے دَ مومنانو تائید اُوکړو او هم هغوی غالب شو[21]- ع

[18] په دُنیا کښے فتح او کامیابی هم اګرچه د الله یو لوئ نعمت دے، لیکن دَ مومن دَ پاره اصلی څیز دانه دے بلکه دَ آخرت کامیابی ده - داوجه ده چه کومه نتیجه دَ دُنیا په دِے ژوندُ کښے حاصلیدونکی ده دَ هغې ذکر روستو اُوکړے شو او کومه نتیجه چه به په آخرت کښے را اُوزی دَ هغې ذکر اوّل اُوکړے شو۔

[19] دَ حضرت عیسیٰ علیه السّلام دَ ملګرو دَ پاره په بائبل کښے عام طور لفظ "شاګرد" استعمال کړے شوے دے، لیکن روستو دَ هغوئ دَ پاره "رسول" (Apostiles) ټکے په عیسایانو کښے استعمالیدل شروع شو، په دِے معنیٰ کښے نهٔ چه هغوئ کنی دَ خدائے رسولان وُو، بلکه په دِے معنیٰ کښے چه حضرت عیسیٰ به هغوئ دَ خپل طرفته دَ تبلیغیانو په حیثیت فلسطین ته لیږل - یهودیانو به دَ عکښے ته دا لفظ دَ هغه خلقو دَ پاره استعمالَوَلُو چه دَ هیکل دَ پاره به چنده جمع کولو له لیږلے کیدل - دَ دے په مقابله کښے دَ قرآن ټکے "حواری" دَ دے دواړو مسیحی ټکونه بهتر دے - دَ دے لفظ اصل "حور" دے چه معنیٰ ئے ده سپینوالے دُوبی ته حواری ځکه وائی چه هغه جامے په وینځلو سره سپینوی - خالص او بے ګډونه څیز ته هم حواری وئیلے کیږی - کوم وړه چه چاڼ شوی وی او بُوس تر جُدا کړے کړے شوی وی هغې ته حُوّاریٰ وائی - دغه شان په دِے معنیٰ کښے دَ خالص دوست او دَ بے غرضه مرستیال دَ پاره دا لفظ وئیلے کیږی - ابن سیّده وائی "هر هغه سړے چه دَ چا په امداد کولو کښے مبالغه اُوکړی نو هغه دَ هغه حواری دے" (لسان العرب)۔

۲۰؎ دا په قرآن مجید کښې آخری ځائے دے چه هغه خلقوته دَ الله مددګاران ویلے شوی دی څوک چه دَ خدائے مخلوق دَ الله دَین ته را بلی او دَ کفر په مقابله کښې دَ الله دَ دین دَ غالب کولو کوشش کوی - دَ دے نه مخکښې هم دا مضمون دَ سورة آلِ عمران په آیت ۵۲ کښې، دَ سورة حج په آیت ۴۰ کښې، دَ سورة محمد په آیت ۷ کښې، دَ سورة حدید په آیت ۲۵ کښې او دَ سورة حشر په آیت ۸ کښې تیر شوے دے، او دَ دے آیتونو تشریح موږ په تفهیم القرآن اول جلد، آلِ عمران حاشیه ۵۰ کښې، دریم جلد، الحج، حاشیه ۸۴ کښې، پنځم جلد، سورة محمد حاشیه ۱۲ کښې، او سورة حدید حاشیه ۴۷ کښې کړې ده، دارنګے دَ سورة محمد په حاشیه کښې هم دَ دے مسئلے په یو اړخ باندې رڼا اچولې شوې ده - دَ دے باوجود دَ ځینو خلقو ذهن صفا نهٔ دے او وائی چه هرکله الله تعالیٰ قادرِ مطلق دے، دَ ټول مخلوق نه بے نیازه دے، دَ چا محتاج نهٔ دے او ټول دَ هغه محتاج دی نو یو بنده آخر دَ الله څنګه مددګار کیدے شی - دَ ذهن صفا کولو دَ پاره موږ ه دلته دَ دے مسئلے لږ زیات وضاحت کوُو-

په اصل کښې دا سے خلقوته دَ الله مددګاران په دے وجه نهٔ دی ویلے شوی چه، معاذالله، الله رب العالمین دَ څه کار دَ پاره دَ خپل مخلوق دَ امداد محتاج دے، بلکه دا په دے وجه فرمایلے شوی دی چه دَ دُنیا په ژوند کښې الله تعالیٰ پخپله انسان ته دَ کفر او دَ ایمان دَ منلو او دَ نهٔ منلو آزادی ورکړې ده، هغه خلق دَ خپلے خدائی په طاقت په زُور نهٔ مومنان کوی بلکه دَ خپلو پیغمبرانو او دَ خپلو کتابونو په ذریعه هغوئ ته دَ نیغ لارے ښودلو دَ پاره دَ تذکیر یعنی دَ یاد دهانئ او دَ تعلیم او دَ پوهه کولو او دَ نصیحت کولو طریقه اختیاروی - دا تذکیر او تعلیم چه څوک په خپله رضا سره قبول کړی هغه مومن دے، چه څوک عملاً حکم منونکے جوړ شی هغه مسلمان صابر او عابد دے، څوک چه د خدائے نه په یَره یَره ژوند تیرول شروع کړی هغه متّقی دے، څوک چه نیکیانو ته دَ هرچانه مخکښې منډه وهی هغه محسن دے، او څوک چه دَ دے نه یو قدم وړاندې شی او هغه هم دَ تذکیر او دَ تعلیم په ذریعه دَ خلقو دَ اصلاح دَ پاره او دَ کفر دَ نظام په ځائے دَ الله دَ اطاعت دَ نظام قایمولو دَ پاره کار شروع کړی هغه ته الله تعالیٰ خپل مددګار وائی لکه څنګه چه په دے آیتونو کښې څرګنده وینا شوې ده - که چرے اصلی مقصد دَ الله مددګاران ویل نهٔ وے بلکه دَ الله دَ دین مددګاران ویل وُے نو دَ أَنْصَارُ اللهِ په ځائے به ئے أَنْصَارُ دِينِ اللهِ ویلے وے، دَ يَنْصُرُونَ اللهَ په ځائے به ئے يَنْصُرُونَ دِيْنَ اللهِ ویلے وُے، او دَ اِنْ تَنْصُرُوا اللهَ په ځائے به ئے اِنْ تَنْصُرُوا دِيْنَ اللهِ ویلے وُے - هرکله چه دَ یوے خبرے دَ کولو دَ پاره الله تعالیٰ پر لپسے په دیرو ځایونو کښې اِکَ یو طرز اختیار کړے دے نو دا په دے خبره باندې دلالت کوی چه اصل مقصد دا سے خلقوته دَ الله مددګاران ویل دی - لیکن دا "مددګاری" نعوذ بالله په دے معنیٰ کښې نهٔ ده چه دا خلق دَ الله تعالیٰ یو ضرورت پوره کوی چه دَ هغے دَ پاره هغه ګنی دَ هغوئ دَ امداد محتاج دے، بلکه دا په دے معنیٰ کښې دے چه دا خلق په هغه کار کښې حصّه اخلی چه هغه الله تعالیٰ دَ زُور په ذریعه نه بلکه دَ خپلو پیغمبرانو او دَ خپلو کتابونو په ذریعه کول غواړی -

۲۱؎ په مسیح باندې دَ ایمان نهٔ راوړونکو نه مُراد یهودیان دی، او دَ ایمان راوړونکو نه مُراد عیسایان او مسلمانان دواړه دی او الله تعالیٰ دے دواړو له دَ مسیح په منکرانو باندې غلبه ورکړه - دلته دَ دے خبرے دَ بیانولو نه مقصد مسلمانانو ته دا باور ورکول دے چه لکه څنګه اول دَ حضرت عیسیٰ منونکی دَ هغه په انکارکونکو باندې غالب راغلی دی، دغه شان به اوس دَ محمد صلی الله علیه وسلم منونکی دَ هغه په اِنکارکونکو باندې غالب راځی -

# الجُمُعَة

**نوم** | دَ نهم آيت دَ فقرے إِذَا نُوْدِيَ لِلصَّلٰوۃِ مِنْ يَّوْمِ الْجُمُعَةِ نه اغستے شوے دے۔ اگرچه په دے سورة کښے دَ جُمعے دَ مانځه حکمونه هم بيان کړے شوی دی، ليکن "جُمعة" ئے دَ ټولو مضمونونو عنوان نهٔ دے، بلکه دَ نورو سورتونو پشان دا نوم هم دَ علامت په طور دے۔

**دَ نازليدو زمانه** | دَ اولنئ رکوع دَ نازليدو زمانه ۷ھ ده، او غالباً چه دا دَ خيبر دَ فتح په موقع يا دَ هغے نه روستو په نزدے زمانه کښے نازله شوی ده۔ بُخاری، مُسلم، تِرمذی، نسائی او ابنِ جرير دَ حضرت ابوهريرة دا روايت نقل کړے دے چه مونږه دَ نبیؐ سره ناست وُو چه دا آيتونه نازل شو۔ دَ حضرت ابو هريره په حقله دا خبره دَ تاريخ نه ثابته ده چه هغه دَ صلح حديبيے نه روستو او دَ خيبر دَ فتحے نه مخکښے ايمان راوړے وُو۔ او دَ خيبر فتحه دَ ابنِ هشام دَ قول مطابق په محرّم کښے، او دَ ابن سعد دَ قول مطابق په جمادی الاولیٰ ۷ھ کښے شوی ده۔ پس قياس ته نزدے خبره داده چه دَ يهوديانو دَ دے آخری قلعے دَ فتح کولو نه روستو به الله تعالیٰ هغوئ ته خطاب کړے وی او دا آيتونه به ئے نازل کړی وی، يا به بيا دا په هغه وخت کښے نازل شوی وی کله چه دَ شمالی حجاز ټول يهودی کلی دَ خيبر دَ انجام په ليدلو سره دَ اِسلامی حکومت تابع فرمان شوی وُو۔

دويمه رکوع دَ هجرت نه روستو په نزدے زمانه کښے نازله شوی ده۔ ځکه چه نبیؐ کله مدينے ته اُورسيدو نو په پنځمه ورځ ئے جُمعه قايم کړی وه، او دَ دے رکوع په آخری آيت کښے چه کومے واقعے ته اشاره شوی ده دَ هغے نه صفا معلوميږی چه هغه به دَ جُمعے دَ شروع کيدونه روستو لا زما په داسے زمانه کښے شوی وی چه خلقو ته لا دَ دينی اجتماعاتو دَ آدابو پوره تربيت نهٔ وُو ملاؤ شوے۔

**موضوع او مضمونونه** | لکه څنګه چه مونږه بره ويئلی دی، دَ دے سورة رکوعګانے په دوؤ جُدا جُدا زمانو کښے نازلے شوی دی۔ په دے وجه دَ دواړو موضوع جُدا جُدا ده او جُدا جُدا خلقو ته شوی ده۔ اگرچه دَ دواړو په منځ کښے يو قِسم مناسبت شته چه دَ هغے په وجه دواړه په يو سورة کښے را جمع کړے شوی دی، ليکن دَ مناسبت نه مخکښے مونږ له پکار دی چه دَ دواړو موضوعات جُدا جُدا اُو پيژنو۔

اولنئ رکوع په هغه وخت کښے نازله شوه څه وخت چه دَ يهوديانو هغه ټول کوششونه ناکام شوی وُو کوم چه دَ اِسلام دَ مخ نيوی دَ پاره په تيرو شپږو کالو کښے هغوئ کړی وُو۔

اوّل په مدینه کښے دَ هغوئ د ریوطاقتورو قبیلو بنه پوره زُور لګولے وُو چه رسول الله صلی الله علیه وسلّم له شکست ورکړی خودَ هغې دا نتیجه را اُووتله چه یوه قبیله پوره تباه شوه او دوه قبیلے دَ وطن نه شړونکے شوے۔ بیا هغوی دَ سازشونو په ذریعه ډیر قبائل دَ ځان سره ملګری کړل او په مدینه ئے حمله اُوکړه لیکن دَ اَحزَاب په غزَا کښے هغوئ ټولو شکست اُوخوړو۔ دَ دے نه روستو دَ هغوئ دَ ټولونه لویه قَلا خیبر پاتے شوی وه چه هلته هغه یهودیان هم په کثیرتعداد کښے جمع شوی وُو کوم چه دَ مدینے نه شړونکی شوی وُو۔ دَ دِے آیتونو دَ نازلیدو په وخت کښے هغه هم په آسانه فتحه شوه، او یهودیانو پخپله درخواست اُوکړو او هلته ئے دَ مسلمانانو دَ کروندګرو په حیثیت سره اُوسیدل قبول کړل۔ دَ دے آخری شکست نه روستو په عربو کښے یهودی طاقت بالکل ختم شو۔ وادی القرٰی، فَدَک، تَیما، تبوک، ټولو وَسله اُوغورزوله، اَن تردِے پورے چه دَ عربو ټول یهودیان دَ اِسلام ما تحت شول۔ دا موقع وه چه الله تعالیٰ یوځل بیا په دِے سورة کښے هغوئ ته خِطاب اُوکړو، او غالباً دا آخری خِطاب وُو چه په قرآن مجید کښے هغوئ ته اُوشو۔ په دِے کښے هغوئ ته درے خبری فرمائیلے شوی دی:

(۱) تاسو دَ دے رسول دَ منلو نه په دِے وجه اِنکار اُوکړو چه دا په هغه قوم کښے راغلے وُو کوم ته چه به تاسو په سپکاوی سره "اُمیان" ویئیل۔ ستاسو دا غلط ګمان وُو چه رسول خامخا ستاسو دَ قوم نه یکار دے۔ تاسو دا فیصله کړی وه چه ستاسو دَ قوم نه بهر څوک سړے دَ پیغمبرئ دعوٰی اُوکړی نو هغه به ضرور دِروغژن وی ځکه چه پیغمبری ستاسو دَ نَسل دَ پاره خاص ده او په "اُمیانو" کښے هیڅکله رسول نشی راتلے۔ لیکن دَ الله تعالیٰ دَ دے اُمیانو نه یو رسول را پورته کړے دے چه ستاسو په مخکښے دَ الله کتاب آورَوِی، نفسونه پاکوی او هغه خلقوته نیغه لار ښائی چه دَ هغوئ دَ بے لارے کیدو حال تاسو ته ښه معلوم دے۔ دا دَ الله فضل دے چه چاله ئے ورکول غواړی هغه له ئے ورکوی۔ دَ هغه په په فضل باندِ ستاسو اجاره نهٔ ده چه تاسو ئے چاله ورکول اُوغواړئ نو هغه له به ئے ورکوی او چه چاله نه غواړئ نو نهٔ به ئے ورکوی۔

(۲) تاسو له توراة درکړے شوے وُو، خو تاسو دَ هغې ذمه واری اُونهٔ پېژندله او نهٔ مو اداکړه۔ ستاسو حال دَ هغه خر پشان دے چه دَ هغه په شا باندِ کتابونه باروی او هغه ته هیڅ پته نهٔ لګی چه په هغه باندِ دَ څه څیز بار دے۔ بلکه ستاسو حال دَ خر نه هم زیات خراب دے۔ هغه خو پوهه نهٔ لری لیکن تاسو پوهه لرئ او بیا هم دَ کتابُ الله دَ ذمه وارئ نه یوازے تیښته نهٔ کوئ، بلکه قصداً دَ الله آیتونو ته دروغ هم وائیٔ۔ او دَ دے سره ستاسو ګمان دا دے چه تاسو دَ الله نیاز بین یئ او پیغمبری همیشه ستاسو په نوم لیکلے شوی ده۔ یعنی لکه چه ستاسو را ئے داده چه

که تاسو دَ الله دَ پیغام حق ادا کوئ اوکه نهٔ ادا کوئ، خوالله دَد ے خبری پابند دے چه هغه به ستاسو نه سِوا بل څوک نهٔ پیغمبر کوی۔

(۳) تاسوکه چرے واقعي دَ الله نیازبین وے اوواقعی مودا یقین وے چه دَالله په نیز ستاسو لوئ قدر اوعزّت د ے نوتاسوبه دَ مرګ نه دا سے نهٔ یَریدَئ چه دَ ذِلّت ژوند موقبول د ے خومرګ موبه هیڅ شان قبول نهٔ دے۔ دا خوهم دَ دےمرګ یَره ده چه په تیروشوو کلونو کښے مو بس تش شکستونه خوړلی دی۔ ستاسودا حالت پخپله دَ دے خبری دلیل د ے چه دَ خپل عمل نه تاسو پخپله خبریئ، اوتاسو په زړه کښے بنه پوهه یئ چه که چرے دَ د ے عمل سره مړه شونو دَ الله سره به دَ هغې نه زیات خوارو ذلیله یو څومره چه په دُنیا کښے یُو۔

دا د ے دَ اولنئ رکوع مضمون۔ په دِ ے پسے دوېمه رکوع، چه یوڅوکاله پَخکښے نازله شوی وه، په دِ ے سورة کښے په دِ ے وجه شامله کړے شوی ده چه الله تعالیٰ دَ یهودیانو دَ سَبْت په مقابله کښے مسلمانانوله جُمعه ورکړی ده، او الله تعالیٰ مسلمانان دَ د ے خبری نه خبردارول غواړی چه هغوئ دَ خپلے جُمعے سره هغه معامله اُونهٔ کړی کومه چه یهودیانو دَ سَبْت سره کړی وه۔ دارکوع په هغه وخت کښے نازله شوی وه څه وخت چه په مدینه کښے یوه ورځ دَ جُمعے دَ ما غځه په وخت کښے یوه تجارتی قافله راغله اودَ هغې دَ ډولکوآوازِ چه دَ خلقوتر غوږ شونو دَ دولسوکسانونه علاوه باقی ټولو دَ مسجد نبوی نه قافلے طرفته منډه کړه، حال دا چه په هغه وخت کښے رسول الله صلی الله علیه وسلّم خُطبه ورکوله۔ نودا حکم اُوشوچه دَ جُمعے دَ آذان دَکیدو نه روستوهرقِسم اغستل خرخول اونورکارونه حرام دی۔ دَ مومنانوکاردا دے چه په دغه وخت کښے ټول کارونه پریږدی اودَ الله ذکرته منډه اُوکړی۔ اوچه کله مونځ ختم شی نوبیا هغوئ ته حق حاصل د ے چه دَخپل کاروبار چلولو دَ پاره په زمکه کښے خوارهٔ شی۔ دَ جُمعے دَ حُکمونو په باره کښے دَد ے رکوع نه یومستقل سورة هم جوړید ے شو او دا رکوع په بل سورة کښے هم شاملید ے شوه۔ لیکن دا رکوع دلته دَ هغه آیتونو سره شامله کړے شوه چه په هغې کښے یهودیانوته دَ خپل بدانجام اسباب ښودلے شوی دی۔ زمونږ په نیز په دیکښے حکمت هم هغه د ے کوم چه مونږه بره بیان کړے د ے۔

---

## سُوْرَةُ الْجُمُعَةِ مَدَنِيَّةٌ

آياتها ۱۱ — رکوعاتها ۲

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

يُسَبِّحُ لِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ الْمَلِكِ الْقُدُّوْسِ الْعَزِيْزِ الْحَكِيْمِ ① هُوَ الَّذِيْ بَعَثَ فِي الْاُمِّيّٖنَ رَسُوْلًا مِّنْهُمْ يَتْلُوْا

دَ الله پاکی بیانوی هر هغه څه چه په آسمانونو او په زمکه کښې دی ـــــ هغه بادشاه دے، پاک دے، زبردست دے اودَ حکمتونو خاوند دے۔[1]

هم هغه دے چه په اُمیانو کښے ئے هم دَ هغوئ نه یو رسول راپورته کړو، چه هغوئ ته

---

[1] دَ تشریح دَپاره اُوګوره تفهیم القرآن، پنځم جلد، تفسیر دَ سورة حدید حاشیے ۲،۱۔ الحشر، حاشیے ۳۶ ـ ۳۷ ـ ۴۱ ـ دَ وړاندینی مضمون سره دا اولنۍ خبره ډیر زور مناسبت لري۔ دَ عرب یهودیانو دَ رسول الله صلی الله علیه وسلّم په ذات اوصفتونو کښے اودَ هغه په کارنامو کښے دَ پیغمبرئ ښکاره نښے په خپلو سترګو لیدلے وے، او په توراة کښے چه موسیٰ علیه السّلام کوم ښکاره زیرے دَ نبیؐ په حقله کړے وُو چه دَ هغه نه سوا دَبل چا سره نۀ برابریدو، دَ دے ټولو باوجود هغوئ صرف په دے وجه دَ هغه دَ پیغمبرئ نه اِنکار کولو چه دَ هغوئ دَ خپل قوم او دَ خپل نسل نه سوا دَ بل چا پیغمبري بالکل خوښه نۀ وه۔ هغوئ به صفا وئیل چه څه موږ ته راغلی دی موږ به صرف هغه منو۔ بل هرڅه تعلیم، چه دَ غیراسرائیلي پیغمبر په ذریعه راشي، خواه که هغه دَخدائے دَ طرفنه وی، دَ هغے منلو ته هغوئ قطعاً تیارنۀ وُو۔ په وړاندینو آیتونو کښے په دِ دے عمل باندِ هغوئ ته دَ ملامتیا خبره کیږی نو په دِ وجه دَ کلام شروع دَ دے فقرے نه شوی ده۔ په دِ کښے اولنۍ خبره دا شوی ده چه دَ کائناتو هرڅیز دَ الله تسبیح وائي۔ یعنی دا ټول کائنات په دے خبره ګواه دی چه الله تعالیٰ دَ هغه ټولو نقصانونو او کمزوریانو نه پاک دے دَ کومو په وجه چه یهودیانو دَ خپل نسل دَ غوره والی تصور قائم کړے دے۔ هغه دَ چا رشته دار نۀ دے۔ دَ هغه په دربار کښے جانبداری (Favouritism) نشته۔ دَ خپل ټول مخلوق سره دَ هغه معامله برشان دَ عدل او دَ رحمت او دَ پالنے ده۔ یو خاص نسل او قوم دَ هغه نشته چه که هغوئ هرڅه اُوکړی خو دَ هغه مهربانیانے به دَ هغوئ دَپاره خاص وی، او دَ یو نسل او قوم سره دَ هغه دُشمنی نشته چه که هغوئ هرڅومره ښه وی خو دَ هغه دَ مهربانئ نه به هغوئ محروم وی۔ بیا اُوفرمائیلے شو چه هغه بادشاه دے، یعنی دَ دُنیا یو طاقت دَ هغه اختیارات محدود کولے نشي۔ تاسو بندګان یئ او رعیت یئ، تاسو ته دا څه دَ کله نه ملاؤ شوه چه تاسو دا فیصله اُوکړئ چه الله ستاسو دَ هدایت دَپاره څوک پیغمبر کړی او څوک نۀ۔ دَ دے نه روستو حکم اُوشو چه هغه پاک دے، یعنی دَ دے خبرې نه بالکل پاک دے چه دَ هغه په فیصله

عَلَيْهِمْ اٰيٰتِهٖ وَيُزَكِّيْهِمْ وَيُعَلِّمُهُمُ الْكِتٰبَ وَالْحِكْمَةَ ق

دَهغه آیتونه اوروی، دَهغوئ ژوند پاکوی، او هغوئ ته دَ کتاب او دَ حکمت خبری ښائی۔

کښې په خطا او غلطی وی۔ غلطی ستاسو په عقل فکر کښې کیدے شی، دَ هغه په فیصله کښې نشی کیدے۔
په آخر کښې دَ الله تعالیٰ دوه نور صفتونه بیان کړے شوی دی۔ یو دا چه هغه زبردست دے، یعنی
دَ هغه نه په جنګ سره څوک ګټه نشی کولے۔ دریم دا چه هغه حکیم دے، یعنی څه چه کوی هغه بالکل دَ پوهے
مطابق وی او دَ هغه تدبیرونه داسے مضبوط وی چه په دُنیا کښې څوک هغے له ماتے نشی ورکولے۔

ﻫ دلته لفظ اُمّی دَ یهودی مفهوم په طور راغلے دے، او په دِیکښے یو باریک شان طنز
پټ پروت دے۔ دَ دے مطلب دا دے چه کوم خلقو ته یهودیان په سپکاوی سره اُمیان وائی او دَ
ځان په مقابله کښې ئے ذلیله ګنړی، هم په هغوئ کښې غالب اودانا الله یو رسول راپورته کړے دے۔
هغه پخپله نهٔ دے راپورته شوے، بلکه دَ هغه راپورته کوُنکے هغه دے چه دَ کائناتو بادشاه
دے، زبردست دے او حکیم دے، دَ هغه دَ طاقت سره جنګیدل ځان خرابول دی، دا خلق
به ځان خراب کړی او دَ هغه هیڅ نشی کولے۔

خبر شه چه په قرآن مجید کښې لفظ "اُمّی" په ډیرو ځایونو کښې راغلے دے او په ټولو ځایونو
کښې دَ هغے یوه معنیٰ نهٔ ده بلکه په مختلفو ځایونو کښے په مختلفو معنو کښے استعمال شوے دے۔ کله خو هغه دَ اهلِ
کتابو په مقابله کښې دَ هغه خلقو دَ پاره استعمال کړے شوے دے چه دَ هغوئ سره څه آسمانی
کتاب نشته چه کښې په هغے باندِ عمل کوی، مثلاً فرمائی: قُلْ لِّلَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ
وَالْاُمِّيّٖنَ ءَاَسْلَمْتُمْ (آلِ عمران - ۲۰) - "دَ اهلِ کتابو او اُمیانو نه تپوس اُوکړه چه
آیا تاسو اسلام قبول کړو"؟ دلته دَ اُمیانو نه مُراد دَ عربو مشرکان دی، او هغوئ دَ اهلِ
کتابو، یعنی دَ یهودیانو او نصاراؤنه جُدا یو ډله شمار لے شوی ده۔ کله دا لفظ پخپله
دَ اهلِ کتابو دَ اَنْ پړو او دَ کتابُ الله نه دَ ناخبرو خلقو دَ پاره استعمال شوے دے۔ لکه
چه فرمائی: وَ مِنْهُمْ اُمِّيُّوْنَ لَا يَعْلَمُوْنَ الْكِتٰبَ اِلَّآ اَمَانِيَّ (البقره - ۷۸)۔ "په دِے
یهودیانو کښې څه خلق اُمیان دی، دَ کتاب علم نهٔ لری، بس خپلے آرزوګانے پیژنی"۔ او کله دا
لفظ خالص دَ یهودی مفهوم په طور استعمال شوے دے چه مُراد تری دَ دُنیا ټول غیر یهودیان
دی مثلاً فرمائی: ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ قَالُوْا لَيْسَ عَلَيْنَا فِي الْاُمِّيّٖنَ سَبِيْلٌ (آلِ عمران - ۷۵) -
یعنی "په هغوئ کښې دَ دے خیانت پیدا کیدلو سبب دا دے چه هغوئ وائی چه دَ امیانو دَ مال په خوړلو
کښې په مونږ باندِ څه ګناه نشته"۔ او هم دا دریمه معنیٰ دَ دے آیت نه مُراد اخستلے شوی ده۔
دَ دے لفظ معنیٰ دَ عبرانئ ژبے دَ لفظ ګوئیم پشان ده، چه دَ هغے ترجمه په انګریزی بائیبل کښې
(Gentiles) شوی ده، او دَ دے نه مُراد ټول غیر یهودیان یا غیر اسراءیلیان خلق دی۔

لیکن دَ دے یهودی مفهوم اصلی معنیٰ صرف دَ دے دَ تشریح کولو نه په پوهه کښې نشی
راتلے۔ په اصل کښې دَ عبرانئ ژبے لفظ ګوئیم په اوّل کښې صرف دَ قومونو په معنیٰ کښې وئیلے
کیدو لیکن رو رو یهودیانو دا اوّل خو دَ خپل ځان نه دَ نورو قومونو دَ پاره مخصوص
کړو، بیا ئے ورسره دا معنیٰ شامله کړه چه دَ یهودیانو نه سِوا باقی ټول
قومونه ناپوهه، بدمذهبه، ناپاکه او ذلیله دی، اَنْ تر دے پورے چه دَ

وَاِنْ كَانُوْا مِنْ قَبْلُ لَفِيْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ ۝ وَّاٰخَرِيْنَ مِنْهُمْ لَمَّا

حالانکه دَ دے نه مخکښے هغوئ په ښکاره ګمراهئ کښے پراته وُو۔ او (دَ دے رسول پيغمبری) دَ هغه نورو خلقو

سپکاوی او دَ کرکے په معنیٰ کښے دا لفظ دَ يونانيانو دَ ټکی (Barbarian) نه هم ورانډے تېرشو چه هغه به هغوئ دَ ټولو غير يونانيانو دَ پاره استعمالولو۔ دَ رَبِّيانو په کتابونو کښے کوئيم دَ نفرت قابل خلق دی چه هغوئ انسانی رُونړه نشی ګڼلے کیدے، دَ هغوئ سره سفر نشی کیدے، بلکه که دَ هغوئ نه يو سړے ډوبيږی نو دَ هغه دَ بچ کولو کوشش هم نشی کیدے۔ دَ يهوديانو عقيده دا وه چه راتلونکے مسيح به ټول ګوئيم هلاک کړی او به ئے سوزوی او خاورے ايره به ئے کړی (دَ زياتے تشريح دَ پاره اوګوره تفهيم القرآن اول جلد، آلِ عمران، حاشيه ۶۴)۔

۳ؔ په قرآن مجيد کښے دَ رسول الله صلی الله عليه وسلّم دا صفتونه په څلورو ځايونو کښے بيان کړے شوی دی، او په هر ځائے کښے دَ هغے دَ بيانولو غرض مختلف دے۔ دَ سورۃ بقرے په آيت ۱۲۹ کښے دَ هغے ذکر اهلِ عربو ته دَ دے غرض دَ ښودلو دَ پاره شوے دے چه دَ نبی کومه پيغمبری هغوئ دَ ځان دَ پاره يو زحمت او مصيبت ګڼلو هغه په حقيقت کښے يو لوئ نعمت دے چه دَ هغے دَ پاره به حضرت ابراهيمؑ او حضرت اسماعيلؑ دَ الله تعالیٰ نه دُعاګانے غوښتلے۔ دَ سورۃ بقرے په آيت ۱۵۱ کښے هغه دَ دے دَ پاره بيان کړے شوی دی چه مسلمانان دَ نبیؐ قدر اوپيژنی او دَ هغه نعمت نه پوره پوره فائده حاصله کړی کوم چه دَ نبیؐ دَ پيغمبریٔ په شکل کښے الله تعالیٰ هغوئ له ورکړے دے۔ دَ سورۃ آلِ عمران په آيت ۱۶۴ کښے منافقانو ته او دَ کمزوری ايمان والا خلقو ته دَ دے خبری دَ وريادَولو دَ پاره دَ هغے بيان شوے دے چه الله تعالیٰ څومره غټ احسان کړے دے چه په هغوئ کښے ئے خپل رسول راليږلے دے او دا خلق څومره غټ بے وقوفان دی چه دَ ده قدر نۀ کوی۔ اوس په څلورم ځل دا صفتونه په دے سورۃ کښے دلته بيان کړے شوی دی او مقصد ئے يهوديانو ته دا خبره ښودل دی چه محمّد صلی الله عليه وسلم ستاسو په مخکښے کوم کارکوی هغه ښکاره کارد يو رسول کار دے ـ هغه دَ الله آيتونه اوروی چه دَ هغے ژبه، مضمونونه، دَ بيان انداز او هرڅيز دَ دے خبری ګواهی کوی چه واقعی هغه دَ الله آيتونه دی۔ هغه دَ خلقو ژوند پاکوی، دَ خلقو اخلاق او عادتونه او معاملات دَ هر قسم ګندګئ نه پاکوی، او دَ اعلادرجے ښه اخلاق ورښائی۔ دا هم هغه کار دے چه دَ ده نه مخکښے ټولو پيغمبرانو کړے دے۔ بيا هغه صرف په آيتونو اورولو اکتفا نۀ کوی بلکه هروخت په خپل قول او عمل سره او دَ خپل ژوند په نمونے سره خلق دَ الله دَ کتاب په منشا پوهه کوی او خلقو ته دَ هغه حکمت او پوهے تعليم ورکوی چه هغه دَ نن ورځے پورے دَ پيغمبرانو نه سِوا بل چا نۀ دے ورکړے ـ دا هغه ښکاره صفتونه دی چه پيغمبران پرے پيژندے شی۔ بيا دا څنګه ضد دے چه دَ چا دَ رسالت حق والے دَ هغه دَ کارنامو نه ښکاره ثابتيږی دَ هغه دَ منلو نه تاسو صرف په دے وجه انکار اوکړو چه الله هغه ستاسو دَ قوم په ځائے په هغه قوم کښے پيدا کړے دے چه تاسو ورته اُمّی وايئ۔

۴ؔ دا دَ نبیؐ دَ پيغمبریٔ يو بل ثبوت دے چه دَ يهوديانو دَ سترګو غړولو دَ پاره پيش کړے شوے دے۔

يَلْحَقُوا بِهِمْ وَهُوَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ ③ ذٰلِكَ فَضْلُ اللّٰهِ يُؤْتِيهِ

دَپاره هم ده چه اوس لا دَ هغوئ سره نهٔ دی ملاؤ شوی ۔ الله زبردست او حکیم دے ۔ دا دَ الله فضل دے ، چه

دا خلق دَ سَوُونو کالُوراسے دَ عربو په زمکه کښے آباد وُو او دَ عربیانو مذهبی او اخلاقی ژوند ، او دَ هغوئ دَ ژوند یو ایخ دَ هغوئ نه پټ نهٔ وُو ۔ دَ هغوئ پخوانی حالت ته اشاره کیږی چه په یو څو کاله کښے دَ ننه دَ محمد صلی الله علیه وسلم په مشرئ کښے دَ دے قوم حالت څنګه بدل شو ے دے هغه ستاسو دَ سترګو په وړاندِ دے ۔ ستاسو مخے ته هغه حالت هم دے کوم چه دَ اِسلام قبلولو نه مخکښے دَ هغوی وُو ۔ هغه حالت هم دے کوم چه دَ اِسلام راوړلو نه روستو دَ هغوئ شو ، او دَ دے قوم دَ هغه خلقو حالت هم تاسو وینئ چه هغوی لا اسلام نهٔ دے قبول کړے آیا دا ښکاره فرق چه یو ړوند ئے هم لیدے شی تاسو له دَ دے خبری دَ باورهٔ ورکولو دَ پاره کافی نهٔ دے چه دا دَ یو نبی نه سِوا دَ بل چا کارنامه نشی کیدے ؟ بلکه دِیته خو دَ پخوانو پیغمبرانو کارنامے هم نشی رسید ے ۔

۵ـه یعنی دَ محمد صلی الله علیه وسلّم رسالت صرف دَ عربو دَ پاره نهٔ دے بلکه دَ ټوله دُنیا دَ هغه قومونو او نسلونو دَ پاره هم دے چه اوُس لا په مومنانو کښے شامل شوی نهٔ دی خو وړاندِ به دَ قیامته پورے شاملیږی ۔ اصل الفاظ دی ، وَآخَرِينَ مِنْهُمْ لَمَّا يَلْحَقُوا بِهِمْ ۔ ،، او نُور خلق دَ هغوئ نه چه اوُس لا دَ هغوی سره نهٔ دی مِلاؤ شوی ؒ۔ په دے کښے دَ لفظ "منهم" ( د هغوئ نه) دوه مطلبونه کیدے شی ۔ یو دا چه هغه نور خلق به دَ امیانو نه وی ، یعنی دَ دُنیا دَ غیر اسراء یلی قومونو نه به وی ۔ دویم دا چه هغوئ به محمد صلی الله علیه وسلم منی چه اوُس لا په مومنانو کښے شامل شوی نهٔ دی خو روستو به شاملیږی ۔ دغه شان په دِے آیت کښے دا څرګندونه شوی ده چه رسول الله صلی الله علیه وسلّم ټولو انسانو ته رالیږلے شوے دے او دَ همیشه دَ پاره دے ۔ دَ قرآن مجید نُور هغه ځایونه چه په هغ کښے دا مضمون څرګند بیان کړے شوے دے ، لاندینی دی ، الانعام ، آیت ۱۹ ۔ الاعراف ، ۱۵۸ ۔ الانبیاء ، ۱۰۷ ۔ الفرقان ۱ ۔ سبا ، ۲۸ ( دَ زیاتے تشریح دَ پاره تفهیم القرآن ، څلورم جلد ، تفسیر دَ سورة سبا ، حاشیه ۴۷ ) ۔

۶ـه یعنی دا دَ هغه دَ قدرت او حکمت کارنامه ده چه په داسے نابوهه امیّ قوم کښے هغه داسے عظیم نبی پیدا کړو چه دَ هغه تعلیم دومره انقلابی دے او اصول ئے دومره عالمګیر او ابدی دی چه ټول انسانان پرِ را جمع کیدے شی او یو امت ترِ جوړیدے شی او همیشه همیشه دَ هغه اصُولونه رَنړا حاصلولے شی ۔ یو ښاروتی انسان که هر څومره کوشش کړے وُے خو دا مقام او دا مرتبه ئے هیڅکله حاصلولے نهٔ شوه ۔ دَ عربو غوندِ روستو پاتے قوم خو غټه خبره ده ، دَ دُنیا دَ لوئ قوم دَ ذهین نه ذهین سړے په دے قدرت نشی لرلے چه د غسے تیو قوم حالت مکمل طور بدل کړی ، او بیا داسے جامع اصُول دُنیا ته ورکړی چه ټول انسانان پرِ را جمع شی او یو امت ترِ جوړ شی او دَ یو دین عالمګیر نظام دَ همیشه دَ پاره اوچلولے شی ۔ دا یوه معجزه ده چه دَ الله په قدرت سره ښکاره شوی ده ، او دَ الله چه په خپل حکمت سره کوم سړے ، کوم مُلک او کوم قوم خوښ وُو هغه ئے دَ دے دَ پاره غوره کړے دے ۔ په دے باندِ که دَ یو بے وقوف سړی زړهٔ دردکوی نو کوی دِ ۔

مَنۡ يَّشَآءُ ؕ وَاللّٰهُ ذُو الۡفَضۡلِ الۡعَظِيۡمِ ۝۴ مَثَلُ الَّذِيۡنَ حُمِّلُوا التَّوۡرٰىةَ ثُمَّ لَمۡ يَحۡمِلُوۡهَا كَمَثَلِ الۡحِمَارِ يَحۡمِلُ اَسۡفَارًا ؕ بِئۡسَ مَثَلُ الۡقَوۡمِ الَّذِيۡنَ كَذَّبُوۡا بِاٰيٰتِ اللّٰهِ ؕ وَاللّٰهُ لَا يَهۡدِى الۡقَوۡمَ الظّٰلِمِيۡنَ ۝۵ قُلۡ يٰۤاَيُّهَا الَّذِيۡنَ هَادُوۡۤا اِنۡ زَعَمۡتُمۡ اَنَّكُمۡ اَوۡلِيَآءُ

چاله ئے خوښه وی هغه له ئے ورکوی ، او هغه دَ لوئ فضل خاوند دے ۔

په کومو خلقو چه دَ توراة بار کیښودے شوے وُو خو هغوئ هغه بار اُوچت نهٔ کړو[7]، دَ هغوئ مثال دَ هغه خر پشان دے چه په هغه باندِ کتابونه بار کړے شوی وی[8] ۔ دَ دے نه هم زیات خراب مثال دَ هغه قوم دے چه هغوئ دَ الله آیتونه دروغ گڼړلی دی[9] ۔ داسے ظالمانو ته الله هدایت نهٔ کوی ۔ دوئ ته اُووایه ، " اے هغه خلقو چه یهودیان جوړ شوی یئ[10] ، که چرے تاسو په دے غاوره یئ چه په ټولو خلقو کښے

[7] دَ دے فقرے دوه معنے دی ۔ یوه عامه او بله خاصه ۔ عامه معنی داده چه په کومو خلقو باندِ په توراة باندِ دَ عمل کولو او دَ هغے مطابق دُنیا ته دَ هدایت کولو بار کیښودے شوے وُو، لیکن هغوئ نهٔ خپله ذمه واری اُوپیژندله او نهٔ ئے دَ هغے حق ادا کړو ۔ خاصه معنی داده چه کومو خلقو ته توراة راغلے وُو هغوئ له پکار وُو چه دَ ټولونه مخکښے ئے دَ هغه رسول ملګرتیا کړے وے چه دَ هغه دَ راتلو صفا صفا ښنے په توراة کښے ښودلے شوے وے ، لیکن هغوئ دَ ټولونه زیات دَ هغه مخالفت اُوکړو او په توراة باندِ دَ عمل کولو حق ئے ادا نهٔ کړو ۔

[8] لکه څنګه چه په خر باندِ کتابونه بار شوی وی او هغه ته معلوم نهٔ وی چه دَ هغه په شا باندِ څه دی، دغه شان دا توراة دوئ په ځان باندِ بار کړے دے او پته ورته نشته چه دا کتاب دَ څه دَپاره راغلے دے او دَ دوئ نه څه غواړی ۔

[9] یعنی دَ هغوی حال دَ خر نه هم زیات خراب دے ۔ هغوی خو پوهه نهٔ لری نو په دے وجه معذور دی ۔ لیکن هغوی پوهه لری ۔ توراة پخپله لولی او نورو ته ئے ښائی ۔ دَ دے دَ مطلب نه ناخبره نهٔ دی ۔ بیا هم دوئ قصداً دَ دے دَ هدایت نه مخ اړوی او دَ هغه نبی دَ منلو نه اِنکار کوی چه دَ توراة دَ پیشن ګوئیٔ ترمخه سراسر په حق باندِ دے ۔ دوئ دَ ناپوهتیا په وجه ګنهګار نهٔ دی بلکه سره دَ پوهے دَ الله آیتونو ته دَ دروغو ویلو په وجه مجرمان دی ۔

[10] دے نکتے ته توجه پکار ده ، " اے یهودیانو " ئے نهٔ دی ویلی بلکه " اے هغه خلقو چه یهودیان جوړ شوی یئ " یا " چه کومو خلقو یهودیت اختیار کړے دے " ئے فرمائیلی دی ۔ دَ دے وجه داده چه اصل دین

لِلّٰهِ مِنْ دُوْنِ النَّاسِ فَتَمَنَّوُا الْمَوْتَ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ﴿٦﴾

بس یوازے تاسو د الله دوستان یئ نو د مرګ آرزو اوکړئ که چرے تاسو په دے خپل خیال کښے رښتینی یئ[12]۔

موسیٰ علیه السّلام او د هغه نه مخکښے او روستو پیغمبرانو راوړے وُو هغه خو اسلام وُو۔ په هغه پیغمبرانو کښے یو هم یهودی نه وُو او نه د هغوی په زمانه کښے یهودیت پیدا شوے وُو۔ دا مذهب په دے نوم ډیر روستو مشهور شوے دے۔ د دے نسبت هغه خاندان ته شوے دے چه هغه د حضرت یعقوب علیه السّلام د څلورم ځوی د یهوداه د نسل نه وُو۔ د حضرت سلیمان علیه السّلام نه روستو چه کله سلطنت په دوو حِصّو کښے تقسیم شو نو دا خاندان د هغه ریاست مالک شو او د یهودیه په نوم مشهور شو، او د بنی اسراء یلو نورو قبیلو خپل جُدا ریاست قایم کړو چه د سامریه په نوم مشهور شو۔ بیا اسیریا نه یوازے دا چه سامریه ریاست ئے تباه کړو بلکه د هغه اسراء یلی قبیلو نوم نشان هم ختم شو کوم چه د دے ریاست جوړونکی وو۔ د دے نه رو ستو صرف یهوداه، او د هغه سره د بنِ یامین نسل پاتے شو چه په هغوی باندِ د یهوداه د نسلِ د غلبے په وجه لفظ "یهُود" وراُوتپلے شو۔ په دے نسل کښے د ننه چه کاهنانو او ربّیانو او اَحبارو د خپلو خپلو خیالاتو او نظریاتو او میلاناتو مطابق د عقیدو او د رسمونو رِیواجونو او د مذهبی قاعدو کومه ډانچه په سوونو کالو کښے تیاره کړه، هغے ته یهودیت وائی۔ دا ډانچه د څلورمے صدیٔ قبل مسیح نه شروع شوے وه او د پنځمے صدیٔ عیسوی پورے جوړ یدله۔ د الله رسولانو چه کوم ربانی هدایت راوړے وُو په دے کښے د هغے ډیره کمه حصّه شامله ده۔ او د هغے اصلی شکل د ډیره حده پورے وّران شوے دے۔ په دے وجه په قرآن مجید کښے په اکثرو ځایونو کښے هغوی ته په اَلَّذِيْنَ هَادُوْا سره خطاب شوے دے، یعنی" اے هغه خلقو چه یهود یان جوړ شوی یئ"۔ په هغوی کښے ټول اسراء یلیان نه وُو، بلکه هغه اسراء یلی خلق هم پکښے وُو چه هغوی یهودیت قبول کړے وُو۔ په قرآن کښے چه په کوم ځایُے کښے بنی اسراء یلو ته خطاب شوے دے هلته الفاظ "اے بنی اسراء یل" استعمال شوی دی، او په کوم ځایُے کښے چه د یهودی مذهب پیروکارانو ته خطاب شوے دے هلته الفاظ اَلَّذِيْنَ هَادُوْا استعمال شوی دی۔

[11] په قرآن مجید کښے په ډیرو ځایونو کښے د هغوی د دے دعوے تفصیلات ورکړے شوی دی۔ مثلاً هغوی وائی چه د یهود یانو نه سِوا به بل څوک جنّت ته نهٔ ورننوزی (البقره ـ ۱۱۱)۔ مونږ سره به د دوزخ وَرور هرګز نهٔ لږی، که مونږ ته سزا ملاو یږی هم خو بس یو څو ورځے به وی (البقره ـ ۸۰ ـ آلِ عمران ـ ۲۴)۔ مونږه د الله ځامن او د هغه خواږه دوستان یو (المائده ـ ۱۸)۔ د غه رنګے یو څو دعوے د یهود یانو په خپلو کتابونو کښے هم مِلاویږی۔ کم از کم دا خبره خو ټولے دُنیا ته معلومه ده چه هغوی خپل ځان ته د خدائے غوره مخلوق (Chosen People) وائی او په دے ګمان مست دی چه د خدائے د هغوی سره خاصه رشته ده او د نورو سره ئے نهٔ ده۔

[12] دا خبره په قرآن مجید کښے دوه ځله یهود یانو ته شوی ده۔ اول په سورۃ بقره کښے فرمائیلے شوی وُو "دوئ ته اُووایه، که چرے د آخرت کور په ټولو انسانانو کښے صرف ستاسو د پاره الله خاص کړے دے نو بیا تاسو د

وَلَا يَتَمَنَّوْنَهٗٓ اَبَدًۢا بِمَا قَدَّمَتْ اَيْدِيْهِمْ ؕ وَاللّٰهُ عَلِيْمٌۢ بِالظّٰلِمِيْنَ ۝ قُلْ اِنَّ الْمَوْتَ الَّذِيْ تَفِرُّوْنَ مِنْهُ فَاِنَّهٗ مُلٰقِيْكُمْ

ليکن دوئ به هرګز دَ دے آرزو اُونۀ کړي په سبب دَ خپلو هغه عملونو چه دوئ کړي دي[۱۱]، او اللّٰه دا ظالمان ښه پيژني - دوئ ته اُووايه، "چه دَ کوم مرګ نه تاسو تښتئ هغه به خامخا تاسوله راځي -

مرګ آرزو اُوکړئ که تاسو په دے خپل خيال کښے رېښتيني يئ - ليکن دوئ به هرګز دَ دے آرزو اُونۀ کړي دَ خپلو هغه عملونو په وجه چه دوئ کړي دي، او اللّٰه ظالمان ښه پيژني - بلکه ته به دَ ټولو انسانانو نه زيات، اَن تر دے چه دَ مشرکانو نه هم زيات هغوئ دَ ژوند حريصا بيا موے - په دوئ کښے څوک غواړي چه زر کاله ژوند ے وي، حال دا چه که عمر ئے اُوږد هم شي خو دا څيز هغه دَ عذاب نه نشي بچ کولے - دَ هغوي ټول عملونه دَ اللّٰه په نظر کښے دي" (آيتونه - ۹۴ - ۹۶) - اوس هم دا خبره دلته بيا دوباره شوي ده، ليکن دا هسے تکرار نۀ دے - دَ سورة بقرے په آيتونو کښے دا خبره په هغه وخت کښے شوي وه چه دَ يهوديانو سره دَ مسلمانانو څه جنګ نۀ وُو شوے - او په دے سورة کښے دا خبره دوباره په هغه وخت کښے شوي ده څه وخت چه دَ هغوئ سره ډير جنګونه اُوشو او په عربو کښے دَ هغوي آخري او قطعي طور زور ختم کړے شو - دَ دے جنګونو په وجه هغه خبره په تجربے سره ثابته شوه کومه چه اوّل په سورة بقره کښے وئيلے شوي وه - په مدينه کښے او په خيبر کښے دَ تعداد په لحاظ سره دَ يهوديانو طاقت دَ مسلمانانو نه په هيڅ طريقه کم نۀ وُو او دَ وسائيلو په لحاظ سره دَ هغوئ نه ډير زيات وُو - بيا دَ عربو مشرکان او دَ مدينے منافقان هم دَ هغوئ په شا بانډِ ولاړ وُو او دَ مسلمانانو دَ ختمولو اراده ئے کړي وه - ليکن دَ کوم څيز په وجه چه په دے دَ دَرنه مقابله کښے مسلمانان غالب شو او يهوديانو شکست اُوخوړ، هغه دا وُو چه مسلمانان به دَ خدائے په لار کښے دَ مرګ نه نۀ يريدل، بلکه په شوق سره به دَ شهادت دَ پاره ميدانِ جنګ ته وتل - ځکه چه دَ هغوئ په دے خبره يقين وُو چه هغوئ دَ اللّٰه په لار کښے جنګيږي، او په دے خبره ئے هم کامل يقين لرو چه په دے لار کښے دَ شهيد دَ پاره جنّت دے - دَ دے برعکس دَ يهوديانو حال دا وُو چه هغوي په يوه لار کښے هم سر وَرکولو ته تيار نۀ وُو، نۀ دَ خدائے په لار کښے، نۀ دَ قوم په لار کښے، نۀ دَ خپل سر او مال او عزّت په لار کښے - هغوي ته صرف دَ ژوند ضرورت وُو، خواه که هغه هرڅنګه وي - دَ دے څيز هغوي بزدلان کړي کړي وُو -

۱۳ يعني دَ مرګ نه دا تيښته دَ هغوئ بے سببه نۀ ده - هغوئ که په ژبه هرڅومره غټے غټے دعوے کوي، ليکن هغوئ ته په زړونو کښے ښه معلومه ده چه دَ خدائے او دَ هغه دَ دين سره دَ هغوئ معامله څنګه ده، او په آخرت کښے به دَ هغوئ دَ دُنيا دَ دے عملونو څه انجام وي - دا سبب وُو چه هغوي دَ خدائے عدالت ته دَ مخامخيدونه څنډه کوله -

ثُمَّ تُرَدُّوْنَ اِلٰى عٰلِمِ الْغَیْبِ وَالشَّهَادَةِ فَیُنَبِّئُكُمْ بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ﴿۸﴾ یٰۤاَیُّهَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوْۤا اِذَا نُوْدِیَ لِلصَّلٰوةِ مِنْ یَّوْمِ الْجُمُعَةِ فَاسْعَوْا اِلٰى ذِكْرِ اللّٰهِ وَذَرُوا الْبَیْعَ ؕ ذٰلِكُمْ خَیْرٌ لَّكُمْ اِنْ

بیا به تاسو هغه (خدائے) ته پیش کړے شئ چه هغه په پټه او په ظاهره پوهه دے، نو هغه به درته هغه هرڅه اُوښائي کوم چه به تاسو کول ـ ع

اے هغه خلقو چه ایمان مو راوړے دے، کله چه دَ جمعے په ورځ دَ مانځه دَپاره آواز اُوشی نو دَ الله ذکر ته منډه کړئ او اَغستل خرڅول پریږدئ[۱۵]، دا ستاسو دَپاره زیاته بهتره ده که

[۱۴] په دے فقره کښے درے خبرې خاص طور توجه غواړی ـ یوه دا چه په دے کښے دَ مانځه دَپاره دَ آواز کولو ذکر دے ـ دویمه دا چه آواز کول دَ داسے مانځه دَپاره دی چه هغه خاص طور دَ جمعے په ورځ کول پکار دی ـ دریمه دا چه دَ دے دواړو خبرو ذکر په داسے طریقه نهٔ دے شوے چه تاسو دَ مانځه دَپاره آواز اُوکړئ او دَ جمعے په ورځ یو خاص مونځ اُوکړئ، بلکه دَ انداز بیان نه او دَ وړاندے روستو عبارت نه صفا معلومیږی چه دَ مونځ دَپاره آواز کول دَ جمعے خاص مونځ، دواړه دَ مخکښے نه جاری وُو، البته خلقو دا غلطی کوله چه دَ جمعے دَ مونځ دَپاره آواز به ئے واوریدو او په راتلو کښے به ئے سستی کوله او په اغستلو خرڅولو کښے به اخته وُو، دا وجه ده چه الله تعالیٰ دا آیت صرف دَ دے غرض دَپاره نازل کړو چه خلق دَ دے آواز او دَ دے خاص مونځ قدر اُوپیژنی او فرض ئے اُوګنړی او هغے ته په منډه ورشی ـ په دے درے واړو خبرو چه غور اُوکړے شی نو دَ دے نه دا اُصولی حقیقت قطعی طور ثابتیږی چه الله تعالیٰ به رسول الله صلی الله علیه وسلم له داسے حکمونه هم ورکول چه هغه په قرآن کښے نهٔ دی نازل شوی، او په دغه حکمونو باندے عمل کول هغسے واجب وُو لکه څنګه چه په قرآن کښے په نازلو شوو حکمونو باندے عمل کول واجب دی ـ دَ مونځ دَپاره آواز هغه آذان دے چه نن په ټوله دُنیا کښے هره ورځ پنځه وخته په هر جومات کښے ویلے کیږی ـ لیکن په قرآن کښے په یو ځائے کښے نهٔ دَ دے الفاظ بیان کړے شوی دی، نهٔ چرته دا حکم شوے دے چه دَ مانځه دَپاره خلقو ته په دے طریقه آواز کوئ ـ دا څیز رسول الله صلی الله علیه وسلم مقرر کړے دے ـ په قرآن مجید کښے په دوو ځایونو کښے صرف دَ دے ځیلے شوے دے، یو په دے آیت کښے، دویم دَ سورة مائده ۵ په آیت ۵۸ کښے ـ دغه شان دَ جمعے دا کوم خاص مونځ چه نن په ټوله دُنیا کښے مسلمانان کوی، دَ دے هم په قرآن کښے نهٔ حکم شوے دے، نهٔ وخت مقرر شوے دے او نهٔ ئے طریقه ښودلی شوی ده ـ دا طریقه هم رسول الله صلی الله علیه وسلم جاری کړی ده، او دَ قرآن دا آیت صرف دَ دے غرض دَپاره نازل شوے دے چه دَ هغے اهمیت او وجوب له زور ورکړی ـ دَ دے څرګند دلیل باوجود چه څوک دا وائی چه شرعی حکمونه صرف هغه دی کوم چه په قرآن کښے بیان شوی دی، هغه په اصل کښے دَ سنتو نهٔ، بلکه پخپله دَ قرآن نه منکر دے ـ

دَ وړاندِ تلو نه ځکښې يو خوشخبري نور هم پيڅندل پکار دي؛

ـــــ جُمعه په اصل کښې يو اسلامي ټکے دے. دَ جاهليت په زمانه کښې به عربيانو دې ته يَومِ عَرُوبَه وئيله. په اسلام کښې چه کله داد مسلمانانو دَ راغونډيدو ورځ اوګرزولې شوه نو دَ دے نوم جمعه کيښودے شوه. اګرچه تاريخ ليکونکي وائي چه کَعَب بن لؤيّ، يا قصيّ بن کلاب هم دَ دے ورځے دَ پاره دا نوم استعمال کړے وُو، ځکه چه په دِے ورځ به هغوئ دَ قريشو غونډه کوله (فتح الباري)، ليکن دَ هغوئ په دِے کار سره پخوانے نوم بدل نهٔ شو، بلکه عامو عربيانو به ورته عَرُوبَه وئيله. نوم په حقيقت کښې په هغه وخت کښې بدل شو کله چه په اسلام کښې د دِے ورځے دا نوے نوم کيښودے شو.

ـــــ دَ اسلام نه مخکښې په اهلِ کتابو کښې دا طريقه موجود وه چه دَ هفتے يوه ورځ دَ عبادت دَ پاره خاص وه او هغه دَ ملّت دَ پاره يوه نښه (شعار) وه. يهوديانو دَ دې غرض دَ پاره دَ سَبَتْ (يعنی دَ خالی) ورځ مقرر کړې وه، ځکه چه په دِے ورځ الله تعالیٰ بنی اسراءيل دَ فرعون دَ غلامۍ نه آزاد کړی وُو. عيسايانو خپل ځان دَ يهوديانو نه جُدا کړے وُو او دَ خپل ملت نښنه ئے دَ اتوار ورځ مقرر کړې وه. اګرچه نهٔ حضرت عيسیٰ دَ دې حکم کړے وُو، نهٔ په انجيل کښې دَ دې ذکر چرته راغلے دے، ليکن دَ عيسايانو عقيده دا ده چه په صليب باندِ دَ دُوح ورکولو نه روستو حضرت عيسیٰ په دې ورځ دَ قبر نه راوتلے وُو او آسمان طرفته تلے وُو. په دِے وجه روستنو عيسايانو دا دِ خپل عبادت ورځ مقرر کړه او بيا په ۳۲۱ سنه کښې رُومي سلطنت حکم اُوکړو او دا ئے دَ عامے چوټۍ ورځ مقرر کړه. اسلام دَ دے دواړو ملتونو نه دَ خپل ملت دَ جُدا کولو دَ پاره دوا دا ورځے پريښودے او دَ جمعے ورځ ئے دَ اجتماعي عبادت دَ پاره مقرر کړه.

ـــــ دَ حضرت عبدالله بن عباس او دَ حضرت ابو مسعود انصاری دَ روايتونو نه معلوميږي چه دَ جُمعے دَ فرضيّت حکم په نبی صلی الله عليه وسلم باندِ دَ هجرت نه لږه موده مخکښې په مکه کښې نازل شوے وُو. ليکن په هغه وخت کښې په هغې باندِ عمل نهٔ شو کولے، ځکه چه په مکه کښې اجتماعي عبادت کول ممکن نهٔ وُو. نو کوم خلقو چه دَ نبیؐ نه مخکښې هجرت کړے وُو او مدينے ته رسيد لی وُو، نبیؐ هغوی ته دا حکم ورواوليږو چه د غلته جُمعه قايم کړي. نو دَ اولنو مهاجرينو سردار حضرت مُصْعَب بن عُمَيْر دَ دولسو کسانو سره په مدينه کښې دَ جُمعے اولنۍ مونځ اُوکړو (طَبَرانی ـ دَارقُطنی). دَ حضرت کعب بن مالک او ابن سيرين روايت دا دے چه دَ دے نه هم مخکښې دَ مدينے انصارو دَ خپله ځانه (چه لا دَ نبی حکم ورته نهٔ وُو رسيد لے) په خپلو کښې دا فيصله کړې وه چه په هفته کښې به يوه ورځ راغونډيږو او اجتماعي عبادت به کړو. دَ دے غرض دَ پاره هغوئ دَ يهوديانو دَ سَبْت يعنی دَ خالی ورځ او دَ عيسايانو دَ اتوار ورځ پريښوده او دَ جُمعے ورځ ئے خوښه کړه او دَ جُمعے اولنۍ مونځ حضرت اسعد بن زراره دَ بنی بياضه په علاقه کښې اُوکړو او په هغې کښې څلويښت کسان شريک شول (مُسند احمد، ابوداوُد، ابن ماجه، ابن حِبّان، عبد بن حُميد، عبدالرزاق، بَيْهَقي). دَ دے نه معلوميږي چه په هغه وخت کښې دَ مسلمانانو په زړونو کښې دا مطالبه پرته وه چه دا سے يوه ورځ پکار ده چه په هغې کښې دَ زيات نه زيات مسلمانان راجمع شي او اجتماعي عبادت اُوکړي او مسلمانانو دا هم غوښتله چه هغه ورځ دِ دَ خالی او دَ اتوار ورځ نهٔ وي، دَ مسلمانانو دَ ملّت شعار دِ دَ يهودو او دَ نصاراوُ دَ شعار نه جُدا وي. دا دَ صحابه کرامو دَ اِسلامي ذهنيت يوه

عجیبه کارنامه ده چه اکثر به دَ یو حکم دَ راتلونه مخکښې دَ هغوئ په زړونو کښې دا راتلله چه فلا نے څیز پکار دے -

ــــ رسول الله صلی الله علیه وسلم چه دَ هجرت نه مخکښې کوم اولنے کارکړے دے په هغې کښې یوکار دَ جُمعې قایمُول هم وُو - چه دَ مکے نه ئے هجرت اُوکړو نو دَ ګل په ورځ قُبا ته اُورسیدو، هلته څلورورځے ایسار شو، دَ جُمعې په ورځ دَ هغه ځائے نه مدینے طرفته روان شو، په لاره کښې دَ بنی عَوف په ځائے کښې وُو چه دَ جُمعې دَ ماښځه وختراغے هم هلته ئے دَ جمعې اولنے مونځ اداکړو ( ابنِ هِشام ) -

ــــ دَ دے ماښځه دَ پاره رسول الله صلی الله علیه وسلّم دَ زوال نه روستنے وخت مقررکړے وُو، یعنی کوم چه دَ ماسپخین دَ ماښځه وخت دے - دَ هجرت نه مخکښې چه حضرت مُصعَب بن عُمَیر ته کوم لیکلے حکم نبیؐ لیږلے وُو په هغې کښې نبیؐ دا فرمائیلی وُو چه فاذا مال النهار عن شطره عند الزوال من یوم الجمعه فتقربوا الی الله تعالیٰ برکعتین ( دارقطنی ) -" کله چه دَ جُمعې ورځ دَ نیمے وُرځے نه واوړی نو دَ دوو رکعتو په ذریعه الله ته نزدیکت حاصل کړئ " - دَ هجرت نه روستو نبیؐ هم داحکم اوکړو نو هم په دغه وخت به ئے عملاً دَ جُمعې مونځ کولو - دَ حضرت انسؓ، حضرت سَلَمهؓ بن اَکوعؓ، حضرت جابرؓ بن عبدالله، حضرت زُبیرؓ بن العوّام، حضرت سہلؓ بن سعد، حضرت عبدالله بن مسعودؓ، حضرت عمّارؓ بن یاسر اوَ حضرت بلالؓ نه دغسے روایتونه دَ احادیثو په کتابونوکښې نقل کړے شوی دی چه نبیؐ به دَ جُمعې مونځ دَ زوال نه روستوکولو - ( مُسندا حمد، بُخاری، احمد، مُسلم، ابوداوُد، نَسائی، ترمذی ) -

ــــ دا خبره هم دَ نبیؐ دَ عمل نه ثابته ده چه په دغه ورځ به نبیؐ دَ ماسپخین دَ ماښځه په ځائے دَ جُمعې مونځ کولو، دا به صرف دوه رکعته وُو، او دَ دے نه مخکښې به نبیؐ خطبه ورکوله هم دا فرق دَ جُمعې دَ ماښځه او دَ عامو ورځو دَ ماسپخین دَ ماښځه وُو - حضرت عمر رضی الله عنه فرمائی، صلوٰة المسافر رکعتان، صلوٰة الفجر رکعتان، وصلوٰة الجمعة رکعتان، تمام غیر قصر علیٰ لسان نبیکم صلی الله علیه وسلم وانما قصرت الجمعة لاجل الخطبة ( احکام القرآن للجصّاص ) -" ستاسو دَ نبیؐ دَ حکم مطابق دَ مسافر مونځ دوه رکعته دے، دَ سحر مونځ دوه رکعته دے، او دَ جمعې مونځ دوه رکعته دے، دا پوره مونځ دے، قصر نه دے، او جُمعة دَ خُطبے په وجه مختصرکړے شوی ده "

ــــ دَ کوم آذان ذکرچه دلته شوے دے دَ هغې نه مُراد هغه آذان دے کوم چه دَ خُطبے نه مخکښې وئیلے کیږی، نه هغه آذان کوم چه دَ خلقو دَ اطلاع دَ پاره دَ خطبے نه ډیر مخکښې وئیلے کیږی - په حدیثو کښې دَ حضرت سائبؓ بن یزید روایت دے چه دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم په زمانه کښې به صرف یو آذان کیدو، او هغه به په هغه وخت کښې کیدو کله چه به امام په منبر باندِ کیناستو - دَ حضرت ابوبکر او دَ حضرت عمرؓ په زمانه کښې به هم دا عمل کیدو - بیا کله چه دَ حضرت عثمان رضی الله عنه په دَور کښې آبادی زیاته شوه نو هغه یو بل آذان وئیل شروع کړل چه دَ مدینے په بازار کښې به دَ هغه دَ مکان زوراء نه کیدو - ( بُخاری، ابوداوُد، نَسائی، طَبَرانی ) -

**۱۵** په دې حکم کښې دَ ذکرنه مُراد خطبه ده، ځکه چه دَ آذان نه روستو به کوم عمل نبی صلی الله علیه وسلم کولو هغه به مونځ نهٔ وُو بلکه خُطبه به وه، او مونځ به ئې همیشه دَ خُطبې نه روستو کولو۔ دَ حضرت ابوهریرهؓ روایت دے چه رسول الله صلی الله علیه وسلم اُوفرمائیل دَ جُمعې په ورځ فرښتې دَ هر راتلونکی نوم دَ هغه دَ راتلو په ترتیب سره لیکی۔ بیا اذا خرج الامام حضرت الملئکة یستمعون الذکر۔ "کله چه امام دَ خُطبې دَ پاره راؤوزی نو هغوئ نومونه لیکل بند کړی او ذکر (یعنی خُطبه) اوریدل شروع کړی" (مُسندِ احمد، بخاری، مُسلم، ابوداؤد، ترمذی، نسائی)۔ دَ دې حدیث نه هم معلومه شوه چه دَ ذکرنه مُراد خُطبه ده۔ پخپله دَ قرآن بیان هم دے طرفته اِشاره کوی۔ اول ئې اُوفرمائیل فاسعوا الی ذکرالله۔ "دَ خدا ئې ذکرته منډه کړئ" بیا ئې وړاندې اُوفرمائیل فَإِذَا قُضِيَتِ الصَّلٰوةُ فَانْتَشِرُوْا فِي الْأَرْضِ "کله چه مونځ پوره شی نو په زمکه کښې خوارهٔ شئ"۔ دَ دے نه معلومه شوه چه دَ جُمعې دَ ورځې دَ عمل ترتیب دا دے چه اوّل دَ الله ذکر او بیا مونځ۔ دَ مفسّرینو هم په دے خبره اتفاق دے چه دَ ذکرنه مُراد یا خو خُطبه ده، یا بیا خُطبه او مونځ دواړه۔

دَ خُطبې دَ پاره دَ لفظ "ذکرالله" استعمالولو نه پخپله پته لږی چه په دے کښې هغه خبرې کول پکار دی چه هغه دَ الله دَ یاد سره مناسبت لری۔ مثلاً دَ الله حمد او ثنا وئیل، دَ هغه په رسول باندې دَرُود او صلوٰة وئیل، دَ هغه دَ حکمونو او دَ هغه دَ شریعت مطابق دَ عمل کولو تعلیم او نصیحت کول، کوم نیکان چه دَ هغه نه یرېږی دَ هغوی تعریف کول وغیره، په دے وجه زمخشری په کشّاف کښې لیکلی دی چه په خُطبه کښې دَ ظالمانو حاکمانو تعریف او ثنا وئیل، یا دَ هغوئ نومونه اخستل او دَ هغوئ دَ پاره دُعا غوښتل، دَ الله دَ ذکر سره هیڅ مناسبت نهٔ لری، بلکه دا خو ذکر الشیطان دے۔

"ذکرالله ته منډه کړئ" دَ دې مطلب دا نهٔ دے چه په منډه منډه ځئ، بلکه دَ دې مطلب دا دے چه زر زر هلته دَ رسیدو کوشش کوئ۔ په پښتو ژبه کښې هم مونږ ه منډه تړړه وهل، دَ زیات کوشش په معنیٰ کښې استعمالوؤ، دَ تیښتې په معنیٰ کښې نهٔ۔ دغه شان په عربۍ کښې هم دَ سَعی معنیٰ تیښته نهٔ ده۔ په قرآن کښې په اکثرو ځایونو کښې لفظ سَعی دَ کوشش په معنیٰ کښې استعمال شوے دے، مثلاً لَيْسَ لِلْإِنْسَانِ إِلَّا مَا سَعٰى۔ وَمَنْ أَرَادَ الْاٰخِرَةَ وَسَعٰى لَهَا سَعْيَهَا۔ فَلَمَّا بَلَغَ مَعَهُ السَّعْيَ۔ وَإِذَا تَوَلّٰى سَعٰى فِي الْأَرْضِ لِيُفْسِدَ فِيْهَا۔ مفسّرینو هم په اتفاق سره دا ټکے دَ بندوبست کولو په معنیٰ کښې اخستلے دے، دَ هغوئ په نزسَعی دا ده چه سړے دَ آذان آواز واورئ او فوراً جومات ته دَ رسیدو فکر شروع کړی۔ او معامله صرف دومره نهٔ ده۔ په حدیث کښې صفا منع شوی ده چه دَ ماځه دَ پاره منډه نهٔ وهئ۔ دَ حضرت ابوهریرهؓ روایت دے چه رسول الله صلی الله علیه وسلّم اُوفرمائیل "کله چه مونځ شروع شی نو ماځهٔ ته په آرام او په وقار سره ورځئ، په منډه مهٔ ورځئ، بیا چه هر څومره مونځ اُورسوئ په هغې کښې شامل شئ او څومره چه درنه اُوشی هغه روستو پوره کړئ" (صحاح ستّه) حضرت قتاده انصاریؓ فرمائی، یو ځلے مونږه په رسول الله صلی الله علیه وسلم پسې مونځ کوؤ چه ناسا په مو دَ خلقو دَ منډې آواز په غوږ شو، چه مونځ ختم شو نو نبیؐ دَ هغه خلقو نه تپوس اُوکړو چه دا دَ څه آواز وُو؟ هغوئ اُووے مونږه ماځهٔ له په منډه راتلو۔ نبیؐ اُوفرمائیل، دا سے مهٔ کوئ ماځهٔ له چه کله راځئ نو په آرام سره راځئ۔ چه څومره مونځ اُورسوئ هغه دَ امام سره اُوکړئ، او چه څومره پاتے شی هغه روستو اُوکړئ (بخاری۔ مُسلم)۔

" اغستل خرخول پریږدئ " دَ دے مطلب صرف اغستل خرخول پریښودل نهٔ دی، بلکه هغه ټول کاروبار پرېښودل مطلب دے کوم چه دَ مانځه دَپاره دَ تیاریٔ کولو نه علاوه وی۔ دَ بیعے ذکر خاص طور دَ دے دَپاره شوے دے چه دَ جُمعے په ورځ به تجارت ښه کیدو، دَ خوا وُشا کلو خلق به یو ځائے ته راجمع کیدل۔ سودا ګرانو به هم خپل مالونه هلته وړل۔ خلقو به هم دَ ضرورت څیزونه اغستل۔ لیکن دَ منع حکم یوازے دَ بیعے دَپاره نهٔ دے، بلکه نورکارونه هم په دِے کښے شامل دی، اوچونکه الله تعالیٰ صفا صفا منع دَ دے نه کړی ده، په دِے وجه دَ فقهاؤ په دِے خبره اتفاق دے چه دَ جُمعے دَ آذان نه روستو بیعه اوهر قسم کاروبار حرام دے۔

دا حکم قطعی طور دَ جمعے دَ مونځ په فرضیت باندِ دلالت کوی۔ اوّل خو چه کوم تاکید شوے دے چه دَ آذان دَ اوریدو سره دَ جُمعے دَ مانځه دَپاره کوشش شروع کړئ نو دا پخپله دَ دے دَ فرضیت دلیل دے۔ بیا دَ دے دَ خاطره چه حلاله بیعه حرامیږی نو دَ دے نه معلومیږی چه دا مونځ فرض دے۔ دَ دے نه علاوه دَ جمعے په ورځ دَ ماسپخین فرض مونځ ختمیدل اودَ هغے په ځائے دَ جُمعے مونځ راتلل دَ دے دَ فرضیت څرګند ثبوت دے۔ ځکه چه یو فرض هله ختمیږی کله چه دَ هغے په ځائے راتلونکے فرض دَ هغے نه زیات اهم وی۔ دَ دے تائید دَ هغه احادیثو نه کیږی چه په هغه کښے رسول الله صلی الله علیه وسلّم دَ جُمعے سخت تاکید کړے دے اودِے ته ئے په صفا الفاظو کښے فرض ویلے دے۔ دَ حضرت عبدالله بن مسعُود روایت دے چه نبیؐ فرمائی " ځما زړهٔ غواړی چه دَ مونځ کولو دَپارهٔ بل څوک په خپل ځائے ودَروُم اوپخپله لاړ شم اودَ هغه خلقو کورونه اُوسوزوُم چه دَ جُمعے مانځه له نهٔ راځی "(مُسندِ احمد، بُخاری)۔ حضرت ابوهریرهؓ اوحضرت عبدالله بن عباسؓ اوحضرت عبدالله بن عمرؓ والیٔ چه موږ دَ جُمعے په خُطبه کښے دَ نبیؐ نه دا اُورید لی دی، " خلقوله پکاردی چه دَ جُمعے مونځ نهٔ پریږدی، کنهٔ نو الله به دَ هغوئ په زړونو باندِ ټاپه اُولګوی اوهغوئ به غافلان پاتے شی " (مُسندِ احمد، مسلم، نسائیؒ)۔ دَ حضرت ابوالجعدؓ ضمری، حضرت جابرؓ بن عبدالله، اودَ حضرت عبدالله بن ابی اَوفی په روایتونو کښے چه دَ نبیؐ کوم احادیث نقل کړے شوی دی دَ هغے نه معلومیږی چه کوم سړے دَ څه حقیقی ضرورت اوجائز عُذر نه بغیر صرف دَ بے پروایئ په وجه مسلسل درے جمعے پریږدی، نو الله به دَ هغه په زړه باندِ مُهر لګوی " بلکه په یو روایت کښے خو الفاظ دادی چه " الله دَ هغه دَ زړهٔ نه دَ منافق زړهٔ جوړوی " ۔ (مُسندِ احمد، ابوداؤد، نسائیؒ، ترمذی، ابن ماجه، دارمی، حاکم، ابن حبّان، بزّار، طَبَرانی فی الکبیر)۔ حضرت جابر بن عبدالله والیٔ چه نبیؐ اُوفرمائیل " دَ نن نه دَ قیامته پورے جُمعه په تاسو باندِ فرض ده۔ څوک چه دا یو معمولی څیز اُوګنړی یا دَ دے حق اُونهٔ منی اودا پریږدی، خدائے دِ دَ هغه حال صحیح نهٔ کړی، نهٔ دِ برکت ورکړی، ښهٔ واورئ، دَ هغه مونځ مونځ نهٔ دے، دَ هغه زکواة زکواة نهٔ دے، دَ هغه حج حج نهٔ دے، دَ هغه روژه روژه نهٔ ده، دَ هغه یوه نیکی نیکی نهٔ ده ترڅو چه هغه توبه اُونهٔ باسی، بیا چه څوک توبه اُوباسی الله به هغه معاف کړی " (ابن ماجه۔ بزّار)۔ دغه رنګے یو روایت طَبَرانی په اوسط کښے دَ ابن عمرؓ نه نقل کړے دے۔ دَ دے نه علاوه ډیر روایتونه دی چه په هغے کښے نبیؐ په څرګندو الفاظو سره جُمعه فرض ګرزولی ده اودِے ته ئے یو واجب حق ویلے دے۔ دَ حضرت عبدالله بن عمروؓ بن عاص روایت دے چه نبیؐ فرمائیلی دی۔ " جُمعه په هرهغه سړی باندِ فرض ده چه دَ جُمعے آذان واوری " (ابوداؤد۔ دارقطنی)۔ جابرؓ بن عبدالله او ابوسعید خُدریؓ والیٔ چه نبیؐ په

كُنْتُمْ تَعْلَمُونَ ﴿٩﴾ فَإِذَا قُضِيَتِ الصَّلٰوةُ فَانْتَشِرُوا فِي الْأَرْضِ وَابْتَغُوا مِنْ فَضْلِ اللهِ وَاذْكُرُوا اللهَ كَثِيرًا لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ ﴿١٠﴾

تاسو پوهېږئ۔ بيا چه كله مونځ پوره شي نو په زمكه كښې خواره شئ او د الله د فضل تلاش اُوكړئ۔[۱۶] او الله ډېر ډېر يادوئ[۱۷]، شايد چه تاسو ته كاميابي نصيب شي۔[۱۸]

خُطبه كښې اُوفرمائيل، "پوه شئ چه الله په تاسو باندې د جُمعې مونځ فرض كړے دے" (بَيهقي)۔ البته نبيٰ ښځې، بچي، غلامان، مريضان. او مسافران د دے د فرضيت نه خلاص كړي دي۔ د حضرت حفصه روايت دے چه نبيٰ اُوفرمائيل، "د جُمعې د پاره وتل په هر بالغ باندې واجب دي" (نَسائي)۔ د حضرت طارق بن شهاب په روايت كښې د نبيٰ حديث دا دے چه "جُمعه په هر مسلمان باندې د امامتئ سره واجب ده سوا د غلام، د ښځې، د بچي او د مريض نه" (ابوداوُد، حاكم)۔ د حضرت جابر بن عبد الله په روايت كښې د نبيٰ الفاظ دا دي، "څوك چه په الله او په ورځ د آخرت ايمان لري په هغه باندې جُمعه فرض ده، ماسوا د ښځې، د مسافر، د غلام او د مريض نه" ، (دار قطني، بَيهقي)۔ د قرآن او د حديث د دے تشريحاتو په وجه د جُمعې په فرضيت باندې د ټول اُمت اجماع ده۔

[۱۶] د دے مطلب دا نهٔ دے چه د جُمعې د مانځه نه روستو په زمكه كښې خوريدل او د رزق د تلاش د پاره منډه ترړه وهل كښې ضروري دي بلكه مطلب دا دے چه بيا د روزئ ګټلو د پاره اجازت دے۔ ځكه چه د جُمعې د آذان د اوريدو سره د ټول كاروبار پرېښودلو حكم شوے وو نو په دے وجه اُوفرمائيلے شو چه د مونځ ختمولو نه روستو تاسو ته اجازت دے چه خواره شئ او چه كوم كاروبار كول غواړئ هغه كوئ۔ دا هغسې حكم دے لكه څنګه چه د اِحرام په حالت كښې د ښكار منع كولو نه روستو فرمائي فَإِذَا حَلَلْتُمْ فَاصْطَادُوا (المائده - ۲)۔ "كله چه احرام مات كړئ نو ښكار كوئ"۔ د دے مطلب دا نهٔ دے چه د اِحرام ماتولو نه روسته ضرور ښكار كوئ۔ بلكه مطلب دا دے چه د دے نه روستو په ښكار باندې څه پابندي نشته، كه غواړئ نو ښكار كولے شئ۔ يا مثلاً په سورۃ نساء كښې د يو نكاح نه د زياتو نكاحونو اجازت په فَانْكِحُوا مَا طَابَ لَكُمْ كښې وركړے شوے دے۔ دلته اګرچه فَانْكِحُوا د امر په صيغې سره دے، ليكن هيڅوك هم د حكم په معنىٰ كښې نهٔ دے اخيستے۔ د دے نه دا اُصولي مسئله راوُزي چه د امر صيغه هميشه د وجوب په معنىٰ كښې نهٔ وي بلكه كله د اجازت او كله د مستحبو په معنىٰ كښې هم وي۔ دا معلومات د ځكښې روستو عبارت نه كيږي چه په كوم ځائے كښې دا د حكم په معنىٰ كښې دے او په كوم ځائے كښې دا د اجازت په معنىٰ كښې دے او په كوم ځائے كښې ترې مُراد دا وي چه د الله دا سے خوښه ده ليكن دا مُراد ترې نهٔ وي چه دا كار فرض او واجب دے۔ بلكه په دې فقرے پسے په بله فقره كښې فرمائي وَاذْكُرُوا اللهَ كَثِيرًا "الله ډېر ډېر يادوئ" دلته هم صيغه د امر ده، ليكن ظاهره خبره ده چه دا د استحباب په معنىٰ كښې ده د وجوب په معنىٰ كښې نهٔ ده۔

دلته د دے خبرې ذكر هم په كار دے چه اګرچه په قرآن مجيد كښې د يهوديانو د سبت او د عيسايانو د اتوار په شان د جُمعې ورځ د عامې چوټئ ورځ نهٔ ده ګرزولے شوې ليكن د دے خبرې نه هيڅوك انكار نهٔ شي كولے چه جُمعه ټيك هم هغسې د مسلمانانو د مِلّت شعار دے لكه څنګه چه د خالي ورځ او د اتوار ورځ

دَ یهودیانو اودَ عیسایانو دَ مِلّت شعار دے۔ اوکه چرے په هفته کښے یوه ورځ دَ عامے چوټئ دَ پاره مقرر وَل دَ ژوندیو ضرورت وی نو لکه څنګه چه یهودیان فطری طور دَ خالی ورځ او عیسایان دَ اتوار ورځ مقرر وی دغه شان به مسلمانان (که په فطرت کښے ئے څه اسلامی فکر موجود وی) خامخا دَ دے غرض دَ پاره دَ جمعے ورځ مقرر وی۔ بلکه عیسایانو خو په دا سے ملکونو باندِ هم دَ اتوار ورځ مقرر کړی وه چه هلته عیسایان په وړوکښے دَ مالګے هومره هم نهٔ وُو۔ یهودیانو چه کله په فلسطین کښے خپل اسراء یلی ریاست جوړ کړو نو اولنے کار هغوئ دا اُوکړو چه دَ اتوار په ځائے دَ خالی ورځ دَ چوټئ ورځ مقرر کړه۔ دَ تقسیم نه مخکښے په هندوستان کښے دَ برطانیے دَ هند او دَ مسلمانانو دَ ریاستونو په مینځ کښے ښکند فرق دا ښکاره کید وچه دَ مُلک په یوه حصّه کښے به دَ اتوار ورځ چُوټئ وه او په بله حصّه کښے به دَ جمعے ورځ۔ البته چه په کوم ځائے کښے په مسلمانو کښے اِسلامی فکر موجود نهٔ وی نو هلته هغوئ ته دَ اقتدار مِلاویدو نه روستو هم دَ اتوار ورځ خوږه وی لکه چه په پاکستان کښے مونږ وليدله۔ بلکه دَد ے نه زیاته بے فکری چه کله راشی نو دَ جُمعے چُوټئ منسوخ کړے شی او دَ اتوار ورځ چُوټئ مقرر کړے شی، لکه چه مصطفیٰ کمال په ترکی کښے کړی وه۔

کله یعنی په خپل کاروبار کښے دَ ننه هم الله مَه هیروئ، بلکه په هر حال کښے هغه یاد ساتئ او دَ هغه ذکر کوئ۔ (دَ تشریح دَ پاره اُوګوره تفهیم القرآن، څلورم جلد، تفسیر دَ سورة احزاب، حاشیه ٦٣)۔

۱۸ له په قرآن مجید کښے په ډیرو ځایونو کښے دَ یو هدایت یا دَ یو نصیحت یا دَ یو حکم کولو نه روستو لَعَلَّکُمۡ تُفۡلِحُوۡنَ (شاید چه فلاح بیا مومئ) او لَعَلَّکُمۡ تُرۡحَمُوۡنَ (شاید چه په تاسو رحم اُوکړے شی) الفاظ فرمائیلے شوی دی۔ په داسے موقعو کښے دَ لفظ شاید استعمالولو مطلب دا نهٔ وی چه دَ الله تعالیٰ کښی (معاذ الله) څه شک دے، بلکه دا په اصل کښے یو شاهانه انداز بیان دے۔ دا داسے ده لکه چه یو مهربانه مالک خپل نوکر ته اُووائی چه ته فلا نے کار اُوکړه، شاید چه تا ته ترقی مِلاؤ شی۔ په دِے کښے یوه باریکه وعده پټه پرته وی چه دَ هغې په اُمید کښے نوکر ډیر په شوق سره هغه خدمت کوی۔ دَ یو بادشاه دَ خُلے نه چه دَ یو نوکر دَ پاره دا الفاظ را اُوزی نو دَ هغه په کور کښے خوشحالیا نے کیږی۔

دلته چونکه دَ جُمعے حکمونه ختم شوی دی نو په دِے وجه مناسب معلومیږی چه په څلورو واړو مذهبونو کښے دَ قرآن او دَ حدیث او دَ صحابو دَ قول او دَ اِسلام دَ عامو اُصولونه دَ جمعے کوم حکمونه په ترتیب کړے شوی دی، دَ هغې خلاصه پیش کړے شی۔

دَ حنفیانو په نزد دَ جمعے وخت هغه دے کوم چه دَ ماسپخین وخت دے۔ نهٔ دَ دے نه مخکښے جُمعه کیدے شی او نهٔ روستو۔ دَ بیعے حرامولے دَ اولنی آذان نه شروع کیږی، نهٔ چه دَ هغه دویم آذان نه کوم چه په منبر باندِ دَ امام دَ کیناستو نه روستو کیږی، ځکه چه په قرآن کښے اِذَا نُوۡدِیَ لِلصَّلٰوۃِ مِنۡ یَّوۡمِ الۡجُمُعَۃِ الفاظ مُطلقاً دی۔ نو دَ زوال نه روستو چه کله دَ جُمعے وخت شروع شی په هغه وخت کښے چه کوم آذان دَ جُمعے دَ مانځه دَ پاره اُوشی، خلقوله پکار دی چه دَ هغې په اورید وسره اغستل خرڅول پریږدی۔ لیکن که یو سړی په هغه وخت کښے اغستل خرڅول کړی وی نو هغه بیعه به فاسده یا منسوخ نهٔ وی، بلکه دا به صرف یوه ګناه وی۔ جُمعه په هر کلی کښے نهٔ کیږی بلکه صرف په مِصرِ جامع کښے کیږی، او دَ مِصرِ جامع معتبر تعریف دا د ے چه هغه ښار چه په هغې کښے بازار وی، دَ اَمن دَ قایمولو اِنتظام پکښے موجود وی، او آبادی ئے دومره وی چه که چرے دَ هغې په لوئ جومات کښے دَ جُمعے دَ مانځه دَ پاره هغه ټول خلق راجمع شی چه په هغوئ دَ جمعے مونځ فرض وی نو په هغې کښے نهٔ ځائیږی۔ کوم خلق چه دَ

بنارنه بهراوسي په هغوئ باندِ دَ جُمعې دَ ماښځه دَ پاره بنارته راتلل هله فرض دي چه هغوئ ته دَ اذان آواز رسي يا هغه دَ بنارنه شپږ ميله لرې اوسي - دَ مونځ دَ پاره ضروري نهٔ ده چه خاص په جومات کښې دِ وي - دَ جُمعې مونځ په اَرت ميدان کښې هم کيدې شي او په داسې ميدان کښې هم کيدې شي چه دَ بنارنه بهرې خودَ بنار يوه حصّه گڼلې شي - دَ جمعې مونځ صرف په هغه ځائے کښې کيدې شي چه هلته دَ هر سړي دَ پاره دَ شريکيدو عام اجازت وي - په يو داسې بند ځائے کښې چه هلته هر چا ته دَ ورتلو اجازت نهٔ وي، که هر څومره ډير سړي راجمع شي، خو جمعه پکښې صحيح کيدې نشي - دَ جُمعې دَ صحيح کيدو دَ پاره ضروري ده چه په اِمامتئ کښې کم از کم (دَ امام ابوحنيفهؒ په قول) دَ امام نه سِوا درې سړي وي يا (دَ ابويوسف او محمد په قول) دَ امام سره دوه داسې کسان موجود وي چه په هغوئ باندِ جمعه فرض وي - دَ کومو عذرونو په وجه چه دَ يو سړي نه دَ جمعې مونځ ساقطيږي هغه دا دي، چه سړې په سفر وي، يا داسې بيمار وي چه راتلې نهٔ شي، يا په دواړو خپو معذور وي، يا ړوند وي (ليکن دَ امام ابويوسفؒ او امام محمدؒ په نز په ړوند باندِ صرف هله جُمعه فرض نهٔ ده چه هغه داسې سړې بيا اونهٔ مومي چه هغه بوځي) - يا دَ يو ظالم دَ لاسه هغه ته دَ خپل سر يا دَ خپل عزت، يا دَ مالي نقصان خطره وي، يا سخت باران او خټې اَو اُوبهٔ وي، يا سړې په قيد کښې وي - دَ قيديانو او معذورانو دَ پاره دا خبره مکروهه ده چه هغوئ دَ جُمعې په ورځ دَ ماسپخين مونځ دَ اِمامتئ سره اُوکړي - دَ کومو خلقونه چه دَ جُمعې مونځ شوې وي دَ هغوئ دَ پاره هم دَ ماسپخين مونځ په اِمامتئ سره کول مکروهه دي - خُطبه دَ جمعې دَ صحيح والي دَ پاره يو شرط دې، ځکه چه نبي صلی الله عليه وسلم دَ جمعې مونځ دَ خُطبې نه بغير هډو کړې نهٔ دې، او خُطبه لازماً دَ مونځ نه مخکښې پکار ده، او دوه خُطبې پکار دي، دَ خُطبې دَ پاره چه امام کله منبر ته اُوخيژي، دَ هغه وخت نه دَ خُطبې دَ ختميدو پورې هر قسم خبرې کول منع دي، او مونځ هم په هغه وخت کښې کول نهٔ دي پکار، خواه که دَ امام آواز هغه ته رسي او که نهٔ رسي (هدايه، فتح القدير، احکام القرآن للجصّاص، الفقه علی المذاهب الاربعه، عمدة القاري) -

دَ شافعيانو په نز دَ جُمعې وخت هغه دې کوم چه دَ ماسپخين دې - دَ بيعې حراموالې او جُمعې ته دَ منډې وهلو حکم دَ هغه وخت نه شروع کيږي کله چه دويم آذان اُوشي (يعنې هغه آذان چه په منبر باندِ دَ امام دَ کيناستو نه روستو ويلې کيږي)، بيا هم که څوک په دغه وخت کښې بيعه اُوکړي هغه به منسوخ نهٔ وي - جُمعه په هر هغه کلي کښې کيږي چه دَ هغې په مستقلو اوسيدونکو کښې څلويښت کسان داسې موجود وي چه په هغوئ دَ جُمعې مونځ فرض وي - کوم خلق چه دَ کلي نه بهر اوسي او هغوئ ته دَ آذان آواز ور رسي نو په هغوئ باندِ جُمعې ته حاضريدل ضروري دي - جمعه خامخا دَ کلي په حد کښې دَ ننه پکار ده خو دا ضروري نهٔ ده چه په جومات کښې دِ وي - کوم خلق چه په صحرا کښې په خيمو کښې اُوسيږي په هغوئ باندِ جمعه واجب نهٔ ده - دَ جمعې دَ صحيح والي دَ پاره ضروري ده چه دَ اِمام سره کم از کم څلويښت داسې کسان په اِمامتئ کښې شريک وي چه په هغوئ جمعه فرض وي - دَ کومو عذرونو په وجه دَ سړي نه دَ جُمعې مونځ ساقطيږي هغه دا دي، دَ سفر حالت، يا په يو ځائے کښې څلور ورځې يا دَ دې نه کم دَ قيام کولو اراده، خو په دې شرط چه سفر جائز وي - داسې بوډا يا مريض چه په سورلئ باندِ هم دَ جمعې دَ ماښځه دَ پاره نشي تلې - ړوند، چه ماښځه ته دَ بوتلوئے څوک نهٔ وي - چه دَ سر يا دَ مال يا دَ عزت خطره وي - يا په قيد کښې وي،

خو په دې شرط چه هغه دَ خپل قصور په وجه نهٔ وی قید شوے - دَ مونځ نه مخکښے د وه خُطبے پکار دی - دَ خُطبے په دَوران کښے چپ کینا ستل سنت دے ، خوخبرې کول حرام نهٔ دی - څوک چه اِمام ته دومره نزدے ناست وی چه خُطبه اَورى نو دَ هغه دَ پاره خبرې کول مکروه دی ، لیکن هغه دَ سلام جواب ورکولے شی ، او دَ رسول الله صلی علیه وسلم دَ نوم په اَوریدو سره په اُوچت آواز دَرُود ویلے شی (مُغنی المُحتاج - الفقه علی المذاهب الاربعه) -

دَ مالکیانو په نزد جُمعے وخت دَ زوال نه شروع کیږی او دَ ماښام نه دومره مخکښے ختمیږی چه دَ نمر دَ پرېوتو نه مخکښے مخکښے خُطبه او مونځ ختم شی - دَ بیع حراموالے او دَ کوشش کولو حکم دَ دوېم آذان نه شروع کیږی - دَ دے نه روستو که بیعه اُوشوه نو هغه فاسده ده او منسوخ به وی - جُمعه صرف په هغه کلو کښے کیدے شی چه دَ هغے اُوسیدُونکی هلته مستقل طور کورونه جوړ وی او اُوسی ، او په گرمیٔ یخنیٔ کښے یو خوا بل خوانهٔ ځیٔ ، او د هغوی ضرورتونه هم په هغه کلی کښے پوره کیږی ، او دَ تعداد په وجه خپل حفاظت کولے شی - دَ استوګنے په عارضی ځایونو کښے که هر څومره خلق وی او که هغوی هر څومره موده ایسار شی خو جُمعه نشی قائمولے - په کوم کلی کښے چه جُمعه کیږی دَ هغے نه درے درے میله لرے چه کوم خلق اُوسیږی په هغوی باندې جُمعے ته حاضریدل فرض دی - د جُمعے مونځ صرف په هغه جوماتونو کښے کیدے شی چه هغه په کلی کښے د ننه وی یا دَ کلی سره جوخت وی او عمارت ئے دَ کلی دَ عامو اُوسیدونکو دَ کورونو دَ کیفے درجے نهٔ وی - حینی مالکیانو دا شرط هم لګولے دے چه دَ جومات دَ پاسه دِچت ضروری وی او په هغے کښے پنځوخته مونځ باقاعده پکار دے - لیکن دَ مالکیانو ترجیحی مسلک دا دے چه دَ جُمعے دَ صحیح والی دَ پاره دَ جومات چت شرط نهٔ دے ، او په داسے جومات کښے هم جمعه کیږی چه هغه صرف دَ جُمعے دَ مانځهٔ دَ پاره جوړ شوے وی او پنځوخته مونځ پکښے باقاعده نهٔ کیږی - دَ جُمعے دَ پاره په اِمامتیٔ کښے دَ اِمام نه سِوا کم از کم دولس داسے سړی حاضریدل ضروری دی چه په هغوی جمعه فرض وی - دَ کوم عذرونو په وجه چه دَ سړی نه جُمعه ساقطیږی هغه دا دی : دَ سفر په حالت کښے ، یا دَ سفر په دوران کښے په یو ځائے کښے دَ څلورو ورځو نه دَ کم ایساریدو اراده - داسے مریض چه جومات ته تلل ورته گران وی - چه دَ چا مور یا پلار یا ښځه یا بچے بیمار وی ، یا دَ یو داسے مریض خدمت کوی چه دَ هغه دَ خدمت کولو هیڅوک نهٔ وی ، یا دَ هغه نزدے رشته دار سخت بیمار وی یا مرګ ته نزدے وی - چه دَ چا داسے مال ته خطره وی چه دَ هغے نقصان دَ برداشت نه بهر وی ، یا چا ته دَ خپل سر یا دَ خپل عزّت خطره وی ، یا څوک دَ وهلو نه یا دَ قید نه پټ شوے وی خو په دے شرط چه هغه په دے معامله کښے مظلوم وی - یا سخت باران وی او ختے وی ، یا سخته ګرمی یا سخته یخنی وی چه جومات ته تلل پکښے ګران وی - دوه خُطبے دَ مونځ نه مخکښے لازمی دی ، اَنْ تر دے که چرے خُطبه دَ مونځ نه روستو شی نو د مونځ دُوباره کول ضروری دی - او دا خُطبے لازماً په جومات کښے دَ ننه پکار دی - دَ خُطبے دَ پاره چه امام منبر ته اُوخیژی دَ هغه وخت نه نفل کول حرام دی او چه کله خُطبه شروع شی نو خبرې کول هم حرام دی اګرکه سړے دَ خُطبے آواز نهٔ اَوری - لیکن که چرے خطیب په خپله خُطبه کښے داسے خرا بے خبرې شروع کړے چه هغه دَ خُطبے نه بهر وی ، یا یو داسے سړی ته کنځلے اُوکړی چه هغه دَ کنځلو مستحق نهٔ وی ، یا دَ یو داسے سړی صفت شروع کړی چه دَ هغه صفت کول جائز نهٔ وی ، یا داسے خبرې شروع کړی چه هغه دَ خُطبے سره تعلق نهٔ لری ، نو خلقو ته حق حاصل دے چه دَ هغے خلاف اُوکړی -

وَإِذَا رَأَوْا تِجَارَةً أَوْ لَهْوًا انْفَضُّوا إِلَيْهَا وَتَرَكُوكَ

اوکله چه هغوئ تجارت اولوبه تماشا اُولیده نو هغې ته ئے منډه کړه او ته ئے ولاړ

دارنګے په خُطبه کښے دَ وخت دَ باد شاه دَ پاره دُعا کول مکروهه دی خو مله چه خطیب ته دَ خپل سر خطره نهٔ وی - خطیب لازماً هغه سړے پکار دے چه هغه مخکښے مونځ ورکوی. که دَ خطیب نه علاوه بل سړی مونځ ورکړے وی نوهغه به باطل وی (حاشیه الدّسوقی علی الشرح الکبیر - احکام القرآن ابن عربی - الفقه علی المذاهب الاربعه) -

دَ حنبلیانو په نزچه نمر یوه نیزه اُوچت شی نودَ جُمعے دَ مونځ وخت شروع شی او کله چه دَ ماز دیګر وخت شروع شی نو دَ جُمعے دَ مونځ وخت ختم شی - لیکن دَ زوال نه مخکښے جمعه صرف جائز ده، اودَ زوال نه روستو واجب او افضل ده - دَ بیع حرامولے اودَ کوشش کولو وخت دَ دویم آذان نه شروع کیږی - دَ د ے نه روستو چه کومه بیعه اُوشی هغه هډو دَ سره کیږی نهٔ - جُمعه صرف په هغه ځائے کښے کیږی په کوم ځائے کښے چرځلوینښت داسے کسان موجود وی چه په هغوئ جُمعه فرض وی او مستقل طور په کورونو کښے (نهٔ په خیمو کښے) آباد وی، یعنی په یخنئ کرمئ کښے نهٔ ځی راځی - دَ دے غرض دَ پاره دَ کلی کورونه او محلے که دَ یو بل سره جوخت وی او که جُدا جُدا وی په دِ ے سره هیڅ فرق نه راځی، که دَ دے ټولو نوم یو وی نو هغه یو کلے د ے اګرکه حقّے ئے دَ یو بل نه په میلونو میلونو لرے وی - په داسے کلی کښے چه کوم خلق په دریو میلو کښے دَ نه اوسی په هغوی باندِ جمعے ته حاضریدل فرض دی - دَ امام سره ځلوینښت کسان دَ اما متئ دَ پاره ضروری دی. مونځ ضروری نهٔ دے چه خامخا دِ په جومات کښے وی، په ارت میدان کښے هم کید ے شی - دَ کومو عذرونو په وجه چه دَ یو سړی نه دَ جمعے فرض ساقطیږی هغه دادی: چه مسافر وی اودَ جمعے په کلی کښے دَ څلور ورځو یا دَ دے نه دَ کمو ورځو دَ ایساریدلو اراده لری - چه داسے مریض وی چه په سور لئ باندِ تلل ورته هم ګران وی - چه ړوند وی، خو که په خپله په لاره تلے شو نو بیا معذور نهٔ د ے - دَ ړوند دَ پاره دَ بل په امداد سره تلل واجب نهٔ دی - چه سخته یخنی وی یا سخته ګرمی وی یا سخت باران او چقړے وی اودَ مونځ ځائے ته رسیدل ګران وی

چه دَ یو ظالم دَ ظلم نه دَ بچ کیدو دَ پاره پټ شوے وی - چه دَ سر یا دَ عزّت پکښے خطره وی یا دَ داسے مالی نقصان یره وی چه هغه دَ برداشت نه بهر وی - دَ مونځ نه مخکښے دوه خُطبے پکار دی - دَ خُطبے په دَوران کښے دَ هغه سړی دَ پاره خبری کول حرام دی چه هغه خطیب ته دومره نزدے ناست وی چه دَ هغه آواز اَوریدے شی البته لرے سړے چه دَ خطیب آواز ورته نهٔ رسی هغه خبرے کولے شی - خطیب که عادل یعنی انصاف والا وی او که نهٔ وی خو خلقوله دَ خُطبے په دَوران کښے چپ اُوسیدل پکار دی - که دَ جُمعے په ورځ اختر شی نو کومو خلقو چه دَ اختر مونځ کړے وی دَ هغوی نه دَ جمعے فرض ساقطیږی - په دِ ے مسئله کښے دَ حنبلیانو مسلک دَ نورو دریو اما مانو دَ مسلک نه مختلف دے (غایة المنتهی - الفقه علی المذاهب الاربعة) -

په دِ ے خبره باندِ دَ ټولو فقهاؤ اتفاق د ے چه په کوم سړی باندِ جمعه فرض نهٔ ده هغه که دَ جمعے په مونځ کښے شریک شی نو دَ هغه مونځ صحیح د ے او دَ هغه دَ پاره بیا دَ ماسپخین مونځ فرض نهٔ د ے -

فَاِنَّمَا ۚ قُلْ مَا عِنْدَ اللّٰهِ خَيْرٌ مِّنَ اللَّهْوِ وَمِنَ التِّجَارَةِ ؕ وَاللّٰهُ خَيْرُ الرّٰزِقِيْنَ ﴿۱۱﴾ ع

پریښودے[۱۹] - دوئ ته اُووایه، څه چه دَ الله سره دی هغه دَ لوبے تماشے او دَ تجارت نه بهتر دی[۲۰] - او الله دَ ټولونه بهتر روزی رسان دے[۲۱] - ع

[۱۹] داهغه واقعه ده چه دَ دے په وجه په پاسنو آیتونو کښے دَ جمعے حکمونه نازل شوی دی - دَ دے کومه قیصه چه دَ احادیثو په کتابونو کښے دَ حضرت جابر بن عبدالله نه، دَ حضرت عبدالله بن عباس نه، دَ حضرت ابوهریره رض نه، دَ حضرت ابومالک نه، او دَ حضرات حسن بصری، ابن زید، قَتاده، او مُقاتل بن حیّان نه نقل کړے شوی ده، هغه داده، چه په مدینه کښے دَ شام نه یوه تجارتی قافله راغله، بالکل دَ جمعے دَ مانځه وخت وُو، قافلے والو ډول نغارے شروع کړے چه دَ کلی خلقو ته دَ هغوئ دَ راتلو خبر اُوشی - رسول الله صلی الله علیه وسلّم په هغه وخت کښے خُطبه ورکوله - دَ نغارو دَ آواز سره خلق بے قراره شو او دَ دولسو کسانو نه علاوه باقی نور ټول بقیع طرفته منډے کړے چه هلته قافلے دَ تجارت سامان کوز کړے وُو - دَ دے قیصے په روایتونو کښے دَ ټولونه زیات معتبر روایت دَ حضرت جابر بن عبدالله دے چه هغه امام احمد، بُخاری، مُسلم، ترمذی، ابوعُوانه، عبد بن حُمید، ابویعلیٰ وغیرهم دَ ګڼو سندونو سره نقل کړے دے - په دے کښے فرق صرف دا دے چه په یو روایت کښے وئیلے شوی دی چه دا واقعه دَ مونځ په حالت کښے شوی وه، او په بل روایت کښے دا دی چه دا په هغه وخت کښے اُوشوه کله چه نبی ؐ خُطبه ورکوله - لیکن دَ حضرت جابر او دَ نورو صحابو او تابعینو ټول روایتونه چه راجمع کړے شی نو صحیح خبره دا معلومیږی چه دا واقعه دَ خُطبے په دوران کښے شوی ده او حضرت جابر رض چه کوم ځائے دا وئیلی دی چه دا دَ جُمعے دَ مانځه په دوران کښے شوی ده، نو هلته هغه خُطبے او مونځ دواړو ته دَ جمعے مونځ وئیلے دے - دَ حضرت عبدالله بن عباس په روایت کښے دی چه په هغه وخت کښے دَ دولسو سړو سره اُووه ښځے هم پاتے شوے وے (ابن مَردُویه). قَتاده وائی چه دَ دولسو سړو سره یوه ښځه وه (ابن جریر - ابن ابی حاتم). دَ دارقُطنی په یو روایت کښے څلویښت کسان او دَ عبد بن حُمید په روایت کښے اُووه کسان ښودلے شوی دی - او فرّاء لیکلی دی چه اَته کسان وُو - لیکن دا ټول ضعیف روایتونه دی - او دَ قَتاده دا روایت هم ضعیف دے چه دَ غسے واقعه درے ځله شوی وه (ابن جریر) - معتبر روایت دَ حضرت جابر بن عبدالله دے چه په هغے کښے پاتے سوی کسان دولس ښودلے شوی دی - او دَ قَتاده دَ یو روایت نه سِوا باقی دَ ټولو صحابو او تابعینو روایتونه په دِے باندِ متفق دی چه دا واقعه صرف یو ځل شوی ده - دَ پاتے کیدونکو په حقله دَ مختلفو روایتونو راجمع کولونه معلومیږی چه په هغوی کښے حضرت ابوبکر رض، حضرت عمر رض، حضرت عثمان رض، حضرت علی رض، حضرت عبدالله بن مسعود رض، حضرت عمّار بن یاسر رض، حضرت سالم رض مَولیٰ حُذیفه او حضرت جابر بن عبدالله شامل وُو - حافظ ابویعلیٰ چه دَ حضرت جابر بن عبدالله کوم روایت نقل کړے دے په هغے کښے وئیلے شوی دی چه کله خلق دَ غسے اُووتل او صرف

دولس صحابه پاتے شونو هغوی ته نبیؐ اُوفـرمائیل، وَالَّذِیْ نفسی بیدہٖ لوتتابعتم حتّٰی لم یبق منکم احـدٌ لسال بکم الوادی ناراً، "که چرې تاسو ټول تلی وئ او یو هم نهٔ وې پاتے شوے نو په دې میدان کښے به وُور بهید لے وے". هم د غسے خبره ابن مَرْدُوَیه دَ حضرت عبدالله بن عباس نه او ابن جریر دَ قتاده نه نقل کړې ده۔

شیعه کانو حضراتو دا واقعه هم په صحابوؓ باندِ دَ طعن کولو دَ پاره استعمال کړې ده۔ هغوی وائی چه دومره کمزورو صحابو خطبه او مونځ پریښودل او تجارت او لوبے تماشے ته منډې وهـل دَ دے خبرې ثبوت دے چه هغوئ دُنیا له په آخرت باندِ ترجیح ورکوله۔ لیکن دا یو سخت بے ځایه اعتراض دے، دا اعتراض هله کید ے شی چه سړے دَ حقیقت نه سترګے پټے کړی۔ په اصل کښے دا واقعه دَ هجرت نه روستو په نژدے زمانه کښے شوې وه۔ په هغه وخت کښے یو طرفته خودَ صحابو دَ اجتماعی تربیت اَولنئ ورځے وے۔ او بل طرفته دَ مکے کافرانو په خپل اثر سـره دَ مدینے دَ خلقو سخته معاشی ناکه بندی کړې وه چه دَ هغے په وجه په مدینه کښے دَ ضرورت څیزونه ډیر کم شوی وُو۔ حضرت حسن بصری فرمائی چه په هغه وخت کښے په مدینه کښے خلق دَ لوږې نه مړه کیدل او قیمتونه ډیر بره ختلی وُو (ابن جریر)۔ په دې حالت کښے چه کله یوه تجارتی قافلـه راغله نو دَدِے یَرے نه چه هسے نهٔ چرته دَ مونځ دَ خلاصدو پورې سامان خرڅ شوے وی، خلق اُوبَریدل او قافلے طرفته ئے منډه کړه۔ دا یوه داسے کمزوری او داسے غلطی وه چه دَ تربیت دَ کمی او دَ حالاتو دَ سختئ په وجه ناساپه شوې وه۔ لیکن څوک چه دَد ے صحابو هغه قربانو ته اُوګوری کوم چه هغوئ دَدے نه روستو دَ اِسلام دَپاره اُوکړل۔ او دِے ته اُوګوری چه په عبادتو او معاملاتو کښے هغوئ څومره دَ تقوی ژوند تیرکړو نو هغه به هرګز دا اِلزام اُونشی لګولے چه هغوئ دُنیا په آخرت باندِ غوره ګڼړلی وه، دا اِلزام صرف هغه سړے لګولے شی چه پخپله دَ هغه په زړه کښے دَ صحابو سره دَ بُغض کولو مرض پروت وی۔

بیا هم دا واقعه لکه څنګه چه په صحابو باندِ دَ اعتراض کونکو تائید نهٔ کوی دغسے دَ هغه خلقو دَ خیالاتو تائید هم نهٔ کوی کوم چه دَ صحابو په عقیدت کښے ورانډِ تلی دی او دا دعوی کوی چه دَ هغوئ نه هیڅکله څه غلطی نهٔ ده شوی، یا که شوی هم ده خودَ هغے ذکر کول نهٔ دی پکار، ځکه چه دَ هغوئ غلطی ذکر کول او هغے ته غلطی ویئل دَ هغوی توهین او سپکاوے دے، او په دِے سره دَ هغوئ عزت او وقار په زړونو کښے نهٔ پاتے کیږی، او دَدے ذکر دَ هغه آیتونو او دَ هغه احادیثو خلاف دے چه په هغے کښے دَ صحابو دَ بخښنا ئے او دَ الله په دربار کښے دَ مقبول کیـدو څرګندونه شوې ده۔ دا ټولے خبرې سراسر مبالغه ده، دَدے دَ پاره په قرآن او په حدیث کښے هیڅ سند نشته۔ دلته هر سړے وینی چه الله تعالیٰ پخپله دَ هغه غلطئ ذکر کړے دے چه هغه دَ کُنرو صحابو نه شوې وه۔ او دا ذکر ئے په هغه کتاب کښے کړے دے چه دَ قیامته پورے به ئے ټول اُمت لولی، او په هغه کتاب کښے ئے کړے دے چه په هغے کښے دَ هغوئ دَ بخښنا ئے او دَ الله په دربار کښے دَ مقبول کیدو څرګندَ ونه شوې ده۔ بیا دَ حدیث او دَ تفسیر په ټولو کتابونو کښے دَ صحابوؓ نه واخله او دَ روستنو لویو لویو اهلِ سنتو پورے ټولو دَدے غلطئ تفصیلات بیان کړی دی۔ آیا دَدے معـنیٰ دا ده چه الله تعـالی دا ذکر دَدے دَپاره کړے دے چه دَدے صحابو هغه وقار او عـزت دَ خلقو دَ زړونو نه اُوځی کوم چه هغه پخپله دَ خلقو

په زړونو کښې اچول غواړی؟ او آیا دَ دې مطلب دا دے چه صحابو او تابعینو او محدثینو او مفسّرینو دَ دے قیصے ټول تفصیلات په دِ دے وجه بیان کړی دی چه هغوئ دَ هغه شرعی مسئلے نه ناخبره وُو کومه چه دِے حضرا تو بیان کړی ده؟ او آیا واقعی څوک چه سورۃ جُمعه لسولی او دَ دے دَ تفسیر مطالعه کوی دَ هغوئ دَ زړونو نه دَ صحابو عزّت و تلے دے؟ که چرے دا سے نه ده، او یقیناً چه دا سے نه ده نو هغه ټولے خبرې بے ځایه دی او دَ مبالغې نه ډکے دی کومے چه دَ صحابو دَ احترام په نوم څینې خلق کوی۔

حقیقت دا دے چه صحابه کرامؓ څه آسمانی مخلوق نه وُو بلکه په دِے زمکه باندِ پیدا شوی انسانان وُو۔ دَ هغوی نه چه څه جوړ شوی وُو دَ رسول الله صلی الله علیه و سلم په تربیت سره تر جوړ شوی وُو۔ دا تربیت هغوئ ته رُو رُو درجه په درجه په ډیرو کلونو کښے ورکړے شوے وُو۔ دَ دے تربیت چه کومه طریقه مونږ ته په قرآن او په حدیث کښے په نظر راځی هغه دا ده چه کله به په هغوئ کښے څه کمزوری ښکاره شوه، نو الله او دَ هغه رسول به په هغه وخت هغې ته توجه اُوکړه او فوراً به دَ هغه کمزورئ دَ لرے کولو دَ پاره دَ هغوئ دَ تعلیم او تربیت پروګرام شروع شو۔ دَ دے جمعے دَ ما ښځه په معامله کښے مونږ وینو چه کله دَ تجارت دَ قافلے واقعه اُوشوه نو الله تعالیٰ دَ سورۃ جمعے دا رکوع نازله کړه او دَ جمعے دَ ما ښځه آداب ئے اُوښودل۔ بیا دَ دے سره رسول الله صلی الله علیه و سلم مُسلسل په خپلو خطبو کښے دَ جمعے دَ فرضیت په اهمیت باندِ خلق پوهه کړل، چه ذکر ئے مونږه په حاشیه ۱۵ کښے کړے دے۔ او بیا په تفصیل سره ئے هغوئ ته دَ جمعے دَ آدابو تعلیم ورکړو۔ دا ټول هدایات مونږ ته په احادیثو کښے ډیر په وضاحت سره ملاویږی۔ حضرت ابو سعید خُدری وائی چه نبیؐ اُوفرمائیل هر مسلمان له پکار دی چه دَ جمعے په ورځ غُسل اُوکړی، غاښونه صفا کړی، ښے جامے واغوندی، او خوشبوئی اُولګوی (مُسنداحمد، بُخاری، مُسلم، ابوداوُد، نسائی)۔ حضرت سلمان فارسیؓ وائی چه نبیؐ فرمائی چه کوم مسلمان دَ جمعے په ورځ غُسل اُوکړی، او چه څومره زیات ځان پاکولے شی هغومره زیات ځان پاک کړی، په تیلو سر غوړ کړی او چه کومه خوشبوئی کور کښے وی هغه اُولګوی، بیا جوماټ ته لاړ شی، او دَ دوُو کسانو په مینځ کښے ځان له په زور ځائے اُونه کړی، بیا چه څومره الله توفیق ورکړے وی هغومره (نفل) مونځ اُوکړی، بیا چه کله امام خبرې کوی نو چپ شی، نو دَ یو بے جمعے نه دَ بلے جمعے پورے دَ هغه ګناهونه معاف کیږی (بُخاری۔ مُسند احمد)۔ تقریباً هم دَ غسے روایتونه حضرت ابوایوب انصاریؓ، حضرت ابوهریرهؓ، او حضرت نُبیشة الهُذَلیؓ هم دَ نبیؐ نه نقل کړی دی (مُسنداحمد، بُخاری، مُسلم، ابوداوُد، ترمذی، طبرانی)۔ حضرت عبدالله بن عباس وائی چه نبیؐ اُوفرمائیل څه وخت چه امام خُطبه ورکوی په هغه وخت کښے چه څوک خبرې اُوکړی دَ هغه مثال دَ هغه خر پشان دے چه په هغه باندِ کتابونه بارکړے شوی وی، او څوک چه هغه ته اُووائی چه چُپ شه، دَ هغه هم جُمعه اُونه شوه (مُسنداحمد)۔ دَ حضرت ابوهریره بیان دے چه نبیؐ اُوفرمائیل که چرے تا دَ جُمعے په ورځ دَ خطبے په دَوران کښے یو خبری کونکی ته اُووئیل چه چُپ شه نو تا هم عبث کار اُوکړو (بُخاری، مُسلم، نسائی، ترمذی، ابوداوُد)۔ دَ غه رنګے روایتونه، امام احمد، ابوداوُد او طبرانی دَ

حضرت علیؓ او دَ حضرت ابوالدَّرداؓ نه نقل کړې دی ۔ دَ دے سره نبیؐ خطیبانو ته هم فرمائیلی دی چه په اوږدو اوږدو خطبو سره خلق مَه تنګوئ ۔ نبیؐ به پخپله دَ جمعے په ورځ مختصر خُطبه ورکوله او مونځ به ئې هم زیات اوږد نهٔ کؤو ۔ حضرت جابرؓ بن سَمُره وائی چه نبیؐ به اوږدے خُطبے نهٔ ورکولے ، هغه به بس مختصر یو څو خبرې وے ( ابوداوُد )۔ حضرت عبدالله بن ابی اَوفیٰ وائی چه دَ نبیؐ خُطبه به دَ مونځ په نسبت کمه وه او مونځ به دَ هغې نه اوږد وُو ( نسائی )۔ دَ حضرت عمّارؓ بن یاسِر روایت دے چه نبیؐ اُوفرمائیل چه سړے مونځ اوږد کوی او خُطبه مختصره ورکوی نو دا دَ دے خبرې دلیل دے چه هغه دَ دین پوهه لری ( مُسندِ احمد ، مُسلم )۔ تقریباً هم دغسے روایت بزّار دَ حضرت عبداللهؓ بن مسعود نه نقل کړے۔ دَ دے خبرونه اندازه لږی چه نبیؐ څه رنګے خلقو ته دَ جُمعے آداب اُوښودل اَنْ تردے پورے چه دَ جمعے دَ مونځ هغه شان قایمُ شو چه دَ هغې مثال دَ دُنیا دَ یو قوم په اجتماعی عبادت کښے نهٔ موندے کیږی ۔

**۲۰ف** دَ دے فقرے نه پخپله معلومیږی چه دَ صحابو نه کومه غلطی شوی وه هغه کوم قِسم غلطی وه ۔ معاذالله ( یعنی خدائے دِ نهٔ کړی ) که چرے دَ دے وجه دَ ایمان کمی وے او په آخرت باندِ دُنیا غوره کنړل وے نو دَ الله تعالیٰ دَ غضب او دَ رټنے انداز به بل رنګے وے ۔ لیکن چونکه داسے څه خرابی خو هلته وه نهٔ ، بلکه څه چه شوی وُو دَ تربیت دَ کمی په وجه شوی وُو ، په دے وجه اوّل دَ پوهه کولو په انداز کښے دَ جُمعے آداب اُوښودلے شو ، بیا په هغه غلطئ باندِ په تربیتی انداز کښے خبره اُوشوه چه دَ جمعے دَ خُطبے په اوریدو او دَ جمعے دَ مونځ په کولو تاسو ته څه دَ الله سره مِلاویږی هغه دَ دے دُنیا دَ تجارت او دَ لوبو تماشو نه بهتر دی ۔

**۲۱ف** یعنی په دِے دُنیا کښے چه ظاهراً څه څیز دَ روزئ ذریعه جوړیږی دَ هغه ټولو نه بهترین روزی رسان الله تعالیٰ دے ۔ دا رنګے فقرے په قرآن مجید کښے په ډیرو ځایونو کښے راغلی دی ۔ چرته الله تعالیٰ ته احسن الخالقین ویئلے شوے دے ، چرته خیرالغافرین ، چرته خیرالحاکمین ، چرته خیرالرّاحمین ، چرته خیرالنّاصرین ، په دے ټولو ځایونو کښے مخلوق طرفته دَ رزق ، دَ تخلیق ، دَ مغفرت ، دَ رحم او دَ نصرت نسبت مجازی دے او الله تعالیٰ طرفته حقیقی دے ۔ مطلب دا دے چه کوم خلق تاسو ته په دُنیا کښے تنخوا یا مزدوری یا رزق درکونکی ښکاری ، یا چه کوم خلق په خپل صنعت او کاریګرئ سره څه جوړونکی ښکاری ، یا چه کوم خلق دَ چا ګناه معاف کوُنکی او په چا رحم کوُنکی او دَ چا سره امداد کوُنکی ښکاری نو الله تعالیٰ دَ هغوئ ټولو نه بهتره روزی رسان ، خالق ، رحم کوُنکے ، بخښونکے ، او مددګار دے ۔

# المُنٰفِقُوْنَ

**نوم** دَ اولنی آیت اِذَا جَآءَكَ الْمُنٰفِقُوْنَ نه اغستے شوے دے۔ دا دَ دے سورة نوم هم دے او دَ دے عنوان هم دے، ځکه چه په دیکښے دَ منافقانو په طرز عمل باندِ تبصره شوی ده۔

**دَ نازلیدو زمانه** لکه چه وړاندِ به موږ په تفصیل سره اُووایو، دا سورة یا خو په هغه وخت کښے نازل شوے دے کله چه رسول الله صلی الله علیه وسلم دَ بنی المُصْطَلِق دَ غزانه واپس په سفر را روان وُو، یا خو چه کله نبیؐ مدینے ته اُورسیدو نو دَ رسیدو نه فوراً روستو نازل شو۔ او موږ دَ سورة نُور په دیباچه کښے دا خبره په تحقیق سره بیان کړی ده چه دَ بنی المُصْطَلِق غزا په شعبان شپږ مه هجری کښے شوی وه۔ په دِے طریقه دَ دے دَ نازلیدو تاریخ ټیک ټیک متعریږی۔

**تاریخی حالات** دَ کومے خاصے واقعے په باره کښے چه دا سورة نازل شوے دَے دَ هغے دَ بیانولو نه مخکښے ضروری ده چه دَ مدینے دَ منافقانو په تاریخ باندِ یو نظر واچولے شی ځکه چه کومه واقعه په هغه وخت کښے پیښه شوی وه هغه صرف یوه اتفاقی واقعه نه وه، بلکه دَ هغے په شابانـدِ دَ واقعتویوه پوره سلسله وه چه آخـر دِے حد ته را اُورسیدله۔

مدینے ته دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم دَ راتلو نه مخکښے اَوس او خزرج قبیلے په خپل منځ کښے دَ خانه جنګئ نه سترې ستومانه شوے وُے او دَ یو سړی په مشرئ باندِ ئے تقریباً تقریباً اتفاق راغلے وُو او دَ دے خبرې تیاریانے ئے کولے چه هغه ته باقاعده دَ بادشاهئ تاج وړ په سر کړی، اَن تر دے پورې چه دَ دے غرض دَ پاره تاج هم جوړ کړے شوے وُو۔ دا سړے دَ خزرج قبیلے سردار عبدالله بن اُبیّ بن سلول وُو۔ محمد بن اسحاق وائی چه په خزرج قبیله کښے دَ هغه په بزرګئ باندِ خلق بالکل متفق شوی وُو، او اَوس او خزرج دَ دے نه مخکښے چرته دیو سړی په مشرئ باندِ متفق شوی نه وُو (ابن هشام، جلد ۲، ص ۲۳۴)۔

په دِے دوران کښے دَ اِسلام آواز مدینے ته اُورسیدو او دَ دواړو قبیلو با اَثره خلق مسلمانیدل شروع شو۔ دَ هجـرت نه مخکښے دَ بیعت عقبهٔ ثانیه په موقع باندِ چه کله رسول الله صلی الله علیه وسلم له مدینے ته دَ تللو دعوت ورکړے کیدو نو په هغه وخت کښے حضرت عباس بن عُبادہ بن نَضْلَہؓ انصاری دا دعوت صرف په دے وجه روستو کول غوښتل چه عبدالله بن اُبیّ هم په بیعت او دعوت کښے شریک شی، چه مدینه ټوله په اتفاق سره دَ اِسلام مرکز جوړ شی۔ لیکن کومه ډله چه دَ بیعت دَ پاره راغلی وه هغوئ دَ دے له هیڅ اهمیت ورنهٔ کړو او هغوئ ټولو چه دَ دواړو قبیلو نیځه اَویا کسان پکښے شامل وُو،

هره خطره په خپل سر واغستله او نبیؐ ته دَ دعوت ورکولو دَپاره تيار شو (ابن هشام، ج ۲، ص ۸۹) ـ
دَ دے واقعے تفصيلات مونږه دَ سورۃ انفال په ديباچه کښے بيان کړی دی ـ

دَ دے نه روستو چه کله نبیؐ مدينے ته اُورسيدو نو دَ انصارو په هر کور کښے اِسلام دومره خور شوے وُو چه عبدالله بن اُبَیّ بے وسه شو او دَ خپلے سردارۍ دَ بچ کولو دَپاره ورته دَ دے نه سِوا بله هيڅ لار په نظر رانغله چه پخپله هم مسلمان شی ـ نو دَ خپلو ګڼو ملګرو سره چه پکښے دَ دواړو قبيلو شيخان او سرداران شامل وُو، په اِسلام کښے داخل شو، حالانکه دَ ټولو زړونه د ننه سوزيدل، او خاص طور دَ عبدالله ابن اُبَیّ سره دَ دے خبرے سخت غم وُو چه رسول الله صلی الله عليه وسلم دَ هغه نه تياره بادشاهی واغستله ـ دَ ډيرو کلونو پورے به دَ هغه په ايمان کښے دَ منافقت رنګ په قِسما قِسم طريقو څرګنديدو او دَ خپلے بادشاهۍ په غم کښے به سخت غمژن وُو ـ يو طرفته دا حال وُو چه هره جُمعه به کله رسول الله صلی الله صلی الله عليه وسلم دَ خُطبے دَپاره کيناستو نو عبدالله بن اُبَیّ به را پاسيدو او ويل به ئے چه "اے خلقو، دا دَ الله رسول په تاسو کښے موجود دے، دَ دۀ په وجه الله تاسوله عزّت درکړے دے، نو تاسو دَ دۀ تائيد او مرسته اُوکړئ او څه چه دے فرمائی هغه په غور سره واورئ او دَ دۀ اطاعت اُوکړئ" (ابنِ هِشام، ج ۳، ص ۱۱۱) ـ بل طرفته حالت دا وُو چه وَرځ په وَرځ به دَ هغه منافقت ښه څرګنديدو او مخلصو مسلمانانو ته به دا خبره په واګه کيدله چه هغه او دَ هغه ملګرے دَ اسلام او دَ رسول الله صلی الله عليه وسلم او دَ مومنانو سره سخت بُغض لری ـ

يوه ورځ نبیؐ په لاره تيريدو چه ابن اُبَیّ دَ هغه سره بد تميزی اُوکړه ـ نبیؐ حضرت سَعد بن عُباده ته دَ دے شکايت اُوکړو نو هغه عرض اُوکړو، "اے دَ الله رسوله، دَ دے سړی سره نرمی اُوکړه ستا دَ راتلو نه مخکښے مونږه دَ دۀ دَپاره دَ بادشاهۍ تاج تيارولو، اوس دے په خپل خيال کښے دا وائی چه تا دَ دۀ نه بادشاهی اغستلی ده" (ابن هشام، ج ۲، ص ۲۳۷، ۲۳۸) ـ

دَ جنګ بدر نه روستو چه کله دَ يهوديانو بنی قَينُقاع قبيلے دَ عدے څرګنده خلاف ورزی اُوکړه او دَ هغے په وجه پرِ رسول الله صلی الله عليه وسلم حمله اُوکړه نو دا سړے دَ هغوئ په مرسته کښے وُدريدو او دَ نبیؐ زغره ئے اُونيوله او وِے ويئل چه "دا اوۀ سوه جنګيان سړی، چه دَ هر دُشمن په مقابله کښے ځما ملګرتيا کړی، آيا نن دا ټول ته په يوه ورځ ختمول غواړے؟ په خدائے مِ دِ قسم وی، څۀ تا ترهغے هرګز نۀ پريږدم ترڅو چه تۀ ځما دا ملګوی معاف نۀ کړے" (ابنِ هِشام، ج ۳، ص ۵۱-۵۲) ـ

دَ جنګ اُحُد په موقع دِے سړی څرګنده غدّاری اُوکړه او بالکل په نازک وخت کښے ئے خپل درے سوه ملګوی دَ ميدانِ جنګ نه دَ ځان سره واپس کړل ـ دا داسے نازک وخت وُو چه دَ قريشو درے زره لښکريانو په مدينه بانډِ حمله کړی وه، او رسول الله صلی الله عليه وسلم دَ هغوئ په مقابله کښے صرف دَ زرو کسانو سره دَ مخ نيوی دَپاره وتلے وُو ـ دَ دے زرو کسانو نه هم دِے منافق درے سوه

کسان واپس کړل او دَ نبیؐ سره صرف اوَه سوه کسان دَ دریو زرو دُشمنانو په مقابله کښے پاتے شول۔

دَ دے واقعے نه روستو دَ مدینے عامو مسلمانانو ته په یقین سره معلومه شوه چه دا سړے قطعی منافق دے او دَ هغهٔ هغه ملګری هم اوپیژندے شو کوم چه دَ هغه سره په منافقت کښے شریک وُو۔ دا وجه وه چه دَ جنګ اُحُد نه روستو کله اوله جمعه راغله او دا سړے دَ نبیؐ دَ خُطبے نه مخکښے دَ خپل معمول مطابق دَ تقریر کولو دَ پاره پاسیدونو خلقو هغه دَ لمنے نه را ښکواوورته ئے اُووئیل "کینه، دا خبری ستا سره نهٔ ښائی" په مدینه کښے دا اولنیٔ موقع وه چه په عام محفل کښے دَ دے سړی سپکاوے اُوشو۔ هغه په دِے باندِ غصّه شو او دَ خلقو په څټونو باندِ په ټوپونو ټوپونو دَ جوماتِ نه اُووتو۔ دَ جومات په دروازه کښے حینو انصارو هغه ته اُووئیل" دا څه کوے، واپس لاړ شه او دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم نه بخښنانه اُوغواړه" هغه په غصّه کښے جواب ورکړو" زهٔ دَ هغه نه هیڅ بخښنانه نهٔ غواړم" (ابن هشام ج ۳، ص ۱۱۱)۔

بیا په څلورمه هجری کښے دَ بنی النَّضِیر غزا پیښه شوه او په دِے غزا کښے دَ سړی او دَ دهٔ ملګرو دَ اِسلام خلاف دَ دُشمنانو مرسته نوره هم زیاته اُوکړه۔ یو طرفته رسول الله صلی الله علیه وسلم او دَ هغه صحابو دَ دے یهودی دُشمنانو سره دَ جنګ تیاری کوله، او بل طرفته دِے منافقانو پټ په پټه یهود یانو ته پیغام لیږلو چه ټینګ اُودریږی موږ ستاسو سره یو، که ستاسو سره جنګ اُوشو نو موږ به ستاسو مدد کوُو، او که تاسو اُوویستلے شوئ نو موږ به درسره اُوځو۔ دَ دے پټو خبرو راز الله تعالیٰ پخپله ښکاره کړو، لکه څنګه چه دَ سورۃ حشر په دویمه رکوع کښے تیر شوی دی۔

اګرچه هغه او دَ هغه ملګری په منافقت کښے دومره ښکاره وُو خو بیا هم رسول الله صلی الله علیه وسلم دَ هغوئ سره دَ چشم پوشیٔ معامله کوله۔ دَ دے وجه دا وه چه دَ منافقانو لویه ډله دَ هغه سره ملګری وه، دَ اَوس او دَ خزرج ډیر سرداران دَ هغه مرستیال وُو۔ په مدینه کښے کم از کم دریمه حصه خلق دَ هغه سره ملګری وُو، لکه څنګه چه دَ اُحُد په جنګ کښے معلومه شوی وه۔ په دا سے حالت کښے دا په هیڅ شان سره مناسب نهٔ وه چه دَ بهرنو دُشمنانو سره دَ دے دَننه دُشمنانو سره هم جنګ شروع کړے شوے وے۔ دا وجه وه چه نبیؐ ته دَ هغوئ دَ منافقت حال ښه معلوم وُو خو بیا ئے هم ورسره دَ څه مودے پورے دَ هغوئ دَ ظاهری ایمان په لحاظ سره نرمی کوله۔ بل طرفته دَ دے خلقو هم نهٔ دومره طاقت وُو، او نهٔ ئے دومره همّت وُو چه ښکاره کافران شوی وے او دَ مومنانو سره جنګیدلی وے، یا دَ دُشمن سره په ښکاره شامل شوی وَے او میدان ته راوتلی وَے۔ په ظاهره خو هغوئ یوه مضبوطه ډله جوړه کړی وه لیکن په هغوئ کښے هغه کمزوریانے موجود وے چه هغه دَ سورۃ حشر په آیتونو ۱۲-۱۴ کښے الله تعالیٰ صفا صفا ښودلی دی۔ دا وجه وه چه هغوئ خپل خیر په دِے کښے لیدو چه ځان ته مسلمانان اُووائی۔ هغوئ به جوماتونو ته راتلل، مونځونه به ئے کول۔ زکاۃ به ئے

هم ورکولو- په خُله به ئے دَایمان هغه غټې دعوے کولے چه مخلصو مسلمانانو ته دَ هغې دَکولو هیڅ ضرورت نه وُو- دَ منافقت دَ هر کار دَ پاره دَ هغوئ سره دَ دروغو زر بهانے موجود وے چه په هغې به ئے خاص طور خپلے قبیلے انصارو له دا دوکه ورکوله چه مونږه ستا سو ملګری یو- په دے اکو دُوکو به هغوئ خپل ځان دَ هغه نقصانونو نه هم بچ کولو کوم چه دَ انصارو دَ زُوړ ولئ نه دَ جُدا کیدلو په صورت کښے هغوئ ته رسید ے شو، او دَ فتنے دَ پورته کولو دَ هغه موقعو نه به ئے هم فائده اُوچتوله کوے چه په دِے زُوړ ولئ کښے دَ یوځائے اوسیدو په وجه هغوئ ته په لاس ورتلے شوے۔

دَ دے اسبابو په وجه عبدالله بن اُبَیّ دَ هغه منافقانو ملګرو ته دَ بنی المُصطَلِق غزا ته دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم سره دَ تللو موقع مِلاؤ شوه، او هغوئ په یو وخت کښے دوه داسے لوئے فتنے راپورته کړے چه دَ مسلمانانو اتحاد ئے بالکل دړے وړے کولے شو، لیکن دَ قرآن پاک په تعلیم او دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم په ملګرتیا سره چه مومنانو ته کوم بهترین تربیت مِلاؤ شوے وُو دَ هغې په وجه دَ دے دواړو فتنو خاتمه په وخت اُوکړے شوه او دا منافقان اُلټا پخپله رُسوا پاتے شو- په دے کښے یوه فتنه هغه وه چه ذکر ئے په سورة نُور کښے تیر شوے دے- او دویمه فتنه دا ده چه په دِے سورة کښے ئے ذکر شوے دے۔

دا واقعه بخاری، مُسلم، احمد، نسائی، ترمذی، بَیهقی، طَبَرانی، ابن مردویه، عبدالرزاق ابن جریر طَبَری، ابن سعد او محمد بن اسحاق په ګنړو سندونو سره نقل کړی ده- په څینو روایتونو کښے ئے نوم نهٔ دے[1] اخستے شوے او په څینو روایتونو کښے ورته دَ غزوهٔ تبوک واقعه وئیلے شوی ده- لیکن دَ مغازی او دَ علم تاریخ عالمان په دے خبره متفق دی چه دا واقعه دَ بنی المُصطَلِق دَ غزا په موقع شوی وه- چه ټول روایتونه راجمع کړے شی نو دَ واقعه څه دا رنګے جنوړیږی؛

بنی المُصطَلِق ته دَ شکست ورکولو نه روستو لا دَ اِسلام لښکر په هغه کلی کښے دیره وُو کوم چه په مُریسیع نومے کوهی باندِ آباد وُو چه یو ناڅاپه په اُوبو باندِ دَ دوو کسانو جګړه شوه- دَ یو نوم جَهجَاه بن مسعود غفاری وُو چه دَ حضرت عمرؓ نوکر وُو او دَ هغه دَ آس خدمت به ئے کولو- او دویم سِنان بن وَبرا الجُهَنی وُو چه قبیله ئے دَ خَزرَج دَ قبیلے حلیف وه- دَ خُلے دَ خبرو نه نوبت لاس اَچولو ته اُورسیدو او جَهجَاه سِنان له یوه لته ورکړه چه انصارو به دَ خپل پخوانی یمنی روایاتو په وجه سخت سپکاوے ګنړلو- سِنان انصارو ته دَ امداد دَ پاره آواز اُوکړو، او جَهجَاه مهاجرینو ته آواز اُوکړو- ابن اُبیّ چه دَ دے جګړے خبر واوریدو نو دَ اَوس او دَ خَزرَج خلق ئے راُوپارول او چغے ئے شروع کړے چه رامنډه کړئ دَ خپل حلیف امداد اُوکړئ- دَ بل اړخ نه څه مهاجرین هم را اُووتل- نزدے وه چه

---

[1] دَ دواړو صاحبانو نومونه په مختلفو روایتونو کښے مختلف بنودلے شوی دی- مونږه دا نومونه دَ ابن هِشام دَ روایت نه راغستلی دی۔

خبره زیاته شوی وه او هم په هغه ځائے کښے انصار او مهاجرین په خپل منځ کښے په جنګ شوی وے په کوم ځائے کښے چه اُوس اُوس هغوئ په شریکه دَ دشمن قبیلے سره جنګ کړے وُو او هغوئ له دَ شکست ورکولو نه روستولا دَ هغوئ په علاقه کښے ایسار وُو۔ لیکن دا شور چه رسول الله صلی الله علیه وسلم واوریدو نورا اُووتو او وے فرمائیل: ما بالُ دعوی الجاهلیة؟ ما لکم ولدعوة الجاهلیة؟ دعوها فانها مُنتنة۔" دا دَ جاهلیت آواز څنګه؟ تاسو او دا دَ جاهلیت آواز وَلے؟ دا پریږدئ، دا ډیر ګنده څیز دے[۱]"۔ بیا دَ دواړو طرفونو صالحان خلق راوړاندِ شو او معامله ئے رفع دفع کړه او سِنان، جهجاه معاف کړو او صلح ئے اُوکړه۔

دَ دے نه روستو چه دَ چا په زړه کښے منافقت پروت وُو هغه عبد الله بن اُبَی ته اُورسیدو او چه کله ډیر منافقان راجمع شو نو هغه ته ئے اُوویئیل چه " تر اوسه پورے خو ستاسره اُمیدونه تړلی وُو او تا مخ نیوے کولو، خو اُوس معلومیږی چه ته زمونږ په مقابله کښے دَ دے کنګالو[۲] مددګار جوړ شوے ئے"۔ ابن اُبَی دَ مخکښے نه خوټکیدو، په دے خبرو نور هم غصه شو او وے وئیل " دا ټول هرڅه ستاسو دَ خپل لاس کړی دی۔ تاسو دے خلقوله په خپل ملک کښے ځائے ورکړو، په دوی مو خپل مال تقسیم کړو، تر دے پورے چه اُوس غوړ زیږ شو نو

---

[۱] دا یوه ډیره اهمه خبره ده چه نبی په دے موقع اُوفرمائیله۔ دَ اِسلام دَ صحیح رُوح دَ پیژندلو دَ پاره په دے خبره ځان ټیک پوهه کول ضروری دی۔ دَ اسلام طریقه داده چه که چرے دوه سړی په جګړه شی او خلق دَ امداد دَ پاره راغواړی نو وائی به چه مسلمانانو، راشئ او ځما امداد اُوکړئ، یا به وائی چه اے خلقو ځما امداد له راشئ۔ لیکن که چرے هر یو دَ خپلے خپلے قبیلے، یارُور وَلئ، یا نَسل او رنګ، یا دَ خپلے علاقے په نوم خلقو ته آواز کوی نو دا دَ جاهلیت آواز دے، او په دے آواز چه څوک راځی هغوئ که دا نهٔ ګوری چه ظالم څوک دے او مظلوم څوک دے، او دَ حق او دَ انصاف مطابق دَ مظلوم سره دَ مرستے کولو په ځائے دَ خپلے خپلے ډلے په مرسته کښے دَ یو بل سره په جنګ شی نو دا کار دَ جاهلیت دے چه په دُنیا کښے تر فساد راپورته کیږی۔ دا وجه ده چه رسول الله صلی الله علیه وسلم دے ته ګنده او خراب څیز اُووئیلو او مسلمانانو ته ئے اُوفرمائیل چه ستاسو دَ جاهلیت دَ دے آواز سره څه واسطه ده؟ تاسو دَ اسلام په بُنیاد باندِ یو ملت جوړ شوی وَئ، اُوس دا دَ انصار او دَ مهاجر په نوم آواز تاسو ته څنګه کیږی، او په دے آواز باندِ تاسو چرته منډے وَهئ؟ علامه سُهَیلی په روض الانف کښے لیکلی دی چه دَ اسلام فقها وائی چه په جګړه کښے یا په اختلاف کښے دَ جاهلیت آواز اُوچتول یو فوجداری جرم دے۔ یو ډله وائی چه دَ هغه سزا پنځوس کوړے ده۔ دویمه ډله وائی چه لس کوړے ده، او دریمه ډله وائی چه هغه له سزا دَ حالاتو مناسب ورکول پکار دی۔ په څینو حالاتو کښے صرف رټنه کافی ده، په څینو نورو حالاتو کښے دَ جاهلیت آواز اُوچتونکے قیدول پکار دی، او که زیات شر جوړونکے وی نو دَ کوړو سزا ورکول پکار دی۔

[۲] کوم خلقو چه به اِسلام قبول کړو او مدینے ته به راتلل نو دَ مدینے منافقانو به هغوی ته "جلابیب" وئیلو۔ دَ دے لفظ لُغوی معنیٰ خو کمبل اغوستونکی یا غټے غټے جامے اغوستونکی ده، لیکن هغوئ چه په دا لفظ دَ کومو غریبو مهاجرو دَ سپکاوی دَ پاره استعمالولو دَ هغے اصلی مطلب په لفظ ګنګال سره زیات صحیح اداکیږی۔

زموږه دُشمنان شو- زموږه او دَ دے قریشی کنګالو( یا دَ محمدؐ دَ اصحابو ) دا مثال د ے لکه چه سړے خپل سپی له بنه خورا کونه ورکړی او بنه ئے څورب کړی او بیا خپل مالک اُوچیچی- تاسو دَ دوئ نه لاس اُونیسئ او بیا ګورئ چه دوئ هیڅ هم نهٔ دی- په خدا ئے م دِ قسم وی چه مدینے ته واپس اُورسو نو په موږ کښے چه څوک عزّت والا دے هغه به ذلیل له اُوباسی-

اتفاقاً په دغه مجلس کښے حضرت زید بن اَرقم هم موجود وُو چه په هغه وخت کښے ئے عمر ډیر کم وُو- هغه دا خبری واوریدے او خپل تره ته ئے اُوکړے ، او دَ هغه تره ، چه دَ انصارو په سردارانو کښے یو سردار وُو ، رسول الله صلی الله علیه وسلم ته ټوله واقعه بیان کړه- نبیؐ زید را اُوغوښتو اُوتپوس ئے تری اُوکړو هغه چه څه اوریدلی وُو هغه ئے ورته ټکی په ټکی اُوئیل[1]- نبیؐ اُوفرمائیل. شاید چه ته دَ ابن اُبَی نه خفه ئے ، کیدے شی چه ستا نه په اوریدو کښے څه غلطی شوی وی- کیدے شی چه ستا دا شک را غلے وی چه ابن اُبَی دا وائی- لیکن زید عرض اُوکړو چه نهٔ جناب ، په خدا ئے م دِ قسم وِی ما اُورید لی دی چه هغه دا خبری کولے- بیا نبیؐ ابن اُبیّ را اُوغوښتو او تپوس ئے تری اُوکړو خو هغه صفا اِنکار اُوکړو او قسمونه ئے اُوخوړل چه ما هډو دا خبری کړی نهٔ دی- دَ انصارو خلقو هم اُووئیل چه جنابؐ ، دَ هلک خبره ده- کیدے شی دَ دهٔ هسے شک را غلے وی- دا زموږه مشر او بزرګ سړے دے- دَ دهٔ په مقابله کښے دَ یو هلک په خبره اعتبار مهٔ کوه- دَ قبیلے مشرانو خلقو زید هم ملامته کړو او هغه غریب خفه د لګیږ په خپل ځائے کیناستو- لیکن نبیؐ زید هم پیژندو او عبدالله بن اُبَی هم ، هغه ته پته اُولږیده چه اصل خبره څه ده-

حضرت عمرؓ ته چه پته اُولږیده نو را غے او عرض ئے اُوکړو چه " ماله اجازت راکړه چه دَ دے مُنافق سَر والُوزوم- یا که ما ته اجازت کول مناسب نهٔ ګنړئ نو څپله دَ انصارو نه مُعاذ بن جَبل ، یا عبّاد بن بِشرؓ ، یا سعد بن مُعاذ ، یا سعد بن مَسلمه ته حکم اُوکړه[2] چه هغه قتل کړی " لیکن نبیؐ اُوفرمائیل ،" دا سے مَه کوه ، خلق به وائی چه محمدؐ خپل ملګری قتل کوی " دَ دے نه روستو نبیؐ فوراً دَ روانیدو حکم اُوکړو ، حالانکه دَ نبیؐ دَ معمول په لحاظ سره هغه دَ روانیدو وخت نهٔ وُو- په مخه دیرش ګنټے روان وُو ، تر دِ ے پورے چه خلق ستړی ستومانه شو- بیا نبیؐ په یو ځائے کښے دمه اُوکړه او ستړی خلق زمکے ته دَ رسیدو سره اُوده شو- نبیؐ دا سے ځکه اُوکړل چه دَ مُریسیع کوهی په خوا کښے څه شوی وُو چه دَ هغے اَثرات دَ خلقو دَ ذهنونو نه لرے شی- په لاره کښے دَ انصارو یو سردار حضرت اُسَید بن حُضَیر

---

[1] فقهاؤ دَ دے نه دا حکم راغستے دے چه دَ یو سړی بده خبره بل سړی ته رَسُول که دَ دینی ، یا اخلاقی یا ملی فائدے دَ پاره وی نو دِ ے ته چغلی نشی وئیلے- په شریعت کښے چه کومه چُغلی حرامه ده هغه هغه چغلی ده چه دَ فساد په غرض وی او دَ خلقو دَ جنګولو دَ پاره وی-

[2] په مختلفو روایتونو کښے دَ مختلفو انصاری بزرګانو نومونه راغلی دی چه دَ هغوی په حقله حضرت عمرؓ عرض کړے وُو چه ته ئے په دوئ کښے دَ یو تن نه دا خدمت واخله که چرے ځما نه په دِ ے خیال دا کار اغستل مناسب نهٔ ګنړے چه څهٔ مهاجریم ، ځما په لاس دَ هغه په قتل کیدو سره دَ فتنے راپورته کیدو امکان دے-

دَ نبی سره مِلاؤ شو او عرض ئې اوکړو " اے دَالله رسوله نن تا په دا سې وخت کښې د روانیدو حکم اُوکړو چه دَ سفر کولو دَپاره مناسب نهٔ وُو، او تا به هیڅکله په دا سې وخت کښې سفر نهٔ شروع کولو"؟ نبیؐ جواب ورکړو، " تا اَوریدلی نهٔ دی چه ستا سو هغه ملګری څه کلونګ وړَولی دی؟ هغه تپوس اُوکړو کوم ملګرے؟ نبیؐ اُوفرمائیل عبدالله ابن اُبَیّ - هغه تپوس اُوکړو چه هغه څه وئیلی دی؟ نبیؐ اوفرمائیل " مدینے ته دَرسیدو سره به عزّت والا ذلیله سړے بهَر اوباسی"۔ هغه عرض اُوکړو، " اے دَالله رسوله، په خدائے مِ دِ قسَم وی، عزّت والا خو ته ئې او ذلیله هغه دے، ته چه کله اُوغواړے هغه ایستلے شے"۔

زُوزُو دا خبره په ټولو انصارو کښې خوره شوه او په هغوئ کښې دَ ابن ابیّ خلاف سخته غصّه پیدا شوه - خلقو ابن ابیّ ته اُووئیل چه لاړ شه دَ رسول الله صلی الله علیه وسلّم نه معافی اُوغواړه - لیکن هغه په غصّه جواب ورکړو ورکړو " تا سو اُووئیل چه په هغه ایمان راوړه - ما ایمان راوړه - تا سو اُووئیل چه دَ خپل مال زکوٰة ورکړه - ما زکوٰة هم ورکړو - بس اُوس دا خبره پاتے ده چه څهٔ محمّد ته سجده اُوکړم"۔ په دِے خبرو سره انصار مومنان نور هم ناراضه شو او هغه دَ هر طرفه ملامته کړے شو - هر کله چه دا قافله مدینے ته ورننوتله نو دَ عبدالله بن اُبیّ ځوئے چه دَ هغه نوم هم عبدالله وُو، توره راُوښکله او دَ پلار مخے ته اُودریدو او ئے وئیل " تا وئیلی وُو چه مدینے ته واپس لاړ شو نو عزّت والا به ذلیله اُوباسی، اُوس به تا ته پته اُولګی چه عزّت والا ته ئې او که الله او دَ هغه رسول دے - په خدائے مِ دِ قسم وی ته مدینے ته ننوتے نهٔ شے تر څو چه رسول الله صلی الله علیه وسلم تا ته اجازت اُونهٔ کړی"۔ په دِے خبره ابن اُبیّ چغے کړے، " دَ خزرج خلقو، لږ اُوګورئ، ځما ځوئ ما دَ مدینے نه منع کوی"۔ خلقو دا خبره نبی ته اُورَسوله او هغه اُوفرمائیل، عبدالله ته اُووائی، خپل پلار کور ته پریږده"۔ عبدالله اُووئیل، "چه دَ هغه حکم دے نو اُوس مدینے ته ننوتے شے"۔ په هغه وخت کښې نبیؐ حضرت عمرؓ ته اُوفرمائیل، " وَلے عمره، اُوس ستا څه خیال دے؟ په کوم وخت کښې چه تا وئیلی وُو چه ماله دَ دهٔ دَ وژلو اجازت راکړه په هغه وخت کښې که تا دے قتل کړے وے

نودیرو خلقو زم به پرِ راغلے وُو۔ بن که څه دَدهٔ دَ قتل کولو حکم اُوکړم نو دے وژلے کیدے هم شی." حضرت عمرؓ عرض اُوکړو، "په خدائےِ مِ قسم وی چه اُوس ماته معلومه شوه چه دَ الله دَ رسول خبرهٔ ځما دَ خبرې نه زیاته حکمتی وه"۔

داوُو هغه حالات چه په هغے کښے دا سورة ، غالب یقین دا دے چه نبیؐ کله مدینے ته اُورسیدو نو پس دَ هغے نازل شو۔

---

له دَ دے نه دوه اهمے شرعی مسئلے څرګندیږی - یوه دا چه کوم عمل ابن اُبَیّ کولو، بل څوک که هغسے عمل په مسلمان مِلّت کښے دننه اُوکړی نو هغه دَ قتل مستحق دے - دویمه دا چه څوک قانوناً دَ قتل مُستحق شی نو دا لازم نهٔ ده چه هغه دِ ضرور قتل کړے شی- دَ داسے فیصلے نه مخکښے دا کتل پکار دی چه آیا دَ هغه دَ قتل نه به څه لویه فتنه خو جوړه نهٔ شی- دَ حالاتو نه چه سترګے پټے کړے شی او په پټوسترګو قانون استعمال کړے شی نو کله ناکله بالکل اُلټا اثر پیدا کوی او دَ کوم مقصد دَ پارهٔ چه قانون استعمالیږی دَ هغے مقصد نه خلاف بالکل اُلټا نتیجه را پیدا کوی - که چرے دَ یو منافق یا یو مفسد سړی شاته څه خاص سیاسی طاقت موجود وی او هغه له په سزا ورکولو سره دَ فتنے را اُوچتیدو خطره وی نو بنه دا ده چه په حکمت او تدبیر سره هغه اصلی سیاسی طاقت ختم کړے شی دَ کوم په زوُر چه هغه شرارت کوی- هم دا حکمت وُو چه نبیؐ عبدالله بن اُبَیّ له په هغه وخت کښے هم سزا ورنهٔ کړه په کوم وخت کښے چه هغه له په سزا ورکولو قادر وُو، بلکه دَ هغه سره به ئے برابر دَ نرمئ سلوک کولو، آن تردے پورے چه په دوه درے کاله کښے دَننه دَننه دَ منافقانو زور دَ همیشه دَ پارهٔ ختم شو۔

## سُوْرَةُ الْمُنٰفِقُوْنَ مَدَنِيَّةٌ

آیاتها ۱۱ رکوعاتها ۲

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

إِذَا جَآءَكَ الْمُنٰفِقُوْنَ قَالُوْا نَشْهَدُ إِنَّكَ لَرَسُوْلُ اللّٰهِ ۘ وَاللّٰهُ يَعْلَمُ إِنَّكَ لَرَسُوْلُهٗ ۗ وَاللّٰهُ يَشْهَدُ إِنَّ الْمُنٰفِقِيْنَ لَكٰذِبُوْنَ ﴿۱﴾ اِتَّخَذُوْٓا أَيْمَانَهُمْ جُنَّةً فَصَدُّوْا عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ۚ إِنَّهُمْ

اے نبی، کله چه دا منافقان تاله راشی نو وائی "مونږه گواهی کوُو چه ته بے شکه دَ الله رسول ئے" هَو، الله ته معلومه ده چه ته ضرور دَ الله رسول ئے، خو الله گواهی کوی چه دا منافقان بالکل دروغژن دی[۱] - دوئ دَ خپلو قسمونو نه ډال جوړ کړے دے[۲] او په دِ ے طریقه دوئ دَ الله دَ لارے نه پخپله هم منع شوی دی او بل هم منع کوی[۳]

[۱] یعنی کومه خبره چه هغوئ په خُله کوی هغه خو بخپل ځائے رښتینی ده، لیکن چونکه دَ هغوئ خپله عقیده هغه نهٔ ده کومه چه هغوئ په خُله وائی، په دِ ے وجه هغوی په دِے خپله وینا کښے دروغژن دی چه هغوئ ستا دَ رسول کیدو گواهی کوی - دلته په دِے خبره ځان بنه پوهه کول پکار دی چه په شهادت کښے دوه څیزونه وی - یو هغه اصل خبره چه دَ کومے گواهی اُوشی - دویم دَ هغے خبری په حقله گواهی کوُنکی خپله عقیده - اُوس که چرے خبره په خپل ځائے هم رښتینی وی او دَ گواهی کونکی عقیده هم هغه وی کومه چه هغه په خُله بیانوی، نو هغه به په هر لحاظ سره رښتینے وی - او که چرے خبره په خپل ځائے دروغ وی، لیکن گواهی کونکے دَ هغے دَ حق والی عقیده لری، نو مونږ به هغه ته په یو لحاظ سره رښتینے وایو، ځکه چه هغه په خپله عقیده بیانولو کښے رښتینے دے، او په بل لحاظ سره به ورته دروغژن وایو، ځکه چه دَ کومے خبرے هغه گواهی ورکوی هغه پخپله غلطه ده - دَ دے برعکس که چرے خبره په خپل ځائے رښتیا وی لیکن دَ گواهی ورکونکی خپله عقیده دَ هغے خلاف وی، نو مونږ به په دِ ے لحاظ سره هغه ته رښتینے وایو چه هغه دَ صحیح خبرے گواهی کوی، او په دِ ے لحاظ سره به هغه ته دروغژن وایو چه دَ هغه خپله عقیده هغه نهٔ ده کومه چه هغه په خُله بیانوی - دَ مثال په طور یو مومن که چرے اِسلام ته حق دین اُووائی نو هغه به په هر لحاظ سره رښتینے دے - لیکن که چرے یو یهودی چه په خپل یهودیت باندِ ټینګ ولاړ وی هغه که اِسلام ته حق دین اُووائی نو خبره به دَ هغه رښتینی وی خو گواهی به ئے دروغژنه وی، ځکه چه هغه دَ خپلے عقیدے خلاف گواهی کوی - او که چرے هغه اِسلام دین ته باطل اُووائی، نو مونږ به وایو چه خبره دَ هغه دروغژنه ده، لیکن هغه دَ خپلے عقیدے مطابق رښتینی گواهی کوی -

سَآءَ مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿۲﴾ ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ اٰمَنُوْا ثُمَّ كَفَرُوْا فَطُبِعَ عَلٰى قُلُوْبِهِمْ فَهُمْ لَا يَفْقَهُوْنَ ﴿۳﴾ وَاِذَا رَاَيْتَهُمْ تُعْجِبُكَ اَجْسَامُهُمْ ؕ وَاِنْ يَّقُوْلُوْا تَسْمَعْ لِقَوْلِهِمْ ؕ كَاَنَّهُمْ خُشُبٌ مُّسَنَّدَةٌ ؕ

داخلق ډیر خراب کارونه کوی۔ دا ټول هرڅه وجه داده چه دې خلقو ایمان راوړو بیائے کفر اُوکړو نوځکه ئے په زړونو مُهر اُووهلے شو، اُوس دوئ په هیڅ نهٔ پوهیږی۔ چه ورته ګورې نو جُثې به ئے درته ډیرې شاندارے ښکاره شی۔ چه خبرې کوی نو وائے به چه خبرو ته ئے غوږ وږ ے۔ خو په اصل کښې دوئ لکه د لرګی کندے دی چه دیوال ته وُدرَوَلے شوی وی۔

۲ه یعنی هغوئ چه د خپل مُسلمانیدو د باور راوستلو دپاره کوم قسمونه خوړی، د هغے نه هغوئ د ډال کار اخلی چه د مسلمانانو د غصے نه بچ شی او مسلمانان د هغوئ سره هغه سلوک اُونهٔ کړے شی کوم چه د ځرګندو دُشمنانو سره کیږی۔

د دے قسمونو نه مُراد هغه قسمونه هم کیدے شی کوم چه به هغوئ عام طور د خپل ایمان د یقین راوستلو دپاره خوړل، او هغه قسمونه هم کیدے شی کوم چه به هغوئ په هغه وخت کښې خوړل کله چه به د منافقت په کارکښې اُونیولے شو چه مسلمانانو له دا باور ورکړی چه هغه کار هغوئ د منافقت په وجه نهٔ وُوکړے، او هغه قسمونه هم کیدے شی کوم چه عبد الله بن اُبَیّ د حضرت زید بن ارقم د خبر د دروغژن کولو دپاره خوړلی وُو۔ د دے ټولو قیاسونو سره یو قیاس دا هم دے چه الله تعالیٰ به د هغوئ دا وَینا قسم ګرزولے وی چه "مونږ ګواهی کوُو چه ته د الله رسول ئے"۔ د دے آخری قیاس په وجه د فقهاؤ په منځ کښې دا بحث پیدا شوے دے چه که یو سړے دا الفاظ چه "څهٔ ګواهی کوم" اُووائی او یو خبره اُوکړی نو آیا هغه به قسم یا حلف (Oath) ګنړلے شی او که نهٔ۔ امام ابوحنیفهؒ او د هغه ملګری ( د امام زُفر نه سوا) او امام سُفیان ثوری او امام اَوزاعی دِ دے ته حلف ( په شرعی ژبه کښې یمین ( یعنی قسم) وائی۔ امام زُفَرؒ وائی چه دا حلف نهٔ دے۔ د امام مالک نه دوه قولونه روایت نقل کړے شوی دی۔ یو دا چه دا مطلقاً حلف دے، او دویم قول دا دے چه که چرے د هغه د دے الفاظو چه "څهٔ ګواهی کوم" وئیلو په وخت کښې نیت داوُو چه "په خدائے د قسم وی څهٔ ګواهی کوم"، یا "خدائے ګواه کوم چه څهٔ شهادت کوم" نو بیا به دا حلفیه بیان وی کنهٔ نو نهٔ به وی۔ امام شافعیؒ وائی چه که چرے ویُونکے دا الفاظ هم اُووائی چه "خدائے م ګواه دے چه شهادت کوم" خو بیا به هم د هغه دا بیان حلفیه بیان نهٔ وی، بغیر د دے نه چه هغه دا الفاظ د قسم په نیت وئیلی وی ( احکام القرآن للجصّاص – احکام القرآن لابن العربی)۔

۳ه صَدّ لفظ په عربئ ژبه کښې فعل لازم هم دے او فعل متعدی هم دے۔ په دے وجه د صَدُّوا

عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ معنیٰ دا هم ده چه هغوئ دَ الله دَ لارے نه پخپله منع کیږی، او دا هم ده چه هغوی دَ الله دَ لارے نه نُور خلق منع کوی، په دے وجه مونږه په ترجمه کښے دواړه معنے لیکلی دی۔ دَ اولے معنے په لحاظ سره به مطلب داوی چه هغوئ دَ دے خپلو قسمونو په ذریعه په مسلمانانو کښے دَ ننه دَ خپل ځائے محفوظ کولو نه روستو دَ خپل ځان دَ پاره دَ ایمانی کارونو دَ نه کولو او دَ خدا ئے او دَ رسول دَ اطاعت نه دَ وړ ے کولو آسانتیا گانے پیدا کوی۔ دَ دویمے معنے په لحاظ سره به مطلب داوی چه هغوئ دَ دے خپلو دروغو قسمونو په وجه ښکار کوی، دَ مسلمانئ په جامه کښے په مسلمانانو کښے دننه فساد پیدا کوی، دَ مسلمانانو راز ونه معلوموی او دُشمنانو ته ئے رسوی، دَ اِسلام نه غیر مسلمه خلق بدگمانه کوی، او دَ ساده مسلمانانو په زړونو کښے شک شبهے او وسوسے اچوی، او دا ټول کارونه صرف هغه منافق کولے شی چه هغه دَ مُسلمانئ په جامه کښے پټ وی، ښکاره دَ اِسلام دُشمن ئے هیڅکله نشی کولے۔

ﮯه په دے آیت کښے دایمان راوړلونه مُراد دَ ایمان دَ اقرار کولو سره په مسلمانانو کښے شامليدل دی۔ او دَ کُفر کولو نه مُراد دَ زړه نه ایمان نهٔ راوړل دی او په هغه کفر باندِ ټینګ اُوسیدل دی په کوم باندِ چه هغه دَ ایمان دَ ظاهری اقرار نه مخکښے ټینګ ولاړ وُو۔ دَ کلام مقصد دا دے چه هر کله هغوئ سره دَ پوهے نهٔ صفا صفا ایمان قبول کړ و او نهٔ ئے صفا دَ کُفر لار اختیار کړه بلکه دَ منافقت لار ئے اختیار کړه نو دَ الله تعالیٰ دَ طرفنه دَ هغوئ په زړونو باندِ مُهر اُووهلے شو او هغوئ له دا توفیق ورنهٔ کړے شو چه دَ یو ربښتینی او شریف انسان پشان صفا لار اختیار کړی۔ اوس دَ هغوئ پوهه ختمه شوی ده۔ دَ هغوئ اخلاق تباه شوی دی۔ په دے لار کښے دَ هغوئ هډو دا فکر نهٔ راځی چه دا شپه وَرځ دروغ وئیل او دا هر وخت اکے دَ وکے کول او دا همیشه په قول او فعل کښے تضاد کول، څنګه ذلیله حالت دے چه دوئ پکښے خپل ځان اخته کړے دے۔

دا آیت په هغه آیتونو کښے یو آیت دے چه په هغے کښے دَ الله دَ طرفنه دَ چا په زړه باندِ دَ مُهر لګولو مطلب بالکل په واضحه طریقه بیان کړے شوے دے۔ دَ دے منافقانو دا حالت په دے وجه سره نهٔ دے چه الله دَ هغوئ په زړونو باندِ مُهر لګولے وُو نو په دے وجه ایمان دَ هغوئ زړونو ته هډو ورکوز نهٔ شو او هغوئ مجبوراً منافقان پاتے شو۔ بلکه الله تعالیٰ دَ هغوئ په زړونو باندِ دا مُهر په هغه وخت کښے اُولګوُو کله چه هغوئ دَ ایمان دَ اِظهار نه روستو په کفر باندِ دَ ټینګ اوسیدو فیصله اُوکړه۔ پس دَ هغے دَ هغوئ نه دَ خالص ایمان او دَ نیک عمل توفیق واغستلے شو او دَ هغه منافقت او بد اخلاقئ توفیق ورکړے شو کوم چه هغوی پخپله دَ خپل ځان دَ پاره خوښ کړے وُو۔

ﮯه حضرت عبدالله بن عباس رض وائی چه عبدالله بن اُبَی ډیر ټول ناک، غټ کټ، ښکلے او چالاک سړے وُو۔ هم دا رنګے ښائست دَ هغه دَ ډیرو ملګرو وُو۔ دا ټول دَ مدینے سرداران خلق وُو۔ کله چه به دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم مجلس له راغلل نو دیوالونو ته به ډډه وهلے اُووهلے او خوندناکے خبری به ئے کولے۔ دَ هغوئ جُثو ته چه به چا اُوکتل او دَ هغوئ خبری به ئے واوریدے نو داګمان قدر له به ئے نهٔ شو کولے چه دَ مدینے دا عزتمند خلق به دَ خپل کردار په لحاظ سره دومره ذلیله وی۔

ﮯه یعنی دے کومو خلقو چه دیوالونو ته ډډے وهلی وی او ناست وی، دا انسانان نهٔ دی بلکه دَ لرګی کنده دی۔

يَحْسَبُونَ كُلَّ صَيْحَةٍ عَلَيْهِمْ ۚ هُمُ الْعَدُوُّ فَاحْذَرْهُمْ ۚ قَاتَلَهُمُ اللَّهُ ۖ أَنَّىٰ يُؤْفَكُونَ ④ وَإِذَا قِيلَ لَهُمْ تَعَالَوْا يَسْتَغْفِرْ لَكُمْ رَسُولُ اللَّهِ لَوَّوْا رُءُوسَهُمْ وَرَأَيْتَهُمْ يَصُدُّونَ وَهُمْ مُسْتَكْبِرُونَ ⑤

په زوره هر آواز د خپل ځان خلاف گڼړي[7] - دوئ پاخه دُشمنان دي[8]، دَ دوئ نه ځان ساته[9]، دَ الله غضب دې په دوئ باندې[10]، دوئ کوم خوا واپس بوتللے کیږي[11]-
او کله چه دوئ ته اُوئیلے شي چه راشئ چه دَ الله رسول ستاسو دَ پاره دَ بخښنانے دُعا اُوکړي، نو سرونوله جټکه ورکوي او ته وینې چه هغوئ ډیر په غرور سره دَ راتلو نه منع کیږي[12]

دوئ له په لرگو پورے مثال ځکه ورکړے شوے دے چه دوئ دَ اخلاقو نه بالکل خالي دي - بیا دَ دوئ مثال دَ هغه لرگو پشان دے چه هغه دیوال ته ودرولے شوي وي یعني دوئ بالکل ناکاره دي - ځکه چه لرگي هله فائده ورکوي کله چه هغه په چت کښې، یا په دروازه کښې یا دَ استعمال په یو ځاے کښې اُولگي - دیوال ته چه کوم لرگے ودرولے شوے وي هغه هیڅ فائده نهٔ ورکوي -

۷ په دې مختصره فقره کښې دَ هغوئ دَ زړونو پټ حالت ښکاره کړے شوے دے - هغوئ ته په خپلو زړونو کښې ښه معلومه وه چه هغوئ دَ ایمان په ظاهري پرده کښې دَ منافقت کومه لوبه کوي، په دې وجه به دَ هغوئ سره هروخت دا تلوسه وه چه اُوس دا دے زمونږ دَ غلطو کارونو راز ښکاره کیږي یا دَ مومنانو صبر تمامیږي او په مونږ حمله کوي - په کلي کښې چه به هر خوا ته په زوره آواز اُوشو یا به چرته څه شور اُوچت شو نو په دوئ به یرّه راغله او دا به ئې خیال وُو چه گیني زمونږ دَ بد بختۍ وخت راغے -

۸ یعني دَ ښکاره دُشمنانو په نسبت دا پټ دُشمنان زیات خطرناک دي -

۹ یعني دَ دوئ په ظاهره مه دوکه کیږه - هروخت دا خیال ساته چه دوئ هروخته دوکه ورکولے شي -

۱۰ دا بد دُعائي نهٔ ده بلکه دَ الله دَ طرفنه دَ هغوئ په باره کښې دَ دے فیصلے اعلان دے چه هغوئ دَ غضب مستحق شوي دي، په هغوئ باندې به دَ الله غضب خامخا راځي - دا هم کیدے شي چه دا الفاظ الله تعالیٰ په لُغوي معنیٰ کښې نهٔ وي استعمال کړي بلکه دَ عربۍ ژبے مطابق ئې دَ لعنت دَ پاره استعمال کړي وي لکه څنگه چه مونږه دَ چا بد دي نهٔ بیا نوو نو وا یو تباهي ده دَ هغه څومره خراب سړے دے - دَ لفظ "تباه" نه دَ هغه خرابوالے ظاهرول مقصد وي نهٔ چه دَ هغه په حق کښې بد دُعائي کول وي -

سَوَآءٌ عَلَيۡهِمۡ اَسۡتَغۡفَرۡتَ لَهُمۡ اَمۡ لَمۡ تَسۡتَغۡفِرۡ لَهُمۡ ؕ لَنۡ يَّغۡفِرَ اللّٰهُ لَهُمۡ ؕ اِنَّ اللّٰهَ لَا يَهۡدِى الۡقَوۡمَ الۡفٰسِقِيۡنَ ﴿۶﴾

اے نبی! که دَ دوئ دَ پاره دَ بخښنا دُعا اُوکړے اوکه اُونهٔ کړے، دَ دوئ په حق کښې يوشان ده ، الله هغوئ هرګزنهٔ معاف کوی[۱]، الله فاسقانو خلقوته هدايت هرګزنهٔ کوی[۲] ۔

[۱] دا اُونهٔ وئيلے شو چه څوک هغوئ دَ ايمان نه منافقت ته اُلټا بوځی ۔ دَدے دَ نهٔ ظاهرولو نه بغېر دا مطلب را اُوزی چه دَ هغوئ دَ دے نسکورېدلو څه يوه وجه نهٔ ده بلکه ډيرے وجے په دِے کښے کارکوی ۔ شيطان دے ـ بدان دُوستان دی ـ دَ هغوئ دَ خپل نفس غرضونه دی ـ دَ چا خپله ښځه دَ دے سبب دے، دَ چا خپل بچی دَ دے سبب دے ـ دَ چا دَ خپلے رورولئ شريران خلق دَ دے سبب دے ـ اوڅوک دَ خپل حسد او بُغض او تکبّر په وجه په دِے لار روان دی ـ

[۲] يعنی صرف په دِے اکتفا نهٔ کوی چه رسول له دَ بخښنا دَ پاره نهٔ ځی، بلکه دَ هغه نه دَ بخښنا غوښتلو خبره چه واوری نو ډير په غرور سره خپلو سرونو له جټکے ورکوی او رسول له تلل او دَ هغه نه معافی غوښتل خپله بے عزّتی ګنړی او دَ خپل ځائے نه نهٔ خوزی ـ دا دَ هغوئ دَ غير ايمان ښکاره نښه ده ـ

[۳] دا خبره په سورة توبه کښے (چه دَ سورة منافقون نه دَ دے کاله روستو نازل شوے دے) نوره هم زياته په تاکيد سره فرمائيلے شوی ده ـ په هغے کښے الله تعالیٰ رسول الله صلی الله عليه وسلم ته دَ منافقانو په حقله اُوفرمائيل چه "که تهٔ دَ هغوئ دَ پاره دَ بخښنا دُعا غواړے اوکه نهٔ غواړے، که تهٔ اَويا ځله هم د هغوئ دَ پاره دَ بخښنا دُعا اُوغواړے نو الله هغه هرګز نهٔ معاف کوی، دا په دِے وجه چه هغوئ دَ الله او دَ هغه دَ رسول سره کفر کړے دے، او الله فاسقانو خلقو ته هدايت نهٔ کوی (التوبه آيت ۸۰) ـ وړاندِ بيا فرمائی که په هغوی کښے څوک مړشی نو دَ هغه جنازه مهٔ کوه او مهٔ دَ هغه په قبر ودريږه ـ دِے خلقو دَ الله او دَ هغه دَ رسول سره کفر کړے دے او دوئ دَ فسق په حالت کښے مړه شوی دی" (التوبه آيت ۸۴) ـ

[۴] په دِے آيت کښے دوه خبری بيان کړے شوی دی ـ يو دا چه دَ بخښنا دُعا صرف دَ هغه خلقو په حق کښے فائده لری چا چه هدايت موندلے وی ـ کوم سړی چه دَ هدايت نه مخ اړولے وی او دَ هدايت په ځائے ئے دَ فسق او دَ نافرمانئ لار اختيار کړی وی، دَ هغه دَ پاره يو عام سړے خو پريږده، بغېر دَ الله رسول هم که دَ بخښنا دُعا اُوغواړی نو هغه معاف کيدے نشی ـ دويم دا چه کوم خلق دَ الله دَ هدايت طلبګار نهٔ وی هغوئ ته هدايت کول دَ الله طريقه نهٔ ده ـ چه يو بنده بغېر دَ الله تعالیٰ دَ هدايت نه مخ اړولے وی، بلکه هغه چه هدايت ته را غوښتلے کيږی نو په ډير غرور سره سر له جټکه ورکړی او د هغه دعوت نه انکار اُوکړی، نو دَ الله څه ضرورت دے چه په هغه پسے خپل هدايت ګرزوی او دَ هغه خوشامندګری کوی چه نيغے لارے ته راشی ـ

هُمُ الَّذِيْنَ يَقُوْلُوْنَ لَا تُنْفِقُوْا عَلٰى مَنْ عِنْدَ رَسُوْلِ اللّٰهِ حَتّٰى يَنْفَضُّوْا ۗ وَلِلّٰهِ خَزَآئِنُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَلٰكِنَّ الْمُنٰفِقِيْنَ لَا يَفْقَهُوْنَ ۝۷ يَقُوْلُوْنَ لَئِنْ رَّجَعْنَآ اِلَى الْمَدِيْنَةِ لَيُخْرِجَنَّ الْاَعَزُّ مِنْهَا الْاَذَلَّ ۗ وَلِلّٰهِ الْعِزَّةُ وَلِرَسُوْلِهٖ وَلِلْمُؤْمِنِيْنَ وَلٰكِنَّ الْمُنٰفِقِيْنَ لَا يَعْلَمُوْنَ ۝۸ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تُلْهِكُمْ اَمْوَالُكُمْ وَلَآ اَوْلَادُكُمْ عَنْ ذِكْرِ اللّٰهِ ۚ



دا هم هغه خلق دی چه وائی چه دَرسول په ملګرو باندِ خرچ بندکړئ چه (دوله ئے) خوره شی - حال داچه دَ زمکے اودَ آسمانونودَ خزانو مالک الله دے، خو دا منافقان نهٔ پوهیږی - دوی وائی چه موږ ه مدینے ته واپس اورسونو خوک چه عزّت والا دے هغه به ذلیله کس دَ هغه ځائے نه بهراوُباسی[۱۵] - حالانکه عزّت خودَ الله اودَ هغه دَرسول اودَ مومنانودَ پاره دے[۱۶]، لیکن دا منافقان پوهیږی نهٔ - ع

اے مومنانو، ستاسو مالونه اوستاسو اولاد دِ تاسو دَ الله دَ یاد نه غافله نهٔ کړی[۱۷]-[۱۸]

[۱۵] حضرت زید بن اَرقم وائی چه کله ما دَ عبدالله بن اُبیّ دا وینا رسول الله صلی الله علیه وسلم ته اُورسوله او هغه را غے او صفا انکار ئے اُوکړو او په دِے باندِ ئے قسم هم اُوخوړو، نو دَ انصارو مشرانو کسانو او پخپله ځما خپل تره هم په ما ملامته کړم، تر دِے پورے چه ځما دا ګمان راغے چه نبیؐ ته هم څه دروغژن او عبدالله بن اُبی رښتینے ښکاره شوے دے - په دِے دومره خفه شوم چه په ټول عمر کښے چرته دا سے خفه شوے نهٔ ووم او خفه دلګیر په خپل ځائے کیناستم - بیا چه کله دا آیتونه نازل شونو رسول الله صلی الله علیه وسلم څه راأوغوښتم، په خندا خندا ئے ځما غوږ را اُونیوا او وے فرمایل چه دَ هلک غوږ رښتینے وُو، الله پخپله دَ دِے تصدیق اُوکړو (ابنِ جریر- په ترمذی کښے هم دَ غسے روایت موجود دے) -

[۱۶] یعنی عزّت دَ الله دَ ذات دَ پاره خاص دے، او دَ رسول دَ پاره دَ رسالت په وجه اودَ مومنانو دَ پاره دَ ایمان په وجه - باقی شو کافران، فاسقان او منافقان خلق، نو په حقیقی عزّت کښے دَ دوی هیڅ حصه نشته -

[۱۷] اُوس عام مسلمانانو ته نصیحت کیږی خواه که هغوی رښتینی مومنان دی او که تش دَ خُلے اقرار کوونکی دی - دَ دے نه مخکښے څو څو ځله موږ ه دا خبره بیان کړی ده چه په قرآن مجید کښے

وَمَنْ يَّفْعَلْ ذٰلِكَ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْخٰسِرُوْنَ ﴿۹﴾ وَاَنْفِقُوْا مِنْ مَّا رَزَقْنٰكُمْ مِّنْ قَبْلِ اَنْ يَّاْتِيَ اَحَدَكُمُ الْمَوْتُ فَيَقُوْلَ رَبِّ لَوْلَآ اَخَّرْتَنِيْٓ اِلٰٓى اَجَلٍ قَرِيْبٍ فَاَصَّدَّقَ وَاَكُنْ مِّنَ الصّٰلِحِيْنَ ﴿۱۰﴾ وَلَنْ يُّؤَخِّرَ اللّٰهُ نَفْسًا اِذَا جَآءَ اَجَلُهَا وَاللّٰهُ خَبِيْرٌۢ بِمَا تَعْمَلُوْنَ ﴿۱۱﴾

او څوک چه دا سې اُوکړی نو هم هغوی په خساره کښې پاتې کيدونکی خلق دی - کوم رزق چه مونږ تاسو له درکړے دے دَ هغې نه خرچ کړئ مخکښې دَدے نه چه په تاسو کښې چا ته دَ مرګ وخت راشی او بيا په هغه وخت کښې اُووائی چه "اے خُدايه، ما ته دِ يو څو وُړه مُهلت نور وَلے رانکړو چه ما صدقه ورکړے وے او په نيکانو خلقو کښې شامل شوے وے"۔ حالانکه کله چه دَ چا دَ عمل دَ پوره کيدو نيټه راشی نو الله هغه له هرګز نور مُهلت نهٔ ورکوی، او څه چه تاسو کوئ، الله دَ هغې نه خبر دے۔

اَلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا کله خو ريښتينی مومنانو ته وئيلے شوے دے او کله منافقانو ته وئيلے شوے دے ځکه چه هغوئ دَ ايمان اقرار په خُله باندِ کوی، او کله تِش عام مسلمانان مُراد وی - دَ کلام دَ موقع او دَ محل نه دا معلوميږی چه په کوم ځائے کښې کومه ډله مُراد ده۔

۸ له دَ مال او دَ اولاد ذکر خاص طور په دِے وجه اُوشو چه انسان اکثر دَ دے دواړو دَ خاطره دَ ايمانداریٔ دَ کارونو نه مخ اړوی او په منافقت يا په فِسق يا په نا فرمانیٔ يا ضُعفِ ايمان کښې اخته کيږی، کنئ نو په حقيقت کښې خو دَ دے نه مُراد دَ دُنيا هر هغه څيز دے چه هغه انسان دَ ځان سره دومره مشغوله کړی چه هغه دَ خدائے دَ ياد نه غافله شی - دا دَ خدائے دَ ياد نه غافله کيدل په اصل کښې دَ ټولو ګناهونو جرړه ده - که چرے انسان ته دا ياد پاتے شو چه هغه آزاد نهٔ دے، بلکه دَ يو خدائے بنده دے، او هغه خدائے دَ هغه دَ ټولو عملونو نه خبر دے، او يو ورځ به دَ هغه مخے ته وُدريږی او دَ خپلو ټولو عملونو جواب به ورکوی، نو هغه به هيڅکله دَ نيغې لارے نه بے لارے شوے نهٔ وُو او بد عملی به ئے هډو اختيار کړی نهٔ وه، او که دَ انسانی کمزوریٔ په وجه ئے کله نا کله څه هم خويږدلے نو دَ فکر دَ راتلو سره به فوراً صحيح کيدلے۔

# التَّغَابُن

**نوم** دَ دے سورة نوم دَ آیت نمبر۹ دَ فقرے ذٰلِكَ يَوْمُ التَّغَابُنِ نه اخستلے شوے دے۔ یعنی دا هغه سورة دے چه پکښے تَغَابُن ټکے راغلے دے۔

**دَ نازلیدو زمانه** مُقاتل او کلبی وائی چه دَ دے څه حصه مکی ده او څه مدنی ده۔ حضرت عبدالله بن عباس او عطاء بن یَسار وائی چه دَ اوّل نه دَ آیت ۱۳ پورے مکی دے او د آیت ۱۴ نه دَ سورة دَ آخره پورے مدنی دے۔ لیکن اکثر مفسّرین ټول سورت ته مدنی سورة وائی۔ اگرچه په دے کښے څه داسے اِشاره نهٔ مونده کیږی چه دَ هغے نه دَ دے سورة دَ نازلیدو زمانه معلومه کړے شی، لیکن دَ کلام په مضمون باندِ دَ غور کولو نه دا اندازه لږی چه غالباً دا به دَ مدینے په اَولنی دَور کښے نازل شوے وی۔ دا وجه ده چه په دِ ے کښے څه رنګ دَ مکی سورتونو پشان دے او څه دَ مدنی سورتونو پشان۔

**موضوع او مضمون** دَ دے سورة موضوع دَ ایمان او دَ اطاعت کولو دعوت او دَ ښو اخلاقو تعلیم دے۔ دَ کلام ترتیب دا دے چه په اولنو څلورو آیتونو کښے خطاب ټولو انسانانو ته شوے دے، بیا دَ آیت ۵ نه دَ آیت ۱۰ پورے هغه خلقو ته خطاب شوے دے څوک چه دَ قرآن دعوت نهٔ منی، او بیا دَ یوولسم آیت نه دَ آخره پورے هغه خلقو ته خطاب دے څوک چه دا دعوت منی۔

ټولو انسانانو ته خطاب په یو څو مختصرو فقرو کښے شوے دے او هغوئ ته څلور بُنیادی حقیقتونه ښودلے شوی دی:

اوّل دا چه په کوم کائنات کښے تاسو وَسئ، دا بے خدایه کائنات نهٔ دے بلکه دَ دے خالق او مالک او بادشاه یو داسے قادرِ مطلق خدائے دے چه دَ هغه په حقله دَ دے کائناتو هر څیز دا ګواهی کوی چه هغه کامل دَ او بے عیبه دے۔

دویم دا چه دا کائنات بے مقصده او بے حکمته نهٔ دے بلکه دَ دے خالق دا سراسر په حقه پیدا کړے دے۔ دلته په دِ ے دوکه کښے مهٔ پریوزئ چه دا ګنی یوه فضول تماشا ده چه عبث شروع شوی ده او هم د غسے عبث به ختمه شی۔

دریم دا چه تاسو دَ کوم ښکلی شکل سره الله پیدا کړی یئ او بیائے درله دَ کُفر کولو او دَ ایمان راوړلو اختیار درکړے دے، نو دا څه بے مطلبه کار نهٔ دے چه که تاسو کُفر اختیاروئ او که ایمان، خو دَ دواړو به هیڅ نتیجه نهٔ راوزی۔ په اصل کښے خدائے دا ګوری چه تاسو دا خپل اختیار په کومه طریقه استعمالوئ۔

ځلورم داچه تاسو غیرذمه وار خلق نه یئ، ستاسو نه به ستاسو د عملونو تپوس کیږی - آخرنه آخر به تاسو خپل خالق ته واپس ځئ او هغه ذات ته به مخامخ کیږئ چه د کائناتو د هرڅیز نه خبر دے، ستاسو یوه خبره هم د هغه نه پټه نه ده، ستاسو د زړونو پټ خیالات هم هغه ته معلوم دی -

د کائناتو او د انسان د حقیقت په باره کښے د دے ځلورو بُنیادی خبرو بیانولو نه روستو خبره هغه خلقو ته کیږی چا چه د کُفر لار اختیار کړی ده، او د هغوئ توجه د تاریخ دِ دے منظر ته راآړوی چه په ټول انسانی تاریخ کښے بار بار په نظر راځی چه قومونه اُوچتیږی او بیا په آخر کښے د تباهئ سره مخ کیږی - انسان په خپل عقل سره د تاریخ د دے منظر په زرګونو وجے بیانوی، لیکن الله تعالیٰ اصل حقیقت څرګندوی او هغه دا دے چه د قومونو د تباهئ بُنیادی سببُونه صرف دوه وُو:

یو دا چه الله تعالیٰ د انسانانو د هدایت د پاره کوم رسولان رالیږلی وُو، انسانانو د هغوئ د خبرو منلو نه اِنکار اُوکړو - د دے نتیجه دا شوه چه الله هم هغوئ په خپل حال باندِ پریښودل او هغوئ په خپله د ځانه فلسفے جوړول شروع کړل او په ګمراهئ کښے وړیر لرے لاړل -

دویم داچه هغه د آخرت عقیده هم اُونه منله او په خپل ګمان کښے ئے دا اُوګڼله چه بس هم دا د دُنیا ژوند هرڅه هرڅه دے، د دے نه روستو بل داسے ژوند نشته چه په هغے کښے به موږ د خپل خدائے ته د خپلو عملونو جواب ورکوُو - دے عقیدے د هغوی ټول ژوند خراب کړو او د هغوئ اخلاق او کردار دومره ګنده شو چه آخر د خدائے عذاب راغے او دُنیا ئے د هغوئ نه پاکه کړه -

د انسانی تاریخ د دے دوُو عبرتناکو حقیقتونو بیانولو نه روستو د حق نه اِنکار یانو خلقو له دعوت ورکړے کیږی چه هغوئ د عقل نه کار واخلئ او که د مخکینو قومونو پشان انجام لیدل نه غواړئ نو په الله او د هغه په رسول او د هغه په رالیږلی شوی کتاب باندِ دِ ایمان راوړی - د دے سره هغوئ له خبردارے ورکړے کیږی چه آخر هغه ورځ راتلونکی ده چه په هغے کښے به اَولنی او آخیری ټول خلق یو ځائے ته را جمع کړے شی او د هر انسان غَبن به د ټولو خلقو په مخ کښے څرګند کړے شی - بیا به د ټولو انسانانو د قسمت فیصله په دِ دے بُنیاد باندِ اُوکړے شی چه د ایمان او د نیک عمل لار چا اختیار کړی وه، او د کفر او د دروغو په لار څوک تلے وُو - اولنئ ډله به د همیشه جنّت حقدار وی او د دویمے ډلے په نصیب کښے به همیشه دوزخ وی -

د دے نه روستو مومنانو ته یو څو اهمے خبرے کیږی:

یو دا چه په دُنیا کښے کوم مُصیبت راځی، هغه د الله په اجازت سره راځی -

په مصيبتونو کښې چه کوم سړے په ايمان باندې مضبوط پاتے شي، الله دَ هغه زړۀ ته هدايت کوي، او څوک چه دَ مصيبتونو نه اُويريږي يا نورهم په غصّه شي او دَ ايمان دَ لارے نه پَشا شي، نو دَ هغه مصيبتونه خودَ الله دَ اِجازت نه بغير لرے کيدے نشي، البته هغه يو بل غټ مُصيبت ځان له په بيعه واخلي، او هغه دا چه دَ هغه زړه دَ الله دَ هدايت نه محروم شي۔

دويمه دا چه دَ مومن کار صرف ايمان راوړل نهٔ دی بلکه دَ ايمان راوړلو نه نه روستو هغه له عملاً دَ الله او دَ هغه دَ رسول حکم منل پکار دی۔که دَ حکم منلو نه ئے مخ واړوُو نو هغه به دَ خپل نُقصان پخپله ذمه وار وي۔ ځکه چه رسول الله صلی الله عليه وسلم حق رارَسَولے دے او خپله غاړه ئے خلاصه کړی ده۔

دريمه دا چه مومن له پکاردی چه هغه په خپل طاقت يا دَ دُنيا په طاقت بروسه نهٔ کوي بلکه صرف په الله باندې بروسه کوي۔

څلورمه دا چه دَ مومن دَپاره دَ هغه مال او دَ هغه اهل وعيال يو لوئ آزميښت دے ځکه چه زيات ترۀ دے په محبت کښے انسان دَ ايمان او دَ اطاعت دَ لارے نه بے لارے کيږي۔ په دِے وجه مومنانو له دَ خپل اهل وعيال نه هوښيار اوسيدل پکاردی چه هغوی ورته دَ خدائے په لارکښے خنډ ان جوړ نشي، او هغوئ له خپل مال دَ خدائے په لار کښے خرچ کول پکار دی چه هغوئ دَ زَرپرستئ دَ فتنونه محفوظ پاتے شي۔

پنځمه دا چه هر انسان دَ خپل وَس مطابق پړ دے۔ دَ الله تعالیٰ مطالبه دا نهٔ ده چه سړے دِ دَ خپل وَس نه زيات کار اُوکړي۔ البته مومن له چه دَ کومے خبرې کوشش کول پکاردی هغه دا ده چه هغه دَ خپله وسه پورے دَ خدائے نه په يَرۀ کولو کښے څه کمے اُونهٔ کړي او دَ هغه وينا، او دَ هغه عمل او دَ هغه معاملات دَ هغه دَ خپلے کوتاهئ په وجه دَ الله دَ حدونو نه وا نوړي۔

اٰیاتها ۱۸ — سُورَةُ التَّغَابُنِ مَدَنِيَّةٌ — رکوعاتها ۲

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

يُسَبِّحُ لِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ ۚ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ ۖ وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ﴿١﴾ هُوَ الَّذِيْ خَلَقَكُمْ

دَالله تسبیح بیانوی هرهغه څه چه په آسمانونوکښے ډی[۱] اوهرهغه څه چه په زمکه کښے دی ـ بادشاهی خاص هم دَهغه[۲] ده او تعریف خاص هم هغه لره دے[۳] اوهغه په هرڅیز باندِ قادر دے[۴] ـ هم هغه دے[۵] چه تاسوئے پیدا کړئ ،

[۱] دَ تشریح دَپاره اُوګوره تفهیم القرآن ، پنځم جلد ، تفسیر دَ سورة الحدید ، حاشیه ا ـ په رُوستنی مضمون باندِ چه سړے غور اُوکړی نو دا خبره پخپله په ذهن کښے راځی چه دَکلام شروع دَدے فقرے نه وَلے شوی ده ـ وړاندِ چه دَکائناتو اودَانسان کوم حقیقت بیان کړے شوے دے هغه دا دے چه خاص الله دَدے خالق ، مالک او بادشاه دے ـ اوهغه دا کائنات بے مقصده او بے حکمته نهٔ دے جوړکړے ـ اوانسان دلته غیرذمه وارنهٔ دے پریښودے شوے چه څه غواړی هغه دِکوی دَ هغه نه به څوک تپوس نهٔ کوی ـ اودَدے کائناتو بادشاه څه ناخبره بادشاه نهٔ دے چه دَ هغه په بادشاهئ کښے دِ څه کیږی اوهغه دِ ترِخبرنهٔ وی ـ دَدے مضمون بهترینه شروع هم هغه کیدے شوه کومه چه دَدِوړے شان فقرے نه شوی ده ـ دَموقعے اودَ محل په لحاظ سره دَدے تمهیدی فقرے مطلب داد ے چه دَزمکے نه واخله دَآسمانونو پورے چه په کوم ځائے ته نظرا چوے نو که عقل دِ خراب شوے نهٔ وی ، نوصفا به درته معلومیږی چه دَ یوے ذرّے نه واخله دَلویولویو کهکشانونو پورے هرڅیزنهٔ یوازے دَ خدائے په وجود باندِ ګواه دے بلکه دَدے خبرے ګواهی هم کوی چه دَهغه خدائے دَ هرعیب اونقصان اوکمزورئ اوغلطئ نه پاک دے ـ دَهغه په ذات اوپه صفتونو کښے ، دَهغه په کاراوپه حکمونوکښے که دَ ذرّے هومره دَعیب اودَخطا ، دَکمزورئ اودَ نقصان ، څه شک شُبهه وے نو دا دَکمال درجے حکیمانه نظام به هډو په وجود کښے نهٔ وے راغلے ، دریغه چه دَازل نه دَ اَبَده پورے په داسے مضبوطه طریقه چلیدلے وے ـ

[۲] یعنی داټول اِکّی یواز ے دَهغه سلطنت دے ـ داسے نهٔ ده چه هغه دا کائنات جوړکړو اوصرف یوځل ئے حرکت ورکړو او بیا په ځائے کیناستو بلکه هغه عملاً په دِے باندِ هروخت حکومت کوی ـ په دِے حکومت اوبادشاهئ کښے دَ بل چاقطعاً هیڅ دَخل یاحصّه نشته ـ بل چا ته که عارضی طوراو په محدوده پیمانه په دِے کائناتوکښے په یوځائے کښے دَ ملکیت یادَحکمرانئ اختیارات حاصل دی نوهغه دَهغه ذاتی اختیارات نهٔ دی چه ګنی هغه ته په خپل زورسره حاصل شوی دی ، بلکه هغه الله ورکړی دی ، ترڅوچه الله غواړی هغه به هغه ته حاصلیږی او چه کله اُوغواړی هغه ټول اختیارات ترِ اغستے شی ـ

فَمِنْكُمْ كَافِرٌ وَّمِنْكُمْ مُّؤْمِنٌ ۚ وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ بَصِيْرٌ ﴿۲﴾

بیا په تاسو کښے څوک کافر دے او څوک مؤمن[۵]، او الله هغه هر څه وینی کوم چه تاسو کوئ۔[۶]

[۳] یعنی هغه یواز ے دَ تعریف مُستحق دے، په باره هرۀ هستیٔ کښے چه کومه خوبی دا هغه الله ورکړی ده۔ او که حمد دَ شکر په معنیٰ کښے واغستے شی نو دَ شکر مستحق هم په اصل کښے هغه دے، ځکه چه ټول نعمتونه هغه پیدا کړی دی او دَ ټولو مخلوقاتو حقیقی محسن دَ هغه نه سِوا بل څوک نشته۔ د بل چا دَ اِحسان شکر چه موږه ادا کوُو نو په دِے وجه ئے ادا کوُو چه الله خپل نعمت دَ هغه په لاس نوموږ ته را اُورسَوُو، کنیٔ نو نهٔ هغه پخپله دا نعمت پیدا کړے دے، او نهٔ دَ الله دَ توفیق نه بغیر هغه دا نعمت موږ ته رارسَولے شو۔

[۴] یعنی قادرِ مطلق دے۔ چه څه کول غواړی هغه کولے شی۔ هیڅ یو طاقت دَ هغه قدرت وَدَرَولے نشی۔

[۵] دَ دے څلور مطلبونه وِی او څلور واړه په خپل خپل ځا ئے صحیح دی؛

یوَ دا چه هم هغه ستاسو خالق دے، بیا په تاسو کښے څوک دَ هغه دَ خالقیت نه اِنکار کوی او څوک دا حقیقت منی۔ اولنیٔ فقره او دویمه فقره چه یوځا ئے اُولوستے سی نو دا مطلب ترِ ځرګندیږی۔

دویَم دا چه هغه تاسو په داسے طریقه پیدا کړی یَئ چه که تاسو کفر کول غواړیٔ نو هم کولے شیٔ او که ایمان راوړل غواړیٔ نو هم راوړ لے شیٔ۔ دَ ایمان او دَ کفر په اختیارَولو کښے هغه تاسو مجبوره کړی نهٔ یَئ۔ په دِے تاسو دَ خپل کُفر او دَ خپل ایمان په خپله ذمه وار یَئ۔ دَ دے معنیٰ تائید دا روستنیٔ فقره کوی چه "الله هغه ټول هر څه وینی کوم چه تاسو کوئ"۔ یعنی هغه تاسوله دا اختیار درکړے دے او تاسو ئے په امتحان کښے اچَولی یَئ او هغه ګوری چه تاسو دا خپل اختیار په کومه طریقه استعمالوَئ۔

دریَم مطلب دا دے چه هغه خو تاسو په صحیح فطرت پیدا کړی وِئ نو بکار دا وه چه تاسو ټولو دَ ایمان لار اختیار کړی وے، لیکن په دِے صحیح فطرت باندِ دَ پیدا کیدو نه روستو په تاسو کښے ځینو خلقو کُفر اختیار کړو چه هغه دَ هغوی دَ فطرت نه خلاف وُو، او ځینو دَ ایمان لار اختیار کړه چه دَ هغوئ دَ فطرت مطابق وَه۔ دا آیت چه دَ سورة روم دَ دیرشم آیت سره یوځا ئے اُولوستے شی نو خبره به ښه په ذهن کښے کینی، په هغے کښے فرمائیلے شوی دی چه "خپل مخ په دِے دین باندِ قایم لره او یو مخیزے اُوسیږه او په هغه فطرت باندِ قایمُ شه چه په کوم باندِ الله انسانان پیدا کړی دی، الله چه څه څیزونه دَ کوم جوړښت سره پیدا کړی دی په هغے کښے دِ بدلون نهٔ راوستلے کیږی، هم دا بالکل سَم او صحیح دین دے" او دا خبره دَ هغه ګڼو حدیثونو سره ښه ځرګندیږی چه په هغے کښے نبی صلی الله علیه وسلم بار بار فرمائیلی دی چه هر انسان په صحیح فطرت باندِ پیدا کیږی، بیا روستو په هغه باندِ دَ کفر او دَ شرک او دَ ګمراهیٔ اثرات ښکاره کیږی۔ (دَ تشریح دَ پاره اُوګوره تفهیم القرآن دریَم جُلد، تفسیر دَ سورة رُوم، حاشیے ۴۲ تا ۴۷)۔ دلته دَ دے خبری

خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ بِالْحَقِّ وَصَوَّرَكُمْ فَاَحْسَنَ صُوَرَكُمْ ۚ وَاِلَيْهِ الْمَصِيْرُ ③ يَعْلَمُ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَيَعْلَمُ مَا تُسِرُّوْنَ وَمَا تُعْلِنُوْنَ ۚ وَاللّٰهُ عَلِيْمٌۢ بِذَاتِ الصُّدُوْرِ ④

هغه زمکه اوآسمانونه په حقه پيدا کړي دي، او ستاسو شکل ئے جوړ کړے دے او ډير ښه ئے جوړ کړے دے[ځ]، او خاص هم هغه ته آخرنه آخر ستاسو واپس کيدل دي - دَ زمکے او دَ آسمانونو هر څيز هغه ته معلوم دے - څه چه تاسو پټوئ او څه چه تاسو ښکاره کوئ[ڞ] هغه ټول هغهٔ ته معلوم دي، او هغهٔ دَ زړونو په حال هم ښه عالم دے -

ذکر کول ضروري دي چه آسماني کتابونو هيڅکله هغه تصوّر نهٔ دے پيش کړے کوم چه دَ يونيم زرکالو راسے عيسايانو خپله بُنيادي عقيده جوړه کړي ده چه انسان پيدا ئشي ګنهګار دے - نن پخپله دَ کيتهولک عالمان داوائي چه په بائيبل کښے دَ دے عقيدے هيڅ بُنياد نشته - دَ بائيبل يو مشهور جرمن عالم ريورينډ هربرټ هاګ (Haag) په خپل تازه کتاب (Is original sin in scripture) کښے ليکي چه دَ اولنئ دَور په عيسايانو کښے کم از کم دَ دريمے صدئ پورے داعقيده هډو موجود نهٔ وه چه انسان پي. ائشي ګنهګار دے، او کله چه داخيال په خلقو کښے خوريدل شروع شو نو دَ دووصدو پورے عيسائي عالمانو دَ[ځ] ترديد کولو - ليکن آخر دا چه په پنځمه صدئ کښے سينټ آګسټائن دَ خپل منطق په زور سره دا خبره دَ مسيحيت په بُنيادي عقيدو کښے شامله کړه چه " انسان دَ آدم دَ ګناه وبال په ميراث کښے موندلے دے او دَ دے نه دَ نجات موندلو دَ پاره دَ مسيح دَ کفّارے نه بغير بله لار نشته "

څلورم مطلب دادے[ځ] چه الله تاسو دَ نيش نه شته کړئ - تاسو نهٔ وئ او بيا پيدا شوئ - دا يوه داسے معامله وه چه که چرے تاسو په دے بانډې په صفا طريقے سره غور او فکر کړے وے او دِ ے ته مو کتلے وے چه شته والے هغه اصلي نعمت دے چه دَ هغے په وجه تاسو دَ دُنيا دَ نورونعمتونو نه فائده اخلئ، نو په تاسو کښے به هيڅ دَ خپل خالق په مقابله کښے دَ کفر او دَ بغاوت لار اختيار کړے نهٔ وے - ليکن په تاسو کښے ځينو خلقو هډو سوچ اُونهٔ کړو، يا ئے په غلطه طريقه سوچ اُوکړو او دَ کفر لار ئے اِختيار کړه، او ځينو خلقو دَ ايمان هغه لار اختيار کړه کومه چه دَ صحيح فکر سره پکار وه -

[ك] په دِے[ځ] فقره کښے دَ ليدلو مطلب تش ليدل نهٔ دي، بلکه دَ دے[ځ] نه پخپله دا مطلب را اُوزي چه څنګه ستاسو عملُونه دي، دَ هغے مطابق به تاسو ته جزا يا سزا درکړے کيږي، دا خبره بالکل داسے ده لکه چه يو حاکم يو سړے په نوکرئ اُولګوي او ورته اُووائي چه " څه کودم چه ته څنګه کار کړے" نو دَ دے[ځ] مطلب دا وي چه که ښه کار دِ کوؤ نو تا ته به انعام درکوم او ترقي به دِ کيږي، کنهٔ نو بيا به سخته سزا درکوم -

[ك] په دِ ے آيت کښے در ے خبرې په ترتيب سره بيان کړے شوي دي چه دَ دريواړو يو تر بله ډير ژور تړون دے -

اوله خبره دا اُوشوه چه الله دا کائنات په حقه پيدا کړی دی ۔ "په حقه" لفظ چه کله دَ خبر دَ پاره اُووئيلے شی نو مُراد وی رښتينے خبر ۔ چه دَ حُکم دَ پاره اُووئيلے شی نو مطلب به وی دَ عدل او دَ انصاف حکم ۔ چه دَ يو قول دَ پاره اُووئيلے شی نو مقصد وی صحيح قول ۔ اوکله چه دا لفظ دَ يو کار دَ پاره استعمال شی نو دا سے کار ترې مُراد وی چه هغه سراسر دَ حکمت نه ډک او موزون وی نهٔ چه بے مطلبه او فضول وی ۔ اُوس دا ظاهره خبره ده چه پيدا کول يو کار دے، نو دَ کائناتو پيدا کولو ته "په حقه" وئيل خامخا دا مطلب لری چه دا کائنات څه دَ لوبو په طور نهٔ دی پيدا کړے شوی بلکه دَ يو حکيم خالق د يرغرضی کار دے ۔ دَ دے هر څيز يو خاص مناسب مقصد لری، او دا مقصد په کښے دومره څرګند دے چه که چرے يو عقلمند انسان دَ يو څيز په اصل ځان سبه پوهه کړی نو دَ هغه دَ پاره بيا دا پيژندل هيڅ ګران نهٔ وی چه د دا سے څيز دَ پيدا کيدو حکمتی او مناسب مقصد څه کيد ے شی ۔ په دُنيا کښے چه انسان څومره سائنسی ترقی کړی ده دا دَ دے خبرې ګواهی ده چه انسان دَ کوم څيز په اصل باندِ دَ غور او فکر او دَ تحقيق په ذريعه پوهه شو نو دَ هغه څيز په باره کښے دا خبره هم آخر نه آخر معلومه شوه چه هغه دَ څه مقصد دَ پاره جوړ کړے شوے دے او دَ هغه مقصد دَ پيژندو په وجه انسان دا سے بے شماره څيزونه جوړ کړل چه نن دَ انسان په ژوند کښے استعماليږی ۔ دا خبره به هډو ممکنه نهٔ وے که چرے دا کائنات هسے لوبه توقے وے او څه حکمت او مقصد پکښے پروت نهٔ وے (دَ زياتے تشريح دَ پاره اُوګورئ تفهيم القرآن، اوّل جلد، سورة انعام، حاشيه ۴۶ ۔ دوم جلد، يونس، حاشيه ۱۱ ۔ ابراهيم، حاشيه ۲۶ ۔ النحل، حاشيه ۶ ۔ دريم جلد، الانبياء، حاشيه ۱۵ - ۱۶ ۔ المومنون، حاشيه ۱۰۲ ۔ العنکبوت، حاشيه ۷۵ ۔ الروم، حاشيه ۶ ۔ څلورم جلد، الدّخان حاشيه ۳۴ ۔ الجاثيه، حاشيه ۲۸) ۔

دويمه خبره دا اُوشوه چه په دے کائناتو کښے الله تعالیٰ انسان په ډير ښکلی شکل کښے پيدا کړے دے ۔ دَ شکل نه مُراد صرف دَ انسان مخ نهٔ دے، بلکه دَ دے نه مُراد دَ انسان دَ ټول بدن جوړښت دے او هغه قوّتونه او صلاحيتونه هم په دے مطلب کښے شامل دی کوم چه دَ کار کولو دَ پاره په دے دُنيا کښے انسان له ورکړے شوی دی ۔ په دے دواړو حيثيتونو سره انسان دَ زمکے په مخلوقاتو کښے دَ ټولونه بهتره جوړ کړے شوے دے، او په دے بُنياد باندِ هغه دَ دے قابل شوے دے چه په هغه ټولو څيزونو باندِ حکمرانی اُوکړی کوم چه په زمکه کښے او دَ زمکے په خواؤ شا کښے موندے کيږی ۔ انسان له ولاړ قد ورکړے شوے دے ۔ دَ ګرځيدو دَ پاره ورله مناسبے خپے ورکړے شوی دی ۔ دَ کار کولو دَ پاره ورله مناسب لاسونه ورکړے شوی دی ۔ هغه له دا سے حَواس او دَ علم دا سے ذريعے ورکړے شوی دی چه دَ هغے په ذريعه هغه هر قسم معلومات حاصلوی ۔ هغه له دَ سوچ فکر او دَ پوهے او دَ معلوماتو راجمع کولو او دَ هغے نه دَ نتيجے راايستلو دَ پاره دَ اعلیٰ درجے يو ذهن ورکړے شوے دے ۔ هغه له ښه اخلاق او دَ ښه بَد پيژند لو طاقت ورکړے شوے دے چه دَ هغے په وجه هغه په ښه او بد کښے، او په صحيح او په غلط کښے فرق کوی ۔ هغه له دَ فيصلے کولو قوّت ورکړے شوے دے چه دَ هغے په وجه هغه ځان له دَ عمل لار په خپله خوښوی او دا فيصله کوی چه په کومه لار کښے کوشش اُوکړی او په کومه کښے نهٔ ۔ هغه له تر دے پورے آزادی ورکړے شوی ده چه که خپل خالق منی او دَ هغه بندګی کوی او که نهٔ دَ هغه نه انکار کوی، يا څوک ځان له خدايان جوړوی، يا چه کوم خدائے منی دَ هغه خلاف هم که بغاوت کول

غواړی نوکوی یِ - ډَدے ټولو قوّتونو او ډَدے ټولو اختیاراتو سرۀ هغه له الله پاک په خپلو بے شمـاره مخلوقاتو باندې دَ حُکم کولو اختیار ورکړے دے او هغه عملاً دا اختیارات استعمالوی۔ ( دَ زیاتے تشریح دَ پاره اُوګوره تفهیم القرآن څلورم جلد، المؤمن، حاشیه ۹۱ ) -

دا کومے دوه خبرې چه بره بیان کړے شوې دی ډَدے نه هغه دریمه خبره بخپله را اوزی کومه خبره چه دَ آیت په دریمه فقره کښے شوې ده چه " او خاص هم هغه ته آخر نۀ آخر ستاسو واپس کیدل دی "۔ ظاهره خبره ده چه هرکله دَ کائناتو په یو داسے حکمتی او مقصدی نظام کښے یو داسے با اختیاره مخلوق پیدا کړے شوے دے نو دَ حکمت ترغه داهرګز نۀ بښائی چه هغه دِ دلته دَ بے مُهاره اُوښ پشان غیرذمه وار پریښودے شی، بلکه لازماً دا بښائی چه دا مخلوق به هغه هستئ له جواب ورکوی چا چه ورله ډَدے اختیاراتو سرۀ په خپل کائنات کښے دا مقام او مرتبه ورکړې ده - دَ " واپس کیدلو " نه مُراد په دِے آیت کښے صرف واپس کیدل نۀ دی بلکه دَ جواب ورکولو دَ پاره واپس کیدل دی، او په روستنی آیت کښے صفا وئیلے شوی دی چه دا واپسی به په دِے ژوند کښے نۀ وی بلکه دَ مرګ نه روستو به په دویم ژوند کښے وی، او دَدے اصلی وخت به هغه وی چه کله ټول انسانان بیا دَ نوې سَرنه دوباره ژوندی کړے شی او په یو وخت . دَ حساب کتاب دَ پاره راجمع کړے شی، او دَحساب کتاب نه روستو به جزا او سزا په دِے بُنیاد باندِ وی چه سړی دَ خدائے ورکړے شوی اختیارات په صحیح طریقه استعمال کړی دی او که په غلطه - پاتے شوه دا خبره چه داحساب کتاب دَ دُنیا په موجوده ژوند کښے وَلے نشی کیدے ؟ او دَ دِے صحیح وخت دَ مرګ نه روستو په دویم ژوند کښے وَلے دے ؟ او دا وَلے ضروری ده چه حساب کتاب به په هغه وخت کښے وی کله چه ټول انسانان په دِے دُنیا کښے ختم شی او ټول اولنی او آخرنی انسانان په یو وخت دوباره را ژوندی کړے شی او راجمع کړے شی ؟ چه سړے لږ شان هم دَ عقل نه کار واخلی نو په دِے پوهیږی چه دا ټول هرڅه مناسب دی او دَ حکمت تقاضا هم دا ده چه حساب کتاب دِ په دویم ژوند کښے وی او دَ ټولو انسانانو دِ په یو وخت کښے وی - دَ دِے اولنۍ وجه دا ده چه انسان په دَ خپل ژوند دَ ټولو عملونو جواب ورکوی - نو په دِے وجه دَ هغه دَ جواب ورکولو صحیح وخت لازماً هم هغه پکار دے کله چه دَ هغه عملنامه مکمل شوې وی - او دویمه وجه دَدے دا ده چه دَ انسان دَ خپل عمل په وجه دَ بل په ژوند کوم آثار شوے وی هغه آثار دَدۀ دَ مرګ سره ختمیږی نۀ بلکه دَ دۀ دَ مرګ نه روستو هم په مودو مودو چلیږی نو دَ هغے اثراتو هم دے ذمه وار دے - نو صحیح حساب کتاب په هغه وخت کیدے شی کله چه دَ ټولو انسانانو عملنامے ختمے شی او ټول اولنی او آخرنی په یو وخت دَ حساب کتاب دَ پاره جمع کړے شی -( دَ زیاتے تشریح دَ پاره اُوګوره تفهیم القرآن دویم جلد، الاعراف، حاشیه ۳۰ - یونس، حاشیے ۱۰،۱۱ - هود، حاشیه ۱۰۵ - النحل، حاشیه ۳۵ - دریم جلد، الحج، حاشیه ۹ - النمل، حاشیه ۲۷ - الروم، حاشیے ۵ - ۶ - څلورم جلد، صٓ، حاشیے ۲۹ - ۳۰ - المومن حاشیه ۸۰ - الجاثیه، حاشیے ۲۷ - ۲۹ ) -

ﮯ۸ دویمه ترجمه دا هم کیدے شی " څه چه تاسو په پټه کوئ او څه چه تاسو په ښکاره کرئ "۔

ﮯ۹ یعنی هغه صرف دَ انسان دَ هغه عملونو نه خبر نۀ دے کوم چه دَ خلقو په عِلم کښے راځی بلکه دَ هغه عملونو نه هم خبر دے چه هغه دَ ټولو نه پټ وی - بیا هغه صرف دَ عملونو ظاهری شکل ته نۀ ګوری بلکه دَدے نه هم خبر دے چه دَ انسان

أَلَمْ يَأْتِكُمْ نَبَؤُا الَّذِينَ كَفَرُوا مِن قَبْلُ فَذَاقُوا وَبَالَ أَمْرِهِمْ وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ۝ ذَٰلِكَ بِأَنَّهُ كَانَت تَّأْتِيهِمْ رُسُلُهُم بِالْبَيِّنَاتِ فَقَالُوا

آیا تاسو ته د هغه خلقو څه خبر نهٔ دے راغلے چه هغوی د دے نه مخکښے کفر اُوکړو او بیا ئے د خپلو عملونو د سزا مزه اُوڅکله؟ او وړاندِ د هغوی د پاره یو دردناک عذاب دے۔ هغوی د دے انجام ځکه مستحق شو چه هغوی ته د هغوی رسولان د صفا صفا دلیلونو او نښو سره راتلل نو هغوی اُووئیل

هر عمل د کومے اراده او د کوم مقصد لاندِ شوے دے او انسان چه څه کړی دی نو د کوم نیت لاندِ ئے کړی دی۔ دا یو داسے حقیقت دے چه په دے بانِدِ انسان غور اُوکړی نو هغه اندازه لګولے شی چه انصاف صرف په آخرت کښے کیدے شی او خاص د خدائے په عدالت کښے صحیح انصاف ممکن دے۔ د انسان عقل پخپله دا غواړی چه سړی ته د هر جرم سزا مِلاو یدل پکار دی، لیکن آخر دا خبره چا ته نهٔ ده معلومه چه په دُنیا کښے ډیر جرمونه یا خو پټ پاتے کیږی یا د شهادت د کمی په وجه مجرم خلاصیږی، یا که جُرم ښکاره هم شی نو مجرم دومره با اَثره او طاقتور وی چه هغه له سزا نشی ورکړے کیدے۔ بیا د انسان عقل دا هم غواړی چه سړی ته صرف په دے وجه سزا ملاویدل نهٔ دی پکار چه د هغه کار د مجرمانو د کار پشان دے، بلکه دا تحقیق کول پکار دی چه کوم کار هغه کړے دے هغه په اراده او په سوچ سره ئے کړے دے، د هغے د کولو په وخت کښے هغه ذیوذمه وار انسان په حیثیت سره کار کولو، د هغه نیت واقعی د جُرم کولو وُو، او هغه په دے پوهید و چه دا څه هغه کوی دا جُرم دے۔ دا وجه ده چه د دُنیا عدالتونه د مقدمو په فیصله کولو کښے د دے خبرو تحقیق کوی او د هغوی تحقیق ته انصاف وئیلے کیږی۔ لیکن آیا واقعی په دُنیا کښے څه داسے ذریعه موندے کیږی چه په هغے سره ټیک ټیک داسے تحقیق اُوشی چه په هغے کښے هیڅ شک نهٔ وی؟ چه په دے لحاظ سره اُوکتے شی نو دا آیت هم د الله تعالیٰ د دے حکم سره ژوروتړون لری چه " هغه زمکه او آسمانونه په حقه پیدا کړی دی"۔ په حقه پیدا کولو سره دا لازمی ده چه په دے کائنات کښے دِ صحیح او کامل عدل وی۔ دا عدل هله قائمیدے شی چه د عدل کونکی د نظر نه نهٔ یوازے د انسان غونډِ ذیوذمه وار مخلوق یو کار پټ پاتے نشی بلکه چه هغه نیت تر ِهم پټ نهٔ وی د کوم لاندِ چه یو سړی یو کار کړے وی۔ او ظاهره خبره ده چه د کائناتو د خالق نه سِوا بله هستی داسے نشی کیدے چه دا قسم عدل اُوکړے شی۔ اُوس که یو سړے د الله او د آخرت نه انکار کوی نو هغه لکه چه دا دعویٰ کوی چه مونږه په داسے کائنات کښے اُوسو چه هغه په حقیقت کښے د انصاف نه خالی دے، بلکه په هغے کښے د انصاف هیڅ امکان نشته۔ د بے وقوفتیا په دے خیال بانِدِ چه د کوم سړی عقل او زړهٔ مطمئن وی نو هغه غټ بے شرمه انسان دے که څه هم هغه خپل ځان ترقی پسند (یعنی ترقی خوښونکے) یا عقلیت پسند (یعنی د عقل مطابق کار خوښونکے) ګنړی او هغه خلق تاریک خیالی (یعنی د زړو خیالاتو والا) یا رجعت پسند (یعنی زړے زمانے ته واپس تلونکی خلق) ګنړی څوک چه د کائناتو دا انتهائی معقول (Rational) تصوّر

أَبَشَرٌ يَّهْدُوْنَنَا ۡ فَكَفَرُوْا وَتَوَلَّوْا وَّاسْتَغْنَى اللّٰهُ ۭ وَاللّٰهُ غَنِيٌّ حَمِيْدٌ ۝

"آیا انسان به موبږ ته هدایت کوي"؟ په دې طریقه هغوئ د منلونه انکار اُوکړو او مخ ئې واړوَو، نو الله هم د هغوئ پروا اُونه ساتله او الله خود بې نیازه (د چا پروانهٔ ساتي) او په خپل ذات کښې پخپله ستائیلې شوې دې۔[13]

قبلوي کوم چه قرآن پیش کوي۔

[11] یعنی په دُنیا کښې چه هغوي د عملونو کومه سزا اُوموندله هغه د هغوئ د جُرمونونهٔ اصلي سزا اونهٔ پوره سزا وه۔ اصلي او پوره سزا خو به اُوس په آخرت کښې مومي۔ لیکن په دُنیا کښې چه کوم عذاب په هغوئ باندې راغے د هغې نه خلق دا سبق اغستې شي چه کومو خلقو د خپل رب په مقابله کښې د کفر لار اختیار کړه نو د هغوئ عملونه څنګه خراب شو او آخري انجام ئې څه شو۔ (د زیاتې تشریح د پاره اُوګوره تفهیم القرآن، دویم جلد، الاعراف، حاشیه ۱۰۵)۔

[12] په اصل کښې لفظ بیّنات استعمال شوې دې چه مطلب ئې ډیر فراخه دې۔ بیّن په عربئ ژبه کښې داسې څیز ته وائي چه بالکل ظاهر او واضحه وي۔ د پیغمبرانو په حقله دا فرمائیل چه هغوئ به بیّنات راوړل، دا معنیٰ لري چه یو خو به هغوئ داسې څرګند نښې راوړلې چه هغې به د دې خبرې صفا صفا ګواهي ورکوله چه هغوئ د الله تعالیٰ د طرفنه راغلي دي۔ دویم، هغوي چه به کومه خبره کوله ډیر په مناسب او روښانه دلیلونو سره به ئې کوله۔ دریم، د هغوئ تعلیم غیر واضحه نهٔ وُو، بلکه هغوئ به صفا صفا وئیل چه حق څه دې او باطل څه دې، جائز څه دې او ناجائز څه دي، انسان له په کومه لار تلل پکار دي او په کومه لاره تلل نهٔ دي پکار۔

[13] دا وه د هغوئ د تباهئ اولني او بُنیادي وجه۔ انسانانو ته په دُنیا کښې د عمل صحیح لار بغیر د دې نه معلومیدې نهٔ شوه چه د هغوئ خالق هغوئ له صحیح علم ورکړي، او د خالق د طرفنه د علم ورکولو عملي طریقه د دې نه سِوا بله کیدې نشوه چه هغه په انسانانو کښې څینو کسانو له علم ورکړي او هغوئ ته دا خدمت حواله کړي چه دا علم نورو انسانانو ته اُورسوئ۔ د دې غرض د پاره هغه پیغمبران د بیّنات سره را اُولیږل چه د هغوئ په حق والي کښې د خلقو هیڅ شک شُبهه پاتې نشي۔ لیکن هغوي هډو د سر نه د دې خبرې نه انکار اُوکړو چه انسان د خدا ئې رسول کیدې شي۔ نو د دې اِنکار نه روستو د هغوئ د پاره د هدایت موندلو هیڅ ضرورت پاتې نشو (د زیاتې تشریح د پاره اُوګوره تفهیم القرآن، څلورم جلد، سورهٔ یٰسٓ، حاشیه ۱۱)۔ په دې معامله کښې د ګمراهه انسانانو د جهالت او د ناپوهتیا عجیبه کارنامه ذهنونو مخې ته راځي چه دا انسان د رهنمائئ په قبلولو کښې خو هغوئ هیڅکله تیار نهٔ دهٔ کړي، تر دې پورې چه دا انسان په رهنمائئ کښې ئې دلرګو او د کاڼو د بُتانو نه خدایان جوړ کړل پخپله انسانان ئې خدائې او د خدائې اوتار او د خدائې څوئې اُومنل، او د ګمراهه لیډرانو په تابعدارئ کښې ئې

زَعَمَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْٓا اَنْ لَّنْ يُّبْعَثُوْا ۭ قُلْ بَلٰى وَرَبِّيْ لَتُبْعَثُنَّ ثُمَّ لَتُنَبَّؤُنَّ بِمَا عَمِلْتُمْ ۭ وَذٰلِكَ عَلَي اللّٰهِ يَسِيْرٌ ۷

انکاریانو ډیر په دعوئ سره وئیلی دی چه هغوی به د مرګ نه روستو دوباره هرګز نهٔ راپاځولے کیږی[۱۴] - دوئ ته اُووایه "نهٔ ځما په رب قسم دے چه تاسو به ضرور راپاځولے کیږئ[۱۵]، بیا به ضرور تاسو ته اُوښودلے شی چه تاسو (په دُنیا کښے) څه کړی دی[۱۶]، او دا کار الله ته ډیر آسان دے[۱۷]"

دا سے عجیبه عجیبه لارے اختیار کړلے چه هغې د انسان د استوګنے طریقه او د انسان اخلاق بالکل تباه کړل لیکن کله چه د خدائے رسول هغوی ته حق راوړو او هغوی ورته د هر ذاتی غرض نه پاک بیوصداقت پیش کړو نو هغوی اُووئیل "آیا بشر به مونږ ته هدایت کوی؟" د دے مطلب دا ؤ چه انسان که د ګمراهئ لار ښائی نو په سرسترګو قبول ده، خو که صحیح لار ښائی نو بیا قبول نهٔ ده -

[۱۳] یعنی هرکله چه هغوی د الله د رالیږلی شوی هدایت نه بے پرواهی اُوکړه نو بیا الله ته هم د دے خبری څه پروانشته چه هغوی په کومه کنده کښے ورپریوزی - د الله د هغوی سره څه غرض تړلے شوے نهٔ ؤ چه ګنی که هغوی هغه خدائے اُومنو نو هغه به خدائے وی کنهٔ نو د خدائی تخت به د هغه نه واغستے شی - الله نهٔ د هغوی د عبادت محتاج ؤ، نهٔ د هغوی د حمد او ثنا - الله خو د هغوی د فائدے د پاره هغوی ته نیغه لاره ښودل غوښتل - خو چه کله هغوی د هغې نه مخ واړاوو نو الله هم د هغوی نه بے پرواشو - بیا هغوی ته نهٔ هدایت اُوکړو، نهٔ ئے د هغوی حفاظت په خپله ذمه واغستو، نهٔ ئے هغوی د هلاکیدو نه بچ کړل، نهٔ ئے هغوی د دے نه منع کړل چه په خپل ځان په خپله تباهی راولی، ځکه چه هغوی په خپله د الله د هدایت او د سرپرستئ طلبګار نهٔ ؤ -

[۱۴] یعنی په هره زمانه کښے چه د حق نه انکاریان خلق په بله کومه بُنیادی ګمراهئ کښے اخته شوی دی، او چه آخر د هغوی د تباهئ سبب ګرزیدلے دے، نو هغه دا وه - څوک چه د آخرت نه منکر دی اګرچه د هغوی سره نهٔ د اول نه د دے خبری څه ثبوت ؤ، نهٔ نن شته او نهٔ چرے کیدے شی چه د مرګ نه روستو دویم ژوند نشته - لیکن دے ناپوهانو همیشه په ډیر زور سره هم دا دعوی کړی ده، حالانکه د آخرت نه د انکارکولو د پاره قطعی طور نهٔ څه عقلی بُنیاد شته او نهٔ څه علمی بُنیاد -

[۱۵] دا دریم ځائے دے چه په دے کښے الله تعالیٰ خپل نبی ته فرمائیلی دی چه په خپل رب قسم اُوخوره او خلقو ته اُووایه چه ضرور به دا سے کیږی - اول ئے په سورة یونس کښے اُوفرمائیل وَيَسْتَنْۢبِـُٔوْنَكَ اَحَقٌّ ھُوَ ، قُلْ اِيْ وَرَبِّيْٓ اِنَّهٗ لَحَقٌّ وَمَآ اَنْتُمْ بِمُعْجِزِيْنَ - "هغوی تپوس کوی آیا واقعی دا حق دے؟ ورته اُووایه ځما په خپل رب قسم دے چه دا یقیناً حق دے او تاسو دومره زور نهٔ لرئ چه هغه د راتلو نه منع کړئ" (آیت ۵۳) - بیا ئے په سورة سبا کښے اُوفرمائیل وَقَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَا تَاْتِيْنَا السَّاعَةُ ، قُلْ بَلٰى وَرَبِّيْ لَتَاْتِيَنَّكُمْ - "منکرین وائی څه وجه ده چه قیامت په مونږه نهٔ راځی! ورته اُووایه، قسم دے ځما په خپل رب چه هغه به خامخا په تاسو راځی" (آیت ۳) -

دلته دا تپوس کیدے شی چه دَ آخرت نه دَ منکر سړی دَ پاره آخر په دې کښے څه فرق راځی چه که ته ورته دَ آخرت دَ راتلو خبر په قسم سره واوروې اوکه بے قسمه ئے ورته واوروے؟ هغه چه آخرت نه مَنی نو صرف په دې وجه به ئے څنګه اوُمنی چه ته ورته په قسم سره دا خبره کوے؟ دَ دې جواب دا دے چه اوّل خو رسول الله صلی الله علیه وسلم خبره هغه خلقوته کوله چه هغوی ته دَ خپل ذاتی علم او تجربے په وجه دا خبره ښه معلومه وه چه دِ دے سړی په ټول عمر کښے چرته دروغ نه دی وئیلی، نو که هغوئ په خُله باندِ دَ هغه خلاف هرڅومره دروغ وئیل، خو په زړونو کښے ئے دا خیال قدرله هم نهٔ شو راتلے چه دا سے رښتینے انسان به په خدا ئے قسم اوُخوری او هغه خبره به اوُکړی چه دَ هغې دَ حق والی به هغه ته کامل یقین نهٔ وی - دویمه دا چه هغه تشه دَ آخرت عقیده نهٔ بیانوَله، بلکه دَ دې دَ پاره ئے نِهایت مناسب دلیلونه هم پیش کول - لیکن کوم څیز چه دَ نبی او دَ غیرنبی په مینځ کښے فرق کوی هغه دا دے چه یوغیرنبی دَ آخرت په حق کښے کوم مضبوط مضبوط دَلیلونه ورکوی دَ هغې دَ زیاتونه زیاته فائده بس دا کیدے شی چه دَ آخرت کښته کیدو په نسبت دَ هغې کیدل زیات مناسب اوُګڼړلے شی - دَ دے برعکس دَ نبی مقام دَ یو فلسفی دَ مقام نه ویر اوُچت دے - دَ هغه اصل حیثیت دا نهٔ دے چه هغه دِ په عقلی دلیل سره دې خبرې ته رسید لے وی چه آخرت راتلل پکاردی - بلکه دَ هغه اصل حیثیت دا دے چه هغه دا عِلم لری چه آخرت به وی او په یقین سره وائی چه آخرت به ضرور وی - نو په دې وجه خاص یو نبی په دې خبره قسم خورے شی، یو فلسفی په دې قسم نهٔ شی خوړے - او خاص دَ نبی دَ بیان نه په آخرت باندِ ایمان پیدا کیدے شی، دَ فلسفی دلیل دا طاقت نهٔ لری چه بل سړے خو لا پریږده، فلسفی به ځپله هم دَ خپل دلیل په وجه هغه خپله ایمانی عقیده جوړه کړی. فلسفی که واقعی دَ صحیح فکر والا فلسفی وی نو هغه دَ "کیدل پکاردی" نه وړاندِ نشی تلے - "دے او یقیناً دے" دا وینا صرف یو نبی کولے شی -

۱۶ دا هغه مقصد دے چه دَ دے دَ پاره به انسانان دَ مرګ نه روستو دوباره راپاڅولے کیږی، او په دِ دے کښے دَ دے خبرې جواب هم دے چه دَ دا سے کولو آخر ضرورت څه دے - که چرے هغه بحث دَ سړی په نظر کښے وی کوم چه دَ سورة دَ شروع نه دَ څلورم نمبر آیته پورے شوے دے نو دا خبره په آسانئ سره دَ سړی په ذهن کښے کینی چه په دې برحق کائنات کښے کوم مخلوق ته دَ کفر او دَ ایمان نه دَ یو دے لارے دَ اختیارولو آزادی ورکړے شوی وی، او په دِ دے کائنات کښے ورته دَ ډیرو څیزونو دَ استعمالولو واک اختیار هم ورکړے شوی وی، او چه هغوئ دَ کفر یا دَ ایمان قبلولو په وجه خپل ټول عُمر دا واک اختیار په صحیح یا په غلطه طریقه استعمال کړے وی او د غسے ئے ډیرے نیکیانے یا بدیانے په خپله ذمه وارئ سره کړی وی، دَ هغوئ په باره کښے دا خیال کول انتهائی نامناسب دے چه دا ټول هرڅه هغوئ کړی وی نو په آخر کښے دِ دَ نیکئ او دَ بدئ انجام بے نتیجے پاتے شی او همدا سے یو وخت دِ را نشی چه په کښے دَ دے مخلوق دَ عملونو جاج وا غستلے شی - کوم سړے چه دا سے نامناسبه خبره کوی هغه دَ دوَو بے وقوفو کارونو نه یو بے وقوف کار خامخا کوی - یا خو هغه دا ګڼړی چه دا کائنات خو دَ حکمت په بُنیاد جوړ دے، لیکن دلته دَ انسان غوندِ بااختیاره مخلوق غیر ذمه وار پریښودے شوے دے - یا بیا هغه دا خیال کوی چه دا کائنات په

فَاٰمِنُوْا بِاللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ وَالنُّوْرِ الَّذِیْٓ اَنْزَلْنَا ؕ وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِیْرٌ ۝۸ یَوْمَ یَجْمَعُكُمْ لِیَوْمِ الْجَمْعِ ذٰلِكَ یَوْمُ التَّغَابُنِ ؕ

نو ایمان راوړئ په الله باندې، او د هغه په رسول باندې، او په هغه رڼا باندې کومه چه موږ ه نازل کړې[18] ده۔ څه چه تاسو کوئ الله د هغې نه خبر دے (د دے پته به تاسو ته په هغه ورځ اولږي) کله چه د اجتماع په ورځ هغه تاسو ټول راجمع کړي[19]۔ دغه به د یو بل په مقابله کښې د خلقو د ګټې باېلات ورځ وي[20]۔

اټکل جوړ شوے دے په دے کښې د حکیم د حکمت هیڅ دخل نشته۔ په اوّل صورت کښې هغه دوه خبرې کوي او دواړه د یو بل نه مخالف دي ځکه چه کوم کائنات د حکمت په بُنیاد باندې جوړ شوے وي او په هغې کښې با اختیاره مخلوق اوسي او هغوئ ډېر ډېر واک ژوند تېروي نو دا خبره سراسر د عدل او د حکمت نه خلاف ده۔ او په دویم صورت کښې هغه د دے خبرې څه مناسب وجه نه شي ښودلے چه په اټکل جوړ شوي بے حکمته کائناتو کښې د انسان غوندې عقلمند مخلوق پیدا کیدل آخر څنګه ممکن شو او د هغه په ذهن کښې د عدل او د انصاف خیال څنګه را پیدا شو؟ د بے عقلئ نه عقل پیدا کیدل او د بے انصافئ نه انصاف را وتل یوه داسے خبره ده چه یا خو یو ضدناک سړے د هغې قائل کیدے شي، یا بیا هغه سړے چه هغه په فلسفه کښې ډېر لرے تلے وي او دماغي مریض ترجوړ شوے وي۔

[17] دا د آخرت دویم دلیل دے۔ اولنئ دلیل د دے وُو چه د آخرت د راتلو ضرورت دے، او دا دلیل د دے خبرې دے چه د آخرت راتلل ممکن دي۔ ښکاره خبره ده چه کوم خدائے ته د کائناتو دا دومره لوئ نظام جوړول ګران نه وُو او په دُنیا کښې ورته د انسانانو پیدا کول ګران نه دي، نو هغه ته به دا خبره آخر ولے ګرانه وي چه انسانان دوباره پیدا کړي او خپل ځان ته ئے حاضر کړي او حساب کتاب ورسره اوکړي۔

[18] یعنی هر کله چه دا حقیقت دے او ټول انساني تاریخ په دے خبره ګواه دے چه د قومونو د تباهئ اصلي سبب د رسولانو خبره نه منل او د آخرت نه انکار کول وُو، نو په دغه غلطه لار مه ځئ، خپل ځان مه تباه کوئ، او په الله او د هغه په رسول او د قرآن په هدایت باندې ایمان راوړئ۔ دلته د وړاندې روستو عبارت نه ښخپله معلومیږي چه د الله د نازل کړے شوے رڼا نه مُراد قرآن دے۔ لکه څنګه چه رڼا پخپله رُوښانه وي او د خوا وُ شا هغه ټول څیزونه روښانه کوي کوم چه مخکښې په تیاره کښې پټ پراته وي، دغه شان قرآن هغه رڼا ده چه د هغه حق والے په خپل ځائے رُوښانه دے، او د هغه په رڼا کښې انسان په هر هغه مسئله پوهیدے شي د کومے د پوهیدو د پاره چه د هغه د خپل علم او عقل ذرائع کافي نه وي۔ دا رڼا چه د کوم سړي سره وي هغه د فکر او د عمل د بے شماره کږکیچنو لارو په منځ کښې د حق نیغه لاره صفا صفا لیدے شي او ټول عُمر په صراط مستقیم باندې په داسے طریقه تلے شي چه په هر قدم به هغه ته دا معلومیږي چه د ګمراهئ طرفته بوتلونکي تړئ نږئ

لارے کومے کومے دی او دَ هلاکت کندے په کوم کوم ځائے کښې راځی او دا دے په منځ کښې دَ سلامتیا لار کومه یوه ده۔

۱۹ دَ اجتماع دَ ورځې نه مُراد دے قیامت، او دَ ټولو دَ راجمع کولو نه مُراد دے هغه ټول انسانان په یو وخت راژوندی کول او راجمع کول کوم چه دَ اول نه دَ قیامته پورے په دُنیا کښې پیدا شوی دی۔ دا خبره په قرآن مجید کښې ځایئے په ځائے صفا صفا بیان کړے شوی ده۔ مثلاً په سورۃ هود کښې فرمائی ذٰلِكَ يَوْمٌ مَّجْمُوعٌ لَّهُ النَّاسُ وَ ذٰلِكَ يَوْمٌ مَّشْهُودٌ، "هغه به داسے ورځ وی چه په هغې کښې به ټول انسانان راجمع کیږی او بیا چه په هغه ورځ څه وی هغه به دَ ټولو په وړاندې وی" (۱۰۳)۔ او په سورۃ واقعه کښې فرمائی قُلْ اِنَّ الْاَوَّلِيْنَ وَالْاٰخِرِيْنَ لَمَجْمُوْعُوْنَ اِلٰى مِيْقَاتِ يَوْمٍ مَّعْلُوْمٍ، "دوئ ته اُووایه چه ټول تیر شوی او روستو راتلونکی خلق به یقیناً دَ یوے مقرر کړے ورځے په وخت باندې راجمع کیږی" (آیت ۵۰)۔

۲۰ په اصل کښې لفظ يَوْمُ التَّغَابُنِ استعمال شوے دے چه معنیٰ ئے دومره فراښه ده چه اُردو ژبه خو پریږده، دَ بلے ژبے هم یو لفظ، بلکه یو فقره دَ دے مطلب نشی ادا کولے۔ بخپله په قرآن مجید کښې هم چه دَ قیامت څومره نومونه راغلی دی، په هغې کښې غالباً دَ ټولو نه زیات معنیٰ دار نوم هم دا دے۔ په دِے وجه دَ دے په مطلب باندې دَ ځان پوهه کولو دَ پاره لږه شان تشریح ضروری ده۔

تَغَابُن دَ غبن نه دے چه غَبْن هم ویئلے کیږی او غَبَن هم۔ غَبْن زیات تر دَ اغستلو خرڅولو او دَ لین دین په معامله کښې ویئلے کیږی او غَبَن دَ رائے په معامله کښې۔ لیکن کله کله دَ دے برعکس هم استعمالیږی۔ په لغت کښې دَ دے ډیرے معنے بیان کړے شوی دی، غَبَنُوْا خَبَرَ النَّاقَةِ، "هغوئ ته پته اُولګیده چه دَ هغوئ اُوښه چرته لاړه"۔ غَبَنَ فُلَانًا فِي الْبَيْعِ، "هغه فلانی سړی له په اغستلو خرڅولو کښې دوکه ورکړه"۔ غَبَنَ فُلَانًا، "هغه فلانی سړی له نقصان ورکړو"۔ غُبِنْتُ مِنْ حَقِّيْ عِنْدَ فُلَانٍ، "دَ فلانی سړی نه خپل حق وصولول ځما هیر شو"۔ غَبِيْن، "هغه سړے چه په هغه کښې دَ پوهے کمے وی او چه دَ هغه رائے کمزوری وی"۔ مَغْبُوْن، "هغه سړے چه هغه دوکه اُوخوری"۔ الغبن، الغفلة، النسيان، فوت الحظ، ان يبخس صاحبك في المعاملة بينك و بينه لضرب من الاخفاء، "دَ غبن معنیٰ ده غفلت، هیر، دَ خپلے حصّے نه محرومه پاتے کیدل، دَ یو سړی بل سړی له په غیر محسوس طریقے سره په کاروبار کښې یا په خپله معامله کښې نقصان ورکول"۔ امام حسن بصری اُولیدل چه یو سړے بل سړی له په بیعه کښې دوکه ورکوی نو وے فرمائیل هذا يغبن عقلك، "دا سړے ستا نه بے وقوف جوړوی"۔

دَ دے نه چه کله تغابن لفظ جوړ کړے شی نو په هغې کښې دَ دوو سړو یا دَ زیاتو سړو په منځ کښې دَ غبن راتلو مطلب پیدا کیږی۔ دَ تَغَابَنَ الْقَوْمُ معنیٰ ده دَ څینو خلقو دَ څینو خلقو سره دَ غبن معامله کول۔ یا دَ یو سړی بل سړی ته نقصان رسول او دَ هغه دَ لاسه دَ بل سړی نقصان کیدل۔ یا دَ یو حصّه بل ته مِلاویدل او دَ هغه خپلے حصّے نه محرومه پاتے کیدل۔ یا په تجارت کښې دَ یوے ډلے نقصان کیدل او دَ بلے ډلے نفع کیدل۔ یا څینے خلق دَ څینو خلقو په مقابله کښې غافله یا دَ کمزوری رائے ثابتیدل۔

اُوس به دّ خبرې غور اُوکړئ چه په آیت کښے دَ قیامت په حقله فرمائیلے شوی دی ذٰلِكَ يَوْمُ التَّغَابُنِ ، " هغه ورځ به وی دَ تغابُن " دَ دے الفاظونه بِخپله دا مطلب راوَزی چه په دُنیا کښے خوشپه اوورځ تغابن کیږی ، لیکن دا تغابُن ظاهری دے او دَ نظر دوکه ده ، اصلی او حقیقی تغابُن نهٔ دے - اصل تغابُن به دَ قیامت په ورځ وی - هلته به پته اُولګی چه په اصل کښے نقصانی څوک شو او فائده چا ته اُورسیده - په اصل کښے دَ چا حصّه چا ته مِلاوُ شوه او څوک دَ خپلے حصّے نه محرومه پاتے شو - په اصل کښے چا دوکه اُوخوړه او څوک هوښیار ثابت شو - په اصل کښے چا دَ خپل ژوند ټوله سرمایه په غلط کاروبار کښے اُولګوله او ځان ئے دیواله کړو ، او چا خپل قوتونه او قابلیتونه او کوششونه او مالونه او وختونه دَ نفعے په کاروبار کښے اُولګول او هغه ټولے فائدے ئے حاصلے کړے چه هغه بخکینی سړی ته هم حاصلیدے شوے که چرے هغه دَ دُنیا په حقیقت پوه شوے وے او دوکه شوے نهٔ وے -

مفسّرینو دَ يَوْمُ التَّغَابُنِ په تفسیر کښے ډیر مطلبونه بیان کړی دی چه هغه ټول صحیح دی او په مختلفو اړخونو باندِ رڼړا اچوی - څینو مفسّرینو دَ دے دا مطلب بیان کړے دے چه په هغه ورځ به جنّتیان دَ دوزخیانو هغه حصّه واخلی کومه چه به هغوئ ته په جنّت کښے ملاویدله خو که چرے هغوئ دَ جنتیانو پشان کار کړے وے ، او دوزخیان به دَ جنّتیانو هغه حصّه واخلی کومه چه به هغوئ ته په دوزخ کښے مِلاویدله خو که چرے هغوی په دُنیا کښے دَ دوزخیانو پشان کار کړے وے - دَ دے خبرې تائید دَ بخاری هغه حدیث کوی کوم چه هغه په کتاب الرّقاق کښے دَ حضرت ابوهریرهؓ نه روایت کړے دے چه نبیؐ اُوفرمائیل " کوم سړے چه جنّت ته ځی هغه ته به هغه ځائے ښودلے کیږی چه هغه ته به په دوزخ کښے مِلاویدو که چرے هغه بد عمل کړے وے ، دَ پاره دَ دے چه هغه زیات شکرګذار شی - او کوم سړے چه دوزخ ته ځی هغه ته به هغه ځائے ښودلے کیږی چه هغه ته به په جنّت کښے مِلاویدو که چرے هغه نیک عمل کړے وے ، دَ پاره دَ دے چه هغه زیات افسوس ارمان اُوکړی "

څینو نورو مفسّرینو وائی چه په هغه ورځ به مظلوم دَ ظالم نه دومره نیکیانے واخلی څومره چه هغه ظُلم کړے وی ، یا به په ظالم باندِ دَ مظلوم دومره ګناهونه بار کړے شی څومره چه دَ هغه دَ حق برابر وزن لری - ځکه چه دَ قیامت په ورځ به دَ سړی سره څه مال او زرخونهٔ وی چه ظالم ئے دَ مظلوم دَ حق اداکولو دَ پاره په تاوان کښے ورکړی - هلته خو به بس دَ سړی اَعمال یوه ذریعه بدله وی - نو کوم سړی چه په دُنیا کښے په چا ظلم کړے وی هغه به دَ مظلوم حق په دِ طریقه اداکولے شی چه دَ خپلو نیکونه دَ هغه تاوان اداکړی ، یا دَ مظلوم دَ ګناهونو څه ګناه په جرمانه کښے واخلی - دا خبره هم په ډیرو احادیثو کښے دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم نه نقل کړے شوی ده - دَ بخاری په کتاب الرّقاق کښے دَ حضرت ابوهریرهؓ روایت دے چه نبیؐ فرمائی " چا چه په خپل رُور باندِ څه ظلم کړے وی او دَ هغے بار دَ هغه په ذمه وی نو هغه له پکار دی چه هم دلته دَ هغے بدله ادا کړی ، ځکه چه په آخرت کښے به روپئ اشرفئ خونهٔ وی - هلته به دَ هغه دَ نیکونه څه نیکیانے مظلوم له ورکړے کیږی ، یا که چرے دَ هغه سره نیکیانے نهٔ یوه کیږی نو دَ مظلوم څه ګناهونه به په هغه بار وَلے کیږی " دَ غه شان په مسندِ احمد کښے دَ حضرت جابر بن عبدالله بن انیس روایت دے چه نبیؐ اُوفرمائیل " یو جنّتی به جنّت ته او یو دوزخی به دوزخ ته ترهغے نشی تلے ترڅو چه دَ هغه ظلم بدله ورنهٔ کړے شی کوم چه هغه په چا

کړے وی، اَنُ ترد ے پورے چه دَ یو ے سپیڅ بدله به هم ورکوی" مونږه عرض اُوکړو چه دا بدله به څنګه ورکړے کیږی مونږ خو به په قیامت کښے دَ مال و دولت نه کنګال یو؟ نبیؐ او فرمائیل "دَ خپلو نیکو او بدو نه به بدله ورکړے کیږی" په مسلم او په مُسندِ احمد کښے دَ حضرت ابوهریرهؓ روایت دے چه نبیؐ یو ځل په خپل مجلس کښے دَ خلقو نه تپوس اُوکړو، "پیژنئ چه غریب څوک دے؟" خلقو عرض اوکړو چه په مونږ کښے غریب هغه څوک دے چه دَ هغه سره مال او سامان نهٔ وی ـ نبیؐ اُوفرمائیل "زما په امت کښے غریب هغه دے چه مونځ روژه او زکواة ادا کړی او دَ قیامت په ورځ په دا سے حال کښے حاضر شی چه چا ته ئے کنځلی کړی وی او په چا ئے تور پورے کړے وی، او دَ چا مال ئے خوړلے وی، او دَ چا وینه ئے تویٔ کړی وی، او څوک ئے وهلی ټکولی وی ـ بیا په دے ټولو مظلومانو باندِ دَ هغه نیکیانے تقسیم کړے شی ـ او چه دَ هغه نیکیانے ختمے شی نو بیا دَ هر مظلوم ګناهونه په هغه بار کړے شی او دوزخ ته ورغورزار کړے شی" یو بل حدیث دے چه مُسلم او ابوداوُد دَ حضرت بُریده نه نقل کړے دے، په هغے کښے نبیؐ فرمائی چه "دَ یو مجاهد نه روستو که چرے یو سړی دَ هغه دَ بنځے او دَ هغه دَ کور والو په معامله کښے خیانت اُوکړو نو دَ قیامت په وُرځ به هغه دَ هغے مجاهد مخے ته ودرولے شی او ورته به اُوویلے شی چه دَ دهٔ دَ نیکیانو نه څومره اغستل غواړے هغومره واخله" بیا نبیؐ زمونږ طرفته توجه وکړه اُووے فرمائیل "بیا ستاسو څه خیال دے"؟ یعنی ستاسو څه اندازه ده چه هغه به دَ هغه سره څه پریږدی؟

څینو مفسرینو ویلی دی چه دَ تغابُن لفظ زیات تر دَ تجارت په معامله کښے ویلے کیږی ـ او په قرآن مجید کښے ځائے په ځائے دَ کافرانو او دَ مومن عمل له دَ تجارت سره تشبیه ورکړے شوی ده مومن چه دَ نافرمانیٔ لار پریږدی او دَ اِطاعت قبلوی او خپل سر و مال او محنت دَ خدائے په لار کښے لګوی نو لکه چه هغه دَ نقصان سودا پریږدی او په یو داسے تجارت کښ خپله سرمایه لګوی چه آخر به نفع کوی ـ او یو کافر چه دَ اطاعت لار پریږدی او دَ خدائے دَ نافرمانیٔ او دَ بغاوت په لار کښے خپل هر څه لګوی نو لکه چه هغه یو داسے سوداګر دے چه دَ هدایت په بدله کښے ئے ګمراهی اغستلی ده او آخر به نقصان موسی ـ دَ دواړو نفع او نقصان به دَ قیامت په ورځ څرګند یږی ـ په دُنیا کښے دا کیدے شی چه مومن سرا سر په نقصان کښے وی او کافرلوئے لوئے فائدے حاصلوی ـ لیکن په آخرت کښے به معلومه شی چه په اصل کښے دَ نفع سودا چا کړی ده او دَ نقصان سودا چا کړی ده ـ دا مضمون دَ قرآن مجید په ډیرو ځایونو کښے بیان شوے دے ـ دَ مثال په طور لاندینی آیتونه اُوګوره: البقره، آیتونه ۱۶ ـ ۱۷۵ ـ ۲۰۷ ـ آلِ عمران ۷۷ ـ ۱۷۷ ـ النساء ۷۴ ـ التوبه ۱۱۱ ـ النحل ۹۵ ـ فاطر ۲۹ ـ الصف ۱۰ ـ

یو بل صورت دَ تغابُن دا هم دے چه په دُنیا کښے خلق دَ یو بل سره دَ کفر او دَ فِسق او دَ ظُلم او دَ نافرمانیٔ په کارونو کښے بنه په اطمینان سره امداد کوی او دا بروسه لری چه زمونږه په مینځ کښے ډیر ژور محبت او دوستی ده ـ دَ بد عمله کوَرنو خلق، ګمراهی خورَونکی مشران او دَ هغوئ ملګری، دَ غلو او دَ ډاکوانو ډلے، دَ رشوت خورَو

وَمَنْ يُّؤْمِنْۢ بِاللّٰهِ وَيَعْمَلْ صَالِحًا يُّكَفِّرْ عَنْهُ سَيِّاٰتِهٖ وَ يُدْخِلْهُ جَنّٰتٍ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَآ اَبَدًا ؕ

او چا چه په الله ایمان راوړے دے او نیک عمل کوی[۲۱]، الله به د هغهٔ گناه اوریژوی او هغه به په داسے جنتونو کښے داخل کړی چه لاندِ به ترِ نهرونه بهیږی۔ داخلق به تل تر تله په هغې کښے اوسیږی۔

او دَ ظالمانو افسرانو او مُلا زمانو دوستانه، دَ بے ایمانو سوداگرو، کارخانه دارواو زمیدارو لے، دَ گمراهئ او دَ شرارت او خباثت راپورته کوونکی پارټیانے، او په غټه پیمانه باندِ په ټوله دُنیا کښے دَ ظلم او دَ فساد سرپرست حکومتونه او قومونه، دَ دے ټولو په خپل منځ کښے سارو باز هم په دِے بروسه باندِ قایم دے۔ په دِے کښے چه دَ هر یو سره څوک تعلق لری هغوی په دِے گمان کښے پراته دی چه موږه دَ یو بل سره دُوستان یُو او زموږه په خپل منځ کښے ډیره کامیابه ملگرتیا چلیږی۔ خو چه کله دا خلق آخرت ته اوُرسیږی نو هغوی ټولو ته به ناساپه دا خبره څرگنده شی چه موږه ټولو غټه دوکه خوړلی ده۔ هر یو ته به پته اولږی چه ما څوک خپل بهترین پلار، رُور، ښځه، خاوند، اولاد، دوست، مشر، لیډر، پیر، مُرید یا مرستیال او مددگارگڼړو هغه په اصل کښے ځما دَ ټولو نه زیات بدترین دُشمن وُو۔ هره خپلولی او دوستانه او مینه به په دُشمنئ کښے بدله شی۔ ټول به یو بل ته کنځلی کوی، په یو بل به لعنت وائی، او هر یو به دا غواړی چه دَ خپلو گناهونو زیاته ذمه واری په بل ور واچوی او هغه له دَ سختونه سخته سزا ورکړی۔ دا مضمون هم په قرآن مجید کښے ځائے په ځائے بیان کړے شوے دے مثلاً یو څو آیتونه اوُگوره: البقره ۱۶۷۔ الاعراف ۳۷ تا ۳۹۔ ابراهیم ۲۱-۲۲۔ المومنون ۱۰۱۔ العنکبوت ۱۲۔ ۱۳۔ ۲۵۔ لقمٰن ۳۳۔ الاحزاب ۶۷۔ ۶۸۔ سبا ۳۱ تا ۳۳۔ فاطر ۱۸۔ الصّٰفّٰت ۲۷ تا ۳۳۔ صٓ ۵۹ تا ۶۱۔ حٰمٓ السجدة ۲۹۔ الزُخرُف ۶۷۔ الدّخان ۴۱۔ المعارج ۱۰ تا ۱۴۔ عبس ۳۴ تا ۳۷۔

[۲۱] په الله باندِ دَ ایمان راوړلو نه مُراد یوازے دا منل نهٔ دی چه الله شته، بلکه په هغه طریقه ایمان راوړل مُراد دی څنگه چه الله تعالیٰ پخپلهٔ دَ خپل رسول او دَ خپل کتاب په ذریعه ښودلے دے۔ په دے ایمان کښے په پیغمبرئ او په کتاب باندِ ایمان راوړل پخپله شامل دی۔ دغه شان دَ نیک عمل نه مُراد هم هر هغه عمل نهٔ دے چه سړی په خپله نیک گڼړلے وی یا چه انسانانو پخپله دَ اخلاقو کوم معیار مقرر کړے وی او دَ هغې پیروی ئے اختیار کړی وی، بلکه دَ دے نه مُراد هغه نیک عمل دے چه هغه دَ خدائے دَ رالیږلی شوی قانون مطابق وی۔ نو چاله په دِے دوکه کښے پریوتل نهٔ دی پکار چه گنی دَ رسول او دَ کتاب دَ واسطے نه بغیر دَ الله دَ منلو او دَ نیک عمل کولو هغه فائیدے دی کومے چه وړاندِ بیانیږی۔ څوک چه قرآن مجید په سوچ فکر سره اوُگوری نو دَ هغه نه به دا خبره پټه پاتے نشی چه قرآن مجید دِے قِسم ایمان ته ایمان بالله او دِے قِسم عمل ته عملِ صالح هډو دَ سر نه وائی نهٔ۔



ذٰلِكَ الْفَوْزُ الْعَظِيْمُ ۝۹ وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَكَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَآ اُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ النَّارِ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا ۭ وَبِئْسَ الْمَصِيْرُ ۝۱۰ مَآ اَصَابَ مِنْ مُّصِيْبَةٍ اِلَّا بِاِذْنِ اللّٰهِ ۭ وَمَنْ يُّؤْمِنْۢ بِاللّٰهِ يَهْدِ قَلْبَهٗ ۭ وَاللّٰهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمٌ ۝۱۱ وَاَطِيْعُوا اللّٰهَ وَ

دالویه کامیابی ده ـ اوچه کومو خلقو کفر کړے دے اوزمونږه آیتونه[۲۲] دروغ گڼلی دی هغوی دوزخیان دی چه همیشه به په دوزخ کښے اوسی اوهغه ډیر بد ځائے دے اوسیدو دے ـ ع

څه مصیبت[۲۳] چه راځی هغه دَ الله په حکم سره راځی[۲۴] ـ څوک چه په الله ایمان لری الله دَ هغه زړه ته هدایت نصیب کوی،[۲۵] اوالله ته دَ هر څیز علم دے[۲۶] ـ دَ الله حکم ته غاړه کیږدئ او

[۲۲] دَ دے الفاظو نه پخپله دَ کفر مطلب څرګندیږی ـ دَ الله دَ کتاب آیتونه دَ الله دَ آیتونو په حیثیت سره نهٔ منل، اوهغه حقیقتونه نهٔ منل چه په دِ دے آیتونو کښے بیان شوی دی، او په هغه حکمونو باندِ دَ عمل کولو نه انکار کول کوم چه په دِ دے آیتونو کښے بیان شوی دی، هم دا کفر دے او دَ دے انجام هغه دے کوم چه وړاندِ بیانیږی ـ

[۲۳] اُوس خبره مومنانو ته شروع شوه ـ دلته دا یاد ساتل پکار دی چه په کومه زمانه کښے دا آیتونه نازل شوی دی هغه دَ مسلمانانو دَپاره سخته دَ مصیبتونو زمانه وه ـ هغوی په کلونو کلونو په مکه کښے دَ کافرانو ظلمونه برداشت کړی وُو او بیا ئے هر څه پریښودی وُو او مدینے ته راغلی وُو ـ او په مدینه کښے چه کوم حق پرستو خلقو هغوی له پناه ورکړی وه په هغوی باندِ دوه مصیبتونه راغلی وُو ـ یو طرفته هغوی دَ مهاجرینو سره امداد کولو چه دَ سَوُونو په تعداد کښے دَ عربو دَ مختلفو حصّو نه دَ هغوی طرفته راروان وُو، او بل طرفته چه په عربو کښے دَ اسلام خوړه دُشمنان وُو هغوی ټول دَ هغوی مخالف شوی وُو ـ

[۲۴] دا خبره دَ سورة الحدید په آیتونو ۲۲ او ۲۳ کښے هم تیره شوی ده او هلته دَ ۳۹ نمبر حاشیے نه دَ ۴۲ نمبر حاشیے پورے مونږه دَ دے تشریح کړی ده ـ چه په کومو حالاتو کښے او دَ کوم مقصد دَپاره دا خبره هلته حاصله شوی وه، هم په هغسے حالاتو کښے دَ هغے مقصد دَپاره دا دلته بیا دوباره کیږی ـ دَ مسلمانانو په ذهن کښے چه کوم مقصد کینول دی هغه دا دے چه نهٔ مصیبتونه پخپله راځی، نهٔ په دُنیا کښے دَ چا دا طاقت شته چه په خپل اختیار سره په چا باندِ څه مصیبت راولی ـ دا خو سراسر دَ الله اختیار دے چه په چا باندِ مصیبت راولی یا نهٔ راولی ـ او دَ الله په هر کار کښے څه نه څه حکمت ضرور وی خو انسان پرِ نهٔ پوهیږی ـ

[۲۵] یعنی صرف په الله باندِ ایمان لرل هغه څیز دے چه انسان په ګنړو مصیبتونو کښے په نهغه لاره

باندِ برقرار لری او په سخت حالت کښې ئې هم خپې نهٔ خوځیږی۔ دَکوم سړی په زړهٔ کښې چه ایمان نهٔ وی هغه مصیبتونه یا خودَ اتفاقاتو نتیجه گنړی، یا دَ دُنیا طاقتونه دَ هغې په راوستلو اولړے کولو کښې اثرناک گنړی، یا هغه دَ داسے خیالی طاقتونو عمل گنړی چه هغه انسان په خپل وَهَم کښې دَ نفع اودَ نقصان رسولو دَپارهٔ مقرر کړی دی، یا خو خدائے فاعلِ مختار یعنی کامل اختیار والا منی لیکن دَ صحیح ایمان سره ئې نهٔ منی۔ په دِے ټولو مختلفو صورتونو کښې سړے بے حوصلے پاتے کیږی۔ دَیو خاص حده پورے خو هغه مصیبت برداشت کړی، لیکن دَ هغې نه زیّوستو هغه خپل شکست اُومنی، هر دربارته ټیټیږی، هر ذلت قبلوی، دَ رذالت هر کارکول ورته آسان شی، هر غلط کارته تیاریږی۔ خدائے ته دَ کنځلو پورے ورځی، آن تردِے چه خودکشی هم کوی۔ دَ دِے نه برعکس چه څوک دَ زړهٔ په صدق سره دا منی چه ټول هرڅه دَ الله په لاس کښې دی او خاص هغه دَ دِے کائناتو مالک اوبادشاه دے، او خاص دَ هغه په حکم سره مصیبت راځی اولرے کیږی، نو دَ هغه زړهٔ ته الله دَ صبر اودَ رضامندئ توفیق ورکوی، هغه ته دَ لوړ همت سره دَ هرقسم دَ حالاتو دَ مقابلے کولو طاقت ورکوی، دَ خرابو نه په خرابو حالاتو کښې هم دَ هغه مخے ته دَ الله دَ فضل دَ اُمید رڼا روښانه وی، او دَ څومره سخت مصیبت هم هغه دومره کم همته کوی نهٔ چه هغه دَ نیغې لارے نه بے لارے شی، یا دَ باطل مخے ته سرښکته کړی، یا دَ الله نه سِوا دَ بیل چا دَ دَرنه دَ خپل درد شِفا اُوغواړی۔ دغه شان هر مصیبت چه راځی نو دَ هغه دَپارهٔ زیات خیر راوړی او یو مصیبت هم په حقیقت کښې دَ هغه دَپارهٔ مصیبت نهٔ وی بلکه دَ نتیجے په اعتبار سره سراسر رحمت جوړیږی، ځکه چه که هغه په دغه مصیبت کښې ختم شی یا تر په خیریت سره بچ شی، نو په دواړو صورتونو کښې هغه دَ خپل رب په آزمینت کښې کامیابیږی۔ هم دا خبره په یو متفق علیه حدیث کښې رسول الله صلی الله علیه وسلم په دِے طریقه بیان کړی ده، عجباً للمؤمن لا یقضی الله لهٗ قضاءً الا کان خیرًا لهٗ، اِنْ اَصابتهٗ ضراء صبر، فکان خیرًا لهٗ وَ اِن اصابتهٗ سرّاء شکر فکان خیرًا له، ولیس ذالکَ لِاَحدٍ الاّ المؤمن۔" دَ مؤمن کار هم عجیبه دَے، الله چه دَ هغه په حق کښې کومه فیصله کوی هغه دَ هغه دَپارهٔ ښه وی۔ چه مصیبت پرِ راشی نو صبر کوی، او دا دَ هغه دَپارهٔ خیر دے، چه خوشحالی پرِ راشی نو شکر اُوباسی، او دا هم دَ هغه دَپارهٔ خیر دے۔ دا کار دَ مومن نه بغیر دَ بل چا دَپارهٔ نهٔ دے۔"

۲۶ دلته دَ دِے دوه معنے کیدے شی۔ یوه دا چه الله ته معلومه ده چه کوم سړے واقعی ایمان لری او کوم قِسم ایمان لری۔ نو هغه دَ خپل علم په بُنیاد باندِ هغه زړهٔ ته هدایت کوی چه په کوم کښې ایمان وی او هغه قِسم هدایت کوی کوم قِسم ایمان چه په هغه کښې وی۔ دوَیم مطلب دا هم کیدے شی چه الله دَ خپلو مومنانو بندگانو دَ حالاتو نه ناخبره نهٔ دے۔ هغه ایمان ته را اُوبلل او دَ ایمان سره ئې دَ دُنیا په سختو آزمینتونو کښې واچول نو بیا ئې هغوئ هم په دغه حالت کښې پرے نښودل۔ الله ته علم دے چه په کوم مومن باندِ په دُنیا کښې څه تیریږی او هغه په مختلفو حالاتو کښې دَ خپل ایمان تقاضے په کومه طریقه پوره کوی۔

اَطِیْعُوا الرَّسُوْلَ ۚ فَاِنْ تَوَلَّیْتُمْ فَاِنَّمَا عَلٰی رَسُوْلِنَا الْبَلٰغُ الْمُبِیْنُ ﴿۱۲﴾ اَللّٰهُ لَاۤ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ؕ وَعَلَی اللّٰهِ فَلْیَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُوْنَ ﴿۱۳﴾ یٰۤاَیُّهَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوْۤا اِنَّ مِنْ اَزْوَاجِكُمْ وَاَوْلَادِكُمْ عَدُوًّا لَّكُمْ فَاحْذَرُوْهُمْ ۚ وَاِنْ تَعْفُوْا وَتَصْفَحُوْا وَتَغْفِرُوْا فَاِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ

دَ رسول خبره اُوَمَنئ ـ خوکه تاسو دَ حکم منلو نه مخ واړَوُو نو زموږ په رسول باندِ دَ صفا صفا حق رَسولو نه سِوا بله هیڅ ذمه واری نشته ـ[27] الله هغه دَے چه بے دَ هغه نه بل خدا ئے نشته ، نو مومنانو له خاص په هغه باندِ بروسه سا تل پکار دی ـ[28]

اے هغه خلقو چه ایمان مو راوړے دَے ، ستاسو په ښځو او ستاسو په اَولا دکښِه ځینی ستاسو دُشمنان دی ، دَ هغوئ نه هوښیار اُوسئ ـ او که چرے تاسو دَ معافئ نه او دَ چشم پوشئ نه کار واخلئ او بخښنا نه اُوکړئ نو الله بخښونکے

نو اطمینان لرئ چه کوم مصیبت دَ الله په حکم سرہ راځی ، دَ الله په علم کښِے ضرور دَ هغې څه لو یه فایده وی او په هغې کښِے لوئ خیر پټ پروت وی ، ځکه چه الله دَ خپلو مومنا نو بند گانو خیر خواه دَے ، بغیر دَ څه وجے نه هغوئ په مصیبت کښِے اخته کول نه ٔ غواړی ـ

[27] دَ روان عبارت په لحاظ سرہ دلته دَ دے فقرے مطلب دا دَے چه که ښه حالات وی او که خراب حالات وی ، په هر حال کښِے دَ الله او دَ هغه دَ رسول په اطاعت باندِ قایم اُوسئ ـ لیکن که چرے تاسو دَ مصیبتونو نه اُویَریدئ او دَ اِطاعت یعنی دَ حکم منلو نه مو مخ واړَوُو نو خپل نقصان به اُوکړئ ـ زموږ په رسول باندِ صرف دا ذمه واری وه چه تاسو ته نیغه لار ټهیک ټهیک اُوښائی ، او دَ هغې حق رسول ادا کړے دَے ـ

[28] یعنی ، دَ خدائئ ټول اختیارات یوازے دَ الله تعالیٰ په لاس کښِے دی ـ بل څوک هډو دَ سرنه دا اختیارات نهٔ لری چه ستاسو به یا بد تقدیر جوړ کړی ـ ښه وخت را تلے شی خو خاص دَ هغه په اجازت سرہ راتلے شی ، او خراب وخت لرے کیدے شی خو خاص دَ هغه په لرے کیدو لرے کیدے شی ـ نو کوم سړے چه دَ زړہ په صدق سرہ الله یو خدا ئے منی دَ هغه دَ پاره دَ دے نه سِوا بله څه لار نشته چه په الله بروسه اُولری او په دُنیا کښِے دَ یومن په حیثیت سرہ خپل کار په دے یقین سرہ سرته رَسَوی چه په هر حال کښِے خیر هم په هغه لار کښِے دے کومه چه الله ښائی ـ که په دِے لار کښِے کامیابی نصیب کیږی نو خاص دَ الله په امداد او تائید سرہ به نصیب کیږی ، بل دویم طاقت نشته چه امداد اُوکړی ـ او په دِے لار کښِے که مشکلات او مصیبتونه او خطرے او هلاکتونه مخے ته راځی

رَّحِیْمٌ ﴿۱۴﴾ اِنَّمَآ اَمْوَالُكُمْ وَاَوْلَادُكُمْ فِتْنَةٌ ۚ وَاللّٰهُ عِنْدَهٗٓ اَجْرٌ عَظِیْمٌ ﴿۱۵﴾

اورحم کوونکے دے۔[۲۸] ستاسومال اوستاسواولاد خوبوآزمیښت دے، اوخاص الله دے چه دهغه سره لویٔ اجردے۔[۲۹]

---

نو دَ هغې نه هم بچ کوونکے خاص الله دے، بل هیڅوک بچ کوونکے نشته۔

**۲۹** دَ دے آیت دوه مطلبونه دی۔ دَ یو مطلب په لحاظ سره دَ دے نه مُراد هغه گنړ مشکلات دی کوم چه دَ خدا ئے په لار کښے مومنانو سره ته دَ خپلو بیبیانو نه اومومنا ښځو ته دَ خپلو خاوندانو نه اوموراوپلار ته دَ خپلو بچونه پیښیږی۔ په دُنیا کښے ډیر کم دا سے کیږی چه یو سړی ته دا سے ښځه او یو ښځے ته دا سے خاوند مِلاوُ شی چه هغه په ایمان اوپه صداقت کښے دَ یو بل پوره پوره مددگاران وی، او بیا دَ دواړو بچی هم دا سے وی چه دَ عقیدے اودَ عمل اودَ اخلاق په اعتبار سره دَ هغوئ دَ پاره دَ خوشحالئ ذریعه وی۔ کنئ نو عام طور کیږی دا سے چه که خاوند نیک او ایماندار وی نو ښځه او اولاد هغه ته دا سے مِلاویږی چه دَ هغه دیانت او امانت او صداقت په خپل حق کښے بد قسمتی گنړی او دا غواړی چه خاوند او پلار دَ هغوئ دَ پاره دَ دوزخ خطره په خپل سر واخلی او دَ حلالو او دَ حرامو تمیز پریږدی او په هره طریقه دَ عیش او عشرت او دَ فِسق و فجور ژوند جوړ کړی۔ او دَ دے برعکس اکثر دَ یو نیکے مُومِنے ښځے ته دا سے خاوند مِلاویږی چه دَ هغې دَ شریعت پابندی دَ هغه هیڅ خوښه نهٔ وی، او اولاد هم دَ پلار په نقشِ قدم روان شی او دَ خپلے گمراهئ او بد عملئ په وجه دَ مور ژوند تنگوی۔ بیا خاص طور چه کله دَ کفر او دَ اِسلام په جنگ کښے دَ یو مومن دَ ایمان سره دا بنائ چه دَ الله او دَ هغه دَ دین دَ خاطره نقصانات برداشت کړی، قِسما قِسم خطرے په سر واخلی، خپل ملک پریږدی او هجرت اوکړی، یا په جهاد کښے دَ سر قربانی پیش کړی، نو دَ هغه په لار کښے دَ هغه اهل و عیال دَ ټولو نه زیات خنډ جوړیږی۔

دَ دویم مطلب تعلق دَ هغه خاصو حالاتو سره دے کوم چه به دَ دے آیتونو دَ نازلیدو په زمانه کښے اکثرو مسلمانانو ته پیښیدل او نن هم هر هغه کَس ته پیښیږی چه هغه په غیر مسلمه خلقو کښے اسلام قبول کړی۔ په هغه وَخت کښے به په مکّه کښے او دَ عربو په نورو ځایونو کښے عام طور دا سے کیدل چه یو سړی ایمان قبول کړے دے، خو ښځه او بچی ئے نهٔ صرف اسلام قبلولو ته تیار نهٔ دی، بلکه بلخپله دَ هغه دَ اسلام نه دَ اړولو کوشش کوی۔ او هم دَ غسے حالات به هغه ښځو ته پیښیدل چه هغوئ به په خپل خاندان کښے یوازے اسلام قبول کړو۔

دا دواړه قِسمه حالات چه کوم مومنانو ته پیښ وی هغوی ته دَ دے خبری فرمائیلے شوی دی:

دَ ټولو نه اوّل هغوی ته خبردارے ورکړے شوے دے چه دَ دُنیا دَ رشتے په لحاظ سره اگرچه دا خلق انسان ته دَ ټولو نه زیات خواږه وی، لیکن دَ دین په لحاظ سره دا ستاسو "دُشمنان" دی۔ دا دُشمنی که په دے حیثیت سره وی چه هغوئ تاسو دَ نیکئ نه منع کوی او بدئ ته مواږ وی، یا که په دے حیثیت سره وی چه

هغوئ تاسو دَ ایمان نه منع کوی او کفر ته مورا کاږی، او که په دې حیثیت سره وی چه دَ هغوئ تړله مینه دَ کافرانو سره وی او ستاسو په ذریعه که دَ مسلمانانو دَ جنګی رازونو په حقله څه خبره دَ هغوئ په عِلم کښې راشی نو هغه دَ اِسلام دُشمنانو ته رسَوی، نو دَ دے نه دَ دُشمنئ په رنګ کښې فرق خو را تلے شی، لیکن په هرحال دا ده دُشمنی، او که تاسو ته ایمان خوږ وی نو بیا تاسو له پکار دی چه هغوئ دُشمنان اُوګڼئ، دَ هغوئ په مینه کښې دا خبره هیرَول نهٔ دی پکار چه ستاسو او دَ هغوئ په منځ کښې دَ ایمان او دَ کفر یا دَ حکم منلو او نهٔ منلو غټ دیوال ولاړ دے۔

دَ دے نه روستو اُوفرمائیلے شو چه دَ هغوئ نه هوښیار اُوسئ۔ یعنی دَ هغوی دَ دُنیا جوړَولو دَ پاره خپل آخرت مهٔ بربادَوئ۔ په زړونو کښې دَ هغوئ سره دومره زیاته مینه مهٔ لرئ چه ستاسو دَ الله او دَ رسول او دَ اسلام سره کوم تعلق دے چه په هغې کښې څه خلل راشی۔ په هغوئ دومره اعتماد هیڅکله مهٔ کوئ چه ستاسو دَ بے احتیاطئ په وجه دَ مسلمانانو دَ جماعت رازونه هغوئ ته معلوم شی او هغه دُشمنانو ته اُورَسی۔ دا هم هغه خبره ده دَ کومے نه چه رسول الله صلی الله علیه وسلّم په یو حدیث کښې مسلمانان خبردار کړی دی چه يُؤْتٰى بِرَجُلٍ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ فَيُقَالُ اَكَلَ عِيَالُهٗ حَسَنَاتِهٖ۔ "یو سړے به دَ قیامت په ورځ راوستلے شی او اُوبه وئیلے شی چه دَ ده بال بچ دَ دهٔ ټولے نیکیانے اُوخوړلے"۔

په آخر کښې اُوفرمائیلے شو چه "که چرے تاسو دَ معافئ نه کار واغستو او بخښنانه موا اُوکړه نو الله غفور او رحیم دے"۔ دَ دې مطلب دا دے چه دَ هغوئ دَ دُشمنئ نه تاسوله صرف په دې وجه خبردار کړے کیږی چه تاسو دَ هغوئ نه هوښیار اُوسئ او دَ هغوئ نه دَ خپل دین دَ بچ کولو فکر اُوکړی۔ دَ دې خبردارئ مقصد هرګز دا نهٔ دے چه ښځو او بچو وهه، یا دَ هغوئ سره ډیره سختی کوه، یا دَ هغوئ سره تعلقات داسے خراب کړه چه ستاسو دَ کورنئ ژوند نه عذاب جوړ شی۔ دا ځکه چه دَ داسے کولو دوه نقصانونه بالکل واضحه دی۔ یو دا چه په دې سره دَ ښځے او دَ بچو دَ اصلاح دروازه دَ همیشه دَ پاره دَ بند یدو خطره ده۔ دویم دا چه په دې سره په خلقو کښې دَ اِسلام خلاف اُلټا بدګمانیانے پیدا کیدے شی او دَ خوا اُوشا خلقو په نظر کښې دَ مسلمانانو دا خلاقو دا نقشه جوړیږی چه دَ اِسلام قبلولو سره هغه په خپله پخپل کور کښې دَ خپل بال بچ دَ پاره سخت او بد مزاجه جوړیږی۔

په دې سلسله کښې دا خبره هم په ذهن کښې ساتل پکار دی چه دَ اسلام په شروع کښې به کله خلق نوَی نوَی مسلمانیدل، نو هغوئ ته به یو مشکل په هغه وخت کښې پیښید وچه کله به دَ هغوی مور او پلار کافران وُو او په هغوئ به ئے دا د باؤ اچَوو چه دَ دې نوَی دین نه واوړی۔ او دویم مشکل به په هغه وخت کښې وُو چه کله به دَ هغوئ ښځے او بچی (یا که به ښځه وه نو دَ هغوئ خاوندان او بچی) به په کفر باندې ټینګ ولاړ وُو او دَ حق دین دَ لارے نه به ئے دَ هغوئ دَ اړولو کوشش کولو۔ دَ اولنی مشکل په حقله دَ سورۃ عنکبوت په اتم آیت کښې او دَ سورۃ لُقمان په څوارلسم او پنځلسم آیتونو کښې دا حکم اُوشو چه دَ دین په معامله کښې دَ مور او پلار خبره هرګز مهٔ منئ، البته دَ دُنیا په معاملاتو کښې دَ هغوئ سره ښه سلوک کوئ۔ دَ دویم مشکل په حقله حکم دلته بیان شوے چه دَ خپل بال بچ نه دَ خپل دین دَ بچ کولو فکر خو ضرور کوئ، لیکن دَ هغوئ سره دَ سختئ سلوک مهٔ کوئ، بلکه دَ نرمئ او دَ معافئ نه کار اخلئ۔ (دَ زیاتے تشریح دَ پاره اُوګوره تفهیم القرآن، دویم جلد، التوبه، آیتونه ۲۳-۲۴۔

فَاتَّقُوا اللّٰهَ مَا اسْتَطَعْتُمْ وَاسْمَعُوْا وَاَطِيْعُوْا وَاَنْفِقُوْا خَيْرًا لِّاَنْفُسِكُمْ ۗ وَمَنْ يُّوْقَ شُحَّ نَفْسِهٖ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ ﴿۱۶﴾

نوچه ترڅو پورې چه ستاسو په وَس کښې وی د الله نه يَرَه کوئ[۳۱]، او خبره اورئ او حکم منئ، او خپل مال خرچ کوئ دا ستاسو دَپاره بهتره ده ـ څوک چه دَخپل زړه دَ تنګسيا نه محفوظ پاتې شو بس هم هغوئ کاميابی موندونکی[۳۲] دی ـ

پنځم جلد، المجادله، حاشيه ۳۷ـ الممتحنه، حاشيې ۱ تا ۳ ـ المنافقون، حاشيه ۱۸ ـ

۳۰ه دَ تشريح دَپاره اُوګوره تفهيم القرآن دويم جلد، الانفال، حاشيه ۲۳ـ په دې موقع دَرسول الله صلی الله عليه وسلم دا حديث هم په نظر کښې ساتل پکار دی چه طَبرانی دَ حضرت ابومالک اَشعَری[رض] نه روايت کړے دے چه" ستا اصلی دُشمن هغه نهٔ دے چه که تهٔ ئے قتل کړې نو ستا دَپاره کاميابی ده او که هغه تا قتل کړی نو ستا دَپاره جنّت دے، بلکه ستا اصلی دُشمن، کيدے چه ستا خپل هغه بچے وی کوم چه ستا دَ صُلب نه پيدا شوے وی، بيا ستا دَ ټولو نه غټ دُشمن ستا هغه مال دے چه تهٔ ئے مالک ئے" نو ځکه الله تعالیٰ دلته هم او په سورة انفال کښې هم دا فرمائيلی دی چه که چرې تاسو خپل ځان دَ مال اودَ اولاد دَ فتنې نه بچ کړو، او دَ هغوئ په مينه باندې مودَ الله مينه غالب کړه نو ستاسو دَپاره دَ الله سره ډير لوئ اجر دے ـ

۳۱ه په قرآن مجيد کښې په يو ځائے کښې فرمائيلے شوی دی اِتَّقُوا اللّٰهَ حَقَّ تُقٰتِهٖ، " دَ الله نه داسې اُويَريږئ لکه څنګه چه دَ هغه نه دَ يَرې حق دے " (آلِ عمران ـ ۱۰۲)ـ په بل ځائے کښې فرمائی لَا يُكَلِّفُ اللّٰهُ نَفْسًا اِلَّا وُسْعَهَا ، " الله په يو نفس باندې دَ هغه دَ وَس نه زيات بوج نهٔ اچَوی" (البقره ۲۸۶)ـ او دلته فرمائيلے کيږی چه " ترڅو پورې ستاسو په وَس کښې وی دَ الله نه يَره کوئ" په دې درے واړو آيتونو چه غور اوکړے شی نو معلوميږی چه اولنی آيت هغه معيار زمونږ مخې ته ږدی چه هر مومن له هغې ته دَ رسيدلو کوشش پکار دے ـ دويم آيت دا اصولی خبره مونږ ته ښائی چه دَ وَس نه دَ زيات کار کولو مطالبه دَ چا نه نهٔ ده شوې، بلکه دَ الله په دين کښې دَ سړی نه بس هغومره مطالبه ده څومره چه هغه وَس لری ـ او دا آيت هر مومن ته هدايت کوی چه هغه دِ دَ تقویٰ په کوشش کښې دَ خپله وَسه پورې هيڅ کمے نهٔ پريږدی ـ ترڅو چه ممکن وی دَ الله تعالیٰ حکمونه دِ منی او دَ هغه دَ نافرمانئ نه دِ ځان ساتی ـ په دې معامله کښې که دَ ناراستئ نه کار واغستے شو نو دَ سزا نه به بچ نشی ـ البته چه کوم څيز دَ چا دَوَس نه بهر وی ( او دا فيصله الله ښه کولے شی چه کوم څيز واقعی دَ چا دَ وَس نه بهر وُو) نو دَ هغې تپوس به دَ هغه نه نهٔ کيږی ـ

۳۲ه دَ تشريح دَپاره اُوګوره تفهيم القرآن، پنځم جلد، الحشر، حاشيه ۱۹ـ

إِنْ تُقْرِضُوا اللَّهَ قَرْضًا حَسَنًا يُضَٰعِفْهُ لَكُمْ وَيَغْفِرْ لَكُمْ ۚ وَاللَّهُ شَكُورٌ حَلِيمٌ ﴿١٧﴾ عَٰلِمُ الْغَيْبِ وَالشَّهَٰدَةِ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ ﴿١٨﴾

ع ۲ ۱۶

که چرے تاسو الله له قرضِ حَسَن ورکړو نو هغه به ئے درله په څوځو چنده زيات درکړی[۳۳] او ستاسو ګناهونه به معاف کړی، الله ډير قدردان او صبرناک دے[۳۴]، پټ او ښکاره په هرڅه بانِدِ پوهه دے، زبردست دے او حکيم دے۔ ع

[۳۳] دَ تشريح دَپاره اُوګوره تفهيم القرآن، اول جلد، البقره، حاشيه ۲۶۷- المائده، حاشيه ۳۳- پنځم جلد، الحديد، حاشيه ۱۶-

[۳۴] دَ تشريح دَپاره اُوګوره تفهيم القرآن، څلورم جلد، فاطر، حاشيے ۵۲- ۵۹- الشورٰی، حاشيه ۴۲-

---

# الطَّلاق

**نوم** | دَ دې سورة نوم هم الطّلاق نهٔ دے، بلکه دا دَ دې دَ مضمون عنوان هم دے، ځکه چه په دې کښې دَ طلاقو حکمونه بیان شوی دی۔ حضرت عبدالله بن مسعودؓ دې ته سُورة النِّساءِ القُصریٰ هم ویلے دے یعنی وړوکے سورة نساء۔

**دَ نازلیدو زمانه** | حضرت عبدالله بن مسعودؓ صفا فرمائیلی دی، او دَ سورة دَ مضمون نه هم دا معلومیږی چه دا لاژ ما دَ سورة بقرے دَ هغه آیتونو نه روستو نازل شوے دے په کومو کښې چه دَ طلاقو حکمونه په اوّل ځل شامل شوی وُو۔ اګرچه دا ویل ګران دی چه دَ دې دَ نازلیدو ټیک زمانه څه ده، لیکن په هر حال دَ روایتونو نه دومره ضرور معلومیږی چه کله دَ سورة بقرے په حکمونو کښې خلقو دَ نهٔ پوهتیا په وجه غلطیانے شروع کړے، نو پس دَ هغے الله تعالیٰ دَ هغوئ دَ اصلاح دَ پاره دا هدایات نازل کړل۔

**موضوع او مضمون** | دَ دې سورة په حکمونو باندې دَ ځان پوهه کولو دَ پاره ضروری ده چه هغه هدایات بیا په ذهن کښې تازه کړے شی کوم چه دَ دې نه مخکښې په قرآن مجید کښې دَ طلاق او دَ عدّت په حقله بیان شوی دی؛

اَلطَّلَاقُ مَرَّتٰنِ ، فَاِمْسَاكٌۢ بِمَعْرُوْفٍ اَوْتَسْرِيْحٌۢ بِاِحْسَانٍ ( البقره ـ ۲۲۹)۔
"طلاق دوه ځله دی، بیا خو یا ښځه په صحیح طریقه را منع کړے شی، یا دِ په ښه طریقه رخصت کړے شی"

وَالْمُطَلَّقٰتُ يَتَرَبَّصْنَ بِاَنْفُسِهِنَّ ثَلٰثَةَ قُرُوْٓءٍ ..... وَبُعُوْلَتُهُنَّ اَحَقُّ بِرَدِّهِنَّ فِىْ ذٰلِكَ اِنْ اَرَادُوْٓا اِصْلَاحًا" ( البقره ـ ۲۲۸)۔ او طلاقه شوی ښځه دِ ( دَ طلاق نه روستو) دَ دریو حیضو پورے خپل ځان په انتظار کښې اوساتی ..... او دَ هغوی خاوندان په دِ مے موده کښې دَ ننه دَ هغوی دَ واپس اغستلو حقدار دی که چرے هغوی اصلاح ته تیار وی۔

فَاِنْ طَلَّقَهَا فَلَا تَحِلُّ لَهٗ مِنْۢ بَعْدُ حَتّٰى تَنْكِحَ زَوْجًا غَيْرَهٗ ..... ( البقره ـ ۲۳۰)۔ "بیا که چرے هغه (په دریم ځل) هغه له طلاق ورکړی نو دَ دے نه روستو به هغه دَ هغه دَ پاره نهٔ حلالیږی ان تر دے پورے چه دَ هغه ښځے نکاح دَ بل چا سره اوشی.....".

إِذَا نَكَحْتُمُ الْمُؤْمِنٰتِ ثُمَّ طَلَّقْتُمُوهُنَّ مِنْ قَبْلِ أَنْ تَمَسُّوهُنَّ فَمَا لَكُمْ عَلَيْهِنَّ مِنْ عِدَّةٍ تَعْتَدُّونَهَا (الاحزاب ـ ۴۹) ـ " هركله چه تاسو د مومنانو ښځو سره نكاح اُوكړئ او بيا هغوئ له د لاس وروړلو نه مخكښې طلاق وركړئ نو ستاسو دپاره په هغوئ باندې څه عدت لازم نهٔ دے چه د هغې د پوره كولو مطالبه تاسو اُوكړے شئ "۔

وَالَّذِينَ يُتَوَفَّوْنَ مِنْكُمْ وَيَذَرُونَ أَزْوَاجًا يَتَرَبَّصْنَ بِأَنْفُسِهِنَّ أَرْبَعَةَ أَشْهُرٍ وَعَشْرًا (البقره ـ ۲۳۴) ـ " او په تاسو كښې چه كوم خلق مړه شي او بيبيا نے تر روستو پاتے شي نو هغوئ د څلور مياشتے اُولس وَرځے ځان منع سا تي "۔

په دے آيتونو كښې چه كومے قاعدے مقرر كړے شوے دي هغه دا دي:

(۱) يو سړے خپلې ښځې له د زياتو نه زيات درے طلاق وركولے شي۔

(۲) د يو يا د دوو طلاقو وركولو نه روستو په عدّت كښې د ننه خاوند ته د رجوع كولو حق حاصل دے او چه عدّت تير شي نو كه هغوئ دواړه بيا نكاح كول غواړي نو كولے شي، د دے دپاره د تحليل څه شرط نشته۔ ليكن كه سړے درے طلاقه وركړي نو په عدّت كښې د ننه د رجوع كولو حق ختميږي او دوباره نكاح هم هله كيدے شي چه د هغې ښځې نكاح د بل سړي سره اُوشي او هغه سړے ورله بيا چرته په خپل مرضا سره طلاق وركړي۔

(۳) مَدخوله ښځه يعنې كومه ښځه چه وادهٔ شوي وي او حيض يعني مياشتينږ ے نا جوړتيا ئے كيږي نو د هغې عدّت دا دے چه د طلاقو نه روستو هغې ته درے ځله حيض را شي۔ د يو يا د دوو طلاقو وركولو نه روستو د دے عدّت مطلب دا دے چه هغه ښځه لا د هغه سړي په نكاح كښې ده او هغه ورته په عدّت كښې د ننه رجوع كولے شي۔ ليكن كه سړي درے طلاقه وركړي وي نو دا عدّت د رجوع د ګنجائش دپاره نهٔ دے بلكه صرف د دے دپاره دے چه د دے د ختميدو نه مخكښې ښځه د بل سړي سره نكاح نشيٰ كولے۔

(۴) غير مَدخوله ښځه يعنې چه وادهٔ شوي نهٔ وي او طلاق وركړے شي، د هغې دپاره هيڅ عدّت نشته۔ هغه د طلاقو نه روستو فوراً نكاح كولے شي۔

(۵) د كومې ښځې چه خاوند مړ شي د هغې عدّت څلور مياشتے اولس ورځے دے۔

اُوس په دے خبره ښه ځان پوهه كول پكار دي چه سورة طلاق په دې قاعدو كښې د يوې قاعدے د منسوخ كولو يا د ترميم كولو دپاره نازل شوے نهٔ دے، بلكه د دوو مقصدونو دپاره نازل شوے دے۔

يو دا چه سړي ته د طلاقو كوم اختيار وركړے شوے دے د هغې د استعمالولو داسے حكمتي طريقے اُوښودلے شي چه په هغې سره خبره جدائئ ته اُونهٔ رسي او كه جدائي وي نو په داسے حالت كښې دِ وي چه په خپلو كښې د روغے جوړے ټول امكانات ختم شوي وي۔ ځكه چه د خدائے په شريعت كښې د طلاقو ګنجائش صرف د يو لازمي ضرورت په طور كيښودے شوے دے، كنئ نو الله تعالىٰ دا خبره بالكل نهٔ خوښوي چه د يو سړي

او دَ یو بل ښځے په منځ کښے کومه نکاح شوی وی هغه دِ بیا ماته شی - نبی صلی الله علیه وسلم فرمائی چه مَا احَل الله شیئًا أبغض الیه من الطلاق -" الله تعالیٰ دا سے یو څیز حلال کړے نهٔ دے چه هغه دَ طلاق نه زیات هغه ته ناخوښه وی - ( ابوداؤد ) - او ابغض الحلال الی الله عزوجل الطلاق - " په ټولو حلالو څیزونو کښے الله تعالیٰ ته دَ ټولو نه زیات ناخوښه څیز طلاق دے "( ابوداؤد ).

دویم مقصد دا دے چه دَ سورة بقرے دَ حکمونو نه روستو باقی کومے مسئلے پاتے شوے وے چه هغه پورہ کړے شی او دَ اسلام دَ خاندانی قانون څانګه مکمله کړے شی - په دِے لړ کښے دا ویئلے شوی دی چه دَ کومو واده شوو ښځو حیض بند شوے وی یا د کومو ښځو لا حیض نهٔ وی شروع شوے، نو دَ هغوی دَ طلاق عدت به څه وی. او کومه ښځه چه حامِله وی ، یعنی بچے ئے په ګیډه وی هغے له که طلاق ورکړے شی یا دَ هغے خاوند مړ شی نو دَ هغے دَ عدّت موده به څه وی - او دَ مختلف قِسم طلاق شوو ښځو خرچه او دَ اوسیدو انتظام به څه رنګے وی او دَ کوم بچی مور او پلار چه دَ طلاق په ذریعه جُدا شوی وی دَ هغه دَ رضاعت یعنی دَ تی ورکولو انتظام به څه رنګے کیږی -

آیاتها ۱۲ سُوْرَةُ الطَّلَاقِ مَدَنِيَّةٌ رکوعاتها ۲

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

يٰٓاَيُّهَا النَّبِيُّ اِذَا طَلَّقْتُمُ النِّسَآءَ فَطَلِّقُوْهُنَّ لِعِدَّتِهِنَّ

اے نبیؐ، هرکله چه تاسو ښځوله طلاق ورکوئ نو هغوئ له د هغوئ د عدّت د پاره طلاق ورکوئ۔[1]

---

[1] یعنی تاسو د طلاق ورکولو په معامله کښے دا تلوار مه کوئ چه په معمولی جګړه کښے فوراً په غصّه کښے را شئ او طلاق ورکړئ او د نکاح په مرئ باندې داسے توره را کا ږئ چه د رجوع کولو ګنجا ئش هم پاتې نه دئ۔ بلکه تاسو چه کله ښځوله طلاق ورکول غواړئ نو د عدّت د پاره ئے ورکړئ۔ د عدّت د پاره د طلاق ورکولو د وه مطلبونه دی او دواړه دلته مراد هم دی:

یو مطلب د دے دا دے چه د عدّت شروع کولو د پاره طلاق ورکړئ، یعنی په هغه وخت کښے طلاق ورکوئ چه د کوم نه د هغوئ عدّت شروع کیږی۔ دا خبره د سورة بقرے په ایت ۲۲۸ کښے ویئلے شوی ده چه د کومے مدخولے ښځے (واده شوی ښځے) حیض (میاشتینۍ ناجوړتیا) راځی د هغے عدّت دا دے چه د طلاق نه روستو ورته درے ځله حیض را شی۔ د دے حکم په رڼا کښے چه اوکتلے شی نو د عدّت د شروع کولو د پاره د طلاق ورکولو طریقه هم دا کیدے شی چه ښځے له د حیض په حالت کښے طلاق ورنه کړے شی، ځکه چه د هغے عدّت د هغه حیض نه شروع کیدے نشی په کوم کښے چه هغے له طلاق ورکړے شوی وی، او په دے حالت کښے د طلاق ورکولو مطلب دا کیږی چه د الله د حکم نه خلاف دے د ښځے عدّت د درے حیضو په ځائے څلور حیضه شی۔ د غه شان د دے حکم تر غه دا هم ضروری ده چه ښځے له دے په هغه طُهر (یعنی پاکوالی) کښے طلاق نه ورکړے کیږی چه په کوم کښے خاوند د هغے سره کوروالے کړے وی، ځکه چه په دے حالت کښے طلاق ورکړے شی نو ښځے او خاوند دواړو ته دا نشی معلومیدے چه آیا د کوروالی کولو سره په ګیډه کښے بچے شروع شو ئے که نه، په دے وجه د عدّت شروع نهٔ داسے کیدے شی چه دا عدّت به د راتلونکو حیضونو په اعتبار سره وی او نهٔ داسے کیدے شی چه دا به د حاملے ښځے عدّت وی۔ نو دا حکم په یو وخت د وه خبرې غواړی۔ یوه دا چه د حیض په حالت کښے دے ښځے له طلاق نهٔ ورکړے کیږی۔ دویمه دا چه طلاق دے یا خو په هغه طُهر کښے ورکړے کیږی چه په کوم کښے کوروالے نهٔ وی شوے، یا دے بیا په هغه حالت کښے ورکړے شی چه د ښځے حامله کیدل معلوم وی۔ چه سړے غور اوکړی نو معلومیږی چه په طلاق ورباندې په دے پابندئ لګولو کښے ډیر فائدے دی۔ د حیض په حالت کښے د طلاق نهٔ ورکولو فائده دا ده چه دا هغه حالت وی چه په دے کښے د ښځے او د خاوند په مینځ کښے د کوروالی د نهٔ کولو په وجه یو قسم جُدا والے وی، او په طبی حیثیت سره هم دا خبره ثابته ده چه په دے حالت کښے د ښځے طبیعت په صحیح حالت باندې نهٔ وی۔ نو که چرے په دے

وخت کښې دَ دواړو په منځ کښې څه جګړه اُوشي نو ښځه اوخاوند دواړه دَ هغې په ختمولو کښې ډير حده پورې بې وسه وي، او په ځايئ دَ دې چه خبره دَ جګړې نه طلاق تو ته اُورسي، که چرې دَ ښځې دَ حيض دَ ختميدو پورې انتظار اُوکړې شي نو دَ خبرې کافي امکان ورځي دَ ښځې مزاج هم صحيح حالت ته راشي او دَ دواړو په منځ کښې چه الله کومه مينه کيښودې ده هغه بيا خپل کار شروع کړي او دواړه بيا بوبل ته راتږدې کړي. دغه شان چه په کوم طُهر کښې کوروالې شوې وي په هغې کښې دَ طلاق تو نهٔ ورکولو فائده دا ده چه که چرې په دغه وخت کښې په ګيډه کښې بچې شروع شي نو نهٔ ترسره خبريدې شي او نهٔ ښځه. نو دا وجه ده چه دغه وخت دَ طلاق تو ورکولو دَ پاره موزون نهٔ دې. چه دَ حمل پته اُولګي نو سړې به هم لس ځله سوچ کوي چه دَ کومې ښځې په ګيډه کښې دَ هغه بچې پالنې کيږي چه هغې له طلاق ورکړي او که نهٔ، او ښځه به هم دَ خپل ځان او دَ خپل بچي دَ راتلونکي ژوند خيال ساتي او دَ خاوند دَ خفګان دَ لرې کولو پوره کوشش به کوي. ليکن بې سوچه بې فکره دَ طلاق تو ورکولو نه روستو که پته اُولږي چه حمل شروع شوې وو، نو دواړه به افسوس کوي.

دا خو دې " دَ عدت دَ پاره " دَ طلاق تو ورکولو اولنې مطلب، چه دَ دې تعلق صرف دَ هغه مَدخُوله يعني واده شوو ښځو سره دې چه هغوئ ته حيض راځي او چه دَ هغوئ دَ حامله کيدو امکان وي. اُوس پاتې شو دَ دې دويم مطلب، نو هغه دا دې چه که طلاق ورکول غواړې نو دَ عدت پورې طلاق ورکړه، يعني په يو وخت درې طلاقه مه ورکوه چه دَ هميشه دَ پاره جُدائي راشي، بلکه يو يا دوه طلاقه ورکړه او دَ عدت پورې انتظار کوه چه په دې موده کښې هر وخت ستا دَ پاره دَ رجوع کولو ګنجائش پاتې وي. دَ دې مطلب په لحاظ سره دا حکم دَ هغه مَدخُوله ښځو په معامله کښې فائده مند دې چه هغوئ ته حيض راځي او دَ هغه ښځو په معامله کښې هم فائده مند دې چه دَ هغوئ حيض راتلل بند شوي وي، يا چه دَ هغوئ لا حيض نهٔ وي شروع شوې، يا چه دَ طلاق ورکولو په وخت کښې دَ هغوئ حامله کيدل معلوم وي. دَ الله تعالىٰ په دې حکم چه عمل اُوشي نو هيڅوک به هم په طلاق تو ورکولو افسوس نهٔ کوي، ځکه چه په دې طريقه په طلاق تو ورکولو سره په عدت کښې دَ ننه رجوع هم کيدې شي، او دَ عدت دَ تيريدو نه روستو هم دا ممکنه وي چه که ښځه خاوند بيا کور کول غواړي نو بيا دې نکاح اُوکړي.

دَ طَلِّقُوْهُنَّ لِعِدَّتِهِنَّ هم دا معنىٰ لويو لويو مفسرينو بيان کړې دې. ابن عباسؓ دَ دې په تفسير کښې فرمائي چه " طلاق دې دَ حيض په حالت کښې نهٔ ورکوي، او نهٔ دې په هغه طُهر کښې ورکوي چه په کوم کښې خاوند کوروالې کړې وي، بلکه دَ حيض دَ ختميدو پورې دې صبر اُوکړي، او چه حيض ختم شي او پاک شي نو بيا دې يو طلاق ورکړي. په دې صورت کښې که هغه رجوع هم اُونهٔ کړي او عدت تير شي نو هغه به صرف په يو طلاق سره جُدا شي" (ابن جرير). حضرت عبدالله بن مسعودؓ فرمائي "دَ عدت دَ پاره طلاق دا دې چه په طُهر کښې دَ کوروالي کولو نه بغير طلاق ورکړې شي". هم دا تفسير دَ حضرت عبدالله بن عمرؓ، عطاء، مجاهد، ميمون بن مهران، مُقاتل بن حيان، او ضحاک رحمهم الله نه روايت شوې دې (ابن کثير). عِکرِمه دَ دې مطلب بيانوي "طلاق دې په داسې حالت کښې ورکوي چه دَ ښځې حامله کيدل معلوم وي، او په داسې حالت کښې دې نهٔ ورکوي چه هغه ورسره کوروالې کړې وي او پته نهٔ لږي چه هغه حامله شوې ده او که نهٔ" (ابن کثير). حضرت حسن بصري او ابن سيرين

دواړه والئ "دَ طُهر په حالت کښے دِ دَ کور والی کولو نه بغیر طلاق ورکړے شی، یا دِ بیا په دا سے حالت کښے ورکړے شی چه حَمل ښکاره شوے وی" (ابنِ جریر)۔

دَ دے آیت مطلب پخپله رسول الله صلی الله علیه وسلم په هغه موقع ښه واضح کړے وُو کله چه حضرت عبدالله بن عمر خپلے ښځے له دَ حیض په حالت کښے طلاق ورکړے وُو۔ دَ دے واقعے تفصیلات تقریباً دَ حدیثو په ټولو کتابونو کښے نقل شوی دی، او هم هغه په حقیقت کښے په دے معامله کښے دَ قانون ماخذ دے۔ قیصه داده چه کله حضرت عبدالله خپلے ښځے له دَ حیض په حالت کښے طلاق ورکړو نو حضرت عمر لاړو او نبیؐ ته ئے دَ هغے ذکر اُوکړو۔ نبیؐ چه دا واوریده نو سخت ناراضه شو او ورته فرمائیل چه "هغه ته حکم اُوکړه چه ښځے ته رجوع اُوکړی او هغه په خپل نکاح کښے اُوساتی تر څو چه هغه پاکه شی، بیا هغے ته حیض راشی او هغه حیض هم ختم شی او بیا پاکه شی، دَ هغے نه روستو که هغه طلاق ورکول غواړی نو دَ طُهر په حالت کښے دِ دَ کور والی کولو نه بغیر طلاق ورکړی۔ دا هغه عدّت دے چه دَ دے دَ پاره دَ طلاق ورکولو حکم الله تعالیٰ کړے دے"۔ دَ یو روایت الفاظ دا دی چه "یا خو دِ دَ طُهر په حالت کښے دَ کور والی کولو نه بغیر طلاق ورکړی، یا دِ بیا په دا سے حالت کښے طلاق ورکړی چه دَ هغے حَمل ښکاره شوے وی"۔

یو څو نورو احادیثو هم دَ دے آیت په مطلب باندِ رڼا اچوی کوم چه دَ رسول الله صلی الله علیه وسلّم نه او دَ لویو لویو صحابو نه نقل کړے شوی دی۔ په نسائیؒ کښے روایت دے چه رسول الله صلی الله علیه وسلّم ته خبر اُوشو چه یو سړی خپلے ښځے له په یو وخت درے طلاقه ورکړی دی۔ نبیؐ چه دا واوریدل نو دَ غصّے نه ودریدو او وے فرمائیل "أَيُلْعَبُ بِكِتَابِ اللهِ وَأَنَا بَيْنَ أَظْهُرِكُمْ"؟ "آیا دَ الله دَ کتاب سره لوبے کیږی حال دا چه زهٔ ستاسو منځ کښے موجود یم"؟ په دے حرکت باندِ دَ نبیؐ دَ غصّے دا حالت ته چه یو سړی اُوکتل نو تپوس ئے تر اُوکړو چه دَ غه سړے وژنم نه؟ عبدالرزاق دَ حضرت عُباده بن الصّامت په حقله روایت نقل کړے دے چه دَ هغه پلار خپلے ښځے له زر طلاقه ورکړل۔ هغه لاړو او دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم نه ئے دَ دے مسئلے تپوس اُوکړو۔ نبیؐ اُوفرمائیل بانَتْ منه بثلاث فی معصیة الله تعالیٰ و بقی تسع مأة وسبع و تسعون ظلماً وعدواناً، ان شاء الله عذّبه، وان شاء غفرله۔ "دَ الله دَ نافرمانئ سره خو هغه ښځه په درے طلاقو دَ هغه نه جُدا شوه، او نهه سوه او اوه نوی دَ ظلم او دَ زیاتی په طور باقی پاتے شو که دَ الله خوښه شوه نو په هغے به ئے او عذابوی او که ئے خوښه شوه نو معاف به ئے کړی"۔ دَ حضرت عبدالله بن عمر دَ قیصے چه کوم تفصیل په دارقطنی او ابن ابی شیبه کښے روایت شوے دے په هغے کښے یو خبره دا هم ده چه نبیؐ کله حضرت عبدالله بن عمر ته حکم اُوکړو چه ښځے ته رجوع اُوکړه نو هغه تپوس اُوکړو چه که چرے ما ورله درے طلاقه ورکړے وے نو بیا هم ما رجوع کولے شوه؟ نبیؐ ورته په جواب کښے اُوفرمائیل، لا، کانت تبین منک وکانت معصیة "نه، هغه به ستا نه جُدا کیدله او دا به گناه وه"۔ په یو روایت کښے دَ نبیؐ الفاظ دا دی چه اذاً قد عصیت ربک وبانت منک امرأتک۔ "که تا دا سے کړے وے نو دَ خپل رب نافرمانی به دِ کړی وه او ستا ښځه به ستا نه جُدا شوی وه"۔

دَ صحابه کرامونه چه په دے باره کښے کومے فتوے نقل کړے شوی دی هغه هم دَ نبیؐ دَ دے حکمونو سره مطابقت لری ۔ په مؤطّا کښے دی چه یو سړے راغے او حضرت عبدالله بن مسعودؓ ته ئے اُووئیل چه ما خپلے ښځے له اَتهٔ طلاقه ورکړی دی ۔ ابن مسعود رضی الله عنه تپوس اُوکړو "بیا په دے باندِ تاله څه فتویٰ درکړے شوه"؟ هغه عرض اُوکړو "ما ته اُووئیلے شو چه ښځه تا نه جُدا شوه"۔ هغه اُوفرمائیل : صدقوا ، هومثل ما یقولون "خلقو ربښتیا اُووئیل ، مسئله هم داده کومه چه هغوی بیانوی"۔ عبدالرزاق دَ عَلقمَه نه روایت نقل کړے دے چه یو سړی ابن مسعود ته اُووئیل چه ما خپلے ښځے له یوکم سل طلاقه ورکړی دی ۔ هغه اُووفرمائیل ثلاث بیّنها وسائرهن عدوان ۔" درے طلاقه هغه جُدا کوی، باقی ټول زیاتے دے"۔ وکیع بن الجرّاح په خپل سُنَن کښے دَ حضرت عثمانؓ او دَ حضرت علیؓ، دَ دواړو هم دا مسلک نقل کړے دے ۔ حضرت عثمانؓ له یو سړے راغے او عرض ئے اُوکړو چه ما خپلے ښځے له زر طلاقه ورکړی دی ۔ هغه اُوفرمائیل بانت منك بثلاث ۔" هغه په دریو طلاقو ستا نه جُدا شوه"۔ هم د غسے واقعه حضرت علیؓ ته پیښه شوه نو هغه جواب ورکړو چه بانت منك بثلاث واقسم سائرهن علی نسائك ۔" په دریو طلاقو هغه ستا نه جُدا شوه ، باقی طلاق په خپلو نورو ښځو باندِ تقسیموه"۔ ابوداؤد او ابن جریر دَ لږ شان لفظی فرق سره دَ مجاهد روایت نقل کړے دے چه هغه دَ ابن عباسؓ سره ناست وُو ۔ په دِے کښے یو سړے راغے او وِے وئیل چه ما خپلے ښځے له درےؔ طلاقه ورکړی دی ۔ ابن عباسؓ چه واوریدل نو چپ پاتے شو، ان تردِے چه ما خیال اُوکړو چه دے کِنی دَ هغه ښځه هغه ته واپس کوی ۔ بیا هغه اُوفرمائیل ،" په تاسو کښے یو سړے اوّل په طلاقو ورکولو کښے بے وقوفتیا اُوکړی ، دَ هغے نه پس وستورائی او وائی چه اے ابن عباس ، اے ابن عباس ۔ حالانکه الله تعالیٰ فرمائیلی دی چه څوک دَ الله نه په یَره یَرهٔ کار کوی الله به دَ هغه دَپاره دَ مشکلاتو نه دَ وتلو لار پیدا کوی ، اَو تا دَ الله نه تقویٰ (یعنی یَره) اُونهٔ کړه ۔ اُوس څه ستا دَپاره څه لار نهٔ وینم ۔ تا دَ خپل رب نافرمانی اُوکړه او ستا ښځه ستا نه جُدا شوه"۔ هم دَ مجاهد نه یو بل روایت په مؤطّاء او تفسیر ابن جریر کښے دَ لږ لفظی فرق سره نقل کړے شوے دے ، په هغے کښے دا ذکر دے چه یو سړی خپلے ښځے له سل طلاقه ورکړل ، بیا ئے دَ ابن عباس نه مسئله اُوتپوسله ۔ هغه ورته په جواب کښے اُووئیل "په درے طلاقو خو هغه ستا نه جُدا شوه باقی په درے کم سلو تا دَ الله دَ آیتونو نه لوبه جوړه کړه"۔ دا دَ مؤطّاء الفاظ دی ۔ په ابن جریر کښے دَ ابن عباس دَ جواب الفاظ دا دی ،" تا دَ خپل رب نافرمانی اُوکړه او ستا ښځه ستا نه جُدا شوه او تا دَ الله نه یَره اُونهٔ کړه چه هغه ستا دَپاره دَ دے مشکل نه دَ وتلو لار پیدا کړے وَے"۔ امام طحاوی روایت نقل کړے دے چه یو سړے ابن عباسؓ له راغے او وِے وئیل چه ځما تره خپلے ښځے له درے طلاقه ورکړی دی ۔ هغه جواب ورکړو اِنَّ عمك عصی الله فاثم و اطاع الشیطان فلم یجعل له مخرجاً ۔" ستا تره دَ الله نافرمانی اُوکړه او ګناه ئے اُوکړه او دَ شیطان پیروی ئے اُوکړه ۔ الله دَ هغه دَپاره دَ دے مشکل نه دَ وتلو دَپاره څه لاره نهٔ ده پیدا کړی"۔ په ابوداؤد او مؤطّاء کښے دی چه یو سړی خپلے ښځے له دَ خلوت نه مخکښے یعنی دَ کوروالی نه مخکښے درے طلاقه ورکړل ، بیا ئے دَ هغے سره دوباره نکاح کول اُوغوښتل او دَ فتوے دَ تپوس دَپاره اُووتو ۔

دَ حدیث راوی محمد بن ایاس بن بُکَیر وائی چه څه دَ هغه سره ابن عباسؓ او ابو هریرهؓ له لاړم ـ دَ دواړو جواب داوُ چه انكَ ارسلت من یدكَ ما كان من فضل ـ" ستا دَ پاره چه کوم گنجائش وُو هغه تا دَ خپله لاسه ختم کړو" زمخشری په کشاف کښے لیکلی دی چه حضرت عمرؓ له به کوم سړے دا سے راتلو چه هغه به خپلے ښځے له درے طلاقه ورکړی وُو نو هغه به ئے وهلو او ښځه به ترجُدا کوله ـ سعید بن منصور هم دا خبره دَ صحیح سند سره دَ حضرت اَنسؓ دَ روایت نه نقل کړی ده ـ په دِے معامله کښے دَ صحابه کرامو عامه رائے، چه ابن شیبه او امام محمد دَ ابراهیم نخعی رحمة الله علیه نه نقل کړی ده، داوه چه اِنّ الصّحابة رضی الله عنهم کانوا یستحبون ان یطلقها واحدة ثم یترکها حتی تحیض ثلاثة حیض ـ" صحابو به دا خبره خوښوله چه سړے ښځے له صرف یو طلاق ورکړی او بیا ئے پریږدی اَن تر دِے چه درے حیضیه ورته راشی" دا دَ ابن ابی شیبه الفاظ دی ـ او دَ امام محمد الفاظ دی، کانوا یستحبون الا تزیدوا فی الطلاق علی واحدة حتی تنقضی العدة ـ" دَ هغوئ دا طریقه خوښه وه چه دَ طلاقو په معامله کښے دَ یو نه زیات نهٔ شیٔ تر دِے چه عدّت پوره شی"۔

دَ دے احادیثو او دَ صحابوِ قولونو په مدد سره چه فقهاوُو دَ قرآن مجید دَ دے آیت نه کوم مطلب اخستلے دے او دَ طلاقو په حقله ئے کوم تفصیلی قانون جوړ کړے دے هغه موږ لاندِ نقل کوُو:

(۱) دَ حنفیانو په نز دَ طلاقو درے قسمونه دی ـ احسن، حسَن او بدعی ـ احسن طلاق دا دے چه سړے خپلے ښځے له په دا سے طُهر کښے صرف یو طلاق ورکړی چه په هغې کښے ئے کوروالے نهٔ وی کړے او عدّت پوره کړی ـ حسَن طلاق دا دی چه په هر طُهر کښے یو یو طلاق ورکړی ـ په دِے طریقه په دریو طُهرونو کښے درے طلاقه ورکول هم دَ سنتونه خلاف نهٔ دی، اگرچه بهتره خبره دا ده چه دَ یو طلاق په ورکولو سره عدّت پوره کړے شی ـ او بدعی طلاق دا دی چه سړے په یو وخت درے طلاقه ورکړی، یا په دا سے طُهر کښے طلاق ورکړی چه په هغې کښے ئے کوروالے کړے وی ـ په دِے کښے چه هر کار او کړی هغه به گنهگار وی ـ دا خو دَ دا سے وا ده شوی ښځے (یعنی مَدخولے ښځے) حکم دے چه دَ هغې حیض راځی ـ یا تے شوه غیر مَدخوله یعنی نا واده ښځه نو هغې له دَ سنتو مطابق په طُهر او په حیض دواړو حالتونو کښے طلاق ورکړے کیدے شی ـ او که چرے واده شوی ښځه (مَدخوله) دا سے وی چه حیض راتلل ئے بند شوی وی، یا ئے لاحیض راتلل نهٔ وی شروع شوی نو هغې له دَ کوروالی نه روستو هم طلاق ورکړے کیدے شی، ځکه چه دَ هغې دَ حامله کیدو امکان نشته او که ښځه حامله وی نو دَ کوروالی کولو نه روستو هغې له هم طلاق ورکړے کیدے شی، ځکه چه دَ هغې حامله کیدل دَ اول نه معلوم دی ـ لیکن دے درے قسمه ـ ځکه له دَ سنتو مطابق دَ طلاقو ورکولو طریقه دا ده چه یوه یوه میاشت روستو دِ طلاق ورکړے شی، او بنه خبره دا ده چه صرف په یو طلاق ورکولو سره عدّت پوره کړی ـ (هدایه، فتح القدیر، احکام القرآن للجصاص، عمدة القاری)۔

دَ امام مالک په نز هم دَ طلاقو درے قسمونه دی ـ سُنّی، بدعی مکروه، او بدعی حرام ـ دَ سنتو مطابق سُنّی طلاق دا دی چه

دَکومے مدخولے ښځے حیض راځی، هغے له دَ طُهر په حالت کښے دَ کوروالی کولو نه بغیر صرف یو طلاق ورکړے شی او عدت پوره کړے شی۔ بدْعی مکروه طلاق دا دی چه په داسے طُهر کښے طلاق ورکړے شی چه په هغے کښے سړی کوروالے کړے وی، یا دَ کوروالی کولو نه بغیر په یو طُهر کښے دَ یو نه زیات طلاق ورکړے شی، یا په عدّت کښے دَ ننه په جُدا جُدا طُهرونو کښے درے طلاقه ورکړے شی، یا په یو وخت درے طلاقه ورکړے شی۔ او بدْعی حرام طلاق دا دی چه دَ حیض په حالت کښے طلاق ورکړے شی۔ (حاشیه الدّسُوقی علی الشرح الکبیر۔ احکام القرآن لابن العربی)۔

دَ امام احمد بن حنبلؒ معتبر مذهب دا دے چه دَ اکثرو حنبلیانو پرِ اتفاق دے: کومے مدْخولے ښځے ته چه حیض راځی هغے له دَ سنتو مطابق دَ طلاقو ورکولو طریقه دا ده چه دَ طُهر په حالت کښے دَ کوروالی کولو نه بغیر ښځے له طلاق ورکړے شی او بیا پریښود ے شی تر دے چه عدّت پوره شی۔ لیکن که چرے ښځے له په دریو طُهرونو کښے درے جُدا جُدا طلاق ورکړے شی، یا په یو طُهر کښے درے طلاقه ورکړے شی، یا په یو وخت درے طلاقه ورکړے شی، یا دَ حیض په حالت کښے طلاق ورکړے شی، یا په داسے طُهر کښے طلاق ورکړے شی چه په هغے کښے کوروالے شوے وی او دَ ښځے حامله کیدل ښکاره نهٔ وی، نو دا ټول بدعی او حرام طلاق دی۔ لیکن که چرے ښځه غیر مدخوله وی، یا داسے مدخوله وی چه حیض راتلل ئے بند شوی وی، یا لا حیض راتلل شروع شوی نهٔ وی، یا حامله وی، نو بیا نهٔ دَ وخت په لحاظ سره دَ سنتو او دَ بدعت څه فرق شته او نهٔ دَ تعداد په لحاظ سره۔ (الإنصاف فی معرفة الراجح من الخلاف علیٰ مذهب احمد بن حنبلؒ)۔

دَ امام شافعیؒ په نزد دَ طلاقو په معامله کښے دَ سنت او دَ بدعت فرق صرف دَ وخت په لحاظ سره دے دَ تعداد په لحاظ سره نهٔ دے۔ یعنی دَ کومے مدخولے ښځے چه حیض راځی، هغے له دَ حیض په حالت کښے طلاق ورکول، یا چه کومه ښځه حامله کیدے شی هغے له په داسے طُهر کښے طلاق ورکول چه په هغے کښے کوروالے شوے وی او دَ ښځے حامله کیدل ښکاره شوی نهٔ وی، دا بدعت او حرام دی۔ پاتے شو دَ طلاقو تعداد، نو که په یو وخت درے طلاقه ورکړے شی، یا که په یو طُهر کښے ورکړے شی، یا که په جُدا جُدا طُهرونو کښے ورکړے شی، بهرحال دا دَ سنّت نه خلاف نهٔ دی۔ او غیر مدخوله ښځه یا داسے ښځه چه حیض راتلل ئے بند شوی وی، یا ئے حیض هډو راغلے نهٔ وی، یا ئے حامله کیدل ښکاره شوی وی، دَ هغے په معامله کښے دَ سنّت او دَ بدعت هیڅ فرق نشته (مُغنی المحتاج)۔

(۲) دَ طلاقو دَ بدعی کیدو، دَ مکروهه کیدو، دَ حرامیدو، یا دَ طلاقو په ورکولو سره دَ ګناه کیدو مطلب دَ څلورو واړو اماما نو په نزد دا نهٔ دے چه ګنی طلاق نهٔ واقع کیږی، په څلورو واړو مذهبونو کښے که طلاق دَ حیض په حالت کښے ورکړے شی، یا په یو وخت درے طلاقه ورکړے شی، یا په داسے طُهر کښے ورکړے شی چه په هغے کښے کوروالے شوے وی او دَ ښځے حامله کیدل ښکاره نهٔ وی، یا په داسے طریقه ورکړے شی چه هغے ته یو امام بدعی طلاق وئیلی وی، بهرحال طلاق واقع کیږی اګرچه سړے پرِ ګنهګار یږی۔ لیکن ځینی نورو مجتهدینو په دے مسئله کښے دَ څلورو اماما نو نه اختلاف کړے دے۔

سعید بن المُسیّبؒ او ځینی نور تابعین وائی چه کوم سړے دَ سنّت نه خلاف دَ حیض په حالت کښے طلاق ورکړی، یا په یو وخت درے طلاقه ورکړی دَ هغه طلاق هډو واقع کیږی نهٔ۔

هم دا رائے دَ امامیه ده - او دَ دے رائے بُنیاد داد ے چه دا سے کول چونکه منع دی او بدعت مُحرّمه دی نو په دے وجه دا بے اثره دی - حالانکه بره چه کوم احادیث مونږ نقل کړی دی په هغې کښې دا بیان شوے دے چه حضرت عبدالله بن عمرؓ کله ښځې له دَ حیض په حالت کښې طلاق ورکړل نو نبیؐ هغه ته حکم اُوکړو چه رجوع اُوکړه - که چرے دا طلاق واقع شوی نهٔ وے نو دَ رجوع دَ حکم کولو څه مطلب وُو؟ او دا خبره هم دَ ډیرو احادیثو نه ثابته ده چه نبیؐ او صحابه کرامو اگرچه هغه سړی ته گنهگار وئیلے دے چه هغه دَ یو نه زیات طلاق ورکړی، خو دَ هغه طلاق نو ته ئے بے اثره نه دی وئیلی -

طاؤس او عکرمه وائی چه په یو وخت ښځې له درے طلاقه ورکړے شی نو صرف یو طلاق واقع کیږی، او دا رائے امام ابن تیمیهؒ اختیار کړی ده - دَ هغوی دَ دے رائے ماخذ دا روایت دے چه ابو الصّهباء دَ ابن عباس نه تپوس اُوکړو "آیا تا ته معلومه نهٔ ده چه دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم او دَ حضرت ابوبکرؓ په زمانه کښې او دَ حضرت عمرؓ په اولنی دور کښې به درے طلاقه یو گڼلے شو"؟ هغه جواب ورکړو هو (بخاری او مُسلم) او په مسلم، ابوداؤد او مُسندِ احمد کښې دَ ابن عباس دا قول نقل کړے شوے دے چه "دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم او دَ حضرت ابوبکرؓ په زمانه کښې، او دَ حضرت عمرؓ دَ خلافت په اولنو دوو کلونو کښې به درے طلاقه یو طلاق گڼلے شو - بیا حضرت عمرؓ اُووئیل چه خلقو په یوه داسے معامله کښې تلوار شروع کړی ده چه په هغې کښې دَ هغوی دَ پاره په سوچ فکر سره دَ کار کولو گنجائش ساتلے شوے وُو - اُوس وَلے مونږ دَ هغوی دا فعل جاری نهٔ کړو، چنانچه هغه ئے جاری کړو"۔

لیکن دا رائے په ډیرو وجوهاتو سره قابل قبول نهٔ ده - اول خو دَ گڼړو روایتونو مطابق دَ ابن عباس خپله فتوی دَ دے خلاف وه لکه څنگه چه هغه روایتونه مونږه بره نقل کړی دی - دویمه دا چه دا خبره دَ هغه احادیثو نه خلاف راځی کوم چه دَ نبیؐ او دَ لویو صحابو نه نقل کړے شوی دی، چه په هغې کښې کوم سړی په یو وخت درے طلاقه ورکړی دی دَ هغه په حقله دا فتوی ورکړے شوی ده چه دَ هغه درے واړه طلاقه واقع کیږی - دا احادیث هم مونږه بره نقل کړی دی - دریمه دا چه خپله دَ ابن عباس دَ روایت نه معلومیږی چه حضرت عمرؓ دَ صحابو په مجلس کښې دَ دریو طلاقو دَ جاری کولو اعلان کړے وُو، لیکن په صحابو کښې چا نهٔ په هغه وخت کښې او نهٔ دَ هغې نه روستو دَ هغې نه اختلاف کړے وُو - اُوس دا خیال څوک کولے شی چه حضرت عمرؓ به کِنی دَ یو کار فیصله دَ سنتونه خلاف کوله؟ دَ ټولو صحابو به پرے خاموشی هم کوله؟ دَ دے دَ پاسه دَ رُکانه بن عبد یزید په قیصه کښې ابوداوُد، ترمذی، ابن ماجه، امام شافعیؒ، دارمی او حاکم دا روایت نقل کړے دے چه کله رُکانه په یو مجلس کښې خپلے ښځې له درے طلاق ورکړل نو رسول الله صلی الله علیه وسلم هغه له قسم ورکړو او تپوس ئے ترې اُوکړو چه آیا ستا نیت دَ یو طلاق ورکولو وُو؟ (یعنی باقی دوه طلاقه په اولنی طلاق باندِ دَ زور ورکولو دَ پاره ستا دَ خُلے نه وتلی وُو، په دریو طلاقو سره دِ دَ همیشه دَ پاره دَ جُدا کولو مقصد نهٔ وُو) او هر کله چه هغه دا قسم اُوخوړ نو نبیؐ هغه له دَ رجوع کولو حق ورکړو - دَ دے نه دَ دے معاملے اصلی حقیقت معلومیږی چه په اولنی دَور کښې به کوم قسم طلاق یو طلاق گڼلے شو - دا وجه ده چه کوم خلق

دَ احادیثو تشریح کوی هغوی دَ ابن عباس دَ روایت نه دا مطلب اخستلے دے چه په اولنی دَور کښے چونکه خلق دَ دینی معاملاتو سخت پابند وو، نو چا چه به خپلے ښځے له درے طلاق ورکړی وُو او دا بیان به ئے اُوکړو چه څما اصل نیت دَ یو طلاق ورکولو وُو او باقی دوه طلاقه مِ صرف په اولنی طلاق باندِ دَ زور ورکولو دَ پاره دَ خُلے نه وتلی وُو، نو دَ هغوی په دِے بیان باندِ به باوَر کیدلو. لیکن حضرت عمرؓ چه کله اُوکتل چه خلق اول په تیزئ سره درے درے طلاقه ورکوی او بیا دا بهانه کوی چه څما غرض زور نه ورکول وُو نو هغه دَ دے بهانے قبلولو نه اِنکار اُوکړو. امام نووی او امام سُبکی دِے ته دَ ابن عباس دَ دے روایت بهترین تاوِیل وئیلے دے. آخری خبره داده چه پخپله دَ ابو الصّهباء په هغه روایتونو کښے فرق دے کوم چه دَ ابن عباس دَ قول په باره کښے دَ هغه نه روایت شوی دی. مُسلم او ابوداوُد او نسائیؒ دَ ابو الصّهباء نه یو بل روایت دا نقل کړے دے چه دَ هغه په تپوس کولو سره ابن عباس اوفرمائیل "یو سړی چه به کله دَ کور والی نه مخکښے خپلے ښځے له درے طلاقه ورکول نو دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم په زمانه کښے او دَ حضرت عمرؓ په اولنی دَور کښے به هغه یو طلاق گڼلے شو". دغه شان یو راوی دَ ابن عباس نه دوه مختلف روایتونه نقل کړی دی او دا اختلاف دواړه روایتونه کمزوری کوی.

(۳) دَ حیض په حالت کښے چه چا طلاق ورکړی وُو هغه ته چونکه رسول الله صلی الله علیه وسلم دَ رجوع کولو حکم کړے وُو، په دِے وجه دَ فقهاؤ په منځ کښے دا خبره راپورته شوی ده چه دا حکم په کوم معنیٰ کښے دے. امام ابوحنیفه، امام شافعی، امام احمد، امام اوزاعی، ابن ابی لیلیٰ، اسحاق بن راهَویه او ابو ثور وائیٔ چه داسے سړی ته به دَ رجوع کولو حکم خو ورکولے کیږی لیکن په رجوع به نهٔ مجبورولے کیږی (عمدة القاری). په هدایه کښے دَ حنفیانو مذهب دا بیان شوے دے چه په دِے مسئله کښے رجوع کول نهٔ یوازے مستحب دی بلکه واجب دی. په مغنی المحتاج کښے دَ شافعیانو مسلک دا بیان شوے دے چه چا په حیض کښے طلاق ورکړی وی او درے طلاق ئے نهٔ وی ورکړی نو دَ هغه دَ پاره سنت طریقه دا ده چه هغه رجوع اُوکړی، او دَ هغے نه روستو چه کوم طُهر راځی په هغے کښے طلاق ورنهٔ کړی بلکه دَ طُهر دَ تیریدو نه روستو چه کله په دویم ځل دَ ښځے حیض ختم شی نو پس دَ هغے که طلاق ورکول غواړی نو ور دِ کړی، دَ پاره دَ دے چه دَ حیض په حالت کښے دِ ورکړے شوی طلاق نه رجوع کول صرف دَ لوبے په طور نهٔ وی. په الانصاف کښے دَ حنبلیانو مسلک دا بیان شوے دے چه دَ حیض په حالت کښے دَ طلاق ورکونکی سړی دَ پاره رجوع کول مستحب دی. لیکن امام مالکؒ او دَ هغه ملگری وائیٔ چه دَ حیض په حالت کښے طلاق ورکول داسے جرم دے چه په هغے پولیس پکښے مداخلت کولے شی. که ښځه مطالبه کوی او که نهٔ کوی، بهرحال دَ حاکم دا فرض دی چه کله دَ یو سړی دا کار دَ هغه په علم کښے راشی نو هغه دِ هغه په رجوع کولو باندِ مجبوره کړی او دَ عدت دَ آخری وخته پورے دِ په هغه دباؤ اچوی. که هغه انکار کوی نو هغه دِ قید کړی. که بیا هم انکار کوی نو او دِ وهی. که په دِے هم اُونهٔ منی نو حاکم دِ پخپله فیصله اُوکړی چه ما ستا ښځه تا ته واپس کړه. او دَ حاکم دا فیصله به رجوع وی چه دَ هغے نه روستو به دَ سړی دَ پاره دَ هغه ښځے سره کور والے کول جائز وی، خواه که نیت ئے دَ رجوع وی او که نهٔ وی، ځکه چه دَ حاکم نیت دَ هغه دَ نیت په ځائے دے (حاشیه الدسوقی). مالکیان دا هم وائیٔ چه کوم سړی په رضا یا په زور دَ حیض په حالت کښے دَ ورکړے

شوی طلاق نه رُجوع کړی وی هغه که چرې طلاق ورکول غواړی نو دَ هغه دَپاره مستحب طریقه داده چه په کوم حیض کښې هغه طلاق ورکړی وی دَ هغې نه په روستنی طُهر کښې دِ هغې له طلاق نهٔ ورکوی بلکه کله چه دوباره حیض راشی او دَ هغې نه هغه پاکه شی نو په هغه وخت کښې دِ طلاق ورکړی۔ په طلاق تو پسې چه کوم طُهر راځی په هغې کښې دَ طلاقونهٔ ورکولو حکم په اصل کښې په دِے وجه شوے دے چه کوم سړی دَ حیض په حالت کښې طلاق ورکړی وی چه دَ هغه رجوع صرف زُبانی خبره نهٔ وی بلکه هغه له پکار دی چه په طُهر کښې دَ ښځې سره کور والے اوکړی بیا چه په کوم طُهر کښې کور والے شوے وی په هغې کښې چونکه طلاق ورکول منع دی، نو په دِے وجه دَ طلاق ورکولو صحیح وخت دَ هغې نه روستنے طُهر دے (حاشیة الدّسُوقی)۔

(۴) دَ رجعی طلاق ورکونکی سړی دَپاره دَ رُجوع موقع دَ څه وخته پورے ده؟ په دِے کښې هم دَ فقهاؤ په منځ کښې اختلاف راغلے دے، او دا اختلاف په دے خبره راپیدا شوے دے چه دَ سورة بقرے په آیت ۲۲۸ کښې دَ ثَلٰثَةَ قُرُوْءٍ نه مُراد درے حیضه دی او که درے طُهره؟ دَ امام شافعی او دَ امام مالکؒ په نزد دَ قُرء نه مُراد طُهر دے، او دا رائے دَ حضرت عائشےؓ، ابن عمرؓ، او زید بن ثابتؓ نه نقل شوی ده۔ دَ حنفیانو مذهب دا دے چه دَ قُرء نه مُراد حیض دے او دَ امام احمد بن حنبل معتبر مذهب هم دا دے۔ دا رائے دَ څلور واړو خلیفه گانو، دَ عبدالله بن مسعودؓ، عبدالله بن عباسؓ، اُبَیّ بن کعب، مُعاذ بن جَبَل، ابو الدَّرداء، عبادهٔ بن صامت او ابوموسیٰ اشعری رضی الله عنهم نه نقل شوی ده۔ امام محمد په موطاء کښې دَ شعبی قول نقل کړے دے چه هغه دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم دَ دیارلسو صحابو سره مِلاؤ شوے دے، او دَ هغوئ ټولو رائے دا وه۔ او هم دا رائے اکثرو تابعینو اختیار کړی ده۔

دَ دے اختلاف په بُنیاد باندِ دَ شافعیانو او مالکیانو په نزد چه ښځه په دریم حیض کښې داخله شی نو عدّت ئے ختم شی، او دَ سړی دَ رُجوع حق ختم شی۔ او که طلاق دَ حیض په حالت کښې ورکړے شوی وی نو دا حیض به په عدّت کښې نهٔ شمارېږی، بلکه چه ښځه په څلورم حیض کښې داخله شی نو عدّت به ختمېږی (مُغنی المحتاج۔حاشیة الدّسُوقی)۔ دَ حنفیانو مذهب دا دے چه که چرے په دریم حیض کښې لس ورځے تیرے شی او وینه بنده شی نو دَ ښځې عدّت به ختم وی خواه که ښځې لمبلی وی او که نهٔ وی۔ او که دَ لسو ورځو نه په کمه موده کښې وینه بنده شی نو عدّت به تر هغه وخته پورے نهٔ ختمېږی تر څو چه ښځې لمبلی نهٔ وی، یا پرِ دَ یو مونځ وخت نهٔ وی تیر شوے۔ چه اوبهٔ نهٔ وی نو دَ امام ابوحنیفهؒ او امام ابویوسفؒ په نزد چه څه وخت ښځه تیمم اوکړی او مونځ اُوکړی نو په هغه وخت دَ سړی دَ رجوع حق ختمېږی، او دَ امام محمد په نز دَ تیمم کولو سره دَ رُجوع حق ختمېږی (هدایه)۔ دَ امام احمد معتبر مذهب چه دَ اکثرو حنبلیانو پرِ اتفاق دے، دا دے چه دَ څه وخته پورے ښځې دَ دریم حیض نه لمبلی نهٔ وی دَ هغه وخته پورے به دَ سړی دَ رُجوع حق باقی وی (الانصاف)۔

(۵) رجوع څنګه کیږی او څنګه نهٔ کیږی؟ په دِے مسئله کښې دَ فقهاؤ په منځ کښې اتفاق دے چه کوم سړی خپلے ښځې له رجعی طلاق ورکړی وی هغه چه دَ عدّت دَ ختمیدو نه مخکښې کله اُوغواړی رُجوع کولے شی، که ښځه راضی وی او که نهٔ وی۔ ځکه چه دَ سورة بقرے په آیت ۲۲۸ کښې فرمائیلے شوی دی

وَ بُعُوْلَتُهُنَّ اَحَقُّ بِرَدِّهِنَّ فِیْ ذٰلِكَ ،" دَ مغوی خاوندان په دې موده کښې د ننه دَ مغوی دَ واپس اغستلو پوره حقدار دی"۔ دَ دې نه ښکاره دا معلومیږی چه دَ عدّت تیرید و نه مخکښې دَ مغوی نکاح برقرار وی او دَ پریښود و نه مخکښې سرې مغوی واپس اغستے شی۔ یعنی رُجوع کول څه نکاح نوی کول نهٔ دی چه دَ دې دَپاره دِ دَ ښځې رضا ضروری وی۔ په دِ ے مسئله کښې دَ دِ ے حده پورې دَ فقهاؤ اتفاق دے، دَ دې نه روستو دَ رُجوع په طریقه کښې دَ فقهاؤ رائے مختلفه شوی ده۔

دَ شافعیانو په نیز رُجوع صرف په وینا سره کیدے شی، په عمل سره نشی کیدے۔ که چرے سړی په خُله دا اونهٔ وئیل چه مارجوع کړی ده نو کوروالی یا د اختلاط بل څه کار ته، اګر که دَ رُجوع په نیت سره شوے وی، رُجوع نشی وئیلے کیدے، بلکه په دِ ے صورت کښې دَ ښځې نه هر قسم فائده اغستل حرام دی اګر که هغه بے شهوته کار وی۔ لیکن کومے ښځې له چه طلاق رجعی ورکړے شوی وی دَ هغې سره په کوروالی کولو باندِ حدّ نشته دے، ځکه چه دَ دے په حراموالی باندِ عالمان متفق نهٔ دی۔ البته څوک چه دَ دے دَ حراموالی عقیده لری هغه له به سزا ورکړے کیږی۔ په دِ ے دَپاسه دَ شافعی مسلک تر مخه کومه ښځه چه په طلاقِ رجعی سره طلاقه شوی وی دَ هغې سره په کوروالی باندِ په هرحال کښې مهرِ مثل لازمیږی که دَ هغې نه روستو سړے په وینا سره رُجوع اوکړی اوکه نهٔ (مُغنی المُحتاج)۔

مالکیان وائی چه رُجوع په قول او فعل دواړو سره کیدے شی۔ که چرے سړے دَ قول په رجوع کښې څرګند الفاظ استعمال کړی نو که دَ هغه نیت دَ رُجوع وی اوکه نهٔ وی، رُجوع به کیږی، بلکه که هغه دَ ټوقے په طورهم دَ رُجوع څرګند الفاظ اُووائی نو هغے ته به رُجوع وئیلے شی۔ لیکن که الفاظ څرګند نهٔ وی نو هغے ته به هله رُجوع وئیلے کیږی چه هغه دَ رُجوع په نیت سره وئیلے شوی وی۔ پاتے شوه په فعل سره رُجوع نو یو کار خواه که هغه لوبے ټوقے کول وی یا کوروالے کول وی، خو هغے ته دَ هغه وخته پورے رُجوع نشی وئیلے کیدے ترڅو چه هغه دَ رُجوع په نیت سره نهٔ وی شوے (حاشیة الدّسُوقی۔ احکام القرآن لابن عربی)۔

دَ حنفیانو او دَ حنبلیانو مسلک دَ قول په رُجوع کښې هم هغه دې کوم چه دَ مالکیانو دې۔ پاتے شوه په فعل سره رُجوع نو دَ مالکیانو برعکس دَ دې دواړو مذهبونو فتوی دا ده چه کومه ښځه په طلاق رجعی سره طلاقه شوی وی دَ هغې سره که خاوند په عدّت کښې د ننه کوروالے اوکړی نو دا رجوع ده خواه که دَ رُجوع نیت ئے وی اوکه نهٔ وی۔ البته دَ دواړو په مسلک کښې فرق دا دې چه دَ حنفیانو په نیز کړون یعنی دَ اختلاط هر کار رُجوع ده خواه که هغه دَ کوروالی نه دَ کښے درجے کار وی، او حنبلیان یوازے اختلاط یعنی هسے دَ خبرو اترو او ټوقو ټکالو کړون ته رُجوع نهٔ وائی (هدایه، فتح القدیر، عمدة القاری، الانصاف)۔

(۶) دَ سنت طلاقو او دَ بِدعتی طلاقو دَ انجام فرق دا دے چه دَ یو طلاق یا دَ دوو طلاقو په صورت کښې که عدّت تیر هم شی خو دَ طلاقے شوی ښځے او دَ هغې دَ پخوانی خاوند په مینځ کښې په خپله رضا مندئ سره نکاح کیدے شی۔ لیکن که سړی درے طلاقه ورکړی وی نو نهٔ په عدّت کښې د ننه رُجوع ممکن ده او نهٔ دَ عدّت تیریدو نه روستو دوباره نکاح کیدے شی۔ ماسوا دَ دے نه چه دَ هغه ښځے نکاح دَ یو بل سړی سره اُوشی، او هغه صحیح قسم نکاح وی، دویم خاوند دَ هغه ښځے سره کوروالے هم کړے وی، بیا خو یا هغه هغې له طلاق ورکړی یا مړ شی۔ دَ دے نه روستو که دغه ښځه او دَ هغې پخوانے خاوند په خپله رضامندئ سره بیا نکاح کول اُوغواړی نو کولے شی۔ دَ احادیثو په

وَاَحْصُوا الْعِدَّةَ ۚ وَاتَّقُوا اللّٰهَ رَبَّكُمْ ۚ لَا تُخْرِجُوْهُنَّ مِنْۢ بُيُوْتِهِنَّ وَلَا يَخْرُجْنَ اِلَّآ اَنْ يَّاْتِيْنَ بِفَاحِشَةٍ مُّبَيِّنَةٍ ۭ وَتِلْكَ

اود عدّت د مودے ټیک ټیک شمار کوئ[۲]، او د الله نه ویرېږئ چه ستاسو رب دے۔ (د عدّت په موده کښې) مهٔ تاسو هغوئ د خپلو کورونو نه اُوباسئ او نهٔ دِ هغوئ پخپله اُوځي[۳]، ماسِوا د دے نه چه هغوئ د بدئ یو کار په څرګنده اوکړي[۴]۔ دا د الله

اکثرو کتابونو کښې د صحیح سند سره دا روایت را غلے دے چه د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه تپوس اُوشو چه یو سړی خپلے ښځے له درے طلاقه ورکړل، بیا هغه ښځے د بل سړی سره نکاح اُوکړه، او د هغه بل سړی سره یے وادهٔ هم اُوشو خو کور والے اُونهٔ شو، بیا هغه سړی هغې له طلاق ورکړل، اُوس د هغه ښځے د خپل اولنی خاوند سره نکاح کیدے شی؟ نبیؐ ورله جواب ورکړو: لا، حتّیٰ یذوق الاخر عسیلتها ما ذاق الاوّل۔ "نهٔ، ترڅو چه دویم خاوند د هغې نه هغسے خوند نهٔ وی اخستے څنګه چه اولنی خاوند اخستے وُو"۔ پاتے شوه د سازش نکاح، چه په هغې کښې د اول نه دا فیصله شوی وی چه یو سړے به د اولنی خاوند د حلالولو د پاره د ښځے سره نکاح اُوکړی او د مباشرت (یعنی کوروالی) کولو نه روستو به هغې له طلاق ورکړی، نو د امام ابویوسف په نز دا نکاح فاسده ده یعنی نهٔ کیږی، او د امام ابوحنیفهؒ په نز په دے سره حلاله خوشی لیکن دا کار مکروهِ تحریمی دے۔ د حضرت عبدالله بن مسعودؓ روایت دے چه رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل لعن الله المحلل والمحلل له "الله لعنت کړے دے په تحلیل کونکی سړی باندِ او په هغه چا د پاره تحلیل یعنی حلاله کیږی په هغه باندِ" (ترمذی۔ نسائی)۔ حضرت عقبه بن عامر وائی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم د صحابو نه تپوس اُوکړو، الا اخبرکم بالتیس المستعار؟ "د رته اُوښایم چه د کرایئ سانډه څوک وی"؟ صحابوؓ عرض اُوکړو چه ضرور اُوښایه نبیؐ اُوفرمائیل هو المحلل، لعن الله المحلل والمحلل له، "هغه تحلیل کوُنکے دے۔ د خدائے لعنت دِ په تحلیل کوُنکی سړی باندِ هم او په هغه سړی باندِ هم چه د چا د پاره تحلیل کیږی" (ابن ماجه۔ دارقطنی)۔

[۲] دا حکم سړو ته هم دے او ښځو ته هم دے او د هغوی د خاندان خلقو ته هم دے۔ مطلب دا دے چه طلاق هسے لوبه توقه مهٔ ګنړئ چه د طلاق وورکولو نه روستو دا یاد نهٔ ساتئ چه طلاق کله ورکړے شوی دی، عدّت د کله نه شروع شو او کله به ختمیږی۔ طلاق یوه ډیره نازکه معامله ده چه د دے نه د ښځے او د خاوند او د هغوئ د اولاد او د هغوئ د خاندان د پاره ډیرے قانونی مسئلے پیدا کیږی۔ نو چه کله طلاق ورکړے شی نو د هغې وخت او تاریخ یاد ساتئ، او دا هم یاد ساتئ چه په کوم حالت کښې ښځے له طلاق ورکړے شوی دی، او حساب لګوئ چه عدت د کله نه شروع شوے دے، څومره پاتے دے، او کله به ختمیږی۔

په دِې حساب باندِ دَ دې خبر و فیصله کیږی چه خاوند ته کوم وخت پورې دَ رجوع حق حاصل دې، دَ کوم وخت پورې به هغه ښځه په کور کښې ساتی، دَ کوم وخت پورې به نفقه ورکوی، دَ کوم وخت پورې به هغه دَ ښځې وارث وی او ښځه به دَ هغه وارثه وی، کله به ښځه دَ هغه نه جدا کیږی او هغې ته به دَ دویم نکاح کولو حق حاصلیږی۔ او که چرې دا معامله دَ مقدمې شکل اختیار کړی نو عدالت ته به هم دَ صحیح فیصلې کولو دَ پاره دَ دې خبرې ضرورت وی چه دَ طلاق دَ صحیح تاریخ او وخت څه دې او دَ ښځې حالت څه دې، ځکه چه دَ دِې نه بغیر عدالت دَ واده شوُو (مَدۡ خوله) او ناواده شوُو (غیر مَدۡ خوله) ښځو، دَ حامله او غیر حامله ښځو، دَ بې حیضه او دَ حیض والا ښځو، دَ رجعیّه او غیر رجعیّه ښځو په معامله کښې دَ طلاق دَ مسئلو صحیح فیصله نشی کولې۔

۳ؕ یعنی نهٔ دَ سړی دَ پیرې غصې نه ښځه دَ کور نه اوُباسی، او نهٔ دِ ښځه دَ غصې دوجې نه کور پریږدی۔ دَ عدّت پورې کور دَ هغې دې۔ هم په دغه کور کښې دواړو له اوسیدل پکار دی، چه که چرې دَ هغوئ په خپل منځ کښې دَ روغې جوړې موقع راشی نو چه دَ هغې نه فائده واخستې شی۔ طلاق که چرې رجعی وی نو په څه وخت کښې دَ خاوند طبیعت دَ ښځې طرف ته مائله کیدې شی، او ښځه هم دَ اختلاف اتولو کولو او دَ خاوند دَ رضا کولو کوشش کولې شی۔ چه دواړه په یو کور کښې وُسی نو دَ دریو میاشتو دَ تیریدو پورې، یا دَ دریو حیضو دَ راتلو پورې، یا که بچی ئې په کیدو وی نو دَ بچی دَ کیدو پورې ډیر ځله دا موقع راتلې شی۔ لیکن که چرې سړی تلوار اوُکړی او ښځه دَ کور نه اوُباسی، یا ښځه پرهه نشی او دَ مور کره لاړه شی او هلته کینی نو بیا دَ رجوع امکانات ډیر کم وی او عام طور مستقله جُدائی راشی۔ په دِې وجه فقهاؤ دَ دې پورې خبره کړې ده چه دَ رجعی طلاق په صورت کښې کومه ښځه عدّت تیروی نو هغې له پکار دی چه ډ ول سینګار کوی چه خاوند ورته مائله شی (هدایه۔ الانصاف)۔

فقهاء په دِې خبره متفق دی چه کومې ښځې له رجعی طلاق ورکړې شوی وی دَ عدّت په زمانه کښې هغې ته دَ اوُسیدو او دَ نفقې حق حاصل دې، او ښځې له دا جائز نهٔ دی چه دَ خاوند دَ اجازت نه بغیر دَ کور نه لاړه شی او سړی له هم دا جائز نهٔ دی چه هغه دَ کور نه اوُباسی۔ که سړی ئې اوُباسی نو هغه ګنهګار دې او که ښځه پخپله اوُزی نو ګنهګاره هم ده او دَ اوُسیدو او دَ نفقې دَ حق نه هم محرومیږی۔

۴ؕ مختلفو فقهاؤ دَ دې ډیر مطلبونه بیان کړی دی۔ حضرت حسن بصری، عامر شَعبی، زید بن اسلم، ضحّاک، مجاهد، عِکرِمه، ابن زید، حمّاد او لیث وائی چه دَ دې نه مُراد بدکاری ده۔ ابن عباس وائی چه دَ دې نه مُراد بَده خُله خوزَول دی، یعنی چه دَ طلاق نه روستو هم دَ ښځې طبیعت صحیح نهٔ شی، بلکه هغه دَ عدّت په زمانه کښې دَ خاوند او دَ هغه دَ خاندان والو سره جګړې کوی او بَده خُله خوزَوی۔ قتاده وائی چه دَ دې نه مُراد نُشوز یعنی نافرمانی کول دی، یعنی ښځې له دَ هغې دَ نافرمانئ په وجه طلاق ورکړې شوی وی او دَ عدّت په زمانه کښې هم دَ خاوند سره دَ سرکشئ کولو نه منع نهٔ شی۔ عبدالله بن عُمر۔ سُدّی۔ ابن السّائب او ابراهیم نخعی وائی چه دَ دې نه مُراد ښځه دَ کور نه وتل دی، یعنی دَ هغه په رائې کښې دَ طلاق نه روستو دَ عدّت په زمانه کښې ښځه دَ کور نه وتل پخپله فاحشة مبینه (څرګند بدکار) دې،

حُدُوْدُ اللّٰهِ ۚ وَمَنْ يَّتَعَدَّ حُدُوْدَ اللّٰهِ فَقَدْ ظَلَمَ نَفْسَهٗ ۚ لَا تَدْرِىْ لَعَلَّ اللّٰهَ يُحْدِثُ بَعْدَ ذٰلِكَ اَمْرًا ① فَاِذَا بَلَغْنَ

مقررکړے شوی حدونه دی، او څوک چه دَ الله دَ حدونو نه واوړیدو نو هغه په خپله په خپل ځان ظلم اُوکړو۔ تاته پته نهٔ لګی، کیدے شی چه دَ دے نه روستو الله (دَ زړه دَ لګیدو) څه شکل راپیدا کړی۔ بیا چه کله دَ هغوئ

اوداحکم چه "هغوئ دِ نهٔ په خپله اُوزی ماسوا دَ دے نه چه هغوئ دَ بدئ یوکار په ښکاره اُوکړی" څه دارنګے کلام دے لکه چه څوک اُووائی چه "تهٔ چاته کښلے مهٔ کوه ماسوا دَ دے نه چه تهٔ بد تمیزه جوړ شے"۔ په دے څلورو قولونو کښے دَ اولنو دریو قولونو مطابق دَ "ماسوا دَ دے" تعلق دَ "هغوئ دَ کورونو نه مه اُوباسئ" سره دے او دَ دے فقرے مطلب داد ے چه که چرے هغه بدچلنه یا بدژبانه یا نافرمانه وی نو دَ هغے ایستل به جائز وی۔ او دَ څلورم قول ترمخه دَ دے تعلق "او هغوئ دِ په خپله نهٔ اُوزی" سره دے او مطلب داد ے چه که چرے هغوئ اُووتلے نو څرګنده بدی به کوی۔

۵ دا دواړه فقرے دَ هغه خلقو دَ خیال تردید هم کوی چه هغوئ دَ دے خبرے قائل دی چه دَ حیض په حالت کښے په طلاق ورکولو سره یا په یو وخت کښے په درے طلاقو ورکولو سره هډو طلاق واقع کیږی نهٔ، او دَ هغه خلقو رائے هم غلطه ثابتوی چه دَ هغوئ خیال داد ے چه په یو وخت درے طلاقه ورکول دَ یو طلاق حکم لری۔ خبره داده چه که چرے بدعی طلاق هډو واقع کیږی نهٔ یا درے طلاقه دَ یو رجعی طلاق په حکم کښے دی نو دَ دے وینا کولو آخر څه ضرورت پاتے کیږی چه څوک دَ الله دَ حدونو، یعنی دَ سنتو دَ ښودلی شوی طریقے خلاف ورزی کوی نو هغه به په خپل نفس ظلم کوی، او تاسو ته پته نهٔ لګی کیدے شی چه دَ دے نه روستو الله دَ زړهٔ دَ لګیدو څه شکل راپیدا کړی؟ دا دواړه خبرے خو هله معنیٰ لری چه دَ سنتو خلاف په طلاق ورکولو سره واقعی څه داسے نقصان راځی چه په هغے بیا سړے دَ افسوس ملګرے مروړی، او په یو وخت په درے طلاقو ورکولو سره دَ رجوع کولو امکان نهٔ پاتے کیږی۔ کنهٔ نو ظاهره خبره ده چه کوم طلاق واقع کیږی نهٔ نو دَ هغے په ورکولو سره دَ الله دَ حد نه تجاوز نهٔ راځی چه هغے ته سړے په خپل نفس باندے ظلم کول اُووائی. او کوم طلاق چه رجعی وی نو دَ هغے نه روستو خو خامخا دَ موافقت شکل پاتے کیږی، نو بیا دَ دے وینا هیڅ حاجت نشته چه کیدے شی دَ دے نه روستو الله دَ زړهٔ دَ لګیدو څه شکل پیدا کړی۔

دلته یو ځل بیا دَ سورة بقرے دَ آیتونو ۲۲۸ تا ۲۳۰ او دَ سورة طلاق دَ دے آیت چه په خپل منځ کښے کوم تعلق دے په هغے ځان بنه پوهه کول پکار دی۔ په سورة بقره کښے دَ طلاقو نصاب درے ښودلے شوے دے، چه په هغے کښے دَ دوو طلاقو ورکولو نه روستو دَ رجوع کولو حق سړی ته حاصل وی، او چه عدت تیر شی نو بیا به بلا تحلیله دَ دوباره نکاح کولو حق باقی وی، او دَ دریم طلاق په ورکولو سره دا دواړه حقونه ختمیږی۔ دَ سورة طلاق دا آیتونه په دے حکم کښے دَ بدلون راوستلو یا دَ دے دَ منسوخ کولو دَ پاره نهٔ دی نازل شوی،

اَجَلَهُنَّ فَاَمْسِكُوْهُنَّ بِمَعْرُوْفٍ اَوْ فَارِقُوْهُنَّ بِمَعْرُوْفٍ وَّاَشْهِدُوْا ذَوَیْ عَدْلٍ مِّنْكُمْ وَاَقِیْمُوا الشَّهَادَةَ لِلّٰهِ ؕ

(دَعدّت) موده ختمیدو ته اُورسی نو یا خو هغوئ په ښه طریقه سره (په خپله نکاح کښے) بند ے اُوساتئ، یا په ښه طریقه دَ هغوئ نه جُدا شئ۔ اود وه داسے گواهان جوړ کړئ چه هغوئ په تاسو کښے دَ عدل خاوندان وی۔ او (اے گواهانو) گواهی ټیک ټیک دَ الله دَ پاره کوئ۔

بلکه دَ دے بنود نے دَ پاره نازل شوی دی چه سړو له دَ طلاق ورکولو کوم اختیارات ورکړے شوی دی دَ هغے دَ صحیح استعمالولو طریقه څه ده چه که چرے په هغے عمل اُوکړے شی نو کور دَ وُرانیدو نه بچ کیدے شی، دَ طلاق ورکولو نه روستو سړے دَ افسوسونو کولو نه بچ کیدے شی، دَ روغے جوړے دَ پیدا کیدو دَ زیاتو نه زیاتے موقع راتلے شی، او که په آخر کښے جُدا والے هم راشی نو بیا هم دا آخری موقع وی چه که چرے بیا دوباره کور کول غواړی نو دوباره دِ نکاح اُوکړی۔ لیکن که چرے یو سړے په ناپوهتیا سره دا اختیارات په غلطه استعمال کړی نو هغه ځپله په خپل ځان ظلم کوی او دَ روغے جوړے ټولے موقع ضائع کوی۔ دا خبره بالکل داسے ده لکه چه یو پلار خپل ځوئ له درے سوه روپئ ورکړی او ورته اُووائی چه دا ستا دی، تا ته اختیار دے چه دا ځپله رضا سره خرچ کړه۔ بیا ورته نصیحت اُوکړی چه دا کوم مال تا ته درکړے دے دا داسے په احتیاط سره استعمال کړه چه ته تر ینه صحیح فایده واخلے، او که ته ځما په نصیحت دِ عمل اُونهٔ کړو او دا مال دِ بے موقع اُولګوو یا دِ ټول مال په یو وخت اُولګوو نو نقصان به اُوکړے او بیا به څه نور مال دَ بربادولو دَ پاره نهٔ درکوم۔ دا ټول نصیحت به تر هغے بے فایدے وی ترڅو چه پلار ځوئ له ټولے پیسے په لاس کښے ورکړی نهٔ وی، یا ئے ځوئ بے موقع خرچ کول غواړی خو پیسے دَ پلار دَ جیب نه هډو را اُوزی نهٔ، یا چه ځوئے ټولے درے سوه اُولګوی خو بیا هم دَ پلار دَ جیب نه صرف سل روپئ را اُوزی او دوه سوه ئے په جیب کښے پاتے وی۔ که داسے وی نو بیا آخر دَ دے نصیحت څه حاجت دے؟

ﷲ یعنی دَ یو طلاق یا دَ دوُو طلاقو ورکولو نه روستو بیا دَ عدّت دَ ختمیدو ته مخکښے مخکښے فیصله اُوکړئ چه آیا ښځه به په خپله نکاح کښے ساتئ او که نهٔ۔ که سا تئ ئے نو دَ ژوند تیرولو په غرض ئے اُوساتئ په دے غرض ئے مهٔ ساتئ چه دَ تنګولو دَ پاره ورته رجوع اُوکړئ او بیا طلاق ورکړئ او دَ عدّت موده اوږده کړئ۔ او که پریښودئ ئے نو دَ شریفانو خلقو په شان ئے رخصت کړئ، جګړے ورسره مهٔ کوئ، که مهر یا څه حصه ئے پاتے وی نو هغه ورله ورکوئ، او دَ خپل وس مطابق څه نه څه سامان ورکوئ، لکه څنګه چه دَ سورة بقرے په آیت ۲۴۱ کښے حکم شوے دے۔ (دَ زیباتے تشریح دَ پاره اُوګوره تفهیم القرآن څلورم جلد، الاحزاب، حاشیة ۸۶)۔

ذٰلِكُمْ يُوْعَظُ بِهٖ مَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ ۬ وَمَنْ يَّتَّقِ اللّٰهَ يَجْعَلْ لَّهٗ مَخْرَجًا ۝۲ وَّيَرْزُقْهُ مِنْ حَيْثُ لَا يَحْتَسِبُ

داخبرې ګې چه تاسو ته دَ دے نصيحت کيږی، (خاص طور) هرهغه چاته چه هغه په الله او په ورځ دَ آخرت ايمان لری - څوک چه دَ الله نه يَرېږی الله به دَهغه دَ پاره دَ مشکلاتو نه دَ وتلو څه لارپيداکړی او هغه له به دَ داسے لارے نه رزق ورکړی چه هغه به دَ هغهٔ په ګمان کښے هم نهٔ راځی[۵۵]۔

[۵۴] ابن عباس وائی چه دَ دے نه مُراد په طلاق و باندِ هم ګواه جوړول دی او په رُجوع باندِ هم (ابن جرير)۔ دَ حضرت عِمران بن حُصَين نه تپوس اُوشوچه يو سړی خپلے ښځے له طلاق ورکړل او بيا ئے ورته رُجوع اُوکړه، خونهٔ ئے په طلاق و باندِ ګواه اُونيو او نهٔ په رُجوع باندِ۔ هغه ورته په جواب کښے اُووئيل "تا طلاق هم دَسنتونه خلافِ ورکړل او رجوع دِ هم دَ سنتونه خلاف اُوکړه - په طلاق او په رُجوع دواړو باندِ ګواه اُونيسه او بيا داسے مهٔ کوه"۔ (ابوداؤد - ابن ماجه)۔ ليکن دَ څلورو فقهاؤ په دِے باندِ اتفاق دے چه په طلاق و او په رُجوع او په جُدا کيدو باندِ ګواه نيول دَ دے کارونو دَصحيح کيدو دَ پاره شرط نهٔ دے چه که چرے ګواه اُونهٔ نيوے شونونهٔ طلاق کيږی، نهٔ رجوع صحيح ده او نهٔ جُدائی راځی، بلکه دا حکم دَ دے احتياط دَ پاره شوے دے چه څوک بيا روستو انکار اُونهٔ کړی، او که دَ دواړو په منځ کښے جګړه راشی نو چه په آسانه فيصله اُوشی، او دَ شک شُبهو کولو لار بنده شی - دا حکم بالکل داسے دے لکه چه فرمائی وَاَشْهِدُوْٓا اِذَا تَبَايَعْتُمْ، "کله چه تاسو په خپلو کښے بيعه کوئ نو ګواه جوړ کړئ" (البقره، ۲۸۲)۔ دَ دے مطلب دا نهٔ دے چه دَ بيعے په وخت کښے ګواه نيول فرض دی او که ګواه پکښے اُونهٔ نيوے شی نو بيعه به صحيح نهٔ وی، بلکه په دِے حکم کښے يو حکمت دے چه دَ جګړی دَ مخ نيوی دَ پاره ډير بهتر دے۔ دغه شان دَ طلاق و او دَ رُجوع په معامله کښے هم صحيح خبره داده چه په دِے کښے هر يو کار دَ ګواهانو نه بغير هم دَ قانون په لحاظ سره صحيح کيږی، ليکن دَ احتياط دَ پاره پکار داده چه که هر کار کيږی، نو په هغه وخت کښے يا دَ هغے نه روستو و په هغے باندِ دوه کسان دَ انصاف او دَ عدل خاوندان ګواهان اُونيولے شی۔

[۵۵] دَ دے الفاظو نه ښځپله معلوميږی چه بره کوم حکمونه شوی دی هغه دَ نصيحت حيثيت لری نهٔ چه دَ قانون - چه سړے دَ سنتو خلاف طلاق ورکړی، دَ عدّت دَ ورځو شمار محفوظ اُونهٔ ساتی، ښځه دَ مناسب عُذرنه بغير دَ کورنه اُوباسی، دَ عدّت دَ تيريدو نه روستو که رُجوع اُوکړی نو دَ ښځے دَ تنګولو دَ پاره ئے اُوکړی او که رخصتی ئے نو دَ جنګ جګړی سره ئے رخصت کړی، او دَ طلاق و، او دَ رُجوع او دَ جُدا کيدو په وخت کښے هيڅ ګواه اُونهٔ نيسی، نو دَ دے سره به دَ طلاق و او دَ رجوع او دَ جُدا والی په قانونی نتيجو کښے هيڅ فرق نهٔ راځی - البته دَ الله تعالیٰ دَ نصيحت نه خلاف کول به دَ دے خبری دليل وی چه دَ هغه

وَمَنْ يَّتَوَكَّلْ عَلَى اللّٰهِ فَهُوَ حَسْبُهٗ ۚ اِنَّ اللّٰهَ بَالِغُ اَمْرِهٖ ۚ قَدْ جَعَلَ اللّٰهُ لِكُلِّ شَیْءٍ قَدْرًا ③ وَالّٰٓئِیْ يَئِسْنَ مِنَ الْمَحِيْضِ

څوک چه په الله بروسه اُوکړی نو هغه دَپاره هغه کافی دے۔ الله خپل کار په هر حال کښے سرته رَسَوی۔ الله دَ هرڅیز دَپاره یوه اندازه مقرر کړی ده۔

اوستاسو په ښځوکښے چه کومے ښځے دَحیض نه نااُمیده شوی وی دَ هغوئ په معامله کښے

په زړه کښے په الله او په وَرځ دَ آخرت باندِ صحیح ایمان نشته چه دَ هغې په وجه هغه هغه کار اُوکړو چه هغه یو ربښتینی مومن له کول نه وُو پکار۔

سله دَ کلام نه پخپله معلومیږی چه دلته دَ الله نه په یَره سره دَ کارکولو مطلب دَ سنتو مطابق طلاق ورکول دی، دَ عدّت حساب ټیک ټیک ساتل دی، ښځه دَ کور نه نه ایستل دی، دَ عدّت دَ ختمیدو په وخت کښے که ښځه ساتل وی نو دَ بنه ژوند تیرَولو په نیت سره رُجوع کول دی، او که جُدا کول وی نو دَ شریفانو خلقو پشان هغې له رخصت ورکول دی، او دَ طلاق وَرکولو، یا رُجوع کولو یا دَ جُدا کیدو په وخت کښے دوه عادلان کسان گواهان نیول دی۔ دَ دے په حقله دَ الله تعالیٰ حکم دے چه څوک دغه شان دَ تقویٰ نه کار واخلی دَ هغه دَپاره مونږ به څه مخرج (یعنی دَ مشکلاتو نه دَ وتلو لار) اُوباسو۔ دَ دے نه پخپله دا مطلب را اُوزی چه څوک په دے کارونو کښے دَ تقویٰ نه کار نه اخلی هغه به دَ خپل ځان دَپاره پخپله داسے مشکلات پیدا کړی چه بیا به تِرِ دَ وتلو لار نه مومی۔

چه په دے الفاظو غور اُوکړے شی نو صفا معلومیږی چه دَ کومو خلقو په نز بدعی طلاق هډو واقع کیږی نه او چه کوم خلق په یو وخت په یو طُهر کښے دریو طلاقو ورکولو ته یو طلاق وائی، دَ هغوئ رائے صحیح نه ده۔ ځکه چه که چرے بدعی طلاق نه واقع کیږی نو بیا خو هډو څه مشکلات مخے ته نه راځی چه دَ هغې نه دَ وتلو دَپاره دَ مخرج (یعنی دَ لارے) ضرورت وی۔ او که چرے په یَو په دریو طلاقو ورکولو سره یو طلاق واقع کیږی نو بیا هم څه مشکلات نشته چه دَ هغې نه دَ وتلو دَپاره گنی دَ څه لارے ضرورت راشی۔

سله مقصد دا دے چه دَ عدّت په دوران کښے طلاقه شوی ښځه په کور کښے ساتل، دَ هغې خرچ برداشت کول، او دَ رخصتولو په وخت کښے هغې له مَهر یا څه سامان ورکول بے شکه چه په سړی باندِ مالی بوج اَچوی۔ چه دَ کومے ښځے نه سړے خفه شوے وی او دَ هغې سره دَ تعلقاتو ختمولو اراده کړی وی، په هغې باندِ مال خرچ کول به خامخا هغه ته گران وی۔ او که سړے غریب وی نو دا خرچ کول به ورته نور هم ویر گران وی۔ لیکن څوک چه دَ الله نه یَریږی هغه له پکار دی چه دا ټول هرڅه برداشت کړی۔

مِنْ نِّسَآئِكُمْ اِنِ ارْتَبْتُمْ فَعِدَّتُهُنَّ ثَلٰثَةُ اَشْهُرٍ ۙ وَّالّٰٓـِٔيْ

که چرے تاسو ته څه شک وئ نو ( تاسو ته دِ معلومه وی چه ) دَ هغوئ عدّت درے میاشتے دے[۱۲] ـ او هم دا حکم دَ هغوئ دے

---

که ستا سو زړهٔ تنګ وی شوی به ، دَ الله لاس دَ رزق ورکولو دَ پاره تنګ نهٔ دے ـ دَ الله دَ حکم مطابق که مومال خرچ کړو نو هغه به دَ دا سے لاروته تاسوله رزق درکړی چه دَ هغے نه به دَ رزق ملاویدو ګمان هم ستاسو نهٔ راځی ـ

[۱۱] یعنی هیڅ دا سے طاقت نشته چه هغه دَ الله حکم دَ جاری کیدو نه منع کړی ـ

[۱۲] دا دَ هغو ښځو حکم دے چه دَ هغوئ حیض راتلل بالکل بند شوی وی او دَ ډیر عُمر دَ وجے نه هغوئ دَ نا اُمیدئ په عُمر کښے داخلے شوی وی ـ دَ هغوئ عدّت به دَ هغه ورځے نهٔ شماریږی چه دَ کومے ورځے نه هغوئ له طلاق ورکړے شوی وی ـ او دَ دریو میاشتو نه مُراد درے قمری یعنی دَ سپوږمئ میاشتے دی ـ که دَ سپوږمئ دَ میاشتے په شروع کښے طلاق ورکړے شوی وی نو په اتفاق سره به دَ میاشتے دَ لیدو په لحاظ سره عدّت شماریږی، او که چرے دَ میاشتے په مینځ کښے طلاق ورکړے شوی وی نو دَ امام ابو حنیفهؒ په نیز به میاشت دیرش ورځے وی او دغسے به درے میاشتے پوره کوی ( بدائع الصنائع ) ـ

پاتے شوے هغه ښځے چه دَ هغوئ حیض بے قاعدے وی ، نو دَ هغوئ په باره کښے دَ فقهاؤ په مینځ کښے اختلاف دے ـ

حضرت سعید بن المُسَیَّب وائی چه حضرت عُمرؓ فرمائیلی دی چه کومے ښځے له طلاق ورکړے شوی وی او بیا دَ یو دوه حیض راتلو نه روستو دَ هغے حیض بند شوے وی ، نو هغه دِ نهٔه میاشتے انتظار کوی ـ که حمل ښکاره شی خو ټیک ده ، کنه نو دَ نهو میاشتو تیریدو نه روستو دِ هغه درے میاشتے زیات عدّت تیر کړی پس دَ هغے به هغه بل سړی له په نکاح حلاله وی ـ

ابن عباس ، قَتَاده ، او عِکرِمه وائی چه دَ کومے ښځے تول کال حیض نهٔ وی راغلے دَ هغے عدّت درے میاشتے دے ـ

طاؤس وائی چه دَ کومے ښځے په کال کښے یو حیض راشی دَ هغے عدّت درے حیضه دے ـ هم دا رائے دَ حضرت عثمانؓ ، دَ حضرت علیؓ او دَ حضرت زید بن ثابت نه روایت کړے شوی ده ـ

دَ امام مالک روایت دے چه حَبّان نومے یو سړے وُو ، هغه خپلے ښځے له په دا سے زمانه کښے طلاق ورکړل چه هغے بچی له دَ تی پئ ورکول او په هغے باندے یو کال تیر شو خو دَ هغے حیض رانغے ـ بیا هغه سړے مړشو ـ دغے طلاقے شوی ښځے دَ میراث دعوی اوکړه ـ حضرت عثمانؓ ته مقدمه پیش شوه ـ هغه دَ حضرت علیؓ او دَ حضرت زید بن ثابت نه مشوره اوغوښتله ـ دَ دواړو په مشوره سره حضرت عثمانؓ فیصله اوکړه چه دَ ښځے میراث کیږی ـ دلیل دا ؤ چه دا نهٔ هغه ښځه ده چه دَ حیض نه مایوسه شوی وی او نهٔ هغه

لَمْ يَحِضْنَ ۚ وَأُولَاتُ الْأَحْمَالِ أَجَلُهُنَّ أَنْ يَضَعْنَ حَمْلَهُنَّ ۚ

چه حیض ئے لا را غلے نه وی[۱۳]۔ او دَ حامله ښځو دَ عدّت حد دا دے چه دَ هغوی بچے اوشی[۱۴]۔

ځینئ ده چه حیض ئے لا را غلے نهٔ وی، نو هغه دَ خپل خاوند دَ مرګه پورے په خپل هغه حیض باندِ وه کوم چه هغے ته اوّل را غلے وُو او دَ هغے عدّت پا تے وُو۔

حنفیان والیٔ چه دَ کومے ښځے حیض بند شوے وی، خو دَ حیض بندیدل ئے دَ ناامیدئ دَ وجے نه نهٔ وی چه ګنی عُمر ئے دا سے حد ته رسیدلے دے چه بیا به ئے حیض جاری نهٔ شی، نو دَ هغے عدّت یا خو به دَ حیض نهٔ وی که چرے هغه بیا جاری شو، یا به بیا دَ هغه عُمر په لحاظ سره وی چه په کوم کښے دَ ښځو حیض بندیږی او هغه عُمر ته دَ رسیدو نه روستو به هغه درے میاشتے عدّت تیروی او دَ نکاح نه به آزاده وی۔ دا قول دَ امام شافعیؒ، امام ثوری او دَ امام لیثؒ دے۔ او هم دا مذهب دَ حضرت علیؓ حضرت عثمانؓ او دَ حضرت زید بن ثابتؓ دے۔

امام مالک دَ حضرت عمرؓ او دَ حضرت عبدالله بن عباسؓ قول اختیار کړے دے او هغه دا دے چه ښځه به اوّل نهه میاشتے تیروی۔ که چرے په دے دوران کښے حیض جاری نهٔ شو نو بیا به هغه درے میاشتے دَ هغه ښځو پشان عدّت تیروی چه هغوی دَ حیض نه ناامیده شوی وی۔ ابن القاسم دَ امام مالک دَ مسلک دا وضاحت کړے دے چه نهه میاشتے به دَ هغه ورځے نه شماریږی کله چه په آخری ورځ دَ هغے حیض ختم شوے وُو نهٔ دَ هغه ورځے نه کله چه هغے له طلاق ورکړے شوے وُو۔ (دا ټول تفصیلات دَ احکام القرآن للجصّاص او بدائع الصنائع للکاسانی نه اغستے شوے دی)۔

دَ امام احمد بن حنبل مذهب دا دے چه که چرے یوه ښځه، چه دَ هغے عدّت دَ حیض په اعتبار سره شروع شوے وُو، دَ عدّت په دوران کښے دَ حیض راتلو نه ناامیده شی نو هغه به دَ حیض والو ښځو په ځائے دَ ناامیدو ښځو عدّت تیروی۔ او که چرے دَ حیض راتلل بند شی او پته نهٔ لګی چه په څه وجه بند شوے دے نو اوّل به دَ حمل په شک کښے نهه میاشتے تیروی او بیا به درے میاشتے دَ عدّت پوره کوی۔ او که چرے دا معلومه وی چه حیض په دے وجه بند شوے دے، مثلاً څه بیماری وی، یا بچی له پئ ورکوی، یا دا سے بل څه سبب وی، نو هغه به دَ هغه وخته پورے په عدّت کښے وی دَ څو پورے چه یا خو حیض شروع شوے نهٔ وی او عدّت دَ حیض په لحاظ سره شمار شی، یا بیا هغه ناامیده شی او دَ ناامیده ښځو پشان عدّت تیر کړی (الانصاف)۔

[۱۳] حیض که دَ کم عُمرئ دَ وجے نه نهٔ وی راغلے، یا په دے وجه چه ځینو ښځو ته ډیر روستو حیض شروع کیږی، او کله نا کله دا سے هم کیږی چه یوے ښځے ته ټول عُمر حیض نهٔ راځی، په دے ټولو صورتونو کښے دَ دا سے ښځے عدّت هم هغه دے کوم چه دَ حیض نه ناامیدے ښځے (آئِسَة) عدّت دے، یعنی دَ طلاق دَ وخت نه درے میاشتے۔

[۱۴] دلته دا خبره په خیال کښے سا تل پکار دی چه دَ قرآن مجید دَ بیان مطابق دَ عدّت خبره دَ هغه ښځے په معامله کښے پیدا کیږی چه دَ هغے سره خاوند کورواله کړے وی، ځکه چه دَ کوروالی نه

مخکښې په طلاق ورکولو سره هډو عدّت نشته (الاحزاب ،۴۹) ـ نو دا سې ښځکو عدّت بیا نول چه دَ هغوئ حیض نهٔ وی شروع شوے ، بنګاره په دې خبره دلالت کوی چه په دے عمر کښې نه صرف د ښځې نکاح کول جائز دی بلکه دَ خاوند ورسره کور والے کول هم جائز دی ـ اوس دا ظاهره خبره ده چه کوم څیز ته قرآن جائز وئیلی وی ، هغې ته ناجائز وئیل دَ مسلمان حق نهٔ دے ـ

کومے ښځې ته چه په دا سې حالت کښې طلاق ورکړے شوی وی چه دَ هغې حیض لا نهٔ وی شروع شوے او بیا ورته دَ عدّت په دوران کښې حیض راشی ، نو هغه به بیا دَ هغه حیض نه عدّت شروع کوی او دَ هغې عدّت به دَ حیضدارو ښځو پشان وی ـ

۱۴ په دے خبره دَ ټولو عالمانو اجماع ده چه کومه ښځه حامله وی یعنی بچے ئے په ګیډه وی او طلاق ورکړے شی نو دَ هغې عدّت دَ بچی دَ پیدا کیدو پورے دَ ے ـ لیکن په دے خبره کښې اختلاف راغلے دے چه ایا هم دا حکم دَ هغې ښځې دے چه دَ هغې خاوند دَ حمل په دَوران کښې وفات شوے وی ؟ دا اختلاف په دے وجه راغلے دے چه دَ سورۂ بقرے په آیت ۲۳۴ کښې دَ هغه ښځې عدّت څلور میاشتے او لس ورځے بنودلے شوے دے چه کومه ښځه خاوند مړ شی ، او هلته دَ دے خبرې هیڅ وضاحت نشته چه دا حکم ایا دَ ټولو کونډو ښځو دپاره عام دے یا دَ هغه ښځو دپاره خاص دے چه هغوئ حاملے نهٔ وی ـ

حضرت علیؓ او حضرت عبدالله بن عباسؓ دَ دے دواړو آیتونو نه دا مسئله راویاسی چه دَ حاملې مُطلقې ښځې عدّت خو دَ بچی دَ پیدا کیدو پورے دے ، لیکن دَ کونډے حملدارے ښځې عدّت آخر الاَجَلَین دے ، یعنی دَ مُطلّقې دَ عدّت نه او دَ حاملې دَ عدّت نه چه کوم زیات اوږد وی هم هغه دَ هغې عدّت دے ـ مثلاً که دَ هغې بچے دَ څلورو میاشتو او لسو ورځو نه مخکښې پیدا شی نو هغه به دَ څلورو میاشتو او لسو ورځو پورے عدّت تیروی ـ او که دَ هغې بچے دَ دغه وخته پورے پیدا نهٔ شی نو بیا به دَ هغې عدّت دَ هغه وخته پورے وی چه کله بچے پیدا شی ـ هم دا مذهب دَ اِمامیه دے ـ

حضرت عبدالله بن مسعودؓ وائی چه دَ سورۂ طلاق دا آیت دَ سورۂ بقرے دَ آیت نه روستو نازل شوے دے ، په دے وجه روستنی حکم دَ اولنی آیت حکم دَ غیر حاملې کونډو دَپاره خاص کړے دے او دَ هرے حاملې عدّت ئے دَ بچی دَ پیدا کیدو پورے مقرر کړے دے ، خواه که هغه مطلّقه وی او که کونډه وی ـ دَ دے مسلک ترمخه دَ ښځې بچے که دَ خاوند دَ مرګ نه فوراً روستو اُوشی او که دَ څلورو میاشتو او لسو ورځو نه زیات وخت واخلی خو چه بچے پیدا شی نو دَ ښځې عدّت به ختم وی ـ دَ دے مسلک تائید دَ حضرت اُبیؓ بن کعب دا روایت کوی چه هغه فرمائی چه کله دَ سورۂ طلاق دا آیت نازل شو نو ما دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم نه تپوس اُوکړو چه آیا دا دَ مطلّقې او کونډے دواړو دَپاره دے ؟ نبیؐ اُوفرمائیل چه هَو ـ په بل روایت کښې نبیؐ زیات وضاحت اُوکړو اجل کل حامل ان تضع ما فی بطنها ، " دَ هرے حاملې ښځې عدّت دَ هغې دَ بچی دَ پیدا کیدو پورے دے " (ابن جریر ـ ابن ابی حاتم ـ ابن حجر وائی چه اګرچه دَ دے په سند کښې خبرې کیدے شی ، لیکن دا چونکه دَ ګنړو سندونو سره نقل شوے دے نو په دے وجه سړے مجبوره وی چه اُومنی چه دَ دے اصل ضرور شته) ـ دَ دے نه هم زیات مضبوط تائید دَ سُبَیعۂ اَسلَمِیه واقعه ده چه دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم

په مبارکه زمانه کښې شوی وه ـ هغه چه کونډه شوه نو په کیدو یې بچې وُو او د خاوند د وفات نه پو څو ورځې روستو (په ځینو روایتونو کښې شل ورځې روستو، په ځینو کښې درویشت ورځې روستو، په ځینو کښې پنځویشت ورځې روستو، په ځینو کښې شپږویشت ورځې او پنځه دیرش ورځې بیان شوی دی) د هغې بچې اوشو ـ د نبیؐ نه د هغې په حقله تپوس اوشو نو نبیؐ هغې له د نکاح اجازت ورکړو ـ دا واقعه بخاری او مسلم په ګڼو طریقو سره د حضرت ام سلمیٰ نه روایت کړی ده ـ دا واقعه بخاری، مسلم، امام احمد، ابوداوُد، نسائیؒ او ابن ماجه د مختلفو سندونو سره د حضرت مسوّر بن مخرمه نه هم روایت کړی ده ـ مسلم د سبیعه اسلمیه دا بیان نقل کړے دے چه څه د حضرت سعد بن خوَله ښځه وُم ـ د حجة الوداع په زمانه کښې ځما خاوند مړ شو او ځما بچې په کیدو وُو یعنی څه حامله وُم ـ د خاوند د مرګ نه پو څو ورځې روستو ځما بچې اوشو ـ یو تن اوویل چه ته د څلورو میاشتو او لسو ورځو نه مخکښې نکاح نه شې کولے ـ څه لاړم او د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه مې تپوس اوکړو نو هغه حکم اوکړو چه ته د بچی د پیدا کیدو سره حلاله شوی یې ـ اوس که غواړې نو دویم نکاح کولے شې ـ دا روایت بخاری هم مختصرشان نقل کړے دے ـ

د ګڼو صحابو نه هم دا مسلک نقل کړے شوے دے ـ امام مالک، امام شافعی، عبدالرزاق، ابن ابی شیبه او ابن المنذر روایت نقل کړے دے چه د حضرت عبدالله بن عمرؓ نه د حاملې کونډې مسئله اوتپوسلے شوه نو هغه اوویل چه د هغې عدّت د بچی د پیدا کیدو پورې دے ـ په دې باندې د انصارو یو تن خبره اوکړه چه حضرت عمرؓ خو دې پورې ویلی وُو چه که چرې خاوند لا ښخ شوے هم نه وی بلکه په کور کښې مړ په کټ کښې پروت وی او د هغه د ښځې بچې اوشی نو هغه به د دویم نکاح د پاره حلاله وی ـ هم دا رائے د حضرت ابوهریرهؓ، حضرت ابومسعودؓ بدری او حضرت عائشهؓ ده، او هم دا رائے څلورو وارو اماما نو او نورو لویو فقهاؤ اختیار کړې ده ـ شافعیان وائی چه که چرې د حاملې په کیدو کښې د یو نه زیات بچی وُو نو د آخری بچی د پیدا کیدو سره به عدّت ختم وی ـ که بچې مړ پیدا شوے وی خو د هغه د کیدو سره به عدّت ختمیږی ـ د اِسقاط حمل یعنی د زیان په صورت کښې که چرے دائیانے د خپلے پوهے ترمخه دا اُووائی چه دا هسے د وینې ټوټه نه وه بلکه په دې کښې د انسان شکل موندې کیدو، یا دا رَسُولۍ نه وه بلکه د انسان اصل وُو نو د هغې خبره به قبوله وی او عدّت به ختمیږی (مُغنی المحتاج) ـ د حنبلیانو او حنفیانو مسلک هم دې ته نزدے نزدې دے ـ لیکن د زیان په معامله کښې د هغوی مذهب دا دے چه ترڅو پورے انسانی شکل په ظاهره نه ښکاریږی نو تر هغې به تش د دائیانو په خبرو باندې باور نه کیږی او په هغې سره به عدّت نه ختمیږی (بدائع الصنائع ـ الانصاف) ـ لیکن په موجوده زمانه کښې د طِبّی تحقیقاتو په ذریعه دا معلومول څه ګران نه دی چه کوم زیان شوے څیز واقعی انسان وُو یا هسے رَسُولۍ یا د وینې ټوټه وه، نو اوس چه په کوم ځائے کښې د ډاکټرانو رائے اغستل ممکن وی هلته دا فیصله په آسانه کیدے شی چه کوم څیز ته زیان ویلے شی آیا هغه واقعی زیان وُو او که نه او په هغې سره عدّت ختم شو او که نه ـ البته چه په کوم ځائے کښې داسے طِبّی تحقیق ممکن نه وی هلته د حنبلیانو او د حنفیانو په مسلک کښې زیات احتیاط شوے دے او په ناپوهه دائیانو باندې اعتماد کول مناسب نه دی ـ

وَمَنْ يَّتَّقِ اللّٰهَ يَجْعَلْ لَّهٗ مِنْ اَمْرِهٖ يُسْرًا ﴿۴﴾ ذٰلِكَ اَمْرُ اللّٰهِ اَنْزَلَهٗۤ اِلَيْكُمْ ؕ وَمَنْ يَّتَّقِ اللّٰهَ يُكَفِّرْ عَنْهُ سَيِّاٰتِهٖ وَيُعْظِمْ لَهٗۤ اَجْرًا ﴿۵﴾ اَسْكِنُوْهُنَّ مِنْ حَيْثُ سَكَنْتُمْ مِّنْ وُّجْدِكُمْ وَلَا تُضَآرُّوْهُنَّ لِتُضَيِّقُوْا عَلَيْهِنَّ ؕ

څوک چه دَ الله نه يرېږي الله دَ هغه په کار کښې آسانتيا پيدا کوي ـ دا دَ الله حکم دے چه تاسو ته ئې نازل کړے دے ـ څوک چه دَ الله نه يَرَه اُوکړي الله به دَ هغه ګناهونه دَ هغه نه اُوريږَوي او لوئ اجر[15] به ورله ورکړي ـ

طلاق شوې ښځې (دَ عدّت په زمانه کښې) په هغه ځائے کښې ساتئ چه په کوم ځائے کښې تاسو اُوسيږئ ستاسو دَ خپل وَس مطابق هر څنګه ځائے چه وي ـ او دَ تنګولو دَپاره هغوئ له تکليف[16] مه ورکوئ ـ

[15] دا اګرچه يو عام نصيحت دے چه دَ انسان دَ ژوند دَ ټولو حالاتو سره لګي، ليکن دلته دَ دے مقصد مسلمانانو له خبردارے ورکول دي چه ټوره کوم حکمونه بيان کړے شوي دي، په هغې سره چه هر څومره ذمه وارئ په تاسو راځئ خود دَ خدائے نه اُويرېږئ او په هغې عمل اُوکړئ الله به ستاسو په کار کښې آسانتيا پيدا کوي، ستاسو ګناهونه به معاف کوي او تاسو له به لوئ اجر درکوي ـ ظاهره خبره ده چه دَ کومو طلاق قوشوو ښځو عدّت درے مياشتې مقرر کړے شوے دے دَ هغوئ دَ عدّت زمانه به دَ هغو ښځو په نسبت زياته اُوږده وي چه دَ کومو عدّت درے حيضه مقرر کړے شوے دے ـ او دَ حاملې ښځې دَ عدّت زمانه خو دَ دے نه هم يو څو مياشتې زياته کيدے شي ـ په دے ټوله زمانه کښې دَ ښځې استوګنه او دَ هغې دَ خرڅ خوراک ذمه وارئ په سړي غستل خلقو ته ګرانه پريوزي، او خاص طور په هغه صورت کښې چه سړي دَ هغې دَ پريښودلو اراده کړې وي ـ ليکن کوم بار چه دَ الله دَ يَرے دَ وجے نه دَ الله دَ حکم په عمل کښې اُوچت کړے شي دَ هغې په حقله دَ الله وعده ده چه دغه بار به الله په خپل فضل سره سپک کړي او دَ هغې به دومره لويه بدله ورکړي چه دَ دُنيا دَ لږ بوج په نسبت به ډير زيات وي ـ

[16] په دے خبره دَ ټولو فقهاؤ اتفاق دے که ښځې له رجعي طلاق ورکړے شوي وُو نو به خاوند دَ هغې استوګنه او دَ هغې دَ خرچ خوراک ذمه وارئ راځي ـ او په دے خبره هم اِتفاق دے چه که چرے ښځه حامله وي نو که رجعي طلاق ورکړے شوي وي او که بالکل دَ جُدا کيدو طلاق

ورکړے شوی وی، په هرحال کښے به دَ بچی دَ پیدا کیدو پورے دَ ښځے دَ استوګنے او دَ ښځے دَ خرچ خوراک ذمه وار خاوند وی. دَ دے نه روستو اختلاف په دے خبره کښے راغلے دے چه آیا غیرحامله طلاقه شوی مَبتُوتَه (یعنی چه قطعی طور دَ جُدا کولو طلاق ورکړے شوی وی) دَ استوګنے اودَ خرچ خوراک دواړو حقداره ده؟ که صرف دَ استوګنے حق لری؟ که په دواړو کښے دَ یو هم حقداره نهٔ ده؟

یو ډله وائی چه هغه دَ استوګنے اودَ خرچ خوراک دَ دواړو حقداره ده. دا رائے دَ حضرت عمرؓ، حضرت عبدالله بن مسعود، حضرت علی بن حسین (امام زین العابدینؒ) دَ قاضی شریح اودَ ابراهیم نخعی ده. هم دا رائے حنفیانو اختیار کړی ده، اودَ امام سُفیان ثوری اودَ حسن بن صالح هم دا مذهب دے. دَ دے تائید دَ دارِ قطنی دَ هغه حدیث نه کیږی چه په هغے کښے حضرت جابر بن عبدالله وائی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائی "المطلقة ثلاثا لها السکنیٰ والنفقة." "کومے ښځے له چه درے طلاقه ورکړے شوی وی، دَ عدّت په زمانه کښے دَ هغے دَ استوګنے اودَ خرچ خوراک حق دے." دَ دے زیات تائید دَ هغه روایتونو نه کیږی چه په هغے کښے ویلے شوی دی چه دَ فاطمے بنتِ قیس حدیث حضرت عمرؓ په دے وینا سره رد کړے وُو چه مونږ دَ یوے ښځے په وینا بانډِ دَ خپل رب کتاب اودَ خپل نبیؐ سنّت نهٔ شو پریښودے. دَ دے نه معلومیږی چه دَ حضرت عمرؓ په علم کښے به خامخا دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم دا سنّت وی چه دا سے ښځه دَ خرچ خوراک او دَ استوګنے حق لری. بلکه دَ ابراهیم نخعی په یو روایت کښے خو دا څرګند بیان دے چه حضرت عمرؓ دَ فاطمے بنت قیس حدیث په دے وینا سره رد کړے وو چه، سمعت رسول الله صلی الله علیه وسلم یقول لها السکنیٰ والنفقة" ما ما رسول الله صلی الله علیه وسلم نه وا اوریدلی وی چه دَ دا سے ښځے دَ استوګنے حق هم دے اودَ خرچ خوراک هم. امام ابوبکر جصّاصؒ په احکام القرآن کښے په دے مسئله بانډِ تفصیلی بحث کړے دے اودَ دے مسلک په حق کښے یُ اولنے دلیل دا ورکړے دے چه الله تعالیٰ مطلقاً فرمائیلی دی فَطَلِّقُوهُنَّ لِعِدَّتِهِنَّ، "هغوی له دَ هغوی دَ عدّت دَ پاره طلاق ورکړئ." دَ الله تعالیٰ په دے حکم کښے هغه سړے هم راځی چه څوک یُ دوه طلاقه ورکړی وی او ترپا ئے رجوع کړی وی او اوس ورته صرف دَ یو طلاق ورکولو حق پاتے وی. دوېم دلیل دَ هغه دا چه رسول الله صلی الله علیه وسلم کله دَ طلاق ورکولو دا طریقه اُوښودله چه سړے خو دِ یا په دا سے طُهر کښے طلاق ورکوی چه په هغے کښے کوروالے نهٔ وی شوے، یا دِ په دا سے حالت کښے طلاق ورکوی چه ښځه حامله کیدل ښکاره شوے وی" نو په دے کښے نبیؐ دَ اولنی، دَ دوېم یا دَ درېم طلاق په منځ کښے څه فرق نهٔ دے کړے. نو دَ الله تعالیٰ دا حکم چه "هغوی په دا سے ځائے کښے ساتئ په کوم ځائے کښے چه تاسو اوسئ" دا به دَ هر قسم طلاق نو سره تعلق لری. دریم دلیل هغه دا ورکوی چه حامله طلاقه ښځه، خواه که رجعی طلاق ورکړے شوی وی او که دَ جُدا والی، دَ هغے استوګنه اودَ هغے خرچ خوراک په خاوند بانډِ واجب دے. او کومه ښځه چه غیرحامله وی او رجعی طلاق ورکړے شوی وی دَ هغے دَ پاره هم دا دواړه حقونه واجب دی. دَ دے نه معلومه شوه چه استوګنه او نفقه دَ حمل په وجه واجب نهٔ دو بلکه په دے وجه واجب ده چه دا دواړه قسمه ښځے دَ شریعت په لحاظ سره دَ خاوند په کور کښے په رُسید و پاتے مجبوره دی. اوس که چرے دا حکم دَ هغه غیرِحاملے په باب کښے هم وی چه هغه مَبتُوتَه وی یعنی هغے له دَ جُدا والی طلاق ورکړے شوی وی نو بیا دَ هغے دَ استوګنے اودَ نفقے ذمّه هم په سړی ده.

دويمه ډله وائي چه کومه ښځې له دَ جُدا والي طلاق ورکړے شوي وي (يعنی مَبتوته طلاقه ښځه وي) نو دَ هغې دَ استوګنې حق خوشته ليکن دَ نفقې حق ئې نشته ـ دا مسلک دَ سعيد بن المُسَيَّب، سليمان بن يَسار، عطاء، شَعْبِي، اوزاعي، ليث او دَ ابو عبيد (رحمهم الله) دے، او امام شافعي او امام مالک هم دا مسلک اختيار کړے دے، ليکن په مُغنی المحتاج کښے دَ امام شافعي مسلک دَ دے نه مختلف بيان شوے دے لکه څنګه چه وړاندې راروان دے ـ

دريمه ډله وائي چه کومې ښځې له دَ جُدا والي طلاق ورکړے شوي وي دَ هغې نهٔ دَ استوګنې حق شته او نهٔ دَ نفقې ـ دا مسلک دَ حَسن بصري، حمّاد، ابن ابی ليلیٰ، عَمرو بن دينار، طاؤس، اِسحاق بن راهَويه، او دَ ابو ثَور دے ـ ابن جرير دَ حضرت ابن عباس هم دا مسلک اختيار کړے دے ـ امام احمد بن حنبل او اماميه هم دا مسلک اختيار کړے دے ـ او په مُغنی المحتاج کښے دَ شافعيانو مسلک هم دا بيان شوے دے چه: "تجب سکنیٰ لمعتدة طلاقٍ حائلٍ او حاملٍ ولا بائنٍ ..... والحائل البائن لا نفقة لها ولا کسوة" دَ طلاق په وجه چه کومه ښځه عدّت تيروي دَ هغې دَ پاره دَ استوګنې حق واجب دے، خواه که هغه حامله وي او که نهٔ وي، ليکن دَ بائنې ښځې دَ پاره يعنی کومې ښځې له چه دَ جُدا والي طلاق ورکړے شوي وي دَ هغې دَ پاره واجب نهٔ دے ...... او کومه ښځه چه حامله نهٔ وي او دَ جُدا والي طلاق ورکړے شوي وي دَ هغې دَ پاره نهٔ نفقه شته او نهٔ کپړا" دَ دے مسلک په دليل کښے يو خو دَ قرآن مجيد دا آيت دے چه: لَا تَدْرِیْ لَعَلَّ اللّٰهَ يُحْدِثُ بَعْدَ ذٰلِكَ أَمْرًا، "تا ته پته نهٔ لګي، شايد چه دَ دے نه روستو الله دَ زړهٔ دَ لګيد وڅه لار پيدا کړي" دَ دے نه هغوئ دا مطلب را اوباسي چه دا خبره دَ هغه ښځې په حق کښے صحيح کيدے شي کومې له چه رَجعي طلاق ورکړے شوي وي، او کومې ښځې له چه دَ جُدا والي طلاق ورکړے شوي وي دَ هغې په حق کښے صحيح کيدے نشي ـ نو دَ طلاق ئے شوي ښځې په کور کښے دَ ساتلو حکم هم دَ رجعيتې ښځې دَ پاره خاص دے ـ دويم دليل دَ فاطمے بنت قيس حديث دے چه هغه دَ حديثو په کتابونو کښے دَ ګڼو صحيح سندونو سره روايت شوے دے ـ

دا فاطمهؓ بنتِ قيس الفِهريه په اولنو مُهاجرو ښځو کښے وه، ډيره عقلمنه ګڼلے شوه، او دَ حضرت عمرؓ دَ شهادت په موقع دَ شورىٰ والو غونډه هم دَ دے په ځائے کښے شوي وه ـ دا اول دَ ابو عَمرو بن حَفص بن المُغيرة المَخزومي په نکاح کښے وه، بيا خاوند په دريو طلاقو سره جُدا کړله، او روستو بيا رسول الله صلی الله عليه وسلم دَ هغې نکاح دَ حضرت اسامه بن زيد سره اوکړه ـ دَ دے قيصه دا ده چه دَ دے خاوند ابو عَمرو اول دے له دوه طلاقه ورکړي وُو ـ بيا چه کله دَ حضرت عليؓ سره يمن ته اوليږلے شو نو دريم طلاق ئے ورته دَ هغه ځائے نه را اوليږو ـ په ځينو روايتونو کښے دا دي چه ابو عَمرو خپلو رشته دارانو ته خبر ليږلے وُو چه دَ عدّت په زمانه کښے هغه په کور کښے اوساتي او دَ هغې خرچ برداشت کړي ـ او په ځينو کښے دا دي چه هغې په خپله دَ نفقې او دَ استوګنې دَ حق مطالبه کړې وه ـ بهرحال هرڅه چه وُو، دَ خاوند رشته دارانو دَ هغې دَ حق منلو نه انکار اوکړو ـ نو دا نبي صلی الله عليه وسلم له لاړه او دا دعویٰ ئے اوکړه، او نبيؐ فيصله اوکړه چه نهٔ ستا دَ پاره نفقه شته او نهٔ استوګنه ـ په يو روايت کښے دي چه نبيؐ اوفرمائيل: "انما النفقة والسکنیٰ للمرأة علیٰ زوجها ما کانت لهٔ عليها رجعة، فاذا لم يکن له عليها رجعة فلا نفقة ولا سکنیٰ" "دَ ښځې نفقه او استوګنه خو په خاوند باندې هله واجب ده چه دَ خاوند هغې ته دَ رُجوع حق وي ـ ليکن هرکله چه دَ رُجوع حق نهٔ وي نو نهٔ نفقه شته

او نهٔ استوګنه" (مسند احمد) - طبرانی او نسائی هم تقریباً دا روایت نقل کړے دے اود هغے آخری الفاظ دا دی، فاذا کانت لا تحل له حتی تنکح زوجا غیره فلا نفقة ولا سکنیٰ،" لیکن هرکله چه هغه دَ هغه دَ پاره دَ هغه وخته پورے حلاله نهٔ دی ترڅو چه ئے دَ بل سړی سره نکاح نهٔ وی کړی نو بیا دَ هغے دَ پاره نهٔ نفقه شته او نهٔ استوګنه". دَ دے حکم بیا نولو نه روستو نبیؐ هغے ته اوّل دَ امّ شریک په کور کښے دَ عدّت تیرولو حکم اوکړو او بیا روستوئے اوفرمائیل چه ته اُمّ مکتوم کره اوسه -

لیکن دا حدیث چه کومو خلقو قبول کړے نهٔ دے دَ هغوی دلیلونه دا دی:

(۱) دا چه هغے ته دَ خاوند دَ خپلوانو دَ کور پریښودو حکم په دے وجه شوے وُو چه هغه دَ ژبے نه ډیره تیزه وه او دَ خاوند خپلوان دَ هغے دَ ژبے نه تنګ وُو- سعید بن المسیّب وائی چه "دَ غه ښځے دَ خپل حدیث په بیانولو سره خلق په فتنه کښے اچولے دے - اصل خبره دا ده چه هغه ژبوره وه، په دے وجه هغه دَ ابن امّ مکتوم کره دَ اوسیدو دَ پاره پاتے کړے شوه" (ابوداؤد). په دویم روایت کښے دَ سعید بن المسیّب دا قول نقل کړے شوے دے چه هغے دَ خپل خاوند دَ خپلوانو سره ژبه وهلے وه په دے وجه هغے ته دَ هغه کورنه دَ لرے کیدو حکم شوے وو (جصّاص). سلیمان بن یسار وائی ،"دَ هغے دَ کورنه دَ وتلو اصلی وجه دَ هغے بد مزاجی وه" (ابوداؤد).

(۲) دویم دا چه دَ هغے روایت حضرت عمرؓ په هغه زمانه کښے رد کړے وُو چه صحابه کرام لا په کثیر تعداد کښے موجود وُو او دَ دے معاملے پوره کیدے شو- ابراهیم نخعی وائی چه هرکله حضرت عمرؓ ته دَ فاطمےؓ دا حدیث اورسیدو نو هغه اوفرمائیل لسنا تبارکی آیة فی کتاب الله وقول رسول الله صلی الله علیه وسلم لقول امرأة لعلها او همت سمعت رسول الله صلی الله علیه وسلم یقول لها السکنیٰ والنفقة -" مونږ دَ کتاب الله یو آیت او دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم قول دَ یوے ښځے دَ قول نه نهٔ شو پریښودے چه هغے ته شاید څه وهم شوے دے. ما پخپله دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم نه اوریدلی دی چه دَ مبتوتے دَ پاره یعنی دَ جدائیٔ په طلاقو طلاقے شوی ښځے دَ پاره دَ استوګنے حق هم شته او دَ نفقے هم" (جصّاص). ابواسحاق وائی چه څهٔ دَ ابواسود بن یزید سره دَ کوفے په جومات کښے ناست وُوم - هلته شعبی دَ فاطمے بنتِ قیس دَ حدیث ذکر اوکړو- په دے باندِ حضرت اسود شعبی ته کنکرے راخکل اووے ویل چه دَ حضرت عمرؓ په زمانه کښے هرکله دَ فاطمے دا روایت پیش کړے شوے وُو نو هغه فرمائیلی وُو" مونږ دَ خپل رب کتاب او دَ خپل نبی سنت دَ یوے ښځے دَ وینا په وجه رد کولے نهٔ شو، پته نهٔ لګی چه هغے یاد اوساتل او که هیر شو ترے دَ هغے دَ پاره نفقه او استوګنه شته، دَ الله حکم دے لَا تُخْرِجُوْهُنَّ مِنْۢ بُيُوْتِهِنَّ" دا روایت دَ الفاظو دَ اختلاف سره په مسلم، ابوداؤد، ترمذی او نسائی کښے نقل کړے شوے دے.

(۳) دریم دا چه دَ مروان دَ حکومت په زمانه کښے کله دَ جدائیٔ په طلاقو سره دَ طلاقے شوی ښځے (یعنی دَ مبتوتے مطلقے) په حقله یو کرم بحث روان وُو نو حضرت عائشےؓ دَ فاطمے بنتِ قیس په روایت باندِ سخت اعتراضونه کړی وُو- قاسم بن محمد وائی چه ما دَ حضرت عائشےؓ نه تپوس اوکړو چه آیا تاته دَ فاطمے قیصه معلومه نهٔ ده؟ هغے په جواب کښے اوفرمائیل "چه دَ فاطمے دَ حدیث ذکر اونهٔ کړے نو ښه ده" (بخاری).

وَإِنْ كُنَّ أُولَاتِ حَمْلٍ فَأَنْفِقُوا عَلَيْهِنَّ حَتَّىٰ يَضَعْنَ حَمْلَهُنَّ ۚ

اوکه چرے هغوئ حاملے وی نو په هغوی باندِ دَ هغه وخته پورے خرچ کوئ چه ترڅو ئے اولاد نهٔ وی پیدا شوے [علے]

بخاری چه کوم دوېم روایت نقل کړے دے په هغې کښے دَ حضرت عائشےؓ الفاظ دا دی ، "په فاطمے څه شوی دی هغه دَ خدائے نه یریږی نهٔ ؟" په دریم روایت کښے حضرت عُروَه بن زُبیر وائی چه حضرت عائشے اُوفرمائیل " دَ فاطمے دَپاره په دِے حدیث بیانولو کښے څه خیر نشته " حضرت عُروَه په یو بل روایت کښے بیان کوی چه حضرت عائشےؓ په فاطمے باندِ سخته ناراضګی ښکاره کړه آو وے وئیل ، " هغه په اصل کښے په یو خالی ځائے کښے وه چه هلته څوک مینځ والا نهٔ وُو په دِے وجه دَ هغے دَ سلا متیا دَ خاطره نبیؐ هغے ته دَ کور دَ بدلولو حکم کړے وُو ."

(۴) څلورم دا چه دَ دے ښځے نکاح روستو دَ اُسامهؓ بن زید سره شوی وه ، او محمد بن اُسامه وائی چه کله به فاطمے دَ دے حدیث ذکر کولو نو ځما دَ پلار لاس له چه به څه ورغلل په هغے به ئے ګوزار کولو ( جصّاص ) . ښکاره خبره ده چه که چرے دَ حضرت اُسامه په علم کښے سنّت دَ دے خلاف نهٔ وے نو هغه به دَ دے حدیث په روایت باندِ دومره دَ ناراضګئ اِظهار نهٔ شو کولے .

[علے] په دِے خبره اتفاق دے چه طلاق قه شوی ښځه ، خواه که رجعی طلاق ورکړے شوی وی اوکه دَ جُدا ئیځ ، که حامله وی نو دَ بچی دَ کید و پورے دَ هغے دَ استوګنے او دَ نفقے ذمّه وار خاوند دے . البته اختلاف په دِے خبره کښے دے چه دَ حاملے خاوند مړ شوے وی ، خواه که دَ طلاق ورکولو نه روستو مړ شوے وی او که هغو طلاق ئے نهٔ وی ورکړی او دَ ښځے دَ حمل په دوران کښے مړ شوے وی . په دِے معامله کښے دَ فقهاؤ مسلکونه دا دی :

(۱) دَ حضرت علیؓ او دَ حضرت عبدالله بن مسعودؓ قول دے چه دَ خاوند په ټول میراث کښے دَ هغے نفقه واجب ده . دَ حضرت عبدالله بن عمرؓ ، قاضی شریح ، ابوالعالیه ، شعبی او ابراهیم نخعی نه هم دا قول نقل کړے شوے دے ، او دَ حضرت عبدالله بن عباسؓ هم یو قول دَ دے په تائید کښے دے ( آلوسی . جصّاص ) .

(۲) ابن جریر دَ حضرت عبدالله بن عباسؓ دوېم قول دا نقل کړے دے چه په هغے باندِ دَ هغے دَ کیټو دَ بچی دَ حصّے نه خرچ اُوکړے شی که چرے دَ مړی نه څه میراث پاتے شوے وی . او که میراث نهٔ وی پاتے شوے نو دَ مړی وارثانو ته پکار دی چه په هغے خرچ اُوکړی ، ځکه چه الله تعالی فرمائیلی دی وَعَلَى الْوَارِثِ مِثْلُ ذَٰلِكَ ( البقره ، آیت ۲۳۳ ) .

(۳) حضرت جابر بن عبدالله ، حضرت عبدالله بن زبیرؓ ، حضرت حسَن بصری ، حضرت سعید بن المُسَیّب او حضرت عطاء بن ابی رَباح وائی چه دَ وفات شوی خاوند په مال کښے دَ هغے دَپاره هیڅ نفقه نشته . دَ حضرت عبدالله بن عباسؓ نه هم یو دریم قول دا نقل شوے دے ( جصّاص ) . دَ دے مطلب دا دے چه دَ خاوند دَ میراث نه هغے ته کومه حصّه مِلاوُ شوی وی دَ هغے نه هغه خپله خرچه پوره کولے شی ، لیکن دَ خاوند په ټول میراث باندِ دَ هغے نفقه نهٔ راځی چه بوج ئے په ټولو وارثانو باندِ راشی .

فَإِنْ أَرْضَعْنَ لَكُمْ فَآتُوهُنَّ أُجُورَهُنَّ ۖ وَأْتَمِرُوا بَيْنَكُم بِمَعْرُوفٍ ۖ وَإِن تَعَاسَرْتُمْ فَسَتُرْضِعُ لَهُ أُخْرَىٰ ۝٦ لِيُنفِقْ ذُو سَعَةٍ مِّن سَعَتِهِ ۖ وَمَن قُدِرَ عَلَيْهِ رِزْقُهُ فَلْيُنفِقْ مِمَّا آتَاهُ اللَّهُ ۚ لَا يُكَلِّفُ اللَّهُ نَفْسًا إِلَّا مَا آتَاهَا ۚ سَيَجْعَلُ اللَّهُ بَعْدَ عُسْرٍ يُسْرًا ۝٧

(ع ۲ / ۱۷)

بیا که چرے هغوئ ستا سو دَ پاره (بچی له) ټئ ورکړل نو هغوئ له خپل اُجرت ورکړئ، او (دَ اُجرت معامله) په خپل منځ کښې په مشوره سره په ښه طریقه فیصله کړئ[۱۸] او که چرے تا سو (دَ اُجرت په فیصله کولو کښے) یو بل تنګ کړو نو بچی له به یوه بله ښځه ټئ ورکوی - مالدار سړے دِ دَ خپلے مالدارئ مطابق نفقه ورکړی، او چا له چه رزق کم ورکړے شوے وی هغهٔ دِ دَ هغه مال نه خرچ اُوکړی کوم چه الله هغه له ورکړے دے - الله چه چا له څومره څه ورکړی دی دَ هغے نه زیات بوج په هغه نهٔ اَچوی - لرے نهٔ ده چه دَ تنګسیا نه روستو الله فراختیا هم ورکړی - ع

(۴) ابن ابی لیلیٰ وائی چه دَ هغے نفقه دَ وفات شوی خاوند په مال کښے داسے واجب ده لکه څنګه چه دَ هغه په مال کښے دَ چا قرض واجب وی (جصّاص) - یعنی دَ ټول میراث نه چه څنګه قرض ورکړے کیږی دغه شان دِ دَ هغے نفقه هم ورکړے شی -

(۵) امام ابو حنیفه، امام ابو یوسف، امام محمّد او امام زُفر وائی چه دَ مړی په مال کښے دَ هغے نهٔ دَ استوګنے حق شته او نهٔ دَ نفقے - څکه چه دَ مرګ نه روستو دَ مړی څه ملکیّت هډو نشته - دَ مرګ نه روستو خو هغه دَ وارثانو مال دے - دَ هغوئ په مال کښے دَ حاملے کونډے نفقه څنګه واجبیدے شی (هدایه، جصّاص) - هم دا مسلک دَ امام احمد بن حنبل دے (الانصاف) -

(۱۱) امام شافعی وائی چه دَ هغے دَ پاره هیڅ نفقه نشته، البته دَ استوګنے حق ئے شته (مغنی المحتاج) - دَ هغه دلیل دَ حضرت ابو سعید خُدری دَ خور فُرَیعة بنت مالک دا واقعه ده چه دَ هغے خاوند کله اُووژلے شو نو رسول الله صلی الله علیه وسلم هغے ته حکم اُوکړو چه دَ خاوند په کور کښے عدّت تیر کړه (ابوداؤد، نسائی، ترمذی) - په دِے دَ پاسه دَ هغه دَلیل دَ دار قطنی دا روایت دے چه نبیؐ فرمائیلی دی: لیس للحامل المتوفی عنها زوجها نفقة - "دَ کونډے حاملے دَ پاره هیڅ نفقه نشته" دا مسلک دَ امام مالک هم دے (حاشیة الدّسوقی) -

۱۸ له دَ دے حکم نه ډیرے خبرې معلومیږي شوے - یوه دا چه ښځه دَ خپلو بیو مالکه ده ، کنئ نو ظاهره خبره ده چه هغه دَ دے دَ اُجرت اغستلو حقداره کیدے نهٔ شوه ـ دویمه داچه کله دَ بچی دَ پیدا کیدو سره هغه دَ خپل خاوند دَ نکاح نه بهر شوه نو هغه په قانون کښے په دِے مجبوره نهٔ ده چه بچی له دِ خامخا پئ ورکړي بلکه دَ بچی پلار که په هغے پئ ورکول غواړي او هغه هم راضی وي نو بچی له به پئ ورکوي او په هغے به دَ اُجرت اغستو حقداره ۔ دریمه داچه پلار هم په قانون کښے مجبور نهٔ دے چه خامخا دِ دَ بچی دَ مور پئ ورکوي ـ څلورمه داچه دَ بچی ننفقه په پلار راځئ ـ پنځمه داچه بچی له دَ پئ ورکولو اولنئ حقداره مور ده او دَ بلے ښځے نه دَ پئ ورکولو کارهله اَغستے شی چه خپله مور ئے په پئ ورکولو راضی نهٔ وي ، یا دَ بیو ورکولو دا سے اُجرت اوغواړي چه دَ هغے ورکول دَ پلار دَ وَس نه بهروي ، دَ دے نه شپږمه قاعده دارا اُوځئ چه که چرے بله ښځه هم هغه اُجرت غواړي کوم چه دَ بچی خپله مور غواړي نو دَ مور حق اول دے ـ

دَ فقهاوُ رائے په دِے مسئله کښے دادی :

ضحّاک وائ چه " دَ بچی مور دَ پئ ورکولو زیاته حقداره ده ـ لیکن هغے ته اختیار دے چه که پئ ورکوی او که نهٔ ـ البته که چرے دَ بلے ښځے سینه قبول نهٔ کړي نو مور به په بیو ورکولو باندِ مجبوره کړے کیږی ۔" هم دغسے رائے دَ قتاده او دَ ابراهیم نخعی او دَ سفیان ثوری ده ـ ابراهیم نخعی دا هم وائ چه " که چرے بله ښځه دَ بیو ورکولو دَ پاره نهٔ مِلا ویدله نو بیا به هم مور په پئ ورکولو مجبوره کړے کیږی ۔" ( ابن جریر )-

په هدایه کښے دی " که چرے دَ مورا و پلار دَ جُدائئ په وخت کښے بچے پئ خوری نو په مور باندِ دا فرض نهٔ دی چه خاص هم هغه دِ پئ ورکوی ـ البته که چرے بله ښځه نهٔ مِلا ویدله نو خپله مور به په پئ ورکولو مجبوره کړے کیږی ـ او که چرے پلار دا اُووائ چه ځه به دَ بچی مور له دَ اُجرت ورکولو په ځائے بلے ښځے له دَ پیو اُجرت ورکوم ، او مور دَ بلے ښځے هومره اُجرت غوښتلو، یا بے اُجرته په پیو ورکولو راضی وه ، نو بیا به دَ مور حق دَ ټولو نه اول وي ، او که چرے دَ بچی مور زیات اُجرت غوښتلو نو پلار به په هغے نهٔ مجبوره کولے کیږی ـ

۱۹ له په دِے کښے دَ مور او دَ پلار دواړو دَ پاره یو قِسم زورنه ده ـ دَ عبارت نه صفا دا اندازه معلومیږی چه که چرے دَ مخکینی نا لګیا په وجه ، چه دَ هغے نه خبره طلا قو ته رسیدلی وه ، دواړه په خپل منځ کښے بچی ته دَ پیو ورکولو معامله په ښه طریقه فیصله نهٔ کړي نو دا دَ الله خوښه نهٔ ده ـ ښځے ته وئیلے شوی دی چه که چرے تهٔ په زیات اجرت غوښتلو سره دَ سړي دَ تنګولو کوشش اُوکړے نو دَ بچی پالنه څه په تا پورے خاص نهٔ ده ، بله ښځه به ورله پئ ورکړی ـ او سړي ته هم وئیلے شوی دی چه که چرے تهٔ دَ مور دَ مینے نه ناجائزه فائده اخلے او ښځه هسے تنګول غواړے نو دا څه دَ ښو خلقو کار نهٔ دے ـ تقریباً هم دا مضمون دَ سورة بقرے په آیت ۲۳۳ کښے زیات په تفصیل سره بیان شوے دے ـ

وَكَاَيِّنْ مِّنْ قَرْيَةٍ عَتَتْ عَنْ اَمْرِ رَبِّهَا وَ رُسُلِهٖ فَحَاسَبْنٰهَا حِسَابًا شَدِيْدًا ۙ وَّ عَذَّبْنٰهَا عَذَابًا نُّكْرًا ﴿۸﴾ فَذَاقَتْ وَبَالَ اَمْرِهَا وَكَانَ عَاقِبَةُ اَمْرِهَا خُسْرًا ﴿۹﴾ اَعَدَّ اللّٰهُ لَهُمْ عَذَابًا شَدِيْدًا ۙ فَاتَّقُوا اللّٰهَ يٰٓاُولِي الْاَلْبَابِ ۛۚ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا ۛ قَدْ اَنْزَلَ اللّٰهُ اِلَيْكُمْ ذِكْرًا ﴿۱۰﴾ رَّسُوْلًا يَّتْلُوْا عَلَيْكُمْ اٰيٰتِ اللّٰهِ مُبَيِّنٰتٍ لِّيُخْرِجَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ مِنَ الظُّلُمٰتِ اِلَى النُّوْرِ ؕ

څومره کلی دی چه هغوی دَ خپل رب او دَ هغه دَ رسولانو دَ حکم نه مخ واړوُو نو موږ دَ هغوئ سره سخت حساب اُوکړو او سخته سزا مو ورکړه ـ هغوئ دَ خپل عمل مزه اُوڅکله او دَ هغوئ انجام ټول نقصان دے، (په آخرت کښے) الله تعالیٰ دَ هغوی دَ پاره سخت عذاب تيار کړے دے۔ نو دَ الله نه اويريږئ اے دَ عقل خاوندانو چه ايمان مو راوړے دے ـ الله تاسو ته يو نصيحت رالیږلے دے، يو داسے رسول[۲۱] چه تاسو ته دَ الله څرګندے آيتونه اوروی دَ پاره دَ دے چه مومنان او نيک عمله خلق دَ تيرونه رڼا ته را اُوباسی[۲۲]۔

[۲۰] اُوس مسلمانانو ته خبردارے ورکړے کيږی چه دَ الله دَ رسول او دَ هغه دَ کتاب په ذريعه کوم حکمونه هغوئ ته ورکړے شوی دی که دَ هغے نافرمانی ئے اُوکړه نو په دُنيا او په آخرت کښے به دَ کوم انجام سره مخ کيږی، او که هغه ئے اُومنل نو څه بدله به مومی۔

[۲۱] ځينو مفسرينو دَ نصيحت نه مُراد قرآن اخستلے دے، او دَ رسول نه مُراد محمد صلی الله عليه وسلم ـ او ځينی وائی چه دَ نصيحت نه مُراد پخپله رسول الله صلی الله عليه وسلم دے، يعنی دَ هغه ذات ټول نصيحت نصيحت وُو ـ زموږ په نزد دويم تفسير زيات صحيح دے، ځکه چه دَ اولنی تفسير سره به فقره داسے جوړول پکار وُو چه "موږ تاسو ته يو نصيحت راليږلے دے او يو داسے رسول مو راليږلے دے" دَ قرآن په عبارت دَ دے تبديلئ راوستلو ضرورت آخر څه دے هر کله چه دَ دے نه بغير هم عبارت نه يوازے دا چه پوره معنیٰ لری بلکه زيات دَ معنیٰ نه ډک هم دے۔

[۲۲] يعنی دَ جهالت دَ تيرونه ئے دَ علم رڼا ته را اُوباسی ـ دَ دے حکم پوره اهميت دَ سړی په ذهن کښے په هغه وخت کښے راځی کله چه سړے دَ طلاقو، دَ عدّت او دَ نفقاتو په حقله دَ دُنيا نُورَ پخوانی او نَوی عائلی قانونونه اُوګوری ـ دَ دے کتلو نه

وَمَنْ یُّؤْمِنْ بِاللّٰهِ وَیَعْمَلْ صَالِحًا یُّدْخِلْهُ جَنّٰتٍ تَجْرِیْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِیْنَ فِیْهَآ اَبَدًا ؕ قَدْ اَحْسَنَ اللّٰهُ لَهٗ رِزْقًا ﴿۱۱﴾ اَللّٰهُ الَّذِیْ خَلَقَ سَبْعَ سَمٰوٰتٍ وَّمِنَ الْاَرْضِ مِثْلَهُنَّ ؕ یَتَنَزَّلُ الْاَمْرُ

څوک چه په اللّٰه ایمان راوړی او نیک عمل اُوکړی، اللّٰه به هغه داسے جنتونو ته داخل کړی چه لاندِ به ترې نهرونه بهیږی۔ دا خلق به په هغې کښے همیشه همیشه اُوسیږی۔ اللّٰه دَ داسے سړی دَ پاره بهترین رزق ساتلے دے۔

اللّٰه هغه ذات دے چه اُووه آسمانونه ئے جوړ کړل او دَ هغې پشان دَ زمکے دَ قسم نه هم[۲۳] په دے تړلو کښے

معلومیږی چه دَ بار بار بدلولو او نوی نوی قانونونو جوړولو باوجود یو قوم ته دَ نن ورځے پورے داسے مناسب او فطری او فائده مند قانون په لاس نهٔ دے ورغلے لکه څنګه چه یو نیم زر کاله مخکښے دِے کتاب او دَ دے راوړونکی رسول موږ له راکړے وُو او چه دَ هغے نه دَ غلطئ ایستلو دَ پاره دَ دوباره نظر اَچولو ضرورت نهٔ چرته پیښ شوے دے او نهٔ پیښید ے شی۔ دلته دَ دواړو دَ یو بل سره دَ مقابله کولو موقع نهٔ ده۔ دَ دے صرف یوه مختصره شان نمونه موږه په خپل کتاب "حقوق الزوجین" کښے په آخری حصّه کښے لیکلی ده۔ لیکن کوم عالمان چه غواړی هغوئ دِ دَ دُنیا دَ مذهبی اولا دینی قانونونو سره دَ قرآن او دَ سنّت دَ دِے قانون مقابله اُوکړی او پخپله دِ اُوګوری۔

[۲۳] دَ "هغے پشان" دا مطلب نهٔ دے چه څومره ئے آسمانونه جوړ کړل هغومره ئے زمکے هم جوړے کړے، بلکه مطلب دا دے چه لکه څنګه هغه ډیر آسمانونه جوړ کړی دی دغه شان ئے ډیرے زمکے هم جوړے کړی دی۔ او "دَ زمکے دَ قسم نه هم" دَ دے مطلب دا دے چه لکه څنګه دا زمکه دَ خپل مخلوقاتو دَ پاره فرش او زانګو جوړه شوی ده دغه شان اللّٰه تعالیٰ په کائناتو کښے نورے زمکے هم جوړے کړی دی چه دَ خپل خپل مخلوق دَ پاره فرشونه او زانګوګانے دی۔ بلکه په قرآن کښے په ځینو ځایونو کښے دا اِشاره هم شوی ده چه دَ ساه مخلوق یوازے په دے زمکه آباد نهٔ دی، په عالمِ بالا کښے هم شته (دَ مثال په طور اُوګوره تفهیم القرآن، څلورم جلد، الشوریٰ، آیت ۲۹، حاشیه ۵۰)۔ یعنی په آسمان کښے چه کوم بے شماره ستوری ښکاری، دا ټول مسے شړ پراته نهٔ دی، بلکه دَ زمکے په شان په دے کښے ډیر ستوری داسے دی چه په هغے کښے دُنیاګانے آبادِ ے دی۔

په پخوانو مفسرینو کښے صرف ابن عباس رض یو داسے مفسر دے چه هغه دا حقیقت په هغه دَور

بَيْنَهُنَّ لِتَعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ شَیْءٍ قَدِیْرٌ ۙ وَّ اَنَّ اللّٰهَ قَدْ اَحَاطَ بِكُلِّ شَیْءٍ عِلْمًا ﴿۱۲﴾

ع ۵ / ۱۸

حکم نازلیږی ـ ( دا خبره تاسو ته په دې وجه بنودلے کیږی ) چه تاسو ته معلومه شی چه الله په هرڅیز باندِ قدرت لری ، او دَ الله علم په هرڅیز باندِ خور دے ـ ع

کښے بیان کړے وُوکله چه دَ سړی په خیال کښے هم دا نهٔ راتلله چه په کائناتو کښے دَ دے زمکے نه سِوا چرته بل ځائے هم دَ عقل مند مخلوق وطن شته ـ نن دَ دے زمانے سائنس دانان هم دَ دے خبری په حقله په شک کښے پراته دی ، نو لا څوارلس سوه کاله مخکښے به خلقو په دې څه باور کړے وے ـ دا وجه وه چه ابن عباس رضی الله عنه به دَ عامو خلقو په مخکښے دا خبره نهٔ کوله چه هسے نهٔ په دې خبره دَ خلقو ایمانونه اُوخوځیږی ـ مجاهد وائی چه دَ ابن عباسؓ نه دَ دے آیت مطلب اُوتپوسلے شو نو هغه اُوفرمائیل که دَ دے تفسیر ما تاسو ته بیان کړو نو تاسو به کافران شئ او ستاسو کفر به دا وی چه هغه به دروغ اُوګڼړی ” تقریباً هم دا خبره دَ سعید بن جُبیرؒ نه هم نقل کړے شوی ده چه ابن عباس اُوفرمائیل ” څه باور دے چه که چرے څه تاسو ته دَ دے مطلب اُوښایم نو تاسو به کافران نهٔ شئ ” ( ابنِ جریر ـ عبد بن حُمید ) ـ بیا هم ابن جریر ، ابن ابی حاتم او حاکم ، او په شُعَبُ الایمان او کتاب الاسماء والصفات کښے بَیْهَقِی دَ ابو الضّحیٰ په واسطه سره دَ ابن عباس دا تفسیر نقل کړے دے چه الفاظ ئے دَیو بل نه لږ لږ مختلف دی فرمائی چه ، فی کلِّ ارضٍ نبیٌّ کنبیّکم و اٰدم کاٰدم و نوحٌ کنوحٍ و ابراهیمُ کابراهیمَ و عیسیٰ کعیسیٰ ” په هره زمکه کښے نبی دے ستاسو دَ نبیؐ پشان او آدم دے ستاسو دَ آدمؑ پشان او نوح دے ستاسو دَ نوحؑ پشان او ابراهیم دے ستاسو دَ ابراهیمؑ پشان او عیسیٰ دے ستاسو دَ عیسیٰؑ پشان ” دا روایت اِبن حجرؒ په فتح الباری کښے او ابن کثیر په خپل تفسیر کښے هم نقل کړے دے ـ او امام ذهبی وئیلی دی چه دَ دے سند صحیح دے البته څما په علم کښے د ابوالضّحیٰ نه سِوا دا بل هیچا نهٔ دے روایت کړے ، نو په دے وجه دا بالکل یو شاذ روایت دے ـ ځینی نورو عالمانو دے ته دروغ او موضوعی حدیث وئیلے دے او ملّا علی قاری دے ته په موضوعات کبیر صفحه ۱۹ کښے موضوع وئیلے دے او لیکلی ئے دی چه که چرے دا دَ ابن عباس روایت هم دے خو اسرائیلیات دی ـ

لیکن حقیقت دا دے چه دَ دے دَ ردّ کولو اصلی وجه دا ده چه خلق دا دَ عقل نه لرے ګڼړی ، ګنیٔ نو په دِ ے کښے هیڅ خبره دَ عقل نه خلاف نشته ـ علّامه آلوسی په خپل تفسیر کښے په دِ ے باندِ بحث کړے دے هغه لیکی ، ” دَ دے په صحیح منلو کښے نهٔ عقلاً څه څیز مانع دے او نهٔ شرعاً ـ مطلب دا دے چه په هره زمکه کښے یو مخلوق شته دے چه خپل یو بُنیاد لری لکه څنګه چه زمونږ په زمکه دَ بنیادمو آدم علیه السّلام بُنیاد دے او په هره زمکه کښے داسے افراد شته دے چه په خپل مخلوق

کښې دَ نورو په نسبت غوره دی لکه چه په مونږ کښې نوح او ابراهیم علیهما السّلام غوره او ممتاز دی" وړاندِ هغه وائي، کیدشې شي چه زمکې دَ اوُونه زیاتې وی او دغه شان آسمانونه هم صرف اوه نهٔ وی. په اوّم عدد باندې دَ اکتفا کولو نه داخبره نهٔ لازمیږی چه دَ دې نه زیاتې نهٔ وی" بیا په څینو احادیثو کښې چه دَ آسمانونو په منځ کښې فاصله پنځه پنځه سوه کاله بیان کړې شوې ده، دَ دې په حقله علامه آلوسی وائي چه هو من باب التقریب للافهام، یعنی دَ دې نه مُراد ټهیک ټهیک دَ فاصلې ناپ بیانول نهٔ دی، بلکه مقصدی خبره په داسې طریقه بیانول دی چه هغه دَ خلقو پرهې ته زیات نزدې وی.

دا خبره قابل ذکر ده چه اوُس اوُس دَ امریکې رانډ کارپوریشن (Rand Corporation) دَ فلکی مشاهداتو نه اندازه لګولې ده چه زمکه په کوم کهکشان (Galaxy) کښې پرته ده صرف په هغې کښې تقریباً ۶۰ شپیته کروړه سیارې داسې دی چه دَ هغې طبعی حالات زمونږ دَ زمکې سره ډیر زیات مِلاوُ دی او اِمکان دې چه په هغې کښې هم ژوندی مخلوق آباد وی (اکانومسټ، لندن - مورخه ۲۶ جولائی ۱۹۶۹ء).